بسم اللہ الرحمن الرحیم

اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ
(العنكبوت: ٤٥)

بیشکه لمونځ منع کوي له بې حيايي او بدکارونو څخه

فَاعْبُدْنِيْ وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ لِذِكْرِيْ (سورة طه، آیت: ١٤)

او په صحیح توګه لمونځ کوه خاص زما د یادولو لپاره

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: لَا خَيْرَ فِيْ دِيْنٍ لَا صَلٰوةَ فِيْهِ
(الحدیث)

# مسنون لمونځ


تالیف: مفسرِ قرآن حضرت مولانا صوفی عبد الحمید سواتی
د نصرة العلوم (گوجرانواله) مدرسي مهتمم او باني

ژباړه: حضرت مولانا مفتی فرمان الله





مکتبه فاروقیه
محله جنگی پشاور
0300-9007550
0300-5999052

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

﴿إِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ﴾

«بیشکه لمونځ منع کوی له بی حیایی او بدو کارونو څخه»

«سورة العنکبوت، اية: ۴۵»

﴿وَأَقِمِ الصَّلٰوةَ لِذِكْرِىٓ﴾

«او په صحیح توګه لمونځ کوه خاص زما د یادولو لپاره»

«سورة طٰه، آية: ۱۴»

وَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

لَاخَيْرَ فِيْ دِيْنٍ لَاصَلٰوةَ فِيْهِ

«مسند احمد، ج: ۴، ص: ۲۱۸ - بیهقی، ج: ۲، ص: ۴۵۵ - البداية والنهاية، ج: ۵، ص: ۳۰»

# کامل

# مسنون لمونځ

تاليف: مفسّر قرآن حضرت مولانا صوفی عبدالحمید خان سواتی

د نصرة العلوم «ګجرانواله» مدرسې مهتم او باني

پښتو ژباړه: حضرت مولانا ومفتی فرمان الله

ناشر

مکتبه، فاروقیه، محله جګی، قصه خوانی پیښور

## د کتاب پيژندنه

| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | کامل مسنون لمونځ |
| ليکوال | حضرت مولانا صوفی عبدالحميد خان سواتی ، دنصرة العلوم د مدرسی مهتمم او بانی |
| پښتوژباړه | حضرت مولانا و مفتی فرمان الله |
| کره کتنه اوډيزاين | حافظ محمد ولی (بغلانی) |
| د چاپ کال | ۱۳۹۱ |
| د چاپ شمير | ۱۱۰۰ |
| برېښنايي کوونکی | عزت الله سلطانزی 0093706912702 |
| خپرندوي | مکتبه فاروقيه محله جنگی قصه خوانی پيښور |
| د مکتبی مسؤل | مولانا عبد الباری منيب (لغمانی) |


دا کتاب دباور کتابتون څخه ښکته شوی

https://Bawar.Net

دنور کتابونو لپاره د باور کتابتون له ويبپاڼې څخه ليدنه وکړۍ




# د شپږمې طبعې وړاندېز

**حامدًا ومصليًا:**

الحمد لله د مسنون لمونځ (کلان) شپږم چاپ دمحترمو لوستونکو په لاس کښې دې، الله رب العزة د خپل خصوصي فضل اوکرم له کبله دې کتاب ته ډېر زيات مقبوليت ورکړو، د غه کتاب په (۱۴۰۲هـ . ق) کال د رمضان المبارك په مياشت کښې چه له (۱۹۸۲) ميلادي کال سره سمون خوري داول ځل لپاره خپور شو او منظر عام ته راغې، او دخپلو ډيرو امتيازاتو اوخوبيانو له کبله يې اول چاپ ډير زر خلاص شو، اوپه کال (۱۴۰۸)د ربيع الاول په مياشت کښې چه له (۱۹۸۷) ميلادي کال له دسمبر سره سمون خوري د دويم ځل لپاره چاپ شو، او په (۱۴۱۰) کال د رجب په مياشت کښې چه له (۱۹۹۰) ميلادي کال سره سمون خوري دريم ځل چاپ شو، بيا په کال (۱۴۱۴هـ) د ربيع الثاني په مياشت کښې چه د (۱۹۹۲) ميلادي کال د اکتوبر له مياشتې سره سمون خوري د څلورم ځل لپاره چاپ شو، بيا په (۱۴۱۳هـ) کال د ذي القعدې په مياشت کښې چه د (۱۹۹۳) ميلادي کال د مئ له مياشتې سره سمون خوري د پنځم ځل لپاره چاپ شو، ګويا له نهو کالو څخه په کمه موده کښې دا دې شپږم ځل په کال (۱۴۱۵هـ) کښې چه له (۱۹۹۵) ميلادي کال سره سمون خوري دشپږم ځل لپاره دمحترمو کتونکو خدمت ته وړاندې کيږي، په دې چاپ کښې د پاکستان د جيدو علماء کرامو تصديقونه هم پدې طبع کښې درج شوي دي اودپاکستان مختلفو مجلو او رسالو چه دکامل مسنون لمونځ په هکله کومې تبصرې کړې دي هغه هم پدې چاپ کښې درج کړې شوي دي.

په اسلام کښې د لمانځه په شان داهم رکن په هکله شايد په اردو ژبه کښې داسې بل مدلل اولوئ کتاب موجود نوي، دقرآن اوسنت اوخلفاء راشدينو، صحابه کرامو، تابعينو، سلف صالحينو اود دين بزرګانو اوامامانو خصوصًا د امام ابوحنيفه رحمه الله مسلك د دې کتاب امتيازي ښه ده، پدې کتاب کښې د چا په مذهب باندې رد اونقد ندې شوې بلکه په مثبت مګر مدلل ډول د احنافو مسلك ته ترجيح ورکړې شوې ده، همدا وجه ده چه دې کتاب ته په هره طبقه اودهر مسلك په خاوندانو کښې ښه مقبوليت حاصل دې، له پاکستان څخه علاوه په نورو ملکونو کښې ډيرو دوستانو د دې کوښښ ستاينه کړيده.

کامل مسنون لمونځ که لوه طرفه دحنفي مسلك سره دتعلق لرونکو لپاره يوه ښه تحفه ده له بلې

خوا دمخالفینو او ناقدینو لپاره هم دپریشانۍ اوخفګان باعث هم دي، خصوصاً بعضې اهل حدیثو «غیرمقلدینو» حضراتو د دې کتاب د قدر او اهمیت د کمولو په باره کښې هیڅ ډول کوتاهي نده کړې، د دې کتاب دځو مسائلو په راخستلو سره یې داعتراضاتو دکولو ناکام کوششونه کړي دي اوعوامو ته یې دا باور ورکړې دې چه د دغه کتاب «کامل مسنون لمونځ» یوزیات شمیر مسائل د قرآن او سنت خلاف دي او داحنافو د لمانځه طریقه غلطه ده، چه د دې په رد عمل کښې احقر یوه رساله د «حي علی الفلاح» په نوم باندې لیکلې ده چه په هغې کښې په مسنون لمونځ باندې د اعتراضاتو غابښ ماتوونکي او مدلل جوابونه لیکل شوي دي، او دمعترضینو دغلطو بیانونو او افتراء ګانو رد پکښې شوې دې.

په آخر کښې له الله پاك جل جلاله څخه دا دعاء کوم چه الله رب الکریم دې مونږ ټول په قرآن او سنت باندې ثابت قدم وګرځوي اومسلکي اومذهبي تعصب لرونکو ته دې الله پاك په خپل فضل اوکرم سره هدایت نصیب کړي، آمین ثم آمین.

**احقر محمد فیاض خان سواتي**

**د نصرة العلوم جامع مسجد نور «ګوجرانواله» د مدرسې مهتمم**

**۲۲/ شعبان، سنه: ۱۴۱۵ هـ مطابق: ۲۴/ جنوري، سنه: ۱۹۹۵ میلادي.**

# د علماء کرامو تصدیقات

## دشیخ الحدیث حضرت مولانا عبدالحق صاحب

((د دارالعلوم دیوبند پخواني مدرس او دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک مهتمم))

## دقدر وړ لیکنه

ډیر دقدر وړ اومحترم حضرت علامه مولانا صوفی عبد الحمید صاحب زید مجدکم.

السلام علیکم ورحمة الله - امید دي چه تاسو عافیت لرئ !

ستاسو اوسنې د قدر وړ تصنیف ((کامل مسنون لمونځ)) راورسیده، ماشاء الله د دې ډیر زیات ضرورت وو، پدې موضوع باندې تاسې یو ډیره ښه اوجامعه لیکنه کړیده اوفرض کفایه مو اداء کړیده ، د طباعت ښکلا دهغې ښائست څلورچنده کړې دې، زما خو نظر کمزورې دې لیکن د بعضې ځایونو په آوریدلو سره ډیر زیات خوشحاله شوم، زما له زړه نه دا دعاء ده چه الله پاك جل جلاله دې ستاسې دغه لوئ محنت اومشقت په خپل دربار کښې قبول کړی اود دنیا اوآخرت ترقی او لازوال نعمتونه دې الله پاك تاسې ته نصیب کړی - دحضرت شیخ الحدیث مولانا سرفرازخان صفدر په خدمت کښې زمونږ سلامونه او نیکې هیلې پیش کړئ والسلام.

**عبدالحق غفر له**

**د دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک پیښور د مدرسې مهتمم.**



## د شیخ الحدیث حضرت مولانا محمد یوسف خان مد ظله

((فاضل دیوبند، مهتمم تعلیم القران پلندری، ازاد کشمیر))

## دقدر وړ لیکنه

حضرت العلام جناب صوفی صاحب زید مجده !

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته !

ډیرې ورخې وشوې چه ستاسو له طرفه زما او د مولانا اسحاق صاحب په نوم دوه عدده ((کامل مسنون لمونځ)) کتاب راورسیدلو، یو عدد خو ستاسو دحکم مطابق مولانا اسحاق صاحب ته وراندې کړې شو هغه ډیرزیات پرې خوښ شو ... شاء الله پدې کښې صرف د لمانځه مسنونه طریقه نده بیان شوې بلکه داپه ډیرې ښې طریقې سره یو علمی تحقیق هم دې چه له دې څخه نه یواځې عوام او طالبان بلکه علماء کرام هم ترې استفاده کولې شی، الحمد لله ډیر زیات مبارك کوشش

دې، ستاسو په دغه دقدروړ اوغوره تصنیف باندې زه تاسو ته د مبارکی هدیه وړاندې کوم چه ماته مو یوه نسخه د هدیی په طور رالیږلې ده، زه ستاسو نه پدې هکله ډیرزیات شکرگزار یم، الله پاك جل جلاله چه له تاسو وروڼو څخه کوم دینی خدمت اخستې دې هغه د حق مسلك لپاره یوه ډیره لویه سرمایه اوافتخار دې ، الله پاك جل جلاله دې دغه مبارکه سعی قبوله کړی اوستاسو دپاره دې د دواړو جهانو د سعات باعث ورگرځوی ، آمین ، ثم آمین .

**والسلام**

**محمد یوسف**

*********

## دمحترم جناب شیخ الحدیث حضرت مولانا فیض احمد صاحب مد ظله

**«شیخ الحدیث جامعه قاسم العلوم ملتان»**

## دقدر وړ لیکنه

مخدوم اومکرم حضرت مولانا عبدالحمید صاحب دامت برکاتهم

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته !

بحمدالله الکریم ، دلته ټول دوستان اواحباب په خیر اوعافیت سره دی، امید دې چه ستاسو مزاج گرامی به هم په عافیت سره وی، پرون ستاسو لخوا څخه د «مسنون لمونځ» یوه کاپئ مونږ ته راورسیده او د «جامعه قاسم العلوم گل گشت ملتان» په کتابخانه کښې داخله شوه، دلمانځه په موضوع چه تاسو کوم مفصل اوجامع کتاب لیکلې دې اوپه یو ښکلی طباعت کښې مو شائع کړې دې، نو دپاکستان په مسلمانانو باندې مو یو ډیر لوئ احسان کړې دې ، فجزاکم الله تعالی ونفعنا الله بعلوکم وطول بقائکم .

**بنده ته په خپلو دعاگانو کښې سعادت وروبښئ**

**خادم فیض احمد غفرله ۲۵ / ۲ / ۱۴۰۷ هـ**

*********

## دشیخ الحدیث حضرت مولانا علامه پروفسیر میان منظور احمد صاحب مدظله

**«فاضل دیوبند وشیخ الحدیث دارالعلوم الشهابیه سیالکوټ»**

## د قدر وړ لیکنه

دقدروړ صوفی صاحب ادام الله برکاتکم !

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته !

زه د تصور په سترګو اوس هم هغه نظاره محسوسوم چه په کومه ورځ زه ستاسې په مدرسه «نصرة العلوم» کښې حاضر ووم، یوطرفته مې د بعضې خلکو سره یوه روښانه او د خلاص تندی درلودونکې چهره لیدله او په بل منزل کښې مې دحضرت مولانا سرفراز خان صاحب مدظله العالی دقرآن پاك په درس کښې زړه روښانه اوځلیدلو ، کله چه دوباره لاندې راغلم نو له تاسې سره مې ستاسې په دفتر کښې ملاقات وشو ، ستاسې له ملاقت څخه وراندې مې خپل ملګری ته ویلی وو چه د دغه نیم اوږده شخص په چهره کښې ما ته دعلم د رڼا اوعالمانه وقار په نظر راغې ، له محترم سره یوڅه وخته پورې خبرې وشوې اوالحمد لله زما ټول ګومانونه په یقین سره بدل شول، بیا تاسو دخپلو درسونو درې کتابونه راولیږل نو زه له سر نه ترپښو پورې ستاسوشکرګزار شوم، اوس ستاسې دغه کتاب «مسنون لمونځ» راورسیده چه پدې زه بیحده خوشحال شوم، نو اوس زه ستاسو د دغې ټولو هدیو د زړه له کومې شکریه اداء کوم، هیله ده چه زمونږ دغه شکریه تاسې قبوله کړئ، الله پاك دې تاسو ته دخیر جزاء درکړی ، آمین ، ثم آمین .

تاسې د دې نوی جاهلیت په دور کښې دالله پاك په فضل اوکرم سره د علم حق اداء کوئ، ستاسو له درسونو څخه استفاده کوم اودغه کتاب وقت په وقت ګورم ، تاسې په انتهایی عالمانه انداز کښې دغلطو خلقو الوزوونکې پوکنئ له مینځه وړی دی، له الله پاك جل جلاله څخه امید کوم چه تاسوته خیر اوعافیت نصیب کړی .

**والسلام**

**الاحقر : پروفیسر میا منظور احمد**

دارالعلوم الشهابیه سیالکوټ

## د حضرت مولانا ډاکټر عبدالرزاق اسکند صاحب مد ظله

**«فاضل جامعة الازهر مصر، ومدرس الجامعة العلوم الاسلامیه بنوری ټاؤن کراچی»**

## د قدر وړ لیکنه

جناب محترم حضرت مولانا صوفی عبدالحمید صاحب - حفظه الله تعالی

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

همدا اوس مولانا عبدالرزاق صاحب لدهیانوی ستاسې له طرفه یوه ډیره قیمتی تحفه «مسنون لمونځ» راکړه، فجزاکم الله احسن الجزاء، ماشاء الله ډیره خواری مو کړې ده او اُمت ته مو د لمانځه په شان د اهم او اساسی عبادت راهنمایی کړې ده، الله تعالی دې ستاسې په علم، عمل، ژوند اوقلم کښې ډیر برکت واچوی ترڅو چه په آینده کښې هم په دغه شان تعمیری انداز کښې په نورو مختلفو موضوعاتو باندې هم کار وکړئ، ان شاء الله تعالی، زه به ان شاء الله تعالی په خپله هم له دې څخه استفاده کوم اونورو ته به یې هم د لوستلو لپاره ورکوم. **والسلام**

**طالب دعاء عبدالرزاق اسکندر**

**جامعة العلوم الاسلامیه - کراچی (۵) ۲۹/ ۳/ ۱۴۰۷ هـ مطابق ۳/ ۱۲/ ۱۹۸۶ ع**

********

## د جناب محترم حضرت مولانا حافظ، قاری کرنل ډاکټر فیوض الرحمن صاحب مد ظله

**«پی - ایم - اې کاکول ایبټ آباد»**

## قدرمنه لیکنه

حضرت محترم! السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

ستاسې له تعزیت نامې څخه را ته ډیر سکون او آرام حاصل شو فجزاکم الله خیراً، مرحوم او محرومین په آینده کښې هم په خپلو دعاګانو کښې یاد ساتئ!

الله تعالی دې ستاسې د رحمت سیورې سره له پوره صحت اوعافیت نه زمونږ په سرونو باندې همیش لرې، او د دین قیم د لازیاتو مخلصانه جذباتو توفیق دې در نصیب کړی - آمین، ستاسې قیمتی تحفه «مسنون لمونځ» هم راورسیده، فجزاکم الله خیراً، ماشاء الله ډیر معلوماتی کتاب دې، اوکتابت اوطاعت یې هم ډیر ښکلې دې، او ان شاء الله تعالی دلته به یې دخپلو کتابخانو لپاره هم واخلو، د دې کتاب په هدیه کولو سره درته تبریکی وایم، د قرآن کریم د درس سلسله په تحریری شکل سره جاری ساتل پکار دی څکه چه پدې سره هم ډیرو ته فائده رسیږی. **والسلام علیکم**

**فیوض الرحمن ۱۴۰۷/ ۵/ ۲ هـ**

## د محترم حضرت مولانا محمد اقبال نعمانی صاحب مد ظله

**«مهتمم او خطیب دجامع مسجد مرکزی رجسټر علی پورچټه گوجرانواله»**

## قدرمنه لیکنه

جناب محترم حضرت مولانا صوفی عبدالحمید صاحب سواتی مد ظله العالی

مسنون سلام - ستاسومزاج گرامی ! امید دي چه تاسي جناب به په عافیت سره یئ.

دمحترم رالیږل شوي قدرمنه اوقیمتی تحفه «مسنون لمونځ» ما ته را ورسیده او مطالعه مي کړه. ما شاء الله تعالی کتاب له هر اعتبار څخه جامع دي او د وقت د تقاضا عین مطابق دي. الله پاك جل جلاله د دي کتاب په ذریعه له تاسو څخه یو ډیر لوئ دینی خدمت اخیستي دي، دکتاب د بیان طرز اوطریقه ډیره عمده اوښکلي ده، دغه کتاب چونکه په مثبت انداز کښي لیکل شوي دي نو ځکه یی د دي فائده یو په څلور چنده کړي ده او د دین دمخالفینو دروغژني آوازی بي اساسه اوبي بنیاده ثابتوی چه وایی چه دفقه حنفی له پیروانو سره د رسول کریم صلی الله علیه وسلم د احادیثو هیڅ ثبوت نشته، په دي وقت کښي د دي کتاب په شان یو کتاب ته ډیرزیات ضرورت محسوسیده اوهغه ضرورت کما حقه د دي کتاب په ذریعه پوره شو، دغه کتاب له ډیرونورو کتابونو څخه بي نیازی راولی ، په آخر کښي دعاء کوم چه الله پاك جل جلاله دي دغه خدمت په خپل دربار کښي قبول کړی اودمسلمانانو لپاره دي د فائدي وړ وگرځوی او تاسو ته دي جزاء خیر درکړی، آمین ، ثم آمین ، فقط ، والسلام .

**محمد اقبال نعمانی، جامع مسجد مرکزی علی پورچټه ضلع گوجرانواله - ۱۰ / ربیع الاول ، سنه ۱۴۰۷ هـ**

*********

## دجناب ابوالکلام خواجه صاحب ملتان قدرمنه لیکنه

محترم اومکرم جناب حضرت مولانا صوفی عبدالحمید صاحب دامت برکاتکم العالیه

السلام علیکم !

تیره میاشت ستاسي له طرفه د «مسنون لمونځ» هدیه راورسیدله، دلمانځه په باره کښي جامع اومانع کتاب چه دهغه ضرورت، اهمیت او افادیت دبیان محتاج ندي، ستاسو په دغه پیروزوینه ډیر خوشحاله یم ، الله پاك دي دغه کتاب چه د لمانځه د دائرة المعارف حیثیت لری له قبولیت څخه سرفرزاوگرځوی، اوزما په شان عاصی اوخاطئ ته دي د دي څخه د استفادي کولو اوعلمی اصلاح توفیق راکړی ، آمین ، ثم آمین .

**د دعاگانو محتاج : ابوالکلام خواجه**

**معرفت خواجه پییر مارټ ، چوک بازار، ملتان**

# تبصرې اوبحثونه

## د البینات د میاشتنی مجلې د ادارې

## تبصره

«جمادی الاولی ۱۴۰۷ هـ - مطابق ۱۹۸۷ میلادی ، فروروی»

دحضرت مولانا صوفی عبدالحمید صاحب سواتی دامت فیوضهم شخصیت د اهل علمو په طبقه کښې دتعارف محتاج ندې ، پدې صفحاتو کښې دهغه ذکر خوځوځله او په مختلفو ډولونو سره راغلې دې .

بیشکه هغه موصوف دهغه ربانی عالمانو له جملې څخه دې چه دهغوئ په اوقاتو کښې الله تعالی مافوق العادة برکت اینبې دې او د دین قیم د یوعظیم خدمت لپاره یې موفق ګرځولې دې، د لمانځه په موضوع باندې په سلګونو کتابونه او رسالې لیکل شوی دی لیکن په هغو کښې ډیرې مستنده رسالې په عربی ژبه کښې دی په داسې حال کښې چه په اُردو ژبی رسالو کښې عمومًا د دلائلو طرفته التفات ندې شوې بلکه عمومًا له اختصار څخه کار اخستل شوې دې حال دا چه د هندارې «آیینې» دویم مخ داسې دې چه ناقص العلم او متعصب اوسخت سری خلك چه داسې کوم کتاب لیکلی نو هغوئ د خپل قلم زور په دې خرچ کوی چه زمونږ مسلك حق دې او نور ټول مسلکونه غلط او خلاف د سنت دی، او صرف په قیاسی فقه اوانسانی اجتهاد او محض په قیاس باندې مبنی دی چه له هغې څخه دعوامو په غلط فهی کښې مبتلا کیدل ښکاره او ؤاضحه خبره ده، د دې حالاتو په نظر کښې نیولو سره د دې خبرې ضرورت وو چه د لمانځه په شان اهم عبادت په موضوع باندې باید داسې یو عام فهمه اوپه زړه راښکونکی اندازکښې یو داسې کتاب ولیکل شی چه په هغه کښې دمسائلو څخه علاوه دلائل هم بیان شوی وی .

ددغه «ستاسو په لاس کښې» کتاب یوخصوصیت دادې چه اګرکه د مسائلو استیعاب پکښې نشته لیکن اهم او ضروری مسائل سره له دلائلو پکښې ذکر شوی دی، له دې نه علاوه دعوامو او خواصو د بنیادی او اهمو ضروریات په نظر کښې نیولو سره له دعاګانو او اذکارو سره سره هغه ټول آیتونه چه په هغې کښې د لمانځه صراحةً ذکر راغلې دې د «تذکارالصلوة فی القرآن» تر عنوان لاندې رایوځای کړی دی .

د کتابت اوجلد سازی عمدګی کتاب نورهم ښائسته کړې دې ، امید دې چه د ذوق اومینې خاوندان به دغه قیمتی سرمایه په ډیره خوشحالی سره قبوله کړی .

## دکراچۍ د «الفاروق» د میاشتنۍ مجلې تبصره

حضرت مولانا صوفی عبدالحمید صاحب دملك د مشهورو اهل قلم اومحقق عالم حضرت مولانا سرفرازخان صاحب مد ظله ورور دې ،دغه دواړو ورونړو ته الله تعالی د علم او تقوی سره سره د تحقیق دتحقیق صلاحیت هم ورکړې دې ، لکه څنګه چه په مختلفو موضوعاتو باندې د دې دواړوحضراتو مختلف تصنیفات شاهد اوګواه دی، دصوفی صاحب له نورولویو اوړو تصنیفاتو څخه علاوه د «معالم العرفان فی دروس القرآن» په نوم باندې دقرآن کریم د درس یوه سلسله هم ده چه دهغې متعدد اجزاء هم شائع شوی دی، د ده یو اهم خصوصیت دا هم دې چه دې د ولی الله د فلسفې صحیح الفکر شارح دې، د بر صغیر په موجوده مدارسو کښې صرف د ده درسګاه ته دا خصوصیت حاصل وی چه په دې کښې د دوره حدیث سره سره په ټول کال کښې د شاه ولی الله صاحب یو نوموړې تصنیف لطیف «حجة الله البالغة» سبقًا سبًا لوستل کیږی .

له دې څخه علاوه په مختلفو امورو او نظریاتو کښې د دوئ معلومات آوریدل انسان حیرانوی چه همیشه په مدرسه اومسجد کښې اوسیدونکی او قال الله اوقال الرسول کښې هر وقت مصروف د الله تعالی دغه بنده ه داسې معلومات څنګه حاصلیږی؟ غرض دا چه د دهشخصیت د فتنې په دې ور کښې د سلف صالحینو دهغه علماؤ دژوند یو صحیح نقش دې چه د تعلقاتو اونفسانی خواهشاتو ټولې کشتۍ یې سوزلی دی اوخپل ځان یې دعلم په جزیره کښې بندی کړې دې او اوس پدې دور کښې دهغې مثالونه بالکل نه پیدا کیږی .

وقد کانوا اذا عُدّوا قلیلاً          فقد صاروااعزّ من القلیل

مولانا صوفی عبدالحمید صاحب سواتی دنصرة العلوم دمدرسې د لویی اداري د اهتمام او انصرام د وظیفې د اداء کولو نه علاوه د ګجروانواله د ټولونه د لوئ اوجامع مسجد «مسجد نور» خطابت او روزانه دقرآن پاك او د احادیثو د درس فرائض هم اداء کوی او د امام ولی الله دهلوی د علمی خاندان د علمی تبرکاتو اشاعت، تصنیف اوتالیف ته یې هم پوره توجه کړې ده .

حضرت صوفی صاحب مدظله د دروس القرآن یوزیات شمیر مجموعې شائع کړی دی ، چه د اهل علمو له طرفه له ډیر ښه استقبال اوهرکلی سره مخ شوی دی او یو زیات شمیر علماء کرام او خطیبان صاحبان له هغې څخه استفاده کوی .

دغه کتاب بغیر له شك او شبهې څخه دهغه یو ځانګړې تصنیف دې چه په هغې کښې ده د موجود دور یو اهم ضرورت په پوره کولو سره د لمانځه یوزیات شمیر مسائل راجمع کړی دی او له قرآن اوسنت څخه یې دهغوئ دلائل هم برابر کړی دی، دحنفی فقه له نقطهٔ نظر څخه د دې کار ضرورت له یوڅه زمانې نه را پدې خوا ډیر زیات محسوس کیږی چه د لمانځه او دهغه دمتعلقه

مسائلو په ضمن کښې د قرآن اوسنت دلائل په داسې طریقې سره جمع کړې شی چه د یوې مسئلې متعلق داحنافو دموقع او د ترجیح او وضاحت د معلومولو لپاره ډیرو کتابونو ته د مراجعې لپاره ضرورت پاتې نشی. الحمد لله صوفی صاحب د دې کتاب په ذریعه دا ضرورت ترخپله حده پورې تقریبًا پوره کړې دې.

د کتاب په شروع کښې د قرآن کریم یوسل اونه (۱۰۹) آیتونه د سورتونو له ترتیب سره سره بیان کړې شوی دی، بیا د فقهی ترتیب موافق طهارت، د لمانځه وختونه ، اذان ، د لمانځه شرائط، ارکان، واجبات ، سنتونه، مکروهات، سجده سوه، ادراك فریضه، تراویح، دجمعې اواختر لمونځونه، دمسافر لمونځ، د ویرې لمونځ او دجنازې د لمونځونو په شان اهم موضوعات کم اوزیات تقریبًا په پنځه سوه ضمنی عنواناتو باندې مشتمل دې، او په آخر کښې یې د شاه اسماعیل شهید او مولانا حسین احمد مدنی د «خطبات جمعه» او بیا د «کتاب الاذکار» لاندې دژوند د مختلفو اړخونو سره دتعلق لرونکو مسنون دعاګانو ذکر هم کړې دې ، په دې شان سره مصنف صاحب علماء کرام او خطیبان صاحبان د خپل زیات محنت په ذریعه د ډیرولویو لویو کتابونو له پلټنې اوکتلو څخه بې نیازه کړی دی، دغه مسنون لمونځ د ده د محنتونو او زیار تازه نتیجه ده چه په (۸۳۵) صفحو او په پنځه سوه وړو اوغټو عنواناتو باندې مشتمل دې اود اوداسه، غسل او تیمم په مسائلو باندې هم مشتمل دې.

طریقه یې داده چه تر ټولو اول په صفا اوساده اردو ژبه کښې مسئله لیکلی ، بیا یې د کوم فقهی کتاب حواله لیکلی بیا پدې هکله مرفوع حدیث اویا د صحابی له قول اویا عمل نه دهغې دلیل ذکر کوی، په همدې اساس ټول کتاب په ډیر تحقیق او تدقیق سره مشتمل دې او په حقیقت کښې دهغو خلقو د پروپاګند اوتبلیغاتو مثبت او مسکت جواب دې چه دهغوئ په ګمان خپل ځان ته اهل حدیث او په احادیثو باندې عمل کوونکی وایی او باقی نور امت ته اهل رأیی وایی او هغوئ په قیاس عمل کوونکی بولی، اوبعضې معاندین داسې هم دی چه د ټول اُمت مسلمه لمونځ ته مردود اونامعقول وایی او خپلو لمونځونو ته مقبولوایی بلکه بعضې مزاح طبعه او له دین څخه ناخبره خلق په ښکاره توګه د خلقو په لمونځونو پورې ټوقې هم کوی.

حضرت صوفی صاحب مد ظله نوموړې کتاب د دغه زهرو لپاره تریاق دې ، دا کتاب په هر لحاظ یوبهترین کتاب دې، زما دفکر اوسوچ مطابق هیڅ یوه کتابخانه او کتابتون له دې څخه باید خالی نوی. خصوصًا دهغو محترمو لپاره چه دمعاندینو د اعتراض ننبه ګرځی دهغوئ لپاره د دې کتاب مطالعه ډیره ضرور ده، دا کتاب د هر عالم اوخصوصًا د مسجدونو د امامانو لپاره د مطالعې په خاطر ډیر ضرور دې . په آخر کښې له الله پاك څخه دعاء ده چه الله پاك دې دمصنف صاحب په عمر اوعلم اوخدمتونو کښې برکت واچوی، آمین ، ثم آمین یا رب العالمین

# د خدام الدين لاهور د اونيزې د ادارې تبصره

((۱۹ - ۲۶ ستمبر ، کال : ۱۹۸۶ ميلادی))

د نصرة العلوم د مدرسې مهتمم صاحب حضرت صوفی مولانا عبدالحميد سواتی دامت برکاتهم العاليه د دور حاضر دهغو خوش قسمته بزرګانو څخه دې چه الله رب العزت د دينی علومو د ترويج او خپرونې لپاره منتخب کړې دې اوهغوئ د تعليم او تدريس سره سره د تقرير او تحرير په ذريعه خلکو ته دحق دين اودهغه د اعتقادی او عملی غوښتنو څخه دخبرولو ډير قيمتی خدمتونه ترسره کړی دی .

حضرت صوفی صاحب مدظله په ((مسنون لمونځ)) کښې داسې انداز اختيار کړې دې چه د علماؤ او طالبانو سره سره عام تعليم يافته مسلمان هم په مکمله توګه ورڅخه استفاده کولې شی. بيايی د عامې مناظرې څخه علاوه د افهام او تفهيم اسلوب اختيار کړی دی چه د کتاب حسن او افاديت يی دوچنده کړې دې .

زمونږ په نظر دغه کتاب ((مسنون لمونځ)) نه صرف د دينی مدرسو اوعلماؤ او خطيبانو په شخصی کتابخانو کښې يوه لويه قيمتی اضافه ده بلکه په عامو تعليم يافته مسلمانانو يی هم د دې زيات نه زيات اشاعت ضروری دې ، شايد د دغه ضرورت په بناء په (۸۳۵) مخونو باندې مشتمل ددې کتاب بيعه صرف پنځه اويا (۷۵) روپئ مقرر شوی چه د نشر کوونکود ايثار او قربانی د جذبې اظهار کوی .

الله تعالی دې حضرت مصنف صاحب ته د دې لوئ محنت جزاء خير ورکړی او دهغه تصنيفات دې الله تعالی دعامو خلکو دفائدې ذريعه وګرځوی . آمين ثم آمين

********

## د النور د میاشتنی مجلې «شفیلډ برطانیه» تبصره

«اگست ، کال : ۱۹۸۶ میلادی»

حضرت مولانا صوفی عبدالحمید صاحب مد ظله د حضرت شیخ الحدیث مولانا سرفراز خان صفدر صاحب کشر ورور دې ، د دارالعلوم دیوبند فاضل دې او په فلسفه کښې دحضرت مولانا عبدالله سندهی خصوصی شاگرد دې [۱]. په تصوف کښې ده ته لوړ مقام حاصل دې، په تدریس کښې دمسلم شریف او حجة الله البالغه په درس ورکولو کښې ورته په علمی حلقو کښې خاص شهرت حاصل دې او په رافضیت کښې ورته پوره ملکه حاصله وه ، دبر صغیر د مشهور علمی شخصیت حضرت مولانا عبدالشکور لکهنوی څخه یې په دې موضوع کښې د تلمیذ «شاگرد» شرف حاصل کړې دې ، د دارالعلوم د فراغت نه وروسته یې ترڅلورو کالو پورې یې په طبیه کالج کښې درس حاصل کړو. له هغه ځای څخه چه کله فارغ شو نو ترڅه وخته پورې یې په گجروانواله کښې دحکمت او طبابت مشغله جاری وساتله لیکن الله پاك له ده نه ددین یو لوئ خدمت واخستلو. په کال «۱۹۵۲» میلادی کښې یې د گهنټه گهر سره نزدې یې د «نصرة العلوم» د مدرسې او د «مسجد نور» جامع مسجد بنسټ کیښودلو چه اوس د ملك د لویو مدرسو له جمې څخه شمیرل کیږی، مسجدنور دښار ترټولو لوئ مسجد دې چه هلته د جمعې د لمانځه لپاره ترټولو زیات خلق راجمع کیږی ، حضرت صوفی صاحب د دیرش کالو راهیسې د درس او تدریس نه علاوه د تصنیف اوتالیف کار هم جاری وساتلو. په تصوف باندې د یوڅو کتابونو ترجمه او تشریح د ده دلاس علمی ننبه ده . دې هره ورځ د «النور» په مسجد کښې د قرآن کریم درس ورکوی چه د «دروس قرآن» په نوم خپریږی، چه دعالمانو او عوامو په حلقو کښې یې ډیر زیات شهرت موندلې دې ، د لمانځه په هکله ده وړاندې یو وړوکې کتاب لیکلې وو لیکن پدې هکله یې د یوه تفصیلی کتاب د لیکلو اراده وه ، الله پاك جل جلاله دغه لوئ کار هم سرته ورسولو، «مسنون لمونځ» یقیناً د ده یوه بې مثاله کارنامه ده چه د علماؤ او طالبانو حتی د مفتیانو لپاره یوه قیمتی تحفه ده، دمذهب حنفی ټولې مفتی به مسئلې یې د احادیثو اوفقهې له مستندو او معتبرو کتابونو څخه سره له حوالو نه رانقل کړی دی، له دې څخه وړاندې د لمونځ په موضوع باندې دومره مفصل کتاب مینځ ته نه وو راغلې ، د کتاب په آخر کښې دجمعې او خترونو خطبې اود مسنونو اذکارو اضافه هم شوې ده، په طاعت اوجلد اوکاغذ کښې یې هم کمال کړې دې ، او قیمت یې هم ډیر مناسب دې، د فقهې حنفی سره تعلق لرونکی هر شخص لپاره د دې کتاب له ځان سره ساتل پکار دی، الله تعالی دې مصنف او نشرکوونکو ته دخیر جزاء ورکړی.

---

۱ - د حضرت سندی صاحب شاگرد ندي «فیاض».

## دحضرت مولانا گوهرشاه صاحب

((دالنصیحة دمیاشتنی مجلې مدیر او د چارسدې د اسلامی دارالعلوم مهتمم))

## تبصره

دغه د تبصرې لاندې کتاب ((مسنون لمونځ)) په کتابونو کښې يو بهترين کتاب او نادره مجموعه ده ، د کتاب مصنف حضرت مولانا صوفی عبدالحمید صاحب دنصرة العلوم گجرانواله د مدرسې مهتمم د ديوبند فاضل دې ، دعصر دمحقق شيخ الحديث حضرت مولانا سرفرازخان صفدر صاحب ورور دې اويو پيژندل شوې شخصيت دې ، هغه د يو زيات شمير کتابونو مصنف دې ، دهغه دغه کتاب د لمانځه په موضوع باندې جامع، آسان او مدلل کتاب دې، د بنده له نظره په اُردو ژبه کښې له دې نه زيات مستند ، مدلل او آسان کتاب ندې تير شوې

مولانا صاحب د کتاب په تمهيد کښې له مأخذونو او مراجعو سره سره د کتاب خصوصيات او داعتدال تعليم اوتلقين سره اختصار اوجامعيت نه ذکر کړې دې ، دکتاب په مقدمه کښې يې د قرآن کريم هغه آيتونه چه په هغې کښې د لمانځه ذکر دې سره له ترجمې اوتفسير نه ذکر کړی دی ، له دې نه وروسته يې د فقهې په ترتيب سره د طهارت او لمانځه يو ه يو ه مسئله په تفصيل سره بيان کړې ده ، تولې مسئلې يې د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله د مسلك مطابق سره له دلائلو بيان کړې دی چه د قرآن اوصحيحو احاديثو اوفقهی اقوال مؤيد دی. په دغه کتاب ((مسنون لمونځ)) کښې طهارت، اذان، د لمانځه وختونه ، دلمانځه فرائض ، سنتونه، مستحبات، مکروهات او مفسدات پوره پوره بيان شوی دی ، دجمعې او اخترونو لمونځونه ، دجنازې لمونځ او نوافلو وغيره ټول مباحث اوله هغو سره سره د اذکارو او دعاگانو اوخطباتو يو ه بهترينه مجموعه هم ده

بهر حال دا کتاب يو مفيد کتاب دې ، الله پاك دې ددې کتاب مصنف ته لوئ اجر ورکړی اوالله پاك دې دهغه دغه کتاب اوتورو کتابونوته په مقبوليت کښې نوره ترقی هم ورکړی ، د ((الدين النصيحة)) په بناء باندې له ټولو لوستونکو څخه دا التماس دې چه دغه کتاب دې خامخا له ځان سره په سفر اوحضر کښې وساتی اودهغې له قيمتی احکامو او مسائلو څخه دې استفاده وکړی

محمد گوهرشاه

* * * * * * * *

* * * * * *

## دمولانا محمد اشرف علی قریشی

«د صدای اسلام پشاور د میاشتنی مجلې مدیر»

## تبصره

«۱۴۰۸هـ ستمبر ۱۹۸۷ میلادی»

دغه کتاب «مسنون لمونځ» د حضرت مولانا صوفی عبدالحمید صاحب سواتی دامت برکاتهم تصنیف دې ، حقیقت دا دې چه دوئ د دې موضوع حق اداء کړې دې، په دغه موضوع کښې دا یو جامع کتاب دې چه انسان د ډیرو کتابونو له کتلو څخه بې نیازه کوی ، دغه کتاب دعامو مسلمانو سره سره د اهل علمو لپاره هم یو مفید کتاب دې.

په مسجدونو کښې د دې کیښودل ډیر فائده مند دی، د دې په خاطر چه عام مسلمانان له دې څخه زیاته فائده حاصله کړی ، په دې کتاب کښې ټول ضروری مسائل ذکر شوی دی، د دې په بابونو کښې د قرآن کریم سورتونه ذکر شوی دی ، همدارنګه په دې کښې کتاب الطهارت، د اوداسه فضائل، مکروهات، د استنجاء اوغسل احکام ، تیمم، کتاب الصلوة، اذان ، د لمانځه شرائط، د لمانځه ارکان، واجبات، د لمانځه سنتونه ، د لمانځه مفسدات، د لمانځه مکروهات ، سجده سهوه او ادراك الفریضه، صلوة الوتر، صلوة السفر، صلوة التسبیح، صلوة التراویح، صلوة الجمع، صلوة العیدین، عید الاضحی، صلوة المسافر ، صلوة الخوف، صلوة الطالب والمطلوب ، صلوة المریض او صلوة الجنازه وغیره ، خطبات، کتاب الاذکار والدعوات ، دچشتی طریقې دمشائخو معمولات اوعموی اوراد اوپه داسې نورو ډیروموضوعاتو باندې دا کتاب مزین اوښائسته شوې دې ، د دې کتاب «مسنون لمونځ» مطالعه دهر مسلمان لپاره مفیده ده او دا کتاب د هر کور دکتابخانې زینت جوړیدل پکار دی.

* * * * * * * *
* * * * * * *
* * * * * *
* * * * *

## دحضرت مولانا مفتی محمد انور صاحب مد ظله

**((د الخیر د میاشتنی مجلې ملتان))**

## تبصره

**((صفر : ۱۴۱۴هـ، اگست : ۱۹۹۲ میلادي))**

د لمانځه په موضوع د حضرت مولانا صوفی عبدالحمید صاحب سواتی مد ظله تالیف ((مسنون لمونځ)) دې چه په هغې کښې د لمانځه ضروری مسائل سره له دلائلو ذکر کړې شوی دی، د دې کتاب دلائل له کتاب الله، صحیح احادیثو اوثابت سنتو، او د صابه کرامو اوتابعینو او د دین د امامانو د اقوالو او تعامل په حوالو سره راوړل شوی دی، د مناظرانه انداز په ځای دکتاب اوسنت ترجمانی او د امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله او داحنافو د مذهب په ترجیح یی اکتفاء کړیده مصنف رحمة الله علیه دا حقیقت په نظر کښې نیولې دې چه د أئمه کرامو فرعی اوفقهی اختلافات علمی او استنباطی اختلافات دی، دهغې دمناظرو اومناقشوموضوع جوړول غلو اوتنگ نظری ده

بیشکه دحنفی مسلك د تابعدارانو لپاره دخپل مسلك اوشرح صدر په خاطر ((مسنون لمونځ)) یوکافی اوشافی تالیف دې، دغه کتاب په (۸۳۵) مخونو مشتمل اود لمانځه د ضروری مسائلو یی پوره تفصیل کړې دې، د بنده په نظر نه صرف دحنفی مسلك بلکه د هر امام اوخطیب لپاره خصوصاً د عوامو لپاره عموماً د دې مطالعه ضروری ده بلکه دهغه غیر مقلدینو حضراتو لپاره چه هغوئ متعصب نه دی، د دې کتاب مطالعه ډیره مفیده ده اودهغوئ سترگې به دې دې په ذریعه دحق لپاره خلاصې شی، د دې کتاب کاغذ، کتابت او طباعت هم عمده دې اوجلد یی هم خوبصورت دې، قیمت یی (۱۲۰) روپئ دې، زمونږ په نظر د دې کتاب دا پنځم ځل چاپ کیدل د دې کتاب دعام مقبولیت یو واضحه او ښکاره دلیل دې، په دې ځل چاپ کښې یی د کتابت دهغو غلطي اصلاح هم شوې ده چه په مخکنیو طباعتونو کښې پاتې شوې وې.

********
*******
******
*****

# تمهيد

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ، وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى عَبْدِهٖ وَرَسُوْلِهٖ اَكْرَمُ الْاَكْرَمِيْنَ وَعَلٰى آلِهِ الطَّاهِرِيْنَ وَاَصْحَابِهِ الْمُعَظَّمِيْنَ وَاَزْوَاجِهٖ اُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ وَاَتْبَاعِهٖ اِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ.

وَقَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى: ﴿ قُل لِّعِبَادِيَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ يُقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ ﴾ ، (سورة ابراهيم، آية : ۳۱).

**توجمه** : او وه وايه اې پيغمبره ! زما هغه بندګانو ته چه ايمان يې راوړې دې ((مؤمنانو ته))، چه لمونځ قائم کړي .

**تمهيد** : احقر له نن نه تقريبًا شل کاله وړاندې دهلکانو اونجونو د تعليم اوتربيې لپاره دلمانځه په باره کښې يوه وړه کتابچه ترتيب کړې وه ، د ((مسنون لمونځ)) په نوم باندې ، دغه کتابچه تراوسه پورې اوه ځله چاپ شوې ده.

دغه کتابچه دماشومانو په تعليم کښې ګټوره ثابته شوه او الله تعالى په خپل فضل او کرم سره دې کتابچې ته ډير مقبوليت نصيب کړو، له ماشومانو څخه علاوه مشرانو حضراتو هم له دې کتابچې څخه ډيره فائده واخيسته، د دې اووم چاپ کتابت هم دوباره شوې وو او په دې کتابچه کښې څه اضافت هم شوی وو، يوه خبره دا هم وه چه په هغې کښې د راوړل شويو مسائلو حوالې هم پکښې ليکل شوې وې، او د احاديثو سلسله هم تر څلويښتو پورې مکمله شوې وه او د بعضې اذکارو اضافه هم پکښې شوې وه او ورسره د خطيبانو حضراتو د آسانتيا اوسهولت اوضرورت په نظر کښې نيولو سره دجمعې او اخترونو اونکاح خطبې هم پکښې شاملې کړې شوې وې، کله چه دغه کتابچه ليکل شوې وه له هغه وخت څخه د احقر په ذهن کښې دا خبره ګرځيده چه د مسنون لمونځ په باره کښې يو درميانه درجه مستند کتاب هم په کار دې چه په هغې کښې مسنون لمونځ اکثر ضروری مسائل سره له دلائلو راوړل شوی وی، مګر داسې موضوع نه موندل کيده چه دې طرفته دې توجه راوګرځول شی، اوس په دې نژدې وختونو کښې الله تعالى د دېتوفيق را نصيب کړو.

په دې کتاب کښې حتى الامکان دلائل د کتاب الله او درسول کريم صلى الله عليه وسلم د صحيح احاديثو اوثابتو سنتو او د صحابه کرامو اوتابعينو عظامو اود دين امامانو تعامل ذکر هم شوې دې، پدې کښې صرف د مسائلو مثبت اړخ ته توجه شوې دې اومناظرانه انداز او مسلکی مناقشات پکښې ډير کم دی، د دې ضرورت د پوره کولولپاره احقر يولږ اندازه مواد په دې کتاب ((کامل مسنون لمونځ)) کښې جمع کړی دی ، ترتيب يې د فقهې او احاديثو د عامو کتابونو مطابق دې ، دلائل يې له قرآن کريم څخه علاوه اکثر د صحيحو احاديثو او معتبرو فقهی کتابونو په عامه

اومأنوسه طريقه بيان شوی دی .

له دې څخه زمونږ اصل مقصد صرف د الله پاك رضا اوخوشحالی ده او بيا د ټول اُمت بهتری اوبالخصوص د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله دتابعدارانو اواحنافو حضراتو د طريقې ترجيح هم په ډير ښه اندازه پکښې ظاهره شوې ده .

اصلي خبره دا ده چه د لمانځه په شان يو اهم عبادت باندې ټول امت متفق دې ليکن د لمانځه په کيفيت ، اداء او بعضې افعالو ، هيئتونو ، سنتونو ، مستحباتو او آدابو کښې د صحابه کرامو او تابعينو عظامو او د دين د امامانو له يوبل سره اختلاف موندل کيږی، په اصل کښې په اتفاق کيدو او هر يوه لره دخپلې طريقې د افضليت او اولويت او د ترجيح د اظهار پوره حق حاصل دې، پدې هکله که چيرې له انصاف څخه کار واخستلې شی نو د احنافو د لمانځه طريقه د نورو ټولو طريقو څخه بغير دهغوئ د تغليط څخه افضله او غوره په نظر راځی .

لکه چه نواب حسن خان بهوپالی سره له غير مقلد والی نه او د اهل حديثو د فرقې د مقتداوالی سره سره په حنفی طريقه لمونځ کاوه ، لکه چه صاحب د نزهة المجالس ليکلی دی :أَنَّهُ كَانَ يُصَلِّيْ عَلَى طَرِيْقَةِ الْأَحْنَافِ فَلَا يَرْفَعُ الْأَيْدِيَ فِي الْمَوَاضِعِ غَيْرَ تَكْبِيْرِ التَّحْرِيْمَةِ وَلَا يَجْهَرُ بِآمِيْنَ بَعْدَ الْفَاتِحَةِ وَلَا يَضَعُ يَدَهُ عَلَى صَدْرِهِ وَإِنْ كَانَ لَيُوْتِرُ بِوَاحِدَةٍ وَيُصَلِّيْ ثَمَانَ رَكْعَاتٍ فِي التَّرَاوِيْحِ (نزهة الخواطر، ج: ۸ ، ص: ۱۹۱) .

ترجمه : هغه «نواب حسن خان» د احنافو په طريقه لمونځ کاوه ، د تکبير تحريمه نه علاوه يې رفع اليدين نه کاوه او نه يې له فاتحې وروسته آمين بالجهر وايه او نه يې لاس په سينه کيښوده اگرچه هغه يو رکعت وتر کول او اته رکعته تراويح يې کولې .

همدارنګه امام حضرت شاه ولی الله محدث دهلوی رحمه الله په خپل کتاب فيوض الحرمين کښې ليکی دی چه : إِنَّ فِي الْمَذْهَبِ الْحَنَفِيِّ طَرِيْقَةً أَنِيْقَةً هِيَ أَوْفَقُ بِالسُّنَّةِ الْمَعْرُوْفَةِ الَّتِيْ جُمِعَتْ وَنُقِّحَتْ فِيْ زَمَانِ الْبُخَارِيِّ وَأَصْحَابِهِ. (فيوض الحرمين، ص: ۱۳۲)

ترجمه : بيشکه په مذهب حنفی کښې يوه داسې عمده طريقه ده چه له معروف سنت سره ترټولو زيات موافقت لری ، هغه سنت چه د امام بخاری او دهغه د زمانې د نورو محدثينو په دور کښې جمع اومنقح شوی وو .

د لمانځه په موضوع له ابتدائی قرونو څخه تر اوسه پورې د سلګونو نه زيات کتابونه ، رسالې او ورې کتابچې او لوئ لوئ کتابونه تصنيف شوی دی .

د احاديثو او فقهې په ټولو کتابونو اوفتاواوو کښې د لمانځه ټول مسائل راوړل شوی دی، له دې څخه علاوه په مستقل طور صرف د لمانځه په موضوع په هر ور کښې او په هره زمانه کښې ډير کار کيږی، بينو کښې دحضرت امام احمدبن حنبل رساله «کتاب الصلوة» مختصره ليکنه

اهم ترینه رساله ده ، په هردور کښې په مختلفو ژبو د لمانځه متعلق کتابونه اورسائل خپریږی ، په اوسنی ماشینی طباعتی دور کښې خو دا کار ډیر په تیزئ سره روان دې ، دامام ابن همام سفری رساله چه هغه د سفر په حالت کښې لیکلې وه هغه هم ښه رساله ده اودهغې نوم یی زاد الفقیر ایښې دې

د منځنی طبقې د فقهاء کرامو څخه چه چا منیة المصلی کتاب لیکلې دې هغه هم ډیر مهم کتاب دې. بیا دهغه شرحه غنیة المتملی (کبیری) دمحدث اوفقیه شیخ ابراهیم حلبی تصنیف دې ، بیحده اهم کتاب دې چه د مسائلو سره سره یی د ټولو صحاح سته نه دلائل صحیح او حسن احادیث پیش کړی دی ، اوتقریبًا همدا انداز ابن همام رحمه الله هم په خپل کتاب فتح القدیر کښې اختیار کړې دې.

اوحضرت مولانا ملا علی قاری په ((شرح نقایه)) کښې په محدثانه انداز کښې د دلائلو ذکر او د احادیثو جرح اوتعدیل کړې دې، د متأخرینو محدیثونو او فقهاؤ تر مینځ د استدلال د طریقې او بیان د وضاحت په اعتبار سره ډیر عمده او بې مثاله کتاب دې.

په فارسی ژبه کښې ((مفتاح الصلوة)) د مولانا فتح محمد صاحب برهان پوری رحمه الله دې اود حضرت مولانا شاه رفیع الدین محدث دهلوی صاحب رساله ((فوائد نماز)) په فارسی ژبه کښې د حقائقو په بیان کښې ډیره مختصره او بې مثاله ده.

خلاصه کیدانی عربی هم مختصره رساله ده. په درسیاتو کښې شامله ده چه په هغې کښې د لمانځه په باره کښې اکثر مسائل ذکر شوی دی.

په اُردو ژبه کښې بې شمیره کتابونه په دې موضوع خپاره شوی دی لکه د بهشتی زیور د لمانځه اجزاء . دحضرت حکیم الامة مولانا شاه اشرف علی تهانوی ډیر مفید او اهم دې، حضرت مولانا ابوالخیر اسدی صاحب ((مدنی نماز)) او د حضرت مولانا حکیم الاسلام حضرت مولانا قاری محمد طیب صاحب ((فلسفۀ نماز)) او دحضرت مولانا مفتی محمد کفایت الله صاحب ((تعلیم الاسلام)) او د مولانا شیخ الحدیث محمد زکریا صاحب ((فضائل نماز)) اودحضرت مولانا خیر محمد صاحب ((حنفی نماز)) او د مولوی اکرام الحق صاحب راولپنډی ((نماز کی کتاب)) . او په دې سلسله کښې تر ټولو نه زیات مفصل او اوږد کتاب د حضرت مولانا استاذ امام اهل سنت عبدالشکور لکهنوی، فاروقی، فرنګی محلی کتاب ((علم الفقه)) ډیر مفید اومفصل دې ، او دحضرت مولانا ابوالقاسم دلاوری د حضرت مولانا شیخ الهند د شاګرد کتاب ((عماد الدین)) ډیر اهم کتاب دې.

همدارنګه د مولانا سید زوار حسین کتاب ((عمدة الفقه)) دویمه حصه کتاب الصلوة هم ډیر اهم او مفید او واضح کتاب دې اګرچه په هغوئ کښې یی په اکثرو کښې دلائل عمومًا د فقهې له

کتابونو څخه راوړي دي.

په دې کتاب کښې دې محترم لوستونکي ملاحظه کړي د دلائلو اکثره حصه له مستندو احاديثو څخه اخستل شوې ده او د دې نه علاوه د فقهاء کرامو قوي دلائل او د سلفو د تعامل اخيستې شوې ده.

د فقهاء کرامو په دلائلو کښې له احاديثو څخه استدلال کولو ته کمه توجه کړې ده څکه هغوئ دهميش لپاره دعوامو آسانتيا او سهولت ته کتلي دي لدې کبله چه د مسائلو استدلال په دليل سره په ډير بحث اوپلټنه اورد اوقدح سره کيږي بيا په سند باندې خبره اودهغې تنقيح. نو دا د عوامو له توان څخه بهر خبره ده. عوامو ته خو فقط اصل مسائل معلومول ضروري دي چه هغوئ ورباندې عمل وکړي.

ليکن په دې نوي دور کښې د طباعت د پراختيا له کبله اکثر خلق په تردد کښې اچول شوي دي، د کتابونو کثرت او د احاديثو قسم قسم شروحاتو د احاديثو طرفته رجحان زيات کړې دې.

اوبيا ناقص العلم او متعصب خلق داسې دي چه هغوئ کله هم کوم کتاب ليکي نو عوامو ته دا باور ورکوي چه صرف زمونږ مسلک حق دې، نور ټول مسلکونه غلط او له سنت څخه خلاف دي او وايي چه دغه مذهبونه صرف په فقهي قياس اوانساني اجتهاد باندې مبني دي چه له همدې کبله عوام په مغالطه کښې لويږي، حالانکه فروعي مسلکونه په خپلو فروعاتو کښې په حق باندې دي او په حق شريعت کښې د دغو ټولو مسلکونو د طريقه کار د ترجيح اوتائيد لپاره اصول او ضوابط، دلائل او براهين اوصريح قرائن موجود دي، ټول په حقه ګڼل او خپل مسلک ته په قوي دلائلو او واضحه قرائنو سره دترجيح ورکولو حق هرچا ته حاصل دې، ليکن د تشدد اوتعصب اوتعمق اوطرفداري قطعًا ګنجايش نشته، اکثر مبتدعه فرقې د داسې تعصب ښکار کيږي او له خپل ځان نه بغير بل څوك نه تسليموي.

په الله باندې پناه: بعضې خو په معمولي او استحبابي مسئلو کښې دومره تشدد کوي چه هغه له فرضو او واجبو څخه کم نه بولي اودهغو په خلاف په سنتو يا مستحبو عمل کونکي ګمراه او د صراط مستقيم نه منحرف ګني، په جزئي مسئلو کښې دومره اندازه تشدد کول او زور ورکول چه نورې ټولې لارې په نظر بندې راشي دتنګ نظرۍ او کم ظرفۍ انتهاء ده، د څلورو مشهورو مذهبونو او اهل ظواهرو اختلافات او د بعضې نورو امامانو فقهي او فروعي اختلافات يا تشريحي اوتوضيحي اختلافات که څومره هم زيات وي بيا هم دا استنباطي اوعلمي اختلافات دي او دا ټول اهل حق دي، د بعضې جزئي اعمالو او افکارو له کبله هغه له حق څخه خارج نه ګڼل کيږي، الله تعالى دې ټولوته په حق د پوهيدلو اودحق د اتباع توفيق ورکړي، آمين، ثم آمين.

د دې ټولو امورو په نظر کښې نيولو سره د دې کتاب د ترتيب کولو ضرورت را پيدا شو، په

دې کتاب کښې دټولو مسائلو استیعاب ندې شوې بلکه د اهمو مسئلو ذکر پکښې شوې دې ، که چیرې استیعاب مد نظر وای نو د دې کتاب حجم به د دې درې چنده شوې وو اوحالات د دې متحمل ندی .

د دې کتاب یو خصوصیت دا هم دې چه په دې کښې د ضروری مسائلو سره له دلائلو نه دعوامو اوخواصو اهم او بنیادی ضرورت یعنی د اذکارو او دعاګانو اضافه هم شوې ده، د لمانځه اذکار اودلمانځه نه بعد اذکار اودعاګانو نه علاوه د شپې او ورځې ضروری دعاګانې او اذکار هم په یوه خاص ترتیب په دې کتاب کښې ځای پرځای شوی دی اوهرمسلمان هغه خپل معمول جوړولې شی .

دکتاب په ابتداء کښې به محترم لوستونکی یوفصل «تذکارالصلوة فی القرآن» ولولی ، هغه ټول آیتونه چه په هغې کښې د لمانځه ذکر صراحةً راغلې دې هغه ټول را یوځای کړې شوی دی چه ترڅو دا معلوم کړای شی چه په قرآن کریم کښې دلمانځه ذکر په کوم کوم ځای کښې شوې دې، د دغه ټولو آیتونو ترجمه په ډیره آسانه ژبه لیکل شوې ده ، په دې ترجمه کښې اکثر له کشف الرحمن څخه اخذ شوې دې، په نورو مقاماتو کښې هم د مبارکو آیتونو ترجمه او د احادیثو ترجمې احق د. خپل فهم ناقص مطابق لیکلی دی لیکن د قرآنی ایتونو د رجمې اعتماد او انحصار دحضرت مولانا شاه عبدالقادر محدث دهلوی اوحضرت شاه ولی الله محدث دهلوی اوحضرت مولانا شاه رفیع الدین محدث دهلوی اوحضت مولانا شاه اشرف علی تهانوی او مولانا شیخ الهند محمود حسن دیوبندی ډیر زیات لحاظ شوې دې،دمولانا فتح محمد صاحب ترجمه هم شته چه له هغې څخه م استفاده شوې ده،اوحضرت شیخ التفسیرحضرت مولانا احمدعلی لاهوری دقرآن ترجمه او تفسیری فوائد، دا ترجمې تر ټولو نه زیاتې په دې دور کښې فائده مندی او قابل اعتماد دی .

په مسائلو او دلائلو کښې اودهغو په فهم او اخذ کښې غلطی کیدلای شی که څوک په واضحه توګه دهغې نشان دهی وکړی نودهغو به اصلاح وکړې شی، لیکن که څوک د مسلکی تعصب او شر جوړولو له کبله اودمناظرې په طریقه خبرې کول غواړی نودهغه خبرې ته به توجه نه ورکول کیږی . والله سبحانه وتعالی اعلم وهوالموفق والمعین .

**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وآله واصحابه اجمعین ، برحمتک یا ارحم الراحمین.**

**احقر عبدالحمید سواتی ،**

**۱۴۰۴ هجری کال ، مطابق ۱۹۸۴ میلادی کال .**

# د کتاب خپرونه

## «دیارلسمه طبعه»

د «مسنون لمونځ» د خپروني سعادت په مجموعي طور سره د نصرت العلوم د مدرسې دنشر او اشاعت شعبې ته حاصل دې لیکن ناشکري به وي چه د لاندې دوو صاحبانو خصوصي شکر اداء نکړې شي:

یو حاجي محمد اسلم صاحب کبابو والا چه هغه د دې کتاب د کتابت مصارف په خپله غاړه اخیستي وو او د دې لوئ کتاب کتابت دهغه دکوشش له کبله پای ته ورسیده، الله تعالی دې د نوموړي حاجي صاحب دغه لوئ خدمت او قرباني په خپل دربار کښې قبوله کړي اودهغه لپاره دې د آخرت نیکه اوښه توښه وګرځوي، «نوموړې حاجي صاحب اوس وفات شوې دې».

اودویم مولوي محمد اشرف صاحب دنصرة العلوم د مدرسې فاضل دې چه هغه هم د دې کتاب په سلسله کښې ډیر مشقت او خواري کړې ده او پدې هکله یې ډیر تکلیف برداشت کړې دې، هغه داصل کتاب مسوده د کتابت قابله ګرځولې ده ځکه چه د احقر خط داسې نه وو چه کتابان صاحبان دې په آسانۍ سره ترې لیکل وکړای شي، له دې نه علاوه دکتابونو حوالې برابرول اوپه مسوده کښې راوړل شوې حوالې له اصل کتاب سره یوځای کول او د بیا بیا ورقو له نظره تیرول اومطالعه کولو زحمت برداشت کول دا یو لوئ محنت دې، که چیرې دهغې ذمه واري مولوي محمد اشرف نه وای قبوله کړې نو احقر هغه سرته نشو رسولای.

همدارنګه هغه زما په کار کښې ډیر سهولت پیدا کړې دې اوپه بعضې ځایونو کښې یې د مسودو د تقدیم اوتاخیر اوتبویب وغیره په هکله مهمې اومفیدې مشورې هم راکړي دي، د دې نه علاوه د پروف ریډنګ په سلسله کښې هم د ده محنت دیادولو وړ دې.

مقصد دا چه که د دې کتاب په سلسله کښې دهغه تعاون نه وای، شاید چه دا کتاب خپور شوې نه وای، الله تعالی دې د مولوي صاحب په علم اواخلاص کښې برکت واچوي، دده دامحنت اوزحمت دې د ده لپاره موجب دلوئ اجر وګرځوي. وما ذلك على الله بعزيز.

**احقر عبدالحمید سواتي**

**مدرس نصرة العلوم ګوجرانواله**

**ذی الحجه ۱۴۲۳ هـ مطابق فروري ۲۰۰۳**

## مقدمه

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

په قرآن کریم کښې دتوحید اوآخرت اورسالت له ذکرڅخه وروسته چه څومره د لمانځه تذکره شوې ده د بل عبادت دومره تذکره نده شوې، په اجمالی توګه او د عبادت او اطاعت په ضمن کښې خو په سلګونو ځایه دلمونځ ذکر شوې دې، لیکن صراحةً هم تقریباً یوسل اونهه ځله په قرآن کریم کښې د لمانځه ذکر شوې دې چه په هغې کښې د لمانځه د فرضیت او اهمیت اوحکمت نه علاوه د لمانځه داحکامو او مسائلو اودهغه د شرائطو اوارکانو اومستحباتو پورې ذکر موجود دې. دهغه اجر اوثواب اودهغه دنیوی اواُخروی فوائد هم ذکر دی ، دعقیدې او فکر د اصلاح نه بعد په ټولو عباداتو کښې اهم ترین عبادت لمونځ دې ، دهغه په باره کښې د آنحضرت صلی الله علیه وسلم واضح ارشادات موجود دی.

عَنِ ابۡنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ : لَا إِيۡمَانَ لِمَنۡ لَا أَمَانَةَ لَهٗ وَلَا صَلٰوةَ لِمَنۡ لَا طُهُوۡرَ لَهٗ وَلَا دِيۡنَ لِمَنۡ لَا صَلٰوةَ لَهٗ إِنَّمَا مَوۡضِعُ الصَّلٰوةِ مِنَ الدِّيۡنِ كَمَوۡضِعِ الرَّأۡسِ مِنَ الۡجَسَدِ «الترغیب والترهیب للمنذری، ج : ۱ ، ص : ۱۴۳ دطبرانی په حواله».

**ترجمه** : دحضرت ابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې ، هغه وایی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی چه په چا کښې امانت نوی په هغه کښې ایمان نشته او دچا چه طهارت نوی دهغه لمونځ نشته او دچا چه لمونځ نوی دهغه دین نشته. د لمانځه مقام په دین کښې داسې دې لکه د سر مقام په وجود کښې.

عَنۡ أَبِيۡ هُرَيۡرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُ عَنۡ رَسُوۡلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ أَنَّهٗ قَالَ لِمَنۡ حَوۡلَهٗ مِنۡ أُمَّتِهٖ اُكۡفُلُوۡا لِيۡ بِسِتٍّ أَكۡفُلۡ لَكُمۡ بِالۡجَنَّةِ. قَالُوۡا وَمَا هِيَ يَا رَسُوۡلَ اللّٰهِ ؟ قَالَ: اَلصَّلٰوةُ وَالزَّكٰوةُ وَالۡأَمَانَةُ وَالۡفَرۡجُ وَالۡبَطۡنُ وَاللِّسَانُ . «الترغیب والترهیب، ج : ۱ ، ص : ۱۴۳ ، د طبرانی په حواله».

**ترجمه** : له حضرت ابوهریرة رضی الله تعالی عنه څخه روایت دې هغه وایی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم خپلو خواوشا خلقو ته وویل چه تاسو ما ته د شپږو ځیزونو ضمانت راکړئ ، زه به تاسو ته دجنت ضمانت درکړم، صحابه کرامو عرض وکړو چه یا رسول الله ! هغه شپږ ځیزونه کوم دی ؟ هغه مبارك ورته وفرمایل چه : لمونځ، زکات، امانت، د شرمګاه حفاظت، دخېټې حفاظت او د ژبې حفاظت.

عَنۡ أَبِيۡ هُرَيۡرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنۡهُ قَالَ : قَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ لَا سَهۡمَ فِي الۡإِسۡلَامِ لِمَنۡ لَا صَلٰوةَ لَهٗ . «الترغیب والترهیب، ج : ۱ ، ص : ۱۹۵ ، دمسند بزار په حواله».

**ترجمه** : حضرت ابوهریرة رضی الله تعالی عنه فرمایی چه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمایل : دهغه چه په اسلام کښې هيڅ حصه نشته چه دچا لمونځ نوی.

عَنْ فَضْلِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَلصَّلٰوةُ مَثْنٰى مَثْنٰى تَشَهُّدٌ فِيْ كُلِّ رَكْعَتَيْنِ وَتَخَشُّعٌ (اَيْ بِالْبَاطِنِ اَنْ لاَّ يَتَطَرَّقَ اِلَى الْقَلْبِ الْوَسْوَاسُ وَالْخَوَاطِرُ) وَتَضَرُّعٌ (اَمَّا فِي الظَّاهِرِ بِاِكْثَارِ الدُّعَاءِ وَالسُّؤَالِ) وَتَمَسْكُنٌ (بِاِظْهَارِ الذِّلَّةِ وَالْاِفْتِقَارِ لَهٗ وَالْاِسْقَاطِ عَنْ دَرَجَةِ الْاِسْتِحْقَاقِ) ثُمَّ تَقْنَعُ (تَرْفَعُ) يَدَيْكَ (ترمذی،ص: ۸۲)

**ترجمه** : له فضل ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دې، هغه وایی چه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمایل : لمونځ دوه دوه رکعته دې ، بیا د دوه رکعتونو نه وروسته تشهد دې اوعاجزی کول دی په باطن کښې په داسې طریقې سره چه زړه ته وسوسه او خیالات رانشی او تضرع ده په ظاهر کښې په ډیروالی د دعاء او سوال کولو اوخپل شکست ظاهرول دی اوبیا لاس پورته کول دی.

عَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَرْفُوْعًا : اِنَّ الصَّلٰوةَ تُذْهِبُ الذُّنُوْبَ كَمَا تُذْهِبُ الْمَاءُ الدَّرَنَ. (مسند احمد ، ج : ۱ ، ص : ۷۲).

**ترجمه** : حضرت عثمان رضی الله عنه روایت کوی چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی چه : لمونځ ګناهونه داسې صفاکوی لکه څنګه چه اوبه خیرې صفاکوی.

عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ : سَاَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّ الْاَعْمَالِ اَحَبُّ اِلَى اللهِ؟ قَالَ : اَلصَّلٰوةُ لِوَقْتِهَا. قُلْتُ: ثُمَّ اَيُّ؟ قَالَ: بِرُّ الْوَالِدَيْنِ. قُلْتُ: ثُمَّ اَيُّ؟ قَالَ: اَلْجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ. (بخاری، ج : ۱ ، ص : ۷۲، مسلم ، ج : ۱ ، ص : ۶۲).

**ترجمه** : له حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې ، فرمایی چه ما له رسول اکرم صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وکړه چه کوم عمل د الله پاك په نیزد ډیر غوره دې . هغه مبارك وفرمایل چه هغه لمونځ چه په خپل وقت اداء کړې شی، بیا ما عرض وکړو چه له هغې نه وروسته کوم عمل غوره دې ؟ هغه مبارك وفرمایل چه له مور اوپلار سره ښه سلوك کول. بیا مې عرض وکړو چه له هغې نه وروسته کوم عمل غوره دې ، هغه مبارك وفرمایل چه : د الله پاك په لار کښې جهاد کول.

اَبُوْنُعَيْمٍ عَنْ فَضْلِ بْنِ دُكَيْنٍ وَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَلصَّلٰوةُ عِمَادُ الدِّيْنِ ، (مظهری، ج : ۴ ، ص : ۳۰۵ ، کنز العمال، ج : ۷ ، ص : ۲۰۳).

**ترجمه** : له حضرت ابونعیم څخه روایت دې ، هغه له فضل بن دکین څخه روایت کړې دې چه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چه لمونځ د دین ستن ده.

اِبْنُ عَسَاكِرَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَقَالَ اَلصَّلٰوةُ نُوْرُ الْمُؤْمِنِ ، مظهری، ج : ۴ ، ص : ۳۰۵ ، ابن

ماجه، ص : ۳۱۰ ، عن انس رضی الله عنه ، کنز العمال، ج : ۷ ، ص ۲۰۵».

**ترجمه** : ابن عساکر له ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت کړې دې هغه فرمایی چه لمونځ دمؤمن نور اورڼا ده .

عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَقَالَ: اَلصَّلٰوةُ قُرْبَانُ كُلِّ تَقِيٍّ. «مظهری، ج : ۴ ، ص : ۳۰۵ ، کنزالعمال، ج : ۷ ، ص : ۲۰۶».

**ترجمه** : له حضرت علی رضی الله عنه څخه روایت دې فرمایی چه لمونځ د هر متقی اوپرهیزګار لپاره الله پاك ته دنزدې کیدو ذریعه ده.

اَبِيْ مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَرْفُوْعًا وَالصَّلٰوةُ نُوْرٌ ، «مسلم، ج : ۱ ، ص : ۱۱۸».

ترجمه : له حضرت ابومالك اشعری رضی الله عنه څخه روایت دې ، هغه وایی چه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی چه لمونځ نور دې.

ثَوْبَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِسْتَقِيْمُوْا وَلَنْ تُحْصُوْا وَاعْلَمُوْا اَنَّ خَيْرَ اَعْمَالِكُمُ الصَّلٰوةُ وَلَا يُحَافِظُ عَلَى الْوُضُوْءِ اِلَّا مُؤْمِنٌ ، «موطا امام مالك، ص : ۲۳ ، مسند احد ، ج : ۵ ، ص : ۲۷۷ ، دارمی، ج : ۱ ، ص : ۱۳۳ ، ابن ماجه ، ص : ۲۴ ».

**ترجمه** : له حضرت ثوبان رضی الله عنه څخه روایت دې هغه وایی چه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی چه : اې خلکو ! په استقامت سره اوسیږئ اوتاسې دا حالت پوره نشئ شمار کولې «ستاسې په طاقت کښې نشته» اوپوهه شئ چه ستاسو تر ټولو غوره عمل لمونځ دې او د اوداسه حفاظت نکوی مګر مؤمن سړې.

اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرَءَيْتُمْ لَوْ اَنَّ نَهْرًا بِبَابِ اَحَدِكُمْ يَغْتَسِلُ مِنْهُ كُلَّ يَوْمٍ خَمْسًا هَلْ يَبْقٰى مِنْ دَرَنِهِ شَيْءٌ ؟ قَالُوْا : لَا يَبْقٰى مِنْ دَرَنِهِ شَيْءٌ. قَالَ فَذٰلِكَ مَثَلُ الصَّلَوٰتِ الْخَمْسِ يَمْحُو اللهُ بِهِنَّ الْخَطَايَا. «بخاری ، ج : ۱ ، ص : ۷۲ ، مسلم ، ج : ۱ ، ص : ۲۳۵ ».

**ترجمه** : حضرت ابوهریرة رضی الله عنه فرمایی چه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چه : خبر راکړئ که چیرې له تاسوڅخه د کوم سړی په دروازه کښې یونهر جاری وی اوهغه په دې نهر کښې هره ورځ پنځه ځله غسل کوی ، آیا دهغه په بدن به خیرې پاتې شی؟ خلکو عرض وکړو چه نه ! ، نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چه : همدا مثال د پنځو لمونځونو دې چه الله تعالی دهغې په ذریعه ګناهونه او خطاګانې ختموی .

وَفِيْ حَدِيْثِ مُعَاذٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَرْفُوْعًا : رَاْسُ الْاَمْرِ الْاِسْلَامُ وَعَمُوْدُهُ الصَّلٰوةُ وَذُرْوَةُ سَنَامِهِ الْجِهَادُ ، «مسند احمد ، ج : ۵ ، ص : ۲۳۱ ، ترمذی، ص : ۳۷۲».

**ترجمه** : اودحضرت معاذ رضی الله عنه په حدیث کښې راغلی دی چه رسول اکرم صلی الله علیه

وسلم فرمایلي دي چه دمعاملې بنیاد اواساس اسلام دې اودهغې ستن لمونځ دې اودهغې کوب «اوچته حصه» جهاد دې.

أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ زَمَنَ الشِّتَاءِ وَالْوَرَقُ يَتَهَافَتُ فَأَخَذَ غُصْنَيْنِ مِنْ شَجَرَةٍ قَالَ فَجَعَلَ ذٰلِكَ الْوَرَقُ يَتَهَافَتُ. قَالَ: يَا أَبَا ذَرٍّ! قُلْتُ لَبَّيْكَ يَا رَسُوْلَ اللهِ! قَالَ إِنَّ الْعَبْدَ الْمُسْلِمَ لَيُصَلِّي الصَّلٰوةَ يُرِيْدُ بِهَا وَجْهَ اللهِ فَتَهَافَتُ عَنْهُ ذُنُوْبُهُ كَمَا تَهَافَتُ هٰذَا الْوَرَقُ عَنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ. «مسند احمد، ج: ۵، ص: ۱۷۹».

**ترجمه**: له حضرت ابوذر رضی الله عنه څخه روایت دې چه فرمایي چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دیخنۍ په موسم کښې بهر راووتلو چه د ونو پاڼې تویيدلې، آنحضرت صلی الله علیه وسلم دونې دوه څانګې ونیولې چه پاڼې ترینه وه غورځیدلې اوبیا یې وفرمایل چه: اې ابوذره! ما وویل: حاضر یم یا رسول الله! ، آنحضرت وفرمایل چه: یقیناً کله مسلمان بنده لمونځ کوی او دالله پاك رضا غواړی نودهغه ګناهونه داسې تویيږی لکه چه څنګه د دې ونې پاڼې تویيږی:

مُعَاذٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَوْصَانِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا تَتْرُكَنَّ صَلٰوةً مَكْتُوْبَةً مُتَعَمِّدًا فَإِنَّ مَنْ تَرَكَ صَلٰوةً مَكْتُوْبَةً مُتَعَمِّدًا فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ ذِمَّةُ اللهِ. «مسند احمد، ج: ۵، ص: ۳۸».

**ترجمه**: حضرت معاذ رضی الله عنه فرمایي هچه ماته رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وصیت وکړو چه: فرض لمونځ قصداً مه پرېږده ځکه چه څوك فرض لمونځ په قصد سره پرېږدی نو دالله پاك د حفاظت ذمه له هغه څخه برئ اوبیزاره ده.

عَبْدِاللهِ ابْنِ عَمْرٍو وَابْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ ذَكَرَ الصَّلٰوةَ يَوْمًا فَقَالَ: مَنْ حَافَظَ عَلَيْهَا كَانَتْ لَهُ نُوْرًا وَبُرْهَانًا وَنَجَاةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَنْ لَمْ يُحَافِظْ عَلَيْهَا لَمْ تَكُنْ لَهُ نُوْرًا وَلَا بُرْهَانًا وَلَا نَجَاةً وَكَانَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَعَ قَارُوْنَ وَفِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَأُبَيِّ ابْنِ خَلَفٍ. «مسند احمد، ج: ۲، ص: ۱۶۹، کنز العمال، ص ۲۲۸».

**ترجمه**: له حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه اوعمربن العاص رضی الله عنهما څخه روایت دې چه یوه ورځ رسول کریم صلی الله علیه وسلم د لمانځه یادونه وکړه او وې فرمایل چه: چا د لمانځه حفاظت وکړو نودهغه لپاره به د قیامت په ورځ رڼا اونور اوبرهان اودخلاصون دلیل وی، اوچا چه د لمانځه حفاظت ونکړو، نه به دهغه لپاره نور وی اونه برهان اونه به خلاصې وی، او داسې انسان به له قارون، فرعون، هامان او ابی بن خلف سره وی.

أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: أَوْصَانِيْ خَلِيْلِيْ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ لَا تُشْرِكْ بِاللهِ شَيْئًا وَإِنْ قُطِّعْتَ وَحُرِّقْتَ وَلَا تَتْرُكْ صَلٰوةً مَكْتُوْبَةً مُتَعَمِّدًا فَمَنْ تَرَكَهَا مُتَعَمِّدًا فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ الذِّمَّةُ وَلَا تَشْرَبِ الْخَمْرَ فَإِنَّهَا مِفْتَاحُ كُلِّ شَرٍّ. «زجاجة المصابیح، ج: ۱، ص: ۱۲۳، د ابن ماجه په حواله».

**ترجمه**: حضرت ابوالدرداء رضی الله عنه وایي چه ما ته خپل خواږه دوست حضرت نبی کریم

صلی الله علیه وسلم وصیت کړې دې چه له الله پاك سره څه شې شریك مه جوړوه اګرکه ټوټه ټوټه کړې شې اویا په اور وسوزول شې، اوفرض لمونځ هم په قصد سره مه پرېږده ځکه چه چا فرض لمونځ په قصد سره پرېښودلو له هغه څخه د الله پاك دحفاظت ذمه پورته کړې شوه، اوله شراب څښلونه هم ځان وساته ځکه چه دا دهرې بدی اوګناه چابی (کیلی) ده.

عُمَرَبْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّهُ كَتَبَ اِلٰى عُمَّالِهٖ اِنَّ اَهَمَّ اُمُوْرِكُمْ عِنْدِيْ الصَّلٰوةُ مَنْ حَفِظَهَا وَحَافَظَ عَلَيْهَا حَفِظَ دِيْنَهٗ وَمَنْ ضَيَّعَهَا فَهُوَ لِمَا سِوَاهَا اَضْيَعُ ، (موطأ امام مالك ، ص: ۵).

**ترجمه** : حضرت عمر رضی الله عنه خپلو والیانو ته ولیکل چه ستاسې په ټولو کارونو کښې ماته ترټولو اهم کار لمونځ دې چا چه دهغه حفاظت وکړو اودهغه نګرانی یې وکړه نوهغه خپل ټول دین محفوظ کړو اوچا چه هغه ضائع کړو نوهغه به دباقی خبرو لا زیات ضائع کوونکې شی.

قَوْلُهٗ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ: اَلصَّلٰوةُ خَيْرُ مَوْضُوْعٍ فَمَنِ اسْتَطَاعَ اَنْ يَّسْتَكْثِرَ فَلْيَسْتَكْثِرْ ، (رواه الطبرانی فی الاوسط، فتح الملهم، ج: ۲ ، ص: ۳۱۹ ، کنز العمال، ج: ۷ ، ص: ۲۰۲ ، عن ابی هریرة رضی الله تعالی عنه).

**ترجمه** : د نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمان دې چه لمونځ یو بهترین مقرر شوې عمل دې نوڅوك چه طاقت لری چه پدې کښې زیاته حصه واخلی «زیات لمونځ وکړی» نوهغه دې زیاته حصه پکښې واخلی.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ جِبْرَئِيْلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ حَبَّبَ اِلَيْكَ الصَّلٰوةَ فَخُذْ مِنْهَا مَا شِئْتَ ، (مسند احمد، ج: ۱ ، ص: ۲۵۵).

**ترجمه** : له حضرت عبدالله ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دې چه حضرت جبرئیل علیه السلام راغې او نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته یې ووېل چه الله پاك لمونځ تاته یو محبوب عمل ګرځولې دې نوچه څومره حصه پکښې اخستلې شې نو هغه پکښې واخله.

## لمونځ دتقرب الی الله ترټولو لویه ذریعه ده

اَقْرَبُ مَا يَكُوْنُ الْعَبْدُ مِنْ رَّبِّهٖ وَهُوَ سَاجِدٌ ، (مسلم، ج: ۱ ، ص: ۱۹۱ ، ابوداؤد، ج: ۱ ، ص: ۱۲۷ ، نسائی، ج: ۱ ، ص: ۱۲۰).

**ترجمه** : نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: بنده خپل رب ته د سجدې په حالت کښې ترټولو زیات نږدې وی.

## دلمانځه په صحیح طریقې سره اداء کول اودهغه له نقصاناتو څخه ځان ساتل ډیر ضروري دي

عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ مَرْفُوْعًا. مَا مِنْ مُصَلٍّ إِلَّا وَمَلَكٌ عَنْ يَمِيْنِهِ وَمَلَكٌ عَنْ يَسَارِهِ فَإِنْ أَتَمَّهَا عَرَجَا بِهَا وَإِنْ لَمْ يُتِمَّهَا ضَرَبَا بِهَا وَجْهَه ، «الترغیب والترهیب، ج: ۱، ص: ۱۸۳، د اصبهانی په حواله».

**ترجمه**: له حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه څخه روایت دي چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی چه څوك لمونځ کوی نو یوه فرشته دهغه ښی طرفته وی اوبله فرشته یی چپ طرفته وی، که چیرې دغه شخص لمونځ په پوره صحیح طریقې سره اداء کړی نو دا دواړه فرشتې دغه لمونځ له ځان سره واخلی او دالله پاك دربار ته یی اوچت کړی اوکه چیرې یی په مکمل ډول اداء نکړی بلکه نقصان پکښې وکړی نوهغوئ د ده دغه لمونځ د ده په مخ ورغورځوی.

أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَرْفُوعًا - مَنْ صَلَّى الصَّلَوَاتِ لِوَقْتِهَا وَأَسْبَغَ لَهَا وُضُوْءَهَا وَأَتَمَّ لَهَا قِيَامَهَا وَخُشُوْعَهَا وَرُكُوْعَهَا وَسُجُوْدَهَا خَرَجَتْ وَهِيَ بَيْضَاءُ مُسْفِرَةٌ تَقُوْلُ حَفِظَكَ اللهُ كَمَا حَفِظْتَنِيْ وَمَنْ صَلَّاهَا بِغَيْرِ وَقْتِهَا وَلَمْ يُسْبِغْ لَهَا وُضُوْءَهَا وَلَمْ يُتِمَّ لَهَا خُشُوْعَهَا وَلَا رُكُوْعَهَا وَلَا سُجُوْدَهَا خَرَجَتْ وَهِيَ سَوْدَاءُ مُظْلِمَةٌ تَقُوْلُ ضَيَّعَكَ اللهُ كَمَا ضَيَّعْتَنِيْ حَتّٰى إِذَا كَانَتْ حَيْثُ شَاءَ اللهُ لُفَّتْ كَمَا يُلَفُّ الثَّوْبُ الْخَلِقُ ثُمَّ ضُرِبَ بِهَا وَجْهُهُ ، «الترغیب والترهیب، ج: ۱، ص: ۱۴۹، دطبرانی په حواله».

**ترجمه**: حضرت انس رضی الله عنه روایت کوی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی چه څوك لمونځونه په خپلو وختونو کښې اداء کړی او اودس هم په ښه شان سره وکړی، د لمانځه قیام. خشوع او عاجزی. رکوع اوسجده په ښه کامل ډول سره اداء کړی نودهغه لمونځ له دغه ځای څخه په داسې حال کښې خارجیږی چه سپین وی اوځلیږی اورڼا کوی او وایی چه اې لمونځ کوونکیه! الله تعالی دې ستا داسې حفاظت وکړی لکه څنګه چه تا زما حفاظت وکړو، اوکه څوك لمونځ په صحیح طریقې سره اداء نکړی او رکوع اوسجده اوخشوع یی صحیح اوکامل نوی نودغه لمونځ له دې ځایه په داسې حال کښې ځی چه تك تور اوتیاره وی او وایی چه الله تعالی دې تا داسې ضایع کړی لکه زه دې چه ضائع کړم ترهغې په دغه ځای کښې وی چه الله تعالی یی وغواړی بیارا ونغښتل شی لکه زړه جامه چه ونغښتل شی او د ده په مخ باندې وه ویشتل شی.

له حضرت بدالله بن مسعود اوعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه نقل دی چه هغوئ یو سړې ولیدلو چه په لمانځه کښې له امام نه مخکې رکوع اوسجدې ته ځی نوهغوئ ورته وویل چه

لَا صَلَّيْتَ وَحْدَكَ وَلَا صَلَّيْتَ مَعَ إِمَامِكَ ، «کتاب الصلوة للامام احمد، ص: ۲».

**ترجمه**: تا نه ځانته لمونځ وکړو اونه دې له امام سره وکړو.

په یو حدیث کښې راځي چه :
يَأْتِيْ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ يُصَلُّوْنَ وَلَا يُصَلُّوْنَ ، (کتاب الصلوة، ص : ۴) .
**ترجمه** : په خلکو به داسې زمانه راشي چه په ظاهره به یې لمونځ کړې وي لیکن په حقیقت کښې به هغه لمونځ کوونکي نه وي .
په یو بل حدیث کښې راځي چه :
لَا يَقْبَلُ اللّٰهُ نَافِلَةً حَتّٰى يُؤَدِّيَ الْفَرِيْضَةَ ، (کتاب الصلوة ، ص : ۱۲) .
**ترجمه** : الله پاك نفل لمونځ یا عبادت نه قبلوي ترڅوپورې چه یې فرض نوي اداء کړي ، ((یعني د فرضو اهتمام له نفلو څخه ضروري دې)) .
په یوه حدیث کښې راغلي دي چه بنده ترڅو پورې په لمانځه کښې وي هغه ته درې شیان حاصلیږي : اول : د آسمان له لوړوالي څخه د ده د سر ترککرۍ پورې فضاء له نیکۍ څخه ډکیږي .
دویم : ملائك له آسمان څخه د ده تر پښو پورې د ده احاط کوي .
دریم : یو آواز کوونکي آواز کوي چه که بنده ته معلوم وای نو هیڅکله به یې هم په لمانځه کښې یو طرف اوبل طرفته التفات اونظر نه ووکړې، (کتاب الصلوة، ص : ۱۴) .
په یوه حدیث کښې راځي چه یو سړې به ترشپیتو کالو پورې لمونځ کوي لیکن دهغه لمونځ به نه کیږي، کله چه پوښتنه وشوه چه ولې به دهغه لمونځ نه کیږي نو رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل : څکه چه که دغه سړې رکوع صحیح اداء کړي نو سجده سمه نه اداء کوي اوکه سجده سمه اداء کړي رکوع سمه نه اداء کوي . والله سبحانه وتعالی اعلم بالصواب.

* * * * * * * *
* * * * * * *
* * * * * *
* * * * *
* * * *

## په قرآن کریم کښې د لمونځ تذکره

په ضمنی توګه اودعبادت اواطاعت تر عنواناتولاندې خو په سلګونو ځایه د لمونځ ذکر موجود دې لیکن په صراحت سره هم په قرآن کریم کښې یوسل اونهه (۹) مرتبې راغلې دې:

**په سورة بقره کښې د لمانځه ذکر**:

(۱) ﴿ هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ ۝ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِالْغَيْبِ وَيُقِيمُونَ الصَّلَوٰةَ وَمِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ يُنفِقُونَ ۝ ﴾، (سورة البقرة، پ: ۱).

**ترجمه**: دا قرآن د الله پاك نه د ډاریدونکو رهنمایی کوی، هغه خلق چه دغیبو په خبرو یقین کوی او لمونځ قائموی اوکوم رزق چه مونږ ورکړې له هغه نه خرچ کوی.

(۲) ﴿ وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا الزَّكَوٰةَ وَارْكَعُوا مَعَ الرَّٰكِعِينَ ۝ ﴾، (سورة البقرة، پ: ۱).

**ترجمه**: او لمونځ قائم کړئ وزکوة ورکړئ او د رکوع کوونکو سره رکوع وکړئ.

(۳) ﴿ وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَوٰةِ وَإِنَّهَا لَكَبِيرَةٌ إِلَّا عَلَى الْخَٰشِعِينَ ۝ الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَٰقُوا رَبِّهِمْ وَأَنَّهُمْ إِلَيْهِ رَٰجِعُونَ ۝ ﴾، (سورة البقرة، پ: ۱).

**ترجمه**: او امداد حاصل کړئ په صبر او لمانځه سره بیشکه لمونځ ګران اوسخت دې مګر سخت او ګران ندې په هغهچا چه ډاریدونکی دی، هغه خلق چه یقین لری په دې خبره باندې چه هغوئ له خپل رب سره ملاقات کوونکی دی او بیشکه چه هغوئ د ده طرفته ورتلونکی دی.

(۴) ﴿ وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَٰقَ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ لَا تَعْبُدُونَ إِلَّا اللَّهَ وَبِالْوَٰلِدَيْنِ إِحْسَانًا وَذِى الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَٰمَىٰ وَالْمَسَٰكِينِ وَقُولُوا لِلنَّاسِ حُسْنًا وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا الزَّكَوٰةَ ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا مِّنكُمْ وَأَنتُم مُّعْرِضُونَ ۝ ﴾، (سورة البقرة، پ: ۱).

**ترجمه**: او یاد کړه هغه وقت کله چه مونږ له بنی اسرائیلو څخه وعده واخیسته چه د الله نه به سوا د بل چا عبادت نه کوئ او له مور اوپلار سره به ښه سلوك کوئ او خپلوانو او یتیمانو سره او محتاجانو سره به هم ښه سلوك کوئ او عامو خلکو سره به ښې خبرې کوئ او لمونځونه به کوئ او زکاتونه به ورکوئ، بیا تاسو شا واړوله مګر لږو ستاسونه اوتاسې مخ اړونکی یاستئ.

(۵) ﴿ وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا الزَّكَوٰةَ وَمَا تُقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُم مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوهُ عِندَ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ۝ ﴾، (سورة البقرة، پ: ۱).

**ترجمه**: اوتاسې لمونځونه کوئ او زکاتونه ورکوئ اوکوم دخیر کارونه چه تاسې مخکې له ځان

نه ولیږئ دهغې ثواب به له الله پاك سره محفوظ ومومئ، بیشکه الله پاك ستاسې ټولو کارونه وینی
همدارنګه د سورة بقرې په (۱۱۴) آیت کښې هم ضمناً د لمانځه ذکر دې.
«له هغه چا څخه بل غټ ظالم څوك دې چه د الله پاك په مسجدونو کښې دهغه دنوم له اخستلو څخه خلق منع کوی او د مسجدونو په تخریب کولو کښې کوښښ کوی».
(۲) د سورة بقره په (۱۲۵) کښې هم ضمناً د لمانځه ذکر دې:
«او د الله پاك کور صفا وساتئ د رکوع اوسجده کوونکو لپاره، یعنی دلمونځ کوونکو لپاره»
سورة بقره آیت نمبر (۱۴۳):
«او د الله پاك شان دا ندې چه ستاسې ایمان (ستاسې لمونځونه) ضائع کړی».

(۷) ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱسْتَعِينُواْ بِٱلصَّبْرِ وَٱلصَّلَوٰةِۚ إِنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴿١٥٣﴾ ﴾، (البقرة، پ: ۲).
**ترجمه**: اې مؤمنانو په صبر او لمانځه سره قوت حاصل کړئ بیشکه الله پاك له صبر کوونکو سره دې.

(۸) ﴿ وَأَقَامَ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَى ٱلزَّكَوٰةَ ﴾، سورة البقرة، آية: ۱۷۷، پ: ۲).
**ترجمه**: اونیکی په حقیقت کښې دهغه چا ده چه د لمانځه پابندی کوی اوزکات هم ورکوی.

(۹) ﴿ حَٰفِظُواْ عَلَى ٱلصَّلَوَٰتِ وَٱلصَّلَوٰةِ ٱلْوُسْطَىٰ وَقُومُواْ لِلَّهِ قَٰنِتِينَ ﴿٢٣٨﴾ فَإِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا أَوْ رُكْبَانًاۖ فَإِذَآ أَمِنتُمْ فَٱذْكُرُواْ ٱللَّهَ كَمَا عَلَّمَكُم مَّا لَمْ تَكُونُواْ تَعْلَمُونَ ﴿٢٣٩﴾ ﴾ (البقرة، پ: ۲).
**ترجمه**: اود ټولو لمونځونو حفاظت کوئ، بالخصوص د منځنی لمونځ «دمازدیګر د لمونځ» او دالله پاك په حضور کښې په ادب سره ودریږئ، بیا که تاسې داریدلئ نو پیاده، په ولاړه لمونځ وکړئ یا یی په سپرلئ وکړئ بیا چه تاسې په امن کښې شوئ، بیا الله پاك داسې یادوئ څنګه چه یی تاسو ته ښودلی دی اومخکې پرې نه پوهیدئ.

(۱۰) ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ وَأَقَامُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُاْ ٱلزَّكَوٰةَ لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٢٧٧﴾ ﴾، (سورة البقرة، پ: ۳).
**ترجمه**: بیشکه چا چه ایمان راوړې دې اونیك عمل یی کړې دې اود لمانځه پابندی یی کړې ده او زکات یی ورکړې دې نو د ده له رب سره د ده ثواب محفوظ دې او نه به وی په ده څه قسم ویره اونه به وی دې غمجن.

## په سورة آل عمران کښې د لمانځه ذکر:

(۱۱) ﴿ فَنَادَتْهُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ وَهُوَ قَآئِمٌ يُصَلِّى فِى ٱلْمِحْرَابِ ﴾، (سورة البقرة، آية: ۳۹، پ: ۳).

**ترجمه**: نو فرښتو حضرت زکریا علیه السلام ته آواز وکړو په داسې حال کښې چه هغه د مسجد په محراب کښې لمونځ کاوه.

(١٢) ﴿ يَٰمَرۡيَمُ ٱقۡنُتِي لِرَبِّكِ وَٱسۡجُدِي وَٱرۡكَعِي مَعَ ٱلرَّٰكِعِينَ ﴿٤٣﴾ ﴾ (آل عمران، آیت: ٤٣. پ: ٣).
**ترجمه**: اې مریم! ته د خپل رب تابعداری کوه اوسجده کوه اورکوع کوونکو سره رکوع کوه «له دې ځخه لمونځ کول مراد دی».

## په سورة نساء کښې د لمانځه ذکر:

(١٣) ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَقۡرَبُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَأَنتُمۡ سُكَٰرَىٰ حَتَّىٰ تَعۡلَمُواْ مَا تَقُولُونَ وَلَا جُنُبًا إِلَّا عَابِرِي سَبِيلٍ حَتَّىٰ تَغۡتَسِلُواْۚ وَإِن كُنتُم مَّرۡضَىٰٓ أَوۡ عَلَىٰ سَفَرٍ أَوۡ جَآءَ أَحَدٞ مِّنكُم مِّنَ ٱلۡغَآئِطِ أَوۡ لَٰمَسۡتُمُ ٱلنِّسَآءَ فَلَمۡ تَجِدُواْ مَآءٗ فَتَيَمَّمُواْ صَعِيدٗا طَيِّبٗا فَٱمۡسَحُواْ بِوُجُوهِكُمۡ وَأَيۡدِيكُمۡۗ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَفُوًّا غَفُورًا ﴿٤٣﴾ ﴾.
(سورة النساء. پ: ٥).

**ترجمه**: اې مؤمنانو کله چه تاسې دنشې په حالت کښې یاستئ نو تر هغه وخته لمونځ ته مه نژدې کیږئ ترڅو چه تاسې پوهه شئ چه تاسې څه وایئ. همدارنګه د جنابت په حالت کښې هم لمونځ مه کوئ ترڅو مو چه غسل نوی کړې مګر داچه تاسې مسافر یاست اوکه چیرې تاسو مریضان یاست یا په سفر باندې یاست یا څوك د قضاء حاجت نه راشی یا مو له خپلو بیبانو سره نزدیکت «مباشرت» کړې وی بیا مو په اوبو قدرت نوی نو په داسې حالت کښې پاکې خاورې ته قصد وکړئ او مسحه وکړئ په مخونو خپلو او لاسونو خپلو بیشکه الله تعالی عفوه کوونکې او ښنونکې ذات دی.

(١٤) ﴿ أَلَمۡ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ قِيلَ لَهُمۡ كُفُّوٓاْ أَيۡدِيَكُمۡ وَأَقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ ﴾، سورة نساء، آیت: ٧٧، پ: ٥).
**ترجمه**: اې مخاطبه! آیا تا هغه خلق ندی لیدلی چه هغوئ ته حکم شوې وو چه خپل لاسونه له جنګ ځخه بند کړی او لمونځ قائم کړی اوزکات ورکړی.

(١٥) ﴿ وَإِذَا ضَرَبۡتُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ فَلَيۡسَ عَلَيۡكُمۡ جُنَاحٌ أَن تَقۡصُرُواْ مِنَ ٱلصَّلَوٰةِ إِنۡ خِفۡتُمۡ أَن يَفۡتِنَكُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْۚ إِنَّ ٱلۡكَٰفِرِينَ كَانُواْ لَكُمۡ عَدُوّٗا مُّبِينٗا ﴿١٠١﴾ وَإِذَا كُنتَ فِيهِمۡ فَأَقَمۡتَ لَهُمُ ٱلصَّلَوٰةَ فَلۡتَقُمۡ طَآئِفَةٞ مِّنۡهُم مَّعَكَ وَلۡيَأۡخُذُوٓاْ أَسۡلِحَتَهُمۡۖ فَإِذَا سَجَدُواْ فَلۡيَكُونُواْ مِن وَرَآئِكُمۡ وَلۡتَأۡتِ طَآئِفَةٌ أُخۡرَىٰ لَمۡ يُصَلُّواْ فَلۡيُصَلُّواْ مَعَكَ وَلۡيَأۡخُذُواْ حِذۡرَهُمۡ وَأَسۡلِحَتَهُمۡۗ وَدَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لَوۡ تَغۡفُلُونَ عَنۡ أَسۡلِحَتِكُمۡ وَأَمۡتِعَتِكُمۡ

فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُم مَّيْلَةً وَاحِدَةً ۚ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِن كَانَ بِكُمْ أَذًى مِّن مَّطَرٍ أَوْ كُنتُم مَّرْضَىٰ أَن تَضَعُوا أَسْلِحَتَكُمْ ۖ وَخُذُوا حِذْرَكُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا ﴿١٠٢﴾ فَإِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلَاةَ فَاذْكُرُوا اللَّهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَىٰ جُنُوبِكُمْ ۚ فَإِذَا اطْمَأْنَنتُمْ فَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ ۚ إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَّوْقُوتًا ﴿١٠٣﴾ ﴾

**توجمه**: اوکله چه تاسې په ځمکه کښې سفر کوئ نو په تاسو ګناه نشته چه لمونځ کوتاه کړي «د څلورو رکعتونو په ځای دوه رکعته وکړئ» که تاسې په دې ویره کښې یاستئ چه کافران به مو په کومه فریشانی کښې واچوی، بیشکه کافران ستاسې ښکاره دښمنان دی.

اوکله چه ته د دوئ سره موجود وې او تا دوئ ته لمونځ ورکولو نو یوه ډله دې تاسره په لمانځه ودریږی اوخپله وسله دې هم له ځان سره واخلی، بیا چه کله دا خلق سجده د یورکعت وکړی نو هغوئ ته په کار دی چه ستاسو شا ته ولاړشی اوهغه بله ډله دې راشی چه لمونځ یې ندې کړې ستاسو سره دې لمونځ وکړی او خپل دنجات سامان او خپله اسلحه دې له ځان سره واخلی، ځکه چه کافران دا خوښوی چه تاسې له خپلې اسلحې اوسامان څخه غافل شئ نو دوئ به په تاسې په یوځل حمله وکړی، اوخه پروا نشته په تاسو که د باران له کبله کوم تکلیف وی اویا تاسې مریضان یاستئ چه خپله اسلحه کیږدئ اوصرف دخپل حفاظت سامان له ځان سره واخلئ او په یقین سره پوهه شئ چه الله پاك د کافرانو لپاره ذلیل کوونکې عذاب تیار کړې دې، بیا کله چه تاسې دا لمونځ پوره کړ نو په ولاړه او ناسته په هر حال الله تعالی یادوئ، بیا کله چه تاسې ته هرقسم اطمینان حاصل شی نو د قاعدې موافق لمونځ اداء کړئ، بیشکه لمونځ په مقرر اومعین وقت په مسلمانانو فرض دې.

(۱۲) ﴿إِنَّ الْمُنَافِقِينَ يُخَادِعُونَ اللَّهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ وَإِذَا قَامُوا إِلَى الصَّلَاةِ قَامُوا كُسَالَىٰ يُرَاءُونَ النَّاسَ وَلَا يَذْكُرُونَ اللَّهَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿١٤٢﴾ ﴾، (سورة نساء، پ: ۵).

**توجمه**: بیشکه دا منافقان په خپل خیال الله تعالی ته دوکه ورکوی حالانکه الله تعالی دوئ ته د دوئ د دوکې سزا ورکوی او دمنافقین چه کله لمونځ ته پورته شی نو صرف خلکو ته ځانونه ورښیی او د سستی په حال کښې وی، دوئ الله پاك نه یادوی مګر لږ یې یادوی.

(۱۷) ﴿لَّٰكِنِ الرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ مِنْهُمْ وَالْمُؤْمِنُونَ يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ ۚ وَالْمُقِيمِينَ الصَّلَاةَ ۚ وَالْمُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَالْمُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أُولَٰئِكَ سَنُؤْتِيهِمْ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿١٦٢﴾ ﴾، (سورة

نساء، ج: ۲).
**ترجمه**: مګر له دوئ څخه هغه اهل کتاب چې په علم کښې پاخه دی او هغه چه مسلمانان دی چه دوئ په هغه کتاب ایمان لری چه تا ته نزل شوې او په هغه کتاب چه ستا نه مخکې نازل شوی و د لمانځه قائمونکی او د زکات ورکوونکی او په الله تعالی او په ورځ د آخرت ایمان لری، داسې خلقو ته نزدې ده چه مونږ لوئ اجر ورکړو.

**په سورة مائده کښې د لمانځه ذکر**:

(۱۸) ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا قُمْتُمْ إِلَى ٱلصَّلَوٰةِ فَٱغْسِلُواْ وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى ٱلْمَرَافِقِ وَٱمْسَحُواْ بِرُءُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى ٱلْكَعْبَيْنِ ۚ وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَٱطَّهَّرُواْ ۚ وَإِن كُنتُم مَّرْضَىٰٓ أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ أَوْ جَآءَ أَحَدٌ مِّنكُم مِّنَ ٱلْغَآئِطِ أَوْ لَٰمَسْتُمُ ٱلنِّسَآءَ فَلَمْ تَجِدُواْ مَآءً فَتَيَمَّمُواْ صَعِيدًا طَيِّبًا فَٱمْسَحُواْ بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُم مِّنْهُ ۚ مَا يُرِيدُ ٱللَّهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُم مِّنْ حَرَجٍ وَلَٰكِن يُرِيدُ لِيُطَهِّرَكُمْ وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهُۥ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ۝٦﴾، (سورة المائده، پ: ۶).

**ترجمه**: اې مؤمنانو کله چه تاسې لمانځه ته پورته شئ «او بې اودسه یاست» نو خپل مخ او ترڅنګلو پورې لاسونه اووینځئ او په خپلو سرونو باندې مسحه وکړئ او خپلې پښې اووینځئ تر ښنګرو (ګټکو) پورې اوکه په جنابت کښې یاستئ نو ټول ځان صفا اووینځئ اوکه مریضان یاستئ یا په سفر باندې یاستئ یا ستاسو نه کوم یو له قضاء حاجت څخه راشي یا مو له خپلو ښځو سره مباشرت کړې وی بیا په اوبو قدرت ونه لرئ نو په داسې حال کښې د پاکې خاورې قصد وکړئ «تیمم وکړئ» په دغه خاوره خپل مخونه او لاسونه مسح کړئ، الله تعالی نه غواړی چه په تاسو کوم حرج او تکلیف وی بلکه غواړی چه تاسې پاك کړی او په تاسې خپل احسانات مکمل کړی. د دې لپاره چه تاسې د هغه شکر اداء کړئ.

(۱۹) کله چه الله تعالی له بنی اسرائیلو نه عهد اخستې وو او دولس نقیبان یې وربانديې مقرر کړی وو دوئ ته یې داسې فرمایلی وو: ﴿لَئِنْ أَقَمْتُمُ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَيْتُمُ ٱلزَّكَوٰةَ وَءَامَنتُم بِرُسُلِى وَعَزَّرْتُمُوهُمْ وَأَقْرَضْتُمُ ٱللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا لَّأُكَفِّرَنَّ عَنكُمْ سَيِّـَٔاتِكُمْ وَلَأُدْخِلَنَّكُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ ۚ فَمَن كَفَرَ بَعْدَ ذَٰلِكَ مِنكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ ٱلسَّبِيلِ﴾.
(مائده، پ: ۶).

**ترجمه**: که تاسو د لمانځه پابندی وکړئ او زکات مو ورکړو او زما په رسولانو مو ایمان راوړو

او دهغوئ امداد مو وکړو او الله ته مو په ښه طريقه قرض ورړو. د الله په لاره کښې مو مال خرچ کړو، نو ضرور به زه له تاسې نه خطاګانې لرې کوم او داسې باغونو ته به مو داخل کړم چه له هغو ځخه لاندې نهرونه جارى وى او که چا له تاسو ځخه د دې عهد نه وروسته کفر اختيار کړو نو هغه يقيناً له نيغې لارې ځخه ګمراه شو.

(۲۰) ﴿ إِنَّمَا وَلِيُّكُمُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَالَّذِينَ آمَنُوا الَّذِينَ يُقِيمُونَ الصَّلَاةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَهُمْ رَاكِعُونَ ﴿٥٥﴾ وَمَنْ يَتَوَلَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَالَّذِينَ آمَنُوا فَإِنَّ حِزْبَ اللَّهِ هُمُ الْغَالِبُونَ ﴿٥٦﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الَّذِينَ اتَّخَذُوا دِينَكُمْ هُزُوًا وَلَعِبًا مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَالْكُفَّارَ أَوْلِيَاءَ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ﴿٥٧﴾ ﴾، (سورة المائده، پ: ۶)

**ترجمه**: اې مسلمانانو ستاسې دوست صرف الله اودهغه رسول اوهغه مؤمنان دى چه د لمانځه پابندى کوى او زکات ورکوى اوهغه خوك چه د الله په حضور کښې رکوع کوونکى دى، خوك چه رفيق جوړ کړى الله تعالى اودهغه رسول او مؤمنان نو يقيناً چه د الله تعالى جماعت به غالب وى.

(۲۱) ﴿ وَإِذَا نَادَيْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ اتَّخَذُوهَا هُزُوًا وَلَعِبًا ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَا يَعْقِلُونَ ﴿٥٨﴾ ﴾ (مائده، پ: ۶)

**ترجمه**: اوکله چه تاسې د لمانځه لپاره اذان کوئ نو دا خلك ورپورې ټوقې او لوبې کوى دا ځکه چه دا خلق له عقل ځخه بالکل بې برخې دى.

(۲۲) ﴿ وَيَصُدَّكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ وَعَنِ الصَّلَاةِ فَهَلْ أَنْتُمْ مُنْتَهُونَ ﴾، (سورة المائده، پ: ۷).

**ترجمه**: اودا شيطان اراده لرى چه تاسې د الله پاك له ذکر او لمونځ اداء کولو ځخه منع کړى نو آياتاسې منع کيدونکى ياستئ؟ ((له دغو خبروځخه لکه شراب ځښل، جوارى، بت پرستى وغيره))

(۲۳) ﴿ تَحْبِسُونَهُمَا مِنْ بَعْدِ الصَّلَاةِ ﴾، (سورة المائده، آيت: ۱۰۶، پ: ۷).

**ترجمه**: که چيرې په شهادت اداء کولو کښې دوه کسان کوتاهى وکړى نو دهغو په ځاى دې دوه نور ودرېږى ((دشهادت على الشهادت لپاره)) هغه دواړه بند کړئ پس له لمانځه نه.

## په سورة الانعام کښې د لمونځ ذکر:

(۲۴) ﴿ وَأَنْ أَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَاتَّقُوهُ وَهُوَ الَّذِي إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴿٧٢﴾ ﴾، سورة الانعام، پ: ۷)

**ترجمه**: اودا هم چه لمونځ قائم کړئ او دا هم چه د الله نه ودار شئ او الله هغه ذات دې چه دهغه طرفته تاسې ټول راجمع کولې شئ.

(۲۵) ﴿ وَهَٰذَا كِتَابٌ أَنْزَلْنَاهُ مُبَارَكٌ مُصَدِّقُ الَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ وَلِتُنْذِرَ أُمَّ الْقُرَىٰ وَمَنْ حَوْلَهَا وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ يُؤْمِنُونَ بِهِ وَهُمْ عَلَىٰ صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ ﴿٩٢﴾ ﴾، (سورة الانعام، پ: ۷).

**ترجمه** : او دا قرآن یو کتاب دي چه مونږ نازل کړې دي چه ډیر برکت والا دي، د وړاندینو کتابونو تصدیق کوونکي دي او د دي لپاره نازل شوي دي چه اهل مکه اودهغې شاوخوا خلك وډار کړی او څوك چه آخرت منی هغوئ په دې کتاب ایمان لری او د دوئ حال دا دې چه هغوئ دخپلو لمونځونو پوره حفاظت کوی.

‹۲۶› ﴿قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٦٢﴾ لَا شَرِيكَ لَهُ وَبِذَٰلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا أَوَّلُ الْمُسْلِمِينَ ﴿١٦٣﴾﴾ ، ‹سورة الانعام، پ: ۸›.

**ترجمه** : اې پیغمبره ته ورته اووایه چه بیشکه زما لمونځ ، زما عبادت او زما ژوند او زما مرګ ټول د الله تعالی لپاره دی چه د ټولو جهانونو رب دې، دهغه څوك هم شریك نشته اوزه د ټولو تابعدرانو څخه اول تابعداری کوونکې یم

## په سورة الاعراف کښې د لمانځه تذکره :

‹۲۷› ﴿قُلْ أَمَرَ رَبِّي بِالْقِسْطِ وَأَقِيمُوا وُجُوهَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ وَادْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ كَمَا بَدَأَكُمْ تَعُودُونَ ﴿٢٩﴾﴾ ، ‹سورة الاعراف، پ: ۸›.

**ترجمه** : ته ورته ووایه چه زما رب دعدل اوانصاف کولو حکم کړې دې او همدارنګه دا چه د هر لمانځه په وقت کښې مخونه نیغ کړئ ‹‹یعني د قبلې طرفته›› او د الله پاك عبادت کوئ په داسې حال کښې چه مخلصین یاستئ هغه لره د عبادت لکه څنګه چه هغه اول څل پیدا کړی یاستئ همدغه شان به مو بیرته دوباره راګرځوی

‹۲۸› ﴿يَا بَنِي آدَمَ خُذُوا زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا وَلَا تُسْرِفُوا ۚ إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِينَ ﴿٣١﴾﴾ . ‹سورة الاعراف، پ: ۸›.

**ترجمه** : اې د آدم اولاده ! د هر مسجد ‹‹لمانځه›› د حاضری په وقت کښې خپل لباس واغوندئ او خوراك او څښاك کوئ او اسراف مه کوئ بیشکه الله تعالی اسراف کوونکی نه خوښوی

‹۲۹› ﴿وَأُلْقِيَ السَّحَرَةُ سَاجِدِينَ ﴿١٢٠﴾﴾ ، ‹سوة الاعراف، پ: ۹›.

**ترجمه** : او ټول جادوګران په سجده پریوتل.

‹۳۰› ﴿وَالَّذِينَ يُمَسِّكُونَ بِالْكِتَابِ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجْرَ الْمُصْلِحِينَ ﴿١٧٠﴾﴾ ‹سورة الاعراف، پ: ۹›.

**ترجمه** : اوکوم خلق چه د تورات ‹‹الهی کتاب›› صحیح پابند دی او د لمانځه پابند هم دی

بیشکه مونږ د داسې نیکانو خلقو اجر نه ضائع کوو.

(۳۱) ﴿ وَإِذَا قُرِئَ ٱلْقُرْءَانُ فَٱسْتَمِعُوا۟ لَهُۥ وَأَنصِتُوا۟ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿٢٠٤﴾ ﴾، (اعراف، پ: ۹).

**ترجمه**: اوکله چه قرآن (په لمانځه کښې) لوستل کیږی نوهغه په پوره توجه سره واورئ او خاموش اوسیږئ شاید چه په تاسې رحم وکړل شی.

## په سورة انفال کښې د لمونځ ذکر:

(۳۲) ﴿ إِنَّمَا ٱلْمُؤْمِنُونَ ٱلَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ ٱللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتُهُۥ زَادَتْهُمْ إِيمَٰنًا وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ ﴿٢﴾ ٱلَّذِينَ يُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَمِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ يُنفِقُونَ ﴿٣﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُؤْمِنُونَ حَقًّا ﴾، (سورة الانفال، آیت: ۲ - ۴، پ: ۹).

**ترجمه**: پس مؤمنان هغه دی چه کله د الله ذکر کیږی نو دهغوئ زړونه داریږی او کله چه د الله تعالی آیتونه هغوئ ته لوستل کیږی نو د دوئ ایمان زیاتوی او خاص په خپل رب توکل کوی، هغه داسې دی چه د لمانځه پابندی کوی او زمونږ د ورکړل شوی رزق څخه خرچ هم کوی، دغه خلك د صادق ایمان والا دی.

(۳۳) ﴿ وَمَا كَانَ صَلَاتُهُمْ عِندَ ٱلْبَيْتِ إِلَّا مُكَآءً وَتَصْدِيَةً فَذُوقُوا۟ ٱلْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ ﴿٣٥﴾ ﴾، (سورة الانفال، پ: ۹).

**ترجمه**: نه وو لمونځونه د دوئ (مشرکینو) له بیت الله سره مګر شپیلی او لاسونه ټکول، نو اوس عذاب وڅکئ دهغه کفر په بدل کښې چه تاسو کولو.

## په سورة توبه کښې د لمانځه ذکر:

(۳۴) ﴿ فَإِن تَابُوا۟ وَأَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُا۟ ٱلزَّكَوٰةَ فَخَلُّوا۟ سَبِيلَهُمْ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾، (سورة التوبه، پ: ۱۰).

**ترجمه**: بیا که دوئ توبه اوباسی او لمونځ کوی او زکات اداء کوی نو دهغوئ لاره پریږدئ، بیشکه الله تعالی ډیر ښښونکې او نهایت رحم کوونکې دې.

(۳۵) ﴿ فَإِن تَابُوا۟ وَأَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُا۟ ٱلزَّكَوٰةَ فَإِخْوَٰنُكُمْ فِى ٱلدِّينِ وَنُفَصِّلُ ٱلْءَايَٰتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴿١١﴾ ﴾، (سورة التوبة، پ: ۱۰).

**ترجمه**: بیا که دا خلق توبه اوباسی او لمونځونه کوی او زکات ورکوی نو دا خلق د دین په

اعتبار سره ستاسې ورونه دی او موثر په تفصیل سره احکام بیانوو دهغو خلقو لپاره چه هغوئ پرې پوهیږی.

(۳۶) ﴿ إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَٰجِدَ ٱللَّهِ مَنْ ءَامَنَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْـَٔاخِرِ وَأَقَامَ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَى ٱلزَّكَوٰةَ وَلَمْ يَخْشَ إِلَّا ٱللَّهَ ۖ فَعَسَىٰٓ أُو۟لَٰٓئِكَ أَن يَكُونُوا۟ مِنَ ٱلْمُهْتَدِينَ ﴿١٨﴾ ﴾ ، سورة التوبه، پ: ۱۰).

**ترجمه**: د الله پاك مسجدونه صرف هغه خلق آبادوی چه په الله تعالی او په ورځ د آخرت ایمان لری او د لمانځه پابندی کی او زکات اداء کوی او د الله تعالی نه بغیر د بل چا څخه نه ډاریږی نو نزدې ده چه دوئ له هدایت موندونکو څخه شی.

(۳۷) ﴿ وَمَا مَنَعَهُمْ أَن تُقْبَلَ مِنْهُمْ نَفَقَٰتُهُمْ إِلَّآ أَنَّهُمْ كَفَرُوا۟ بِٱللَّهِ وَبِرَسُولِهِۦ وَلَا يَأْتُونَ ٱلصَّلَوٰةَ إِلَّا وَهُمْ كُسَالَىٰ وَلَا يُنفِقُونَ إِلَّا وَهُمْ كَٰرِهُونَ ﴿٥٤﴾ ﴾ ، (سورة التوبه، پ: ۱۰).

**ترجمه**: او د دوئ د خیراتونو له قبلیدو څخه بغیر د دې خبرې نه بل څه مانع نشته چه دوئ په الله تعالی او دهغه په پیغمبر کفر کوی او لمانځه ته دوئ نه راځی مګر له ډیرې سستی سره او خیرات نه ورکوی مګر په داسې حال کښې چه پرې ناخوښه وی.

(۳۸) ﴿ وَٱلْمُؤْمِنُونَ وَٱلْمُؤْمِنَٰتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ يَأْمُرُونَ بِٱلْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ ٱلْمُنكَرِ وَيُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤْتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَيُطِيعُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ سَيَرْحَمُهُمُ ٱللَّهُ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٧١﴾ ﴾ ، (سورة التوبه، پ: ۱۰).

**ترجمه**: مؤمنان سړی او مؤمنانې ښځې د یوبل دوستان او مددګاران دی چه د نیکو کارونو حکم کوی او له بدو کارونو څخه منع کوی او د لمانځه پابندی کوی او زکات اداء کوی او د الله تعالی او دهغه د رسول په حکم چلیږی ، همدا خلق دی چه الله تعالی به خامخا په دوئ رحم وکړی ، بیشکه الله تعالی د ډیر قوت او لوئ علم خاوند دې.

(۳۹) ﴿ وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰٓ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِۦٓ ۖ إِنَّهُمْ كَفَرُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَمَاتُوا۟ وَهُمْ فَٰسِقُونَ ﴿٨٤﴾ ﴾ ، (سورة التوبه، پ: ۱۰).

**ترجمه**: اې پیغمبره ! که په آینده کښې له دوئ څخه څوك مړ شی نو هیڅ کله دهغه په جنازه لمونځ مه کوه اومه هغه په قبر ودریږه څکه چه دوئ په الله اودهغه په رسول کفر کړې دې او دوئ مړه شول په داسې حال کښې چه دوئ فاسقان وو.

(۴۰) ﴿ لَا تَقُمْ فِيهِ أَبَدًا ۚ لَّمَسْجِدٌ أُسِّسَ عَلَى ٱلتَّقْوَىٰ مِنْ أَوَّلِ يَوْمٍ أَحَقُّ أَن تَقُومَ فِيهِ ۚ ﴾ ، (سورة

التوبه، آیت: ۱۰۸، پ: ۱۱).

**ترجمه**: اې پیغمبره! ته په دغه مسجد ((ضرار)) کښې کله هم لمونځ مه کوه، البته هغه مسجد چه دهغه بنیاد له اولې ورځې څخه په تقوی سره ایښودل شوې دې ((مسجد قباء)) هغه ډیر مستحق دې چه ته پکښې لمونځ وکړې.

(۴۱) ﴿التَّٰٓئِبُونَ ٱلۡعَٰبِدُونَ ٱلۡحَٰمِدُونَ ٱلسَّٰٓئِحُونَ ٱلرَّٰكِعُونَ ٱلسَّٰجِدُونَ ٱلۡأٓمِرُونَ بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَٱلنَّاهُونَ عَنِ ٱلۡمُنكَرِ وَٱلۡحَٰفِظُونَ لِحُدُودِ ٱللَّهِ﴾، (سورة التوبه، آیت: ۱۱۲، پ: ۱۱).

**ترجمه**: له هغو مسلمانانو سره هم د زیرې اوخوشخبری وعده شوې دهچه توبه کوونکی او عبادت کوونکی اوشکر کوونکی او روژه نیوونکی، رکوع کوونکی، سجده کوونکی، لمونځ کوونکی د ښو خبرو کوونکی او د بدو خبرو نه منع کوونکی او د الله تعالی د حدودو حفاظت کوونکی دی.

## په سورة یونس کښې د لمانځه ذکر:

(۴۲) ﴿وَأَوۡحَيۡنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰ وَأَخِيهِ أَن تَبَوَّءَا لِقَوۡمِكُمَا بِمِصۡرَ بُيُوتٗا وَٱجۡعَلُواْ بُيُوتَكُمۡ قِبۡلَةٗ وَأَقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَۗ وَبَشِّرِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴿٨٧﴾﴾، (سورة یونس، پ: ۱۱).

**ترجمه**: اومونږ موسی اودهغه ورور ته وحی وکړه چه تاسو دواړه د خپل قوم لپاره په مصر کښې ځای جوړ کړئ او تاسې پ خپلو کورونو کښې د لمانځه ځایونه جوړ کړئ او د لمانځه پابندی کوئ او اې موسی ته مؤمنانو ته زیرې ورکړه.

## په سورة هود کښې د لمانځه ذکر:

(۴۳) ﴿قَالُواْ يَٰشُعَيۡبُ أَصَلَوٰتُكَ تَأۡمُرُكَ أَن نَّتۡرُكَ مَا يَعۡبُدُ ءَابَآؤُنَآ أَوۡ أَن نَّفۡعَلَ فِيٓ أَمۡوَٰلِنَا مَا نَشَٰٓؤُاْۖ إِنَّكَ لَأَنتَ ٱلۡحَلِيمُ ٱلرَّشِيدُ ﴿٨٧﴾﴾، (سورة هود، پ: ۱۲).

**ترجمه**: د شعیب علیه السلام قوم وویل: اې شعیبه! آیا ستا لمونځ تاته زمونږ متعلق دا حکم درکوی چه مونږ د هغو معبودانو عبادت پریږدو چه زمونږ مشرانو دهغو عبادت کاوه او یا درته دا حکم درکوی چه مونږ په خپلو مالونو کښې هغه تصرف پریږدو کوم چه زمونږ زړه غواړی. ته خو ډیر نرم طبعیت والا او نیک کردار والا یې.

(۴۴) ﴿وَأَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ طَرَفَيِ ٱلنَّهَارِ وَزُلَفٗا مِّنَ ٱلَّيۡلِۚ إِنَّ ٱلۡحَسَنَٰتِ يُذۡهِبۡنَ ٱلسَّيِّـَٔاتِۚ ذَٰلِكَ ذِكۡرَىٰ

لِلذَّٰكِرِينَ ﴿١١٤﴾ ﴾، «سورة هود، پ: ۱۲».

**ترجمه**: او اې پیغمبره! ته لمونځ ودروه د ورځې په دواړو طرفونو کښې او د شپې په څه حصه کښې، بیشکه نیکۍ، بدۍ لره ختموي، دا خبره یو مکمل نصیحت دې دهغه خلقو لپاره چه نصیحت قبلوي.

## په سورة رعد کښې د لمانځه ذکر:

«۴۵» ﴿ وَٱلَّذِينَ صَبَرُوا۟ ٱبْتِغَآءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ وَأَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَأَنفَقُوا۟ مِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً وَيَدْرَءُونَ بِٱلْحَسَنَةِ ٱلسَّيِّئَةَ أُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمْ عُقْبَى ٱلدَّارِ ﴿٢٢﴾ ﴾، «سورة رعد، پ: ۱۳».

**ترجمه**: اوهمدارنګه هغه خلق چه د خپل رب د رضا لټولو په غرض په تکلیفونو باندې صبر کوي او د لمانځه پابندي کوي اوڅه چه مونږ ورکړي له هغو څخه په پټه او ښکاره خرڅ کوي او بدي په نیکۍ سره دفع کوي دا هغه خلق دي چه د دوئ لپاره په هغه دنیا کښې ښه انجام دې.

## په سورة ابراهیم کښې د لمانځه ذکر:

«۴۶» ﴿ قُل لِّعِبَادِيَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ يُقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُنفِقُوا۟ مِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خِلَٰلٌ ﴿٣١﴾ ﴾، «ورة ابراهیم، پ: ۱۳».

**ترجمه**: اې پیغمبره زما مؤمنو بندګانو ته وه وایه چه د لمانځه پابندي کوئ اوڅه چه مونږ دوئ ته ورکړي دهغې څخه دهغې ورځې له راتلوڅخه وړاندې پټ اوښکاره خرڅ وکړئ په دغه ورځ به اخستل او خرڅول نوي اونه به په دغه ورځ دوستي کومه فائده ورکوي.

«۴۷» ﴿ رَّبَّنَآ إِنِّيٓ أَسْكَنتُ مِن ذُرِّيَّتِي بِوَادٍ غَيْرِ ذِي زَرْعٍ عِندَ بَيْتِكَ ٱلْمُحَرَّمِ رَبَّنَا لِيُقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ فَٱجْعَلْ أَفْـِٔدَةً مِّنَ ٱلنَّاسِ تَهْوِيٓ إِلَيْهِمْ وَٱرْزُقْهُم مِّنَ ٱلثَّمَرَٰتِ لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُونَ ﴿٣٧﴾ ﴾، سورة ابراهیم، پ: ۱۳».

**ترجمه**: اې زمونږ ربه! ما بعضې اولاد خپل «اسماعیل علیه السلام» په یوه بې زراعته میدان کښې ستادمحترم کورسره آبادکړ نو ددې په خاطر چه اې زمونږ ربه! داخلق دلمانځه پابندي وکړي نو مائل کړه د بعضې خلقو زړونه د دوئ طرفته اورزق ورکړه دوئ ته میوې چه ستا شکر وباسي.

«۴۸» ﴿ رَبِّ ٱجْعَلْنِي مُقِيمَ ٱلصَّلَوٰةِ وَمِن ذُرِّيَّتِي رَبَّنَا وَتَقَبَّلْ دُعَآءِ ﴿٤٠﴾ ﴾، ابراهیم، پ: ۱۳».

**ترجمه**: اې زما ربه! ما د لمونځ پابندي کوونکې وګرځوه او زما له اولاد څخه هم بعضو ته دا توفیق ورکړه، اې زمونږ ربه زما دعاء قبوله کړه.

## په سورة حجر کښې د لمانځه ذکر :

(۴۹) ﴿ وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَقْدِمِينَ مِنكُمْ وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَأْخِرِينَ ﴿٢٤﴾ ﴾ ، (سورة الحجر، پ: ۱۴).

**ترجمه** : او يقيناً پيژنو مونږ مخکې تلونکی خلق «اولو صفونو کښې لمونځ کوونکی» ستاسو نه اويقيناً پيژنو مونږ وروسته پاتې کيدونکی خلق .

(۵۰) ﴿ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَكُن مِّنَ السَّاجِدِينَ ﴿٩٨﴾ وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتَّىٰ يَأْتِيَكَ الْيَقِينُ ﴿٩٩﴾ ﴾ ، سورة الحجر، پ: ۱۴).

**ترجمه** : دخپل رب له تسبيح سره دهغه حمد بيانوئ اوپه لمونځ کوونکو کښې شامل اوسيږئ او د خپل رب په عبادت کښې مشغو اوسيږئ تردې چه تاسو ته مرګ راشی .

## په سورة بنی اسرائيل کښې د لمانځه ذکر :

(۵۱) ﴿ أَقِمِ الصَّلَاةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ إِلَىٰ غَسَقِ اللَّيْلِ وَقُرْآنَ الْفَجْرِ ۖ إِنَّ قُرْآنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُودًا ﴿٧٨﴾
وَمِنَ اللَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهِ نَافِلَةً لَّكَ عَسَىٰ أَن يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُودًا ﴿٧٩﴾ ﴾ (بنی اسرائيل، پ: ۱۵)

**ترجمه** : اې پيغمبره ! د لمر له زوال څخه بيا د شپې تر تيارې پورې لمونځونه اداء کوه او همدارنګه د سحر لمونځ هم اداء کوه ، يقيناً د سحر لمونځ د حاضريدو وقت دې «يعنی د فرشتو د حاضريدو وقت دې» او د شپې په څه حصه کښې هم بيداريږه او تهجد کوه ، دغه د تهجدو لمونځ ستا لپاره يو زياتی شې دې ، اميد دې چه ستا رب تا ته مقام محمود درکړی .

(۵۲) ﴿ قُلْ آمِنُوا بِهِ أَوْ لَا تُؤْمِنُوا ۚ إِنَّ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ مِن قَبْلِهِ إِذَا يُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ يَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ سُجَّدًا ﴿١٠٧﴾ وَيَقُولُونَ سُبْحَانَ رَبِّنَا إِن كَانَ وَعْدُ رَبِّنَا لَمَفْعُولًا ﴿١٠٨﴾ وَيَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ يَبْكُونَ وَيَزِيدُهُمْ خُشُوعًا ۩ ﴿١٠٩﴾ ﴾ ، (سورة بنی اسرائيل، پ: ۱۵).

**ترجمه** او ته دوئ ته اووايه ! که تاسې په دې قرآن ايمان راوړئ اوکه يې رانه وړئ هغه خلکو ته چه له قرآن نه مخکې د نورو آسمانی کتابونو علم ورکړې شوې دې دهغوئ حال دا دې چه دهغوئ په وړاندې دا قرآن ولوستل شی نو هغوئ پړمخې په سجده پريوځی او وايی زما رب پاك دې ، بيشکه زمونږ د رب وعده پوره کړې شوې ده اوهغوئ پړمخې په ژړا په سجده پريوځی او دا قرآن آوريدل دهغوئ په خشوع او عاجزی کښې نورهم زيادت راولی .

(۵۳) ﴿ وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا ﴾ ، سورة بنی اسرائيل، پ: ۱۵).

ترجمه : او خپل جهری لمونځ مه ډير په زوره اداء کوه او مه يې بالکل په پټه آوروه بلکه د جهر

او اخفاء په مینځ کښې یوه درمیانه طریقه اختیار کړه.

## په سورة مریم کښې د لمانځه ذکر :

(۵۴) ﴿وَجَعَلَنِي مُبَارَكًا أَيْنَ مَا كُنتُ وَأَوْصَانِي بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ مَا دُمْتُ حَيًّا ﴿٣١﴾﴾، سورة مریم، پ: ۳۱).

**ترجمه** : ((عیسی علیه السلام فرمایی)) هرچیرته چه زه یم الله تعالی زه بابرکته ګرخولې یم او څو پورې چه زه ژوندي یم هغه ما ته د لمانځه او زکات اداء کولو حکم کړې دې.

(۵۵) ﴿وَكَانَ يَأْمُرُ أَهْلَهُ بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ وَكَانَ عِندَ رَبِّهِ مَرْضِيًّا ﴿٥٥﴾﴾، (سورة مریم، پ: ۱۲).

**ترجمه** : او هغه ((حضرت اسماعیل علیه السلام)) خپلو متعلقینو ته د لمونځ کولو او زکات اداء کولو حکم کاوه او هغه د خپل رب په دربار کښې غوره کړې شوې وو.

(۵۶) ﴿فَخَلَفَ مِن بَعْدِهِمْ خَلْفٌ أَضَاعُوا الصَّلَاةَ وَاتَّبَعُوا الشَّهَوَاتِ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا ﴿٥٩﴾﴾، (مریم، پ: ۱۲).

**ترجمه** : بیا وروسته له هغوئ څخه ((چه د الله د آیتونو په آوریدو سره یې سجده کوله)) بیکاره خلیفه ګان پیدا شول چه لمونځونه یې ضائع کړل او د خپلو نفسانی خواهشاتو پیروی یې وکړه، زرده چه د خپلې ګمراهی میوه به وخوری.

## په سورة طـٰه کښې د لمونځ ذکر :

(۵۷) ﴿إِنَّنِي أَنَا اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا أَنَا فَاعْبُدْنِي وَأَقِمِ الصَّلَاةَ لِذِكْرِي ﴿١٤﴾﴾، سورة طٰه، پ: ۱۲).

**ترجمه** : ((الله تعالی موسی علیه السلام ته وویل :)) بیشکه زه الله یم، زمانه بغیر هیڅوک معبود نشته نو زما عبادت کوه او زما لپاره لمونځ کوه.

(۵۸) ﴿فَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوبِهَا وَمِنْ آنَاءِ اللَّيْلِ فَسَبِّحْ وَأَطْرَافَ النَّهَارِ لَعَلَّكَ تَرْضَىٰ ﴿١٣٠﴾﴾، (سورة طـٰه، پ: ۱۷).

**ترجمه** : ((اوخه چه دا کافران وایی اې پیغمبره!)) نو ته په هغې باندې صبر وکړه، له لمرختلو نه وراندې او له لمرپریوتلو نه وراندې دخپل رب له حمد سره دهغه پاکی بیانوه او د شپې په ځینې وقتونو کښې هم د خپل رب پاکی بیانه او د ورځې په طرفونو کښې هم، د دې لپاره چه ته خوښ اوسې.

(۵۹) ﴿وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلَاةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا لَا نَسْأَلُكَ رِزْقًا نَّحْنُ نَرْزُقُكَ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوَىٰ ﴿١٣٢﴾﴾،

«سورة طٰهٰ، پ: ۱۷».

**ترجمه**: او دخپل کور خلقو ه هم د لمانځه حکم کوه او خپله هم په لمانځه پابندی کوه، مونږ له تا نه روزی نه غواړو، بلکه مونږ تا ته روزی درکوو او ښه انجام د پرهیزګارانو دي.

## په سورة الانبياء کښې د لمانځه ذکر:

«۲۰» ﴿ وَجَعَلْنَٰهُمْ أَئِمَّةً يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا وَأَوْحَيْنَآ إِلَيْهِمْ فِعْلَ ٱلْخَيْرَٰتِ وَإِقَامَ ٱلصَّلَوٰةِ وَإِيتَآءَ ٱلزَّكَوٰةِ ۖ وَكَانُوا۟ لَنَا عَٰبِدِينَ ﴿٧٣﴾ ﴾ «سورة الانبياء، پ: ۱۷».

**ترجمه**: اوهغوئ ټول «انبياء عليهم السلام» مو د خلقو امامان ګرځولی وو چه زمونږ دحکم موافق دخلقو رهنمايي وکړی او مونږ دوئ ته د ښو کارونو کولو او لمونځ د اداء کولو او زکات ورکولو حکم کړې وو او هغوئ ټول زمونږ عبادت کوونکی وو.

## په سورة حج کښې د لمانځه ذکر:

«۲۱» ﴿ وَإِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرَٰهِيمَ مَكَانَ ٱلْبَيْتِ أَن لَّا تُشْرِكْ بِى شَيْـًٔا وَطَهِّرْ بَيْتِىَ لِلطَّآئِفِينَ وَٱلْقَآئِمِينَ وَٱلرُّكَّعِ ٱلسُّجُودِ ﴿٢٦﴾ ﴾. «سورة الحج. پ: ۱۷».

**ترجمه**: اوهغه واقعه د يادولو وړ ده چه مونږ ابراهيم عليه السلام ته د خانه کعبې ځای وښودلو او حکم مو ورته وکړو چه زما سره به څوك هم نه شريکوې او د طواف کوونو او قيام کوونکو اورکوع کوونکو اوسجده کوونکو لپاره زما کور پاك ساته.

«۲۲» ﴿ ٱلَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ ٱللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ وَٱلصَّٰبِرِينَ عَلَىٰ مَآ أَصَابَهُمْ وَٱلْمُقِيمِى ٱلصَّلَوٰةِ وَمِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ يُنفِقُونَ ﴿٣٥﴾ ﴾. «سورة الحج. پ: ۱۷».

**ترجمه**: هغه خلق «عاجزی کونکی دی» کله چه د الله هپاك ذکر وکړې شی نو د دوئ زړونه داريږی اوچه کوم مصيبتونه په دوئ راځی هغه برداشت کوی او د لمانځه پابندی کوی او زمونږ د ورکړې شوی رزق څخه خيرات هم ورکوی.

«۲۳» ﴿ ٱلَّذِينَ إِن مَّكَّنَّٰهُمْ فِى ٱلْأَرْضِ أَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُا۟ ٱلزَّكَوٰةَ وَأَمَرُوا۟ بِٱلْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا۟ عَنِ ٱلْمُنكَرِ ۗ وَلِلَّهِ عَٰقِبَةُ ٱلْأُمُورِ ﴿٤١﴾ ﴾. «سورة الحج. پ: ۱۷».

**ترجمه**: دا هغه خلق دي چه که چيرته مونږ دوئ ت د زمکې اختيار ورکړو نو دوئ د لمونځ پابندی کوی اوزکاتونه ورکوی او دښو کارونو حکم کوی او له بدوکارونو څخه منع کوی او دهر کارانجام د الله په اختيار کښې دي.

(۲۴) ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱرْكَعُوا۟ وَٱسْجُدُوا۟ وَٱعْبُدُوا۟ رَبَّكُمْ وَٱفْعَلُوا۟ ٱلْخَيْرَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ۩ ﴿٧٧﴾ ﴾ ، (سورة الحج، پ: ۱۷).

**ترجمه**: اې مؤمنانو! تاسې ركوع كوئ او سجده كوئ او د خپل رب عبادت وكړئ او ښه كارونه كوئ شايد چه كامياب شئ.

(۲۵) ﴿ فَأَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا۟ ٱلزَّكَوٰةَ وَٱعْتَصِمُوا۟ بِٱللَّهِ هُوَ مَوْلَىٰكُمْ ۖ فَنِعْمَ ٱلْمَوْلَىٰ وَنِعْمَ ٱلنَّصِيرُ ﴾ ، (سورة الحج، پ: ۱۷).

**ترجمه**: پس د لمانځه پابندي كوئ او زكات اداء كوي او الله تعالى په مضبوطي سره ونيسئ هغه ستاسې كارساز دې څه ښه كار سازدې اوڅه ښه مددګار دې.

## په سورة مؤمنون كښې د لمانځه ذكر:

(۲۶) ﴿ قَدْ أَفْلَحَ ٱلْمُؤْمِنُونَ ﴿١﴾ ٱلَّذِينَ هُمْ فِى صَلَاتِهِمْ خَـٰشِعُونَ ﴿٢﴾ ﴾ ، (سورة المؤمنون، پ: ۱۸).

**ترجمه**: يقيناً كامياب شو مؤمنان چه په خپلو لمونځونو كښې دعاجزى اظهار كوي اوهغه چه د خپلو لمونځونو پابندي كوي.

(۲۷) ﴿ وَٱلَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ صَلَوَٰتِهِمْ يُحَافِظُونَ ﴿٩﴾ ﴾ ، (سورة المؤمنون، پ: ۱۸).

**ترجمه**: اوهغه خلق چه هغوئ د خپلو لمونځونو حفاظت كوي.

## په سورة نور كښې د لمانځه ذكر:

(۲۸) ﴿ فِى بُيُوتٍ أَذِنَ ٱللَّهُ أَن تُرْفَعَ وَيُذْكَرَ فِيهَا ٱسْمُهُۥ يُسَبِّحُ لَهُۥ فِيهَا بِٱلْغُدُوِّ وَٱلْـَٔاصَالِ ﴿٣٦﴾ رِجَالٌ لَّا تُلْهِيهِمْ تِجَـٰرَةٌ وَلَا بَيْعٌ عَن ذِكْرِ ٱللَّهِ وَإِقَامِ ٱلصَّلَوٰةِ وَإِيتَآءِ ٱلزَّكَوٰةِ ﴾ ، (سورة النور، آيت: ۳۶ - ۳۷ ، پ: ۱۸).

**ترجمه**: هغوئ څراغونه په هغو كورونو كښې روښانه كوي چه دهغو متعلق الله تعالى دا حكم كړې دې چه دهغې دې قدر اوعزت وكړل شي او په دغه ځايونو «مساجدو» كښې دې د الله تعالى نوم واخستل شي او په ځايونو كښې سحر او بيګاه داسې خلك د الله تعالى پاكي بيانوي چه دغو خلكو د الله تعالى د يادولو او لمونځ كولو او زكات وركولو نه هيڅ قسم خريد اوفروخت نشي غافل كولې.

(۲۹) ﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ يُسَبِّحُ لَهُۥ مَن فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَٱلطَّيْرُ صَـٰٓفَّـٰتٍ ۖ كُلٌّ قَدْ عَلِمَ صَلَاتَهُۥ وَتَسْبِيحَهُۥ ۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌۢ بِمَا يَفْعَلُونَ ﴿٤١﴾ ﴾ ، (سورة النور، پ: ۱۸).

**ترجمه**: آیا اې مخاطبه! تا ته دا خبره معلومه نده چه څه په آسمانونو او زمکو کښې دی اوځه الوتونکی مارغان چه په هوا کښې یی وزرې غوړولی دی، دا ټول د الله تعالی تسبیح بیانوی او دا ټول د خپل عباذت «لمانځه» طریقه او تسبیح پیژني اوځه چه هغوئ کوی، ټول الله تعالی ته معلوم دی.

(۷۰) ﴿ وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا الزَّكَوٰةَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿٥٦﴾ ﴾، «سورة النور، پ: ۱۸».

**ترجمه**: او لمونځونه قائم کړئ اوزکاتونه ورکوئ او د رسول الل صلی الله علیه وسلم تابعداری کوئ ترڅو چه په تاسې رحم وکړل شی.

(۷۱) ﴿ مِّن قَبْلِ صَلَوٰةِ الْفَجْرِ وَحِينَ تَضَعُونَ ثِيَابَكُم مِّنَ الظَّهِيرَةِ وَمِنۢ بَعْدِ صَلَوٰةِ الْعِشَاءِ ثَلَٰثُ عَوْرَٰتٍ لَّكُمْ ﴾، «سورة النور، آية: ۵۸، پ: ۱۸».

**ترجمه**: ستاسې غلامان او نابالغ ماشومان دې اجازت غواړی په «دریو وقتونو کښې» د سهار د لمانځه نه مخکې او کله چه تاسو جامې کیږدئ د غرمې په وقت کښې او د ماخوستن د لمانځه نه وروسته، دا درې واړه وختونه ستاسې د پردې وختونه دی.

## په سورة فرقان کښې د لمانځه ذکر:

(۲) ﴿ وَالَّذِينَ يَبِيتُونَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَقِيَٰمًا ﴿٦٤﴾ ﴾، «سورة الفرقان، پ: ۱۹».

**ترجمه**: «او عباد الرحمن» هغه خوك دی چه شپه تیروی خپل رب ته د سجدې اوقیام په حالت کښې «دلمانځه په حالت کښې».

## په سورة شعراء کښې د لمانځه ذکر:

(۷۳) ﴿ الَّذِي يَرَىٰكَ حِينَ تَقُومُ ﴿٢١٨﴾ وَتَقَلُّبَكَ فِي السَّٰجِدِينَ ﴿٢١٩﴾ ﴾، «سورة الشعراء، پ: ۱۹».

**ترجمه**: هغه پاك خدای چه تا وینی کله چه ولاړ یی د شپې دتهجدو په لمانځه کښې اوهغه وخت چه ته د سجده کوونکو «لمونځ کوونکو» سره کینې او ودریږې.

## په سورة نمل کښې د لمونځ ذکر:

(۷۴) ﴿ الَّذِينَ يُقِيمُونَ الصَّلَوٰةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَوٰةَ وَهُم بِالْآخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ ﴿٣﴾ ﴾، «سورة النمل، پ: ۱۹».

ترجمه: اومؤمنان هغه خلق دی چه دلمانځه پابندی کوی اوزکات ورکوی اوپه آخرت یقین لری

**په سورة عنکبوت کښې د لمانځه ذکر:**

(۷۵) ﴿وَأَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ إِنَّ ٱلصَّلَوٰةَ تَنْهَىٰ عَنِ ٱلْفَحْشَآءِ وَٱلْمُنكَرِ﴾، (عنکبوت، آیت: ۴۵)

**ترجمه**: او لمونځ قائم کړه ځکه چه لمونځ د بې حیایی او بدو کارونو څخه منع کول کوی.

**په سورة روم کښې د لمانځه ذکر:**

(۷۶) ﴿فَسُبْحَٰنَ ٱللَّهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ ﴿١٧﴾ وَلَهُ ٱلْحَمْدُ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَعَشِيًّا وَحِينَ تُظْهِرُونَ ﴿١٨﴾﴾، (سورة الروم، پ: ۲۱).

**ترجمه**: پس د الله پاك تسبیح بیانوه چه کله مابنام کوې اوسهار کوې او په ټولو آسمانونو او ځمکو کښې دهغه حد اوثنا وی او په ماسپښین کښې هم دهغه پاکی بیانوه «لمونځ کوه».

(۷۷) ﴿مُنِيبِينَ إِلَيْهِ وَٱتَّقُوهُ وَأَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَلَا تَكُونُوا۟ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ﴿٣١﴾﴾، (سورة الروم، پ: ۲۱).

**ترجمه**: تاسې د الله تعالی طرفته رجوع کوونکی شئ اوله هغه څخه وډار شئ اولمونځونه قائم کړئ اوله مشرکانو څخه مه کیږئ.

**په سورة لقمان کښې د لمانځه ذکر:**

(۷۸) ﴿هُدًى وَرَحْمَةً لِّلْمُحْسِنِينَ ﴿٣﴾ ٱلَّذِينَ يُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤْتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَهُم بِٱلْءَاخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ ﴿٤﴾﴾، (سورة لقمان، پ: ۲۱).

**ترجمه**: دا آیتونه هدایت او رحمت دی دنیکو خلکو لپاره، هغه چه لمونځ قائموی اوزکات ورکوی او هغوئ په آخرت باندې پوره یقین لری.

(۷۹) ﴿يَٰبُنَىَّ أَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ وَأْمُرْ بِٱلْمَعْرُوفِ وَٱنْهَ عَنِ ٱلْمُنكَرِ﴾. (لقمان، آیت: ۱۷، پ: ۲۱)

**ترجمه**: «حضرت لقمان خپل زوئ ته ووېل:» اې زما زویه لمونځ اداء کوه اود ښو خبرو امر کوه او له بدو کارونو څخه منع کوه.

**په سورة سجده کښې د لمانځه ذکر:**

(۸۰) ﴿إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِـَٔايَٰتِنَا ٱلَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا۟ بِهَا خَرُّوا۟ سُجَّدًا وَسَبَّحُوا۟ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ۩ ﴿١٥﴾ تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ ٱلْمَضَاجِعِ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَطَمَعًا وَمِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ يُنفِقُونَ ﴿١٦﴾﴾، (سورة السجده، پ: ۲۱).

**ترجمه** : بیشکه زمونږ په آیتونو هغه خلق ایمان لري چه هغوئ ته کله دغه آیتونه وریادولې شي اونصیحت یې ورته کولې شي نو هغوئ سجده کوونکي شي او دخپل رب له حمد سره تسبیح وایی اوهغوئ تکبر نه کوی . د دوئ اړخونه له بسترونه لیرې وی او هغوئ خپل رب له خوف او اُمید سره رابلی اوڅه چه مونږ دوئ ته روزی ورکړې ده له هغې څخه خرچ کوی.

## په سورة احزاب کښې د لمانځه ذکر :

(۸۱) ﴿ وَأَقِمْنَ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتِينَ ٱلزَّكَوٰةَ وَأَطِعْنَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓ ﴾ (احزاب، آیت : ۳۳، پ : ۲۲)

**ترجمه** : «امهات المؤمنین ته خطاب دې » د لمانځه پابندی کوئ اوزکات اداء کوئ او دالله تعالی اودهغه د رسول اطاعت کوئ.

## په سورة فاطر کښې د لمونځ ذکر :

(۸۲) ﴿ إِنَّمَا تُنذِرُ ٱلَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُم بِٱلْغَيْبِ وَأَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ ﴾ (فاطر، آیت : ۱۸ ، پ : ۲۲).

**ترجمه** : بیشکه ته هغه خلقو ته ویره ورکولې شې «فائده هغه څوک ترې اخیستې شی» چه له خپل رب څخه داریږی په غیبو باندې او دلمانځه پابندی کوی.

(۸۳) ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَتْلُونَ كِتَٰبَ ٱللَّهِ وَأَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَأَنفَقُوا۟ مِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً يَرْجُونَ تِجَٰرَةً لَّن تَبُورَ ﴿٢٩﴾ ﴾ ، (سورة فاطر، پ : ۲۲).

**ترجمه** : بیشکه کوم خلق چه د الله تعالی د کتاب تلاوت کوی او لمونځ قائموی اوڅه چه مونږ دوئ ته روزی ورکړې له هغې څخه په پټه او ښکاره خرچ کوی ، دوئ د داس تجارت امید لری چه هغه ته نقصان نه رسیږی.

## په سورة زمر کښې د لمانځه ذکر :

(۸۴) ﴿ أَمَّنْ هُوَ قَٰنِتٌ ءَانَآءَ ٱلَّيْلِ سَاجِدًا وَقَآئِمًا يَحْذَرُ ٱلْءَاخِرَةَ وَيَرْجُوا۟ رَحْمَةَ رَبِّهِۦ ﴾ ، (سورة الزمر، آیت : ۹ ، پ : ۲۳).

**ترجمه** : آیا هغه څوک چه د شپې په وختونو کښې دسجدې او د قیام په حالت کښې عبادت کوی او آخرت نه ویریږی او دخپل رب د رحمت امید لری «آیا دوئ له نافرمانو سره برابر دی؟».

## په سورة شوری کښې د لمانځه ذکر :

(۸۵) ﴿ وَٱلَّذِينَ ٱسْتَجَابُوا۟ لِرَبِّهِمْ وَأَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَأَمْرُهُمْ شُورَىٰ بَيْنَهُمْ وَمِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ يُنفِقُونَ ﴿٣٨﴾ ﴾ ، شوری، پ . ۲۵)

**ترجمه**: اومؤمنان هغه دی چه دخپل رب حکم منی او د لمانځه پابندی کوی او د دوئ معامله په

خپلو مینځونو کښې په مشورو سره کیږی او څه چه مونږ دوئ ته رزق ورکړې له هغې څخه خرچ کوی

## په سورة فتح کښې د لمانځه ذکر :

(۸۶) ﴿ تَرَىٰهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ ٱللَّهِ وَرِضْوَٰنًا سِيمَاهُمْ فِى وُجُوهِهِم مِّنْ أَثَرِ ٱلسُّجُودِ ﴾ ، (سورة فتح، آیت : ۲۹، پ : ۲۶).

**ترجمه** : او دغه د ((محمد ملګری به ته وینې)) کله رکوع کونکی ، کله سجده کوونکی ، د الله تعالی دفضل اوخوشحالی په طلب کښې به لګیاوی اودهغوئ علامه اوننښه د زیاتو سجدو له کبله د دوئ په مخونو کښې ښکاره وی.

## په سورة (ق) کښې د لمانځه ذکر :

(۸۷) ﴿ فَٱصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ ٱلشَّمْسِ وَقَبْلَ ٱلْغُرُوبِ ﴿٣٩﴾ وَمِنَ ٱلَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَأَدْبَٰرَ ٱلسُّجُودِ ﴿٤٠﴾ ﴾ ، (سورة ، ق ، پ : ۲۳).

**ترجمه** : له لمرخاته اولمر پریوتلو څخه وړاندې د خپل رب له حمد سره پاکی بیانوه او د شپې هم دهغه تسبیح بیانوه او له لمونځونو وروسته هم.

## په سورة ذاریات کښې د لمانځه ذکر :

(۸۸) ﴿ كَانُوا۟ قَلِيلًا مِّنَ ٱلَّيْلِ مَا يَهْجَعُونَ ﴿١٧﴾ وَبِٱلْأَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُونَ ﴿١٨﴾ ﴾ ، (ذاریات، پ : ۲۶).

**ترجمه** : هغه خلق دشپې ډیر لږ ویده کیږی ((یعنی د لمانځه لپاره قیام کوی)) او د شپې په آخیری حصه کښې استغفار کوی.

## په سورة طور کښې د لمانځه ذکر :

(۸۹) ﴿ وَٱصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ فَإِنَّكَ بِأَعْيُنِنَا ۖ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ حِينَ تَقُومُ ﴿٤٨﴾ وَمِنَ ٱلَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَإِدْبَٰرَ ٱلنُّجُومِ ﴿٤٩﴾ ﴾ ، (سورة الطور، پ : ۲۷).

**ترجمه** : او په کوم وقت کښې چه ته پورته کیږې د خپل رب دحمد او ثنا سره پاکی بیانوه او په بعضې وقتونو دشپې کښې او د ستورو دغائب کیدونه بعد هم دهغه تسبیح کوه.

## په سورة نجم کښې د لمانځه ذکر :

(۹۰) ﴿ فَٱسْجُدُوا۟ لِلَّهِ وَٱعْبُدُوا۟ ۩ ﴿٦٢﴾ ﴾ ، (سورة النجم، پ : ۲۷).

ترجمه : پس الله تعالی ته سجده او عبادت کوئ.

## په سورة مجادله کښې د لمانځه ذکر :

(۹۱) ﴿ فَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا الزَّكَوٰةَ وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَاللَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿١٣﴾ ﴾ ، (سورة مجادله، پ : ۲۸).

**ترجمه** : پس تاسو د لمانځه پابندي کوئ اوزکات ورکوئ او د الله تعالى اودهغه د رسول اطاعت کوئ اوکوم څه چه تاسو کوئ الله تعالى په هغې خبردار دې.

## په سورة جمعه کښې د لمانځه ذکر :

(۹۲) ﴿ يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوٓا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَوٰةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٩﴾ فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلَوٰةُ فَانتَشِرُوا فِي الْأَرْضِ وَابْتَغُوا مِن فَضْلِ اللَّهِ وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿١٠﴾ ﴾

**ترجمه** : اې مؤمنانو کله چه د جمعې په ورځ د لمانځه لپاره اذان وکړل شي نو تاسې د الله تعالى د ذکر لپاره کوښښ وکړئ او خريد اوفروخت پريږدئ ، دا خبره ستاسو لپاره بهتره ده که تاسې پوهيږئ. او کله چه لمونځ وکړل شي نو په ځمکه کښې خوراه اواره شئ او د الله تعالى فضل يعنى دهغه له درکړې شوى رزق نه حلال رزق تلاش کړئ او الله تعالى ډير ډير يادوئ د دې لپاره چه کامياب شئ.

## په سورة قلم کښې د لمانځه ذکر :

(۹۳) ﴿ يَوْمَ يُكْشَفُ عَن سَاقٍ وَيُدْعَوْنَ إِلَى السُّجُودِ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ ﴿٤٢﴾ خَٰشِعَةً أَبْصَٰرُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ وَقَدْ كَانُوا يُدْعَوْنَ إِلَى السُّجُودِ وَهُمْ سَٰلِمُونَ ﴿٤٣﴾ ﴾ ، (سورة القلم، پ : ۲۹).

**ترجمه** : هغه ورځ چه پنډۍ ظاهرې شى (يعنى يو خاص قسم تجلى ظاهره شى) اوخلك د سجدې لپاره راوغوښتل شى نو «کافر» به سجده نشى کولې ، ټيټې به وى سترګې د دوئ ، اوپه هغوئ به ذلت خور وى . او د دې رسوايى سبب به يى دا وى چه دوئ به په دنيا کښې سجدې ته رابلل کيدل په داسې حال کښې چه دوئ به روغ اوجوړ وو.

## په سورة معارج کښې د لمانځه ذکر :

(۹۴) ﴿ إِلَّا الْمُصَلِّينَ ﴿٢٢﴾ الَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ صَلَاتِهِمْ دَائِمُونَ ﴿٢٣﴾ ﴾ ، (سورة معارج، پ. ۲۹).

**ترجمه** . مګر لمونځ کونکى هغه چه د لمانځه يى برابر پابندى کوله «هغوئ بې صبرى نه کوله»

(۹۵) ﴿ وَالَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ ﴿٣٤﴾ ﴾، (سورة معارج، پ: ۲۹).
**ترجمه**: او هغه چه د خپلو لمونځونو مکمل حفاظت کوونکي وو.

**په سورة جن کښې د لمانځه ذکر**:

(۹۶) ﴿ وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلَّهِ فَلَا تَدْعُوا مَعَ اللَّهِ أَحَدًا ﴿١٨﴾ ﴾، (سورة الجن، پ: ۲۹).
**ترجمه**: «او د دې وحی هم شوې وه چه» مسجدونه د الله تعالی لپاره خاص دی نو د الله تعالی نه بغیر د بل چا عبادت مه کوئ.

**په سورة مزمل کښې د لمانځه ذکر**:

(۹۷) ﴿ يَا أَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ ﴿١﴾ قُمِ اللَّيْلَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٢﴾ نِصْفَهُ أَوِ انْقُصْ مِنْهُ قَلِيلًا ﴿٣﴾ أَوْ زِدْ عَلَيْهِ وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلًا ﴿٤﴾ ﴾، سورة المزمل. پ: ۲۹).
**ترجمه**: اې شړئ اغوستونکيه! د شپې درېږه مګر لږ حصه د شپې چه نيمه شپه وی يا د هغې نه هم لږ او يا د نيمې شپې نه لږ زيات ودرېږه او قرآن په ترتيل سره صفا صفا تلاوت کوه.

(۹۸) ﴿ إِنَّ رَبَّكَ يَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُومُ أَدْنَىٰ مِن ثُلُثَيِ اللَّيْلِ وَنِصْفَهُ وَثُلُثَهُ وَطَائِفَةٌ مِّنَ الَّذِينَ مَعَكَ ۚ وَاللَّهُ يُقَدِّرُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ ۚ عَلِمَ أَن لَّن تُحْصُوهُ فَتَابَ عَلَيْكُمْ ۖ فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ ۚ عَلِمَ أَن سَيَكُونُ مِنكُم مَّرْضَىٰ ۙ وَآخَرُونَ يَضْرِبُونَ فِي الْأَرْضِ يَبْتَغُونَ مِن فَضْلِ اللَّهِ ۙ وَآخَرُونَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۖ فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ ۚ وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ ﴾، سورة مزمل، آيت: ۲۰، پ: ۲۹).
**ترجمه**: بيشکه ستا رب پوهيږی چه ته دويمې حصې د شپې کښې او يا نيمې حصې د شپې کښې او يا دريمې حصې د شپې کښې درېږې، «لمونځ کوې»، او ستا د ملګرو څخه يوه ډله هم، او الله تعالی د شپې او ورځې صحيح اندازه کوی، الله تعال پوهيږی چه تاسو دهغې طاقت نشئ لرلې، لهذا هغه ستاسو په حال توجه فرمايلې نو تاسو قرآن لولئ څومره چه تاسې ته آسان وی، الله تعالی پوهيږی چه په تاسې کښې مريضان وی او څينې به په سفر کښې وی او د الله تعالی فضل او د الله تعالی فضل به په ځمکه لټوی او څه نور به د الله تعالی په لار کښې په جهاد او قتال مصروف وی نو قرآن تلاوت کوئ څومره چه درته آسان وی او لمونځ کوئ او زکات ورکوئ.

**په سورة مدثر کښې د لمانځه ذکر**:

(۹۹) ﴿ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ ﴿٣﴾ ﴾، (سورة مدثر، پ: ۲۹).

**ترجمه**: او د لمانځه دشروع کولو په وقت کښې دخپل رب لويي بيانوه.

(۱۰۰) ﴿ مَا سَلَكَكُمْ فِي سَقَرَ ﴿٤٢﴾ قَالُوا لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّينَ ﴿٤٣﴾ ﴾، سورة مدثر، پ: ۲۹).

**ترجمه**: تاسې دوزخ ته څه شي داخل کړئ، هغوئ به او وايي مونږ د لمونځ کوونکو څخه نه وو

## په سورة قيامه کښې د لمونځ ذکر:

(۱۰۱) ﴿ فَلَا صَدَّقَ وَلَا صَلَّىٰ ﴿٣١﴾ ﴾، سورة قيامة، پ: ۲۹).

**ترجمه**: نه هغه تصديق کړې وو اونه يې لمونځ کړې وو.

## په سورة دهر کښې د لمانځه ذکر:

(۱۰۲) ﴿ وَمِنَ اللَّيْلِ فَاسْجُدْ لَهُ وَسَبِّحْهُ لَيْلًا طَوِيلًا ﴿٢٦﴾ ﴾، (سورة الدهر، پ: ۲۹).

**ترجمه**: او د شپې په څه حصه کښې هغه ته سجده کوه «لمونځ کوه» او يوه اوږده حصه دهغې تسبيح بيانوه.

## په سورة مرسلات کښې د لمانځه ذکر:

(۱۰۳) ﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ارْكَعُوا لَا يَرْكَعُونَ ﴿٤٨﴾ ﴾، (سورة مرسلات، پ: ۲۹).

**ترجمه**: اوکله چه ورته وويل شي چه رکوع وکړئ نو دوئ رکوع نه کوي.

## په سورة اعلى کښې د لمانځه ذکر:

(۱۰۴) ﴿ قَدْ أَفْلَحَ مَن تَزَكَّىٰ ﴿١٤﴾ وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّىٰ ﴿١٥﴾ ﴾، (سورة اعلى، پ: ۳۰).

**ترجمه**: بيشکه هغه څوک کامياب دي چا چه دخپل رب ذکر وکړو او لمونځ يې وکړو.

## په سورة علق کښې د لمانځه ذکر:

(۱۰۵) ﴿ أَرَأَيْتَ الَّذِي يَنْهَىٰ ﴿٩﴾ عَبْدًا إِذَا صَلَّىٰ ﴿١٠﴾ ﴾، (سورة علق، پ: ۳۰).

**ترجمه**: آيا تا هغه شخص ليدلې چه يو بنده «حضرت محمد صلى الله عليه وسلم» له لمانځه څخه منع کوي کله چه هغه خاص بنده لمونځ کوي.

(۱۰۶) ﴿ كَلَّا لَا تُطِعْهُ وَاسْجُدْ وَاقْتَرِب ۩ ﴿١٩﴾ ﴾، سورة علق، پ: ۳۰).

**ترجمه**: هيڅ کله نه دهغه تابعداري مه کوه، خپل رب ته سجده کوه «لمونځ کوه» اودهغه قرب او نزديکت حاصل کړه.

## په سورة بیّنه کښې د لمانځه ذکر :

(۱۰۷) ﴿وَمَآ أُمِرُوٓاْ إِلَّا لِيَعۡبُدُواْ ٱللَّهَ مُخۡلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ حُنَفَآءَ وَيُقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤۡتُواْ ٱلزَّكَوٰةَۚ وَذَٰلِكَ دِينُ ٱلۡقَيِّمَةِ ۝٥﴾ ، (سورة البینه، پ : ۳۰).

**ترجمه** : حالانکه هغه اهل کتابوته صرف د دې حکم شوې وو چه خالص الله تعالی لره عبادت کوونکی شي او د باطلو عقائدو نه مائل وی خاص د الله تعالی طرفته او لمونځ وکړی او زکات ورکړی ، صرف دغه طریقه صحیح او مضبوطه ده .

## په سورة الماعون کښې د لمانځه ذکر :

(۱۰۸) ﴿فَوَيۡلٞ لِّلۡمُصَلِّينَ ۝٤ ٱلَّذِينَ هُمۡ عَن صَلَاتِهِمۡ سَاهُونَ ۝٥ ٱلَّذِينَ هُمۡ يُرَآءُونَ ۝٦﴾
، (سورة الماعون، پ : ۳۰).

**ترجمه** : پس د داسې لمونځ کوونکو لپاره هلاکت دې چه دخپل لمونځ نه غفلت کونکی او بې پرواهی کونکی اوریاء کوونکی وی.

## په سورة کوثر کښې د لمونځ ذکر :

(۱۰۹) ﴿فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَٱنۡحَرۡ ۝٢﴾ ، (سورة الکوثر، پ : ۳۰).

**ترجمه** : پس دخپل پروردګار لمونځ او قربانی کوه .



# کتاب الطهارة

## «د پاکوالی بیان»

## تعریفونه

فقهاء کرام فرمایی چه د فرضو پیژندل فرض دی او واجب پیژندل واجب دی او سنت پیژندل سنت دی او مستحب پیژندل مستحب دی.

**دفرض تعریف** : فرض هغه دی چه دهغو لزوم په قطعی دلیل سره ثابت وی چه په هغې کښې هیڅ قسمه شك او شبهه نه وی، د الله تعالی حکم همداسې وی (مَالَزِمَ بِدَلِيْلٍ قَطْعِيٍّ) لکه قرآنی آیتونه، متواتر احادیث چه په هغې کښې هیڅ قسم تاویل وغیره نه وی.

**د فرض حکم** : دفرضو حکم دا دې چه کونکې یې مستحق د ثواب دې او ترك کوونکې یې مستحق د عذاب دې اومنکر یې کافر دې، او فرض هغه دی چه دهغې په فوت کیدلو سره عمل هم فوت کیږی، دا رکن دې چه دهغې له وجود څخه وجود دشی او له عدم څخه یې عدم دشی وی.

**دفرض دوه قسمونه** : (۱) چه له نصوصو څخه ثابت وی، (۲) چه دمجتهدینو له اجتهاد څخه متعین وی، دا د اول قسم په شان قطعی ندې.

**فرض عین** : هغه دی چه دهغې اداء کول په هر مکلف شخص باندې ضروری وی.

**فرض کفایه** : هغه دی چه که له یو جماعت څخه بعضې افراد هغه اداء کړی نو له ټولو څخه یې فرضیت ساقطیږی او که یې هیڅ یو شخص هم اداء نکړی نو ټول جماعت پرې ګنهګاریږی. لکه د جنازې لمونځ، کفن، دفن، دمریض پوښتنه اوتیمارداری وغیره.

**د واجب تعریف** : واجب هغه دی چه دهغې ثبوت په ظنی دلیل سره وی لکه دغیر منصوص آیت اویا غیر متواتر حدیث څخه (مَاثَبَتَ لُزُوْمُهُ بِدَلِيْلٍ ظَنِّيٍّ). اودهغه دکوونکی ثواب د فرضو له ثواب څخه کم وی اودهغه د تارك عذاب د فرضو د تارك له عذاب څخه کم وی اودهغه په نه کولو سره مکروه تحریمی لازمیږی اودهغه اعاده دوباره لازمیږی.

**د واجب حکم** : د واجب حکم دا دې چه دهغه منکر فاسق اوګمراه کیږی، دا داسې موقوف علیه وی چه دهغه دوجود څخه د یوشی وجود وی اودهغې له عدم څخه د شی عدم نه لازمیږی بلکه په هغې کښې نقصان اوخرابی پیدا کیږی.

**د سنت تعریف** : د دین هغه طریقه اولاره چه دحضرت محمد صلی الله علیه وسلم څخه ثابته وی

((اَلطَّرِیْقَةُ الْمَسْلُوْکَةُ فِی الدِّیْنِ مِنْ غَیْرِ اِفْتِرَاضٍ وَّلَا وُجُوْبٍ)) دهغې کوونکې مستحق د ثواب دې اوتارك يې مستحق د سزا او ملامتيا دې او د نبی کريم صلی الله عليه وسلم له شفاعت څخه يې د محرومتيا خطر دې.

امام ابن همام رحمه الله يې داسې تعريف کړې دې : ((مَا وَاظَبَ النَّبِیُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ تَرْکِهٖ اَحْيَانًا)) دغه تعريف صحيح نه معلوميږی ځکه چه «ولاء، ترتيب، تيامن، نيت» نبی کريم صلی الله عليه وسلم کله هم ندی ترك کړی، د دې باوجود دا ټول سنت دی فلهذا اولنې تعريف زيات صحيح معلوميږی.

**د سنت حکم** : د سنت حکم دا دې چه دهغه منکر بدعتی اوگنهگار دې که توهين يا استخفاف يې وکړی نو کافر کيږی، اودهغه د سنت کيدو اعتقاد لرل اوعمل ورباندې نه کولو سره مکروه تنزيهی لازميږی، او دا د اجزاء متممه اومکمله په شان باندې دې.

**د مستحب تعريف** : مستحب هغه دی چه په عمل کولو يې نبی کريم صلی الله عليه وسلم ثواب فرمايلې دې اوکله کله يې په خپله هم عمل ورباندې کړې وی اوهغه د عبادت له باب څخه وی ، د عادت له جملې څخه نه وی.

**دمستحب حکم** : دهغې منکر نه کافر کيږی اونه فاسق اومبتدع کيږی اونه گنهگار کيږی ، په هغې باندې عمل کوونکې دثواب اوفضيلت مستحق گرځی اولوئ ثواب ورته حاصليږی اوتارك يې له ثواب او فضيلت څخه محروم گرځی، دمحسنه او مزينه اجزاؤ په شان دې.

**مباح** : مباح هغه دې چه دهغې په کولو ثواب نه وی او په نه کولو يې عذاب اوگناه نه وی.

**د حرام تعريف** : حرام هغه دې چه دهغې حرمت او ممانعت په دليل قطعی سره ثابت وی.

**دحرام حکم** : دهغې منکر کافر دې اوبغير له عذر نه دهغې مرتکب فاسق او دعذاب او سزاء مستحق دې.

**دمکروه تحريمی تعريف** : چه دهغې ممانعت په دليل ظنی سره ثابت وی.

**د مکروه تحريمی حکم** : بغير له عذر نه دهغې مرتکب مستحق د سزاء دې ليکن دا سزاء د حرامو له سزاء څخه کمه ده اومنکر يې هم کافر نه گرځی.

**مکروه تنزيهی** : هغه دی چه له هغې څخه ځان ساتل موجب د اجر او ثواب کيږی اومرتکب يې اگرچه مستحق د عذاب اوسزاء گرځی ليکن په هغه کار کښې يو قسم خرابی واقع کيږی.

**د طهارت د وجوب سبب** : (طهارت) نظافت اوپاکوالی او دحدث اونجاست لرې کولو ته ويل کيږی، دهغې دوجوب سبب لمونځ وغيره دی، لکه چه امام ابن الهمام ويلی دی : ((اِرَادَةُ مَالَا يَحِلُّ اِلَّا بِهَا))

یعنی د طهارت د وجوب سبب د داسې شی اراده کول دی چه بغیر له طهارت څخه حلال او جائزنوی.

**د طهارت او نظافت اهمیت**: نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: (اِنَّ اللهَ طَیِّبٌ یُحِبُّ الطَّیِّبَ) یعنی بیشکه الله تعالی پاك دې اوپاك شې خوښوی، (نَظِیْفٌ یُحِبُّ النَّظَافَةَ) یعنې نظیف دې، نظافت خوښوی. «ترمذی، ص: ۳۹۷».

طهارت اونظافت او د انسان له جسم څخه حدث «بې اودسی اوجنابت» او خبث «نجاست وغیره» لرې کول ضروری او واجب دی، بغیر له طهارت څخه بعضې اعمال حلال نه ګرځی، مثلاً لمونځ، قرآن کریم ښکلول اوپه لاس کښې اخستل، دجنازې لمونځ اداء کول، دتلاوت سجده کول، دحیض او نفاس په حالت کښې مسجد ته داخلیدل ممنوع دی، له حدث اکبر «جنابت» او حدث اصغر یعنی ورو متیازو اوغټو متیازو او مذی او ودی وغیره څخه طهارت ضروری دې.

منی «دتولیدماده» دحیض وینه، د نفاس وینه، د استحاضې وینه، دزخم وینه او اوبه، د پیپ «زوې» خارجیدل د «قئ» راتلل، له دې ټولو څخه طهارت لازم او ضروری دې، او له دې څخه علاوه په یوحدیث کښې راغلی چه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی:

اَلنَّظَافَةُ تَدْعُوْا اِلَى الْاِیْمَانِ: «الترغیب والترهیب، ج: ۱، ص: ۱۰۳، دطبرانی په حواله».

**ترجمه**: نظافت اوپاکی د ایمان طرفته دعوت ورکوی.

ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها فرمایی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی:

اِنَّ الْاِسْلَامَ نَظِیْفٌ فَلْتَتَنَظَّفُوْا «کنزالعمال، ج: ۹، ص: ۱۲۹، دخطیب بغدادی اوطبرانی په حواله».

**ترجمه**: نظافت او طهارت حاصل کړئ ځکه چه اسلام پاك اونظیف دې.

او درسول کریم صلی الله علیه وسلم یوبل مبارك ارشاد دې چه:

مِفْتَاحُ الصَّلٰوةِ الطُّهُوْرُ «ترمذی، ص: ۲۷، ابن ماجه، ص: ۲۴، دارمی، ص: ۱۱۴».

**ترجمه**: د لمونځ چابی «کیلی» طهارت دې.

د مسجد قباء دخلکو په تعریف کښې د الله پاك جل جلاله فرمان دې چه:

﴿فِیْهِ رِجَالٌ یُّحِبُّوْنَ اَنْ یَّتَطَهَّرُوْا وَاللهُ یُحِبُّ الْمُطَّهِّرِیْنَ﴾، «سورة تبه، آیت: ۱۰۸».

**ترجمه**: «دمسجد قباء شاو اوخوا خلك اوسیی» چه طهارت خوښوی او الله پاك له طهارت اوپاکی خوښوونکو سره محبت کوی.

اودنبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دې:

اِنَّ اللهَ لَا یَقْبَلُ صَلٰوةً بِغَیْرِ طُهُوْرٍ وَّلَا صَدَقَةً مِّنْ غُلُوْلٍ «مسلم، ج: ۱، ص: ۱۱۹، ترمذی، ص: ۲۲».

**ترجمه** : بیشکه بغیر له طهارت څخه لمونځ نه قبلیږی او د خیانت له مال څخه صدقه نه قبلیږی.

الله پاک جل جلاله فرمایی : ﴿خُذْ مِنْ أَمْوَٰلِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا﴾ ، (توبه، آیت : ۱۰۳)

**ترجمه** : دهغوئ له مال څخه صدقه قبوله کړه اودهغوئ ظاهر اوباطن پاک کړه .

بل ځای کښې الله پاک فرمایی چه :

﴿إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلتَّوَّٰبِينَ وَيُحِبُّ ٱلْمُتَطَهِّرِينَ﴾ ، (سورة بقره، آیت : ۲۲۲).

**ترجمه** : یقیناً الله تعالی محبت کوی له توبه کوونکو او پاکی کوونکو سره .

اوبل ځای فرمایی چه : ﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ ۝٤﴾ ، (المدثر، آیت : ۴).

**ترجمه** : او خپلې جامې پاکې کړه .

اورسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی چه : اَلطُّهُوْرُ شَطْرُ الْإِيْمَانِ (مسلم، ج : ۱، ص : ۱۱۸)

**ترجمه** : طهارت د ایمان جزء دې اویا نیم ایمان دې .

اوبل ځای فرمایی چه : اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنَ التَّوَّابِيْنَ وَاجْعَلْنِيْ مِنَ الْمُتَطَهِّرِيْنَ.

**ترجمه** : یا الله ! ما له توبه کوونکو څخه وګرځوې اوما له پاکی کوونکو څخه وګرځوې .

اوبل ځای کښې ارشاد دې چه : اَلسِّوَاكُ مَطْهَرَةٌ لِّلْفَمِ (مسند احمد، ج : ۲ ، ص : ۴۲ ، ابن ماجه ، ص : ۲۵ ، دارمی، ج : ۲، ص : ۴۰ ، نسائی، ج : ۱ ، ص : ۵).

له دغو آیتونو څخه د طهارت اوپاکوالی اهمیت ظاهر اوښکاره دې .

بیا د طهارت مختلفې درجې دی ، ظاهر له حدث او بې اودسی او خباثت او فضلاتو څخه پاکول، جوارح او اعضاء له جرائمو اوګناهونو څخه ، زړه له باطلو اعتقاداتو او خرابو اخلاقو څخه او روح د ماسوی الله له خیال څخه ساتل .

**تزکیه** : صفا کول د خیری لرې کول اوانسانی نفس له هرقسم نجاستونو او ګندګیو څخه صفا کول ، له شهوت اوغضب څخه پاکول اوهغه دعقل تابع کول او عقل دشریعت تابع کول ، نفس له کفرو شرک ، نفاق ، الحاد، شك ، باطل عقائد ، فاسد نیت، بد اخلاق ، بدن له فضلاتو ، وینې ، زوې بول وغیره نجاستونو څخه پاکولو ته وایی ، لهذا ظاهری طهارت له نجاست اوناپاکی څخه او باطنی طهارت له شرکیاتو او شهوانیاتو نه ضروری دې .

حضرت ام معبد رضی الله تعالی عنها وایی : سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: اَللّٰهُمَّ طَهِّرْ قَلْبِيْ مِنَ النِّفَاقِ وَعَمَلِيْ مِنَ الرِّيَاءِ وَلِسَانِيْ مِنَ الْكَذِبِ وَعَيْنِيْ مِنَ الْخِيَانَةِ فَإِنَّكَ تَعْلَمُ خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ وَمَا تُخْفِي الصُّدُوْرُ . (فیض القدیر شرح جامع الصغیر، ج : ۲، ص : ۱۴۳، دخطیب بغدادی په حواله،

اوبیهقی هم په الدعوات کښې ذکر کړې دې).
**ترجمه**: ما له رسول کریم صلی الله علیه وسلم څخه دا دعاء آوریدلې ده چه هغه مبارك به فرمایل: یا الله! زما زړه له نفاق نه او زما عمل له ریاء نه او زما ژبه له درواغو نه او زما سترګې له خیانت نه پاکې کړې، بیشکه ته پوهیږې د سترګو په خیانت او د زړه په پټو خبروباندې.
**دجامو اوکپړو صفایی**: جامې باید پاکې وی او له حلال مال څخه جوړې شوې وی، د لمانځه په وقت کښې باید ځای پاك وی اومخ قبلې ته وی، ظاهری قبله خو کعبه ده اوباطنی قبله الهی عرش او دهغې مشاهده مقصود ده.
حضرت حاتم اصم رحمه الله فرمایلی دی: کله چه د لمانځه وخت راشی نو زه ظاهری طهارت په اوبو سره کوم اوباطنی طهارت (وضوء) په توحید، توبه، استغفار او رجوع الی الله سره کوم.
ذوالنون مصری رحمه الله فرمایی چه: د عوامو توبه له ګناهونو څخه وی اود خواصو توبه له غفلت څخه وی.
سهل بن عبدالله رحمه الله فرمایلی دی: توبه داده چه ته خپل ګناهونه هیر نکړې.
او په حدیث کښې دی چه: ((اَلتَّوْبَةُ النَّدَامَةُ)) (ابن ماجه، ص: ۲۰، فیض القدیر، ج: ۳، ص: ۲۸۵).
ترجمه: یعنی توبه ندامت او پښیمانتیا ده.
د دین د بزرګانو دا قول هم دې: لکه څنګه چه له ظاهری طهارت څخه بغیر لمونځ نه صحیح کیږی همدغه شان له باطنی طهارت څخه بغیر د الله تعالی معرفت نه حاصلیږی.
حضرت سفیان ثوری رحمه الله په مرض الموت کښې د یوه لمانځه لپاره شپیته ځلې اودس وکړو اودا دعاء یې وکړه چه: یا الله! ما تر آخری سلګۍ پورې په اوداسه ولره.
حضرت شبلی رحمه الله مسجد ته د راتلو اراده وکړه او اودس یې وکړو، هاتفی (غیبی) آواز ورباندې وشو چه تاخو ظاهر پاك کړ لیکن دباطن صفایی دې چیرته ده، بیرته لاړه او ټول مال، سامان، میراث اوملك یې د الله تعالی په لاره کښې ورکړ، ټول کال یې صرف هغه یو جوړه جامې وې چه ده به لمونځ پکښې کاوه، دحضرت جنید رحمه الله طرفته لاړه، هغه ورته وویل د هغه ډیر ښه اوفائده مند طهارت وو، الله تعالی دې تا همیشه په طهارت کښې ولری.
حضرت شاه عبدالقادر رانپوری خوارلس (۱۴) کاله په یوه کمبله کښې عبادت اوریاضت کاوه.
همدارنګه استنجاء کول په لوټه او اوبو سره، ((اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِكَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ)) او ((غُفْرَانَكَ)) ویل، اوپه ولاړه متیازې نه کول، ځکه چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی چه: ((لَاتَبُلْ قَائِمًا)) (ترمذی، ص: ۲۸، ابن ماجه، ص: ۲۲).
**ترجمه**: یعنی په ولاړه متیازې مه کوه.

په ولاړو اوبو کښې له متیازو کولو څخه ممانعت راغلې دې ځکه چه په دې سره اوبه پلیتیږي، بیا به په هغې طهارت څنګه کوي، همدارنګه نبی کریم صلی الله علیه وسلم په غسل خانه کښې له متیازو کولو څخه منع فرمایلې ده ځکه چه له دې څخه وسواس پیدا کیږي.

له استنجاء کولو څخه وروسته لاس ښه صفا کول په صابن یا خاور وغیره سره ځکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم به کله له بیت الخلاء څخه بهر راغې نولاس مبارك به یی په ځمکه ومښلو «که صابن وغیره به نه وو» همدارنګه که اوبه به نوې یا به د اوبو د استعمال طاقت نه وو نو د تیمم طریقه به یی ورښودله. الله تعالی فرمایي:

﴿مَا يُرِيدُ ٱللَّهُ لِيَجۡعَلَ عَلَيۡكُم مِّنۡ حَرَجٖ وَلَٰكِن يُرِيدُ لِيُطَهِّرَكُمۡ وَلِيُتِمَّ نِعۡمَتَهُۥ عَلَيۡكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُونَ ۝٦﴾. «سورة مائده، آية: ۶».

**ترجمه**: الله پاك نه غواړي چه په تاسې تنګی راولی لیکن هغه غواړي چه تاسې پاك کړي او خپل نعمت په تاسې پوره کړي، د دې لپاره چه تاسې شکر اداء کړئ.

ترخوپوري چه ظاهر له نجاست اوپلیتی څخه اوباطن له شرکیاتو اوشهواتو څخه پاك نشی د انسان زړه جلوه ګاه اودنور لپاره ځای نه جوړیږي.

«دشعر ترجمه:» زړه چه صفا وی نو د یار جلوه ګاه به ولی نه وي، آئینه چه وې نو قابل د دیدار او لیدلو به ولې نه وي.

د لباس اوجامو صفایي به له نجاست اوپلیتی څخه وی اوبیا به له حلالې ګټې څخه وي، اوبه خو طبعًا د طهارت اوپاکی آله دی، لکه چه الله پاك فرمایي:

﴿وَأَنزَلۡنَا مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءٗ طَهُورٗا﴾، «سورة فرقان، آيت: ۴۸».

**ترجمه**: مونږ نازلې کړي دی له آسمان نه پاکې اوبه «چه په خپله هم پاکې دی او نورو شیانو لره هم پاکوونکې دی».

او تیمم د اوبو بدل دې.

په ښی لاس باندې له استنجاء کولو څخه ممانعت شوې دې، په لاره کښې له قضاء حاجت څخه منع شوې ده، په هفته کښې یوځل غسل کول، جامې بدلول، عطر اوتیل وغیره لګول دا ټول دطهارت اصول دی.

عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهَا قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشْرٌ مِنَ الْفِطْرَةِ قَصُّ الشَّارِبِ إِعْفَاءُ اللِّحْيَةِ، اَلسِّوَاكُ، اِسْتِنْشَاقُ الْمَاءِ، قَصُّ الْأَظْفَارِ، غَسْلُ الْبَرَاجِمِ، نَتْفُ الْإِبِطِ، حَلْقُ الْعَانَةِ وَانْتِقَاصُ الْمَاءِ، قَالَ مُصْعَبٌ: وَنَسِيتُ الْعَاشِرَةَ إِلَّا أَنْ تَكُونَ الْمَضْمَضَةُ. «مسلم، ج: ۱، ص: ۱۲۹، ابوداؤد، ج: ۱، ص: ۸».

**ترجمه** : له ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله تعالی عنها نه روایت دې چه رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی : لس څیزونه په فطرت کښې داخل دی : (۱) د بریتونو کمول . (۲) د ږیرې اوږدول ، (۳) مسواك وهل ، (۴) په پوزه کښې اوبه اچول اوصفا کول، (۵) نوکان پریکول، (۶) د ګوتو د بندونو خیرې لرې کول (۷) د تخرګونو (بغلونو) ویښته صفا کول (۸) له نامه نه لاندې ویښته صفا کول، (۹) په اوبو باندې استنجاء کول . مصعب وایی چه لسم له ما څخه هیر شوې دې خو غالبًا چه هغه به مضمضه وی .

د ایماندار او لمونځ ګذار لپاره فرائض او نوافل بغیر له طهارت څخه ناممکن دی، د طهارت په وجه له مقربو ملائکو او ارواح طیبه سره مناسبت پیدا کیږی .

د غائبونو صفا کول، په سخته زمکه متیازې نه کول، په لاره کښې له ورو او غټو متیازو څخه ځان ساتل، د سیوری لرونکې ونې لاندې متیازې وغیره نه کول . له اودس ماتی څخه وروسته په لوټه اویا اوبو سره استنجاء کول ، په ولاړو اوبو کښې متیازې نه کول ، لاس په خاوره یا صابن وغیره پاکول ، په ولاړه متیازې نه کول ، دجمعې په ورځ د طهارت خاص اهتمام کول.

د رسول کریم صلی الله علیه وسلم به چه څومره طاقت وو نو دطهارت به یې خاص اهتمام کولو .

له حضرت ابوهریرة رضی الله تعالی عنه څخه روایت دې چه رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی : زه ستاسو لپاره د یو مشفق پلار په شان یم ، زه تاسې ته تعلیم درکوم چه کله تاسې قضاء حاجت ته ځئ مخ او شا مه ګرځوئ، او آنحضرت صلی الله علیه وسلم حکم کړې دې چه په دریو لوټو اویا تیږو سره استنجاء کوئ، په خوشیانو ، هډوکو ، سکرو وغیره باندې استنجاء مه کوئ، اونه په ښی لاس سره . (ابن ماجه ، ص : ۲۷، نسائی، ج : ۱ ، ص : ۱۲ ، ابوداؤد، ص : ۳ ، دارمی، ج : ۱ ، ص : ۱۳۸) .

لوټه یا کانې یا زړه ټوټه یا بل کوم داسې څیز لکه ردی قسم کاغذ چه د استنجاء کولو لپاره جوړ شوې وی ، په داسې څیزونو باندې استنجاء کول پکار دی . «سواتی» .

* * * * * * * * *
* * * * * * * *
* * * * * * *
* * * * *
* * * *

# د اودس فضائل

١ - عَنْ عُثْمَانَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنِ امْرِءٍ مُسْلِمٍ تَحْضُرُهُ صَلٰوةٌ مَكْتُوْبَةٌ فَيُحْسِنُ وُضُوْءَهَا وَخُشُوْعَهَا وَرُكُوْعَهَا اِلَّا كَانَتْ كَفَّارَةً لِمَا قَبْلَهَا مِنَ الذُّنُوْبِ مَالَمْ يُؤْتِ كَبِيْرَةً «مسلم، ج: ١، ص: ١٢١».

**ترجمه**: له حضرت عثمان رضی الله تعالی عنه څخه روایت دې، هغه وایی چه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: ندې یو مسلمان شخص چه هغه ته د لمونځ وقت حاضر شی اوهغه په ښه شان سره اودس وکړی او په عاجزی سره لمونځ وکړی او رکوع وکړی مگر هغه لمونځ د ده دمخکینیو گناهونو کفاره گرځی ترڅوچه ده د کومې کبیره گناه ارتکاب نوی کړې.

٢ - اَبِیْ هُرَيْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ. غُرًّا مُحَجَّلِيْنَ مِنْ اٰثَارِ الْوُضُوْءِ فَمَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ اَنْ يُّطِيْلَ غُرَّتَهُ فَلْيَفْعَلْ «بخاری، ج: ١، ص: ٢٥، مسلم، ج: ١، ص: ١٢٢».

**ترجمه**: له حضرت ابوهریرة رضی الله تعالی عنه څخه روایت دې چه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: زما اُمت به د سپینو تندیو او سپینو لاسونو او سپینو پښو والا وی د اوداسه د آثارو له کبله، نو څو چه ستاسو نه غواړی چه خپل سپین والې اوږد کړی نوهغه دې داکار وکړی.

٣ - اَبِیْ هُرَيْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ خَلِيْلِیْ يَقُوْلُ تَبْلُغُ الْحِلْيَةُ مِنَ الْمُؤْمِنِ حَيْثُ يَبْلُغُ الْوُضُوْءُ، «مسلم، ج: ١، ص: ١٢٧».

**ترجمه**: حضرت ابوهریرة رضی الله تعالی عنه فرمایی چه ماله خپل دوست څخه آوریدلی دی چه دمؤمن زیورات «ښائست» به تر هغه ځایه رسیږی چه ترکومه ځایه د ده اودس رسیږی.

۴ - عُثْمَانَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ مَرْفُوْعًا- مَنْ تَوَضَّأَ فَاَحْسَنَ الْوُضُوْءَ خَرَجَتْ خَطَايَاهُ مِنْ جَسَدِهٖ حَتّٰى تَخْرُجَ مِنْ تَحْتِ اَظْفَارِهٖ، «مسلم، ج: ١، ص: ١٢٥».

**ترجمه**: له حضرت عثمان رضی الله تعالی عنه څخه مرفوع روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: چاچه په ښه شان سره اودس وکړو «دسنتو او آدابو خیال یی وساتلو» نو «صغیره» گناهونه د ده له وجود څخه خارجیږی تردې چه دهغه دنوکونو لاندې چه کوم گناهونه وی هغه هم خارجیږی.

٥ - اِبْنِ عُمَرَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ- مَنْ تَوَضَّأَ عَلٰى طُهْرٍ كَتَبَ اللّٰهُ لَهُ عَشْرَ حَسَنَاتٍ، «ترمذی، ص: ٣٥، ابن ماجه، ص: ٣٩».

**ترجمه**: ابن عمر رضی الله تعالی عنه مرفوع روایت کوی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: چا چه اودس په اوداسه وکړو، یعنی مخکې یې اودس وو «پدې شرط چه مخکې

یی لمونځ وغیره ورباندې کړی وی» نوهغه ته لس نیکی ورکول کیږی .

۲ - اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ مَرْفُوْعًا- اَلَا اَدُلُّکُمْ عَلٰی مَا یَمْحُو اللّٰہُ بِهِ الْخَطَایَا وَیَرْفَعُ بِهِ الدَّرَجَاتِ، قَالُوْا بَلٰی یَا رَسُوْلَ اللّٰہِ، قَالَ اِسْبَاغُ الْوُضُوْءِ عَلَی الْمَکَارِهِ وَکَثْرَةُ الْخُطَا اِلَی الْمَسَاجِدِ وَانْتِظَارُ الصَّلٰوةِ فَذٰلِکُمُ الرِّبَاطُ.
«مسلم، ج: ۱، ص: ۱۲۷، ترمذی، ص: ۲۳».

**ترجمه**: له حضرت ابوهریرة رضی الله عالی عنه څخه مرفوع روایت دې چه رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی چه: آیا زه تاسې ته ونه ښایم هغه څیز چه له هغه سره الله تعالی ګناهونه معاف کوی او درجې پورته کوی؟ خلکو عرض وکړو: خامخا یی راته وښایه! نو وې فرمایل چه: کامل اودس کول د تکلیف د برداشت کولو په حالت کښې اود ډیرو قدمونو اخستل د مسجد طرفته او د لمانځه د اداء کولو نه وروسته د بل لمونځ انتظار کول، دا ستاسو رباط دې «یعنې د دښمن په مقابل کښې چه تیار اوسیدل څومره ثواب لری د دې هم هغه شان ثواب دې».

## د اودس فرائض

د اودس څلور فرضونه دی: د دریو اندامونو وینځل او د یوه اندام مسح کول دی- یعنی: (۱) مخ وینځل، (۲) د دواړو لاسونو تر څنګلو پورې وینځل، (۳) د دواړو پښو وینځل تر ښنګرو «ګټکو» پورې. (۴) د سر مسح کول.

دمخ څلور واړه حدود دادی: (طولاً) د ویښتانو له شنه کیدو څخه بیا د زنې تر لاندې حصې پورې، (عرضاً) د دواړو غوږونو تر مینځ حصه وینځل که په سر باندې یی ویښته وی، او که په سر باندې یی ویښته نه وی نو د تندی دهډوکی تر پورتنۍ حصې پورې کوم چه د سر له هډوکی سره لګیدلې وی، بیا ترزنې لاندې حصې پورې وینځل فرض دی «شرح وقایه، ج: ۱، ص: ۱۵- ۵۲».

اودواړه لاسونه سره له څنګلو وینځل چه دواړه څنګلې هم په وینځلو کښې داخلې دی، اوګټکی «ښنګری» د پښو په وینځلو کښې داخل دی. «هدایه، ج: ۱، ص: ۴، شرح نقایه، ج: ۱، ص: ۴، کبیری، ص: ۱۷».

اودسر مسح ترڅلورمې حصې پورې فرض ده دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزد، «هدایه، ج: ۱، ص: ۴. شرح نقایه، ج: ۱، ص: ۴، شرح وقایه، ج: ۱، ص: ۵۵، مطبوعه ایچ ایم سعید». ځکه چه دا د نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه ثابت دی.

۱ - عَنْ مُغِیْرَةَ بْنِ شُعْبَةَ..........وَمَسَحَ بِنَاصِیَتِهِ، «مسلم، ج: ۱، ص: ۱۳۴، ابوداؤد، ج: ۱، ص: ۲۰، منتقی ابن جارود، ص: ۳۲».

**ترجمه**: حضرت مغیره بن شعبة رضی الله تعالی عنه روایت کوی چه رسول اکرم صلی الله علیه

وسلم اودس وکړواو په ناصیه ((تندی)) باندې یې مسح وکړه ((یعنې د سر په څلورمه حصه)).

۲ - عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ (الی ان قال) فَمَسَحَ مُقَدَّمَ رَأْسِهٖ. ((ابوداؤد، ج : ۱، ص : ۲۰، مستدرك حاکم، ج : ۱، ص : ۱۲۹، مسلم، ج : ۱، ص : ۱۳۴)).

**ترجمه** : حضرت انس بن مالك رضی الله تعالی عنه روایت کوی چه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم مې په اودس کولو لیدلې دې، هغه د سر په اولنۍ حصه ((ربع راس)) باندې مسح وکړه ((یعنې د سر په څلورمه حصه یې مسح وکړه)).

له دې څخه د سر دڅلورمې حصې مسح کول معلومیږي.

د اودس په هکله الله پاك جل جلاله داسې فرمایي چه :

﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِذَا قُمْتُمْ إِلَى ٱلصَّلَوٰةِ فَٱغْسِلُوا۟ وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى ٱلْمَرَافِقِ وَٱمْسَحُوا۟ بِرُءُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى ٱلْكَعْبَيْنِ ﴾، ((سورة المائده، پ : ۲)).

**ترجمه** : اې مؤمنانو ! کله چه تاسې اراده وکړئ د لمانځه د دریدلو ((اوستاسې اودس نوی)) نو خپل مخونه وه مینځئ اوترڅنګلو پورې خپل لاسونه وه مینځئ اومسح وکړئ په خپلو سرونو باندې اوخپلې پښې وه مینځئ ترګټکو پورې ((یعنې تر ښنګرو پورې)).

**مسئله** : که په نوکانو باندې اوړه جمع شوې وی نو تر څوچه اوړه لرې کړې شوی نوی اوهغه ځای وینځل شوې نوی نو تر هغې اودس نه صحیح کیږی ((شرح نقایه، ج : ۱، ص : ۷۳)).

بعضې علماء کرام د نوکونو پالش هم په همدې حکم کښې داخلوی. والله سبحانه وتعالی اعلم

**مسئله** : لمونځ، د تلاوت سجده، دجنازې لمونځ، دکعبې طواف، دقرآن مسه کول، قرآن مجید ته لاس وروړل بغیر له اوداسه څخه جائز ندی.

**مسئله** : د حائضې اونفاسې ښځې اوهمدارنګه د ابې اودسه شخص لپاره دقرآن کریم په شان، تورات اونورو آسمانی کتابونو ته لاس وروړل هم مکروه دی. ((شامی، ج : ۱، ص : ۱۲۰، کبیری، ص : ۲۰)).

## د اوداسه سنتونه

((۱)) **نیت کول** : حضرت امام شاه ولی الله رحمه الله فرمایلی دی چه نیت د اعمالو په سلسله کښې یوڅو خبرې غواړی اوهغه دادی چه : ترټولو دمخه به ته هغه شې پیژنې چه دکوم شی قصد کوې اوته دا هم وپیژنه چه ته په دې شی باندې مامور یې، او ته د دې خبرې موافقت طلب کړه چه دهغې په باره کښې الله تعالی د عبادت په طور باندې پابند کړې یې.

له دي ځخه علاوه داراومدار د اعمالو په نیت سره دي، درسول اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دي چه: إِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ وَإِنَّمَا لِامْرِءٍ مَا نَوَىٰ، «بخاری، ج: ۱، ص ۲، مسلم، ج: ۲، ص: ۱۴۰».

**ترجمه**: داراومدار د اعمالو په نیت سره دي اوهر انسان ته هغه څه حاصلیږی چه دکوم ځیز نیت یی کړي وی.

او په یو حدیث کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد دي چه: وَنِيَّةُ الْمُؤْمِنِ خَيْرٌ مِّنْ عَمَلِهِ، «فیض القدیر، ج: ۲، ص: ۲۹۱، دبیهقی اوطبرانی په حواله».

**ترجمه**: دمؤمن نیت دهغه له عمل ځخه بهتر دي.

الله تعالی فرمایی: ﴿وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ﴾، «سورة البینة، آیة: ۵».

**ترجمه**: هغه خلکو ته حکم نه وو ورکړې شوې مګر صرف د دي خبرې چه خالص د الله تعالی عبادت کوونکی شی.

په عبادت کښې اخلاص بغیر دنیت له صحیح کولو ځخه متصور ندې، نیت چه څنګه وی عمل به هم هماغه شان وی، نیت د زړه قصد او ارادې ته وایی. په ژبه د الفاظو اداء کول ضروری ندی، عامو خلقو ته دا اجازت هم شته چه که هغوئ الفاظ دنیت وه وایی نوکوم حرج پکښې نشته، البته که دغه الفاظ دنیت ضروری اولازمی وګنی نوبیا دا بدعت دې.

**مسئله**: دحضرت امام ابوحنیفه، حضرت سفیان ثوری، حضرت امام اوزاعی، حضرت امام حسن بصری او حضرت امام مالك رحمهم الله په نیزد په اودس کښې نیت سنت دې. «السعایه، ج: ۱، ص: ۱۴۱».

**مسئله**: په عبادات غیر مقصوده کښې مثلاً د جامو وینځل دځای صفا کول له بدن ځخه نجاست لرې کولو، اودس او غسل وغیره کښې نیت شرط یا فرض ندې، البته مسنون دې، د دې لپاره چه اجر او ثواب حاصل کړې شی، او په عبادت مقصوده کښې لکه لمونځ، روژه، زکات، حج وغیره کښې نیت فرض او ضروری دې. «شرح وقایه، ج: ۱، ص: ۲۲، کبیری، ص: ۵۲».

(۲) **تسمیه**: یعنی بسم الله ویل له اوداسه ځخه مخکې دی «هدایه، ج: ۱، ص: ۵، شرح نقایه، ج: ۱، ص: ۵».

د دې یوڅو الفاظ په احادیثو کښې ذکر دی:

۱ - بِسْمِ اللَّهِ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ، «مجمع الزوائد، ج: ۱، ص: ۲۲۰، د طبرانی صغیر په حواله، اوسند یی هم حسن دې».

۲ - بِسْمِ اللَّهِ، «کنزالعمال، ج: ۹، ص: ۱۱۸».

۳ - بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ((دارقطنی، ج : ۱ ،ص : ۷۱ ، نسائی، ج : ۱ ، ص : ۲۵، سنن الکبری للبیهقی، ج : ۱ ، ص : ۴۳ . کبیری، ص : ۲۱ ، شرح نقایه، ج : ۱ ، ص : ۵)).

۴ - بِسۡمِ اللّٰهِ الۡعَظِیۡمِ وَالۡحَمۡدُ لِلّٰهِ عَلٰی دِیۡنِ الۡاِسۡلَامِ

دغه الفاظ له کوم صحیح او مرفوع روایت څخه ثابت ندی ، لیکن دابن همام په قول له فقهاء کرامو څخه نقل شوی دی . ((فتح القدیر، ج : ۱ ، ص : ۱۴)).

**مسئله** : که دا وه وایی چه : (لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَالۡحَمۡدُ لِلّٰهِ وَاَشۡهَدُ اَنۡ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ) نو پدې سره هم سنت اداء کیږی ( کبیری ص : ۲۱ ، فتح القدیر، ج : ۱ ، ص : ۱۴)).

په حدیث شریف کښې راغی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی :

لَاصَلٰوةَ لِمَنۡ لَّا وُضُوۡءَ لَهٗ وَلَا وُضُوۡءَ لِمَنۡ لَّمۡ یَذۡکُرِ اسۡمَ اللّٰهِ ، ((ابوداؤد، ج : ۱ ، ص : ۱۴، مستدرك حاکم، ج : ۱ ، ص : ۱۴۶ ، ابن ماجه، ص : ۳۲ ، دارقطنی، ج : ۱ ،ص : ۷۹)).

**ترجمه** : دهغه چا لمونځ نشته چه دچا اودس نه نوی اودهغه چا اودس نشته چه چا د الله پاك نوم وانخستلو ((یعنی دکاملې درجې اودس یی نشته)).

اَبِیۡ هُرَیۡرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنۡهُ - قَالَ مَنۡ تَوَضَّأَ وَذَکَرَ اللّٰهَ فَاِنَّهٗ یُطَهِّرُ جَسَدَهٗ کُلَّهٗ وَمَنۡ تَوَضَّأَ وَلَمۡ یَذۡکُرِ اسۡمَ اللّٰهِ لَمۡ یُطَهِّرۡ اِلَّا مَوۡضِعَ الۡوُضُوۡءِ ، ((دارقطنی، ج : ۱ ، ص : ۷۳ - ۷۴ ، سنن الکبری للبیهقی، ج : ۱ ، ص : ۴۴)).

**ترجمه** : له حضرت ابوهریرة ، حضرت ابن مسعود ، اوحضرت ابن عمر رضی الله تعالیٰ عنهم څخه روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی : چا چه اودس وکړو او د الله پاك نوم یی واخیسته نو پدې سره د ده ټول وجود پاکیږی اوچا چه دالله پاك نوم وانخستلو نو دهغه صرف د اوداسه اندامونه پاك شول .

**مسئله** : صحیح خبره داده چه دوه ځل بسم الله ویل دی : یو ځل له استنجاء نه وړاندې ((کله چه داستنجاء لپاره عورت لوڅوی له هغې نه مخکې)) اودوباره دنورو اعضاؤ د مینځلو لپاره ، ((هدایه، ج : ۱ ، ص : ۵، کبیری، ص : ۲۱)).

**مسئله** : که داودس په ابتداء کښې یی بسم الله ویل هیر شو نو په مینځ کښې په ویلو سره سنت نه اداء کیږی ځکه چه اودس ټول یو عمل دې په خلاف د طعام چه په هغې کښې هره لقمه ((ګوله)) ځان ځان ته عمل دې ، هلته سنت اداء کیږی ، ((کبیری، ص : ۲۲ ، کذا حققه ابن الهمام فی فتح القدیر، ج : ۱ ، ص : ۱۵)).

**مسئله** : بعضې خلق له اوداسه څخه وړاندې اعوذبالله وایی چه د دې حکم نشته اودا کار خلاف سنت دې .

**مسئله**: اودس مکمل کول پکار دی ځکه چه پدې هکله دا لاندې وعید راغلې دې:

عَنْ عَبْدِ اللهِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيْلٌ لِلْأَعْقَابِ مِنَ النَّارِ أَسْبِغُوا الْوُضُوْءَ. «مسلم، ج: ۱، ص: ۱۲۵، ابوداؤد، ج: ۱، ص: ۱۳».

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنه فرمایی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: هلاکت دې پوندو لره د اور، اودس مکمل کوئ. «یعنې د پوندو کوم ځای وچ مه پریږدئ».

(۳) **تثلیث**: یعنی درې، درې ځله د هر اندام وینځل په اودس کښې له نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه ثابت دی، په ټولو صحاح سته وو کښې د دې احادیث موجود دی.

(۴) **مسواک وهل**: مسواک وهل سنت دی. «هدایه، ج: ۱، ص: ۵، شرح نقایه، ج: ۱، ص: ۲، کبیری، ص: ۳۲ - ۳۳».

۱ - أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَرْفُوْعًا - لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِي لَأَمَرْتُهُمْ بِالسِّوَاكِ عِنْدَ كُلِّ صَلٰوةٍ «بخاری، ج: ۱، ص: ۱۲۲، مسلم، ج: ۱، ص: ۱۲۹».

**ترجمه**: حضرت ابوهریرة رضی الله تعالی عنه روایت کوی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: که ماپه خپل اُمت مشقت نه احساس کولې نو دهر لمانځه لپاره به مې د مسواک وهلو حکم ورته کړې وو.

۲ - عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مَرْفُوْعًا - عَشْرٌ مِّنَ الْفِطْرَةِ - (الی ان قال) - وَالسِّوَاكُ، «مسلم، ج: ۱، ص: ۱۲۹، ابن ماجه، ص: ۲۵».

**ترجمه**: حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها فرمایی چه نبی کریم صلی اله علیه وسلم فرمایلی دی: لس شیزونه له فطرت څخه دی چه له هغې څخه مسواک هم دې.

۳ - عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلسِّوَاكُ مَطْهَرَةٌ لِلْفَمِ مَرْضَاةٌ لِلرَّبِّ. «مسند احمد، ج: ۲، ص: ۲۲، دارمی، ج: ۱، ص: ۱۴۰، نسائی، ج: ۱، ص: ۵».

**ترجمه**: حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها فرمایی چه: رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی چه: مسواک خوله صفا کوونکې اورب راضی کوونکې دې.

۴ - وَعَنْ أَبِي أَيُّوْبَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعٌ مِنْ سُنَنِ الْمُرْسَلِيْنَ (الی ان قال) وَالسِّوَاكُ.

**ترجمه**: حضرت ابوایوب انصاری رضی الله تعالی عنه له نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه روایت کړې دې چه څلور شیزونه د انبیاء کرامو سنت دی چه یو له هغو څخه مسواک هم دې.

۵ - عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَفْضُلُ الصَّلٰوةُ الَّتِيْ يُسْتَاكُ لَهَا عَلَى الصَّلٰوةِ الَّتِيْ لَا يُسْتَاكُ لَهَا سَبْعِيْنَ ضِعْفًا. ، زجاجة المصابيح، ج : ۱، ص : ۹۵، دبیهقی شعب الایمان په حواله».

**ترجمه** : حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها فرمایی چه رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی چه : دکوم لمونځ لپاره مسواك ووهل شی هغه اویا درجې له هغه لمونځ ښخه غوره دې دکوم لپاره چه مسواك نه وی وهل شوې.

**مسئله** : مسواك له هرې ونې ښخه جائز دې، بهتر پیلو ، نیم، کیکر، زیتون سُکهـ چین وغیره ، تریخ ، لوند ،وچ هرقسم مسواك استعمالول صحیح دی . «کبیری، ص : ۳۳».

**مسئله** : مسواك دورې ګوتې برابر دبل اوتقریباًچه یوه لویشت وی، «شرح نقایه، ج : ۱، ص : ۲».

**مسئله** : مسواك په عرض «پلنوالی» سره وهل پکار دی نه په طول سره ، یعنی مسواك په غاښونو کښې ښی طرف او چپ طرف ته وهل پکار دی نه پورته اولاندې «شرح نقایه، ج : ۱ ، ص : ۲ ، کبیری ، ص : ۳۳».

عَنْ بَهْزٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَاكُ عَرْضًا ، «کنزالعمال، ج : ۹ ، ص : ۲۷۲، د ابونعیم اوابن عساکر په حواله».

**ترجمه** : له حضرت بهز رضی الله عنه ښخه روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به مسواك په پلنوالی سره وهلو

**مسئله** : برش هم استعمالولې شی پدې شرط چه له حرامو وینښتانو ښخه نه وی جوړ شوې لیکن په هغې سره سنت نه اداء کیږی.

**مسئله** : مسواك تر سرپیو پورې خاص ندې بلکه د ښځو لپاره هم سنت دې.

(۵) **مضمضه** : یعنی په خوله کښې اوبه اچول او خوله وینځل . «هدایه، ج : ۱، ص : ۵، ص : شرح نقایه، ج : ۱، ص : ۲».

**مسئله** : په غسل او اودس کښې غرغره کول سنت دی مګر داچه د روژې حالت وی.

عَنْ عَاصِمِ بْنِ لَقِيْطٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأْتَ فَأَبْلِغْ فِي الْمَضْمَضَةِ وَالْاِسْتِنْشَاقِ إِلَّا أَنْ تَكُوْنَ صَائِمًا. «نیل الاوطار، ج : ۱ ، ص : ۱۵۷».

**ترجمه** : حضرت عاصم رضی الله عنه له خپل پلار ښخه روایت کوی ، هغه وایی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی : کله چه تاسې اودس کوئ نو په مضمضه او استنشاق کښې ښه مبالغه کوئ مګر د روژې په حالت کښې مبالغه مه کوئ.

(۶) **استنشاق** : په پوزه کښې اوبه اچول او وينځل او صفا کول « هدايه، ج : ۱ ، ص : ۵ ، شرح نقايه ، ج : ۱ ،ص : ۷ ».

۱ - حضرت ابوهريرة رضى الله تعالى عنه روايت كوى چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم فرمايلى دى چه : (فَلْيَسْتَنْثِرْ ثَلَاثًا). ، «بخاری، ج : ۱ ، ص : ۱۲۵ ، مسلم، ج : ۱ ، ص : ۱۲۴».

**ترجمه** : له تاسې څخه څوك اودس كوى نو په پوزه كښې دې درځله اوبه اچوى اوبنه دې صفا كوى.

۲ - عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ أَحَدُكُمْ فَلْيَجْعَلْ فِي أَنْفِهِ مَاءً ثُمَّ لِيَسْتَنْثِرْ. ، «بخاری، ج : ۱ ، ص : ۲۸ ، مسلم، ج : ۱ ، ص : ۱۲۴ ، ابوداؤد، ج : ۱ ، ص : ۱۹ ، نسائی، ج : ۱ ،ص : ۲۲».

**ترجمه** : له حضرت ابوهريرة رضى الله تعالى عنه څخه روايت دې چه رسول كريم صلى الله عليه وسلم فرمايلى دى : څوك چه له تاسې څخه اودس كوى نو هغه ته پكار دى چه په پوزه كښې اوبه واچوى او بنه يې صفا كړى.

(۷) **د ږيرې خلال كول** : د ږيرې خلال كول هم سنت دى ، «هدايه، ج : ۱ ، ص : ۵ ، ص : شرح نقايه، ج : ۱ ، ص : ۷».

عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ أَخَذَ كَفًّا مِنْ مَاءٍ فَأَدْخَلَهُ تَحْتَ حَنَكِهِ فَخَلَّلَ بِهِ لِحْيَتَهُ وَقَالَ هٰكَذَا أَمَرَنِي رَبِّي ، «ابوداؤد، ج : ۱ ، ص : ۱۹».

**ترجمه** : له حضرت انس رضى الله تعالى عنه څخه روايت دې چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم به كله اودس كولو نو اوبه به يې په لاس كښې واخيستې او دزنې لاندې به يې داخلې كړې او په هغې به يې ږيره مباركه خلال كړه او فرمايل به يې چه ما ته زما رب دغه شان حكم كړې دې.

(۸) **دګوتو خلالول** : د لاسوتو او پښو د ګوتو خلالول سنت دى ، «هدايه، ج : ، ص : ۵ ، شرح نقايه ، ج : ۱ ، ص : ۷».

۱ - عَنْ لَقِيطِ بْنِ صَبِرَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأْتَ فَأَسْبِغِ الْوُضُوءَ وَخَلِّلْ بَيْنَ الْأَصَابِعِ. ، «ترمذی، ۲ : ۳۲ ، حسن صحيح، مستدرك حاكم ، ج ۱ ، ص : ۱۴۷ ، نسائى ، ج : ۱ ،ص : ۳۱».

**ترجمه** : لقيط بن جبير له خپل پلار څخه روايت كوى چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم فرمايلى دى : كله چه ته اودس كوې نو په مكمل ډول اودس وكړه اودګوتو په مينځ كښې خلال كوه.

۲ - عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا مَرْفُوْعًا - خَلِّلُوْا بَيْنَ أَصَابِعِكُمْ لَا يُخَلِّلُ اللّٰهُ تَعَالَى بَيْنَهَا بِالنَّارِ. ، «دارقطنى،

ص : ۹۵ ، ضعیف».

**ترجمه** : له حضرت عائشې رضی الله تعالی عنها څخه روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی : دګوتو په مینځ کښې خلال کوئ ، چه الله تعالی یې د قیامت په ورځ د دوزخ په اور خلال نکړي.

(۹) **د ټول سرمسح کول** : یوځل د ټول سر مسح کول سنت دی . (هدایه، ج : ۱ ، ص : ۶ . شرح نقایه، ج : ۱ ،ص : ۸).

حضرت عبدالله بن زید رضی الله تعالی عنه فرمایي چه رسول کریم صلی الله علیه وسلم اودس وکړو نو (فَمَسَحَ بِرَأْسِهِ وَأَدْبَرَبِهَا) ، (بخاری، ج : ۱ ، ص : ۳۲ ، ترمذی، ص : ۳۱) . «یعنی د ټول سر مسح یې وکړه مخ او شا ته».

(۱۰) **د غوږونو مسح کول** : د غوږونو مسح کول هم سنت دی . (هدایه، ج : ۱ ، ص : ۵ ، شرح نقایه ، ج : ۱ ، ص : ۸).

عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَسَحَ بِرَأْسِهِ وَاُذُنَيْهِ بَاطِنَهُمَا بِالسَّبَّاحَتَيْنِ وَظَاهِرَهُمَا بِإِبْهَامَيْهِ ، (نسائی، ج : ۱ ، ص : ۲۹).

**ترجمه** : له حضرت عبدالله بن عباس رضي الله تعالی عنه څخه روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دسر مسحه وکړه او د دواړو غوږونو مسح یې هم وکړه ، د غوږونو د داخل مسح یې د شهادت په ګوتو اوظاهری حصې مسح یې په غټو ګوتو سره وکړه .

(۱۱) **ترتیب** : په ترتیب سره اودس کول هم سنت دی ، (هدایه، ج : ۱ ، ص : ۶ ، شرح نقایه، ج : ۱ ، ص : ۸).

له نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه په غیرترتیب سره اودس ثابت ندي.

(۱۲) **موالات** : یعني پیوست اودس کول چه د یو اندام د وینځلو بیا دبل اندام د وینځلو پورې باید دومره وقفه نه وي چه اول اندام یې وچ شي . (شرح نقایه ، ج : ۱ ، ص : ۹ ، کبیری، ص : ۲۸).

(۱۳) **دلک** : یعنی د اوداسه د اعضاؤ مبنل هم سنت دی . (شرح نقایه، ج : ۱ ، ص : ۹ . کبیری، ج : ۱ ، ص : ۲۷).

**مسئله** : ګوته (ګوتمه) که په لاس وی نو د اودس په وخت کښې هغه ښورول سنت دی که آزاده وی ، اوکه تنګه وی نو حرکت ورکول ورته ضروری دی چه او به لاندې ورته ورسیږي .

۱ - عَنْ اَبِي رَافِعٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا تَوَضَّأَ حَرَّكَ خَاتَمَهُ . (دارقطنی، ج : ۱ ، ص : ۸۳).

**ترجمه** : له حضرت ابورافع رضی الله تعالی عنه څخه روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه

وسلم به کله اودس کولو نو ګوته «ګوتمه» به یې ښوروله.

۲ - عَنْ مُجَمِّعِ بْنِ عِتَابٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ وَضَّأْتُ عَلِيًّا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَحَرَّكَ خَاتَمَهُ. «ابن ابی شیبه، ج: ۱، ص: ۳۹».

**ترجمه**: له حضرت مجمع بن عتاب څخه روایت دې، هغه وایی چه ما حضرت علی رضی الله تعالی عنه ته د اودس اوبه اچولې نوهغه خپله ګوتمه ښه وښوروله.

۳ - عَنْ أَبِي تَمِيمٍ الْجَيْشَانِيِّ أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عَمْرٍو كَانَ إِذَا تَوَضَّأَ حَرَّكَ خَاتَمَهُ. «مصنف ابن ابی شیبه، ج: ۱، ص: ۳۹».

**ترجمه**: له حضرت ابو تمیم جیشانی څخه روایت دې چه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنه به کله اودس کاوه نو خپله ګوته به یې ښوروله.

## د اودس مستحب

۱ - بغیر له عذر څخه له بل چا نه په اودس کولو کښې مرسته غوښتل «شرح نقایه، ج: ۱، ص: ۹، کبیری، ص: ۳۱».

۲ - قبلې ته مخ کول، «شرح نقایه، ج: ۱، ص: ۹».

۳ - له ښی طرف څخه شروع کول «شرح نقایه، ج: ۱، ص: ۹، هدایه، ج: ۱، ص: ۲».

(۱) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ التَّيَمُّنَ مَا اسْتَطَاعَ فِي شَأْنِهِ كُلِّهِ فِي طُهُورِهِ وَتَرَجُّلِهِ وَتَنَعُّلِهِ. «بخاری، ج: ۱، ص: ۲۱، مسلم، ج: ۱، ص: ۱۲۲».

**ترجمه**: حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها فرمایی چه رسول کریم صلی الله علیه وسلم به په ټولو کارونو کښې چه څومره به ممکن وو ښې طرف یې خوښاوه، په اوداسه کښې، په سر ګومنځ کولو کښې او په پیزار پښو کولو کښې.

(۲) عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا لَبِسْتُمْ وَإِذَا تَوَضَّأْتُمْ فَابْدَؤُوا بِمَيَامِنِكُمْ. «ابوداؤد، ج: ۲، ص: ۲۱۵، ابن ماجه، ج: ۱، ص: ۳۳».

**ترجمه**: له حضرت ابوهریرة رضی الله تعالی عنه څخه روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: کله چه جامې اغوندئ یا اودس کوئ نو له ښی طرف څخه شروع کوئ.

۴ - **د غاړې مسحه کول**: صحیح خبره داده چه دغاړې مسحه کول له مستحباتو څخه دی چه دهغې کول زیات غوره دی نسبت ترک کولو ته یې. «شرح نقایه، ج: ۱، ص: ۹».

۱ - حضرت عبدالله بن زید بن عاص انصاری روایت کوی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم

اودس وکړو اودسر مسحه یی وکړه. فَأَقْبَلَ بِهِمَا وَأَدْبَرَ بَدَأَ بِمُقَدَّمِ رَأْسِهِ ثُمَّ ذَهَبَ بِهِمَا إِلَى قَفَاهُ، «مسلم، ج: ۱، ص: ۱۳۲، بخاری، ج: ۱، ص: ۳۱».

**ترجمه**: یعنی د سر په مخکنی حصه یی شروع وکړه بیا یی دواړه لاسونه شاته بوتلل. «قفا د سر دشا هغه حصې ته وای چه د غاړې سره متصل وی» مناسب داده چه دمر له مسحې سره په غاړه پاندې هم لاس راتیر کړی.

۲ - عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ تَوَضَّأَ وَمَسَحَ بِيَدَيْهِ عَلَى عُنُقِهِ وُقِيَ الْغُلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، «تلخیص الحبیر، ج: ۱، ص: ۹۳».

**ترجمه**: له حضرت ابن عمر رضی الله تعالی عنه څخه روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: کوم شخص چه اودس وکړو او په دواړو لاسونو یی د غاړې مسح وکړه نو دغه سړې به د قیامت په ورځ له طوق څخه وساتل شی «یعنی دهغه په غاړه کښې به دعذاب طوق نه اچول کیږی».

۳ - عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ إِذَا مَسَحَ رَأْسَهُ مَسَحَ قَفَاهُ مَعَ رَأْسِهِ، «بیهقی، ج: ۱، ص: ۶۰».

**ترجمه**: مجاهد له ابن عمر رضی الله تعالی عنه څخه روایت کړې دې چه هغه به کله د سر مسحه کوله نو غاړه به یی هم له سر سره مسح کوله.

۵ - **دلک**: یعنی په اوداسه کښې د اندامونو موښل. «دا صحیح خبره ده چه دلك له مستحباتو څخه دې اگرچه دهغې ذکر په د اوداسه په سنتونو کښې شوې دې».

۶ - په اطمینان سره اودس کول.

۷ - خپلې جامې د اوداسه د اوبو له څاڅکو څخه ساتل.

۸ - د هر فرض لمانځه لپاره تازه اودس کول.

۹ - غوږوالی «گوشواری» او گوتمې ته حرکت ورکول.

كَمَا فِي حَدِيثِ أَبِي رَافِعٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ وُضُوءَ الصَّلَوٰةِ حَرَّكَ خَاتَمَهُ فِي إِصْبَعِهِ، «دارقطنی، ج: ۱، ص: ۸۳، بن ماجه، ص: ۳۵».

**ترجمه**: لکه چه د حضرت ابورافع په حدیث کښې راغی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به کله اودس کولو نوگوتمه به یی ښوروله.

«بعضې علماؤ دا په مستحبات کښې شمار کړې دې».

۱۰ - مخکې له وخت نه اودس کول.

۱۱ - له اودس څخه وروسته که مکروه وخت نه وی نو دوه رکعته لمونځ تحية الوضوء اداء کول مستحب دی.

۱۲ - له اودس څخه وروسته دعاء ګانې لوستل.

# د اوداسه دعاګانې

۱ - اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُه . «مسلم، ج : ۱، ص : ۱۲۲».

**ترجمه** : زه ګواهي ورکوم په دې خبره چه د الله تعالی نه بغير بل څوك د عبادت لائق نشته ، هغه يو دی اوشريك نلري ، اومحمد «صلی الله عليه وسلم» دهغه رسول دی.

۲ - اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنَ التَّوَّابِيْنَ وَاجْعَلْنِيْ مِنَ الْمُتَطَهِّرِيْنَ «ترمذی، ص : ۳۴».

**ترجمه** : يا الله ! ما له توبه ګوونکو څخه وګرځوه او ما له طهارت اوپاکې حاصلونکو څخه وګرځوه.

۳ - سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ اَسْتَغْفِرُكَ اللّٰهُمَّ وَاَتُوْبُ اِلَيْكَ. «ابن سنی، ص : ۲۲».

**ترجمه** : يا الله ! ستا ذات پاك دی اوزه ستا حمد وايم او شاهدی وايم چه نشته لائق د عبادت مګر ته يې ، له تا څخه بښنه غواړم يا الله ! اوتاته توبه وباسم.

۴ - اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ ذَنْبِيْ وَوَسِّعْ لِيْ دَارِيْ وَبَارِكْ لِيْ فِيْ رِزْقِيْ ، «ابن سنی، ص : ۲۱».

**ترجمه** : يا الله ! بښنه غواړم له تا نه دګناهونو خپلو او زما كور فراخه كړې اوزما په رزق كښې بركت واچوی.

**مسئله** : له اوداسه څخه وروسته بعضې حضرات «انا انزلناه» وايی ، ليکن د دې له کوم صحيح روايت څخه ثبوت نشته، دبعضې مشائخو په معمولاتو کښې د «انا انزلناه» اونورو دعاګانو ويلو ذکر شته ليکن له صحيح احاديثو څخه دهغې ثبوت نشته. اوکوم روايات چه په دې سلسله کښې ذکر کيږی هغه قابل د اعتبار ندی، په هغې التزام كول او دهغې مستحب ګڼل خلاف سنت دی.

**مسئله** : له اودس څخه وروسته په دستمال او يا دستپال «توليه» وغيره باندې د اندامونو وچول جائز دی:

عَنِ الْحَسَنِ وَابْنِ سِيْرِيْنَ رحمهما الله قَالَا : لَا بَأْسَ بِاَنْ يَّمْسَحَ الرَّجُلُ وَجْهَهُ مِنَ الْوُضُوْءِ قَبْلَ اَنْ يُّصَلِّيَ بِالْمِنْدِيْلِ اَوْقَالَ بِالثَّوْبِ. «مصنف عبدالرزاق، ج : ۱ ،ص : ۱۸۴».

**ترجمه** : حضرت امام حسن بصری او حضرت امام ابن سيرين رحمهما الله فرمايی : له لمانځه نه

وړاندې او له اودس کولو نه وروسته که څوك خپل مخ په دستمال وغيره باندې پاك کړي نو پدې کښې کوم حرج نشته.

## داوداسه مکروهات

۱ - په مسجد کښې اودس کول مکروه دی ، د دې لپاره چه مستعملې اوبه په مسجد کښې تويېږي نشي.

۲ - په ناپاك اونجس ځای کښې اودس کول مکروه دی.

۳ - مخامخ قبلې ته مخاط «دپوزې ګندګی» اوبلغم توکول مکروه دی.

۴ - په اوداسه کښې بغير له ضرورت څخه دنيوی خبرې کول «نورالايضاح، ص: ۸».

۵ - مخ ته په زوره اوبه اچول «نورالايضاح، ص: ۸».

۶ - په اودس کښې ډيرې اوبه مصرفول - اسراف هم ګناه ده «نورالايضاح، ص: ۸».

۷ - په ښی لاس پوزه صفا کول.

## د اودس ماتوونکی

**په کومو خيزونو چه اودس ماتيږی هغه دا دی:**

(۱) د وړو او غټو بولو (متيازو) له لارې چه څه خارج شی «مثلاً متيازې، باد، چينجی وغيره» نو دا ټول اودس ماتوی، (هدايه، ج: ۱، ص: ۷، شرح نقايه، ج: ۱، ص: ۹، کبيری، ص: ۱۲۴).

۱ - الله تعالی فرمايی: ﴿أَوْ جَآءَ أَحَدٌ مِّنكُم مِّنَ ٱلْغَآئِطِ﴾، (سورة المائده، آيت: ۶).

**ترجمه**: اويا له تاسو څخه څوك له قضاء حاجت څخه فارغ شی او لمانځه ته راشی نو د لمانځه لپاره ورته طهارت کول ضروری دی.

۲ - عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَعَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا اَلْوُضُوْءُ مِمَّا خَرَجَ، (بيهقی، ج: ۱، ص: ۱۱۶).

**ترجمه**: له حضرت عبدالله بن عباس اوحضرت علی رضی الله تعالی عنهما څخه نقل دی چه اودس کول له هغه څيزونو څخه ضروری دی چه له بدن څخه خارج شی.

۳ - عَنْ عَطَاءِ بْنِ اَبِيْ رَبَاحٍ قَالَ فِي الَّذِيْ يَتَوَضَّأُ وَيَخْرُجُ الدُّوْدُ مِنْ دُبُرِهٖ قَالَ عَلَيْهِ الْوُضُوْءُ وَكَذٰلِكَ قَالَ الْحَسَنُ وَجَمَاعَةٌ. (بيهقی، ج: ۱، ص: ۱۱۶، ابن ابی شيبه، ج: ۱، ص: ۳۹، مصنف عبدالرزاق، ج: ۱، ص: ۱۲۴).

**ترجمه**: حضرت عطاء بن ابی رباح وايی چه څوك اودس کوی او د ده د لوئ اودس اتی له ځای څخه چينجې ووزی نو په ده باندې دوباره اودس کول لازم د ، همدارنګه حسن او يوجامعت دفقهاء

کرامو او محدثینو هم ویلی دی.

۴ - قَالَ عَطَاءٌ فِيمَنْ يَخْرُجُ مِنْ دُبُرِهِ الدُّودُ أَوْ مِنْ ذَكَرِهِ نَحْوُ الْقَمْلَةِ يُعِيدُ الْوُضُوءَ «بخاری، ج : ۱، ص : ۲۹».

**ترجمه** : له حضرت عطاء څخه نقل شوی دی چه دکوم شخص له دُبر او یا له ذکر څخه دسپګې په اندازه چینجې خارج شی نو په هغه باندې دوباره اودس کول لازم دی.

۵ - قَالَ عَطَاءٌ تَوَضَّأْ مِنْ كُلِّ حَدَثٍ مِنَ الْبَوْلِ وَالْخَلَاءِ وَالْفُسَاءِ وَالضُّرَاطِ وَمِنْ كُلِّ حَدَثٍ يَخْرُجُ مِنَ الْإِنْسَانِ، «مصنف عبد الرزاق، ج : ۱ ،ص : ۱۳۹».

**ترجمه** : حضرت عطاء فرمایی چه اودس کوه ! له هر حدث څخه که بول وی او که غائط وی یا بې آوازه باد او هوا وی او یا آواز لرونکې هوا وی یا بل کوم حدث وی چه له انسان څخه خارج شی

(۲) **وینه** ، زوې ، زیړې او به وغیره چه دجسم له کومې برخې څخه خارج شی اودس وربانډې ماتیږی. «جامع الصغیر، ص : ۷ ، هدایه، ج : ۱ ، ص : ۱۰ ، شرح نقایه، ج : ۱، ص : ۱۰ ، کبیری، ص : ۱۳۱».

۱ - عَنْ نَافِعٍ أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ كَانَ إِذَا رَعَفَ انْصَرَفَ فَتَوَضَّأَ ، «موطأ امام مالك، ص : ۲۷».

**ترجمه** : حضرت نافع وایی چه د عبدالله بن عمر به کله له پوزې څخه وینه لاړه نو دوباره به یی اودس کاوه.

۲ - عَنِ الْحَسَنِ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ كَانَ لَا يَرَى الْوُضُوءَ مِنَ الدَّمِ إِلَّا مَا كَانَ سَائِلًا. «مصنف ابن ابی شیبه، ج : ۱ ، ص : ۱۳۷».

**ترجمه** : حضرت حسن بصری رحمه الله به په وینه اودس مات نه بللو ترڅو چه به بهیدونکې نوه.

**مسئله** : که په سترګه کښې دننه څه دانه وغیره ماته شوه او بهر راونه وتل نو اودس نه ماتیږی، او که چیرې بهر راوتل نو اودس ماتیږی ، «شرح نقایه، ج : ۱ ، ص : ۲۷».

**مسئله** : که په غوږ کښې درد وی او اوبه وغیره بیرون راوه وتلې نو اودس ماتیږی.

**مسئله** : که له لاړو سره وینه راووتله نو چه کوم شې غالب وی حکم به یی دهغې وی. «شرح نقایه، ج : ۱ ،ص : ۱۰ ، شرح وقایه، ج : ۱ ،ص : ۲۷».

۱ - عَنِ الْحَسَنِ فِي رَجُلٍ بَزَقَ فَرَأَى فِي بُزَاقِهِ دَمًا أَنَّهُ لَمْ يَرَ ذٰلِكَ شَيْئًا حَتّٰى يَكُونَ دَمًا غَلِيظًا يعني الْبُزَاقُ ، «مصنف ابن ابی شیبه، ج : ۱ ،ص : ۱۲۴».

**ترجمه** : حضرت حسن بصری فرمایلی دی چه چا په خپلو لاړو کښې وینه ولیدله نو ترڅو پورې چه تینګه وینه نوی یعنی په لاړو غالبه نه وی نو ترهغو اودس پرې نه ماتیږی.

۲ - عَنْ إِبْرَاهِيمَ فِي الرَّجُلِ يَبْزُقُ فَيَكُونُ فِي بُزَاقِهِ الدَّمُ قَالَ إِذَا غَلَبَتِ الْحُمْرَةُ الْبَيَاضَ تَوَضَّأَ وَإِذَا غَلَبَ

الْحَيَاضُ الْحُمْرَةُ لَمْ يَتَوَضَّأْ ، (ابن ابي شيبه، ج: ۱ ، ص: ۱۲۴).

**ترجمه** : حضرت ابراهیم نخعی فرمایی چه : څوك لاړي توكړي او سپين والي يي په سور والي غالب وي نو اودس دې نه كوي.

۳ - عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ فِي الرَّجُلِ يَبْصُقُ دَمًا ، قَالَ إِذَا كَانَ الْغَالِبُ عَلَيْهِ الدَّمَ تَوَضَّأَ . ، ( مصنف عبد الرزاق، ج: ۱ ،ص: ۱۴۸).

**ترجمه** : امام ابن سيرين هم فرمايي چه : كوم سړې لاړې توكړي او وينه پكښې وي ، كه وينه په لاړو غالبه وي نو اودس دې وكړي او كه نه نو ندې كوي.

**مسئله** : په حجامت او ښكر لګولو سره هم اودس ماتيږي اګرچه په بدن د وينې ښبه نوي.

**مسئله** : په ستن (انجکشن) لګولو سره اودس ماتيږي كه چيرې وينه يا رطوبت خارج شوې وي.

**مسئله** : له پوزې نه په وينې راتللو سره د امام ابوحنيفه، سفيان ثوري، اسحاق بن راهويه، امام احمد رحمهم الله وغيره په نيزد اودس ماتيږي، د امام شافعي او امام مالك رحمهما الله په نيزد پرې نه ماتيږي.

عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ إِذَا رَعُفَ انْصَرَفَ فَتَوَضَّأَ ، موطا اما مالك، ص: ۳۷).

**ترجمه** : له نافع نه روايت دې چه د حضرت ابن عمر رضی الله عنه به كله له پوزې څخه وينه لاړه نو را وبه ګرځيده او اودس به يې وكړو.

۳ - په ډكه خوله قي كول اودس ماتوي، (جامع الصغير، ص: ۷ ، هدايه، ج: ۱، ص: ۸ ، شرح نقايه، ج: ۱ ، ص: ۱۰).

۱ - عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَصَابَهُ قَيْءٌ أَوْ رُعَافٌ أَوْ قَلَسٌ أَوْ مَذْيٌ فَلْيَنْصَرِفْ فَلْيَتَوَضَّأْ ، (ابن ماجه، ص: ۸۵ ، دارقطني، ج: ۱، ص: ۱۵۵).

**ترجمه** : له حضرت عائشې رضی الله عنها څخه روايت دې چه هغه فرمايي چه رسول اكرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چه : چا ته قي ورغې او يا يې له پوزې نه وينه لاړه ، يا ترې مذي خارج شول، هغه دې لاړې او اودس دې وكړي ((څكه چه اودس يې مات شو)).

۲ - عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاءَ فَتَوَضَّأَ فَلَقِيْتُ ثَوْبَانَ فِي مَسْجِدِ دِمَشْقَ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لَهُ فَقَالَ صَدَقَ وَأَنَا صَبَبْتُ لَهُ وَضُوْءَهُ ، (ترمذي، ص: ۳۹ ، مسند احمد، ج: ۲ ، ص: ۴۴۳).

**ترجمه** : حضرت ابودرداء رضی الله تعالی عنه فرمايي چه رسول اكرم صلى الله عليه وسلم قئ وكړو او اودس يې وكړو، ((معدن بن ابی طلحه وايي چه)) ما له حضرت ثوبان رضی الله تعالی عنه

سره «چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم خادم وو» ملاقات وکړو د دمشق په جامع مسجد کښې . او دا خبره مې ورته وکړه . نوهغه وویل چه ابو درداء ریښتیا ویلی دی ځکه چه ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د اودس اوبه اچولې وې .

٣ - مُغِيْرَةَ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ سَاَلْتُهُ عَنِ الْقَلَسِ فَقَالَ ذٰلِكَ الدَّسْعُ اِذَا ظَهَرَ فَفِيْهِ الْوُضُوْءُ . ابن ابی شیبه، ج : ١ ، ص : ٤٠ ».

**ترجمه** : حضرت مغیره د حضر ابراهیم نه دقئ په هکله پوښتنه وکړه ، هغه وویل : که په ډکه خوله وی نو له دې سره اودس ماتیږی او اودس کول ضروری دی .

٤ - قَالَ عَطَاءٌ فِي الْقَلَسِ وُضُوْءٌ (ایضًا) .

**ترجمه** : حضرت عطاء رحمه الله فرمایی چه په قئ کولو سره اودس ضروری دې .

٥ - وَقَالَ عَطَاءٌ هُوَ حَدَثٌ . ایضًا.

**ترجمه** : حضرت عطاء رحمه الله وایی : دا بې اودسی ده «حدث دې» .

**مسئله** : په قئ کښې که چیرته بلغم خارج شی نو اودس نه ماتیږی ، «جامع صغیر ، ص : ٧ ، شرح نقایه ، ج : ١ ، ص : ١١ ، هدایه ، ج : ١ ، ص : ٨ ، شرح وقایه ، ج : ١ ، ص : ٢٨ ، کبیری ، ص : ١٢٩ » .

٤ - «نوم مضطجعًا» یعنی په اړخ باندې خوب کول او یا کوم شی ته په تکیه کولو سره خوب کول که چیرې هغه څیز ترینه لرې شی نو پرې وزی او یا سم تیک څملې نو په دې ټولو صورتونو کښې اودس ماتیږی ، «هدایه ، ج : ١ ، ص : ٩ ، شرح نقایه ، ج : ١ ، ص : ١١ » .

١ - عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا الْوُضُوْءُ عَلٰى مَنْ نَامَ مُضْطَجِعًا فَاِنَّهُ اِذَا اضْطَجَعَ اِسْتَرْخَتْ مَفَاصِلُهُ . «ابوداؤد ، ج : ١ ، ص : ٢٧ ، ترمذی ، ص : ٣٧ ، بیهقی ، ج : ١ ، ص : ١٢١ » .

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عباس رضی الله تعالیٰ عنه فرمایی چه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چه اودس په هغه چا لازم دې چه په اړخ پروت وی او ویده شوې وی ځکه کله چه دې په اړخ پریوزی نو اندامونه یې سست شی «چه غالب ګمان د هوا د خارجیدو دې» .

امام ابوداؤد فرمایی چه د دې حدیث راوی ابو خالد یزید الانی رحمة الله دې چه د هغه سماع له حضرت قتادة څخه ثابته نده . لیکن دا خبره صحیح نده ځکه چه علامه ماردینی په الجوهر النقی کښې د کمال په حواله لیکلی دی چه سماع یې ثابته ده او امام ابن جریر دا حدیث صحیح ګڼلې دې ، «الجوهر النقی علی البیهقی ، ج : ١ ، ص : ١٢١ » .

٢ - زَيْدِ ابْنِ اَسْلَمَ اَنَّ عُمَرَ ابْنَ الْخَطَّابِ قَالَ مَنْ نَامَ مُضْطَجِعًا فَلْيَتَوَضَّأْ . «مصنف عبدالرزاق ، ج : ١ ، ص : ١٢٩ ، مصنف ابن ابی شیبه ، ج : ١ ، ص : ١٣٤ » .

**ترجمه** : له زید بن اسلم څخه روایت دي چه حضرت عمربن خطاب رضی الله تعالی عنه فرمایلی دی چه څوك ارخ باندې ویده شی نو اودس دې وکړی.

**مسئله** : قیام، قعود، رکوع، سجده «په مسنون هیئت سره» او د قعدې په حالت کښې په خوب سره اودس نه ماتیږی، «هدایه . ج : ۱ ، ص : ۹ ، شرح نقایه، : ۱ ، ض : ۱۱ ، کبیری، ص : ۱۳۷».

۱ - عَنْ اَنَسٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ : كَانَ اَصْحَابُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَنَامُوْنَ فَیُصَلُّوْنَ وَلَا یَتَوَضَّؤُوْنَ ، «ابوداؤد، ج : ۱ ، ص : ۲۷ ، ترمذی، ص : ۳۷».

**ترجمه** له حضرت انس رضی الله تعالی عنه څخه روایت دې چه درسول اکرم صلی الله علیه وسلم صحابه کرام به ویده وو ، بیا به یی لمونځ کاوه او اودسونه به یی نه کول.

۲ - اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لَا عَلَی السَّاجِدِ النَّائِمِ وُضُوْءٌ حَتّٰی یَضْطَجِعَ فَاِذَا اضْطَجَعَ تَوَضَّأَ . «بیهقی، ج : ۱ ، ص : ۱۳۲».

**ترجمه** : حضرت ابوهریرة رضی الله تعالی عنه وایی چه په سجده کښې په ویده سړی اودس نشته ترڅوپورې چه په اړخ نوی ویده شوې ، کله چه په اړخ ویده شو نو اودس دې وکړی.

۳ - عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ كَانَ یَنَامُ وَهُوَ جَالِسٌ فَلَا یَتَوَضَّأُ وَاِذَا نَامَ مُضْطَجِعًا اَعَادَ الْوُضُوْءَ . «مصنف عبدالرزاق، ج : ۱ ، ص : ۱۲۵».

**ترجمه** : حضرت نافع له ابن عمر رضی الله تعالی عنه څخه روایت کوی چه هغه به ویده کیده په داسې حالې کښې چه ناست به وو خو اودس به یی نه کاوه او کله به چه په اړخ ویده شو نو اودس به یی راګرځاوه.

**۵** . په بیهوشی او لیونتوب سره اودس ماتیږی. «هدایه، ج : ۱ ، ص : ۹ ، شرح نقایه ، ج : ۱ ، ص : ۱۳ ، کبیری، ص : ۱۴۰».

۱ - عَنْ حَمَّادٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ قَالَ : اِذَا اَفَاقَ الْمَجْنُوْنُ تَوَضَّأَ وُضُوْءَهُ لِلصَّلٰوةِ ، «مصنف عبدالرزاق، ج : ۱ ، ص : ۱۳۳».

**ترجمه** : له حضرت حماد رحمه الله څخه روایت دې . هغه وایی کله چه لیونې جوړشی نو اودس دې وکړی د لمانځه لپاره.

۶ - د رکوع او سجدې په لمانځه کښې د بالغ شخص په قهقهه خندل «هغه خندا چه په څنګ کښې یی بل سړې واوری» لمونځ او اودس دواړه ماتوی.

۱ - عَنْ اَبِیْ مُوْسٰی قَالَ : اَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنْ ضَحِكَ اَنْ یُعِیْدَ الْوُضُوْءَ وَیُعِیْدَ الصَّلٰوةَ ، «مجمع الزوائد ، ج : ۱ ، ص : ۲۴۶ ، د طبرانی په حواله په کبیر کښې».

**ترجمه** : له حضرت ابو موسی اشعری څخه روایت دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم حکم کړې هغه چا ته چه په لمانځه کښې یې وخندل د اودس او لمانځه دواړو د راګرځلو .

۲ - عَنْ مَعْبَدِ ابْنِ اَبِیْ مَعْبَدٍ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ قَهْقَهَ فِیْ صَلٰوتِهٖ اَعَادَ الْوُضُوْءَ وَالصَّلٰوةَ ، ((الجوهر النقی علی البیهقی، ج: ۱ ، ص: ۱۴۶)) .

**ترجمه** : معبد بن ابی معبد روایت کوی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی : څوك چه قهقهه خندا وکړی په لمانځه کښې نو هغه دې لمونځ او اودس دواړه راوګرځوی.

۳ - عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰہِ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنْ ضَحِكَ فِیْ صَلَاتِهٖ فَلْیُعِدِ الْوُضُوْءَ وَالصَّلٰوةَ. ، ((الجوهر النقی علی البیهقی، ج: ۱ ، ص: ۱۴۷)) .

**ترجمه** : حضرت ابن عمر رضی الله تعلی عنه وایی چه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی : چا چه په لمانځه کښې وخندل نو اودس او لمونځ دواړه دې را وګرځوی .

۷ - دمذی او ودی په خارجیدلو سره اودس ماتیږی . ((هدایه، ج ۱ ، ص: ۱۲)) .

**مسئله** : له اودس څخه وروسته که خپله لغړ ((بربنډ)) شی یا بل څوك لغړ وه وینی نو له دې څخه یی اودس نه ماتیږی . ((کبیری، ص: ۱۴۵)) .

**مسئله** : اول یی اودس کړې وی بیا یی هیر وی چه اودس مې شته اوکه مات کړې مې دې نو له دې څخه اودس نه ماتیږی ، ((کبیری، ص: ۱۴۵)) .

**مسئله** : شك یی وی چه اودس مې کړې دې اوکه نه نو لمونځ یی نه کیږی ، اول دې اودس وکړی اوبیا دې لمونځ وکړی . ((کبیری، ص: ۱۴۵)) .

**مسئله** : په نوکونو او ویښتو پریکولو سره اودس نه ماتیږی . ((کبیری، ص: ۱۴۵)) .

وَقَالَ الْحَسَنُ اِنْ اَخَذَ مِنْ شَعْرِهٖ اَوْ اَظْفَارِهٖ فَلَا وُضُوْءَ عَلَیْهِ. ، ((بخاری، ج: ۱ ، ص: ۲۹)) .

**ترجمه** : حضرت حسن فرمایی چه چا ویښته پرې کړل اویایی نوکان پرې کړل نو اودس ورباندې نشته ((یعنی اودس یی پدې سره نه ماتیږی)) .

## استنجاء

په اصل کښې دا د ((نجوة)) نه اخستل شوې دې او ((نجوة)) اوچت ځای ته ویل کیږی، لکه څنګه چه اردس ماتوونکې سرې لوړ ځای ګوری چه دقضاء حاجت په وقت کښې تستر اوپرده حاصله کړی . همدغه شان استنجاء کوونکې هم تستر اوځان پټولو اختیاروی .

د استنجاء معنی ده ((مقام نجو صفا کول))

د انسان له خیټې څخه چه کوم څیز له سبیلینو څخه خارجیږی په دې شرط چه ذی جرم نه وی ، د

دغې ځاى صفا كولو ته ((استنجاء)) ويل كيږى، په بول او براز كې همدا شان كيږى. البته د هواء دخارجيدو سره استنجاء نه لازميږى لكه چه دخوب نه په راويښيدو سره استنجاء نه لازميږى ، بلكه صرف اودس كول ضرورى دى.

استنجاء په تيږه ، لوټه ، زړې توټې وغيره سره صحيح ده تر دې چه هغه مقام بالكل صفا شى.

هغه استنجاء سنت ده چه كله نجاست له يو درهم اندازې څخه تجاوز نوى كړې ، د بعضې امامانو لكه امام شافعى، مالك، احمد رحمهم الله په نيزد استنجاء مطلقًا واجب ده. ليكن داحنافو په نيزد كه چيرته نجاست له مخرج نه تجاز كړې وى ((يعنى ديودرهم له مقدار څخه زيات وى)) نو بيا استنجاء واجب ده، اوكه نه نو بيا اول استنجاء كول په تيږه يا لوټه باندې سنت دى او بيا په اوبو سره استنجاء كول مستحب دى ، كه نجاست متجاز نه وى ، او دنجاست له مخرج نه د تجاوز په صورت كښې استنجاء كول واجب دى ، د ګوتو په دننه حصه سره دې هغه صفا كړى ، بيا دې لاسونه په صابون وغيره يا په خاورې سره وه وينځى، (هدايه، ج : ۱ ، ص : ۴۸، كبيرى، ص : ۲۹ ، شرح نقايه ، ج : ۱ ، ص : ۴۷- ۴۸).

**مسئله** : په اوبو سره استنجاء كول سنت دى ځكه چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم به داسې كول ، البته په لوټه وغيره سره هم استنجاء صحيح ده . (ترمذى، ص : ۲۹ ، مسدرك ، ج : ۱ ، ص : ۱۵۵ ، هدايه، ج : ۱ ، ص : ۴۸ ، شرح نقايه، ج : ۱ ، ص : ۴۸ ، شرح وقايه، ج : ۱ ، ص : ۱۲۷).

۱ - اَنَسِ ابْنِ مَالِكٍ يَقُوْلُ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا يَدْخُلُ الْخَلَاءَ فَاَحْمِلُ اَنَا وَغُلَامٌ نَحْوِىْ اَدَاوَةً مِّنْ مَّاءٍ وَعَنَزَةً فَيَسْتَنْجِىْ بِالْمَاءِ . (بخارى، ج : ۱ ، ص : ۲۷ ، مسلم، ج : ۱، ص : ۱۳۲).

**ترجمه** : انس بن مالك رضى الله عنه وايى : كله به چه رسول الله صلى الله عليه وسلم قضاء حاجت ته تشريف وړلونو ما او زما هم عمره ماشوم به د اوبو لوښې را وأخيسته اودهغه مبارك وړه نيزه به مو هم راسره واخيسته ، نو نبى كريم صلى الله عليه وسلم به په اوبو استنجاء وكړه.

**مسئله** : په لوټه وغيره استنجاء وهل سنت دى، او طاق عدد سنت دې او درې عدده مستحب دى، (درمختار، ص : ۵۲) .

۱ - عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ رَضِىَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوْتِرْ مَنْ فَعَلَ فَقَدْ اَحْسَنَ وَمَنْ لَّا فَلَا حَرَجَ . (ابوداؤد، ج : ۱ ، ص : ۷).

**ترجمه** : له حضرت ابوهريرة رضى الله تعالى عنه څخه روايت دې هغه وايى چه نبى كريم صلى الله عليه وسلم فرمايلى دى : څوك چه استنجاء كوى نو په طاق عدد سره دې وكړى، چاچه داسې وكړل نو ډير ښه يى وكړل اوچاچه داسې ونه كړل نو بيا هم څه حرج نشته.

۲ - عَنْ سَلْمَانَ مَرْفُوْعًا : لَا يَسْتَنْجِىْ اَحَدُكُمْ بِدُوْنِ ثَلَاثَةِ اَحْجَارٍ . (مسلم، ج : ۱ ، ص : ۱۳).

**ترجمه** : حضرت سلمان رضی الله عنه وایی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی : استنجاء دې نکوی یو له تاسې څخه کم له دریو تیږو څخه ، ((یعنی بهتره ده چه درې تیږې استعمال کړی)) .

**مسئله** : په هډوکو استنجاء کول جائز ندی، (هدایه، ج : ۱ ، ص : ۴۸ ، شرح نقایه، ج : ۱ ، ص : ۴۷ ، شرح وقایه، ج : ۱ ، ص : ۱۲۷ )).

ځکه چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی :

۱ - فَاِنَّهُ زَادُ اِخْوَانِكُمْ مِنَ الْجِنِّ . ، (ترمذی، ص : ۲۹) .

**ترجمه** : ځکه چه دا ستاسې دجنیاتو وروڼو خوراك دې .

۲ - نبی کریم صلی الله علیه وسلم دقضاء حاجت لپاره تشریف وړلو نوحضرت ابوهریرة رضی الله تعالی عنه ته یی وفرمایل :

اَبْغِنِیْ اَحْجَارًا اَسْتَنْفِضْ بِهَا اَوْ نَحْوَهُ وَلَا تَاْتِنِیْ بِعَظْمٍ وَّلَا رَوْثٍ . ، (بخاری، ج : ۱ ، ص : ۲۷) .

**ترجمه** : ما ته تیږې اویاکوم بل داسې څیز راوړه چه استنجاء وربانډې وکړم، اوهډوکی اوخوشیان مه راوړه .

**مسئله** : په خوشیانو ، پچو ، خرشنو وغیره باندې استنجاء کول جائز ندی، (هدایه، ج : ۱ ، ص : ۴۸ ، شرح نقایه، ج : ۱ ، ص : ۴۷ ، شرح وقایه، ج : ۱ ، : ۱۲۷ )، لدې کبله چه کله نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله تعالی عنه له لوټې سره خوشیان وړاندې کړل نو هغه مبارك خوشیان وغورزول او وې فرمایل چه :

۱ - اِنَّهَا رِكْسٌ اَوْ رِجْسٌ . ، (بخاری، ج : ۱ ، ص : ۲۷ ، مسند احمد ، ج : ۱ ، ص : ۳۸۸) .

**ترجمه** : دا نجاست دې .

۲ - جَابِرٍ یَقُوْلُ نَهٰی رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَنْ یُّتَمَسَّحَ بِعَظْمٍ اَوْ بِبَعْرٍ . (مسلم، ج : ۴ ، ص : ۱۳۹)

**ترجمه** : حضرت جابر رضی الله تعالی عنه وایی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم منع کړې له استنجاء کولو نه په هډوکو اوپچو سره .

۳ - عَنْ رُوَیْفِعِ ابْنِ ثَابِتٍ قَالَ : قَالَ لِیْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اسْتَنْجٰی بِرَجِیْعِ دَابَّةٍ اَوْ عَظْمٍ فَاِنَّ مُحَمَّدًا مِّنْهُ بَرِیْئٌ . ، (ابوداؤد، ج : ۱ ، ص : ۲) .

**ترجمه** : حضرت رویفع بن ثابت وایی چه ما ته رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : چا چه دکوم شی په خوشیانو وغیره سره استنجاء وکړه اویا یی په هډوکو سره استنجاء وکړه نو محمد (صلی الله علیه وسلم له هغه څخه بیزاره دې .

**مسئله** : په سکرو، شیشه ، پخه خښته باندې استنجاء کول جائز ندی ځکه چه زخم جوړوی اوضرر رسوی (درمختار، : ۱ ، ص: ۵۲).

عَنْ عَبْدِاللّٰهِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَدِمَ وَفْدُ الْجِنِّ عَلَى النَّبِیِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا : يَا مُحَمَّدُ اِنْهَ اُمَّتَكَ اَنْ يَّسْتَنْجُوْا بِعَظْمٍ اَوْ رَوْثَةٍ اَوْ حُمَمَةٍ فَاِنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ جَعَلَ لَنَا فِيْهَا رِزْقًا. قَالَ : فَنَهَى النَّبِیُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (ابوداؤد، ج: ۱، ص: ۲).

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله تعالی عنه وایی چه د جناتو یو وفد نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته راغې اوعرض یی وکړ چه : اې محمده ! خپل امت منع کړه له استنجاء کولو نه په هډوکو او خوشیانو اوسکرو سره ځکه چه الله تعالی په دې څیزونو کښې زمونږ لپاره رزق ایښې دې ، عبدالله بن مسعود رضی الله تعالی عنه وایی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم په دې څیزونو باندې له استنجاء کولو څخه منع وفرمایله.

**مسئله** : دخوراك په څیزونو او دحیواناتو په خوشیانو باندې استنجاء کولو صحیح ندی. (هدایه، ج: ۱ ، ص: ۴۸، (درمختار، ج: ۱ ،ص: ۵۲).

وَكُرِهَ تَحْرِيْمًا بِعَظْمٍ وَّطَعَامٍ وَرَوْثٍ ، (درمختار، ج: ۱ ،ص: ۵۲).

**ترجمه** : یعنی په هډوکو اوخوشیانو اوخوراك باندې استنجاء کول مکروه تحریمی دی.

دخوراك د څیزونو احترام کول ضروری دی :

عَنْ عَائِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَكْرِمُوْا الْخُبْزَ ، (مستدرك حاکم، : ۱ ، ص: ۱۲۲).

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله تعالی عنه فرمایی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چه : د ډوډئ عزت کوئ.

**مسئله** : په کاغذ باندې هم استنجاء کول صحیح ندی که هغه هر قسم کاغذ وی، اوکه په کوم کاغذ لیکل شوی وی نو په هغې خو نور هم بد کار دې، اوکه ساده کاغذ وی نو هغه خود استعمال قابل دې. البته پدې زمانه کښې چه د استنجاء کولو لپاره کوم خاص کاغذ جوړیږی، نو پدې سره استنجاء کول صحیح دی، د نقایه شارح حضرت ملا علی قاری رحمه الله وایی چه په کومو څیزونو سره استنجاء کیږی ، بعضې فقهاء کرامو دهغې یو جامع اومانع تعریف کړې دې :

يَجُوْزُ بِكُلِّ جَامِدٍ طَاهِرٍ مُنَقٍّ قَلَّاعٍ لِلْاَثَرِ غَيْرِ مُؤْذٍ لَيْسَ بِذِیْ حُرْمَةٍ وَلَا سَرَفٍ وَلَا يَتَعَلَّقُ بِهِ حَقٌّ لِلْغَيْرِ. (شرح نقایه، ج: ۱ ، ص: ۵۰). 6

**ترجمه** : استنجاء کول په هرهغه څیز باندې جائز دی چه کلك وی ، پاك وی، پاکوونکې وی،

اودنجاست اثر ختمونکې وی، اوضرر رسوونکې نوی (لکه تریخ، تیز، نوکه دار، شیشه، هډوکې وغیره) ، او د احترام قابل هم نوی (لکه کاغذ وغیره) اودهغې په استعمالولو کښې اسراف هم نوی (لکه د وریښمو کپړه وغیره) او له هغې سره دبل چا حق هم متعلق نوی .

## د استنجاء د ځنی ادبونو ذکر

**مسئله**:- د خوب نه د رابیداریدونکی دپاره په لوښی کښې د لاس وهلو نه وړاندې درې ځله لاسونه وینځل سنت دی (هدایه ص۲ ج۱،شرح نقایه ص۶ ج۱)

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضی الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ إِذَا اسْتَيْقَظَ أَحَدُكُمْ مِنْ نَوْمِهِ فَلَا يَغْمِسَنَّ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ حَتَّى يَغْسِلَهَا ثَلَاثًا. (مسلم ص۱۳۶ ج۱،بخاری۲۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه حضور ﷺ وفرمایل هرکله چه تاسو کښې یو شخص د خوب نه رابیدار شی نو هغه دې خپل لاس د اوبو په لوښی کښې نه وهی تر څو پورې ئې چه درې ځله وینځلې نه وی .

**مسئله** :- صحرا یا ځنګل (بیابان) کښې دقضاء حاجت په وخت لرې تلل پکار دی. (شرح نقایه ص۴۹ ج۱) لکه څنګه چه به حضور ﷺ کول .

عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ رضی الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ إِذَا ذَهَبَ الْمَذْهَبَ أَبْعَدَ(ابو داود ص۲ ج۱)

**ترجمه** : حضرت مغیره بن شعبه رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به کله د قضاء حاجت د پاره تللو نو لرې به ئې تشریف وړلو .

عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رضی الله عنه مرفوعا إِذَا أَرَادَ الْبَرَازَ انْطَلَقَ حَتَّى لَا يَرَاهُ أَحَدٌ(ابو داود ص۲ ج۱)

**ترجمه** : حضرت جابر رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ به د قضاء حاجت دپاره لرې تشریف وړلو تر دې چه هغوی لره څوك ونه وینی .

**مسئله** :- د تشو بولو د کولو دپاره پوست ځائې لټول پکار دی. (شرح نقایه ص۴۹ ج۱)

عَنْ أَبِي مُوسَى رضی الله عنه قَالَ إِنِّي كُنْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ ﷺ ذَاتَ يَوْمٍ فَأَرَادَ أَنْ يَبُولَ فَأَتَى دَمِثًا فِي أَصْلِ جِدَارٍ فَبَالَ ثُمَّ قَالَ إِذَا أَرَادَ أَحَدُكُمْ أَنْ يَبُولَ فَلْيَرْتَدْ لِبَوْلِهِ.(ابو داود ص۲ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه اوفرمایل چه زه د رسول الله ﷺ سره ووم،رسول الله ﷺ د بولو کولو اراده وکړه نو د یو دېوال مخې ته ئې په پوست ځائ کښې بول وکړل،او رسول الله ﷺ اوفرمایل چه کله په تاسو کښې څوك سړې د بولو کولو اراده وکړی نو هغه ته پکار دی چه د بولو دپاره څه مناسب ځائ ولټوی .

**مسئله** :- بیت الخلاء ته د داخلیدو په وخت ګوتمه یاداسې کاغذ وغیره وی چه په هغې باندې دالله ﷻ نوم یا آیت یا درسو ل الله ﷺ نوم مبارك لیکلې وی نو هغه لرې کول بیا دننه تلل پکار دی.

۱-عَنْ عِكْرَمَةَ ﷺ قَالَ كَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ ﷺ إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ نَاوَلَنِي خَاتَمَهُ (مصنف ابن ابی شیبة ص۱۱۲ ج۱)

حضرت عکرمه ﷺ فرمائی چه کله به عبد الله بن عباس ﷺ بیت الخلاء ته دننوتلو اراده اوفرمائیله نو خپله ګوتمه به یې ماته راکړه (بیا به ننوتلو).

عَنْ مُجَاهِدٍ أَنَّهُ كَانَ يَكْرَهُ لِلْإِنْسَانِ أَنْ يَدْخُلَ الْكَنِيفَ وَعَلَيْهِ خَاتَمٌ فِيهِ اسْمُ اللهِ. (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۱۲ ج۱)

ترجمه : حضرت مجاهد نه روایت دې، هغه مکروه ګڼی چه څوك سړې بیت الخلاء ته داخل شی او هغه داسې ګوتمه اچولې وې چه په هغې باندې دالله تعالی نوم لیکلې شوې وی.

**مسئله** :- دبولوکولو په وخت بهر صحرا کښې د پردې کولو نه وړاندې او بیت الخلاء ته د دروازې د ننوتلو نه وړاندې به وایی: اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ (بخاری ص۹۳۶ ج۲)

ترجمه : اې الله ! زه ستا په ذات سره پناه غواړم دښځو اوسړو شیطانانونه.

اوبیا به خپله چپه پښه بیت الخلاء کښې کیږدې اودبیت الخلاء د وتلو په وخت به اول ښئ پښه بیرون کیږدې او دبهر وتلو په وخت به دادعا وایی: (۱) غُفْرَانَكَ (۲) اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَذْهَبَ عَنِّي الْأَذَى وَعَافَانِي (ترمذی ص۱۲۷ ابن ماجه ص۲۶)

ترجمه : اې الله ! زه ستانه معافی غواړم ،ټول تعریفونه الله جل جلاله دپاره دې چه هغه زما نه تکلیف ورکونکې څیز لرې کړو ،اوماته ئې عافیت راکړو. (شرح نقایه ص۴۹ ج۱)

**مسئله**:-دبولو یا اودس کولو په وخت کښې بالکل دزمکې سره نزدې کیدو په وخت جامه لرې کول پکار دی. (شرح نقایه ص۴۹ ج۱)

لکه څنګه چه به حضور ﷺ کول. (ترمذی ص۱۲۸ ابوداود ص۳ ج۱)

**مسئله** :-دپاکئ په ځائ کښې بول نه دی کول پکار ،دې سره وسوسې پیدا کیږی. (شرح نقایه ص۴۹ ج۱ در مختار ص۲۵۷ ج۱)

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُغَفَّلٍ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ لَا يَبُولَنَّ أَحَدُكُمْ فِي مُسْتَحَمِّهِ ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيهِ قَالَ أَحْمَدُ ثُمَّ يَتَوَضَّأُ فِيهِ فَإِنَّ عَامَّةَ الْوَسْوَاسِ مِنْهُ (ابوداود ص۵ ج۱ ترمذی)

حضرت عبدالله بن مغفل فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلي دي چه په تاسو کښې دې څوك سرې په خپله غسل خانه کښې بول نه کوی چه بيا هغه په دې کښې غسل کوی يا اودس کوی، ځکه چه عامې وسوسې ددې نه پيدا کيږی،

**مسئله**:- په سوړه (غار) وغيره کښې بول نه کول (شرح نقايه ص۴۹ ج۱ در مختار ص۵۷) يوخو د دې وجې نه چه دا د پيريانو کورونه دی.

عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ سَرْجَسَ ؓ قَالَ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَهٰى اَنْ يُّبَالَ فِي الْجُحْرِ قَالَ قَالُوا لِقَتَادَةَ مَا يُكْرَهُ مِنَ الْبَوْلِ فِي الْجُحْرِ قَالَ كَانَ يُقَالُ اَنَّهَا مَسَاكِنُ الْجِنِّ.

حضرت عبدالله بن سرجس ؓ فرمائي چه حضور ﷺ منع فرمائيلي ده له دينه چه څوك په سوړه کښې بول کوی هرکله چه دقتاده نه پوښتنه وکړې شوه چه ددې څه وجه ده؟ نو هغوی وفرمائيل چه په دې کښې جنات اوسيږی.

اودويمه وجه داده چه چيرته مار لړم را ونه وځي او نقصان ونه رسوی.

**مسئله**:-کوم ځائ کښې چه تيزه هوا چليږی هغې طرفته هم (دبولو په وخت کښي) مه مخ کوه .(شرح نقايه ص۴۹ ج۱ درمختار)

اِسْتَنْزِهُوْا مِنَ الْبَوْلِ.(فتح البارى ص۳۲۶ ج۱) دار قطنی ص۱۲۸ ج۱)

حضور ﷺ فرمائي دبولو نه ځان وساتئ

**مسئله**:- بغير دعذرنه په ښى لاس استنجاء کول مکروه دی. (هدايه ص۴۸ ج۱) شرح نقايه ص۴۸ ج۱)

عَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ ؓ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ اِذَا بَالَ اَحَدُكُمْ لَا يَسْتَنْجِيْ بِيَمِيْنِهٖ (بخاری ص۲۷ ج۱ مسلم ص۱۳۱ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو قتاده ؓ نه روايت دې رسول الله ﷺ فرمائي چه څوك دې په ښى لاس باندې اودس نه وچوی (اودس وچول هم منع دی او کول پرې هم منع دی).

**مسئله**:- لاره کښې يا دسيوری په ځائ کښې يا د ميوه دار بوټي د لاندې بول کول مکروه دی، (شرح نقايه ص۴۹ ج۱ در مختار ص۵۷ ج۱)

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ اِتَّقُوا اللَّعَّانَيْنِ قَالُوْا مَا اللَّعَّانَانِ يَا رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ الَّذِيْ يَتَخَلّٰى فِيْ طَرِيْقِ النَّاسِ اَوْ ظِلِّهِمْ (مسلم ص۱۳۲ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابوهريره ؓ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمائي چه دوه لعنت والا څيزونو نه ځان وساتئ، خلقو عرض وکړو : اې دالله رسوله ! ﷺ هغه څه دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل هغه دا چه دخلقو په لاره کښې يا دهغوئ دسيورو په ځايونو کښې غټ بول کوی .

**مسئله** :- په اوبو کښې (ولاړې وی او که جاری وی) بول کول مکروه دی. (درمختار ص۳۵ ج۱)

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ ؓ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ لَا یَبُوْلَنَّ اَحَدُکُمْ فِی الْمَآءِ الدَّائِمِ (بخاری ص۳۷ ج۱، مسلم ص۱۳۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابو هریره ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی چه په تاسو کښې دې څوك په ولاړو اوبو کښې بول نه کوی.

عَنْ جَابِرٍ ؓ نَهٰی رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اَنْ یُّبَالَ فِی الْمَآءِ الْجَارِیْ (مجمع الزوائد ص۲۵۳ ج۱)

ترجمه: حضرت جابر ؓ فرمائی چه رسول الله ﷺ په روانو اوبو کښې دبولو کولو نه منع فرمایلې ده

**مسئله** :- دنمر یا دسپوږمئې طرفته مخ کول هم په داسې حالت کښې مکروه دی. (شرح نقایه ۲۹ ج۱ در مختار ۵۷ ج۱)

**مسئله** :- دچا د دیوال په بیخ کښې بغیر دهغه داجازت نه بول کول ممنوع دی. شرح نقایه ص۲۷ ج۱

**مسئله** :- دبولو او د استنجاء په وخت دقبلې طرفته مخ کول یاشاکول (په صحرا او آبادئ دوارو کښې) مکروه دی (درمختار ص۵۵ ج۱ شرح نقایه ص۲۷ ج۱ شرح وقایه ۱۲۷ ج۱)

(۱) عَنْ اَبِیْ اَیُّوْبَ ؓ اَنَّ النَّبِیَّ ﷺ قَالَ اِذَا اَتَیْتُمُ الْغَائِطَ فَلَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ وَلَا تَسْتَدْبِرُوْهَا بِبَوْلٍ وَّلَا غَائِطٍ (مسلم ص۱۳۰ ج۱ بخاری ۵۷ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابوایوب انصاری ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی : کله چه تاسې د قضاء حاجت دپاره ځئ نو دقبلې طرفته مه مخ کوئ او مه ورته شا کوئ ، د ورو بولو دپاره هم او دغټو بولو دپاره هم.

عَنْ اَبِیْ اَیُّوْبَ الْاَنْصَارِیِّ ؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اِذَا اَتٰی اَحَدُکُمُ الْغَائِطَ فَلَا یَسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ وَلَا یُوَلِّهَا ظَهْرَهٗ (بخاری ص۲۶ ج۱، مسلم ص۱۳۰ ج۱)

ترجمه : حضرت ابوایوب انصاری ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی کله چه په تاسو کښې څوك دقضاء حاجت دپاره ځی نوندې قبلې طرفته مخ کوی او ندې ورته خپله شا گرځوی.

**مسئله** :- بغیر دعذرنه په ولاړه بول کول مکروه دی او بد تهذیبی ده. شرح نقایه ص۵۷ ج۱، درمختار ۵۷ ج۱

حضرت عمر ؓ فرمائی چه د کله نه رسول الله ﷺ منع فرمائیلې ده فَمَا بُلْتُ قَائِمًا نو ما په ولاړه کله هم بول ندی کړی. (ترملی ص۲۸، ابن ماجه ص۲۶)

عَنْ عَائِشَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهَا مَنْ حَدَّثَکُمْ اَنَّ النَّبِیَّ ﷺ کَانَ یَبُوْلُ قَائِمًا فَلَا تُصَدِّقُوْهُ مَا کَانَ یَبُوْلُ اِلَّا قَاعِدًا. (ترملی ص۲۸)

ترجمه : ام المومنین حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه که تاسو ته چا دا بیان وکړوچه رسول الله ﷺ په ولاړه بول کړې دی نوتاسوددې خبرې تصدیق مه کوئي، حضور ﷺ به په ناسته حاجت پوره کولو . (البته دعذرپه حالت کښې رسول الله ﷺ په ولاړه هم بول کړې دی ،لکه څنګه چه دمغیره بن شعبه رضي الله عنه دروایت نه ثابت دی.

**مسئله** :- دبولو اواستنجاء په وخت کښې پټول دعورت واجب دی.

**عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ مَنْ أَتَى الْغَائِطَ فَلْيَسْتَتِرْ فَإِنْ لَمْ يَجِدْ إِلَّا أَنْ يَجْمَعَ كَثِيبًا مِنْ رَمْلٍ فَلْيَسْتَدْبِرْهُ .(ابوداود ص۶ ج۱)**

**ترجمه** : حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی : کوم سړې چه بهر دقضاء حاجت دپاره لاړشی نو هغه ته پکار دی چه څه ځیز ته پناه شی او قضاء حاجت وکړی، کچیرې څه ځیز بیا نه مومی نو شګه دې راجمع کړی اودهغې په پناه کښې دې قضاء حاجت وکړی.

**مسئله** :- دبولوکولو په وخت کښې خبرې کول مکروه تحریمی دی او ګناه ده. **(شرح نقایه ص۴۷ ج۱)**

**ترجمه** : حضرت ابو سعید خدری رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ دبولو په وخت کښې دخبرو نه منع فرمائیلې ده.او فرمایلی ئې دی چه **(فَإِنَّ اللهَ يَمْقُتُ عَلَى ذٰلِكَ)** یعنی الله ﷻ په دې ناراضه کیږی، **(ابوداود ص۳ ج۱ابن ماجه ص۲۹)**

**مسئله** :- دغټو او وړو بولو یا دړ استنجاء کولوپه وخت کښې په ژبې سره کلمه یاڅه آیت یا حدیث ویل مکروه دی.

**(۱) عَنْ عَطَاءٍ قَالَ لَا تُشْهِدَنَّ الْمَلَائِكَةَ عَلَى خَلَائِكَ (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۱۴ ج۱)**

**ترجمه** : حضرت عطاء فرمائی چه تاسوپه بیت الخلاء کښې دناستې په وخت فرشتې په خپل خان ګواه مه جوړوئي، (یعنې په داسې وخت کښې خبرې مه کوئ)

**(۲) عَنْ إِبْرَاهِيمَ قَالَ أَرْبَعَةٌ لَا يَقْرَؤُونَ الْقُرْآنَ عِنْدَ الْخَلَاءِ الخ (ابن ابی شیبه ص۱۱۴ ج۱)**

**ترجمه** : حضرت ابراهیم نخعی فرمایئ چه څلورقسمه سړی به قرآن نه لولی په دې کښې یو هغه دې چه بیت الخلاء کښې وی اوقضاء حاجت کوی.

**مسئله** :- ذکر قلبی (دزړه ذکر) کول په دې حالت کښې جائز دې.

**عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ يَذْكُرُ اللهَ فِي كُلِّ أَحْيَانِهِ .(ابوداود ص۳ ج۱)**

**ترجمه** : ام المومنین حضرت عائشة رضي الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به په ټولو وختونو کښې دالله تعالی ذکرکولو.

**نوټ**:- ددې حدیث متعلق محدثین کرام فرمائی چه لدې ځخه تول وختونه ناسته ولاړه، گرځیدل څملاستل مراد دی. اوبیت الخلاء وغیره کښې ذکرلسانی ممنوع گنی. او اهل تصوف دا حدیث په خپل عموم باندې ساتی او دا په ذکرقلبی باندې محمول کوی. حدیث ظاهرباندې ساتلوسره بالکل ددې مطابق ساتی.

**مسئله**:- د خلکو په وړاندې اودس وچول نهایت مذموم فعل دې.

**مسئله**:- دبولو کولو په وخت دا احتیاط ضروری دې چه څاڅکی وغیره په بدن یا په جامو و نه لړیږی، رسول الله ﷺ فرمائی (اِسْتَنْزِهُوا مِنَ الْبَوْلِ فَإِنَّ عَامَّةَ عَذَابِ الْقَبْرِ مِنْهُ). یعنی دبولونه ځان وساتئ ځکه چه عام طورعذاب قبر له همدې وجې نه وی. (فتح الباری ص۲۲۹ ج۱، دار قطنی ص۱۲۸ ج۱)

**مسئله**:- کله چه یوسړې استنجاء کوی نو دلاندې حصې جامو (خښتک) باندې اوبه شیندل پکار دی چه دوَسوَسو نه بچ شی. (شرح نقایه ص۴۹ ج۱)

عَنْ زَيْدِ بْنِ حَارِثَةَ ﷺ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ أَنَّ جِبْرَئِيلَ أَتَاهُ فِي أَوَّلِ مَا أُوحِيَ إِلَيْهِ فَأَرَاهُ الْاودسءَ وَالصَّلٰوةَ فَلَمَّا فَرَغَ مِنَ الْوُضُوءِ أَخَذَ حَفْنَةً مِنْ مَاءٍ فَرَشَّ بِهَا فِي الْفَرْجِ. (دار قطنی ص۱۱۱ ج۱، مسند احمد ص۱۶۱ ج۴، مصنف عبدالرزاق ص۱۵۲ ج۱)

**ترجمه**: حضرت زیدبن حارثه ﷺ نه روایت دې چه دنزول دوحی په ابتدائې زمانه کښې درسول الله ﷺ په خدمت کښې جبریل علیه السلام حاضرشواورسول الله ﷺ ته ئې د اودس، اودمونځ طریقه وښودله، کله چه هغوئ داودس نه فارغ شول، نو اوبه ئې واخستې اود جامو په لاندې حصه ئې وشیندلې. (دا دوسوسونه دبچ کیدوطریقه وه).

**مسئله**:- داستنجاءکولو نه پس لاس په صابون وغیره باندې صفاکول پکاردی اوکه نه وی نو په خاوره باندې ئې صفا کول پکار دی.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا أَتَى الْخَلَاءَ (إِلَى أَنْ قَالَ) فَاسْتَنْجَى ثُمَّ مَسَحَ يَدَهُ عَلَى الْأَرْضِ (ابوداود ص۷ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره ﷺ بیان فرمائی، چه رسول الله ﷺ به استنجا وکړه بیا به ئې لاس په زمکه راښکلو.

عَنْ مَيْمُونَةَ ﷺ قَالَتْ ثُمَّ ضَرَبَ بِشِمَالِهِ الْأَرْضَ فَدَلَكَهَا دَلْكًا شَدِيدًا. (مسلم ص۱۴۷ ج۱)

**ترجمه**: ام المومنین حضرت میمونه فرمائی چه رسول الله ﷺ استنجا وکړه نو بیا هغوې خپل لاس په زمکه باندې مضبوط راښکلو چه صفا شی.

# دغسل احکام

**دغسل فرضونه** :- په فرض غسل کښې درې کارونه ضروری دی :

(۱) مضمضه (خوله کښې اوبه اچول). (۲) استنشاق (پوزه کښې اوبه اچول) (هدایه ص۱۰ ج۱)

دا دواړه خبرې په اودس کښې سنت دی، لکه څنګه چه حدیث کښې راغلی دی، (عَشْرٌ مِنَ الْفِطْرَةِ ص۱۲۹ ج۱) مسلم

یعنی لس څیزونه فطری دی چه په هغې کښې استنشاق او مضمضه هم ده،لیکن په غسل کښې دافرض دی.

عَنْ عَائِشَةَ ﵂ بِنْتِ عَجْرَدٍ فِيْ جُنُبٍ نَسِيَ الْمَضْمَضَةَ وَالْاِسْتِنْشَاقَ قَالَتْ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يُمَضْمِضُ وَيَسْتَنْشِقُ وَيُعِيْدُ الصَّلٰوةَ.

**ترجمه** : حضرت عائشه بنت عجرد ﵂ نه نقل دی که جنب مضمضه اواستنشاق یعنی خوله او پوزه کښې اوبه اچول هیرکړی، نوعبدالله بن عباس﵁ فرمائی چه مضمضه او استنشاق به کوی او که په دې کښې ئې لمونځ کړې وی نو هغه به دوباره راګرزوی، (اود دوباره غسل ضرورت نیشته).

(۳) ټول بدن باندې اوبه اچول، (هدایه ص۱۰ ج۱)

((وَاِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوْا))

**ترجمه** : اوکه چیرې تاسې په حالت دجنابت کښې یاستئ نو ښې طریقې سره پاکی حاصله کړئ اوظاهره ده چه ښې طریقې سره پاکی هغه وقت حاصلیږی چه کله په ټول بدن باندې اوبه واچوی، اوښو مرلوسره بدن پرې مینځی، او کوم ځائ ته چه اوبه رسول ممکن وی، هغه حصو ته اوبه ورسوي.

پوزه اوخوله فی الجمله دښکاره بدن سره تعلق لری نو له همدې کبله په خوله او پوزه کښې ښې طریقې سره اوبه اچول دغسل په حالت کښې ضروری دی. حدیث شریف کښې راغلی دی:

عَنِ الْحَسَنِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ تَحْتَ كُلِّ شَعْرَةٍ جَنَابَةٌ (مصنف عبدالرزاق ص۲۶۲ ج۱) الجوهر النقی علی البیهقی ص۱۷۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت حسن بصری نه روایت دې ،چه رسول الله ﷺ فرمائی: دهرویښته لاندې جنابت وی

(۲) عن ابی الدرداء قال تَحْتَ كُلِّ شَعْرَةٍ جَنَابَةٌ (الجوهر النقی علی البیهقی ص۱۷۸ ج۱ بحواله تهذیب الاثار للطبری)

**ترجمه** : حضرت ابو الدرداء نه نقل دی چه دهر ویښته دلاندې جنابت وی.

عَنْ عَلِيٍّ ﷺ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ مَنْ تَرَكَ مَوْضِعَ شَعْرَةٍ مِنْ جَنَابَةٍ لَمْ يُصِبْهَا الْمَاءُ فُعِلَ بِهَا كَذَا وَكَذَا مِنَ النَّارِ. (دارمی ص١٥٧ ج١ ابن ماجه ص١٨٣ ابوداؤد ص٣٣ ج١ بيهقی ص١٧٥ ج١ التلخيص الحبير ١٤٢ ج١)

**ترجمه** : حضرت علی ﷺ نه روایت دي ،چه رسول الله ﷺ فرمائی چه کوم سړی په غسل دجنابت کښې د يو ویښته ځائ هم داسې پرېښودلو چه هغې ته اوبه نه وی رسیدلي، نو سړی سره به په دوزخ کښې داسې سلوك وکړې شی. (يعنی سزا به ورکړې شی.)

**مسئله** :- په غسل کښې په خوله کښې يا په پوزه کښې اوبه اچول ياد نه وی نو وروستوبه ئې وکړي، د دوباره غسل ضرورت نشته.

**مسئله** :- کچیرې دښځه په پوزه کښې نتکۍ (چارګل) ، میخکې يا په غوږونو کښې غوږ والۍ (منډرۍ) وغیره وی نو دغسل په وخت کښې دهغې خوزول ضروری دی. (ځکه چه دپوزې يا دغوږونو سوری لمدول فرض دی.) (شرح وقايه ص٧٣ ج١)

**مسئله** : ګوتمه ،سلائې هم کچیرې په ګوته وی، نوپه غسل او اودس کښې په ښځو او سړو دارو باندې ددې خوزول فرض دی. (شرح وقايه ص٧٣ ج١)

**مسئله** :- دنوکونوپالش کچیرې لګولې یې وی نوچه ترڅويې دا رژولې اولرې کړې نوی.نو داکثرو عالمانوپه نزدغسل او اودس یې نه کیږی.

**مسئله** :- دنوکونو کټ کول هفته کښې يوځل یاپینځلس ورځوکښې يانهايت دڅلويښتو ورځو پورې ضروری دی. نوکونه کټ کول چه ځنګه دلاسونودګوتوضروری دی دغه رنګ دپښو دګوتو هم ضروری دی ځکه چه که په نوکونو کښې ګندګی جمع شی که اوبه منع کوی نو اودس اوغسل درست ندی.

## دغسل سنتونه

(١) دټولو نه وړاندې به خپل لاس پریمینځی ، (هدايه ص١١ ج١ شرح نقايه ص١٣ ج١)

عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ ﷺ كَانَ إِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ بَدَءَ فَغَسَلَ يَدَيْهِ (بخاری ص٣٩ ج١ مسلم ١٤٧ ج١)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ کله دجنابت نه غسل کولو ، نو اول به ئې لاسونه مینځل.

(٢) بيا به استنجاء وکړي ، (هدايه ص١١ ج١ شرح نقايه ص١٣ ج١)

عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَغْتَسِلَ مِنَ الْجَنَابَةِ بَدَءَ يَغْسِلُ يَدَيْهِ قَبْلَ اَنْ يُدْخِلَهُمَا الْإِنَاءَ ثُمَّ يَغْسِلُ فَرْجَهُ (ترمذی ص٣١)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه ﵂ فرمائی چه رسول الله ﷺ به کله دجنابت نه دغسل کولو اراده کړې وه نو اول به ئې دواړه لاسونه وه مینځل بیا به ئې لوښی ته داخل کړل، او استنجاء به ئې وکړه.

(۳) بیا که دبدن په څه حصه باندې څه نجاست لګیدلې وی نو هغه به پرې مینځی. (هدایه ص۱۱ ج۱ شرح نقایه ص۱۴ ج۱، کبیری ص۵۰)

(۴) بیا به اودس وکړې لکه څنګه چه دمونځ دپاره کولې شی. (هدایه ص۱۱ ج۱ شرح نقایه ص۱۴ ج۱، کبیری ص۵۰)

(۵) بیا به په سر باندې او په ټول بدن باندې درې ځله اوبه واچوي. (هدایه ص۱۱ ج۱ شرح نقایه ص۱۴ ج۱، کبیری ص۵۰)

عَنْ اَمِیْرِ الْمُؤْمِنِیْنَ عُمَرَ مَرْفُوْعًا اَمَّا الْغُسْلُ مِنَ الْجَنَابَةِ فَتُفْرِغُ بِیَمِیْنِكَ عَلٰی شِمَالِكَ ثُمَّ تُدْخِلُ یَدَكَ فِی الْاِنَاءِ فَتَغْسِلُ فَرْجَكَ وَمَا اَصَابَكَ ثُمَّ تَوَضَّأْ اودس دِكَ لِلصَّلٰوةِ ثُمَّ تُفْرِغُ عَلٰی رَأْسِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ. (مجمع الزوائد ص۲۷۰ بحواله ابویعلی)

ترجمه : امیرالمؤمنین حضرت عمر ﵁ فرمائی، چه رسول الله ﷺ فرمائی چه کله ته دجنابت نه دغسل کولو اراده وکړې نو اول په خپل ښی لاس اوبه راواچوه، بیا دلاس صفا کولو نه پس لاس په لوښی کښې داخل کړه، او اول استنجاء وکړه او بیا چه په کوم ځائ ګندګی لګیدلې وی هغه وه مینځه بیا اودس وکړه. لکه څنګه یې چه ته د لمونځ دپاره کوې. بیا په خپل سر باندې درې ځله اوبه واچوه.

**مسئله** :- کله چه یو سړې دغسل کولو په نیت دخپل بدن نه دجامو لرې کولو اراده کوی نو رسو ل الله ﷺ فرمائی چه دجناتو (شیطانانووغیره) او انسانو دسترګو او بن آدم دپټو اندامونو (ستر) په مینځ کښې اویا (۷۰) پردې ددې دعاء سره راځی چه کله مسلمان دا دعا وه وایی چه:

(بِسْمِ اللهِ الَّذِیْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ)

**ترجمه** : د هغه الله په نوم چه دهغه نه سیوا هیڅوك لائق دعبادت نشته.

(عمل الیوم واللیلة لابن سنی ص۱۱۰)

**مسئله** : دښځې دپاره دسر کمځئ سپړل ضروری ندی کله چه دویښتو بیخونوته اوبه ورسیږی یعنی دسرځرمن لمده شی، نوددې غسل مکمل شو. (هدایه ص۱۱ ج۱ شرح نقایه ص۱۴ ج۱، کبیری ص۴۷)

عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ قُلْتُ یَارَسُوْلَ اللهِ ﷺ اِنِّیْ اِمْرَأَةٌ اَشُدُّ ضَفْرَ رَأْسِیْ اَفَاَنْقُضُهٗ لِغُسْلِ الْجَنَابَةِ قَالَ لَا اِنَّمَا یَکْفِیْكِ

أَنْ تَحْثِيَ عَلٰى رَأْسِكِ ثَلٰثَ حَثَيَاتٍ، مسلم ص۱۵۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ام سلمه ﷺ فرمائی چه ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړوچه زه دخپل سر کمځۍ مضبوطې ترم، نو آیا دغسل دجنابت په وخت به داسپړم؟ هغوی ﷺ اوفرمایل نه ' ددې دسپړلو ضرورت نشته. ستاد پاره داکافی ده چه ته درې وارې پخپل سر باندې اوبه واچوې.

وَقَالَتْ عَائِشَةُ وَسَأَلَتْهُ عَنْ غُسْلِ الْجَنَابَةِ فَقَالَ ثُمَّ تُصِبُّ عَلٰى رَأْسِهَا فَتَدْلُكُهُ حَتّٰى تَبْلُغَ شُئُوْنَ رَأْسِهَا .(مسلم ص۱۵۰ ج۱،ابن ماجه ص۴۷)

**ترجمه**: حضرت عائشه ﷺ فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه دغسل د جنابت په باره کښې پوښتنه وکړه ،نو هغوې ﷺ اوفرمائل ښځې ته پکاردی ، چه هغه په خپل سر باندې اوبه واچوې او وې مښی ، تر دې پورې چه اوبه د سر څرمنې ته ورسیږی.

عَنْ جَابِرٍ ﷺ قَالَ إِذَا اغْتَسَلَتِ الْمَرْأَةُ مِنَ الْجَنَابَةِ فَلَا تَنْقُضْ شَعْرَهَا وَلٰكِنْ تَصُبُّ الْمَاءَ عَلٰى اُصُوْلِهٖ وَتَبُلُّهٗ .

(دارمی ص۲۱۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت جابر نه روایت دې ،چه کله ښځې غسل د جنابت کوی نو هغوئ ته پکاردې چه کمځۍ دې نه خلاصوی بلکه د ویښتو بیخونه دې لامده کړی.

**مسئله**: که سرې غټ ویښته پریږدې لکه په بعضو قومونو کښې چه د دې رواج دې ، لکه ترکمنان ، دروزی.،بعضې ترکیان او علوی وغیره ، نو په داسې صورت کښې به په وخت د غسل د جنابت کښې کمځۍ سپړل ضروری وي، ددې نه بغیر غسل نه صحیح کیږی.(شرح الوقایه ،ص۵۵،ج۱، کبیری ص۴۷)

عَنْ ثَوْبَانَ ﷺ اَنَّهُمُ اسْتَفْتَوُا النَّبِيَّ ﷺ عَنْ ذَالِكَ فَقَالَ اَمَّا الرَّجُلُ فَلْيَنْثُرْ رَأْسَهٗ، ابوداؤد ص۳۳ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ثوبان ﷺ نه روایت دې چه صحابه کرامو ﷺ له رسول الله ﷺ نه د سرې په غسل کښې د ویښتو متعلق فتوی طلب کړه نونبی ﷺ اوفرمایل چه: هغه دې د غسل په وخت کښې خلاص کړی او خواره دې کړې.

**مسئله**: دغسل کولونه مخکښې که چا اودس وکړو او یا یې صرف غسل وکړو نود غسل نه بعد دوباره اودس کول خلاف سنت دی.

عَنْ عَائِشَةَ ﷺ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ لَا يَتَوَضَّأُ بَعْدَ الْغُسْلِ قَالَ اَبُوْ عِيْسٰى هٰذَا قَوْلُ غَيْرِ وَاحِدٍ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ ﷺ اَنْ لَا يَتَوَضَّأَ بَعْدَ الْغُسْلِ (ترمذی ص۴۲)

**ترجمه**: ام المومنین حضرت عائشه ﷺ نه روایت دې چه نبی ﷺ به د غسل نه پس اودس نه فرمائلو . امام ترمذې فرمائی چه د دیرو صحابه کرمو او تابعینو دا مسلك دې چه د غسل نه پس

اودس نشته.

**مسئله**: د غسل په وخت چه کوم خلق په اوچت آواز کلمه وغیره وایې نو دا ناجائز دی، او خلاف ادب دی.

**مسئله**: داودس او د غسل اذکار د اودس او دغسل نه مخکښې او د دعاګانو د فارغیدو نه پس کول پکاردی.

**مسئله**: غسل خانه کښې (که چیرې کچه وی) بول کول ندی پکار، نبی ﷺ فرمایلی دی چه لَا يَبُولَنَّ اَحَدُكُمْ فِي مُسْتَحَمِّهٖ فَاِنَّ عَامَّةَ الْوَسْوَاسِ مِنْهُ. (ابوداؤد ص۵، ج۱ ترمذي، ص۲۹)

ترجمه: ستاسو نه دې څوك په خپله غسل خانه کښې بول نه کوې ځکه چه عامې وسوسې د دې نه پیدا کیږی.

## د غسل قسمونه

دنظافت په نظام کښې دطهارت دپاره داودس سره غسل هم دې اودغسل متعدد قسمونه دی (۱) فرض، (۲) واجب، (۳) سنت، (۴) مستحب.

**فرض غسل او د غسل واجب**: التقاء ختانین یعنی دسړی اودښځې دخاص اندامونو داسې یوځای کیدل چه حشفه غائبه شی، په ښځه او سړی دواړوباندې غسل فرض دې، اګر که انزال نوی شوې، یاشوې وي، یعنې ماده منویه بهر وتې وې اوکه نه، (هدایه ص ۱۱ کبیرې ۵۴،)

**عن عائشة قال رسول الله ﷺ اذا مس الختان الختان فقد وجب الغسل قال الامام المسلم وفي حديث مطر وان لم ينزل.**

**ترجمه**: ام المومنین حضرت عائشه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی کله چه د سړی او د ښځې خاص اندامونه خپلو کښې ملاؤشی نو غسل فرض شی، امام مسلم فرمائی، دمطر روایت شوی حدیث کښې دی چه: «اګر چه انزال نوی شوې»، (مسلم ص۱۵۲ج۱، ترمذي ص۴۲.

**قال معاذ سألت رسول الله ﷺ عما يوجب الغسل من الجماع فقال اذا جاوز الختان الختان فقد وجب الغسل، (مجمع الزوائد ص۲۶۷، ج۱)**

**ترجمه**: حضرت معاذ رضی الله عنه فرمائی چه ماد حضور ﷺ نه پوښتنه وکړه چه جماع کښې څه وخت غسل واجبیږی، نوهغوې اوفرمائل چه کله د سړی او ښځې خاص اندامونه سره یوځای شی نو غسل واجبیږی، (داشرط ندی چه ماده خارجه شی نو غسل واجبیږی).

(۲) انزال سره یعنې دفق سره (په توپ باندې په شهوت سره)، ماده منویه خارجه شی نوهم غسل

فرض کیږی، (شرح نقایه ص۱۲ ج۱، هدایه ص۱۱ ج۱، کبیری ص۵۲)

عَنْ عَلِیٍّ ﷺ قَالَ کُنْتُ رَجُلاً مَذَّاءً فَسَأَلْتُ النَّبِیَّ ﷺ فَقَالَ إِذَا رَأَیْتَ الْمَذْیَ فَتَوَضَّأْ وَاغْسِلْ ذَکَرَكَ وَإِذَا رَأَیْتَ فَضْحَ الْمَاءِ فَاغْتَسِلْ (مسند احمد ص۱۲۵ ج۱) وَفِی رِوَایَةِ أَبِی دَاوٗدَ إِذَا فَضَحْتَ الْمَاءَ فَاغْتَسِلْ. (ابوداود ص۲۷ ج۱).

**ترجمه**: امیرالمومنین حضرت علی ﷺ نه روایت دې فرمائی چه زه کثیرالمذی ووم. نو ما د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه نورسول الله ﷺ اوفرمایل چه کله ته مذی وه وینې نو استنجاء وکړه او اودس وکړه، اوکله چه ته وه وینې چه ماده منویه په ټوپ سره خارجه شوه نو غسل وکړه، او د ابوداود په روایت کښې دی چه کله ماده منویه په شهوت او جوش سره خارجه شی نوغسل وکړه.

**مسئله**:- دمذی په وتلو سره غسل نه فرض کیږی بلکه استنجاء او اودس کول ضروری وی. «مذی رنو او ټینګواوبو ته ویلې شی». (هدایه ص۱۲ ج۱، ص۱۳)

کُلُّ فَحْلٍ یُمْذِیْ (منتقی ابن جارود ص۱۳) یعنی له هرنارینه نه مذی وځی.

دمذی په سلسله کښې دحضرت علی ﷺ په روایت کښې درسول الله ﷺ واضح ارشاد دې:

إِذَا رَأَیْتَ الْمَذْیَ فَتَوَضَّأْ وَاغْسِلْ ذَکَرَكَ

**ترجمه**: چه کله ته مذی وه وینې نو استنجاء وکړه او اودس وکړه.

قَالَ الْمِقْدَادُ فَسَأَلْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ عَنِ الْمَذْیِ فَقَالَ إِذَا وَجَدَ ذٰلِكَ أَحَدُکُمْ فَلْیَنْضَحْ فَرْجَهٗ بِالْمَاءِ وَلْیَتَوَضَّأْ وُضُوْءَهٗ لِلصَّلٰوةِ (مسلم ص۱۴۳ ج۱ موطا امام مالك ص۲۹ منتقی ابن جارود ص۱۳ ابوداود ص۲۷، ترمذی ص۲۳ عن علی ﷺ)

**ترجمه**: حضرت مقداد ﷺ فرمائی چه مادرسول الله ﷺ نه دمذی په باره کښې پوښتنه وکړه نوهغوی ﷺ وفرمایل چه کله تاسو کښې څوك مذی وه وینی نواستنجاء دې وکړی او اودس دې وکړی لکه دمونځ د اودس په شان.

**مسئله**:- د «ودی» په وتلوسره هم غسل نه فرض کیږی بلکه استنجاء کول او اودس کول ضروری وی، «ودی» هغه سپین قسم اوبو ته ویلې شی چه دهضم دخرابی له کبله دبولونه پس خارجیږی، (هدایه ص۱۲ ج۱)

عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ ﷺ قَالَ الْوَدْیُ الَّذِیْ یَکُوْنُ بَعْدَ الْبَوْلِ فَفِیْهِ الْوُضُوْءُ (بیهقی ص۱۱۵ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابن مسعود ﷺ فرمائی چه ودی کومه چه دبولو نه پس خارجیږی په هغې باندې اودس وی

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ قَالَ: هُوَ الْمَنِیُّ وَالْمَذْیُ وَالْوَدْیُ فَأَمَّا الْمَذْیُ وَالْوَدْیُ فَإِنَّهٗ یَغْسِلُ ذَکَرَهٗ وَیَتَوَضَّأُ وَأَمَّا الْمَنِیُّ فَفِیْهِ الْغُسْلُ (طحاوی ص۳۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه منی مذی او ودی (دري قسمه اوبه دی) پس په مذی او ودی کښې استنجاء او اودس وکړه او په منی کښې غسل دې.

عَنِ الْحَسَنِ فِي الْمَذِيِّ وَالْوَدِيِّ قَالَ يَغْسِلُ فَرْجَهُ وَيَتَوَضَّأُ وُضُوءَهُ لِلصَّلٰوةِ. (طحاوی ص۴۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه مذی او ودی کښې دې استنجاء وکړی او دمونځ دپاره دې اودس وکړی یعنې غسل پکښې فرض نه دې.

همدارنګه دمجاهد رحمه الله اوعکرمه رحمه الله نه هم نقل دی (مصنف ابن ابی شیبه ص۹۲ ج۱)

(۳) احتلام (په خوب کښې دانزال سره) هم غسل فرض کیږی په شرط ددې چه ماده بهر خارجه شی. (هدایه ص۱۱ ج۱ شرح نقایه ص۱۵ ج۱

عَنِ ابْنِ عُمَرَ ﷺ أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ رَجُلٍ اسْتَيْقَظَ مِنْ مَنَامِهِ فَرَأَى بَلَّةً قَالَ لَوْ وَجَدْتُ لَاغْتَسَلْتُ (ابن ابی شیبه ص۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه روایت دې چه ددوی نه دهغه سړی باره کښې پوښتنه وکړې شوه چه دخوب نه بیدار شی اوهغه لوندوالې ولیدلو (جامو وغیره کښې) نو دهغه دپاره څه حکم دې؟ ابن عمر ﷺ وفرمایل کچیرې ما داسې معامله ولیدله نوزه به غسل وکړم.

عَنْ إِبْرَاهِيمَ فِي الرَّجُلِ يَجِدُ الْبَلَلَ بَعْدَ النَّوْمِ قَالَ يَغْتَسِلُ (ابن ابی شیبه ص۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله نه نقل دی که یو سړې دخوب نه بعد لوندوالې د احتلام ومومی، نو هغه لره غسل کول پکار دی.

عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ ﷺ وَعَطَاءٍ قَالَا إِذَا رَأَى بَلَلًا فَلْيَغْتَسِلْ (ابن ابی شیبه ص۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت سعید بن جبیر رحمه الله اوعطاء رحمه الله فرمائی کچیرې لوندوالې بیا مومی نوغسل دې وکړی.

**مسئله**:- دښځې هم دغه حکم دې که دښځې احتلام وشی او ماده یې خارجه شی نو غسل پرې فرض دې. (هدایه ص۱۱ ج۱ شرح نقایه ص۱۱ ج۱)

عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رضي الله عنها قَالَتْ جَاءَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ إِلَى النَّبِيِّ ﷺ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللهِ ﷺ إِنَّ اللهَ لَا يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ فَهَلْ عَلَى الْمَرْأَةِ مِنْ غُسْلٍ إِذَا احْتَلَمَتْ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ نَعَمْ إِذَا رَأَتِ الْمَاءَ (مسلم ص۱۴۶ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ام سلمه رضي الله عنها نه روایت دې چه دحضرت انس ﷺ مورام سلیم رضي الله عنها درسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه اوعرض ئې وکړو چه اې دالله رسوله ! الله جل جلاله دحق دظاهرولو نه حیا نه کوی. نو آیا که دښځې احتلام وشی نوغسل پرې فرض دې، هغوی ﷺ وفرمایل: آو!

غسل پرې فرض کیږی کله چه هغه وه وینی چه ماده ترې خارجه شوې ده.

عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضی اللہ عنہ قَالَ سَاَلَتْ اِمْرَاَةٌ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ عَنِ الْمَرْاَةِ تَرٰى فِيْ مَنَامِهَا مَا يَرَى الرَّجُلُ فِيْ مَنَامِهٖ فَقَالَ اِذَا كَانَ مِنْهَا مَا يَكُوْنُ مِنَ الرَّجُلِ فَلْيَغْتَسِلْ (مسلم ص۱۴۵ ج۱، بخاری ص۴۲ ج۱ عن ام سلمة، ترمذی ص۴۳، ابوداود ص۳۱ ج۱ عن عائشة)

**ترجمه**: حضرت انس رضی اللہ عنہ فرمائی چه یوې ښځې د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه چه کچیرې ښځه داسې خوب وه وینی لکه سړې چه څنګه حالت وینی (یعنی احتلام یې وشی) نوځه به کوی؟ نوهغوی ﷺ وفرمایل: کله چه په ښځه کښې هم هغسې خبره وی لکه په سړی کښې چه وی. (یعنی ماده یې خارجه شی) نو په هغې باندې هم غسل فرض کیږی.

(۴) د ښځې دما هواری ورځې یعنی دحیض نه په پاکیدو باندې هم غسل کول فرض کیږی. (هدایه ص۱۲ ج۱ شرح نقایه ص۱۵ ج۱ کبیری ص۵۴)

((حَتّٰى يَطْهُرْنَ فَاِذَا تَطَهَّرْنَ الخ)).

**ترجمه**: یعنی دحیض په حالت کښې ښځو ته نزدې مه ورځئ یعنی کوروالې ورسره مه کوئ ترڅو چه هغوئ پاکې شوې نوی. اوکله چه هغوی ښې پاکې شی یعنی غسل وکړی نو بیا نزدیکت کوئ.

عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا اَقْبَلَتِ الْحَيْضَةُ فَدَعِى الصَّلٰوةَ وَاِذَا اَدْبَرَتْ فَاغْتَسِلِىْ وَصَلِّىْ (بخاری ص۴۶ ج۱، کنزالعمال ۲۲۲،۲۲۳ ج۱، ابوداود ص۳۸، ۳۷، منتقی ابن جارود ص۴۷)

(۵) دنفاس نه په پاکیدو باندې (یعنی دماشوم دپیدا کیدونه بعد دوینې په بندیدلو ب...ې) هم غسل کول فرض کیږی. هدایه ص۱۲ ج۱، شرح نقایه ص۱۵ ج۱ کبیری ص۵۴)

عَنْ مُعَاذٍ رضی اللہ عنہ اِذَا اَمْضٰى لِلنُّفَسَاءِ سَبْعٌ ثُمَّ رَاَتِ الطُّهْرَ فَلْتَغْتَسِلْ وَلْتُصَلِّ. (مستدرک ص۱۷۶ ج۱ کنزالعمال ص۲۵۴ ج۹)

ترجمه: حضرت معاذ رضی اللہ عنہ فرمائی چه کله په نفاس والاښځو باندې اوه ورځې تیرې شی اوبیا دوئ دپاکی حالت یعنی وینه بنده شی، نوغسل دې وکړی اومونځ دې کوی.

## واجب غسل

د واجب اقسامو دغسل نه یو غسل د مړی دې. (کبیری ص۵۵)

لکه څنګه چه د ام عطیه رضی اللہ عنہا نه روایت دې. (بخاری ص۱۶۷ مسلم ص۳۰۴ ج۱ ترمذی ص۱۶۲)

عَنْ اِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ اَنَّهُ قَالَ غُسْلُ الْمَيِّتِ كَالْغُسْلِ مِنَ الْجَنَابَةِ (ترمذی ص۱۶۲)

**ترجمه**: حضرت ابراهيم نخعي رحمه الله فرمائی چه مړی لره غسل ورکول داسې (لازمی او واجب دی) لکه څنګه چه دجنابت نه غسل کول لازمی دی.

همدارنګه که دسړی ټول بدن باندې نجاست وی . یا ناپاك څاڅکی پرې پريوزی، نوبيا هم غسل کول واجب دی.

## سنت غسل

دجمعې په ورځ دجمعې دمونځ اداکولودپاره غسل کول سنت دی، په جمع کښې خلقو لره دتکلیف نه بچ کولو دپاره اودپاکی دپاره دجمعې غسل کول سنت دی. (هدايه ص۱۱۸ ج شرح نقايه ص۱۵ ج۱، کبيری ص۵۳)

عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ اِذَا جَاءَ اَحَدُكُمُ الْجُمُعَةَ فَلْيَغْتَسِلْ (بخاری ص۱۲۰، ۱۲۲ ج۱، مسلم ص۲۷۹ ج۱، ترمذی ۹۷)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمايی چه کله تاسو کښې څوك دجمعې دمونځ دپاره راځی نوهغه له غسل کول پکاردی.

عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَنْ تَوَضَّاَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَبِهَا وَنِعْمَتْ وَمَنِ اغْتَسَلَ فَالْغُسْلُ اَفْضَلُ (ترمذی ص۹۸)

**ترجمه**: حضرت سمره بن جندب رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمايلی دی: که چادجمعې په ورځ اودس وکړو نو ښه خبره ده اوکه چا غسل وکړو نو غسل ډير افضل دې.

عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رضی الله عنه مِنَ السُّنَّةِ الْغُسْلُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ (آثار السنن ص۸۹ ج۱ بحواله بزار)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چه دجمعې په ورځ غسل کول دسنتو څخه دی.

عَنْ عِكْرِمَةَ اَنَّ نَاسًا مِنْ اَهْلِ الْعِرَاقِ جَاءُوْ فَقَالُوْا يَا ابْنَ عَبَّاسٍ اَتَرَى الْغُسْلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَاجِبًا قَالَ لَا وَلٰكِنَّهُ اَطْهَرُ وَخَيْرٌ لِمَنِ اغْتَسَلَ وَمَنْ لَمْ يَغْتَسِلْ فَلَيْسَ بِوَاجِبٍ (ابوداود ص۱۰ ج۱، طحاوی ص۸۳ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عکرمه رضی الله عنه نه روایت دې چه دعراق نه څه خلق راغلل اوحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه ئې پوښتنه وکړه چه آيا دجمعې په ورځ غسل کول ستاسو په نيزواجب دی؟ نوهغوئ وفرمايل چه نه! ليکن دا اطهر اوبهتر دی اوچه څوك غسل نه کوی نوواجب پرې نه دی.

(۲) داخترونو دپاره هم غسل کول سنت دی. (هدايه ص۱۱۸ ج۱ شرح نقايه ص۱۶ ج۱؛ کبيری ص۵۵)

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَغْتَسِلُ يَوْمَ الْفِطْرِ وَيَوْمَ الْأَضْحٰى (ابن ماجه ص۹۴)

**ترجمه**: حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه رسو ل الله ﷺ به دعید الاضحی اوعید الفطر په ورځ باندې غسل کولو.

عَبْدُاللهِ بْنُ عُمَرَ ﷺ كَانَ يَغْتَسِلُ يَوْمَ الْفِطْرِ قَبْلَ أَنْ يَغْدُوَ إِلَى الْمُصَلّٰى (موطا امام مالك ص۱۶۵)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن عمر ﷺ به دعید الفطر په ورځ عید ګاه ته دتللو نه وړاندې غسل کولو.

عَنْ زَاذَانَ أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ عَلِيًّا ﷺ عَنِ الْغُسْلِ فَقَالَ اغْتَسِلْ كُلَّ يَوْمٍ إِنْ شِئْتَ قَالَ لَا بَلِ الْغُسْلُ الْمُسْتَحَبُّ قَالَ اغْتَسِلْ كُلَّ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَيَوْمِ الْفِطْرِ وَيَوْمِ النَّحْرِ وَيَوْمِ عَرَفَةَ. كنز العمال ص۳۴۱ ج۱ طحاوی ص۸۴ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ذازان نه روایت دې چه یوسړی دحضرت علی ﷺ نه دغسل په باره کښې پوښتنه وکړه نوحضرت علی ﷺ وفرمایل کچیرې غواړې نوروزانه غسل کوه، هغه سړی عرض وکړو چه حضرت! دمستحب غسل په باره کښې پوښتنه کووم، حضرت علی ﷺ وفرمایل: بیا ته دهرې جمعې په ورځ دعید الاضحی، عید الفطر، او دعرفې په ورځ غسل کوه.

قَالَ هُشَيْمٌ قُلْتُ لِيَزِيْدَ بْنِ أَبِيْ زِيَادٍ هَلْ مِنْ غُسْلٍ غَيْرَ يَوْمِ الْجُمُعَةِ قَالَ نَعَمْ يَوْمُ عَرَفَةَ وَيَوْمُ فِطْرٍ وَيَوْمُ أَضْحٰى وَيَوْمُ الْجُمُعَةِ (مجمع الزوائد ص۱۹۸ ج۲) بحواله ابویعلی)

**ترجمه**: هشیم رحمه الله فرمائی چه ما له زیدبن ابی زیاد رحمه الله نه پوښتنه وکړه چه آیا دجمعې نه علاوه هم غسل سنت دې؟ هغوی وفرمایل: آو! دعرفې په ورځ، دغټ اختر په ورځ او د جمعې په ورځ هم غسل کول سنت دی.

(۳) دعرفې په ورځ دوقوف دپاره د زوال نه بعد هم غسل کول سنت دی (هدایه ص۱۸۳ ج۱ شرح نقایه ص۱۲ ج۱)

عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ ﷺ أَنَّهُ كَانَ إِذَا رَاحَ إِلَى الْمُعَرَّفِ اغْتَسَلَ. (مصنف ابن ابی شیبه ص۶۸ ج۴ مطبوعه حیدر آباد)

**ترجمه**: حضرت نافع دحضرت عبد الله بن عمر ﷺ باره کښې بیان کوی چه کله به هغوی ﷺ د زوال نه بعد دمعروف (دوقوف ځائې ته) تللو نو اول به ئې غسل کولو.

عَنْ إِبْرَاهِيْمَ قَالَ امْضِ إِلَى عَرَفَاتٍ فَإِذَا كَانَ عِنْدَ زَوَالِ الشَّمْسِ فَاغْتَسِلْ إِنْ وَجَدْتَ مَاءً وَإِلَّا فَتَوَضَّأْ (ابن ابی شیبه ص۶۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله فرمائی چه عرفات ته ځه! چه کله د نمرد زوال وخت شی، نوکه اوبه دې بیا موندې نو غسل وکړه اوکه اوبه نوې نو اودس وکړه.

(۴) د احرام تړلو په وخت کښې هم غسل کول سنت دی. (هدایه ص۱۷۲ ج۱ شرح نقایه ص۱۶ ج۱، کبیری ص۵۵)

عَنِ ابنِ عُمَرَ ﷺ قَالَ اِنَّ مِنَ السُّنَّةِ اَنْ یَّغْتَسِلَ اِذَا اَرَادَ اَنْ یُّحْرِمَ وَاِذَا اَرَادَ اَنْ یَّدْخُلَ الْمَکَّۃَ (مستدرک حاکم ص۴۴۷ ج۱، مصنف ابن ابی شیبه ص۴۳ ج۴)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمرﷺ فرمائی چه دا سنت دی چه کله څوک داحرام تړلو اراده وکړی نوغسل دې کوی اوچه کله څوک مکې مکرمې ته د داخلیدو اراده وکړی نوبیا دې هم غسل کوی

عَنْ خَارِجَۃَ بْنِ زَیْدِ بْنِ ثَابِتٍ ﷺ عَنْ اَبِیْهِ ﷺ اَنَّهٗ رَاَی النَّبِیَّ ﷺ تَجَرَّدَ لِاِهْلَالِهٖ وَاغْتَسَلَ. (ترمذی ص۱۳۳)

**ترجمه** : حضرت زیدبن ثابت ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ د احرام تړلوپه وخت غسل وکړو.

عَنْ نَافِعٍ رحمه الله اَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ ﷺ کَانَ یَغْتَسِلُ لِاِحْرَامِهٖ قَبْلَ اَنْ یُّحْرِمَ. (مؤطا امام مالک ص۳۲۸)

**ترجمه** : حضرت نافع رحمه الله فرمائی چه حضرت عبدالله بن عمرﷺ به داحرام تړلو نه وړاندې غسل کولو.

## مستحب غسل

کله چه یوغیرمسلم مسلمان شی نودهغه دپاره هم غسل کول مستحب دی. (کبیری ص۵۶).لکه څنګه چه په حدیث شریف کښې راغلې دی.

عَنْ قَیْسِ بْنِ عَاصِمٍ ﷺ اَنَّهٗ اَسْلَمَ فَاَمَرَهُ النَّبِیُّ اَنْ یَّغْتَسِلَ بِمَاءٍ وَّسِدْرٍ (ترمذی ص۱۱۱)

**ترجمه** : حضرت قیس بن عاصم ﷺ فرمائی چه کله ما ایمان راوړلونورسول الله ﷺ ماته حکم وکړو چه په اوبو کښې دبیرې پاڼې واچوه او غسل وکړه.

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَۃَ اَنَّ ثُمَامَۃَ بْنَ اُثَالٍ اَوْ اُثَالَۃَ اَسْلَمَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذْهَبُوْا بِهٖ اِلٰی حَائِطِ بَنِیْ فُلَانٍ فَمُرُوْهُ اَنْ یَّغْتَسِلَ (مجمع الزوائد ص۲۸۳ بحواله بزار واحمد).

**ترجمه** : حضرت ابوهریره ﷺ فرمائی چه ثمامه بن اثال چه څه وخت مسلمان شونورسول الله ﷺ وفرمایل : دې فلانی باغ ته بوځئ چه غسل وکړی.

عَنْ قَتَادَۃَ بْنِ اَبِیْ هِشَامٍ ﷺ قَالَ اَتَیْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ فَقَالَ لِیْ یَا قَتَادَۃُ اغْتَسِلْ (مجمع الزوائد ص۲۸۳ بحواله طبرانی کبیر)

**ترجمه** : حضرت قتاده بن ابی هشام ﷺ فرمائی چه کله زه درسول الله ﷺ په خدمت کښې (داسلام راوړلوپه غرض) حاضر شوم، نوهغوی ﷺ وفرمایل چه : اې قتاده ! غسل وکړه.

**مسئله** :- لیکن که داسې (غیرمسلم) سړې دجنابت په حالت کښې وُو نوبیا دهغه دپاره غسل

کول مؤکد (واجب او ضروري) دی. (شرح وقایه ص۷۷ ج۱، کبیري ص۵۶).

(۲):- ښکر لګولو نه پس غسل کول مستحب دی. (کبیري ص۵۵).

عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ يُغْتَسَلُ مِنْ اَرْبَعٍ مِنَ الْجَنَابَةِ وَيَوْمِ الْجُمُعَةِ وَمِنْ غُسْلِ الْمَيِّتِ وَالْحِجَامَةِ (مستدرك حاكم ص۱۶۳، ابوداود ص۵۱ ج۱)

**ترجمه**: ام المؤمنین حضرت عائشه فرمائی چه رسول الله ﷺ به دځلورو خبرونه دغسل کولو په باره کښې حکم کولو: دجنابت نه، دجمعې په ورځ اومړی ته دغسل ورکولو نه پس او دښکر لګولو نه وروسته.

(۳) هفته کښې یو ځل هرمسلمان دپاره غسل کول مستحب دی، کچیرې څه عذر نه وی.

عَنْ جَابِرٍ ﷺ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ: اَلْغُسْلُ وَاجِبٌ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ فِيْ كُلِّ اُسْبُوْعٍ يَوْمًا وَهُوَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ. (طحاوی ص۸۲ ج۱).

**ترجمه**: حضرت جابر ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی چه په هفته کښې یوه ورځ غسل کول په هرمسلمان باندې مؤکد (واجب) دی او هغه یوه ورځ دجمعې ورځ ده.

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ يَقُوْلُ حَقٌّ لِلّٰهِ وَاجِبٌ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ فِيْ كُلِّ سَبْعَةِ اَيَّامٍ يَغْتَسِلُ. (طحاوی ص۸۳ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابوهریره ﷺ فرمائی چه دالله تعالی دطرفنه مؤکد حق دې په هر مسلمان باندې په اوه ورځو کښې چه هغه غسل وکړی.

(۴) مکې مکرمې ته د داخلیدو په وخت غسل کول مستحب دی. (کبیري ص۵۵)

عَنْ نَافِعٍ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ ﷺ اِذَا دَخَلَ اَدْنَى الْحَرَمِ اَمْسَكَ عَنِ التَّلْبِيَةِ ثُمَّ يَبِيْتُ بِذِيْ طُوًى ثُمَّ يُصَلِّيْ بِهِ الصُّبْحَ وَيَغْتَسِلُ وَيُحَدِّثُ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يَفْعَلُ ذٰلِكَ. (بخاری ص۲۱۳ ج۱، مسلم ص۴۱۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت نافع ﷺ فرمائي چه حضرت عبدالله بن عمر ﷺ چه به کله دحرم په حدودو کښې داخلیدلو نو تلبیه ویل به ئې موقوف کړل او بیا به ئې په ذی طوی مقام کښې شپه تیروله، بیا به یې دسبا مونځ ادا کړو او غسل به ئې وکړو او ابن عمر ﷺ به دا بیان کولو چه رسول الله ﷺ به هم داسې کول.

## د اوبو حکمونه

**هغه اوبه چه هغې سره پاکی جائزده**:- د داسې اوبو مختلف قسمونه دی چه هغې سره اودس، غسل او طهارت کول جائزدی.

(۱) هغه اوبه چه دباران نه حاصلیږی. (شرح نقایه ص۱۸ ج۱، هدایه ص۱۳ ج۱، کبیري ص۸۸).

وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً طَهُوْرًا. (الفرقان آیت ۱۱)

**ترجمه**: اومونږ داسمان دطرف (وریځې وغیره) نه پاکې اوپاکوونکې اوبه نازلې کړې دي.

وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُمْ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً لِيُطَهِّرَكُمْ بِهِ (الانفال آیت ۱۱)

**ترجمه** اوهغه الله تعالی تاسوباندې داسمان نه اوبه رانازلوی، دې دپاره چه هغې سره تاسو پاك او صفا کړي.

عَنْ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ ﷺ قَالَ لَقَدْ رَاَيْتُنِيْ مَعَ النَّبِيِّ فِيْ مَآءٍ مِنَ السَّمَآءِ وَاِنِّيْ لَاَدْلُكُ ظَهْرَهٗ وَاَغْسِلُهٗ. (سنن الكبرى للبيهقي ص۵ ج۱)

**ترجمه**: حضرت سعد بن ابی وقاص ﷺ فرمائي چه ماځپل ځان دنبي کریم ﷺ سره د باران په اوبو کښې لیدلوچه ما دنبي کریم ﷺ شا مبارکه مږله، اوما ورسره دغسل خدمت کولو.

**مسئله** :- په همدې سلسله کښې که دشبنم اوبه دومره مقدارکښې جمع شي چه اودس ورسره کولې شي، او همدغه شان د واورې اوګلئ چه ویلی شی دهغې اوبه هم دي. (شرح نقایه ص۱۶ ج۱).

لکه ځنګه چه د رسول الله ﷺ ارشاد دې:

اَللّٰهُمَّ اغْسِلْ خَطَايَايَ بِالْمَآءِ وَالثَّلْجِ وَالْبَرَدِ (بخاری ص۱۰۳ ج۱، مسلم ص۲۱۹ ج۱، نسائي ص۱۳ ج۱)

**ترجمه**: اې الله زما ګناهونه په اوبو او په واوره او ګلئ سره وه مینځه.

اَللّٰهُمَّ اغْسِلْهُ بِالْمَآءِ وَالثَّلْجِ وَالْبَرَدِ (مسلم ص۳۱۱ ج۱، نسائي ص۲۸ ج۱)

**ترجمه**: اې الله ! هغه لره په اوبو او واوره او ګلئې سره وه مینځه.

عَنْ شُعْبَةَ قَالَ سَاَلْتُ الْحَكَمَ عَنِ الْغُسْلِ وَالْوُضُوْءِ بِالثَّلْجِ فَقَالَ يُكَسِّرُهٗ وَيَغْتَسِلُ وَيَتَوَضَّأُ (مصنف ابن ابی شيبه ص۱۷۵ ج۱)

**ترجمه**: حضرت شعبه فرمائی چه ما دحضرت حکم نه د واورې په اوبو دغسل او داودس کولو په باره کښې پوښتنه وکړه، نوهغوی وفرمایل چي واوره ماتوه اودهغې د اوبو نه غسل هم کوه اواودس هم کوه.

قَالَ وَكِيْعٌ وَكَانَ سُفْيَانُ يَسْتَحْسِنُهٗ وَيَغْتَسِلُ مِنْهُ وَيَتَوَضَّأُ. (ابن ابی شيبه ص۱۷۵ ج۱)

**ترجمه**: حضرت وکیع فرمائی چه حضرت سفیان به دواورې اوبو سره اودس او غسل مستحسن او بنه ګڼلو

عَنِ الْحَسَنِ سُئِلَ عَنْ رَجُلٍ اغْتَسَلَ بِالثَّلْجِ فَاَصَابَهُ الْبَرْدُ فَمَاتَ فَقَالَ يَالَهَا مِنَ الشَّهَادَةِ (ایضا)

**ترجمه**: دحضرت حسن بصری نه پوښتنه وشوه چه یوسړی دواورې په اوبو غسل وکړو نو دې

له یخنی نه مرشو، نو هغه وویل: څه ډیر ښه شهادت دې دده دپاره.

(۳) هغه اوبه چه دزمکې نه حاصلیږی مثلا دچشمې اوحوض وغیره اوبه. (هدایه ص۱۳ ج۱ شرح نقایه ص۱۶ ج۱، کبیری ص۸۸)

دالله تعالی ارشاد دې: أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَسَلَكَهُ يَنَابِيعَ فِي الْأَرْضِ (الزمر آیت ۲۱)

**ترجمه**: الله تعالی د آسمان دطرف نه اوبه نازلې کړې هغه ئې په زمکه کښې دچشموو غیره په شکل کښې جاری کړې.

(۴) دکویانو (څاه ګانو) اوبه. (هدایه ص۱۳ ج۱ شرح نقایه ص۱۶ ج۱، کبیری ص۸۸)

الله تعالی فرمایی: وَبِئْرٍ مُعَطَّلَةٍ وَقَصْرٍ مَشِيدٍ (الحج آیت ۴۵)

**ترجمه**: او دخلقو دهلاکت نه بعد ډیرې څاه ګانې شړې پرتې دی او ډیرمحلونه وران او ویجاړ پراته دی.

په حدیث کښې دی چه رسول الله ﷺ دبیربضاعه نه اودنورو کویانو د اوبونه دپاکی دپاره اوبه استعمال کړې دی.

(۵) د وادیانو (غتو کندو) اونهرونو اوبه (هدایه ص۱۳ ج۱ شرح نقایه ص۱۶ ج۱، کبیری ص۸۸)

الله تعالی فرمایی: أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَسَالَتْ أَوْدِيَةٌ بِقَدَرِهَا (الرعد آیت ۱۷)

**ترجمه**: الله تعالی اوبه رانازلې کړې (په زمکه کښې ئې په وادیانو اوپه نهرونو کښې وبهولې) پس وبهیدې کندې دخپلې اندازې مطابق.

(۶) د دریابونو اوبحرونو اوبه (هدایه ص۱۳ ج۱ شرح نقایه ص۱۶ ج۱ کبیری ص۸۸)

**ترجمه**: حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه یو سړی درسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه:

أَفَنَتَوَضَّؤُ مِنْ مَاءِ الْبَحْرِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ هُوَ الطَّهُورُ مَاءُهُ وَالْحِلُّ مَيْتَتُهُ (مؤطا امام مالك ص۱۰ النسائی ص۶۳ ترمذی ص۲۶ منتقی ابن جارود ص۲۵ ابن ابی شیبه ص۱۳۱ ج۱)

**ترجمه**: چه آیا مونږ دبحر د اوبونه اودس کولې شو؟ نوهغوی ﷺ وفرمایل دبحر اوبه پاکې دی اوددې ښکار (مهی) حلال دې.

عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ قَالَ سُئِلَ عَنْ أَبِي بَكْرِنِ الصِّدِّيقِ أَيَتَوَضَّأُ مِنْ مَاءِ الْبَحْرِ فَقَالَ هُوَ الطَّهُورُ مَاءُهُ وَالْحَلَالُ مَيْتَتُهُ. (ابن ابی شیبه ص۱۳۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو الطفیل نه روایت دې چه حضرت ابو بکر صدیق نه پوښتنه وکړې شوه چه آیا د بحر په اوبو سره اودس کول جائزدی او که نه؟ نوهغوی وفرمایل: چه ددې اوبه پاکې دی او

ددې مردار (دماهي ښکار) حلال دي .(ابن ابي شيبه ص۱۳۰ ج۱)

عَنْ عِكْرِمَةَ أَنَّ عُمَرَ سُئِلَ عَنْ مَاءِ الْبَحْرِ، فَقَالَ: أَيُّ مَاءٍ أَنْظَفُ مِنْهُ (ابن ابي شيبه ص۱۳۰ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عکرمه ﷺ نه روایت دې چه حضرت عمر ﷺ نه پوښتنه وکړې شوه چه دبحراوبه څنګه دی؟ هغوی وفرمایل چه : ددې نه زیاتې صفا اوبه کومې کیدې شی؟.

همدارنګه دعبدالله بن عباس ﷺ حضرت حسن بصری رحمة الله حضرت عکرمه ﷺ حضرت طاؤس رحمة الله حضرت ابراهیم نخعی رحمة الله حضرت عطا رحمة الله حضرت سعیدبن المسیب رحمة الله وغیره نه هم ثابت دی.

دمطلقو اوبو په باره کښې درسول الله ﷺ ارشاد دې چه:

عَنْ رَاشِدِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ اَلْمَاءُ لَا يُنَجِّسُهُ شَيْءٌ إِلَّا مَا غَلَبَ عَلَى لَوْنِهِ أَوْ طَعْمِهِ أَوْ رِيْحِهِ (الطحاوی ص۱۹ ج۱، تلخیص الجبیر ص۱۵ ج۱ وصح ابوحاتم ارساله)

**ترجمه** : راشدبن سعد ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائی چه : هیڅ څیزاوبه نشی خرابولې ترکومې چه دهغې رنګ ،خونداوبوئ کښې بدلون نه وی راغلې.

**مسئله** : دسیلاب په اوبوسره اودس او طهارت جائزدې . (هدایه(ص۱۴ ج۱ شرح نقایه ص۱۶ ج۱، کبیری ص۹۰)

## هغه اوبه په کومو سره طهارت جائزنه دې ؟

(۱) د ونواودمیوونه چه کومې اوبه نچوړشی، هغې سره طهارت جائزنه دې ځکه چه هغه مطلقې اوبه نه دی، هدایه ص۲۱ ج۱ شرح نقایه ص۱۸ ج۱، کبیری ص۸۸)

(۲) هغه اوبوسره هم طهارت جائزنه دې چه هغې سره بل څیز یوځای شی او اوبه د خپل طبیعت او مزاج نه وباسی لکه شربت،سرکه، عرق ګلاب (د ګلابو اوبه) دکورخو (لوبیا) اوبه، ځکه چه دا په حقیقت کښې مطلقې اوبه نه دی . (جامع صغیر ص۷ هدایه ص۱۳ ج۱، کبیری ص۸۸)

(۳) ولاړو اوبو کښې که نجاست پریوځی نوهغې سره اودس جائز نه دې، خواه نجاست لږ وی اوکه ډیر وی .(جامع صغیر ص۸ هدایه ص۱۳ ج۱، کبیری ص۸۸ شرح نقایه ص۱۸ ج۱).

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ لَا يَبُولَنَّ أَحَدُكُمْ فِي الْمَاءِ الدَّائِمِ الَّذِي لَا يَجْرِي ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيهِ. (بخاری ص۳۷ ج۱، مسلم ص۱۳۸ ج۱، طحاوی ص۱۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابوهریره ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل : تاسوکښې دې څوک په روانو اوبو کښې بول نه کوی (داسې اوبه چه جاری نه وی)، اوبیا پدې کښې غسل هم وکړی .( دا کار جائزنه دې)

عَنْ جَابِرٍ ﷺ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ اَنَّهُ نَهٰى اَنْ يُّبَالَ فِي الْمَآءِ الرَّاكِدِ (مسلم ص۱۳۸ ج۱، مصنف عبدالرزاق ص۹۰ ج۱، طحاوی ص۱۸ ج۱)

**توجمه**: حضرت جابر ﷺ فرمائي چه رسول الله ﷺ په ولاړو اوبو کښې دبولو کولو نه منع فرمایلې ده

عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ اِذَا اسْتَيْقَظَ اَحَدُكُمْ مِنْ نَوْمِهٖ فَلَا يَغْمِسْ يَدَهٗ فِي الْاِنَاءِ حَتّٰى يَغْسِلَهَا (بخاری ص۲۸ ج۱، مسلم ص۱۳۶ ج۱، موطا امام محمد ص۴۸)

**توجمه**: ماء مستعمل چه دېي اودسئ لرې کولو دپاره یادقربت یعنی ثواب او اجر حاصلولو دپاره په بدن باندې استعمال شي. داسې اوبو سره پاکی نشی حاصلیدې ، ددې استعمال د اودس او دغسل دپارۀ جائزنه دې. (هدايه ص۱۶ ج۱، شرح نقايه ص۱۸ ج۱)

**مسئله**:- که اوبو سره څه څيز يوځای شي اوهغه ددې اوبو اوصاف ثلاثه (رنګ، بوی اوخوند) نه څه وصف بدل کړي، نوهغې اوبو نه هم طهارت کول جائز دې ، لکه څنګه چه اوبو کښې اکثر دسيلاب خټه ګډه شی. يازعفران، صابون، اشنان (ديوبوټی نوم دې) وغيره څه څيزهم ګډ شی نوهغې نه هم اودس اوغسل کول جائزدی. (هدايه ص۱۳ ج۱، شرح نقايه ص۱۶ ج۱، کبيری ص۹۰)

عَنْ اُمِّ هَانِيٍّ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ اِغْتَسَلَ هُوَ وَمَيْمُوْنَةُ مِنْ اِنَاءٍ وَّاحِدٍ فِيْ قَصْعَةٍ فِيْهَا اَثَرُ عَجِيْنٍ (نسائی ص۲۷ ج۱)

**توجمه**: حضرت ام هانی رضی الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوام المؤمنين حضرت ميمونه رضی الله عنها د يولوښی نه اوبه راخيستې. اوغسل يې وکړوچه هغه لوښی کښې د لمدو شوو اوړو اثر ؤو.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ اَنَّ رَجُلًا كَانَ مَعَ النَّبِيِّ ﷺ فَوَقَصَتْهُ نَاقَتُهٗ وَهُوَ مُحْرِمٌ فَمَاتَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِغْسِلُوْهُ بِمَآءٍ وَّسِدْرٍ (بخاری ص۲۴۹ ج۱، مسلم ص۳۸۴ ج۱)

**توجمه**: حضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه يوسړې درسول الله ﷺ سره دحج په سفر کښې ؤو، داحرام په حالت کښې هغه داوښې نه راپريوتلو، او وفات شو، نورسول الله ﷺ اوفرمائيل ده ته په اوبو کښې دبيرې پاڼې واچوئ او دغه اوبو سره غسل ورکړئ.

عَنْ اُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ قَالَتْ تُوُفِّيَتْ اِحْدٰى بَنَاتِ النَّبِيِّ ﷺ فَقَالَ اِغْسِلْنَهَا بِالسِّدْرِ وِتْرًا وَّاجْعَلْنَ فِيْ اٰخِرِهَا كَافُوْرًا (بخاری ص۱۶۹ ج۱، مسلم ص۳۰۴ ج۱)

**توجمه**: حضرت ام عطيه فرمائي چه درسو ل الله ﷺ دلورګانو نه يوه لور وفات شوه نورسول الله ﷺ زمونږ طرف ته تشريف راوړو او ارشاد ئې وفرمايلو چه : دې ته دبيرې دپاڼو په اوبوسره طاق (وتر) تعداد غسل ورکړئ. او په آخر کښې پکښې کافور واچوئ.

**مسئله**:- دنهر په اوبو او يا جاری اوبوکښې که پليتی پريوزې، نوهغه ناپاکه نه دی، ترڅو چه

په دې اوبو کښې دنجاست اثر معلوم نه وي. یعنی رنګ ،خونداو بوئ ددې تبدیل نشی، لوئ حوض دجاری اوبو په حکم کښې دې . (هدایه ص۱۵ ج۱،شرح نقایه ص۱۷ ج۱، کبیری ص۹۲،۹۳)

عَنْ رَاشِدِ بْنِ سَعْدٍ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَلْمَاءُ لَا یُنَجِّسُهُ شَیْءٌ اِلَّا مَا غَلَبَ عَلٰی لَوْنِهٖ اَوْ طَعْمِهٖ اَوْ رِیْحِهٖ (طحاوی ص۱۹ ج۱،تلخیص الحبیر ص۱۵ ج۱ رکذا قال الزهری (بخاری ص۳۷ ج۱)

**ترجمه** : راشدبن سعد ﷺ فرمائی چه رسول اللهﷺ فرمائی : اوبه په هیڅ څیز نه خرابیږی ترڅو چه دهغې خوند رنګ او بوئ باندې څه ناپاکه څیزغالب نشی،اوهمدارنګه امام زهری هم ویلې دی.

عَنْ جَابِرٍ اَوْ قَالَ اَبِیْ سَعِیْدٍ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فِیْ سَفَرٍ فَانْتَهَیْنَا اِلٰی غَدِیْرٍ وَفِیْهِ جِیْفَةٌ فَكَفَفْنَا وَكَفَّ النَّاسُ حَتّٰی اَتَانَا النَّبِیُّ فَقَالَ مَا لَكُمْ لَا تَسْتَقُوْنَ فَقُلْنَا یَا رَسُوْلَ اللهِ ﷺ هٰذِهِ الْجِیْفَةُ فَقَالَ اِسْتَقُوْا فَاِنَّ الْمَاءَ لَا یُنَجِّسُهُ شَیْءٌ. (طحاوی ص۱۶ ج۱)

**ترجمه** : حضرت جابر ﷺ یا حضرت ابو سعید ﷺ فرمائی چه مونږ د رسو ل الله ﷺ سره وو په یوسفر کښې مونږ یو حوض ته ورسیدو چه په هغې کښې مردار څناور پراته ؤو نو د هغې اوبونه مونږ بند شو او نور خلق هم د استعمالولو نه بند شول، تردې چه رسو ل الله ﷺ تشریف راوړو اوهغوی ﷺ وفرمایل تاسوخلق ددې د استعمال نه ولې منع شوئ؟ مونږعرض وکړو چه حضور! په دې کښې مردار څناور پراته دی، هغوی ﷺ وفرمایل چه کله اوبه (کله ډیرې وی) نو هیڅ څیز یی نه پلیتوی.

اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ ﷺ خَرَجَ فِیْ رَكْبٍ فِیْهِمْ عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ ﷺ حَتّٰی وَرَدُوْا حَوْضًا فَقَالَ عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ ﷺ لِصَاحِبِ الْحَوْضِ هَلْ تَرِدُ حَوْضَكَ السِّبَاعُ فَقَالَ عُمَرُ یَا صَاحِبَ الْحَوْضِ لَا تُخْبِرْنَا فَاِنَّا نَرِدُ عَلَی السِّبَاعِ وَتَرِدُ عَلَیْنَا.

(بیهقی ۲۵۰ ج۱،مصنف عبدالرزاق ص۷۷ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عمرﷺ د یوې ډلې سره په سفرکښې ؤو، پدې ډلې کښې حضرت عمروبن العاصﷺ هم ؤو، دوئ یو حوض ته ورسیدل، نوحضرت عمروبن العاصﷺ دحوض مالك ته وویل چه آیل ستاسو دې حوض ته درندګان (څناور) هم راځی؟ حضرت عمرﷺ وفرمایل : اې دحوض مالکه! ستاسو ددې وضاحت ضرورت نشته او مونږ ته د دې خبر مه راکوه!، ځکه دې ته انسانان هم راځی او درنده ګان هم راځی (نو ټول یی اوبه استعمالوی فلهذا دا ناپاکه ندی)

**مسئله** :- د داسې څناورواوبوپه کښې مړه کیدل چه دینه یې بهیدونکی نوی، هغې سره اوبه نه پلیتیږی لکه مچ ،موچئ ،ماشی، لړم وغیره .(جامع الصغیر ص۸،هدایه ص۱۶ ج۱،شرح نقایه ص۱۸ ج۱)

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ اِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ فِیْ اِنَاءِ اَحَدِكُمْ فَلْیَغْمِسْهُ كُلَّهٗ ثُمَّ لِیَطْرَحْهُ (بخاری

ص۳۶۷ ج۱،ص۶۰ ج۲،ابوداؤد ص۱۸۱ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دي چه رسول الله ﷺ فرمائي چه کله ستاسونه دچا په لوښی کښې مچ پریوزی، نودا په لوښی کښې ښه غوپه کړئ، بیا ئې بهراوغورزوئ» اودا اوبه مشروب وغیره استعمالولې شئ، لیکن که په ګرمو غوړو یامشروب وغیره کښې پریوزی اوحل شی، نوبیاددې مشروب استعمال طبعی طور ناخوښه دی.

**مسئله**:- کوم ځناورچه په اوبو کښې پیداکیږي؟هغه که په اوبو کښې مړه شی نوهغې سره اوبه نه ناپاکه کیږي.لکه ماهي،چینډخ،کونی کبر «پنجپاو» وغیره .(جامع صغیر ص۸،هدایه ص۱۶ ج۱،شرح نقایه ص۸۸ ج۱)

**مسئله**:- **درائی کلین**:- پټرولو کښې چه کومې جامې وینځلې شی، بغیر داوبونه، نود هغې تفصیل دادې چه : کچیرې پاکې اوناپاکې جامې یوځائ اوبوکښې واچولې شی نوهغه نه پاکیږي بلکه پدې طریقې سره پاکې جامې هم ناپاکې شی، دا ضروری ده چه دپاکوجاموسره به ناپاکې نه یوځائ کوي، پاکې جامې به جدا پټرولو کښې ؤاچوې چه دهغې خیري صفاشی، او ناپاکې جامې به درې واره په پاکوپټرولو کښې وه مینځی اوهر واره به ئې وچې کړي، یابه ئې اوبوسره درې وارې وه مینځی نوبیا پاکیږي.

**مسئله**:- جامو باندې ایسری «اوتو» ګرځول مکروه نه دی،بلکه دا په جائز زینت کښې داخل دی

**مسئله**:- هر قسم کچه څرمن ته چه کله رنګ ورکړې شی نوهغه پاکیږي خواه دحلال ځناور وی اوکه دحرام ځناور، ماسوا دخنزیر دڅرمنې نه، چه هغه په هیڅ حال کښې نه پاکیږي. دالله تعالی ارشاد دې (فَإِنَّهُ رِجْسٌ) (الانعام آیت۱۴۵) ترجمه: بیشک هغه خنزیر ناپاکه دې.

اوماسوا دانسان دڅرمنې نه، هغه اګرچه پاکه ده لیکن استعمال ئې حرام دې د اکرام او عزت له کبله .(هدایه ص۱۸ ج۱،شرح نقایه ص۱۹ ج۱)

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ يَقُولُ إِذَا دُبِغَ الإِهَابُ فَقَدْ طَهُرَ (مسلم ص۱۵۹ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه مادرسول الله ﷺ نه آوریدلې دی هغوی ﷺ فرمایل چه کله کچه څرمنه رنګ کړې شی نوهغه پاکه شی

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ أَيُّمَا إِهَابٍ دُبِغَ فَقَدْ طَهُرَ (نسائی ص۱۹۰ ج۲،مسند احمد ص۲۱۹ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائی چه هره کچه څرمن ته چه رنګ ورکړې شی نوهغه پاکه شی.

عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سُئِلَ رَسُولُ اللهِ ﷺ عَنْ جُلُودِ الْمَيْتَةِ فَقَالَ دِبَاغُهَا ذَكَاتُهَا (نسائی ص۱۹۰ ج۲)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائي چه درسول الله ﷺ نه دمردارځناوردڅرمنو په باره کښي پوښتنه وکړې شوه نورسول الله ﷺ وفرمایل چه ددې رنګ کول ددې طهارت دې.

عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبِّقِ رضی الله عنه اَنَّ نَبِيَّ اللهِ فِي غَزْوَةِ تَبُوْكَ دَعَا بِمَاءٍ مِنْ عِنْدِ امْرَاَةٍ قَالَتْ مَا عِنْدِيْ اِلَّا فِيْ قِرْبَةٍ لِيْ مَيْتَةٍ قَالَ اَلَيْسَ قَدْ دَبَغْتِهَا قَالَتْ بَلٰى قَالَ فَاِنَّ دِبَاغَهَا ذَكَاتُهَا. (نسائي ص۱۹۰ ج۲)

**ترجمه** : سلمه بن محبق فرمائي چه رسول الله ﷺ د تبوك دغزا په سفر کښي د يوې ښځې نه اوبه طلب کړې، هغې ښځې عرض وکړو چه ما سره خو نورې اوبه نشته، صرف دې مشکیزه کښې اوبه دی چه د مردارې دڅرمنې نه جوړه شوې ده، نوهغوی ﷺ وفرمایل چه تا ددې دڅرمنې دباغت نه دې کړې؟ (یعنی رنګ کړې شوې نه ده؟) هغې ښځې ووېل چه هو! نوهغوی ﷺ وفرمایل ددې رنګ کول ددې دپاکیدودلیل دې.

**مسئله** :- دخنزیرنه سیوا دټولوځناوروهډوکي او ویښته پاك دی (هدایه ص۱۹ ج۱ شرح نقایه ص۲۰ ج۱)

قَالَ حَمَّادٌ لَا بَاْسَ بِرِيْشِ الْمَيْتَةِ وَقَالَ الزُّهْرِيُّ فِيْ عِظَامِ الْمَوْتٰى نَحْوِ الْفِيْلِ وَغَيْرِهٖ اَدْرَكْتُ نَاسًا مِنْ سَلَفِ الْعُلَمَاءِ يَمْتَشِطُوْنَ بِهَا يَدَّهِنُوْنَ فِيْهَا لَا يَرَوْنَ بِهٖ بَاْسًا وَقَالَ ابْنُ سِيْرِيْنَ وَاِبْرَاهِيْمُ لَا بَاْسَ بِتِجَارَةِ الْعَاجِ (بخاري ص۳۷ ج۱)

**ترجمه** : حضرت حماد رحمه الله فرمائي : د مردارې مرغۍ په بڼرو کښي هيڅ حرج نشته، که اوبو وغیره کښې پریوزي نوهغه نه ناپاکه کوی. حضرت امام زهري رحمه الله دمردار ځناور دهډوکو په باره کښې فرمائي لکه دهاتي (پیل) وغيره هډوکی چه ماسلف (مشران) عالمان لیدلې دی چه هغوئ ددې (نه جوړې شوې) ګومنځې استعمالولې، او ددې نه جوړ شویو لوښوکښې به ئې تیل هم استعمالول اوپه دې کښې هیڅ نقصان نشته، امام محمد بن سیرین او ابراهیم نخعي فرمائي چه دهاتي (پیل) دغاښونو په تجارت کښې هیڅ حرج نشته.

عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ قَالَ وَكَانَ لِاَبِيْ مُشْطٌ وَمُدٌّ مِنْ عِظَامِ الْفِيْلِ (مصنف عبد الرزاق ص۶۹ ج۱)

**ترجمه** : حضرت هشام بن عروه فرمائي چه زما دپلار ګومنزه وه اومد (پیمانه چه تقریبا د یوسیر برابر وی) او هغه دهاتي (پیل) دغاښ نه جوړ شوی وو.

عَنِ الثَّوْرِيِّ عَنْ عَمْرٍو قَالَ لَيْسَ لِصُوْفٍ ذَكَاةٌ اِغْسِلْهُ فَانْتَفِعْ بِهٖ (مصنف عبد الرزاق ص۶۶ ج۱)

**ترجمه** : حضرت سفیان ثوري بیان کوی چه حضرت عمرو رضی الله عنه فرمائي چه د ورۍ دپاره ضروري نه ده چه هغه دې دهغه ځناور وی چه ذبح شوې وی بلکه هغه په وینځلوسره هم استعمالولې شی.

عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ قَالَ اَلصُّوْفُ وَالْمَرْعِزُّ وَالْجِزُّ وَالْقَلُّ لَا بَاْسَ بِهٖ وَبِرِيْشِ الْمَيْتَةِ (مصنف عبد الرزاق ص۶۶ ج۱)

ترجمه : امام ابن سیرین فرمائي ورۍ اونرۍ ورۍ چه د چیلۍ دویښتو لاندې وی، او ورۍ والا

نرۍ ویښته او دګډې ویښته او وړی جدا. یا دوېښتو اوپشم سره یوځای ددې استعمال کښې هیڅ نقصان نشته اودارنګه دمرداري مرغئ وزرې هم پاکې دی.

**مسئله** :- دانسان ویښته او هډوکی هم پاك دی لیکن ددې استعمالول او ددې نه فائده اخیستل حرام دی. (هدایه ص۱۹ ج۱ شرح نقایه ص۲۰ ج۱).

وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ (بنی اسرائیل آیت۷۰) اوخامخا په تحقیق سره مونږبنی آدم ته عزت ورکړې دې.

عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ لَعَنَ اللهُ الْوَاصِلَةَ وَالْمُسْتَوْصِلَةَ.

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی چه د الله تعالی لعنت دې په هغه ښځه باندې چه دنورو ښځو ویښته په خپلو ویښتو کښې لګوی او همدارنګه هغه ښځه چه څوك ئې ورته پکښې لګوی په هغې هم لعنت دې.

وَالْآدَمِيُّ مُحْتَرَمٌ بَعْدَ مَوْتِهِ عَلَى مَا كَانَ فِي حَيَاتِهِ فَكَمَا يَحْرُمُ التَّدَاوِيْ بِشَيْءٍ مِنَ الْآدَمِيِّ الْحَيِّ إِكْرَامًا لَهُ فَكَذٰلِكَ لَا يَجُوْزُ التَّدَاوِيْ بِعَظْمِ الْمَيِّتِ (شرح السیر الکبیر ص۱۲۸ ج۱)

**ترجمه** : اوانسان دمرګ نه پس هم هغسې محترم دې لکه څنګه چه دژوندی انسان یوجزهم د دوا په طور باندې استعمالول حرام دی او دا د انسان دمحترم والی له کبله دی ،نودارنګېه دمړی د اجزاؤ نه هم علاج جائز نه دې.

د انسان ویښته ،څرمن اونور اندامونه استعمالول ممنوع اوحرام دی، دا دانسان دتکریم خلاف دی کوم چه ده ته الله تعالی ورکړې دې ، عالمانو داضطرار په حالت کښې صرف دانسان وینه منتقل کول بلډ ټرانسفیوژن :نقل آلام (Blood. Transfusion) مباح ګرزولې دې هغه هم ډیر په احتیاط سره صرف د ژوند بچ کولودپاره ،کچیرې دچا د ژند تلف ګولو سخته خطره وی اوماهر حکیم یا ډاکټردا وه وایی چه کچیرې ده ته وینه ونه رسولې شوه نودده بدن به ضائع شی اوپه دې حالت کښې دوینې په ځای بل څه دوائی هم موجوده نوی، نو په داسې حالت کښې دا مباح دی. لیکن سترګې، زړه او دتولید اوتناسل نور اندامونه یابدن هډوکئ وغیره دبل چا بدن کښې لګول جائز نه دې ، د اضطرار په حالت کښې د ژوند بچ کولودپاره دمرداري، خنزیر،شرابو وغیره اباحت شته دې لیکن محض پیوندکاری او دسائنسی ترقیاتوپه نظر کښې نیولو سره دانسان اعضاء د یوبل سره دپیوندکاری رجحان نهایت خطرناك دې ، دې سره خو به دتمام انسانیت بهترین قدر اوقیمت پایمال شی اواسلام چه کوم داخلاقو معیار قائم کړیدې هغه به بالکل خاورې شی، کچیرې دمړو دبدنونو نه سترګې، زړه، ګردې ،جګر، رحم، اوشرمګاهونه راویستو سره د مریضو خلقوپه بدنونو کښې ولګولې شی او دارنګه شفاء پرې حاصله شی، نوددې نه زیاته بې غیرتی اوبې شرمی،او دبې حیایی مظاهره به بله کومه وی. أَعَاذَنَا اللهُ مِنْهَا.

# دکوهیانو مسائل

دکوهی دننه که ګندګی پریوځی نودهغې دپاکیدو او نا پاکیدو په باره کښې چه کوم احکام فقهاء کرامو لیکلی دی نوهغه ټول دصحابه کرامو او تابعینو او دسلفو د آثارو په اتباع مبنی دی دعقل او دقیاس خلاف دی ځکه چه عقلی او قیاس خو دا غواړی چه که یوځل په کوهی کښې ګندګی پریوځی نوبیا خو دهغې دپاکیدو څه امکان نشته، دهغې بندول پکار دی لکه څنګه چه دبشر معتزلی همدا مسلك دې ، ځکه چه ګندګی کله په اوبو کښې ننوتله نوهغه ګندګی دیوالونو پورې هم نښلی ، او دارنګه لاندې ختـه کښې هم ننوزی نوهغه په هیڅ طریقې سره نه پاکیږی لیکن دمشرانو د آثارو دا بیان دې چه کوهیان هم پاکیږی کله چه په کوهی کښې نجاست واقع شی او دهغې ټولې اوبه وه ویستلې شی نو اوبه ،بورکه، رسۍ، دیوالونه اوختـه په ټولو باندې دپاکیدو حکم کیږی.

**مسئله** :- فقهاء کرام فرمائی که په کوهی کښې یوه یا دوه پچې پریوزی، نواوبه ناپاکې اوفاسدې نه دی ، په فراخه ځایونو (سحرا ګانو) کښې چه کوم کوهیان وی په هغې کښې اکثر هوا وغیره سره چه کومې سوتې پچې وغیره پریوزی، مجبوراً لږ نجاست معاف ګڼلې شی، دکونترې اومرغۍ ګندګی که کوهې ته پریوزی نو هغې سره هم اوبه نه ناپاکه کیږی. (جامع صغیر ص۸،هدایه ص۱۹ ج۱،شرح نقایه ص۲۱، کبیری ص۱۶۱)

**مسئله** :- حضرت امام ابو حنیفه او امام ابو یوسف فرمائی که بکرۍ په کوهی کښې تش بول وکړی نوټولې اوبه به ترې ویستل پکار دی .(جامع صغیر ص۸،هدایه ص۱۹ ج۱)

حضرت امام محمد فرمائی چه دکوموځناوروغوښه حلاله ده دهغې بولو سره اوبه نه نجسې کیږی، لیکن که دا بول د اوبو نه زیات وی نو بیا به دا اوبه پاکونکی (مطهرې) نه وی. دامام محمد په نیزد دماکول اللحم ځناورو تش بول هسې هم ناپاك ندی، دهغوی استدلال دعرینیینو حدیث دې . چه په هغې کښې رسول الله ﷺ هغه خلقو ته داوښانو دتشو بولو دڅښکلو حکم کړې ؤو. (مسلم ص۵۷ ج۲،ابوداؤد ص۲۴۳ ج۲،نسائی ص۵۷ ج۱)

حضرت امام ابوحنیفه فرمائی چه رسول الله ﷺ ته دوحی په ذریعه دا معلومه شوې وه چه ددوی شفاء په دې کښې ده. دا عام قانون ندې بیا دا خلق ټول مرتد شوی ؤو، د اوښانو څروونکې یې قتل کړې وو او اوښان یې له ځان سره روان کړی وو، بیا دا خلق ونیول شول. او ددوی نه قصاص واخستلې شو ،دوۍ مسلمانان هم نه ؤو.

عام قانون دتشوبولوپه باره کښې رسو ل الله ﷺ داسی فرمایلې وو :

استنزهوا من البول فان عامة عذاب القبر منه (فتح الباري ص۳۲۹ ج۱ دار قطني ص۱۲۸ ج۱)

**ترجمه**: دتشو بولونه ځان وساتئ ځکه چه عام عذاب دقبر (دبولونه دنه پچ کیدو دوجې نه) وی (چه دتشو بولو څاڅکي وغیره په بدن یا کپړه باندې ونه لګي).

عن ابن عباس رضي الله عنه رفعه الى النبي ﷺ فقال عامة عذاب القبر من البول فتنزهوا من البول (دار قطني ص۱۲۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عباس نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی چه عام طورباندې عذاب قبر دبولو دوجې نه وی، له همدې کبله له عذاب قبر نه ځان وساتئ.

عن ابي هريرة قال قال رسول الله ﷺ اكثر عذاب القبر من البول (مستدرك حاكم ص۱۸۳ ج۱، دار قطني ۱۲۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی اکثر عذاب قبر دبولونه (دنه بچ کیدو دوجې نه واقع) کیږی.

په دې کښې دانسانانو اوحیواناتو بول ټول شامل دی. (هدایه ص۲۰ ج۱)

عن ميمون بن مهران قال بول البهيمة والانسان سواء (مصنف ابن ابي شيبه ص۱۱۶ ج۱)

**ترجمه**: حضرت میمون بن مهران رحمه الله فرمائی چه دځناورو اوانسانانوبول برابردی. (دواړه ناپاك دی)

عن نافع وعبد الرحمن القاسم انهما قالا اغسل ما اصابك من البول البهائم (مصنف ابن ابي شيبه ص۱۱۶ ج۱)

**ترجمه**: حضرت نافع رحمه الله اوعبدالرحمن بن القاسم رحمه الله فرمائی چه دځناوروبول (که په جامه یا بدن) پریوزي نوهغه وه مینځه.

عن ابي مجلز يقول قلت لابن عمر رضي الله عنه بعثت جملي فبال فاصابني بوله قال اغسله قلت انما كان انتضح كذا وكذا يعني يقلله قال اغسله (مصنف ابن ابي شيبة ص۱۱۶ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو مجلز رحمه الله فرمائی چه ما دحضرت ابن عمر رضي الله عنه په وړاندې ذکر وکړوچه ما کله خپل اوښان پاڅول نو هغې بول وکړل نوحضرت ابن عمر رضي الله عنه وفرمایل: دا وه مینځه! ماعرض وکړو چه دبولو څاڅکی ډلته اودلته لګیدلي دی، حضرت ابن عمر رضي الله عنه وفرمایل چه په هر حال دا وه مینځه (یعنی مینځل یې ضروری دی).

خالد بن سلمة ان عليا سئل عن صبي بال في البئر قال ينزح (مصنف ابن ابي شيبه ص۱۶۲ ج۱)

**ترجمه**: خالد بن سلمه رحمه الله فرمائی چه حضرت علی رضي الله عنه نه پوښتنه وکړې شوه چه ماشوم په کوهی کښې بول کړیدی؟ هغوی وفرمایل: ټولې اوبه به ترې راویستلې شي.

**مسئله**:- فقهاءکرام فرمائی چه که په کوهی کښې مړه پریوزی اومړه شی یا مرغئ وغیره مړه

شی نو هغه به د دغې کوهی نه راویستلې شی بیا به دشلونه تر دیرشو بوکوپورې اوبو راویستو سره کوهی پاکیږی که غته بورکه وی نوشل کافی دی، اوکه وړه بورکه وی نو دیرش بورکې به ترې ویستلې شی. جامع صغیرص۸هدایه ص۲۰ ج۱شرح نقایه ۲۱ ج۱، کبیری ص۱۵۷)

عَنْ عَطَاءٍ قَالَ اِذَا وَقَعَ الْجُرَذُ فِي الْبِئْرِ نُزِحَ مِنْهَا عِشْرُوْنَ دَلْوًا (مصنف ابن ابی شیبة ص۱۶۲ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عطاء رحمه الله فرمائی چه کله په کوهی کښې مږه پریوزی نو (دهغې دویستلونه پس) به شل بورکې اوبو ویستلو سره کوهې پاکیږی.

اوبعضو احتیاطاً دځلوېښتو بورکوویستلو حکم کړیدې.

**مسئله**:- چرګه که په کوهی کښې پریوزی اومړه شی (دارنګه پیشو، کونتره وغیره که پریوزی اومړه شی) نو دځلوېښتو نه ترپنځوسو بورکو ویستلو سره پاکیږی. (جامع صغیرص۸هدایه ص۲۰ ج۱شرح نقایه ص۲۱ ج۱، کبیری ص۱۵۷)

عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ فِي الدَّجَاجَةِ تَقَعُ فِي الْبِئْرِ قَالَ يُسْتَقٰى مِنْهَا اَرْبَعُوْنَ دَلْوًا (مصنف ابن ابی شیبة ص۱۶۲ ج۱)

**ترجمه**: حضرت سلمه بن کهیل نه نقل دی چه کچیرې چرګه په کوهی کښې پریوتله نو دهغې نه به ځلوېښت بورکې اوبه راویستلې شی.

عَنِ الشَّعْبِيِّ فِي الطَّيْرِ وَالسِّنَّوْرِ وَنَحْوِهِمَا يَقَعُ فِي الْبِئْرِ قَالَ يُنْزَحُ مِنْهَا اَرْبَعُوْنَ دَلْوًا (طحاوی ص۱۹ ج۱طبع کراچی)

**ترجمه**: حضرت امام شعبی رحمه الله فرمایلې دی چه مرغۍ یا پیشو وغیره په کوهی کښې پریوزی نو هغې نه به ځلوېښت بورکې اوبه ویستلې شی.

حَمَّادِ بْنِ اَبِيْ سُلَيْمَانَ اَنَّهُ قَالَ فِي الدَّجَاجَةِ وَقَعَتْ فِي الْبِئْرِ فَمَاتَتْ قَالَ يُنْزَحُ مِنْهَا قَدْرَ اَرْبَعِيْنَ دَلْوًا اَوْخَمْسِيْنَ (طحاوی ص۱۹ ج۱)

**ترجمه**: حضرت حماد بن ابی سلیمان رحمه الله فرمائی چه کچیرې چرګه په کوهی کښې پریوزی او مړه شی نو هغې نه به ځلوېښت یا پنځوس بورکې اوبه ویستلې شی، (وړې بورکې پنځوس اوغټې ځلوېښت یاځلوېښت به ضرور راویستلې شی اوپنځوس احتیاطاً).

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ فِي الْجُرَذِ وَالسِّنَّوْرِ تَقَعُ فِي الْبِئْرِ قَالَ يُدْلُوْا مِنْهَا اَرْبَعِيْنَ دَلْوًا. (طحاوی ص۲۰ ج۱، مصنف ابن ابی شیبه ص۱۶۲ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابراهیم نخعی نه منقول دی چه کچیرې مږه یا پیشوپه کوهی کښې پریوزی نو دهغې دطهارت دپاره به ځلوېښت بورکې اوبه شراویستلې شی.

عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ اَنَّ زَنْجِيًّا وَقَعَ فِي زَمْزَمَ يَعْنِي فَمَاتَ فَاَمَرَ بِهِ ابْنُ عَبَّاسٍ فَاُخْرِجَ وَاَمَرَ بِهَا اَنْ تُنْزَحَ (دارقطنی

ص۳۲ ج۱ بیهقی ص۲۶۲ ج۱)

**ترجمه** : حضرت امام ابن سیرین رحمه الله نه نقل دی چه یو حبشی دزمزم په کوهی کښې پریوتلو او وفات شو نو حضرت ابن عباس رضی الله عنه حکم وکړو چه اول دې مړې را وه ویستل شی، چه کله هغه را وه ویستل شو نو بیا هغوی حکم وکړوچه دکوهی ټولې اوبه دې را وه ویستل شی.

عَنْ عَطَاءٍ اَنَّ حَبَشِيًّا وَقَعَ فِيْ زَمْزَمَ فَمَاتَ فَاَمَرَ ابْنُ الزُّبَيْرِ فَنُزِحَ مَاءُهَا. (طحاوی ص۱۹ ج۱، مصنف ابن ابی شیبه ص۱۶۲ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عطاء نه نقل دی چه یو حبشی په زمزم کښې پریوتلو اومړشونوحضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه حکم وکړو نو دهغې ټولې اوبه را وه ویستل شوې

**مسئله** :- کچیرې یو کوهی کښې څه ځناور وپړسیدلو یا وچاودلو نوکه وړوکې وی او یاغټ وی خو ټولې اوبه ویستل بی ضروری دی (جامع صغیر ص۱، هدایه ص۲۰ ج۱، شرح نقایه ص۲۰ ج۱، کبیری ص۱۶۰)

عَنْ مَيْسَرَةَ اَنَّ عَلِيًّا رضی الله عنه قَالَ فِيْ بِئْرٍ وَقَعَتْ فِيْهَا فَارَةٌ فَمَاتَتْ قَالَ يُنْزَحُ مَاءُهَا (طحاوی ص۱۹ ج۱)

**ترجمه** : حضرت میسره نه روایت دې چه حضرت علی رضی الله عنه فرمائی که یو کوهی کښې مږه پریوزی او مړه شی (یعنی وپړسیږی) نو دهغې کوهی نه به ټولې اوبه ویستلې شی.

**مسئله** :- کچیرې کوهې چینه دار وی او اوبه په کښې ډیرې وی نو بیا چه کوهی کښې څومره مقدار اوبه وی هغومره مقدار اوبو ویستلوسره به دطهارت حکم کولې شی. (هدایه ص۲۰ ج۱ شرح نقایه ص۲۰ ج۱)

عَنْ عَطَاءٍ اَنَّ حَبَشِيًّا وَقَعَ فِيْ زَمْزَمَ فَمَاتَ فَاَمَرَ ابْنُ الزُّبَيْرِ فَنُزِحَ مَاءُهَا فَجَعَلَ الْمَاءُ لَا يَنْقَطِعُ فَنُظِرَ فَاِذَا عَيْنٌ تَجْرِيْ مِنْ قِبَلِ الْحَجَرِ الْاَسْوَدِ فَقَالَ ابْنُ الزُّبَيْرِ حَسْبُكُمْ (طحاوی ص۱۹ ج۱، مصنف ابن ابی شیبه ص۱۶۲ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عطاء رحمه الله فرمائی چه یو حبشی دزمزم په کوهی کښې پریوتلونوحضرت ابن الزبیر رضی الله عنه حکم وکړوچه ددې ټولې اوبه راروباسئ نودهغې ټولې اوبه را وه ویستلې شوې نو اوبه بې یوشان وبهیدلې ،ځکه چه دحجراسود طرفته چینه جاری وه،نوحضرت ابن الزبیر رضی الله عنه حکم وکړوچه بس دومره کافی دی.

اَنَّ عَلِيًّا قَالَ اِذَا سَقَطَتِ الْفَارَةُ اَوِ الدَّابَّةُ فِي الْبِئْرِ فَانْزِحْهَا حَتّٰى يَغْلِبَكَ الْمَاءُ (طحاوی ص۱۹ ج۱)

**ترجمه** : حضرت علی رضی الله عنه فرمائی چه کله په کوهی کښې مږه یا ددې قسم بل ځناور پریوزی نوددې اوبه را وباسی تر دې چه اوبه په تاسو باندې غالبې راشی.

**مسئله** :- که په کوهی کښې مږه یا بل ځناور وغیره پریوتې وی او نه معلومیږی چه کله پریوتې دې اوهغه پړسیدلې هم نه وی نو دیوې ورځې اویوې شپې مونځونه کوم چه ددې اوبوپه اودس

سره شوې وي راګرځول پکار دي. اوکه پرسيدلې يا رژيدلې وي نودرې ورځې اودرې شپو پورې مونځونه راګرځول پکار دي اوهر هغه څيز چه په دغه خرابو اوبو باندې مينځلې شوې وي صفا کول او مينځل يې پکار دي، دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دغه فتوی ده ۔ (هدايه ص۲۱ ج۱ شرح نقايه ص۲۱ ج۱، کبيری ص۱۶۰)

# د سؤر (پس خوردې) احکام

فقهاء کرام فرمائي چه د پس خوردې يعنې دجوټې څلورقسمونه دي:

(۱) چه پاکه وي لکه دانسان پس خورده خواه که هغه دمؤمن پس خورده وي او يا د کافر، لکه څنګه چه فقهاء کرام فرمائي:

وَسُؤْرُ الْاٰدَمِيِّ وَمَا يُؤْكَلُ لَحْمُهٗ طَاهِرٌ (هدايه ص۲۱ ج۱ شرح نقايه ص۲۲ ج۱، کبيری ص۱۶۷، ۱۶۶)

**ترجمه**: دانسان پس خورده اودهغه څناوروچه غوښه يې خوړلې کيږي پاکه ده.

په دې کښې دحيض والا اونفاس والا ښځه اوجنابت والا اوکافر ټول شريك دي، ځکه چه ددوی نجاست حکمی دې، مشرك او کافر کښې دشرك او دکفر دوجې نه نجاست حکمی پيدا کيږي او همدارنګه دحيض اونفاس والا او دجنابت والا کښې هم شريعت په دې حالت کښې دنجس حکم کړې دې. اوکه نه نو ظاهری طور باندې هيڅ نجاست پکښې نشته.

له همدې کبله رسول الله ﷺ دمشرکانو وفد مسجد ته دننه داخل کړو کله چه خلقو عرض وکړو چه يا رسول الله! دا خلق خو کافردي دوی ته ځرنګه په جومات کښې د داخليدواجازت ورکول کيږي؟ نو رسول الله ﷺ وفرمايل چه:

اِنَّمَا اَنْجَاسُ النَّاسِ عَلٰى اَنْفُسِهِمْ (طحاوی ص۱۷ ج۱)

**ترجمه**: يعنې ددوی نجاست ددوی په باطن (زړونو او ارواحو) کښې دې.

يعنې په ظاهری اجسامو او بدنونو باندې خويې نجاست نشته بلکه ددوی په نفسونو او روحونو کښې نجاست دې.

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ ﷺ خَيْلًا قِبَلَ نَجْدٍ فَجَاءَتْ بِرَجُلٍ مِنْ بَنِيْ حَنِيْفَةَ يُقَالُ لَهٗ ثُمَامَةُ بْنُ اُثَالٍ فَرَبَطُوْهُ بِسَارِيَةٍ مِنْ سَوَارِي الْمَسْجِدِ (بخاری ص۶۲۷ ج۲، مسلم ص۹۳ ج۲، نسائی ص۱۱۷ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابوهريره رضی الله عنه روايت کوی چه رسو ل الله ﷺ يو لښکر دنجد په طرف (ددښمنانود سرکوبۍ دپاره) ليګلې ؤو. هغه لښکر د بنوحنيفه دقبيلې يوسړې بندی راوستلو چه ثمامه بن اثال ورته ويلې کيده. هغه يې د (نبوی) مسجد ستنې پورې وتړلو.

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ سَاَلْتُ النَّبِيَّ ﷺ عَنْ مُوَاكَلَةِ الْحَائِضِ فَقَالَ وَاكِلْهَا (ترمذی ص۳۶

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن سعد ﷺ فرمائی چه مادرسول الله ﷺ نه دحیض والا ښځو سره د یوځای خوراك په باره کښې پوښتنه وکړه نوهغوی ﷺ وفرمایل : تاسو د هغوی سره خوراك کولې شئ اوهغوئ ستاسو سره خوراك کولې شی.

عَنْ عَائِشَةَ كُنْتُ أَشْرَبُ فِي الْإِنَاءِ وَأَنَا حَائِضٌ فَيَأْخُذُهُ النَّبِيُّ ﷺ فَيَضَعُ فَاهُ عَلَى مَوْضِعِ فِيَّ فَيَشْرَبُ (مسلم صـ۱۴۳ ج۱، مصنف عبدالرزاق صـ۱۰۸ ج۱)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه ما به کوم لوښی کښې څښکاك کولو دحیض په حالت کښې نورسول الله ﷺ به هغه لوښې واخستلواوپه هغه ځایئ به یی خوله مبارکه اینبودله په کوم ځایئ چه به ما خوله لګوله.

اوهمدارنګه دامام زهری رحمه الله، امام شعبی رحمه الله، حضرت حسن بصری رحمه الله وغیره نه هم نقل دی.

**مسئله** :- که د یوسړی خوله زخمی وی اوپه دې صورت کښې که هغه اوبه یا څه مشروب څیز ته خوله ورورړی (اووینه یا پیپ وغیره په دغه څښکاك کښې ګډشی) نو ددغه وینې یا پیپ وغیره له کبله دغه څیز ناپاکه کیږی. همدارنګه که هغه شراب استعمال کړی وی اوخوله یی نوی صفا کړې او په دې حالت کښې یی خوله په لوښی ولګوله نوهغه هم ناپاکه کیږی. (شرح نقایه صـ۲۲ ج۱)

دشرابو پشان دهر ناپاك څیزحکم همدا دې.

**مسئله** :- که قی کوونکې (دپاکولونه وړاندې) دلوښی سره خوله ولګوی نوهغه لوښې اوبه وغیره ناپاکه کیږی، دماشوم (شیرخوار) چه کومې شیدې دخُلې نه راغورزوی، (یعنی قې کوی یی) دهغې هم همدا حکم دې.

دویم قسم پس خورده مکروه ده، لکه دپیشو پس خورده دپیشو دهر وخت کورونوته د راتلو په وجه او لوښو کښې دخوله وهلو په وجه ددې پس خورده مکروه تنزیهی ګڼلې شوې ده، ددې نه بچ کیدل مشکل دی اوپه دې کښې حرج دې. (جامع صغیر صـ۸ هدایه صـ۲۲ ج۱ شرح نقایه صـ۲۳ ج۱، کبیری صـ۱۶۸)

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ وَإِذَا وَلَغَتْ فِيهِ الْهِرَّةُ غُسِلَ مَرَّةً (ترمذی صـ۳۹ وفی روایة دارقطنی صـ۶۵ ج۱ والطحاوی صـ۲۱ ج۱ غُسِلَ مَرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ)

**ترجمه** : حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې .چه رسول الله ﷺ فرمائی چه : پیشو څه وخت په څه لوښی کښې خوله ووهی نو هغه یوځل یا دوه ځله وه مینځئ (کله چه دا ګمان وی چه هغې په پلیتی، کښې خوله وهلې ده).

عَنْ أَبِي قَتَادَةَ ﷺ قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ إِنَّهَا لَيْسَتْ بِنَجَسٍ إِنَّمَا هِيَ مِنَ الطَّوَّافِينَ عَلَيْكُمْ أَوِ الطَّوَّافَاتِ (ترمذی، ص۳۹ موطا امام مالك ص۱۶، طحاوی ص۲۱ ج۱، موطا امام محمد)

**ترجمه**: حضرت ابو قتاده ﷛ فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی چه: پیشوپلیته نه ده بیشکه دا خو په تاسو باندې له چکر لګونکونه ده، د دې پس خوردې نه پرهیز کولو کښې حرج دې.

قَالَ مُحَمَّدٌ لَا بَاْسَ بِأَنْ يَتَوَضَّأَ بِفَضْلِ سُوْرِ الْهِرَّةِ وَغَيْرِهِ، أَحَبُّ إِلَيْنَا مِنْهُ وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيْفَةَ (موطا امام محمد ص۸۳)

**ترجمه**: حضرت امام محمد رحمه الله فرمائی چه د پیشو پس خوردې نه چار اندام (اودس) کولو کښې څه حرج نشته که چیرې د دې نه علاوه نورې اوبه موندلې شی نو هغه زمونږ په نزد ډیربهتر دې، او دا قول د امام ابو حنیفه رحمه الله دې.

عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ كَانَ يَكْرَهُ سُوْرَ السِّنَّوْرِ (مصنف عبدالرزاق ص۹۸، ج۱)

**ترجمه**: حضرت نافع رحمه الله د حضرت ابن عمر ﷛ نه نقل کړې دی چه هغه د پیشو پس خورده مکروه ګڼلې ده.

**مسئله**: فقهاء کرام فرمائی که چیرې پیشو مږه خوړلې وی، یاېې پلیتئ کښې خوله وهلې وی، نو تقریبا پنځلس اویا شل دقیقو کښې که هغه په لوښی کښې یا مشروب څیز کښې خوله ووهی نوهغه به مکروه تحریمی وی اوکه نه نو بیا به مکروه تحریمی نوی. (هدایه، ص۲۲ ج۱، شرح نقایه، ص۲۲ ج۱، کبیری ص۱۶۹، فتح القدیر، ص۸۸، ۸۷، ج۱)

قَالَ يَحْيَى قَالَ مَالِكٌ لَا بَأْسَ بِهَا إِلَّا أَنْ تَرَى فِي فِيْهَا نَجَاسَةٌ. (موطا امام مالك ص۱۷)

**ترجمه**: حضرت امام مالك رحمه الله نه نقل دی چه د پیشو د پس خوردې په استعمال کښې څه حرج نشته، مګر دا که چیرې د هغې خوله کښې ګندګې وه وینئ تو بیا به هغه مکروه وی.

پیشو اکثر د خپل ښکار وغیره نه پس خپله خوله صفا کوې دا د دې عادت دې.

دریم قسم (پس خورده) نجسه او ناپاکه ده، لکه د خنزیر یا د درنده څناورو پس خورده. خنزیر خو نجس العین دې او د درنده څناورو غوښه ناپاکه ده، د دې لعاب هم ناپاك دی، لهذا د دې پس خورده هم ناپاکه وی. (هدایه ص۲۲ ج۱، شرح نقایه، ص۲۲ ج۱، کبیری ۱۶۷،)

**مسئله**: د سپی پس خورده پلیته ده، د دې په خولې وهلو سره اوبه وغیره پلیتیږی، کوم لوښې کښې چه سپې خوله ووهی نو اوبه بهولو سره درې ځله د هغې وینځل ضروری دی، هدایه ص۲۲ ج۱، شرح نقایه، ص۲۲ ج۱، لکه څنګه چه د حضرت ابوهریره نه روایت دې.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ فِي الْكَلْبِ يَلَغُ فِي الْإِنَاءِ يُغْسَلُ ثَلَاثاً (دار قطنی ص۶۵ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره نه روایت دې چه نبی ﷺ فرمائی: سپې چه په کوم لوښې کښې خوله ووهی نو هغه به درې ځله وینځلې شی.

دا روایت خو مرفوعا دومره قوي نه دي ، لیکن حضرت ابوهریره (چه د اوه ځلو والا د حدیث راوي دي) دهغه فتوی په همدې باندې ده، لکه چه فرمایي:

عَنْ عَطَاءٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ إِذَا وَلَغَ الْكَلْبُ فِي الْإِنَاءِ فَأَهْرِقْهُ ثُمَّ اغْسِلْهُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ (دار قطنی ص۶۶، ج۱، طحاوی ص۲۳، ج۱)

**ترجمه**: حضرت عطاء رحمه الله د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه نقل کړی دی ، هغوې دا فتوی ورکړه چه کله سپې په لوښې کښې خوله ووهی نو چه په هغې کښې هرڅه وې هغه تویی کړه، بیا لوښې درې ځله وه مینځه.

اوپه دې باندې دحضرت ابوهریره رضی الله عنه خپل عمل هم دې، لکه څنګه چه صحیح سندسره ثابت دی

عَنْ عَطَاءٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ كَانَ إِذَا وَلَغَ الْكَلْبُ فِي الْإِنَاءِ أَهْرَاقَهُ وَغَسَلَهُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ (دار قطنی ص۶۶ ج۱،

**ترجمه**: حضر ت عطاء رحمه الله د حضرت ابوهریره رضی الله عنه خپل عمل همداسې بیاې کړې دې . چه کله به سپی په لوښی کښې خوله ووهله نو هغه به ئې تویی کړه او بیا به یې درې ځله وه مینځلو.

او کله چه راوی د خپل روایت خلاف عمل کوي یا فتوی ورکوی نو ددې مطلب داوی چه یا خو سابقه حکم منسوخ شوې دې او یا دومره موکد نه دې ، صرف د استحباب په درجه کښې دې ، که دا تسلیم نه کړې شی، نو بیا د راوی عدالت ساقطیږی. او هغه قابل اعتماد نه پاتې کیږی.

اوامام عبد الرزاق دامام زهری فتوی هم همداسې نقل کوی

عَنْ مَعْمَرٍ قَالَ سَأَلْتُ الزُّهْرِيَّ عَنِ الْكَلْبِ يَلَغُ فِي الْإِنَاءِ يُغْسَلُ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ (مصنف عبدالرزاق ص۹۷ ج۱)

**ترجمه**: حضرت معمر فرمائی چه ما دحضرت امام زهری نه پوښتنه وکړه چه سپې کله په لوښی کښې خوله ووهی نوڅه به کوی؟ نوهغوی وفرمایل: درې ځله به یې مینځی.

باقی داوه ځلو مینځلو روایات اګر چه د اولې درجې صحیح روایات دی لیکن دحدیث امامانو اوفقهاء کرامو دا هم فرمایلی دی: **اولاً**: داچه دا ټول روایات دهغې دور دی چه کله دسپیو دقتلولو حکم کړې شوې ؤ، ددې سره سره دا حکم هم ؤ چه که سپې په لوښی کښې خوله ووهی نو اوه ځله یې مینځل پکاردی اویو ځل یې په خاوره مینځل دی، بیا چه کله دخلقو دسپیو نه نفرت پیدا شو نو دهغې قتلول منع شول او د لوښو په صفا کولو کښې هم تخفیف راغي.

**دویم**: د احنافو علماء کرام داهم فرمائی چه که اوس څوك اوه ځله لوښې وه مینځی نو دا به داستحباب درجه کښې داخل وی، البته دپاکیدو دپاره درې ځله مینځل کافی کیږی، دحضرت عبدالله بن مغفل رضی الله عنه روایت کښې داوه ځلو مینځلو ذکر دې او اتم ځل باندې یی په خاوروسره صفا کول هم راغلی دی.

عَنِ ابْنِ مُغَفَّلٍ رضي الله عنه قَالَ أَمَرَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا وَلَغَ الْكَلْبُ فِي الإِنَاءِ فَاغْسِلُوْهُ سَبْعَ مَرَّاتٍ وَعَفِّرُوْهُ الثَّامِنَةَ بِالتُّرَابِ (مسلم ص۱۳۷ ج۱، طحاوی ص۲۲ ج۱، دار قطنی ص۶۵ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن مغفل رضي الله عنه نه روایت دې، چه رسول الله ﷺ حکم کړې دې چه کله سپې په لوښی کښې خوله ووهی نو دا اوه ځله (په اوبو) وه مینځئ او اتم ځل یې په خاورو سره صفا کړئ.

نن سبا میډیکل سائنس او نوی طبی انکشافات او تحقیقاتو نه دا خبره ثابته شوې ده، چه د سپی په لعاب (لاړو) کښې داسې قسم جراثیم موندلې شی چه د خاورو نه بغیر نه صفا کیږی.

امام طحاوی رحمه الله فرمائی چه کله له غلیظ او سخت نجاست سره ګنده شوې لوښې وغیره درې ځله مینځلو سره پاکیږی نو د سپی خولې وهلو والا لوښې هم باید پاك شی، البته که احتیاط کوې او اوه ځله یې مینځې نو ډیره بهتره ده د حضرت امام شافعی رحمه الله په اوه ځله مینځلو باندې اصرار کول په داسې حال کښې چه د اتو ځلو ذکرهم په صحیح حدیث کښې موجود دې نو دا د تعجب باعث دی. (طحاوی ص۲۳ ج۱، ص۲۴)

د انصاف خبره دا ده چه درې ځله مینځلو سره لوښې پاکیږی، اوه ځله مینځل یې مستحب دی، او یو ځل په خاورې سره د تصفیی او تنظیف په خاطر ډیر مناسب دی.

د حضرت امام مالك مسلك د دې نه هم زیات عجیبه دې، هغه فرمائی چه د سپی پس خورده پلیته نه ده، البته لوښې اوه ځله مینځل امر تعبدی دې، (یعنی مونږ مسلمانان چونکه د الله ﷻ عابد او بندګان یو، او د دې حکم تعمیل زمونږ د پاره ضروری دې اګرکه د هغې حکمت زمونږ په پوهه کښې هم نه راځی لکه چه مثلاً د هوا خارجیدو سره د اودس اندامونه وینځل ضروری دی، دا امر تعبدی دې او که نه عقل او پوهه کښې دا خبره نه راځی) نو دا رنګه د دې لوښی اوه ځله مینځل دا یو امر تعبدی دې، او که نه نو د ناپاکیدو دوجې نه داسې نشی کیدې.

څلورم قسم پس خورده مشکوکه ده لکه د خر او قچر پس خورده. (جامع صغیر ص۷، هدایه ص۲۳ ج۱، شرح نقایه ص۲۳ ج۱، کبیری ص۱۶۹)

چونکه په دې کښې د صحابه کرامو رضي الله عنهم او د تابعینو د اختلاف او د دلائلو د تعارض دوجې نه د دې دا حکم فقهاء کرامو بیان کړیدې لکه چه حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه نقل دی چه د خر پس خورده پاکه ده. (شرح نقایه ص۲۳ ج۱، فتح القدیر ص۸۰ ج۱)

عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قُلْتُ لِعَطَاءٍ اَلْحِمَارُ يَشْرَبُ فِي جَفْنَتِي قَالَ نَعَمْ وَتَوَضَّأْ بِفَضْلِهِ (مصنف عبدالرزاق ص۱۰۳ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابن جریج رحمه الله فرمائی چه ما حضرت عطاء نه پوښتنه وکړه چه آیا خر زما لویه پیالې کښې ځښکاك کولې شی؟ هغوی وفرمایل: آو! او به ځښکلې شی، او د هغې پاتې شوې

اوبو سره ته اودس کولې شې .

عَنِ الزُّهرِیِّ قَالَ لَابَاسَ بِسُؤرِ الْحِمَارِ (مصنف عبدالرزاق ص۱۰۲ ج۱، مصنف ابن ابی شیبه ص۳۰ ج۱)

**ترجمه** : حضرت امام زهری فرمائی چه دخر دپس خوردې سره ‹په اودس کولو کښې› هیڅ حرج نشته دې .

همدارنګه دحضرت مجاهد رحمه الله، حضرت جابر بن زید رحمه الله، اومصنف عبدالرزاق کښې دحضرت حسن بصری رحمه الله نه نقل دی. (مصنف عبدالرزاق ص۱۰۲ ج۱، مصنف ابن ابی شیبه ص۳۰ ج۱)

اوحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه نقل دی چې ‹دخرپس خورده› نجسه ده. (مجمع الانهر ص۳٦، شرح نقایه ص۲۴ ج۱)

عَن نَافِعٍ عَنِ ابنِ عُمَرَ اَنَّهُ کَانَ یَکرَهُهُ (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۹ ج۱، مصنف عبدالرزاق ص۱۰۵ ج۱))

**ترجمه** : حضرت نافع دحضرت ابن عمر رضی الله عنه نه نقل کړی دی چه هغوئ به دخر پس خورده مکروه ګڼله ‹هغې ته به یی مکروه ویل› .

عَن حَمَّادٍ عَن اِبرَاهِیمَ قَالَ کَانَ یَقُولُ لاَ تَوَضَّا بِسُورِ الحِمَارِ وَلاَ بِسُؤرِ البَغلِ (مصنف ابن ابی شیبه ص۳۰ ج۱، مصنف عبدالرزاق ص۱۰۵ ج۱)

**ترجمه** : حضرت حماد دحضرت ابراهیم نخعی نه نقل کړې دی هغوی به فرمایل چه دخر او دقچرپس خوردې سره اودس مه کوئ .

وَعَن اَشعَثَ عَنِ الحَسَنِ اَنَّهُ کَانَ یَکرَهُ سُؤرُ الحِمَارِ وَالبَغلِ (مضنف ابن ابی شیبه ص۳۰ ج۱)

**ترجمه** : حضرت حسن بصری هم دخر او قچرپس خورده مکروه ګڼله .

عَن مُغِیرَةَ عَن حَمَّادٍ قَالَ اَلبَغلُ مِنَ الحِمَارِ (مصنف ابن ابی شیبه ص۳۰ ج۱)

**ترجمه** : حضرت حماد فرمائی چه قچر هم دخر جنس دې .

او دارنګه دامام محمد بن سیرین اوحضرت قتاده نه هم نقل دی .. (مصنف عبدالرزاق ص۱۰۲ ج۱، مصنف ابن ابی شیبه ص۳۰ ج۱)

اوحضرت امام محمد نه نقل دی چه څلور څیزونه داسې دی که ددې په مینځ کښې کپړه دوبه کړې نو هغه ناپاکه نه ده : دخر پس خورده، مآء مستعمل، دخرېئ، دماکول اللحم ځناوروبول . (عنایه برحاشیه فتح القدیر ص۸۹ ج۱، کبیری ص۱٦۹ ج۱)

**مسئله** :- کچیرې دمشکوکو اوبو نه علاوه نورې اوبه پیدا نشی نوفقهاء کرام فرمائی چه اودس به وکړی اوتیمم به هم وکړی، بغیر ددې نه مونځ نه صحیح کیږی . (هدایه ص۲۳ ج۱، جامع

صغیرص۰، شرح نقایه ص۲۳ ج۱)

**مسئله** :- د آس پس خورده پاکه ده، ځکه چه دا یوپاکیزه ځناور دې. (هدایه ص۲۳ ج۱ شرح نقایه ص۲۲ ج۱)

**مسئله** :- آزاده چرګه چه هرځائ کښې خوله ګنده کوی، اودنوروښکاری مرغو پس خورده مکروهه ده. (شرح نقایه ص۲۳ ج۱، هدایه ص۲۲ ج۱)

عَنْ اَشْعَثَ عَنِ الْحَسَنِ اَنَّهُ كَانَ يَقُوْلُ فِى الدَّجَاجَةِ تَشْرَبُ مِنَ الْاِنَاءِ يَكْرَهُ اَنْ يَتَوَضَّأَ بِهِ (مضنف ابن ابی شیبه ص۳۱ ج۱)

**توجمه** : حضرت حسن بصری فرمائی چه (آزاده) چرګه دکوم لوښی نه اوبه وڅښکی دهغې نه اودس کول مکروه دی ځکه چه مرغئ مرداری هم خوری اوپاك اوناپاك هرڅیزکښې خوله وهی، دچرګې هم دغه حال دې.

**مسئله** :- چرګه که چیرته تړلې وی نو دهغې پس خورده ناپاکه نه ده.

**مسئله** :- په کورونو کښې د اوسیدونکی څیزونو لکه مار، مږه وغیره پس خورده هم مکروه ده، او استعمال یی جائزدې ځکه چه ددې نه ځان بچ کول مشکل دی. (جامع ضغیر ص۸، هدایه ص۲۲ ج۱ شرح نقایه ص۲۳ ج۱)

**مسئله** :- خُوَلَه دټولو ځناورو دپس خوردې او دلعاب په شان ده. دکوم ځناورپس خورده چه حرامه یا مکروه وی دهغې خَوَلَه به هم حرامه یا مکروهه وی ځکه چه لعاب یا خوَلَه دغوښې نه پیدا کیږی، البته دخر دخوَلې په باره کښې دفقهاؤ اختلاف دې. داحنافو ظاهرالروایة خودادې چه دخر او دقچر خوَلَه پاکه ده اودخرې پئ ناپاکې دی، خوَلَه خو له دې وجې نه پاکه ده چه رسول الله ﷺ بغیردکتې وغیره نه پرې سپرلی کړې وه اود حجازپه ګرمئ کښې ناممکنه ده چه ددې نه خوله ونه وځی.

او ددې وجې نه هم ددې خوَلَه پاکه ګڼلې کیږی چه عموم بلوی اومجبوری ده ځکه چه اکثر خلق په خر سپرلی کوی، له همدې کبله ددې خوَلې ته پاکه ویلې شوې ده. او د دې دپیو طرفته چونکه داسې مجبوری اوضرورت نشته نو له همدې کبله هغه نجسې دی. (شرح نقایه ص۲۲ ج۱)

# تیمم

قرآن کریم کښې په دوه ځایونو کښې دتیمم ذکر شوې دې : یو په سورة نسآء اوبل په سورة مائده کښې.

**دتیمم تعریف** :- دتیمم لغوی معنی قصد کول دی اوپه شریعت کښې : (اَلْقَصْدُ اِلَی الصَّعِیْدِ الطَّیِّبِ لِلتَّطْهِیْرِ عَلٰی وَجْهٍ مَخْصُوْصٍ) (شرح نقایه ص۴۴ ج۱، کبیری ص۶۲)

**ترجمه** : یعنی په خاص طریقه دطهارت اودپاکئ حاصلولو دپاره دپاکې خاورې قصد کول دی.

ام المؤمنین حضرت عائشه ﷺ فرمائی چه دسفر په حالت کښې دتیمم حکم په قرآن پاك کښې نازل شوې ؤو (بخاری ص۴۸ ج۱، مسلم ص۱۶۰ ج۱، طحاوی ص۷۵ ج۱)

دحضرت عمران بن حصین ﷺ نه روایت دې چه مونږ دنبی کریم ﷺ سره دسفر په حالت کښې ؤو چه هغوی ﷺ دتیمم حکم ورکړې وو. (بخاری ص۴۹ ج۱، مسلم ص۲۴۰ ج۱)

دتیمم حکم صرف درسول الله ﷺ اودهغوی ﷺ دامت سره خاص دې، پخوانو امتونو کښې ددې اجازت نه ؤو، رسول الله دا دخپلو خصوصیاتو په سلسله کښې بیان کړې دې (وَجُعِلَتْ لِیَ الْاَرْضُ مَسْجِداً وَّطَهُوْراً) (بخاری ص۴۹ ج۱، مسلم ص۲۴۰ ج۱)

**ترجمه** : زما دپاره ټوله زمکه دمسجد په حکم کښې اوپاکوونکې جوړه شوې ده.

یعنی هرځائ کښې مونځ ادا کولې شی په شرط ددې چه پاکه وی، اوخاوره پاکه کرزولې شوې ده دې دپاره چه مونځ پرې وکړې شی.

الله تعالی فرمایی : (یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا قُمْتُمْ اِلَی الصَّلٰوةِ) (الخ) لعلکم تشکرون (سورة مائده آیت ۶)

**ترجمه** : اې مؤمنانو! کله چه تاسې مونځ دپاره ودریږئ نوخپل مخ اولاسونه دځنګلوسره وه مینځئ، او د سرونو مسح وکړئ اوپښې سره دګیټو (بجلکو) وه مینځئ اوکه تاسې په حالت دجنابت کښې ساستئ نوښه پاکی حاصله کړئ، یعنی غسل وکړئ اوکه تاسې بیمارئ راو د اوبو په استعمالولو قادرنه یئ، یا په سفر کښې ساستئ یا تاسې دقضاء حاجت نه فارغه شئ یا په تاسو کښې څوك خپلې ښځې مسحه کړی (یعنی همبستری ورسره وکړی) او اوبه بیانه مومی، نوپه پاکه خاوره دې تیمم وکړی اوپه خپلو لاسونو او مخونو دې ومږی، الله ﷻ په تاسو باندې تنګی اچول نه غواړی، لیکن هغه تاسوپاك اوصاف کول غواړی اوتاسو باندې خپل نعمتونه پوره کول غواړی دې دپاره چه تاسې دهغه شکر ادا کړئ.

اوبل ځای کښې فرمایی : (یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ) (الخ) ان الله کان عفوا غفورا (النساء آیت ۴۳)

**ترجمه**: ایې مؤمنانو! مونځ ته مه نږدې کیږئ کله چه تاسو په حالت دنشې کښې یاستئ تردې چه تاسې په ژبوځه وائې چه په هغې پوهه شئ اودجنابت په حالت کښې هم مونځ ته مه نږدې کیږئ تردې چه تاسې غسل وکړئ مګر که تاسې په لاره تیریدونکی (مسافر) یئ، (نو دهغې حکم دادې چه) که تاسو بیماران یئ یا په سفر باندې یئ یا په تاسې کښې څوك دقضاء حاجت نه راغلې وی یایې ښځې سره مسح کړې وی، او تاسې اوبه بیا نه مومئ نو بیا د پاکې خاورې قصد وکړئ، او مخ اولاسونه مسح کړئ، بیشکه الله ﷻ معاف کونکې اوبښونکې دې.

**(أَوۡ لَٰمَسۡتُمُ ٱلنِّسَآءَ)** دښځې لمس اومسح کول: پدې کښې د امامانو اختلاف دې: امام شافعی دې سره د اودس دماتیدو قائل دې، امام احمداو امام مالك فرمائی: که په شهوت سره یې مسح کړې وی نو اودس ماتیږی، اوکه شهوت سره نه وی نو نه ماتیږی، امام ابوحنیفه فرمائی چه ښځې ته لاس وړلوسره اودس نه ماتیږی په دې آیت کښې دلمس نه مراد مباشرت کول دې، البته دامام ابوحنیفه په نزد دلمس په هغه صورت کښې اودس ماتیږی کله چه دجسم نه څه ماده خارجه شی. **والله تعالٰی اعلم (سوالی).**

## ددې آیتونو تشریح اودتیمم حکمت :-

په کفارو اواهل کتابو کښې دوه خرابیانې وې چه په قرآن کښې بیان کړې شوی دی: (۱) الله ﷻ باندې صحیح ایمان نه راوړل (۲) اومال دالله ﷻ په لارکښې نه خرچ کول، د اولې خرابی منشاء دعلم کموالې اودجهل غلبه ده، ددویمې خرابی منشاء هواء نفس اوخپل خواهش دې، له دې نه معلومیږی چه دګمراهئ دوه لوئ اسباب دی:

(۱) جهل: چه په دې کښې له سره دحق او د باطل تمیز نه وی.

(۲) شهوات :- چه دهغې سره دحق اوباطل د تمیز با وجود دحق موافق عمل نشی کیدې، شهواتو سره قوت ملکی (دفرښتو په شان خصلت) کمزورې کیږی اوقوت بهیمی (دځناورو په شان خصلت) قوی کیږی.نتیجه ئې دا راوځی چه دفرشتو نه لرې والې اوشیطانانو سره نزدې کت پیدا کیږی، چه دا د ډیرو خرابو اساس دې. له همدې کبله الله ﷻ دنشې په حالت کښې مسلمانانو باندې مونځ کول منع کړل، دا دجهالت حالت دې بیا دجنابت حالت کښې مونځ کول منع دی ځکه چه داحالت دملائکو نه لرې والې اوشیطان ته د نزدې والی حالت دې کوم ځائ کښې چه جنب وی هلته درحمت فرشتې نه راځی لکه څنګه چه حدیث شریف کښې راځی:

عَنْ عَلِيٍّ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ لَا تَدْخُلُ الْمَلٰٓئِكَةُ بَيْتًا فِيهِ صُورَةٌ وَلَا كَلْبٌ وَلَا جُنُبٌ (ابوداؤد ص۳۰ ج۱، نسائی ص۵۱ ج۱)

**ترجمه**: حضرت علی رضی الله عنه دنبی کریم ﷺ نه نقل کړی دی چه فرشتې په هغه کور کښې نه داخلیږی په کوم کور کښې چه تصویر، سپې او جنب وی.

نشه دخشوع او دحضورقلب مخالفه ده او جنابت دطهارت اونظافت منافي دي . (حضرت شیخ الهند حاشیه۱۳۶،قرآن پاك مطبوعه تاج کمپنی)

## تیمم د اوبو قائمقام دي :-

داوبو قائمقام داسې ځیزپکار دي چه دهغې حاصلیدل آسان وی لکه خاوره یوداسې ځیز دې چه په آسانی سره هرځائ کښې موندل کیږی، او ددې نه علاوه خاوره دانسان اصل هم دې اوخپل اصل ته رجوع کولوسره له ګناهونو اوبدو کارونوځخه انسان بچ کیږی، کافر به هم دقیامت په ورځ دا آرزو کوی چه : ﴿يَالَيْتَنِي كُنتُ تُرَابًا﴾، (سورة نبأ ایت۴۰) ، (یعنی کاش ! چه زه خاورې وې) .

الله تعالی فرمایی : ﴿مِنْهَا خَلَقْنَاكُمْ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَىٰ﴾ (طه آیت۵۵)

**ترجمه** : ددې خاورې نه مونږ تاسو پیدا کړې یاستئ ،اوهمدې خاورې ته به تاسو واپس کولې شئ اوددې نه به دوباره را پورته کولې شئ .

یو شاعردحقیقت په ژبه کښې داسې ویلی دی :

| | |
|---|---|
| تا پاک نه گردی بتو آتش ندهند | تا خاک نگردی بتو آبش ندهند |
| ایٔ بیندار وجود آلوده خود راپاک ساز | کین طهارت سالک ره رانمازی میکند |
| ای که در مستی هستی ماندۀ | دائمًا در خود پرستی ماندۀ |
| بر سر ایوان وحدت کی رسی | چون تو در زندان پستی ماندۀ |

کله چه انسان دغفلت دمستئ نه بیدار شی او دنشی دجهالت نه پاك شی نوهغه دالله ﷻ په دربار کښې قابل شی.

درسول الله ﷺ ارشاد دې : ﴿إِذَا كَانَ أَحَدُكُمْ فِي الصَّلٰوةِ فَإِنَّهُ يُنَاجِي رَبَّهُ﴾ (مسلم ص۲۰۷ ج۱،بخاری ص۵۹ ج۱).

**ترجمه** : مونځ ګزار دخپل رب سره مناجات او خبرې کوی .

اوبل ځای کښې فرمایی چه : ﴿اَلصَّلٰوةُ مِعْرَاجُ الْمُؤْمِنِ﴾

**ترجمه** : یعنی مونځ دمؤمن معراج دې (مونځ کښې ده ته انتهائی روحانی بلندی حاصلیږی).

(صعید) دزمکې مخ ته وائی، له جنس ارض (زمکې) سره تیمم جائزدې .(تراب) خاوره (رمل) شګه (حجارة) کانی (معدن) کان (معدن) یاځه رنګ.

دجنس ارض (زمکی) تعریف دا دې چه په اور بی نه سوزوی لکه چه په کانیی ،یاقوت، زبرجد ،چونې وغیره سره تیمم جائز دې . البته په ایرې او سکرو سره تیمم جائزنه دې .

**دتیمم تفصیل** :- (قَصْدُ الصَّعِيدِ الطَّيِّبِ لِلتَّطْهِيرِ) یعنی دپاکې خاورې قصد کول دپاکی حاصلولو دپاره، په داسې حال کښې چه څوك د اوبو په استعمال قادر نه وی دسفرله کبله (عدم استطاعة على استعمال الماء) مثلا دده نه اوبه یومیل لرې وی. (هدایه صـ۲۳ ج۱ شرح نقایه صـ۲۳ ج۱، کبیری صـ۶۷)

نَافِعٌ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ تَيَمَّمَ وَصَلَّى الْعَصْرَ وَبَيْنَهُ وَبَيْنَ الْمَدِينَةِ مِيلٌ أَوْمِيلَانِ. (مصنف عبدالرزاق صـ۲۲۹ ج۱، وبمعناه مؤطا امام مالك صـ۴۱)

**ترجمه** : حضرت نافع فرمائی چه حضرت ابن عمر رضی الله عنه تیمم وکړو اومونځ یې وکړو حال دا چه ددوی رضی الله عنه اومدینې په مینځ کښې د یومیل یا دوه میله مسافه وه.

یا خو اوبه نزدې وی لیکن اوبوته درسیدو رسئ یابورکه وغیره موجود نه وی، یا څه نور مانع وی لکه مار ،درنده،یا دښمن یا دمرض زیاتیدوخطره وی. (هدایه صـ۲۷ ج۱ شرح وقایه صـ۲۵ ج۱) کبیری صـ۸۵،۷۰

وَقَالَ الْحَسَنُ فِي الْمَرِيضِ عِنْدَهُ الْمَاءُ وَلَا يَجِدُ مَنْ يُنَاوِلُهُ يَتَيَمَّمُ (بخاری صـ۴۸ ج۱ تعلیقا)

**ترجمه** : حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه که دمریض سره اوبه موجودې وی لیکن ددې اوبو راخستلو والا څوك نه وی نو دا مریض تیمم کولې شی.

یا یخنی دومره زیاته وی چه برداشت یې نشی کولې. (هدایه صـ۲۵ ج۱ شرح نقایه صـ۲۳ ج۱، کبیری صـ۶۱)

أَنَّ عَمْرَوبْنَ الْعَاصِ رضی الله عنه أَجْنَبَ فِي لَيْلَةٍ بَارِدَةٍ فَتَيَمَّمَ وَتَلَا وَلَا تَقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ إِنَّ اللهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا فَذُكِرَ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم فَلَمْ يُعَنِّفْ (بخاری صـ۴۹ ج۱ تعلیقا، دار قطنی صـ۱۷۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عمروبن العاص رضی الله عنه په یوه سخته یخه شپه کښې جنابت کښې مبتلاء شو نو هغوئ تیمم وکړو او دا آیت یې ولوستلو چه هغې کښې الله جل جلاله فرمائی : ((اوخپل ځان مه هلاکوئ بیشکه الله جل جلاله په تاسو باندې ډیرمهربان دې)) ، نوددې خبرې ذکر درسول الله صلی الله علیه وسلم په وړاندې وشو ، هغه مبارك په دې باندې څه سختی ونه فرمایله.

یا دملګری نه دپاتې کیدو ویره وی یا دتندې ، یا دملګری دتندې ویره وی، که اوبه استعمال کړې نود تندې خطره وی. نوپدې ټولوصورتونو (حالاتو) کښې تیمم کول جائزدی(شرح نقایه صـ۲۵)

عَنِ ابْنِ مُجَاهِدٍ عَنْ أَبِيهِ وَعَنْ عَطَاءٍ قَالَا إِذَا خَافَ الْعَطَشَ وَمَعَهُ مَاءٌ يَتَيَمَّمُ وَلَا يَتَوَضَّأُ (مصنف عبدالرزاق صـ۲۳۳ ج۱)

**ترجمه** : حضرت مجاهد اوحضرت عطاء نه نقل دی چه کله یو سړی ته دتندې خطره محسوس کیږی اوده سره اوبه وی نوهغه تیمم کولې شی او اودس به نه کوی.

عَنِ الْحَسَنِ قَالَ إِذَا خَشِيَ الْمُسَافِرُ عَلَى نَفْسِهِ الْعَطَشَ وَمَعَهُ مَاءٌ تَيَمَّمَ (مصنف عبد الرزاق ص۲۳۳ ج۱)

**ترجمه**: حضرت حسن بصری رحمه الله فرمائی چه کله څوك مسافر په خپل نفس باندې د تندې خطره محسوس کړی او هغه سره اوبه هم موجودې وی نو هغه تیمم کولې شی.

دا ضروری طهارت دې، دا د اودس او دغسل دواړو قائمقام دې، دې ته تشبیه وجود له طهارت سره حاصلیږ دا بالخصوص مؤثر دې. له همدې کبله صرف دلاس اودمخ سره مقرر کړې شوې دې، ټول بدن په خاوره د لړلو ضرورت نشته.

دا تیمم صرف دحضور خاتم النبیین ﷺ دامت سره خاص دې، وړاندینی امتونو د پاره دا روا نه وو، درسول الله ﷺ ارشاد دې چه

(اَلصَّعِيدُ الطَّيِّبُ اودسُ الْمُسْلِمِ وَإِنْ لَمْ يَجِدِ الْمَاءَ عَشْرَ سِنِينَ فَإِذَا وَجَدَ فَلْيَمَسَّهُ بَشَرَتَهُ) (ابوداؤد ص۴۸ ج۱، ترمذی ص۲۲ حسن صحیح وللترمذی طهور المسلم غنیة المستملی ص۶۲ للشیخ ابراهیم الحلبی)

**ترجمه**: پاکه خاوره داودس (دپاکی ذریعه ده) اگرچه هغه ترلسو کالو پورې اوبه ونه مومی او کله چه هغه اوبه بیا مومی نو په خپل جسم دې استعمال کړی، دترمذی په روایت کښې دا رنګه راغلی دی چه تیمم دمسلمان د پاره طهارت دې.

یوبل حدیث کښې داسې دی چه رسول الله ﷺ فرمایی زمکه زمونږ د پاره مسجد او طهارت جوړه کړې شوې ده. (بخاری ص۴۸ ج۱، مسلم ۱۹۹ ج۱)

**مسئله**:- دتیمم د پاره نیت ضروری دې (هدایه ص۲۶ ج۱، کبیری ص۲۶، شرح نقایه ص۲۶ ج۱)

**دتیمم طریقه**:- دتیمم ترکیب دادې چه دواړه لاسونه به په پاکه خاوره باندې اوؤهې او لاس له به جټکه ورکړې دا د پاره ددې چه زیات ګرد وغبار سره شکل مشوش نه شی. (هدایه ص۲۵ ج۱ شرح نقایه ص۲۶ ج۱، کبیری ص۶۲)

عَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ تَيَمَّمْنَا مَعَ النَّبِيِّ ﷺ ضَرَبْنَا بِأَيْدِينَا عَلَى الصَّعِيدِ الطَّيِّبِ ثُمَّ نَفَضْنَا أَيْدِينَا فَمَسَحْنَا بِهَا وُجُوهَنَا (دارقطنی ص۱۸۱ ج۱)

**ترجمه**: حضرت سالم دخپل پلار نه روایت کوی چه مونږ د رسول الله ﷺ سره وُو، اومونږ به خپل لاسونه په پاکه خاوره باندې وهل او هغې له به مو ټك ورکولو اوخپل لاسونه به مو په مخ باندې مسح کول.

په یوه ضربه باندې به په مخ مسح وکړی او بلې ضربې سره به خپل لاسونه ترڅنګلوپورې مسح کړی. (هدایه ص۲۵ ج۱ شرح نقایه ص۲۵،۲۶ ج۱)

په دې مسئله کښې دفقهاء کرامو اختلاف دې او په دې کښې پنځه مذهبه دی:
(۱) د امام محمد بن سیرین په نزد دتیمم دپاره درې ضربونه ضروری دی، دویم دمروندونو پورې دلاسونو دپاره، دریم دځنګلو پورې دلاسونو دپاره، (لیکن عطاء، مکحول، اوزاعی، احمد، اسحاق اودعامو محدثینو په نزدصرف یوه ضربه ده.
(۲) دامام اوزاعی اوامام شافعی په نزد تیمم صرف دمروندونو پورې دې.
(۳) دامام مالك په نزد دنیم لاسه پورې دې،
(۴) دامام زهری په نزد د تخرګ پورې په ټول مروند اولاس باندې تیمم کول دی.
(۵) دحضرت امام ابو حنیفه او امام شافعی په نزد دوه ضربه دی.
(د امام شافعی په نیزد اګر چه ضربې دوه دی لیکن تیمم صرف تر مروندونو پورې دې) او تر ځنګلو پورې دی اوحضرت علیؓ حضرت عبدالله بن عمرؓ حسن بصری، شعبی سالم بن عبدالله، سفیان ثوری، دامام مالك اواکثر عالمانو هم همدا مسلك دې. (نووی شرح مسلم ص۱۶۰ ج۱، کفایه ص۲۷ ج۱)
عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِاللهِ اَنَّهُ ﷺ قَالَ اَلتَّیَمُّمُ ضَرْبَةٌ لِلْوَجْهِ ضَرْبَةٌ لِلذِّرَاعَیْنِ اِلَی الْمِرْفَقَیْنِ. (رواه الحاکم، مستدرك ص۱۸۰ ج۱، دارقطنی ص۱۸۱ ج۱) وقال الحاکم صحیح الاسناد وقال الدارقطنی رجاله کلهم ثقات (کبیری ص۶۲)
**ترجمه**: حضرت جابر نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی: تیمم کښې یوه ضربه دمخ دپاره اوبله ضربه د دواړولاسونودپاره ده سره د ځنګلو نه.
**مسئله**:- تیمم هر هغه څیز باندې جائز دې چه د زمکې دجنس نه وی لکه خاوره شګه، کاڼې، رانجۀ، زبرجد، یاقوت، چونه، سیمټ، ابرك، سنکهیا وغیره. (هدایه ص۲۶ ج۱ شرح نقایه ص۲۶ ج۱، کبیری ص۷۶)

عَنْ حَمَّادٍ قَالَ تَیَمَّمْ بِالصَّعِیْدِ وَالْجَصِّ وَالْجَبَلِ وَالرَّمَلِ (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۶۱ ج۱)
**ترجمه**: حضرت حماد فرمائی چه دپاکې خاورې سره چونې سره، کاڼی سره، اوشګې سره تیمم کوئ.
**مسئله**:- پاره باندې که ګرد اوغبار وو نو په هغې باندې تیمم جائز دې.
**مسئله**:- کوم څیز چه دزمکې دجنس څخه نه وی په هغې تیمم جائز ندې دې لکه سره زر، سپین زر، اوسپنه، مس، قلعی، پیتل وغیره، معدنیات. ونه یا نباتات کوم چه سوزی اوایره کیږی په هغې باندې تیمم جائز ندې ځکه چه دا دجنس د زمکې څخه نه دی. (کفایه شرح هدایه ص۲۷ ج۱، شرح نقایه ص۲۶ ج۱)
**مسئله**:- دمعدنیاتو، سروزرو، سپینو زرو، وغیره په کُشتو باندې هم تیمم جائز نه دې.

(کبیری ص۶۶)

**مسئله**:- د دیوال په کانو باندې یا په پخو خښتو یا په کچه خښتو باندې په شرط ددې چه پاکې وی هم تیمم جائز دې. (شرح نقایه ص۲۶ ج۱، کبیری ص۶۹)

اَقْبَلَ النَّبِیُّ ﷺ عَلَی الْجِدَارِ فَمَسَحَ بِوَجْهِهٖ وَیَدَیْهِ (بخاری ص۴۸ ج۱)

**ترجمه**: رسول الله ﷺ تشریف راوړ او دیوال طرفته متوجه شو او مخ مبارك او لاسونو باندې یې مسح وکړه. (یعنی تیمم یې وکړو)

**مسئله**:- په غر، یا په معدنی مالګه باندې هم تیمم جائز دې، لیکن په دریابی مالګه یا نمده مالګه باندې تیمم جائز نه دې. (کبیری ص۸۷)

**مسئله**:- په پاکه خټه باندې تیمم کول مناسب نه دی او که چاپړې وکړو نو تیمم یې وشو، (کبیری ص۶۹)

**مسئله**:- په رنګینه زمکه تیمم روا دې.

**مسئله**:- په غله (غنمو، جوارو، باجره وغیره) باندې که ګرد او غبار وو خو تیم پرې جائز دې او که نه وی پرې نو جائز نه دې. (شرح وقایه ص۹۰ ج۱، کبیری ص۶۶)

عَنْ حَمَّادٍ قَالَ کُلُّ شَیْءٍ ضَرَبْتَ عَلَیْهِ بِیَدَیْكَ فَهُوَ صَعِیدٌ حَتّٰی غُبَارُ لِبَدِكَ (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۶۱ ج۱)

**ترجمه**: حضرت حماد فرمائی چه کوم څیز باندې هم تاسو لاس وه وهئ هغه صعید دې حتی چه ستاسو دجامې غبار هم وی.

**مسئله**:- چه دجنازې دمونځ دفوت کیدو خطره وی، نو تیمم به وکړی او دجنازې مونځ به وکړې په شرط ددې چه د مړده ولی نه وی، (او که دمړده خپل ؤو نو ولی ته به یی جنازه حصارولې شی تردې چه هغه اودس برابر کړی) ؟ (هدایه ص۲۸ ج۱ شرح نقایه ص۲۵ ج۱، کبیری ص۸۱)

عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ ؓ اَنَّهٗ اُتِیَ بِجَنَازَةٍ وَهُوَ عَلٰی غَیْرِ وُضُوْءٍ فَتَیَمَّمَ ثُمَّ صَلّٰی عَلَیْهَا (الجوهر النقی هامش البیهقی ص۲۳۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت نافع فرمائی چه حضرت ابن عمر ؓ ته جنازه حاضره کړې شوه، او دهغوی اودس هغه وخت نه وو نو هغوی تیمم وکړو او دجنازې مونځ یی ادا کړو.

عَنْ عَطَاءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ؓ فِی الرَّجُلِ تَفْجَأُهُ الْجَنَازَةُ وَهُوَ عَلٰی غَیْرِ وُضُوْءٍ قَالَ یَتَیَمَّمُ وَیُصَلِّیْ عَلَیْهَا (الحاوی ص۶۳ ج۱، ابن ابی شیبه ص۱۲۲ ج مخطوطه)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عباس نه روایت دې چه که دچا مخې ته ناګهانه جنازه راشی او دده

اودس نه وی تیمم دې وکړی اوجنازه کولې شی.
همداسې دابراهیم نخعی، حضرت حسن بصری، اوحضرت عطاء ،حضرت عکرمه نه هم منقول دی. (طحاوی ص۶۳ ج۱ مصنف ابن ابی شیبه ص۱۲۲ ج۱)
او دارنګه که داخترد مونځ دفوت کیدو خطره وی نوتیمم کولې شی. (هدایه ص۲۸ ج۱ شرح نقایه ص۲۵ ج۱)
**مسئله**:- که دجمعې دمونځ د فوت کیدوخطره وی نو تیمم نه شی کولې که دجمعې مونځ فوت شی نودعام ماسپښین مونځ به وکړي. (هدایه ص۲۹ ج۱ شرح نقایه ص۲۵ ج۱)
**مسئله**:- کوم مړی ته چه دغسل ورکولو امکان نه وی نوهغې مرده ته تیمم ورکولې شي اودفن به یی کړي. (شامی ص۲۳۶ ج۱)
**مسئله**:- تیمم په هرهغه څیز ماتیږی په کوم شی چه اودس ماتیږی، اوکه تیمم والا سړی اوبه ولیدلې اود هغې په استعمال قادر وی، نودهغه تیمم ماتیږی. (هدایه ص۲۶ ج۱ شرح نقایه ص۲۶ ج۱، کبیری ص۸۳)
**مسئله**:- تیمم دجنابت او بې اودسۍ دواړو دپاره یوشان جائز دي اودواړو دپاره یو تیمم دې. (هدایه ص۲۵ ج۱، کبیری ص۸۱)
**ترجمه**: حضرت عمروبن العاص ته په سخته یخه شپه کښې جنابت ورسیدلونوهغوی تیمم وکړو او دا آیت یی تلاوت کړو: (وَلَا تَقْتُلُوا أَنفُسَكُمْ إِنَّ اللهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا) (النساء آیت۲۹)
**ترجمه**: اوخپل ځانونه مه هلاکوئ بیشکه الله ﷻ په تاسو ډیر مهربان دې.
ددې خبرې ذکر دنبی ﷺ په وړاندې وشونوهغوی څه سختی ونه فرمایله.
(بخاری ص۴۹ ج۱ تعلیقا، دارقطنی ص۱۷۸ ج۱)

عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنه قَالَ أَصَابَ رَجُلًا جُرْحٌ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللهِ ثُمَّ احْتَلَمَ فَأُمِرَ بِالْاِغْتِسَالِ فَاغْتَسَلَ فَمَاتَ فَبَلَغَ ذٰلِكَ رَسُولَ اللهِ ﷺ فَقَالَ قَتَلُوهُ قَتَلَهُمُ اللهُ أَلَمْ يَكُنْ شِفَاءُ الْعِيِّ السُّؤَالُ. (ابوداؤد ص۴۹ ج۱ دارمی ۱۵۹ ج۱ مسند احمد ص۳۳۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه فرمائی چه درسول الله ﷺ په زمانه کښې د یوسړی سر خمی شو او هغه ته اتفاقاً احتلام پیښ شو هغه ته دهغه ملګرو دغسل حکم وکړو، هغه غسل وکړو نو هغه غسل د ده لپاره مهلك ثابت شو اوسړې مړ شونوهغوی ﷺ وفرمایل الله ﷻ دې دوئ هلاك کړی، سړې یی هلاك کړو، (دامسئله یی بیان کړه په) د ناپوهی علاج سوال دې (یعنی

پوښتنه به یې کړې وه)

عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ قُلْتُ لِعَطَاءٍ الْجُنُبُ فِي السَّفَرِ إِنْ لَّمْ يَجِدِ الْمَاءَ كَيْفَ طُهُوْرُهُ قَالَ طُهُوْرُهُ الَّذِيْ لَيْسَ بِمُتَوَضِّئٍ إِنْ لَّمْ يَجِدِ الْمَاءَ سَوَاءٌ لَا يَخْتَلِفَانِ يَمْسَحَانِ بِوُجُوْهِهِمَا وَأَيْدِيْهِمَا (مصنف عبدالرزاق ص۲۳۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابن جریج فرمائی چه ما حضرت عطاء ته وویل چه جنب سړې کچیرې په سفر کښې اوبه بیا نه مومی نو دده پاکی به څنګه راځی نوحضرت عطاءاوفرمائیل: دهغه پاکی به دهغه سړی پشان وی چه داوبونه موندلو له کبله اودس نشی کولې دا دواړه (یعنی بې اودسه او جنب) برابر دی دا دواړه به تیمم کوی مخ اولاسونو باندې به خاوره مړی.

**مسئله**:- چه دکوم سړی دواړه لاسونه تر مړوندونو پورې پرې شوې وی نوچه کله هغه تیمم کوی نو په پرې شوی ځایونو به مسح کوی، (کبیری ص۶۳)

**مسئله**:- بعضې وختونه دهندو، سکھ وغیره غیرمسلموسره اوبه وی لیکن خلق ترې هسې ځان ساتی، (داسې کول ښه نه دی) داسې وخت کښې تیمم جائزنه دې.

**مسئله**:- د ریل ګاډی ستیشن باندې نلکه نزدې ده لیکن دګاډی نه دپاتې کیدو خطره ده نو داسې وخت کښې تیمم جائز دې.

**مسئله**:- چاته چه داوبو د موندلو توقع وی هغه ته په آخر وخت کښې تیمم کول پکار دی، دې دپاره چه مونځ له مکمل طهارت سره ادا شی، خوکه چا وړاندې نه تیمم وکړو اومونځ یې وکړو اوبیا لا دمونځ وخت وتلې نه وو چه اوبه یې بیا موندې نو دوباره مونځ کول ضروری نه دی.

(هدایه ص۲۸ ج۱، شرح نقایه ص۲۷ ج۱)

اِبْنِ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَاءٍ قَالَ إِذَا كُنْتَ فِي الْحَضَرِ وَحَضَرَتِ الصَّلٰوةُ وَلَيْسَ عِنْدَكَ مَاءٌ فَانْتَظِرِ الْمَاءَ فَإِنْ خَشِيْتَ فَوْتَ الصَّلٰوةِ فَتَيَمَّمْ وَصَلِّ (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۶۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عطاء رحمة الله فرمائی چه کله ته په سفر کښې نه وې،او د مونځ وخت راشی اوتاسره اوبه موجودې نه وی نود اوبو دپاره انتظاروکړه که تاته دمونځ دفوت کیدو خطره محسوسه شی نوبیا تیمم وکړه اومونځ وکړه.

نَافِعٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رضي الله عنه تَيَمَّمَ وَصَلَّى الْعَصْرَ وَبَيْنَهُ وَبَيْنَ الْمَدِيْنَةِ مِيْلٌ أَوْ مِيْلَانِ ثُمَّ دَخَلَ الْمَدِيْنَةَ وَالشَّمْسُ مُرْتَفِعَةٌ فَلَمْ يُعِدِ الصَّلٰوةَ (مصنف عبدالرزاق ص۲۲۹ ج۱، بخاری ص۴۸ ج۱ تعلیقاً، دار قطنی ص۱۸۶ ج۱)

**ترجمه**: حضرت نافع رحمة الله فرمائی چه حضرت ابن عمر رضي الله عنه تیمم وکړو اودمازدیګرمونځ یې ادا کړو اومدینې پورې یو یا دوه میله مسافه وه. بیا هغه مدینه کښې داخل شو نمر لا کافی اندازه اوچت وو خ وعبدالله بن عمر رضي الله عنه مونځ دوباره ونه کړو.

عَنْ قَتَادَةَ عَنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ إِذَا صَلّٰى بِالتَّيَمُّمِ ثُمَّ وَجَدَ الْمَاءَ فِي وَقْتِ تِلْكَ الصَّلٰوةِ لَمْ يُعِدْ . (مصنف عبدالرزاق ص۲۲۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت سعید بن المسیب فرمائی چه کله څوک تیمم وکړی اومونځ وکړی اوبیا هم ددغې مونځ په وخت کښې اوبه بیا مومی نوده ته ددغې مونځ د دوباره کولو ضرورت نشته.

## دضربتین اوضربة بحث :-

حضرت مولانا شبیر احمد عثمانی رحمة الله په شرح دمسلم کښې لیکلې دی، چه پدې باب کښې دحضرت عبدالله بن عمر ﷺ قولی مرفوع روایت موجود دې چه دتیمم دپاره دوه ضربونه دی: یوضرب دمخ دپاره اودویم ضرب دلاسونو دپاره سره دڅنګلو نه.

دا روایت (دارقطنی ص۱۸۰ ج۱، حاکم (مستدرك ص۱۷۹ ج۱) بیهقی (سنن الکبری ص۲۰۷ ج۱)کښې نقل کړې شوې دې ، دا امامانو موقوفاً صحیح ګرزولې دې ، په دې کښې علی بن ظبیان راوی دې چه هغه لره محدث قطان رحمة الله او ابن معین رحمة الله اوډیرو نورو محدثینو ضعیف ګرزولې دې ، او دارقطنی اوحاکم عثمان بن محمد الانماطی عن عزرة بن ثابت عن ابی الزبیر عن جابر عن النبی ﷺ روایت کړې دې چه رسول الله ﷺ فرمائی (اَلتَّيَمُّمُ ضَرْبَةٌ لِلْوَجْهِ وَضَرْبَةٌ لِلذِّرَاعَيْنِ اِلَى الْمِرْفَقَيْنِ) (یعنی چه دتیمم دپاره دوه ضربې دی یوه ضربه دمخ دپاره اوبله ضربه دلاسونو دپاره ده ترڅنګلو پورې).

محدث ابن جوزی دا روایت دعثمان بن محمد رحمة الله راوی دوجې نه ضعیف ګرزولې دې ،چه دا متکلم فیه راوی دې لیکن ابن جوزی رحمة الله ددهٔ په ضعیف ګرزولو کښې غلطی کړې ده.

امام ابن دقیق العید رحمة الله فرمائی چه پدې کښې چا کلام نه دې کړې، البته ددې روایت شاذ دې ځکه چه ابو نعیم رحمة الله دا دعزره رحمة الله نه موقوفاً نقل کړې دې ،اوحاکم هم دا بیان کړې دې او دارقطنی ددې موقوف کیدل صحیح ګرزولی دی. حافظ ابن حجر په تلخیص کښې داسې بیان کړې دې او درایه کښې یې ویلې دی چه دا حدیث دارقطنی اوحاکم :حضرت جابر ﷺ نه په سند حسن سره بیان کړې دې او حاکم ددې حدیث دبیانولو نه وروسته ویلی دی چه دا صحیح الاسناد دې لیکن امام بخاری اومسلم دا نه دې بیان کړې.

امام بدرالدین عینی حنفی رحمة الله فرمائی چه دا بیهقی هم بیان کړې دې اوحاکم د اسحاق حربی رحمة الله په واسطې سره روایت کړې دې ،اوحاکم ویلې دی چه دا سند صحیح دې او امام ذهبی ویلې دی چه إِسْنَادُهُ صَحِيحٌ ، یعنی ددې اسناد صحیح دې اوس دهغې خلقو طرفته توجه نه دی کول پکار څوک چه ددې صحت نه تسلیموی. (فتح الملهم ص۴۵۵ ج۱)

حافظ ابن حجر په بلوغ المرام کښې ویلې دی چه ضربتین والا روایت کوم چه حضرت عبدالله

بن عمرؓ روایت کړې دې ،عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَوَاهُ الدَّارِقُطْنِي وَصَحَّحَ الْأَئِمَّةُ وَقْفَهُ (بلوغ المرام ص۲۱)
دا دارقطني نقل کړې دې اوامامانو ددې موقوف کیدل صحیح کرزولی دی.
حضرت ابو جهیم انصاری بیان کوی چه رسول الله ﷺ دبیرجمیل طرفته دقضاء حاجت دپاره تشریف یوړو، په لاره کښې یو سړی سلام وکړو نورسول الله ﷺ جواب ورنکړو. (حَتّٰى وَضَعَ يَدَهُ عَلَى الْجِدَارِ وَمَسَحَ بِهَا وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ ثُمَّ قَالَ عَلَيْكَ السَّلَامُ) (بخاری ص۴۸ ج۱،دارقطنی ص۱۷۷ ج۱،ابوداؤد ص۴۷ ج۱)
**ترجمه** : تردې چه رسول اللهﷺ خپل لاسونه په دیوال کیښودل، اوپه مخ او لاسونو باندې یې مسح وکړه اوبیا یې دسلام جواب ورکړو.
په بل روایت کښې دی چه (فَضَرَبَ الْحَائِطَ بِيَدِهِ ضَرْبَةً فَمَسَحَ بِهَا وَجْهَهُ ثُمَّ ضَرَبَ أُخْرَى فَمَسَحَ بِهَا ذِرَاعَيْهِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ ثُمَّ رَدَّ عَلَى السَّلَامَ) (دارقطنی ص۱۷۷ ج۱)
**ترجمه** : چه هغوی ﷺ خپل لاسونه مبارك يوځل په دیوال باندې وه وهل اوپه مخ مبارك باندې یې راښکل اوبیا یې په دویم ځل په دیوال باندې وهل او په دواړو لاسونه یې تر څنګلوپورې راښکل. بیا هغوی ﷺ ماته دسلام جواب وکړو.
اودارقطنی فرمائی چه دحضرت جابرؓ روایت چه په کښې دضربتینو ذکر دې (ضَرْبَةٌ لِلْوَجْهِ وَضَرْبَةٌ لِلذِّرَاعَيْنِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ رِجَالُهُ كُلُّهُمْ ثِقَاتٌ وَالصَّوَابُ أَنَّهُ مَوْقُوفٌ) (دارقطنی ص۱۸۱ ج۱)
**ترجمه** : یعنی یوه ضربه دمخ دپاره اوبله ضربه د دواړو لاسونو دپاره ترڅنګلو پورې.
ددې ټول راویان ثقه دی اوصحیح خبره داده چه دا حدیث موقوف دې، «دا د دارقطنی نه علاوه طبرانی هم دابن عمرؓ نه مرفوعاً نقل کړې دې.
**مسئله** :- دتیمم دپاره استیعاب ضروری دې یعنی مخ اولاسونو باندې سره دڅنګلو مسح کول ضروری دی، (هدایه ص۲۵ ج۱، کبیری ص۶۳)
**مسئله** :- دامام مالك په نزد دتیمم سنت طریقه :
سُئِلَ مَالِكٌ كَيْفَ التَّيَمُّمُ وَأَيْنَ يَبْلُغُ بِهِ فَقَالَ يَضْرِبُ ضَرْبَةً لِوَجْهِهِ وَضَرْبَةً لِيَدَيْهِ وَيَمْسَحُهُمَا إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ
(مؤطا امام مالك ص۱۱)
**ترجمه** : حضرت امام مالكؒ وفرمایل چه یو ضربه دمخ دپاره او بله ضربه دلاسونو دپاره او ترڅنګلو پورې راښکل دی.
**مسئله** :- آیا د یو تیمم سره کښې شمیر فرائض ادا کیدې شی؟
امام مالكؒ او امام شافعیؒ فرمائی چه یو تیمم سره دوه فرض نشی کولي،امام احمد فرمائی چه یو وخت کښې فرض، نفل، سنت فوت شوی مونځونه ټول کولې شی،کله چه دبل مونځ

وخت راشي نو بیا به تیمم کوی.
حضرت امام ابو حنیفه او نور فقهاء دا فرمائي چه تر کومې پورې تیمم نه وی مات شوي، نو یو تیمم سره تول وقتی فرض، قضاء، نفل اودنورو وختونو مونځونه هم کولې شي.
عَنْ اَبِیْ حَنِیْفَةَ عَنْ حَمَّادٍ عَنْ اِبْرَاهِیْمَ قَالَ الْمُتَیَمِّمُ عَلٰی تَیَمُّمِهٖ مَالَمْ یُحْدِثْ (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۶۰ ج۱)
**ترجمه**: حضرت ابراهیم نخعی فرمائی چه تیمم کونکې دتیمم (پاکی) په حالت کښې وی تر څو چه بې اودسه شوې نه وی.

همدارنګه دامام زهری رحمه الله او سعید بن المسیب رحمه الله اوحسن بصری رحمه الله نه په **مصنف عبدالرزاق ص۲۱۵ ج۱** کښې او په **بخاری ص۴۹ ج۱** کښې دحسن بصری رحمه الله نه، او **مصنف ابن ابی شیبه ص۱۶۰ ج۱** کښې دحضرت عطاء ابن ابی رباح رحمه الله نه نقل دی.

امام نسائی باب ابښې دې چه (اَلصَّلَوَاتُ بِتَیَمُّمٍ وَّاحِدٍ) یعنی یو تیمم سره ګڼ شمیر مونځونه کول اوبیا یې ددې لاندې دحضرت ابوذر رضی الله عنه روایت بیان کړې دې چه رسول الله ﷺ فرمائی: (اَلصَّعِیْدُ الطَّیِّبُ اودسهُ الْمُسْلِمِ وَاِنْ لَّمْ یَجِدِ الْمَآءَ عَشْرَ سِنِیْنَ)، (نسائی ص۳۶ ج۱ مطبع رحیمیه دهلی ص۳۸ ج۱ سلفیه لاهور)

یعنی پاکه خاوره دمسلمان دپاره داودس په حکم کښې ده اګرچه لس کاله پورې هغه اوبه بیا نه مومی، امام نسائی ددې نه وړاندې دا مسئله ښودلې ده.
امام ولی الله دهلوی په خپل کتاب حجة الله البالغه کښې لیکلې دی، چه دتیمم طریقه هم یوه دهغه خبرو نه ده چه درسول الله ﷺ نه په اخذ کولو کښې یې اختلاف موندلې شی چنانچه دمحدثینو دمسلك اودطریقې دظهور نه وړاندې اکثر فقهاء کرام اوتابعین وغیره په دې باندې عمل کوونکې وو، او ددې قائل ؤو چه دتیمم دپاره دوه ضربونه دی، یوضرب دمخ دپاره اوبل ضرب دلاسونودپاره دې تر څنګلو پورې، او احادیثو کښې زیات اصح دحضرت عمار رضی الله عنه روایت دې، چه په هغې کښې رسول الله ﷺ دا حضرت عمار رضی الله عنه ته فرمایل ؤو چه ستا دپاره دا کافی وه چه تا دواړه لاسونه په خاوره باندې وهلې وای او بیا دې تك ورکړې وای او په مخ اوپه دواړو لاسونودې راښکلی وای. (بخاری ص۴۸ ج۱ مسلم ص۱۶۱ ج۱).
او دحضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روایت شوې دې چه دتیمم دپاره دوه ضربونه دی: یو دمخ دپاره او دویم د دواړو لاسونو دپاره تر څنګلو پورې. (دارقطنی ص۱۸۰ ج۱ مستدرك حاکم ص۱۷۹ ج۱، بیهقی ص۲۰۷ ج۱)

درسول الله ﷺ اودصحابه کرامو رضی الله عنهم عمل دواړه طریقو باندې نقل شوې دې، اوددې په مابین

کښې تطبیق هم ممکن دې.

۱ - یو ضرب ادنی درجه تیمم دې او دوه ضربه یې سنت دی.

۲ - او دا رنګه هم تطبیق ممکن دې چه دهغې طرفته د **(یکفیك)** لفظ راهنمایي کوي، ممکنه ده چه رسول الله ﷺ چه حضرت عمار﷜ ته کومه طریقه ښودلې وه په هغې کښې دتیمم پوره کیفیت بیانول مقصود نه وُو، بلکه مطلب داوُو چه تیمم کښې دضربې دوجې نه چه دلاسونو سره کومه خاوره، غبار وغیره لګیدلې وی هغه مخ او دواړو لاسونو ته رسول پکار دی نه دا چه په خاوره کښې ټول ځان ککړ کول ضرور دی (لکه څنګه چه حضرت عمار﷜کړې وُو) رسول الله ﷺ ورته صرف دومره خبره ښودلې وه اوپه دې کښې یې دا اراده نه وه چه تیمم کښې دمسح کیدونکو اندامونو مقداربیان کړې اونه دضربونو دشمیر بیانول مقصود وُو، درسول الله ﷺ ارشاد دحضرت عمار﷜ دپاره په دې معنی باندې محمول کیدې شی چه ددې مقصد نسبت تمرغ (یعنی دټول جسم په خاوره کښې د آلوده کولو) ته دې.

(یعنی تیمم صرف په لاسونو او مخ باندې کافی دې ټول بدن په خاوره کښې دآلوده کولو ضرورت نشته، باقی دتیمم طریقه اوترکیب بیانول مقصود نه وُو)اوپه داسې مسائلو کښې دانسان دپاره مناسب دی چه هغه څیزاختیار کړې شی کوم سره چه په پوره یقین سره خپله ذمه داری سرته رسولې شی) یعنی ښه احتیاط مناسب دې (اواحتیاط یقینا په دوُو ضربونو کښې دڅنګلو سره مسح کولو کښې دې) **(حجة الله البالغة ص۱۸۵ ج۱طبع بریلی اوص۱۸۰طبع مصر)**

یوې ضربې والا روایات اګر چه صحیح دیاود اولې درجې روایات دی، لیکن مجمل دی،په هغې کښې صرف خاص طرف بیان شوې ده او دوو ضربونو والا احادیث اګر چه دهغې درجې نه دی، لیکن فی الجمله صحت ته رسیدلی دی اومفصل دی او احتیاط هم په دې کښې دې.

**مسئله** :- دچیچك یا د زخم والا دپاره تیمم کول جائز دی.

**اِبنِ عَبَّاسٍ ﷛ فِي قَوْلِهِ وَإِن كُنتُم مَّرْضَىٰ أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ قَالَ إِذَا كَانَتْ بِالرَّجُلِ الْجِرَاحَةُ أَوِ الْقُرُوحُ أَوِ الْجُدَرِيُّ فَيَجْنُبُ فَيَخَافُ أَن يَمُوتَ إِنْ غَسَلَ تَيَمَّمَ (دار قطنی ص۱۷۷ ج۱)**

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عباس﷜ نه نقل دی دالله ﷻ ددې ارشاد باره کښې چه که تاسو بیمار شوئ یا په سفرکښې یئ نوعبدالله بن عباس ﷜ فرمائی چه کله دچا په بدن باندې زخم وی، یا دانې وی یاد چیچك زخم وی،اوده ته جنابت ورسیږی اوده ته خطره وی چه که غسل وکړی نو هلاکت کښې واقع نشی، نوداسې سړې دې تیمم وکړی.

**مسئله** :- آیا تیمم والا اودس کونکی ته مونځ ورکولې شی؟ (یعنی امام جوړیدې شی)

**سُئِلَ مَالِكٌ عَنْ رَجُلٍ يَتَيَمَّمُ أَيَؤُمُّ أَصْحَابَهُ وَهُمْ عَلَىٰ وُضُوءٍ قَالَ يَؤُمُّهُمْ غَيْرُهُ أَحَبُّ إِلَيَّ وَلَوْ أَمَّهُمْ هُوَ لَمْ أَرَ بِهِ**

بَأْسًا (مؤطا امام مالك ص۱۹)

**ترجمه** : حضرت امام مالك نه پوښتنه وکړې شوه چه که يو سړې تيمم کوی نو آيا هغه خپل با اودسه ملګرو ته مونځ ورکولې شی؟ نو امام مالك وفرمايل : که څوك اودس والا سړې يی امامت وکړی نوزما په نزد ډيره ښه ده او که متيمم امامت وکړو نوزه څه حرج نه محسوسوم.

دحضرت امام ابو حنيفه رحمه الله او امام شافعی رحمه الله او امام ابو يوسف رحمه الله هم همدا مسلك دې.

امام بخاری رحمه الله تعليقاً بيان کړې دې ،چه حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د تيمم حالت کښې مونځ ورکړو (بخاری ص۴۹ ج۱) ليکن د امام محمد رحمه الله په نزد جائز نه دې ، اودارنګه د حضرت علی رضی الله عنه نه هم نقل دی.

عَنْ عَلِيٍّ رضی الله عنه قَالَ لَا يَؤُمُّ الْمُقَيَّدُ الْمُطْلَقِينَ وَلَا الْمُتَيَمِّمُ الْمُتَوَضِّئِينَ (دار قطنی ص۱۸۵)

**ترجمه** : حضرت علی رضی الله عنه فرمائی چه څوك مقيد (بند) سړې دې مطلقو (آزادو) سړوته مونځ نه ورکوی، اونه دې څوك تيمم کونکې اودس کونکوته مونځ ورکوی.

**نبيذتمر** :- دکهجورو داوبو نه سيوا به نورې اوبه موجودې نه وی نو د امام ابوحنيفه په نز په دې سره اودس کول اومونځ کول پکار دی اود داسې اوبو په موجودګی کښې تيمم صحيح نه دې. (هدايه ص۲۲ ج۱ شرح نقايه ص۲۸ ج۱، کبيری ص۱۰)

اودانبيذ به داسې وی چه خوږ نرم اوبهيدونکی به وی چه په اندامونو داودس باندې بهيدونکې وی اوکوم چه ټينګ وی نو هغه حرام دې ، ځکه چه هغې کښې نشه پيدا کيږی. لهذا دهغې نه اودس کول هم ناجائز دی، په اور باندې پخولو سره که ټينګ هم نه شی ليکن دهغې همدا حکم دې او دکوم څيز ښکل چه حرام وی په هغې سره اودس کول هم ناجائزه وی. دنبيذ تمر سره د اودس کولو دحکم ذکرچه په کوم حديث کښې دې ،هغه دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روايت دې چه دليلة الجن په واقعې کښې راغلې وو.

عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رضی الله عنه اَنَّ النَّبِيَّ صلی الله علیه وسلم قَالَ لَهُ لَيْلَةَ الْجِنِّ مَا فِي اَدَاوَتِكَ قَالَ نَبِيْذٌ قَالَ تَمْرَةٌ طَيِّبَةٌ وَمَاءٌ طَهُوْرٌ (مصنف ابن ابی شيبه ص۲۶ ج۱) وَزَادَ اَحْمَدُ عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ فَتَوَضَّأَ مِنْهَا وَصَلّٰى . (مسند احمد ص۱۵۰ ج۱ مصنف عبدالرزاق ص۱۷۹ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روايت دې ،چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دوی ته په ليلة الجن کښې وفرمايل چه : اې عبدالله ! تاسره لوښی کښې څه دی؟ نو عبدالله رضی الله عنه وفرمايل چه نبيذ دې نو هغوی صلی الله علیه وسلم وفرمايل : کهجوره هم پاکه ده او اوبه هم پاکې دی . او دمسند احمد په روايت کښې داهم دی چه هغوئ پدې نبيذ سره اودس وکړو او مونځ يی وکړو.

پدې روایت باندې جرحه کړې شوې ده چه عبدالله بن مسعودؓ په لیلة الجن کښې د رسول اللهﷺ سره نه ؤو، لیکن لیلة الجن خورسول اللهﷺ ته شپږ ځله پیښه شوې ده، (وګورئ آکام المرجان ص۵۳) په دې کښې بعض شپو کښې عبدالله بن مسعودؓ دنبی کریمﷺ سره نه ؤو، اوبعضې شپې ورسره موجود ؤو، لکه چه اصح حدیث کښې راغلې دی،(ترمذی ص۲۰۵)

حضرت عکرمهؒ د حضرت عبدالله بن عباسؓ شاګرد نه هم د نبیذ التمر په باره کښې پوښتنه وکړې شوه، چه دې سره اودس کول جائز دی او که نه؟ نوهغوی وفرمایل: (اَلْوُضُوْءُ بِالنَّبِیْذِ اِذَا لَمْ یَجِدِ الْمَاءَ) (دارقطنی ص۷۵، ج۱،مجمع الزوائد ص۲۱۵ ج۱بحواله ابویعلیٰ)

**ترجمه**: دهغه سړی دپاره چه اوبه بیا نه مومی، په نبیذو باندې اودس صحیح دې.

همدارنګه د حضرت علیؓ نه نقول دی چه: (عَنْ عَلِیٍّ اَنَّهٗ کَانَ لَا یَرٰی بَاْسًا بِالْاودس بِمِنَ النَّبِیْذِ) (ابن ابی شیبه ص۲۶ ج۱،دارقطنی ص۷۹، ج۱)

**ترجمه**: د حضرت علیؓ نه نقل دی چه هغویؓ به په نبیذو سره په اودس کولو کښې څه حرج نه ګڼلو.

نو د صحابه کرامو‌ؓ او دتابعینو عمل اوتعامل چه کله ددې سره شریك شو نو ددې نه د استدلال کافی ګنجائش پیدا شو.

**مسئله**:- که اوبه نه وی نو د امام ابو حنیفه په نزد په نبیذ تمر اودس کول جائزدی، کله چه انسان په کلی یا په ښاریه کښې نه وی، لیکن د نبیذ تمر نه سوا نور په هیڅ قسم نبیذ سره اودس کول جائز نه دی، (مختصر القدوری ص۱۵)

**مسئله د فاقدالطهورین**:- یعنی کله چه انسان ته اوبه او خاوره یو هم پیدا نه شی،نو هغه به څه کوی؟ په دې مسئله کښې دفقهاء کرامو اختلاف دې ځکه چه اصل اصول دادی لکه څنګه چه رسول اللهﷺ فرمایلې دی، (لَا تُقْبَلُ صَلٰوةٌ بِغَیْرِ طُهُوْرٍ)(ترمذی ص۲۶) یعنی مونځ بغیر د طهارت نه مقبول نه دې.

تفسیر مظهری (ص۱۳۲ ج۲) کښې دی چه امام ابوحنیفهؒ او امام مالكؒ دواړه فرمائی: فاقدالطهورین به مونځ نه کوی، د امام ابوحنیفهؒ په نزد ددې قضاء لازمه ده، او د امام مالكؒ په نزد قضاء هم لازمه نه ده، د امام احمدؒ اوامام شافعیؒ په نزدبه داسې سړې مونځ کوی لیکن د امام شافعیؒ په نزد ددې اعاده ضروری ده، او د امام احمدؒ په نزد ددې اعاده ضروری نه ده، دا حضرات فرمائی چه اللهﷻ جنابت والا دمونځ کولو نه منع کړې دی، ترڅو چه غسل ونکړی، او اوبه نه موندونکې یې منع کړې دې ترڅو چه هغه تیمم ونکړی اوفاقدالطهورین

په نهی کښې داخل دې.

په درمختار(ص۴۴ج۱) کښې راغلی دی چه چاته اوبه اوخاوره دواړه پیدا نشی، مثلا چرته نجس اوناپاك ځائ کښې قید شی، نو د امام ابوحنیفه په نزد مونځ به وروسته کړی،او دې حالت کښې به یی نه کوی،لیکن صاحبین (امام ابو یوسف رحمه الله او اما م محمد رحمه الله) فرمائی چه هغه به تشبه بالمصلین کوی، یعنی دمونځ گزاروسره به مشابهت پیدا کوی، لکه رسول الله ﷺ فرمائی (مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ) (ابوداؤدص۲۰۳ج۱).

**توجمه**: کوم سړې چه دکوم قوم سره مشابهت کوی، هغه به ددوی څخه وی. ددې مثال داسې دې لکه څنگه چه حائضه ښځه په رمضان کښې د ورځې په وخت کښې دحیض نه پاکه شی، یا مسافر د ورځې په وخت کښې مقیم شی،نوهغوی به تشبه بالصائمین کوی ، ددې میاشتې داحترام له کبله په باقی مانده ورځ کښې به دخوراك څښکاك وغیره نه بند شی، اوبیا به وروستو درمضان نه ددې قضاء را وگرځوی اود حضرت امام ابو حنیفه رجوع هم دې طرف ته ثابت ده.

ددې تشبه نظائر موجود دی،چنانچه احادیثو کښې دعاشورې د روژې په سلسله کښې نقل دی، رسول الله ﷺ فرمایلی دی: (أَصُمْتُمْ يَوْمَكُمْ هٰذَا قَالُوا لَا قَالَ فَأَتِمُّوا بَقِيَّةَ يَوْمِكُمْ) (ص۳۳۲ج۱)

**توجمه**: آیا تاسو ددې ورځې روژه نیولې ده؟ صحابه کرامو عرض وکړونه موده نیولې، وې فرمایل باقی مانده د روژه دار پشان پوره کړئ او بیا ددې قضاء هم راوړئ څکه چه دعاشورې روژه درمضان دروژې دفرض کیدو نه وړاندې فرض وه.

ددې دویم مثال داسې دې: فقهاء اومحدثین فرمایی که دچا حج فاسد شی، نوهغه سړې به (يَصْنَعُ كَمَا يَصْنَعُونَ) یعنی هغه سړې به هغه افعال کوی، کوم چه نورحاجیان کوی، او بیا به ددې راروان وخت کښې قضاء هم راوړی ،او د قضاء دلیل درسول الله ﷺ دا ارشاد دې: (دَيْنُ اللهِ أَحَقُّ أَنْ يُقْضٰى) (مسلم ص۳۶۲ج۱) دالله ﷻ قرض زیات حق لری چه دهغې ادا وکړې شی.

دامام ابوحنیفه ،امام شافعی،اوددوی شاگردان اوسفیان ثوری دامام اوزاعی ټولو په نزدقضاء واجبه ده.(فتح الملهم ص۳۸۶ ج۱ص۳۸۸)

امام نسائی ددې مسئلې دپوهولودپاره یوباب ایښې دې: (بَابُ مَنْ لَمْ يَجِدِ الْمَاءَ وَلَا الصَّعِيدَ) یعنی کوم سړې چه اوبه اوخاوره دواړه ونه مومی (هغه به څه کوی).

اوپدې باب کښې هغه دحضرت عائشی دواقعې والا دحدیث ذکر دې: (فَصَلَّوْا بِغَيْرِ وُضُوءٍ) چه اوبه پیدا نه شوې نو صحابو رضی الله عنهم بغیر د اودس نه مونځ وکړو.

# په موزو باندې مسح کول (مسح علی الخفین)

داهل سنت والجماعت په نزد بالاتفاق سړو اوښځو دواړو لره په موزو باندې مسح کول جائز دي. اودا له سنت مشهوره څخه هم ثابت دی. (هدایه ص۳۰ ج۱، شرح نقایه ص۴۸ ج۱، کبیری ص۱۰۴)

حضرت امام احمد بن حنبل، امام عبدالبر بیان کوی، چه په موزو باندې مسح کول دهرقسم شك اوشبهې نه اوچت دی درسول الله ﷺ دځلویښتو صحابه کرامو نه په موزوباندې مسح کول نقل کړې شوی دی. (شرح نقایه ص۴۸ ج۱، کبیری ص۱۰۴)

امام ابن دقیق العید دحسن بصری نه نقل کړی دی هغه فرمائی چه ماته درسول الله ﷺ اویا صحابه کرامو بیان کړې دې چه رسو ل الله ﷺ به په موزو باندې مسحه کوله، صحابه کرامو کښې دچانه هم ددې نه انکارنقل نه دې .(شرح نقایه ص۴۸ ج۱)

امام مسلم (ص۱۳۲ج۱) ترمذی (ص۳۰) ابوداؤد (ص۲۱ج۱) نسائی(ص۲۱ج۱) ابن ماجه ص۴۱، اوامام احمد(مسند احمد ص۳۶۴ ج۱) وغیره اکثرومحدثینودحضرت جریربن عبدالله البجلی ﷛روایت بیان کړې دې هغوی فرمایلې دی چه ما په خپلو سترګورسول الله ﷺ لیدلې دې هغوی اودس وکړو اوپه موزوباندې یې مسح وکړه .

اوحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په فقه اکبر کښې لیکلی دی چه : (والمسح علی الخفین سنة) (فقه اکبر ص۳۶)

**ترجمه** : اوپه موزوباندې مسحه کول سنت دی .

فقیه اومحدث ابراهیم حلبی رحمه الله لیکلې دی،چه حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله نه خلقوداهل سنت والجماعت دمذهب باره کښې پوښتنه وکړه،نو امام صاحب وفرمایل داهل سنت مذهب دادې چه تاسو شیخینویعنی ابوبکر﷛اوعمربن الخطاب﷛ ته په ټولوصحابه کراموباندې فضیلت ورکړئ، اود نبی کریم ﷺ دواړو زومانو (یعنی حضرت عثمان غنی﷛اوحضرت علی﷛ )سره محبت وکړئ، اوپه موزوباندې مسحه کول جائز وګڼئ، او دحضرت امام ابوحنیفه داخبره په اصل کښې دحضرت انس بن مالك ﷛ دقول نه اخستلې شوې ده چه هغوی فرمایلی دی : (انَّ مِنَ السُّنَّةِ اَنْ تُفَضِّلَ الشَّيْخَيْنِ وَتُحِبَّ الْخَتَنَيْنِ وَتَرَى الْمَسْحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ) .

**ترجمه** : بیشکه داخبره دسنتو څخه ده چه حضراتو شیخینولره په ټولوصحابه کرامو باندې فضیلت ورکړئ، او د(رسول الله ﷺ) دواړو زومانو سره محبت وکړئ وپه موزوباندې مسح کول جائزه وګڼئ .

لیکن موزوباندې مسح کول په اصل کښې رخصت او اجازت دې ،که څوك ددې دجائز ګڼلو سره مسح ونه کړی، بلکه پښې وه مینځی نو دا عزیمت دې ، په دې به ده ته ثواب ورکول کیږی ، لیکن که څوك په موزو باندې مسح کول روا ونه ګڼی نوداکثرو فقهاؤ په نزد هغه ګمراه دې ،او امام کرخی فرمائی چه ماته په دې سړی کښې د کفرخطر ښکاری . (کبیری ص۱۰۴تا۱۰۵).

عَنْ أَفْلَحَ مَوْلَى أَبِي أَيُّوبَ عَنْ أَبِي أَيُّوبَ أَنَّهُ كَانَ يَأْمُرُ بِالْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ وَكَانَ هُوَ يَغْسِلُ قَدَمَيْهِ فَقِيلَ لَهُ فِي ذٰلِكَ كَيْفَ تَأْمُرُ بِالْمَسْحِ وَأَنْتَ تَغْسِلُ فَقَالَ بِئْسَ مَا لِي إِنْ كَانَ مُهَنَّاهُ لَكُمْ وَمَأْثَمُهُ عَلَيَّ قَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ يَفْعَلُهُ وَيَأْمُرُ بِهِ وَلٰكِنْ حُبِّبَ إِلَيَّ الْوُضُوءُ. (ابن ابی شیبه ص۱۷۶-ج۱،مصنف عبدالرزاق ص۱۹۸ج۱،مجمع الزوائد ص۲۵۵ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابوایوب ؓ نه منقول دی چه هغوی به په موزو باندې دمسح کولوحکم ورکولو او په خپله به یی پښې مینځلې هغوی ؓ نه چه کله پوښتنه وکړې شوه چه دا څه خبره ده چه تاسو خلقوته دموزو دمسحې حکم ورکوئ اوپه خپله پښې مینځیئ ، نوهغوی وفرمایل : ماته خو دا خبره نا خوښه ده چه سهولت او آسانتیا ستاسوپه حصه کښې راشی اوګناه په ما باندې وی ، (مطلب دا چه زه تاسوته څه غلطه خبره خونه کوم) ما په خپله رسول الله ﷺ لیدلې دې چه هغوی په موزو باندې مسح کوله ، اونورو ته به یی هم ددې حکم کولو، لیکن زه اودس کول اوپښې مینځل ډیر خوښوم، (مطلب دا چه مسح کول جائز دی اودپښو مینځل عزیمت دې او زه همدا خوښوم خپلې پښې ومینځم).

بعض اهل بدعت لکه شیعه ، روافض وغیره په موزو باندې مسح کولو نه انکار کوی، اوموزو باندې مسح کول ناجائزګڼی، داخیال ددوئ سراسر باطل دې .

او دا مسح کول دهغه سړی دپاره دی چه بې اودسه وی، دجنابت والا دپاره مسح کول جائزنه دی . (کبیری ص۱۰۸،هدایه ص۲۲ج۱،شرح نقایه ص۲۸ج۱)

لکه چه حضرت صفوان بن عسال ؓ بیان کوی چه رسول الله ﷺ مونږ ته حکم کولو، چه کله مونږ په سفرکښې ؤو چه مونږ درې ورځواوشپو پورې موزې له خپلو پښونه ونه باسو، مګر دجنابت په حالت کښې به یی دموزو ویستلو حکم فرمایلو، او فرمایل به یی چه د بول اوبزار اوخوب په وقت کښې یی مه اوباسئ، بلکه په دې باندې مسح کوئ .(مسند احمد ص۲۳۹ج۴،نسائی ص۲۲ج۱،ترمذی ص۳۰،ابن ماجه ص۱۷۸) وَصَحَّحَهُ التِّرْمِذِيُّ وَالْخَطَّابِيُّ وَحَسَّنَهُ الْبُخَارِيُّ(آثار السنن ص۳۳ج۱)

حضرت مغیره بن شعبه ؓ نه روایت دې چه زه دسفر په حالت کښې درسول الله ﷺ سره ووم، دشپې په وخت کښې هغوی ﷺ دقضاء حاجت دپاره تشریف وړې وو، چه واپس راغې نوهغوی اودس وکړو اوکله چه هغوی ﷺ سرمبارك باندې مسح وکړه نوما خپل لاس لاندې کړو، دې دپاره

چه دهغوی دپښونه موزې اوباسم، نوهغوی ﷺ وفرمایل :(دَعْهُمَا فَإِنِّيْ أَدْخَلْتُهُمَا طَاهِرَتَيْنِ وَمَسَحَ عَلَيْهِمَا)(مسلم ص۱۳۴ ج۱)

**ترجمه** : داپرېږده ځکه چه ما دا دطهارت په حالت کښې اغوستلي دی،او بیا هغوی ﷺ په موزو باندې مسحه وکړه .

اوپه بل روایت کښې دا الفاظ راغلې دی چه رسول الله ﷺ (مَسَحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ وَمُقَدَّمِ رَاسِهِ وَعَلَى عِمَامَتِهِ) (مسلم ص۱۳۴ ج۱) یعنی موزوباندې یی مسح وکړه او د سر په اوله حصه یی هم مسح وکړه، اوخپله عمامه باندې یی هم مسح وکړه .

اودحضرت بلال ؓ په روایت کښې راغلې دی چه رسول الله ﷺ(مَسَحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ وَالْخِمَارِ)(مسلم ص۱۳۴ ج۱) یعنی په موزوباندې یی مسح وکړه اودسر په دستمال باندې یی هم (اغوستې شوې ځادریا په سر تړلې شوې رومال) مسحه وکړه .

دسر په ځلورمه حصه باندې مسح کول په اودس کښې فرض دی، دې نه په مقدم راس اوناصیة سره هم تعبیر شوې دې ، په دومره حصه سر باندې مسح کول فرض دی، باقی په ټول سر باندې مسح کول فرض نه دی،البته مستحب دی، له همدې کبله د ځلورمې حصې سر مسح کولو نه بعد یی لاس مبارك په پټکی اوپه رومال باندې راښکلو، ترکومې پورې چه د سر ځلورمې حصې یا دسر دمخکښې حصې په ویښتوباندې مسح ونه کړی، صرف په پټکی باندې یا رومال باندې مسح کول صحیح نه دی، دا بالتبع دتکمیل دمسح دپاره کیدې شی، همدارنګه په پیزار باندې مسح هم بالتبع کولې شی، اصل کښې موزو یا جرابو باندې مسح ده اوباقی مانده که دچپلو په تسمو یا دپیزارپه څرمن لاس راښکلې شی، نوپه دې کښې هیڅ حرج نشته، دحضرت مغیره بن شعبه ؓ روایت کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ(تَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ وَالنَّعْلَيْنِ)(ابوداؤد ص۲۱ ج۱) یعنی اودس یی وکړو اوجرابوباندې اوپیزار باندې یی مسحه وکړه .

اول خودا روایت صحیح نه دې ،امام ابوداؤد(ص۲۱ ج۱) فرمائی چه عبدالرحمن بن مهدی رحمه الله به دا حدیث نه بیانولو ځکه چه حضرت مغیره ؓ نه کومه خبره معروفه ده په هغې کښې په موزو باندې دمسح کولو ذکر دې ، نه په جرابو باندې، اودکومو محدثینو په نزد چه دا حدیث قابل داستناد دې دهغوی په نزد هم اصل مقصد په پیزار باندې مسح کول نه دی، بلکه موزو یاجرابو (کومو باندې چه مسح درسته ده) باندې مسح کول مقصود دی، په پیزار باندې بالتبع دی، امام طحاوی دارنګه بیان کړې دې ،(طحاوی ص۱۰۷ ج۱) :

صرف پیزار باندې بغیر دموزې یاجرابې نه مسح کول صحیح نه دی .

امام ابوداؤد فرمائي : حضرت ابوموسیٰ اشعریؓ نه هم يوروايت دې ، چه رسول الله ﷺ په جرابو باندې مسح وکړه، (ابوداؤدص۲۱ ج۱) ليکن دا روايت هم قوي اومتصل نه دې ، البته صحابه کراموؓ کښې حضرت عليؓ، حضرت ابن مسعودؓ، حضرت براء بن عازبؓ، حضرت انس بن مالکؓ، حضرت ابوامامهؓ، حضرت سهل بن سعدؓ، حضرت عمروبن حريثؓ اوحضرت عمر بن الخطابؓ، اوحضرت ابن عباسؓ نه په جرابو باندې مسح کول ثابت دی.

**مسئله** :- هرقسم موزو باندې مسح کول جائز دی چمړه وی يارکسين، پلاسټک وغيره اويا دنائلون وی، په دې شرط چه ډبل وی تولوباندې مسح جائز ده، ددې حکم هم دچمړې پشان دې.

**مسئله** :- په هر قسم جرابوباندې مسح کول جائزنه دی،بلکه صرف په لاندې درې قسمه جرابو باندې مسح کول جائزدی د-

(۱) داسې جرابې چه منعلې وی، يعنی دکومې لاندې دتلی حصه کښې چه چمړه څرمن لګيدلې وی، برابره خبره ده چه جرابې نرۍ وی اوکه نه.

(۲) مجلدې وی ، يعنی هغه جرابې چه دهغې لاندې اوباندې دواړه حصوباندې چمړه (څرمن) لګيدلې وی.

(۳) ډبلې جرابې چه نرۍ نه وی، داسې ډبلې وی چه هغې ته اوبه دننه سرايت نه کوی. داسې جرابې برابره خبره ده دوړئ وی يا د نائيلون وی ، ليکن ډبلې وی، اوبيا داسې وی چه دهغې بې د ترلونه انسان يوميل يا دوه ميله تللې شی، داسې جرابې که وی، نودې باندې مسح کول صحيح دی، اوکه داسې نه وی نو مسح پرې صحيح نه ده. (هدايه ص۳۳ ج۱)

په حديثو کښې چه په جرابو باندې دمسح کولوذکرراغلې دې فقهاء کرامو له هغې نه دغه قسم جرابې مراد اخستی دی.

قَتَادَةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ وَعَنِ الْحَسَنِ اَنَّهُمَا قَالَا يُمْسَحُ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ اِذَا كَانَا صَفِيْقَتَيْنِ. (مصنف ابن ابي شيبه ص۱۸۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت قتادهؒ دحضرت سعيد بن المسيبؒ اوحضرت حسن بصریؒ نه نقل کړی دی چه هغوی ويلی دی چه جرابو باندې مسح کول پکار دی، چه کله هغه ډبلې وی.

عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ زِيَادٍ اَنَّهُ رَاٰى اِبْرَاهِيْمَ النَّخَعِيَّ يَمْسَحُ عَلٰى جَرْمُوْقَيْنِ لَهُ مِنْ لُبُوْدٍ (مصنف عبدالرزاق ص۲۰۰ ج۱)

**ترجمه** : يزيد بن ابی زيادؒ نه نقل دی چه هغوی ابراهيم نخعیؒ وليدلو چه هغه به د نمدې په جرابو (يعنی په ښه ډبلو جرابو باندې) مسح کوله.

عَنْ خَالِدِ بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَمْرٍو اَنَّهُ مَسَحَ عَلٰى جَوْرَبَيْنِ مِنْ شَعْرٍ (مصنف ابن ابي شيبه ص۱۸۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عقبه بن عمرو رضي الله عنه نه نقل دی چه هغوی دوپښتونه جوړې شوې «ډبلو» جرابو باندې مسح وکړه .

**مسئله** :- موزو اخستلو په وخت که طهارت کامل نه وی نو بیاهم که پښې وه مینځی اوموزې واغوندی نو مسح پرې درسته ده، اوکله چه ورته حدث لاحق شی، نودې وخت کښې طهارت تام ضروری دې ،(هدایه ص۳۰ ج۱،شرح نقایه ص۲۹ ج۱، کبیری ص۱۰۷)

عَن عُمَرَ رضي الله عنه قَالَ سَمِعتُ رَسُولَ الله يَامُرُبِالْمَسحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ إِذَا لَبِسَهُمَاوَهُمَا طَاهِرَتَانِ (مجمع الزوائد ص۲۵۵ ج۱،بحواله ابویعلی)

**ترجمه** : حضرت عمر رضي الله عنه فرمائی چه ما درسول الله ﷺ نه آوریدلې دی چه هغوی ﷺ به په موزو باندې دمسح کولوحکم کولوکله چه یی هغه موزې دطهارت په حالت کښې اغوستې وی .

**په موزو باندې دمسح کولو طریقه** :- مسح هم دپښو په بره حصه باندې کولې شی، په لاندې حصه باندې درسته نه ده، دلاس درې ګوتې به د پښوپه وړاندې برنئ حصه باندې کیږدی او ګیتو طرفته به یی راکاږي ، تقریبا د درې ګوتو په مقدار باندې فرض ده.هدایه ص۳۰ ج۱،شرح نقایه ص۲۸ ج۱، کبیری ص۱۰۹)

اوموزوباندې دمسح کولومسنونه طریقه داده چه دښی لاس ګوتې به دښی موزې په وړاندې طرف کیږدې اوچپ لاس به د چپې موزې په وړاندې طرف کیږدې او دواړه به دګیتوطرفته راکاږي، یا به یی سره دتلوکیږدې اوګیتوطرف ته به یی راکاږي .(شرح وقایه ص۹۹ ج۱، کبیری ص۱۱۰)

حضرت علی رضي الله عنه نه نقل دی هغوی فرمائی چه :

(لَوكَانَ الدِّينُ بِالرَّايِ لَكَانَ اَسفَلَ الخُفِّ اَولٰى بِالمَسحِ مِن اَعلاهُ وَقَدرَاَيتُ رَسُولَ الله ﷺ يَمسَحُ عَلىٰ ظَاهِرِ خُفَّيهِ)

(ابوداؤد ص۲۲ ج۱،دارقطنی ص۱۹۹ ج۱،ابن ابی شیبه ص۱۸۱ ج۱،آثار السنن ص۱۳۳ اسناده حسن)

**ترجمه** : که دین په رایه یعنی صرف په عقل باندې وای نو د موزې لاندې حصه مسح کول دبرنی حصې نه زیات بهتر ؤو «ځکه چه ګرد اوغبار په لاندې حصه باندې لګیږی» حال دا چه ما رسول الله ﷺ لیدلې دې چه هغوي ﷺ به دموزې په لاندې حصه باندې مسحه کوله .

عَنِ المُغِيرَةِ بنِ شُعبَةَ رضي الله عنه اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ وَضَعَ يَدَيهِ عَلىٰ خُفَّيهِ وَمَدَّهُمَا مِنَ الاَصَابِعِ اِلىٰ اَعلاهُمَا مَسحَةً وَاحِدَةً وَكَاَنِّي اَنظُرُ اِلىٰ اَصَابِعِ رَسُولِ الله ﷺ عَلىٰ الخُفَّينِ (نصب الرايه ص۱۸۰ ج۱)

**ترجمه** : حضرت مغیره بن شعبه رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ خپل لاس مبارك په موزه باندې کینښودلو او دهغې ګوتې یی یوځل په وروستو طرف راښکلې ګویا هغه درسول الله ﷺ ګوتې

په موزوباندې اوس هم زما دسترګو په وړاندې دی.

عَنْ هِشَامٍ عَنِ الْحَسَنِ قَالَ الْمَسْحُ عَلَى ظَهْرِ الْخُفَّيْنِ خُطَطٌ بِالْأَصَابِعِ (دار قطنی ص۱۹۵ ج۱)

**ترجمه** : حضرت حسن بصری رحمة الله فرمائی چه مسح دموزو په بره طرف باندې وی، دګوتوپه ذریعه پرې خطونه راکاږه.

عَنْ سَعِيدِ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ قَالَ سَأَلْتُ الزُّهْرِيَّ عَنِ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ فَقَالَ بِيَدِهِ هٰكَذَا وَأَمَرَّ أَصَابِعَهُ مِنْ مُقَدَّمِ رِجْلِهِ إِلَى فَوْقِهَا (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۸۵ ج۱)

**ترجمه** : حضرت سعید بن عبد العزیز رحمة الله فرمائی چه ما دامام زهری رحمة الله نه دموزو دمسحې په باره کښې پوښتنه وکړه نوهغوی دخپل لاس داشارې سره ښودنه وکړه اوخپلې ګوتې یې دپښې په وړاندې طرف کیښودې او وروسته طرف ته یې راښکلې.

**مسئله** :- که صرف دګوتو په بندونو مسح وکړی او د ګوتو تلی اوبندونه لرې وساتی نومسح نه کیږی، مګردا که ګوتې دومره لمدې وی چه دګوتو د سرونونه اوبه څڅیږی نوبیا کیږی. (کبیری ص۱۱۰ شرح وقایه ص۹۹ ج۱)

**دمسحې موده**:- په موزو باندې دمسح کولو دمودې په باره کښې شریح بن هانی رحمة الله د ام المؤمنین حضرت عائشې صدیقې رضی الله عنها نه پوښتنه وکړه نوهغوی وفرمایل چه حضرت علی بن ابی طالب رضی الله عنه ته لاړشه، اودهغوی نه پوښتنه وکړه ځکه چه هغوی زما نه (په دې مسئله کښې) زیات پوهیږی، هغوی به درسول الله ﷺ سره سفرکولو، شریح وائی چه زه حضرت علی رضی الله عنه ته لاړم، او دهغوی نه مې پوښتنه وکړه نوهغوی وفرمایل : (جَعَلَ رَسُولُ اللهِ ﷺ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيَهُنَّ لِلْمُسَافِرِ وَيَوْمًا وَلَيْلَةً لِلْمُقِيمِ) . (مسلم ص۱۳۵ ج۱، مصنف عبدالرزاق ص۲۰۳ ج۱)

**ترجمه** : رسول الله ﷺ په موزوباندې مسحه کولو دپاره درې ورځې اودرې شپې دمسافر دپاره اویوه ورځ او یوه شپه دمقیم دپاره موده مقررکړې ده.

**مسئله** :- دموزو مسح کولو نه پس چه بې اودسی راشی دهغه وخت نه به درې شپې اودرې ورځې یا یوه شپه اویوه ورځ حسابولې شی. (هدایه ص۳۱ ج۱ شرح نقایه ص۳۱ ج۱، کبیری ص۱۰۷)

**مسئله** :- مسح هم په هغه څیزونو باطلیږی کومو سره چه اودس ماتیږی اودموزودمسحې موده چه کله ختمه شی نو هغې سره هم مسحه باطلیږی. (هدایه ص۳۲ ج۱ شرح نقایه ص۳۱ ج۱)

**مسئله** :- که د درېو ګوتو په اندازه موزه وشلیږی نو هغې باندې به مسحه کول جائز نه وی، (هدایه ص۳۱ ج۱ شرح نقایه ص۳۱ ج۱، کبیری ص۱۱۳)

**مسئله** :- دپښې اکثره حصه که دموزې نه بهر وخی نومسحه باطلیږی .(هدایه ص۳۳ ج۱،شرح نقایه ص۳۱ ج۱، کبیری ص۱۱۴)

**مسئله** :- که ننکئ وی او یا زخم اویا داسې بیماری چه هغه د اوبو له استعمال سره نقصان کوی، نو د اودس په وخت کښې په ننکئ یا زخمی ځائ هم مسحه کولې شي. (شرح وقایه ص۱۰۶ ج۱)

عَنِ ابْنِ جُرَیْجٍ قَالَ قُلْتُ لِعَطَاءٍ قَرْحَةٌ فِیْ ذِرَاعِیْ قَالَ لَا تُعَرِّبْهَا وَاَمِسَّهَا الْمَاءَ (مصنف عبد الرزاق ص۱۶۰ ج۱)

**ترجمه** : ابن جریج فرمائی چه ما حضرت عطاء ته وویل چه زما په لاس باندې زخم دې . هغوی وفرمایل چه دا مه پرانیزه ،اوپه دې باندې مسحه وکړه .

عَنِ ابْنِ جُرَیْجٍ قَالَ قُلْتُ لِعَطَاءٍ اَرَاَیْتَ اِنِ اشْتَکَیْتُ اُذُنِیْ فَاشْتَدَّ عَلَیَّ اَنْ اَغْسِلَهَا قَالَ لَا تُنَقِّهَا وَاَمِسَّهَا الْمَاءَ فقط (مصنف عبد الرزاق ص۱۶۲ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابن جریج فرمائی چه ما دحضرت عطاء نه پوښتنه وکړه که چیرې زما په غوږ کښې تکلیف وی، او د هغې مینځل ماته مشکل وی، نوزه څه وکړم ،هغوی وفرمایل چه په دې باندې مسحه وکړه .

عَاصِمِ بْنِ سُلَیْمَانَ قَالَ دَخَلْنَا عَلٰی اَبِی الْعَالِیَةِ الرِّیَاحِیِّ وَهُوَ وَجِعٌ فَوَضَّؤُوْهُ فَلَمَّا بَقِیَتْ اِحْدٰی رِجْلَیْهِ قَالَ اَمْسَحُوْا عَلٰی هٰذِهٖ فَاِنَّهَا مَرِیْضَةٌ وَکَانَ بِهَا حُمْرَةٌ وَالْحُمْرَةُ الْوَرَمُ. (مصنف عبد الرزاق ص۱۶۲ ج۱،مصنف ابن ابی شیبه ص۱۳۵ ج۱)

**ترجمه** : عاصم بن سلیمان رحمة الله علیه فرمائی چه مونږ خلق ابو العالیه رحمة الله علیه ته لاړو هغه بیمار ؤو، هغه ته اودس وکړې شوه کله چه دهغوی یوه پښه پاتې شوه، نوهغوی وفرمایل په دې باندې مسح وکړئ پدې تکلیف دې اوپه هغې کښې دحمره تکلیف ؤو،چه یو قسم سخت ګزك او پړسوب دې .

**مسئله** :- که پټئ وغیره تړلې شوې وی او د هغې دپرانیستلو نه نقصان وی، نودهغې دپاسه مسح وکړه اوکه نقصان نه وی نوهغه پرانیزه او مسح پرې وکړه . (شرح وقایه ص۱۰۶ ج۱،هدایه ص۳۳ ج۱،شرح نقایه ص۲۹ ج۱)

عَنْ جَابِرٍ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اِنَّمَا یَکْفِیْهِ اَنْ یَّتَیَمَّمَ وَیَعْصِبَ عَلٰی جُرْحِهٖ خِرْقَةً ثُمَّ یَمْسَحُ عَلَیْهَا وَیَغْسِلُ سَائِرَ جَسَدِهٖ . (بیهقی ص۲۲۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی : دهغه چا دپاره دا خبره کافی ده چه هغه تیمم وکړی اوپه زخم باندې دجامې پټئ وتړی اوبیا په هغې باندې مسح وکړی اوباقی ټول بدن وه مینځی .

عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضی الله عنه اَنَّهٗ تَوَضَّاَ وَکَفُّهٗ مَعْصُوْبَةٌ فَمَسَحَ عَلَی الْعَصَائِبِ وَغَسَلَ سِوٰی ذٰلِكَ (بیهقی ص۲۲۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت نافع رحمه الله فرمائی چه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه اودس وکړه اودهغوی په لاس باندې پټئ تړلې وه نو په پټئ باندې یې مسحه وکړه اوباقی حصه یې وه مینځله.

**عَنِ الْأَشْعَثِ قَالَ سَأَلْتُ إِبْرَاهِيمَ عَنِ الْمَسْحِ عَلَى الْجَبَائِرِ فَقَالَ اَمْسِحْ عَلَيْهَا مَسْحًا فَإِنَّ اللهَ أَعْذَرُ بِالْعُذْرِ**

**(مصنف ابن ابی شیبه ص۱۳۶ ج۱، مصنف عبدالرزاق ص۱۶۱ ج۱)**

**ترجمه**: حضرت اشعث رحمه الله فرمائی چه ما دحضرت ابراهیم نخعی رحمه الله نه دپټئ دمسحې په باره کښې پوښتنه وکړه نوهغوی وفرمایل چه په دې مسح کوئ الله ﷻ دانسان عذر قبلوی.

# حیض، نفاس اواستخاضه

**حیض او د هغې احکام**:- له ښځو سره چه کومه وینه خاص وی هغه په درې قسمه ده:

(۱) حیض: دهرې تندرستې بالغې ښځه درحم نه چه کومه وینه هر ه میاشت کښې څو ورځې خارجیږی اودا دالله ﷻ د قدرت تامه اوحکمت بالغه سره د ښځو دجسمانی اوطبعی صحت دپاره ضروری ده او د رسول الله ﷺ په دې باره کښې ارشاد هم دې چه: **(اِنَّ هٰذَا اَمْرٌ كَتَبَهُ اللهُ عَلٰى بَنَاتِ اٰدَمَ)** **(بخاری ص۴۳ ج۱، مسلم ص۳۸۸ ج۱)**

**ترجمه**: دا داسې امر دې چه الله ﷻ د آدم علیه السلام په لونړو (ښځو) باندې مقرر کړې دې.

دا وینه هره میاشت د ښځو دبدن نه وتلوسره د هغوی په صحت ښه اثرغورزوی، که دې کښې خرابی راشی نو د ښځې صحت به خراب شی، او دقسماقسم بیماریو ښکار به شی.

حیض دبلوغ دعمر نه واخله د نا اُمیدی ترکلونو پورې وی، یعنی د دولس یا دیارلس کلونو نه واخله تر پینځه څلویښت یا پنځوسو کلونو پورې دا سلسله جاری وی، بیا دا سلسله ختمه شی، **(شرح نقایه ص۴۲ ج۱)** شاذ اونادر ددې نه خلاف هم کیدې شی.

(داسلام نه علاوه) نورو مذهبونو والا دښځو دحیض په باره کښې په افراط او تفریط کښې مبتلاء ؤو لکه چه حضرت انس رضی الله عنه بیان فرمایلی دی چه کله به یهودو کښې یوه ښځه په حیض کښې مبتلاء شوه نو یهودو به هغه ځان له کړه، نه به یې دهغې سره یوځائ خوراك کولو اونه به یې دځان سره یوځائ پریښوده، (داسې ښځه به یې تنګه او وړه کوټه کښې بندوله) **(مسلم ص۱۴۳ ج۱)**

اوبعض خلق به ددې په خلاف وو او پدې حالت کښې به د مباشرت فاحشه نه هم نه منع کیدل، نو الله ﷻ لدې څخه منع وفرمایله: **(فَاعْتَزِلُوا النِّسَاءَ فِي الْمَحِيضِ وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتّٰى يَطْهُرْنَ) (البقرة آیت ۲۲۲)**

**ترجمه**: اوځان له شئ د ښځو نه دحیض په ورځوکښې اودوئ ته مه نزدې کیږئ. یعنی دهغوی سره کوروالی مه کوئ ترڅوچه هغه پاکې شوې نه وی.

داسلام پاکیزه تعلیم دا قسم بیهوده خبرې ممنوع وګرځولې، او د میانه روئ اوتوازن تعلیم یې ورکړو، دحیض دوجې نه ډیر احکام پیدا کیږي.

دحیض احکام دامام ابوحنیفه رحمه الله، امام سفیان ثوری رحمه الله، امام ابن المبارک رحمه الله، امام لیث رحمه الله اونورو فقهاؤپه نزدکم نه کم درې ورځې اوزیات نه زیات لس ورځې دی، او د امام شافعي رحمه الله، امام مالک رحمه الله، امام احمد رحمه الله، اودامام اوزاعی رحمه الله په نزدکم نه کم یوه ورځ اوزیات نه زیات پینځلس ورځې کیدې شی، او ددې نه زیاته بیماری اواستحاضه شمیرلې شی، او د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد چه کومه وینه د درې ورځونه کمه یا د لسو ورځو نه زیاته وی هغه استحاضه ده. (هدایه ص۳۵ ج۱، شرح نقایه ص۳۲ ج۱)

اَنَّ عُثْمَانَ بْنَ اَبِي الْعَاصِ الثَّقَفِيَّ قَالَ الْحَائِضُ اِذَا جَاوَزَتْ عَشَرَةَ اَيَّامٍ فَهِيَ بِمَنْزِلَةِ الْمُسْتَحَاضَةِ تَغْتَسِلُ وَتُصَلِّي

(دارقطنی ص۲۱۰ ج۱، الجوهر النقی علی البیهقی ص۳۲۲ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عثمان بن ابی العاص رضی الله عنه فرمائی چه حیض والا ښځه چه کله دحیض دلسو ورځو نه تجاوز وکړی نوهغه په منزله دمستحاضې وی هغه به غسل کوی اومونځ به کوی.

عَنْ رَبِيعٍ عَنِ الْحَسَنِ قَالَ اَبْعَدُ الْحَيْضِ عَشْرٌ (مصنف عبدالرزاق ص۳۰۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت حسن بصری فرمائی چه دحیض زیات نه زیاته موده لس ورځې ده.

عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ هِيَ حَائِضٌ فِيمَا بَيْنَهَا وَبَيْنَ عَشَرَةٍ فَاِذَا زَادَتْ فَهِيَ مُسْتَحَاضَةٌ (دارقطنی ص۲۱۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه دحیض موده تر لسو ورځو پورې ده کله چه ددې نه تجاوز وکړی نو هغه مستحاضه وی.

عَنِ الرَّبِيعِ عَنِ الْحَسَنِ قَالَ اَدْنَى الْحَيْضِ ثَلَاثٌ (دارمی ص۱۴۲ ج۱)

**ترجمه**: حضرت حسن بصری فرمائی چه کم نه کم موده دحیض درې ورځې ده.

عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ اَبِي عُثْمَانَ الرَّازِيِّ عَنْ سُفْيَانَ اَقَلُّ الْحَيْضِ ثَلٰثٌ وَاَكْثَرُهُ عَشْرٌ (دارقطنی ص۲۱۰ ج۱)

**ترجمه**: دحیض په باره کښې د ښځو عادتونه مختلف وی، دچا څلور ورځې وی او دچا پینځه ورځې وی او دچا ددې نه زیاتې وی.

**مسئله**:- دحیض په ورځو کښې د ښځو چه څومره عادت وی که هغې کښې وینه سره وی، زیړه وی، خړه وی، توره وی، بغیر د خالصو سپینو اوبو نه به ټول حیض شمارلې شی. (مؤطا امام محمد ص۸۲، شرح وقایه ص۱۱۳ ج۱، هدایه ص۳۵ ج۱)

عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ اَصْحَبَ رَبَّتِي اُمِّي اَنَّ نِسْوَةً سَاَلَتْ عَائِشَةَ رضي الله عنها عَنِ الْحَائِضِ تَغْتَسِلُ اِذَا رَاَتِ الصُّفْرَةَ وَثَمَّ؟

فَقَالَتْ عَائِشَةُ لَاحَتّٰی تَرَی الْقُصَّةَ الْبَيْضَاءَ (مصنف عبدالرزاق ص۳۰۲ج۱،مؤطا امام محمد ص۸۲،بخاری ص۴۷ج۱تعلیقا،مؤطاامام مالك ص۴۳)

**ترجمه** : حضرت علقمه رحمة الله فرمائی چه زما مور ماته خبر راکړو چه څو ښځو دحضرت عائشي رضی الله عنها نه پوښتنه وکړه چه که دحیض والا ښځه په وینه کښې زیړوالې وه وینی نوغسل به کوی او مونځ به کوی او که نه؟ نو ام المؤمنین وفرمایل : نه ! ترڅوچه بالکل سپین رطوبت ونه وینی،.ترهغې پورې هغه حیض ګڼلې شی.

**دحیض احکام** :- دحیض په ورځوکښې ښځې دپاره مونځ کول حرام دی او روزه ترې هم ساقطیږی، البته دروژې قضاء پرې لازمه ده، اومونځ بالکل معاف دې .(هدایه ص۳۶ج۱شرح نقایه ص۳۶ج۱شرح وقایه ص۱۱۳ج۱)

عَنْ عَائِشَةَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فَإِذَا أَقْبَلَتِ الْحَيْضَةُ فَاتْرُكِي الصَّلٰوةَ (بخاری ص۴۴ج۱)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی : کله چه دحیض وخت راشی نو مونځ پریږده.

عَنْ مُعَاذَةَ الْعَدَوِيَّةِ قَالَتْ عَائِشَةُ قَدْ يُصِيْبُنَا ذٰلِكَ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ فَتُؤْمَرُ بِقَضَاءِ الصَّوْمِ وَلَا تُؤْمَرُ بِقَضَاءِ الصَّلٰوةِ.(مصنف عبدالرزاق ص۳۳۲ج۱،بخاری ص۴۶ج۱)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه فرمائی چه درسول الله ﷺ په زمانه کښې به چه کله په ښځو دحیض حالت راغې نوهغوی ته به حکم ورکولې شو چه هغوی دروژو قضاء وکړی او دمونځ قضا ونه کړی.

او دا وجه هم ده چه د ښځو دپاره په روژه نیولو کښې څه حرج نشته ځکه چه روژه په کال کښې صرف یوه میاشت وی، اولس ورځې جدا جدا روژه نیول څه مشکل کار نه دې ،که یوه میاشت هم وی ځنګه چه دنفاس په حالت کښې وی، نوبیا هم ټول کال کښې په آسانئ سره ادا کیدې شی، لیکن که دمونځ قضاء لازمه وای، نو بیا به یقینا ښځې په حرج کښې مبتلاء شی،وقتی مونځونه به هم کوی او قضاء به هم راوړی، دې نه علاوه نور ضروری کارونه به هم ترسره کوی حال دا چه دالله ﷻ د ارشاد مطابق دین کښې الله ﷻ حرج مدفوع ګرځولې دې ،لکه چه فرمایی : (وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّيْنِ مِنْ حَرَجٍ) (الحج آیت ۷۸)

**ترجمه** : اوتاسو باندې د دین په معامله کښې هیڅ حرج (تنګی) الله ﷻ نه ده ایښودلې .

**مسئله** :- دحیض والا ښځې به د روژې قضاء راوړی او دمونځ قضاء پرې نشته، ام المؤمنین

حضرت عائشي رضی الله عنها نه یوې ښځې پوښتنه وکړه چه آیا مونږ به دحیض دورځو دمونځونو قضائی راوړو؟ نو ام المؤ منین وفرمایل آیا ته خارجیه یې؟، «دخارجی فرقې خلق داسې فتوی ورکوی چه ښځه به دحیض دورځو دمونځ قضاء راګرځوی - او خارجې یوه ګمراه فرقه ده» ام المؤمنین وفرمایل د حضور ﷺ په زمانه کښې به ،(قَدْ كَانَتْ إِحْدَانَا تَحِيضُ فَلَا تُؤْمَرُ بِقَضَاءٍ) (ترمذی صه۳۵)

**ترجمه** : چه کله به په مونږ کښې د کومې ښځې حیض راغې نو د مونځ دقضاء راوړلو حکم به ورته نشو کولې .

امام ترمذی فرمائی: پدې باره کښې دفقهاء کرامو اتفاق دې ،په دې کښې دچا هم اختلاف نشته چه دحیض والا ښځه به صرف د روژو قضاء راوړی او دمونځ قضاء به نه راوړی .

**مسئله** :- حیض والا ښځه دخاوند سره په یو لوښی کښې خوراك کولې شی ، او په یوه بستره باندې دواړه څملاستې شی، البته له زنګون نه تر نامه پورې لاس لګول یا ددې اندام لوڅول ناجائز دی .

عَنْ عَائِشَةَ كُنْتُ أَشْرَبُ فِي الْإِنَاءِ وَأَنَا حَائِضٌ فَيَأْخُذُهُ النَّبِيُّ ﷺ فَيَضَعُ فَاهُ عَلَى مَوْضِعِ فِيَّ فَيَشْرَبُ . (مسلم صه۱۴۳ ج۱،مصنف عبد الرزاق صه۱۰۸ ج۱)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه فرمائی چه دحیض په حالت کښې به ما دکوم لوښی نه څښکاك کولو نو رسول الله ﷺ به دهغه لوښی په هغه ځائ اوبه څښکلې په کوم ځائ چه به ما خوله لګولې وه .

عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ إِذَا حِضْتُ يَأْمُرُنِيْ أَنْ أَتَّزِرَ ثُمَّ يُبَاشِرُنِيْ (بخاری صه۴۴ ج۱،مسلم صه۱۴۱ ج۱،ترمذی صه۳۶)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه کله به زه دحیض په حالت کښې وم نو رسول الله ﷺ به ماته حکم وکړو چه زه لنګ وتړم، بیا به یوځائ څملاستلو .

**مسئله** :- دحیض په حالت کښې ښځه جومات ته نشی داخلیدې ،البته که جومات ته لاس وردننه کړی اوڅه څیزرا اخلی نوهغه را اخستلې شی .

رسول الله ﷺ حضرت عائشی رضی الله عنها ته وفرمایل . مصلی «جائې نماز» ونیسه ام المؤمنین عرض وکړو چه زه دحیض په حالت کښې یم، نو هغوی ﷺ وفرمائل :(اِنَّ حَيْضَتَكِ لَيْسَتْ فِيْ يَدِكِ) یعنی حیض خو ستا په لاس کښې نه دې . (مسلم صه۱۴۱ ج۱،ترمذی صه۳۶)

**مسئله** :- جنب ،حائضه ،او نفاس والا دپاره جومات ته داخلیدل ممنوع دی .(هدایه صه۳۶ ج۱،شرح نقایه صه۳۶ ج۱)

عَنْ عَائِشَةَ تَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ فَإِنِّي لَا أُحِلُّ الْمَسْجِدَ لِحَائِضٍ وَلَا جُنُبٍ (ابوداؤد ص۳۰ ج۱، ابن ماجه ص۴۷، نصب الرایه ص۱۹۳ ج۱، تلخیص الحبیر ص۱۴۰ ج۱)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی : زه حلال نه ګنم دحیض والا ښځې او جنابت والا دپاره په جومات کښې دا خلیدل.

**مسئله** :- حیض او نفا س والا ښځه دبیت الله طواف هم نشی کولې .(هدایه ص۳۶ ج۱ شرح نقایه ص۳۶ ج۱)

عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ أَنْ لَا تَطُوفِي بِالْبَيْتِ حَتَّى تَطْهُرِيْ. (بخاری ص۴۴ ج۱، مسلم ص۳۸۹ ج۱)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی چه تاسو دحیض په حالت کښې دبیت الله طواف مه کوئ تر کومې چه پاکې شوې نه یاستئ.

**مسئله** :- جنب اوحائضه اونفاس والا ښځه دقرآن تلاوت هم نشی کولي .(هدایه ص۳۶ ج۱ شرح نقایه ص۴۷ ج۱)

عَنْ عَلِيٍّ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ يُقْرِئُنَا الْقُرْآنَ عَلَى كُلِّ حَالٍ مَا لَمْ يَكُنْ جُنُبًا (ترمذی ص۴۸)

**ترجمه** : حضرت علی رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ به مونږ خلقو ته په هر حال کښې دقرآن دلوستلو اجازت راکولو، ترڅو چه به څوک دجنابت په حالت کښې نه وُو .

عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ لَا تَقْرَءُ الْحَائِضُ وَلَا الْجُنُبُ شَيْئًا مِنَ الْقُرْآنِ (ترمذی ص۳۵، دار قطنی ص۱۱۷ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایي : جنابت والا او حیض والادې قرآن نه لولی.

**مسئله** :- جنابت والا ، حیض والا، نفاس والا او بې اودسه دپاره قرآن ته لاس وروړل جائز نه دی، مګر دا چه له جدا جامې سره یې ونیسې نو بیا جائز دې ، قرآن کریم کښې راغلی دی : (لَا يَمَسُّهُ إِلَّا الْمُطَهَّرُونَ). (واقعه آیت ۷۹)

**ترجمه** : قرآن پاک ته دې لاس نه وروړی مګر پاك خلق. ددې آیت مبارك نه دا متبادرده .

عَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ لَهُ لَا تَمَسَّ الْقُرْآنَ إِلَّا وَأَنْتَ عَلَى طُهْرٍ (دار قطنی ص۱۲۲ ج۱، مستدرك حاکم ص۴۸۵ ج۳)

**ترجمه** : حکیم بن حزام رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی تاسو لاس مه لګوئ له قرآن سره مګر په داسې حالت کښې چه تاسې پاك یئ .

عبدالله بن عمر رضی الله عنه ان رسول الله ﷺ قال لا تمس القرآن الا طاهر (مجمع الزوائد ص۲۷۶ ج۱ بحواله طبرانی)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمر﵁ فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائی چه په قرآن دې لاس نه لګوی مګر هغه څوك چه پاك وی.

**مسئله** :- اوپه دې حالت (حیض او نفاس) کښې ښځه او خاوندخپل مینځ کښې خاص تعلق نشی قائمولې، (یعنی کوروالې نشی کولې) **(ولاتقربوهن حتی یطهرن) (البقرة).**

**نفاس** :- نفاس هغه وینه ده چه له ښځې نه دماشوم دولادت نه بعد جاری وی، ددې کمه موده متعینه نه ده، کله زر بندیږی، کله وروسته لیکن ددې زیات نه زیات موده څلوېښتو ورځو پورې کیدې شی، ددې نه زیاته نه وی که ددې نه پس هم وینه راغله نو هغه به نفاس نه وی بلکه د بیماریٔ او استحاضې وینه به وی. **(هدایه ص۲۱ ج۱شرح نقایه ص۴۸ ج۱)**

**عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ كَانَتِ النُّفَسَاءُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ تَقْعُدُ اَرْبَعِيْنَ يَوْمًا اَوْ اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً . (ترمذی ص۴۷مستدرك حاكم ص۱۷۵ ج۱،ابوداؤد ص۴۳ ج۱،بیهقی ص۳۴۱ ج۱)**

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت ام سلمه﵂ فرمائی چه نفاس والا ښځې به درسول الله ﷺ په زمانه کښې کیناستلې ترڅلوېښتو ورځو پورې.

**عَنْ جَابِرٍ قَالَ وَقَّتَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لِلنُّفَسَاءِ اَرْبَعِيْنَ يَوْمًا (مجمع الزوائد ص۲۸۱ ج۱ بحواله طبرانی)**

داکثر فقهاء کرامودا مسلك دې اوداامام شافعی او امام اوزاعی په نزد دا موده شپیته ورځو پورې هم کیدې شی.

**مسئله** :- دنفاس والا ښځه هم دحیض والا ښځې په شان صرف روژه به قضا راوړی او دمونځ قضاء به نه راوړي. **درمختار ص۵۲ ج۱)**

**لَايَاْمُرُهَا النَّبِيُّ ﷺ بِقَضَاءِ صَلٰوةِ النِّفَاسِ (مستدرك حاكم ص۱۷۵ ج۱)**

**ترجمه** : رسول الله ﷺ به دنفاس والا ښځو ته دنفاس په حالت کښې دقضا شویې مونځونودکولو حکم نه کولو.

**استحاضه** :- دریمه وینه استحاضه ده، دا په اصل کښې د رحم دننه دځه باریك رګ د قطع کیدو سره جاری کیږی، او اکثر مسلسل وی،او کله دوقفې سره وی.

داستحاضه والا ښځه چه دهغې ورځې معلومې وی،نو دهغې معامله خو آسانه ده ،او هغه به هغه ورځو کښې توقف کوی بیا به غسل کوی او مونځ وغیره به کوی،لیکن کومه ښځه چه دبالغیدو سره په استحاضه کښې مبتلاء شی یا وروسته استحاضه کښې مبتلاء شی او هغې نه دحیض ایام هیر شی، یعنی معلومې ورته نوی چه دحیض ورځې یی کومې دی، او دطهر ورځې یی څومره دی، کومو ښځو کښې چه دحیض باقاعدګی وی په دویٔ کښې ددې قسم عوارض پیدا

کیږی، دې دپاره احادیثو کښې داستحاضې په باره کښې درې قسمه احکام موندل کیږی:
(۱) معلوم الایام ښځه به یو ځل غسل کوی، او بیا به دهر وخت مونځ دپاره نوې اودس کوی او مونځ به کوی.

حضرت ام سلمه رضی الله عنها نه روایت دې، چه یوه ښځه درسول الله ﷺ په زمانه کښې استحاضه کښې مبتلاء وه، ام المؤمنین ام سلمه دهغې په باره کښې دنبی کریم ﷺ نه فتوی طلب کړه، نو رسول الله ﷺ او فرمایل، هغه ښځه به ګوری هغه ورځو شپو ته په کومو کښې چه به یې حیض راتلو هره میاشت کښې به هغې ته عارض لاحق کیدلو نه وړاندې نو هغومره ورځې به مونځ پریږدی بیا به غسل وکړی (او وینه که بهیده) نو کپړه دې ږدی، او بیا به مونځ کوی. (مؤطا امام مالك ص۴۷، ابوداؤد ص۳۶ ج۱، نسائی ص۶۵ ج۱، دارمی ص۱۶۵ ج۱)

رسول الله ﷺ دمستحاضې ښځه په باره کښې وفرمایل چه: (تَدَعُ الصَّلٰوةَ اَیَّامَ اَقْرَائِهَا الَّتِی کَانَتْ تَحِیضُ فِیهَا ثُمَّ تَغْتَسِلُ وَتَتَوَضَّأُ عِنْدَ كُلِّ صَلٰوةٍ وَتَصُومُ وَتُصَلِّي) (ترمذی ص۳۲ ابوداؤد ص۴۷ ج۱)

**ترجمه**: هغه به هغه ورځو کښې کومو کښې چه به ورته حیض راتلو مونځ به پریږدی بیا به یو ځل غسل کوی او دهر مونځ په وخت کښې به اودس کوی او روژه به ساتی او مونځ به کوی.

ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقې نه روایت دې چه رسول الله ﷺ نه د مستحاضې ښځې په باره کښې پوښتنه وکړې شوه چه هغه به څه کوی نو هغوی ﷺ وفرمایل: (تَدَعُ الصَّلٰوةَ اَیَّامَ اَقْرَائِهَا ثُمَّ تَغْتَسِلُ غُسْلاً وَاحِدًا ثُمَّ تَتَوَضَّأُ عِنْدَ كُلِّ صَلٰوةٍ). (کنزالعمال ص۲۴۳ ج۶، آثار السنن ص۲۹ ج۱ بحواله صحیح ابن حبان اسناده صحیح)

**ترجمه**: داسې ښځه به خپلو مقرر ورځو دحیض کښې مونځ پریږدی بیا به یو ځل غسل کوی، او بیا به دهر مونځ وخت نه اودس کوی.

**مسئله**:- مستحاضه، سلسل البول، رعاف (د پوزې وینه جاری کیدل) او داسې زخمی چه همیشه یې د زخم نه وینه ځاځی او بواسیر والا او دغه شان ټول معذور خلق به دهر مونځ د وخت دپاره جدا اودس کوی فرض، نفل او قضا مونځونه پرې ټول کولې شی او بیا به دبل مونځ وخت ته نوې اودس کوی. (هدایه ص۴۹ ج۱ شرح نقایه ص۴۹ ج۱، کبیری ص۱۳۳)

**مسئله**:- دمعذورو افرادو دپاره جامه مینځل فرض نه دی. (کبیری ص۱۳۵)

اَنَّ مِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ دَخَلَ رَجُلٌ عَلٰى عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ مِنَ اللَّيْلَةِ الَّتِي طُعِنَ فِيهَا فَاَيْقَظَ عُمَرَ لِصَلٰوةِ الصُّبْحِ فَقَالَ عُمَرُ نَعَمْ وَلَا حَظَّ فِي الْاِسْلَامِ لِمَنْ تَرَكَ الصَّلٰوةَ فَصَلّٰى عُمَرُ وَجُرْحُهُ يَثْعَبُ دَمًا (مؤطا امام مالك

صه۲۸مصنف عبدالرزاق صه۱۵۱ج۱)

**ترجمه** : حضرت مسور بن مخرمه ﷛ فرمائی چه په کومه شپه حضرت عمر بن الخطاب ﷛ زخمی کړې شوې وونو يو سړې «هغه ابن عباس ﷛ ؤو» دهغوی خواته راغې او د سحر مونځ دپاره يې بيدار کړو «په هغوی ﷛ بې هوشی وه» نو حضرت عمر ﷛ وفرمايل چه آو وروره ! «مونځ خو ضرور کول پکار دی» او دهغه سړی په اسلام کښې هيڅ حصه نشته چا چه مونځ پريښودلو، بيا حضرت عمر ﷛ مونځ وکړو په داسې حال کښې چه دهغوئ د زخم نه وينه بهيده.

(۲) چه مسلسل وينه جاری وی او ايام حيض هم معلوم نه وی نو داسې ښځه به هر مونځ ته احتياطا غسل کوی.

(۳) وفعې وفعې سره چه. وينه جاری وی او ايام حيض هم معلوم نه وی، داسې ښځه به دماسپښين او مازديګر يو غسل سره او ماښام او ماسخوتن بل غسل سره او دسحر دپاره ځان له غسل کولو سره يه مونځ ادا کوی لکه څنګه چه حضرت حمنه بنت جحش ﵂ ته رسول الله ﷺ وفرمايل : (فَإِنْ قَوِيتِ عَلَى أَنْ تُؤَخِّرِي الظُّهْرَ وَتُعَجِّلِي الْعَصْرَ ثُمَّ تَغْتَسِلِينَ حِينَ تَطْهُرِينَ وَتُصَلِّينَ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ ثُمَّ تُؤَخِّرِينَ الْمَغْرِبَ وَتُعَجِّلِينَ الْعِشَاءَ ثُمَّ تَغْتَسِلِينَ وَتَجْمَعِينَ بَيْنَ الصَّلَوتَيْنِ فَافْعَلِي وَتَغْتَسِلِينَ مَعَ الصُّبْحِ وَتُصَلِّينَ وَكَذٰلِكَ فَافْعَلِي وَصُومِي) (ترمذی صه۳۵،مصنف عبدالرزاق صه۳۰۶ج۱)

**ترجمه** : که ته يی کولې شی نو دماسپښين مونځ وروسته کړه، او دمازديګر مونځ بانديې تندی وکړه او کله چه ته پاکه يې نو دواړو مونځونو دپاره غسل وکړه اوهغه ادا کړه او دماښام او ماسخوتن دپاره غسل وکړه او د سبا دپاره ځان له غسل وکړه او مونځ وکړه او روژه ونيسه.

**مسئله** :- د مستحاضې ښځې حکم هغه نه دې کوم چه دحيض او نفاس والا دې ، دا مونځ کولې شی، قرآن پاک مسح کولې شی جومات ته داخليدلې شی، روژه نيولې شی او دخاوند سره مباشرت هم کولې شی، «دا يو قسم بيماری ده».

ام المؤمنين حضرت عائشه ﵂ نه روايت دې چه فاطمه بنت ابی حبيش ﵂ درسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه اوعرض يی وکړوچه يا رسول الله ! زه يوه داسې ښځه يم، چه استحاضه کښې مبتلا يم او کله هم پاکه نه يم، هر وخت وينه جاری وی، نو آيا زه مونځ پريږدم، رسول الله ﷺ وفرمايل چه نه ! (إِنَّمَا ذٰلِكِ عِرْقٌ وَلَيْسَ بِالْحَيْضَةِ فَإِذَا أَقْبَلَتِ الْحَيْضَةُ فَاتْرُكِي الصَّلوٰةَ فَإِذَا ذَهَبَ قَدْرُهَا فَاغْسِلِي عَنْكِ الدَّمَ) (بخاری صه۴۴ج۱،مسلم صه۱۵۱ج۱)

**ترجمه** : دا د رګ دشليدو د وجې نه وينه بهيږی دحيض وينه نه وی کله چه ستاسو دحيض ورځې راشی نو مونځ پريږدئ او کله چه هغه ورځې لاړې شی نو غسل کوئ او بيا مونځ کوئ.

# تطهیر الانجاس

**«یعنی د نجاست د پاکوالی احکام»**

دپاکی حاصلول ضروری دی : **(لأنَّ حُكمَ الطَّهَارَةِ إبَاحَةُ الصَّلوٰةِ وَمَا يُشَاكِلُهَا).**

**ترجمه** : ځکه چه دطهارت نه بغیر دمونځ په شان عبادتونه نشی ادا کیدې.

د «خبث» په نجاست حقیقی او د «حدث» په نجاست حکمی باندې اطلاق کیږی، او د «انجاس» اطلاق په دواړو کیږی.

پاکی دعبادت دپاره موقوف علیه درجه لری لهذا دمسلمان دپاره بدن، لباس او دمکان وغیره پاکوالې ضروری دې.

**مسئله** :- که بدن یا جامه باندې نجاست و لړیږی، نو دهغې مینځل ضروری دې **(هدایه ص۲۲ ج۱)**

**(وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ)، (المدثر آیت ۴)** یعنی خپلې جامې پاکې کړه.

**تَحُتُّهُ ثُمَّ تَقْرُصُهُ بِالْمَاءِ ثُمَّ تَنْضَحُهُ ثُمَّ تُصَلِّي فِيهِ (مسلم ص۱۴۰ ج۱، ابوداؤد ص۵۲ ج۱)**

ترجمه : اول یې په څه څیز باندې وګروه، بیا یې په اوبو وه مینځه او بیا پکښې مونځ کوه.

دنجاست مختلف قسمونه دی او دهر یو ځان له ځان له حکم دې.

(۱) نجاست حقیقی مرئی : دجسم والا نجاست وی لکه سُوته، او غټ بول، وغیره.

(۲) نجاست حقیقی غیر مرئی : لکه واړه بول وغیره.

(۳) نجاست حکمی لکه حیض، نفاس او جنابت.

حدث اصغر یعنی بې اودسه کیدل او حدث اکبر یعنی جنب کیدل.

نجاست غلیظه لکه بهیدونکې وینه، شراب، بول، دسپی ګندګی، د درندګانو او ځناورو ګندګی، سوتې وغیره اودهغوی لعاب، دچرګې اوبطې ګندګی او د دواړو لارونه خارجیدونکې هر هغه څیز چه هغې سره اودس ماتیږی هغه ټول نجاست غلیظه کښې داخل دی. **(شرح نقایه ص۵۰ ج۱)**

**مسئله** :- دنجاست غلیظه حکم دادې چه که یو درهم نه کم وی نو معاف دې او که یو درهم یا ددې نه زیات وی نو دهغې د مینځلو نه بغیر مونځ جائز نه دې. **(جامع صغیر ص۸، هدایه ص۵۵ ج۱، شرح نقایه ص۵۰ ج۱)**

**عَنْ قَتَادَةَ كَانَ يَقُولُ مَوضِعُ الدِّرْهَمِ فَاحِشٌ (مصنف عبد الرزاق ص۳۷۰ ج۱)**

**ترجمه** : حضرت قتاده رحمه الله فرمائی چه د یو درهم برابر که نجاست وی نو هغه فاحش «زیات» دې.

**عَنْ حَمَّادٍ قَالَ إذَا كَانَ مَوضِعُ الدِّرْهَمِ فِي ثَوبِكَ فَأعِدِ الصَّلوٰةَ (مصنف عبد الرزاق ص۳۷۰ ج۱)**

**ترجمه**: حضرت حماد فرمائی چه که د یو درهم مقدار نجاست ستا په جامه باندې ولګی نو که مونځ دې کړې وی نو دهغې اعاده وکړه.

نجاست خفیفه د آس بول او بول دما یوکل لحمه یعنی دهغه ځناورو بول چه دهغې غوښه خوړلې شی، بهیمة الانعام او د هغه مرغو ګندګی چه د هغې غوښه نشی خوړې (هدایه ص۳۶ ج۱، شرح نقایه ص۴۴ ج۱)

**مسئله**:- د نجاست خفیفه حکم دادې، چه ربع ثوب یعنې د لستوڼرو وغیره څلورمه حصه یا ربع بدن یعنې د لاس وغیره څلورمه حصه د دې نه کم معاف دې، که د دې نه زیات وی، نو د هغې مینځل ضروری دی. (جامع صغیر، ص۹، هدایهٔ ص۳۵، ج۱، شرح نقایه ص۴۴ ج۱)

**مسئله**:- سوټه، غوشیان، پچه وغیره د امام ابو حنیفه په نزد نجاست غلیظه او د صاحبینو په نزد نجانست خفیفه کښې داخل دی.

**مسئله**:- د داسې مرغو ګندګی چه د هغې غوښه خوړلې شی هغه پاکه ده مګر د چرګې ګندګی او وینه نجاست غلیظه دی. (شرح نقایه، ص۴۵، ج۱)

عن ابی عثمان قال کنا مع عبدالله اذ وقع علیه خرء عصفور فقال هکذا بیده نفضه (مصنف ابن شیبه ص۱۱۷ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابن عثمان فرمائی چه مونږ د عبد الله بن عمر ﷺ سره وو، ناګهانه د یو مرغی ګندګی په هغوی راپریوتله نو هغوی لاس سره هغه لرې کړه.

**مسئله**: شراب هم نجاست غلیظه دی. (شرح نقایه ص۴۵، ج۱)

عن الحسن القئ و الخمر و الدم بمنزلة یعنی فی الثوب. (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۹۳ ج۱)

**ترجمه**: حضرت حسن بصری فرمائی، چه قئ شراب او وینه ټول یوشان ناپاك دې.

عن مجاهد قال اذا اصاب ثوبك خمر فاغسله هو اشد من الدم. (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۹۳ ج۱)

**ترجمه**: حضرت مجاهد فرمائی، چه که ستاسو جامو باندې شراب ولګی نو هغه وه مینځئ دا د وینی نه زیات سخت نجاست دې.

عن الحسن فی الحب یقطر فیه من الخمر او الدم قال یهراق (ابن ابی شیبه ص۱۹۷، ج۱)

**ترجمه**: حضرت حسن بصری فرمایی چه که چیرې منګی کښې د شرابو یا د وینی څاځکی پریوځی نو هغه واړوئ.

**مسئله**:- د بولو نری څاڅکی د ستنې د سر برابر معاف دې. (جامع صغیر ص۱۰، هدایه ص۳۷، ج۱، شرح نقایه ص۴۶، ج۱)

**مسئله** :- ماده منویه که رقیقه وی نو د هغې مینځل د بدن او د جامې نه ضروری دې ، او که ماده غلیظه (سخته) او وچه وی نو د هغې د ګرولو سره بدن وکپړه پاکیږی بغیر د مینځلو نه.

(هدایه ص۳۳، ج۱، نقایه، ص۴۲، ج۱)

عن عائشة قالت کنت افرك المنیة من ثوب رسول الله ﷺ اذا کان یابسا و اغسله اذا کان رطبا. (دار قطنی، ص۱۲۵، ج۱)

**ترجمه** : ام المومنین حضرت عائشة صدیقه فرمائی چه کله به د رسول الله ﷺ ماده منویه وچه وه نو ما به د هغه مبارك د جامې نه ګروله او چه کله به لمده وه نو ما به مینځله.

قال عمر ابن الخطاب ان کان رطبا فاغسله، وان کان یابسا فاحککه وان خفی علیك فارششه، (مصنف ابن ابی شیبه ص۸۵ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عمر ﷺ فرمائی ، چه که ماده منویه لمده وه نو هغه مینځه او که چیرې وچه وه نو هغه وګروه، او که دغه مقام په تا باندې مخفی شی، نو بیا یې معمولی مینځه (یعنی اوبه پرې وشینده)

**مسئله** :- ښکاره کیدونکی نجاست نه پاکی د هغې د عین له زائله کیدو سره راځی ، اوبو سره وی یا هر بهیدونکې مائع او پاك اومزیل سره وی، یعنې نجاست وغیره لره زائله کونکې وی، مثلا سرکه ، عرق ګلاب ، پټرول ، د دخاورو تیل وغیره ، چه په نچوړ کولو سره نچوړ کیږی، او تیل ، پئ او د میوو نه نچوړ شوې څیز نه وی ځکه چه په هغې کښې ټینګوالې وی. (هدایه ص۴۴ ج۱، نقایه ص۴۱ ج۱.)

او غیر مرئی نجاست درې ځله مینځلو او نچوړ کولو سره پاکیږی، که نچوړ ممکن وی . او که ممکن نه وی نو بیا درې ځله مینځل دی ، تر دې چه د اوبو څڅیدل بند شی، نو هغه څیز به پاك شی لکه غټی درې ګانې ، قالینو نه وغیره . (هدایه ص۴۷، نقایه ص۴۱ ج۱)

**مسئله** :- موزه د جسم والا نجاست مثلا سوټه، غټ بول وینه منی وغیره ، اوچیدو سره دغه موزه په زمکه باندې راښکلو سره پاکیږی. (جامع صغیر ص۹، هدایه ص۴۳، ج۱، نقایه ص۴۳، ج۱.)

عن ابی سعید خدری، قال قال رسول الله ﷺ فان رای فی نعلیه قذرا او اذی فلیمسحه، (ابو داؤد ص۹۵ ج۱.)

ترجمه : حضرت ابی سعید خدری ﷺ نه روایت دې ، چه رسول الله فرمائی. چه که څوك په خپل پیزار کښې ګندګی (جسم والا نجاست) وه وینی نو هغه دې په زمکه راکاږی ، نو پاك به شی، (لیکن که نرم نجاست وی، چه پیزار یې جذب کوی ، نو هغه چه تر څو په اوبو باندې پاك نه شی،

نو نه پاکیږی.

**مسئله**:- شیشه، توره، چاړه، چاقو وغیره باندې که نجاست پریوځی نو هغه په زمکه راښکلو سره پاکیږی. (هدایه ص۴۲، ج۱، نقایه ص۴۳، ج۱)

په زمکه باندې نجاست پریوتلو سره چه کله زمکه وچه شی نو هغه پاکه شی، البته په هغې باندې تیمم کول جایز نه دی ، (هدایه ص ۴۴ ، ج ۱ ،)

**عن محمد بن حنفية قال اذا جفة الارض وقد زكت.(مصنف ابن ابی شیبه ص۵۷، ج۱،) عن ابی قلابة قال اذا جفة الارض فقد زكت،**

حضرت امام محمد بن حنفیه او ابی قلابه فر مائی. چه کله زمکه وچه شی هغه پاکه شی.

**مسئله**:- چه کوم نجاست په بل جنس باندې بدل شی، مثلا د مالګې په کان کښې پریوځی نو مالګه جوړه شی، یا سوته وغیره په سوزیدو سره ایره جوړه شی، نو هغه پاکه شی. (احکام القرآن لجصاص ص ۲۱۲ ج۳، نقایه ص۳۶، شرح وقایه ص۱۲۴ ج۱)

**مسئله**:- په کومو څیزونو کښې چه وینه سرایت نه کوی نو په مرګ سره هغه نه پلیتیږی مثلاوینښته، ښه، وزرې، ښکرې. نوکونه وغیره کله چه د دې په هډوکی کښې د سومت (غوړوالې) نه وی، (هدایه ص۱۹ ج۱، شرح نقایه ص۲۰ ج۱،)

**عن عمرو قال ليس لصوف الميتة ذكاة اغسله فانتفع به. (مصنف عبد الرزاق ص۶۶ ج۱)**

**ترجمه**: حضرت عمرو ﷺ فرمایي چه د مرداري وړئ ناپاکه نه ده، هغه وه مینځه او فائده تربنه واخله

**عن ابن سيرين قال الصوف والمرعز والجز والثل لا بأس به وبريش الميتة (مصنف عبد الرزاق ص۶۶ ج۱)**

**ترجمه** : امام ابن سیرین فرمائی چه وړئ او نرې پشم چه دچیلیو دویښتو لاندې وی اونرې وینښته، او دګډ وینښته ،وړئ، چه جدا وی اویا دویښتو او پشم سره یوځای وی، ددې په استعمال کښې هیڅ حرج نشته، دارنګه دمرداري مرغۍ وزرې او ښې هم پاکې دی.

**مسئله**:- پلو (عضلاتو) کښې که غوړوالې یاغوښه لګیدلې وی نو نجس دی او که داسې نه وی نو پاکې دی. شرح نقایه ص۲۰ ج۱، شرح وقایه ص۸۴ ج۱)

**مسئله**:- نافه مشك پاکه ده او د کستوری خوړل هم روا دی.

**مسئله**:- موزه باندې که جسم والا نجاست لګیدلې وی نو هغه په زمکه باندې راښکلو سره پاکیږی لیکن که غیر ذی جرم نجاست پرې لګیدلې وی نو دهغې مینځل ضروری دی. هدایه ص۴۳ ج۱، شرح نقایه ص۴۴ ج۱)

# کتاب الصلوة

## د لمونځ وقتونه

د مونځ د وختونو پیژندل دهر مؤمن دپاره ضروری دی.

۱ - یو خو له دې کبله چه دالله ﷻ ارشاد دې چه مونځ په هر مؤمن باندې په مقرر وقت کښې فرض کړې شوې دې.

۲ - دویم دا چه درسول الله ﷺ ارشاد دې چه : (انّ لِلصّلوٰةِ اَوّلاً وَّآخِراً) (ترمذی ص۲۹، مسند احمد ص۲۳۲ ج۲)

**ترجمه**: دمونځ دوخت دپاره اول او آخر وی یعنی ابتداء او انتهاء وی.

اودا هم چه افضل الاعمال او احب الاعمال دالله ﷻ په نزد مونځ په خپل وخت ادا کول دی.

(اَلصّلوٰةُ لِوَقتِهَا) (مسلم ص۶۲ ج۱) اَلصّلوٰةُ عَلیٰ وَقتِهَا (بخاری ص۷۶ ج۱)

او دتعیین د اوقاتو په سلسله کښې حضرت جبرائیل ؑ راتللو اوپه اهتمام سره یې وختونه مقررول او آخر کښې به یې وفرمایل : (هٰذَا وَقتُ الاَنبِیَاءِ مِن قَبلِكَ وَالوَقتُ فِیمَا بَینَ هٰذَینِ الوَقتَینِ) (ترمذی ص۲۹، ابوداؤد ص۵۶ ج۱)

**ترجمه**: دا وخت دتیرو شوو انبیاء علیهم السلام ؤو او ستاسو او ستاسو د امت دپاره دمونځ وخت ددې دواړو په مینځ مینځ کښې دې.

رسول الله ﷺ په مکروهه وختونو کښې د مونځ کولو نه منع فرمایلې ده، وختونو کښې مباح، مکروه هر قسم وختونه دی، او ددې نه علاوه متبرك (برکتی) وختونه هم دی چه هغې کښې مونځ او دعا زیاته قبلیږی، اوکله په مونځ کښې دتعجیل ضرورت وی او کله دتاخیر، له همدې کبله دمؤمن شان نبی کریم ﷺ داسې بیان فرمایلې دې : (اِنَّ خِیَارَ عِبَادِ اللهِ الَّذِینَ یُرَاعُونَ الشَّمسَ وَالقَمَرَ وَالاَهِلَّةَ وَالنُّجُومَ وَالاَظِلَّةَ لِذِکرِ اللهِ) (حصن حصین ص۳۲)

**ترجمه**: بیشکه دالله ﷻ خوښ او ښه بنده هغه دې چه دنمر او سپوږمۍ او ستورو حفاظت کوی د الله ﷻ دذکر دپاره ، دمونځ، روژې او عبادتونو وختونو دمعلومولو دپاره.

له همدې کبله دمونځونو دوختونو شناخت اوبیا ددې حفاظت ډیر ضروری دې او دمونځ په شرائطو کښې دا هم داخل دی لکه څنګه چه به راشی چه فرض بغیر دوخت څخه نه ادا کیږی، وخت خو هسې هم ډیر قیمتی څیز دې.

(اَلْوَقْتُ سَيْفٌ قَاطِعٌ) ، (امام شافعی)

**ترجمه** : وخت پرېکونکې توره ده .

ع : تللې وقت بيا لاس ته نه راځي .

**د قرآن کريم مبارک آيتونه** : دذکر اودعبادت دپاره هم په قرآن کښې دوخت ذکر موجود دي ، لکه چه الله پاك فرمايي : (وَاذْكُرْ رَّبَّكَ كَثِيرًا وَّسَبِّحْ بِالْعَشِيِّ وَالْإِبْكَارِ) (آل عمران آيت ۴۱)

**ترجمه** : اوذکر کوئ دخپل رب په کثرت سره ،او تسبيح وايئ دزوال نه پس اودسحر په وخت کښې .

(فَاصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُولُونَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوبِهَا وَمِنْ آنَاءِ اللَّيْلِ فَسَبِّحْ وَأَطْرَافَ النَّهَارِ لَعَلَّكَ تَرْضٰى) (طه آيت ۱۳۰)

**ترجمه** : اوصبر کوه په هغه خبرو باندې کومې چه «دمخالفو خلقو» له خوا ويل کيږي ، او دخپل رب تسبيح او تحميد بيانوه دنمر دراختلونه وړاندې او د نمر پرېوتلونه وړاندې ، اوپه اول وختونو دشپې کښې هم تسبيح کوه ،او د ورځې په دواړو طرفونو کښې هم تسبيح کوه شايد چه تاسو راضي شئ .

(فَسُبْحَانَ اللهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَعَشِيًّا وَحِينَ تُظْهِرُونَ) ، (الروم آيت ۱۸،۱۷)

**ترجمه** : پس پاکي الله ﷻ لره ده ،کله چه تاسو ماښام کوئ او سبا کوئ او هم دهغه لپاره تعريف دې په آسمانونو او په زمکه کښې او وروستو دزوال نه، او کله چه د ماسپښين وخت داخليږي .

(وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ حِينَ تَقُومُ ۝ وَمِنَ اللَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَإِدْبَارَ النُّجُومِ) (الطور آيت ۴۹،۴۸)

**ترجمه** : او تسبيح بيان کړه دخپل رب کله چه ته ودرېږې اودشپې په وخت دستورو د ډوبيدو نه وروسته «هم تسبيح بيان کړه» .

(فَاصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُولُونَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوبِ ۝ وَمِنَ اللَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَأَدْبَارَ السُّجُودِ) (ق آيت ۴۰) (والمراد من ادبار السجود النوافل والتسبيح بعد الفرائض)

**ترجمه** : پس صبر کوه په هغه خبرو باندې چه دا خلق يې کوي او تسبيح بيان کړه دخپل رب سره دتعريف او ثناء نه ، دنمر د راختلو نه وړاندې او دنمر پرېوتلو نه وړاندې ،او دشپې په وخت دمونځونو نه وروسته .

(وَأَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ اللَّيْلِ إِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ ذٰلِكَ ذِكْرٰى لِلذَّاكِرِينَ) (هود آيت ۱۱۴)

**ترجمه**: اومونځ قائم کړه دورځې په دواړو طرفونو کښې اودشپې په حصو کښې بیشکه نیکی لرې کوی بدو لره، دا نصیحت دې د ذاکرینو دپاره.

**احادیث مبارکه** :- اِبْنَ مَسْعُوْدٍ رضی الله عنه قَالَ سَأَلْتُ النَّبِيَّ ﷺ أَيُّ الْأَعْمَالِ أَحَبُّ إِلَى اللهِ قَالَ الصَّلٰوةُ لِوَقْتِهَا

(بخاری ص۷۶ ج۱، مسلم ص۶۲ ج۱)

ترجمه: حضرت ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی ما درسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه چه کوم عمل دالله ﷻ په نزد زیات محبوب دې؟ هغوی ﷺ وفرمایل: مونځ په خپل وخت باندې کول.

(وَقَالَ الْعُلَمَاءُ اِنَّ الصَّلٰوةَ اَفْضَلُ الْعِبَادَاتِ بَعْدَ الشَّهَادَتَيْنِ كَمَا فِي حَدِيْثِ الصَّلٰوةِ خَيْرُ مَوْضُوْعٍ اَيْ خَيْرُ عَمَلٍ وَضَعَهُ اللهُ لِعِبَادِهٖ لِيَتَقَرَّبُوْا اِلَيْهِ)

**ترجمه**: او علماء کرام فرمائی چه په ټولو عبادتونو کښې افضل عبادت وروسته د شهادتینو نه مونځ دې لکه چه نورو احادیثو کښې راغلی دی چه مونځ بهترین موضوع دې یعنی هغه بهترین عمل دې چه الل ه ﷻ دخپلو بندګانو دتقرب دپاره مقرر کړې دې.

عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ خَمْسُ صَلَوَاتٍ اِفْتَرَضَهُنَّ اللهُ تعالى مَنْ اَحْسَنَ وُضُوْءَهُنَّ وَصَلَّاهُنَّ لِوَقْتِهِنَّ وَاَتَمَّ رُكُوْعَهُنَّ وَخُشُوْعَهُنَّ كَانَ عَلَى اللهِ عَهْدٌ اَنْ يَّغْفِرَ لَهٗ وَمَنْ لَمْ يَفْعَلْ فَلَيْسَ لَهٗ عَلَى اللهِ عَهْدٌ اِنْ شَاءَ غَفَرَ لَهٗ وَاِنْ شَاءَ عَذَّبَهٗ (مسند احمد ص۳۱۵ ج۵، ابوداؤد ص۶۱ ج۱، مؤطا امام مالك، نسأئی ص۸۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عباده بن صامت نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی: پنځه مونځونه دی چه الله ﷻ فرض کړي دې چا چه په نبې طریقې سره اودس وکړه او هغه یې په خپل وخت ادا کړل، او دهغې رکوع او خشوع یې پوره وکړه، نودالله ﷻ عهد دې چه الله ﷻ به داسې سړې ښښی، او چا چه داسې ونکړل، نودهغه دپاره دالله ﷻ په نزد هیڅ عهد نشته، که الله ﷻ وغواړی نو وبه یې ښښی او که هغه وغواړی نو عذاب به ورکړی.

اِبْنَ عَبَّاسٍ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَمَّنِيْ جِبْرَائِيْلُ عِنْدَ الْبَيْتِ مَرَّتَيْنِ فَصَلَّى الظُّهْرَ حِيْنَ زَالَتِ الشَّمْسُ وَكَانَتْ قَدْرَ الشِّرَاكِ وَصَلّٰى بِيَ الْعَصْرَ حِيْنَ صَارَ ظِلُّ كُلِّ شَيْءٍ مِثْلَهٗ وَصَلّٰى بِيَ الْمَغْرِبَ حِيْنَ اَفْطَرَ الصَّائِمُ وَصَلّٰى بِيَ الْعِشَاءَ حِيْنَ غَابَ الشَّفَقُ وَصَلّٰى بِيَ الْفَجْرَ حِيْنَ حَرُمَ الطَّعَامُ وَالشَّرَابُ عَلَى الصَّائِمِ فَلَمَّا كَانَ الْغَدُ صَلّٰى بِيَ الظُّهْرَ حِيْنَ كَانَ ظِلُّهٗ مِثْلَهٗ وَصَلّٰى بِيَ الْعَصْرَ حِيْنَ كَانَ ظِلُّ مِثْلَيْهِ وَصَلّٰى بِيَ الْمَغْرِبَ حِيْنَ اَفْطَرَ الصَّائِمُ وَصَلّٰى بِيَ الْعِشَاءَ اِلٰى ثُلُثِ اللَّيْلِ وَصَلّٰى بِيَ الْفَجْرَ فَاَسْفَرَ ثُمَّ الْتَفَتَ اِلَيَّ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ ﷺ هٰذَا وَقْتُ الْاَنْبِيَاءِ مِنْ قَبْلِكَ وَالْوَقْتُ مَا بَيْنَ هٰذَيْنِ الْوَقْتَيْنِ (ابوداؤد ص۵۶ ج۱، ترمذی ص۳۸)

**ترجمه**: حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه رسو ل الله ﷺ فرمائی چه جبرائیل علیه السلام ماته دبیت الله

سره خواکښې دوه ځله امامت (مونځ) راکړو لکه چه دماسپښین مونځ مې په ړومبی ځل په هغه وخت ، کړو چه کله دنمر زوال وشواودنمر سیوری دیوې تسمې برابر شول ، اودمازدیګر مونځ هغه وخت وو چه کله دنمر سیوری دیو مثل برابر شول، اودماښام مونځ هغه وخت وو چه کله روژه دار روژه ماتې کوی، اودماسخوتن مونځ یې راته هغه وخت وکړوچه کله شفق غائب شو ،اودسحر مونځ چه کله په روژه دارخوړل ،څښکل حرام شی،راته یې وکړو۔لیکن چه کله دویمه ورځ شوه نو دماسپښین مونځ یې راته هغه وخت وکړو چه کله سیوری دهر څیز دهغې په مثل شو،او د مازدیګر مونځ چه کله دهر څیز سیوری دوچند شو ، اودماښام مونځ چه کوم وخت روژه دار روژه ماتې کوی، او دماسخوتن چه څه وخت دشپې دریمه حصه تیره شوه دهغې نه پس،اودسحر چه کله ښه رڼا ولګیده، بیا جبرئیل ماته متوجه شو او وې فرمایل چه اې محمد ﷺ ! داوخت د انبیاء علیهم السلام دې ،او (ستاسو او ستاسو دامتیانو دپاره) دمونځونو وختونه ددې دواړو (اول او اخر) وختونو په مینځ کښې دی.

عَبدِاللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ وَقتُ الظُّهرِ اِذَا زَالَتِ الشَّمسُ وَكَانَ ظِلُّ الرَّجُلِ كَطُولِهِ مَالَمْ يَحضُرِ العَصرُ وَوَقتُ العَصرِ مَالَم تَصفَرَّ الشَّمسُ وَوَقتُ المَغرِبِ مَالَم يَغِبِ الشَّفَقُ وَوَقتُ صَلوٰةِ العِشَاءِ اِلٰى نِصفِ اللَّيلِ الاَوسَطِ وَوَقتُ صَلوٰةِ الصُّبحِ مِن طُلُوعِ الفَجرِ مَالَم تَطلُعِ الشَّمسُ فَاِذَا طَلَعَتِ الشَّمسُ فَاَمسِكْ عَنِ الصَّلوٰةِ فَاِنَّهَا تَطلُعُ بَينَ قَرنَيِ الشَّيطٰنِ (مسلم ص۲۲۳ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمر ؓ فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل : دماسپښین وخت هغه وخت دې چه څه وخت دنمر زوال وشی او دسړی سیورې ددهٔ په مثل شی،ترڅوچه دمازدیګر وخت نه وی راغلې او د مازدیګر (مستحب) وخت هغه وخته پورې دې ترڅو چه نمر زیړ شوې نه وی، او د ماښام وخت چه ترڅو شفق نه وی غائب شوې، او دماسخوتن وخت دنیمې شپې پورې دې او دسحر وخت دسبا د راختلو نه ترڅوچه نمر نه وی راختلې، اوکله چه نمر را وخیژی، نو مونځ بند کړه، بیشکه نمر دشیطان دښکروپه مینځ کښې راخیژی .

**مسئله** :- دمونځ د اداء دپاره لازمی شرط دې ،چه دمونځ کوم وخت شریعت مقرر کړې دې هغه وخت کښې دې ادا کړې شی، د وخت نه وړاندې چه کوم مونځ وشی هغه قطعا نه کیږی دوخت نه پس قضا خو کیږی خو اداء نه کیږی .

(اِنَّ الصَّلوٰةَ كَانَت عَلَى المُؤمِنِينَ كِتَابًا مَوقُوتًا) (النساء آیت ۱۰۳).

**ترجمه** : بیشکه مونځ په مسلمانانو باندې په متعین وقت کښې فرض دې

**د سحر د مانځه وقت** :- د د سحر وخت د صبح صادق نه د نمر راختلو پورې دې . (هدایه ص۳۹

،ج۱،شرح نقایه ص۵۰،ج۱، کبیری،ص۲۲۶،)

عن ابی هریرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ ان للصلوة اولا وآخرا حین یطلع الفجر وان آخر وقتها حین تطلع الشمس،(ترمذی ص۳۹،مسند احمد ص ۲۳۲ ج۲،)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی: بیشکه د مونځ د وختونو دپاره اول او آخر دې او بشکه د سحر د مونځ اول وخت هغه وخت دې چه کله صبا راوخیژی، او بیشکه د دې آخر وخت هغه دې چه کله نمر راوخیژی.

عن جابر ابن عبدالله قال قال رسول الله ﷺ الفجر فجران فاما الفجر الذی کذنب السرحان فلا یحل الصلوة ولا یحرم الطعام واما الذی یذهب مستطیلا فی الافق فانه یحل الصلوة ویحرم الطعام (مستدرک حاکم،ص ۱۹۱،ج۱،)

**ترجمه**: حضرت جابر ﷺ نه روایت دې، چه فجر په دوه قسمه وی، یو فجر هغه دې چه د شرمخ د لکئ په شان پورته اړخ ته ولاړ په نظر راځی، نو دا فجر نه مونځ جائز ګرځوی او نه خوراك حرام ګرزوی (په دې وخت کښې دصبا مونځ کول جائز نه دی، او په روژه دار باندې خوراك حرام نه دې) دویم فجر (صبح صادق) هغه وی، چه د اسمان په، غاړه باندې خور شی نو په دې وخت کښې مونځ کول جائز وی، او خوراك کول حرام وی.

**مسئله**:- د صبا مونځ په غلس (ابتدائی وخت او تیاره کښې) جائز دې، البته دامام ابو حنیفه په نزد باندې زیات فضیلت په اسفار (رڼائی) کښې دې. (هدایه ص۵۰،ج۱،شرح نقایه ص۵۳،ج۱،)

عن رافع بن خدیج قال قال رسول الله ﷺ اسفروا بالفجر فانه اعظم للاجر. (ترمذی ص۳۹،ابو داود ص۶۱ ج۱، قال ابو عیسی حدیث رافع بن خدیج حسن صحیح،)

**ترجمه**: حضرت رافع بن خدیج نه روایت دې، چه رسول الله ﷺ فرمائی: د صبا مونځ ښه په رڼائی کښې کوئ، پدې کښې زیات اجر او ثواب دې.

د امام طحاوی مذهب دادې چه د سحر مونځ په غلس (یعنی تیاره) کښې شروع کوئ او په اسفار (یعنې رڼا) کښې یې ختموئ، (طحاوی ص ۱۲۳، ج ۱،)

او په بعضې ځایونو کښې دا معمول هم دې لیکن د قراءت دا اوږدوالې بعضې کمزوری او معذوره خلق نشی برداشت کولې.

**مسئله**:- د سحر مونځ په رڼا کښې په داسې وخت کول پکار دی، چه قراءت مسنونه په ترتیل سره وویلې شی او که په مانځه کښې څه غلطی وشی، نو دوباره اعاده یې په طهارت سره او قراءت مسنونه سره وشی. (شرح وقایه ص۱۳۰،ج۱،شرح نقایه ص۵۳،ج۱،)

**مسئله** :- که د سحر مانځه ته تول لمونځ کوونکی په تیاره کښې راتلل او یو ځای کید ل نو بیا په تیاره کښې افضل دې لکه څنګه چه د حضور ﷺ عمل په ماسخوتن کښې ثابت دې . (بخاری ص ۸۰، ج ۱، مسلم ص ۲۳۰، ج ۱)

## د ماسپښین د مانځه وقت :-

د ماسپښین د مانځه وخت د زوال د نمر نه تر دوه مثله پورې دې ، او د امام ابو حنیفه او د صاحبینو په نزد تر یو مثل پورې دې . (هدایه ص ۶۹، ج ۱، شرح نقایه ص ۵۱، ج ۱، کبیری ص ۲۲۶، ج ۱)

**عن ابی هریرة قال قال رسول الله ﷺ ان اول وقت الظهر حین تزول الشمس وآخر وقتها حین یدخل وقت العصر،** (ترمذی ص ۱۶۵، مسند احمد ۲۳۲، ج ۲)

**ترجمه** : حضرت ابو هریره ﷺ روایت کړې دې چه حضور ﷺ اوفرمائل : د ماسپښین د مانځه رومبې وخت هغه وخت شروع کیږی چه کله د نمر زوال وشی او آخری وخت یې هغه دې ، چه کله د مازدیګر د مانځه وخت داخلیږی .

**مسئله** :- دماسپښین مونځ په یخنئ کښې د وخته او په ګرمئ کښې په تاخیر سره کول پکار دی، (هدایه ص ۸۱، ج ۱، شرح نقایه ص ۵۲، ج ۱)

**عن ابی سعید قال قال رسول الله ﷺ ابردوا بالظهر فان شدة الحر من فیح جهنم** (بخاری ص ۷۷، ج ۱، مسلم ۲۲۴، ج ۱)

ترجمه : حضرت ابو سعید ﷺ نه روایت دې چه حضور ﷺ وفرمایل د ګرمی په موسم کښې د ماسپښین مونځ په یخ وقت کښې ادا کوی ځکه چه د ګرمې زیادت د جهنم د ګرموالی نه دې .

**عن مالك بن انس یقول کان النبی ﷺ اذا اشتد الحر ابرد بالصلوة،** (بخاری ص ۱۲۴، ج ۱، تمهید لابن عبد البر ص ۷، ج ۵)

**ترجمه** : حضرت انس بن مالك فرمائی چه کله به یخنی وه نو حضور ﷺ به مونځ زر کولو او چه کله به ګرمی وه نو حضور ﷺ به مونځ (روستو کولو) اویخ وقت کښې به یې کولو .

**مسئله** :- د سایه اصلی نه علاوه د هر څیز سورې چه کله دوچند شی، نو د ماسپښین وخت ختم شی، (هدایه ص ۶۹، ج ۱، کبیری، ص ۲۲۶)

**قَالَ اَبُوْهُرَيْرَةَ صَلِّ الظُّهْرَ اِذَا كَانَ ظِلُّكَ مِثْلَكَ وَالْعَصْرَ اِذَا كَانَ ظِلُّكَ مِثْلَيْكَ .** (موطا امام مالك ص ۶ مصنف عبدالرزاق ص ۵۴۲ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت ابوهریره ﷺ فرمائی چه د ظهر مونځ کوه کله چه ستاسو سایه یو مثل شی، او

دعصر مونځ کوه کله چه ستاسو سایه دوچنده شي.

**د مازدیګر دمونځ وقت:-**

دمازدیګر دمونځ وخت دماسپښین دوتلو نه تر غروب آفتاب پورې دې ، لیکن دنمر دزیړیدو نه پس د مازدیګر وخت مکروه دې .(هدایه ص۳۹ ج۱شرح نقایه ص۵۱ ج۱، کبیری ص۲۲۸)

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ مَنْ اَدْرَكَ رَكْعَةً مِنَ الْعَصْرِ قَبْلَ اَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ فَقَدْ اَدْرَكَ الْعَصْرَ (مسلم ص۲۲۱ ج۱بخاری ص۷۹ ج۱،ترمذی ص۵۲،ابوداؤد ص۵۹ ج۱نسائی ص۹۰ ج۱،ابن ماجه ص۵۱)

**ترجمه** : حضرت ابوهریره ؓ روایت کوی چه رسول الله ﷺ فرمائی چا چه دنمر ډوبیدو نه وړاندې د مازدیګر یو رکعت بیا موندلو نو هغه د مازدیګر مونځ بیا موندلو.

**مسئله** :- داحناف دعلماؤ په نزد احتیاط په دې کښې دې چه د ماسپښین مونځ د یو چند سیوری دننه، او دمازدیګر مونځ د دوچندئ نه بعدوشی.(شامی ص۲۶۳ ج۱)

عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَشَدُّ تَعْجِيْلاً لِلظُّهْرِ مِنْكُمْ وَاَنْتُمْ اَشَدُّ تَعْجِيْلاً لِلْعَصْرِ مِنْهُ (ترمذی ص۱۵،مسند احمد ص۲۸۹ ج۶)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت ام سلمه ؓ فرمائی چه رسول الله ﷺ خو به د ماسپښین مونځ ستاسو (ددې وخت نه) زر کولو، اوتاسو خلق دمازدیګر مونځ دهغوی ﷺ نه زر کوئ.

رَافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يَأْمُرُهُمْ بِتَاخِيْرِ الْعَصْرِ (بیهقی ص۴۴۳ ج۱ وهامشه الجوهر النقی ص۴۴۱ ج۱)

**ترجمه** : حضرت رافع بن خدیج ؓ فرمائی چه رسول الله ﷺ به خلقو ته حکم کولوچه هغوی د مازدیګر مونځ مؤخر (وروستو) کوی.

عَنِ الْاَعْمَشِ ؓ قَالَ كَانَ اَصْحَابُ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ ؓ يُعَجِّلُوْنَ الظُّهْرَ وَيُؤَخِّرُوْنَ الْعَصْرَ (مصنف عبدالرزاق ص۵۴۰ ج۱)

**ترجمه** دحضرت عبدالله بن مسعود ؓ ملګرو اوشاګردانو به دماسپښین مونځ زر(د وخته) کولو او د مازدیګر په مونځ کښې به یې تاخیر کولو.

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ ؓ اَنَّهُ كَانَ يُؤَخِّرُ الْعَصْرَ حَتّٰى اَقُوْلَ قَدِ اصْفَرَّتِ الشَّمْسُ (مصنف ابن ابی شیبه ص۳۲۷ ج۱)

**ترجمه** : سوار بن شبیب فرمائی چه حضرت ابوهریره ؓ به دعصر مونځ دومره مؤخر کولوچه مابه دا خیال کولو چه شاید نمر زیړ شوې دې.

عَنْ عَلِيِّ بْنِ شَيْبَانَ قَالَ قَدِمْنَا عَلٰى رَسُوْلِ اللهِ ﷺ الْمَدِيْنَةَ فَكَانَ يُؤَخِّرُ الْعَصْرَ مَادَامَتِ الشَّمْسُ بَيْضَاءَ نَقِيَّةً (ابوداؤد ص۵۹ ج۱،ابن ماجه ص۴۸)

**ترجمه**: علي بن شيبان فرمائي چه مونږ به کله نبي کريم ﷺ ته حاضر شونو هغوی ﷺ به دمازديګر مونځ وروستو کولو، ترڅو چه نمر به سپين او صفاؤو «دزيړيدونه وړاندې».

**عَنْ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ كَانَ مَنْ قَبْلَكُمْ اَشَدُّ تَعْجِيْلاً لِلظُّهْرِ وَاَشَدَّ تَاخِيْراً لِلْعَصْرِ مِنْكُمْ (مصنف عبدالرزاق ص۵۴۰ ج۱)**

**ترجمه**: حضرت ابراهيم نخعي فرمائي چه ستاسو نه وړاندې خلقو به دماسپښين مونځ ستاسو په نسبت زر کولو او دمازديګر مونځ به يې ستاسو نه وروستوکولو.

**مسئله**:- مازديګر مونځ که په يو چند وکړی شي، حضرت مولاناګنګوهي ليکلي دی چه ديو چند وخت قوی دې لهذا که د يومثل نه پس مازديګر ادا شي، نو اعاده يې نشته **(فتاوی رشيديه ص۳۲)**

**د ماښام وقت**: دماښام وخت د نمر پريوتلو نه تر غروب شفق پورې دې. **(هدايه ص۴۹ ج۱، شرح نقايه ص۵۲ ج۱ کبيری ص۲۲۸)**

**عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ ؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِنَّ اَوَّلَ وَقْتِ الْمَغْرِبِ حِيْنَ تَغْرُبُ الشَّمْسُ وَاِنَّ اٰخِرَ وَقْتِهَا حِيْنَ يَغِيْبُ الشَّفَقُ، (ترمذی ص۳۹ مسند احمد ص۲۳۲ ج۲)**

**ترجمه**: حضرت ابوهريره صاحب فرمائي چه رسو ل الله ﷺ فرمائي د ماښام اول وخت هغه دې چه کله نمر پريوځي، او د دې آخر وخت هغه دي، چه کله شفق غائب شي.

**مسئله**:- امام ابو حنيفه، عمر ابن عبد العزيز. او عبد الله بن مبارك، امام اوزاعی. زفر بن هزيل، او يوروايت کښې امام مالك او ابو ثور، مبرد، فراء، صحابؤ کښې ابوبکر صديق، ام المؤمنين حضرت عايشه، حضرت ابو هريره، معاذابن جبل، حضرت ابی ابن کعب، حضرت عبد الله بن زبير، او امام مزنی، او امام باقر، ابن منذر او د ثعلب وغيره. په نزد شفق سفيدی ده، لهذا د مغرب وخت د هغوی په نزد د سرخئ نه پس د سپينوالی د غروب پورې دې **(هدايه ص ۵۰ ج۱، شرح نقايه ص۵۲ ج۱، کبيری ص۲۲۸)**

**عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ سَئَلَ رَجُلٌ رَسُوْلَ اللهِ (اِلٰى اَنْ قَالَ) ثُمَّ اَذَّنَ لِلْمَغْرِبِ حِيْنَ غَرَبَتِ الشَّمْسُ فَاَخَّرَهَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ حَتّٰى كَادَ يَغِيْبُ بَيَاضُ النَّهَارِ وَهُوَ الشَّفَقُ فِيْ مَا نَرٰى ثُمَّ اَمَرَهٗ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فَاَقَامَ الصَّلٰوةَ وَصَلّٰى، (مجمع الزوائد ص۳۰۲ ج۱، بحوالة طبرانی)**

**ترجمه**: حضرت جابر ؓ فرمائي چه يو سړی له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه د وختونو په باره کښې پوښتنه کړې وه ........ دنمر په ډوبيدو باندې آذان وشو، بيا هغوی د ماښام مونځ

دومره موخر کړو نزدې وه چه د ورځې سپینوالې غیب شوې وو، او زمونږ په خیال دا شفق دې ، بیا حضور ﷺ مونځ ورکړو.
امام شافعی په یوروایت کښې امام مالك امام احمد صاحبین (حضرت سفیان ثوری، ابن ابی لیلی، امام اسحق ابن راهویه، مکحول، طاؤس، حسن ابن حی، داود ابن علی ظاهری صحابو کښې حضرت عبد الله ابن عباس، ابن عمر، عباده، شداد ابن اوس،) په نزد شفق سرخی ده، لهذا د مغرب وخت د هغوی په نزد د شفق احمر ډوبیدلو پورې دې . **(هدایه ص۳۹ ج۱، شرح نقایه ص۷۶ ج ۱، کبیری ۲۲۸)**

**عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ ﷺ قَالَ الشَّفَقُ الْحُمْرَةُ (مصنف ابن ابی شیبه ص۳۳۳ ج۱)**
**ترجمه** : حضرا بن عمر ﷺ فرمائی چه شفق سرخئ ته وایی.
**مسئله** :- احتیاط په دې کښې دې چه دماښام مونځ د سرخئ دننه وشی، اودماسخوتن مونځ دسپینوالی نه پس وشی، (یعنی د ماښام نه پس چه کوم سپینوالې دمغرب طرفته وی دهغې دغائبیدونه بعد وشی)

**عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ ﷺ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ نَزَلَ جِبْرَئِيلُ فَأَخْبَرَنِي بِوَقْتِ الصَّلٰوةِ (الٰى أن قَالَ) وَيُصَلِّي الْعِشَاءَ حِينَ يَسْوَدُّ الْأُفُقُ (ابوداؤد ص۵۶ ج۱، ابن ابی شیبه ص۳۳۰ ج۱)**
**ترجمه** : حضرت ابو مسعود انصاری ﷺ بیان کوی چه رسول الله ﷺ فرمائی حضرت جبریل ﷺ نازل شو، اوماته یی زما دمونځونو وختونه وښودل ......... دماسخوتن مونځ یی راته هغه وخت وښودلو چه کله دآسمان لمنې تورې شوې، (یعنی شفق غائب شو).

**عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ ﷺ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ لَا تَزَالُ أُمَّتِي عَلَى الْفِطْرَةِ مَا صَلُّوا الْمَغْرِبَ قَبْلَ طُلُوعِ النَّجْمِ (مسند احمد ص۴۴۹ ج۳ و کذا ابوداؤد ص۶۰ ج۱)**
**ترجمه** : حضرت سائب بن یزید ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمایی چه زما امت به په فطرت باندې وی ترڅوچه هغوی دماښام مونځ دستوروښکاره کیدو نه وړاندې کوی.

**عَنْ عَائِشَةَ ﷺ قَالَتْ سُئِلَ رَسُولُ اللهِ ﷺ عَنْ وَقْتِ الْعِشَاءِ قَالَ إِذَا مَلَأَ اللَّيْلُ بَطْنَ كُلِّ وَادٍ (مجمع الزوائد ص۳۱۳ ج۱ بحواله طبرانی فی الاوسط)**
**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه ﷺ فرمائی چه درسول الله ﷺ نه دماسخوتن دمونځ باره کښې پوښتنه وکړې شوه، نوهغوی ﷺ وفرمایل چه کله دشپې تیارهٔ دهرې وادی ګیډه ډکه کړی نو هغه دماسخوتن وخت دې.

**كَتَبَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ أَنْ صَلُّوا صَلٰوةَ الْعِشَاءِ إِذَا ذَهَبَ بَيَاضُ الْأُفُقِ فِيمَا بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ ثُلُثِ اللَّيْلِ (مصنف**

عبدالرزاق ص۵۵۶ ج۱)

**مسئله** :- دماښام مونځ د اذان سره پیوست کول مستحب دي لکه څنګه چه دحضورﷺ نه همداسې ثابت دی.

**دماسخوتن وقت** :- دماسخوتن وخت دشفق دډوبیدو نه تر یو ثلث پورې مستحب او مختار وخت دې ، او د نیمې شپې پورې مباح وخت دې بغیر دکراهت نه. او ددې نه بعد دسبا ختلو پورې دکراهیت سره مونځ ادا کیږی . (هدایه ص۵۰، ۵۱ ج۱، شرح نقایه ص۵۳ ج۱، کبیری ص۲۲۹ تمهید ص۹۲ ج۸)

عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَاِنَّ اَوَّلَ وَقْتِ الْعِشَاءِ حِيْنَ يَغِيْبُ الْاُفُقُ وَاِنَّ اٰخِرَ وَقْتِهَا حِيْنَ يَنْتَصِفُ اللَّيْلُ ، (ترمذی ص۳۰ ، مسند احمد ص۲۳۲ ج۱)

**توجمه** : حضرت ابوهریره ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمایلی بیشکه دماسخوتن ابتدائی وخت هغه وخت دې چه کله شفق غائب شی، او ددې آخری وخت هغه دې چه کله شپه نیمه شی، (مباح وخت دې)

عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدِ الْجُهَنِيِّ ﷺ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ لَوْلَا اَنْ اَشُقَّ عَلٰى اُمَّتِيْ لَاَمَرْتُهُمْ بِالسِّوَاكِ عِنْدَ كُلِّ صَلٰوةٍ وَلَاَخَّرْتُ صَلٰوةَ الْعِشَاءِ اِلٰى ثُلُثِ اللَّيْلِ (ترمذی ص۳۰ ، مصنف عبدالرزاق ص۵۵۵ ج۱)

**ترجمه** : حضرت زید بن خالد جهنی ﷺ فرمائی چه ما درسول الله ﷺ نه واؤریدل هغوی ﷺ وفرمایل : که ما په خپل امت ګرانی نه محسوسولې، نو ما به دهر مونځ دپاره دمسواك حکم ورکړې وو، او ما به دماسخوتن مونځ دشپې دریمې حصې ته وروستو کړې وو.

عَنْ اَنَسٍ ﷺ قَالَ اَخَّرَ النَّبِيُّ ﷺ صَلٰوةَ الْعِشَاءِ اِلٰى نِصْفِ اللَّيْلِ ثُمَّ صَلّٰى (بخاری ص۸۱ ج۱، مسلم ص۲۲۹ ج۱)

**ترجمه** : حضرت انس ﷺ فرمائی چه نبی کریم ﷺ دماسخوتن مونځ دنیمې شپې پورې مؤخر کړو بیا یی مونځ وکړو.

عَنْ عَائِشَةَ ﷺ قَالَ اِعْتَمَّ النَّبِيُّ ﷺ ذَاتَ لَيْلَةٍ حَتّٰى ذَهَبَ عَامَّةُ اللَّيْلِ وَحَتّٰى نَامَ اَهْلُ الْمَسْجِدِ ثُمَّ خَرَجَ فَصَلّٰى (مسلم ص۲۲۹ ج۱)

**توجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه ﷺ فرمائی چه یوشپه نبی کریم ﷺ دماسخوتن مونځ دومره وروستو کړوچه دشپې اکثره حصه تیره شوه، اواهل مسجد ویده شول، بیا هغوی ﷺ بهر تشریف راوړو او مونځ یی ورکړو.

كَتَبَ عُمَرُ ﷺ اِلٰى اَبِيْ مُوْسٰى ﷺ وَصَلِّ الْعِشَاءَ اَيَّ اللَّيْلِ شِئْتَ وَلَا تَغْفُلْهَا (طحاوی ص۱۱۰ ج۱)

**توجمه** : حضرت عمر ﷺ حضرت ابوموسی اشعری ﷺ ته ولیکل چه دماسخوتن مونځ دشپې هره

حصه کښې چه وی کوه اوودې نه مه غافله کیږه.

عَنْ عُبَيْدِ بْنِ جُرَيْجٍ أَنَّهُ قَالَ لِأَبِي هُرَيْرَةَ مَا إِفْرَاطُ صَلٰوةِ الْعِشَاءِ قَالَ طُلُوعُ الْفَجْرِ (طحاوی ص۱۱۰)

**ترجمه**: حضرت ابوهريرهؓ نه پوښتنه وکړې شوه چه دماسخوتن مونځ کښې کوتاهی (قضاء کول) څه وخت وی؟ نو هغویؓ وفرمایل چه کله سبا داخل شی.

**مسئله**:- دماسخوتن مونځ نه وړاندې ویده کیدل او دماسخوتن مونځ نه پس غیر ضروری خبرې کول مکروه دی. (شرح نقایه ص۵۵ ج۱)

عَنْ أَبِي بَرْزَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ كَانَ يَكْرَهُ النَّوْمَ قَبْلَ الْعِشَاءِ وَالْحَدِيثَ بَعْدَهَا (بخاری ص۸۰ ج۱، مسلم ص۲۳۰ ج۱، ترمذی ص۵۱)

**ترجمه**: حضرت ابو برزه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ دماسخوتن مونځ نه وړاندې خوب ناخوښه ګڼلو، او دماسخوتن دمونځ نه پس به یې خبرې ناخوښه ګڼلې.

**مسئله**:- دماسخوتن دمونځ نه پس تلاوت قرآن، ذکر الهی. ددینی کتابونو مطالعه او تکرار او دخپل کورو الا سره یا دمیلمنو سره خبرې کول یا نور ضروری امورو کښې خبرې کول مکروهه ندی

عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ ؓ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ يَسْمُرُ مَعَ أَبِي بَكْرٍ فِي الْأَمْرِ مِنْ أَمْرِ الْمُسْلِمِينَ وَأَنَا مَعَهُمَا (ترمذی ص۵۱)

**ترجمه**: حضرت عمرؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ دابوبکرؓ سره دمسلمانانو دبعضې امورو په باره کښې خبرې وکړې اوزه هم ددوئ سره ووم.

عَنْ أَوْسِ بْنِ حُذَيْفَةَ ؓ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ يَأْتِينَا كُلَّ لَيْلَةٍ بَعْدَ الْعِشَاءِ فَيُحَدِّثُنَا (إِلَى أَنْ قَالَ) وَأَكْثَرُ مَا يُحَدِّثُنَا مَا لَقِيَ مِنْ قَوْمِهِ مِنْ قُرَيْشٍ. (ابن ماجه ص۹۵، مسند احمد ص۳۴۳ ج۴)

**ترجمه** حضرت اوس بن حذیفهؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به زمونږ خواته هره شپه دماسخوتن دمونځ نه پس تشریف راوړو. او بیا به یې زمونږ سره خبرې کولې، اوزیاتره چه کومې خبرې به یې زمونږ سره کولې هغه به دهغه واقعاتو سره متعلق وې چه هغه به هغوی ﷺ ته دهغوی دقوم قریشونه رسیدلې وې، (لکه مصائب او تکلیفات).

## دوترو دمونځ وقت:-

پینځه مونځونه فرض دی، ددې نه علاوه د وترو مونځ واجب دې لیکن دهغې وخت د ماسخوتن تابع دې یعنی دعشاء نه واخله د سبا صادق پورې دې. (هدایه ص۷۰ ج۱، شرح نقایه ص۵۳ ج۱، کبیری ص۲۲۹)

عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنِ رَافِعٍ التَّنُوخِيِّ قَاضِي أَفْرِيقَةَ أَنَّ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ ؓ قَدِمَ الشَّامَ وَأَهْلُ الشَّامِ لَا يُوتِرُونَ فَقَالَ

لِمُعَاوِيَةَ مَالِي أَرَى أَهْلَ الشَّامِ لَا يُوتِرُونَ فَقَالَ مُعَاوِيَةُ وَوَاجِبٌ ذٰلِكَ عَلَيْهِم قَالَ نَعَم سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ يَقُولُ زَادَنِي رَبِّي ﷻ صَلَاةً وَهِيَ الْوِتْرُ وَقْتُهَا مَا بَيْنَ الْعِشَاءِ إِلَى طُلُوعِ الْفَجْرِ (مسند احمد ص۲۴۲ ج۵)

**ترجمه** : حضرت معاذ بن جبل شام ته راغې نو دشام خلقو وتر مونځ نه کولو ،نوهغوی حضرت معاویه ﷛ ته عرض وکړوچه دا څه خبره ده چه شام والا مونږ وینو چه وتر نه کوی؟ هغوی دویل : آیا دا په دوئ واجب دی؟ نوحضرت معاذ﷛وفرمایل آو! دا واجب دی، ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی هغوی ﷺ فرمایلی وو چه زما رب یو مونځ زیات کړې دې اوهغه وتر دی او د هغې وخت دماسخوتن دمونځ نه تر سبا ختلو پورې دې.

عَنْ عَائِشَةَ ﷞ قَالَتْ مِن كُلِّ اللَّيْلَةِ قَد أَوتَرَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مِن أَوَّلِ اللَّيلِ وَأَوسَطِهِ وَآخِرِهِ فَانْتَهٰى إِلَى السَّحَرِ (مسلم ص۲۵۵ ج۱،بخاری ص۱۳۶ ج۱)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه ﷞ فرمائی چه دشپې په ټولو حصو کښې رسول الله ﷺ وتر ادا کړی دی، په اوله شپه کښې ،په مینځ کښې، اوپه آخره شپه کښې هغوی ﷺ وتر پیشمنی وخت ته رسولې دی.

اول وخت نه مراد شروع او د آخر نه منځنې وخت دې نه بالکل ابتدائی وخت .

بعض علماء فرمائی چه داول وخت نه مراد نصف اول دې نصف اول کښې چه کوم مونځ ادا کولې شی هغه به اول وخت کښې ادا کیږی.لامحاله اول وخت نه اضافی وخت مراد دې اوکه نه نو نن ورځې پورې چاهم بالکل دوخت دشروع کیدو په اوله لمحه کښې مونځ نه دې کړې.

**مسئله** :- کومو احادیثو کښې چه دآخر وخت دمونځ کولو مذمت بیان شوې دې ،یا چاته منافق ویلې شوې دې دهغې نه مراد مکروهه وختونه دی.

**مسئله** :- سردار یا با اثره سړی دپاره جماعت دخپل مقرره وخت نه وروسته کول ګناه ده مګر دامام دپاره څه قدرې وروستو والې روا دې.

**مسئله** :- د ساعت مطابق دوخت پابندی مستحسن ده، اودسنت مطابق ده چه په دې کښې دمونځ ګزارو دپاره سهولت وی .

**مسئله** :- دقطب شمالی او قطب جنوبی ملکونو کښې دمونځونو دوختونو پابندی له اندازې لګولو سره کول پکار دی، لکه څنګه چه فتنه دجال والا حدیث څخه مستفاد دی، ورځ به د یو کال برابره وی، صحابه کرامو ﷡ عرض وکړوچه یارسول الله ﷺ په هغه وخت کښې به دمونځ د ادا کولو څه طریقه وی ؟ هغوی ﷺ وفرمایل : اندازه لګوئ او مونځ کوئ . او دا حکم دهغه علاقو دې چه هلته شپږ میاشتې یا کم اوزیاتې مودې پورې شپه یا ورځ راځی.

**بلغاریه** :- یو ښار د سختې یخنئ والا دې ، هلته نمر په زمکه باندې درویشت ساعته

حصاربږي اوهلته دماسخوتن او د وترو وخت نه راځي. فقهاء کرامو نه سوال کولې شي، چه هلته به څه کولې شي؟

ابن همام اوبعضې نورفقهاء کرام فرمائي چه اندازې لګولو سره به دا مونځونه کول لازم وي، لیکن اکثر فقهاء کرام ددې خلاف فتوی ورکوی، ځکه چه دفرضیت دمونځ دپاره سبب وخت دې . او وخت نه موندونکې سړې مکلف نه وي.

بعض کتابونو کښې یې لیکلې دی چه دبلغاریا مسلمانانو یو استفتاء مرتب کړه اویو فقیه (برهان الائمة) ته یې ولیږله، هغوی جواب ورکړوچه تاسو باندې ماسخوتن او وتر فرض نه دی، همدغه شان ظهیر مرغینانی رحمة الله علیه او خوارزمی رحمة الله علیه هم فتوی ورکړې ده. شمس الائمه حلوانی رحمة الله علیه ددې خلاف فتوی ورکړې ده، اوځوك یې ولیکلو چه دخوارزمی رحمة الله علیه نه د خلکو په وړاندې سوال وکړی چه دهغه سړی په باره کښې تاسو څه وایئ چه پینځو مونځونو کښې له یوه څخه انکار کوی. خوارزمی رحمة الله علیه دسوال په منشاء او مطلب باندې پوهه شو ،او وې فرمایل چه ته ددې سړی په باره کښې څه وایې چه دهغه دواړه لاسونه دځنګلو سره یا دواړه پښې دګیټو سره کټ شوې وی. دهغه په اودس کښې څو فرض دی.

هغه جواب وکړوچه دڅلورم فرض دمحل نه کیدو دوجې نه دده په هکله درې فرض دی.

حلوانی رحمة الله علیه ددې جواب د رارسیدو نه بعد دخپلې فتوې نه رجوع وکړه. **والله اعلم بالصواب**

په دې مسئله کښې احتیاط د ابن همام رحمة الله علیه په فتوی کښې دې ځکه چه دمونځ دوخت دپاره علت نشته صرف سبب او علامت دې اوعلت خو حکم خداوندی دې.

**د بلغاریا د مسئلې تحقیق** : دمسلم او ترمذی دا صحیح روایت دې :

قَالَ قُلْنَا يَارَسُولَ اللهِ ﷺ وَمَا لُبْثُهُ فِي الْأَرْضِ قَالَ أَرْبَعِينَ يَوْمًا يَوْمٌ كَسَنَةٍ وَيَوْمٌ كَشَهْرٍ وَيَوْمٌ كَجُمُعَةٍ وَسَائِرُ أَيَّامِهِ كَأَيَّامِكُمْ قَالَ قُلْنَا يَارَسُولَ اللهِ ﷺ أَرَأَيْتَ الْيَوْمَ الَّذِي كَالسَّنَةِ أَتَكْفِينَا فِيهِ صَلَاةُ يَوْمٍ قَالَ لَا وَلَكِنْ اقْدِرُوا لَهُ قَدْرَهُ ،(مسلم ص۴۰۱ ج۲، ترمذی ص۳۲۵)

**ترجمه** : راوی دحدیث بیان کوی چه مونږ درسول الله ﷺ په خدمت کښې عرض وکړوچه یا رسول الله ! ددې دجال به په زمکه کښې څومره موده اوسیدل وی، هغوی ﷺ وفرمایل څلویښت ورځې، او یوه ورځ به یې له کال سره برابره وی، دویمه ورځ به یې دمیاشتې سره برابره وی ،او دریمه ورځ به یې له هفتې سره برابره وی . او باقی ورځې به یې ستاسو د ورځو پشان وی، صحابه کرامو عرض وکړو چه اې دالله رسوله ! هغه ورځ چه دکال سره برابره وی آیا په هغې کښې به د یوې ورځې مونځ کافی کیږی، هغوی وفرمایل : نه ! بلکه په حساب لګولو سره به دټول کال مونځونه کوئ.

ددې حدیث مطلب لکه څنګه چه په (کوکب الدری تقریر ترمذی کښې) حضرت مولانا رشید احمد ګنګوهی بیان کړې دې ،چه دمونځونو اندازې لګولو سره حساب لګوئ، او د پوره کال مونځونه کول به ضرور وی ځکه چه نمر به دومره وخته پورې نه پرېوځی، دا واقعه به داسې نه وی بلکه د دجال د سحر او نظر بندئ دوجې نه به داسې معلومیږی، چه ورځ به دومره اوږده شی.او که نه نو نمر هم هغسې دخپل عادت مطابق پریوځی او راخیژی به، لیکن زمونږ سترګو ته به داسې نه ظاهریږی، ځکه چه دجال به زمونږ په وړاندې دخپل سحر کرشمې سره داسې نمر ودرولې وی چه پریوتل به په کښې نه وی

له همدې کبله مونځ کول به د هر چا په ذمه باندې لازم وی اودمونځونو نسبت اودهغې حقیقی وختونو ته به کتل وی.او هغه مونځونه چه اندازې سره به کولې شی هغه به قضاء نه وی بلکه وقتی به متصور کولې شی، او په دې کښې څه اشکال نشته ، د دې اږدوالې به محض د دجا ل د سحر بازئې له کبله وی، حقیقت کښې به اوږدوالې نه وی، نو په داسې صورت کښې د وجوب الصلوة د اصلی اوقاتو طرف ته منسوب کولو کښې څه اشکال نشته، لهذا د دې حدیث نه د بلغاریا دخلقو دپاره د ماسخوتن دمونځ په وجوب باندې دلیل نیول درست نه د ی ځکه چه هلته د شفق د پریوتلو نه وړاندې صبا راخیژی او فی الواقع هغه خلقو ته د ماسخوتن د مونځ وخت نه مسیر کیږی.

دا مسئله د متاخرینو فقهاء کرامو په نزد اختلافی ده. صاحب د رد المحتار امام ابن همام ، حلبی ، ابن نجیم ، او نورو علماء کرامو په دې باندې بحث کړې دې او کوم سړې چه د دې دواړو (د عشاء او وترو ) وخت ونه مومی نو په هغه باندې واجب نه دې، (کنز الدقائق ، په دې شرح کښې ابن نجیم صاحب په بحر الرائق کښې لیکلی دی) :

یعنې ماسخوتن او وتر دواړه مونځونه په داسې سړی باندې واجب نه دی چه هغه په داسې مقام کښې وی چه هلته د شفق د پریوتونه مخکښې صبا راخیژی ، لکه څنګه چه په بلغار کښې دی کله چه د کال وړې شپې وی. لکه چه معجم البلدان والا نقل کړی دی، په داسې سړی باندې ماسخوتن او وتر له دې کبله واجب نه وی چه د ده په حق کښې سبب موجود نه دې ، یعنې وخت چه د مونځ سبب دې هغه موجود ندې، (کتابا موقوتا ) فقیه بقالی په دې فتوی ورکړې ده. او د دې مثال داسې دې لکه چه هغه سړې چه د هغه دواړه لاسونه په څنګلو کښې پرې شوې وی، یا دواړه پښې یې په ګیټو کښې پرې شوې وی ، نو د ده په حق کښې لاس مینځل یا پښې مینځل په اودس کښې فرض نه دی ځکه چه محل د فرض موجو د نه دې.

لیکن بعضې نور فقها ء کرام د دې په خلاف فتوی ورکوی اوهغه دا چه مونځونه واجبیږی او دا محقق ابن همام په خپل کتا ب فتح القدیر کښې اختیا رکړې دې، هغه ویلې دی چه محل د

فرض نه موجودیدل د دې په منځ او د یو مقرر کړې شوی سبب په منځ کښې فرق دې، یو داسې سبب چه په وجوب حقیقی باندې صرف علامه جوړشوې دې دا حقیقی علت ندې بلکه په دې وجوب باندې کوم چه نفس الامر واقعه کښې ثابت دې د دې علامت دې ، په دې دواړو کښې واضحه فرق دې ، ځکه چه د څه ځیز دپاره علامت او پیژندونکې نښې ګڼ شمیرکیدې شی، پس د وخت انتفاء او عدم وجود صرف د یو معرف انتفاء ده، او د څه ځیز د دلیل د انتفاء نه د هغه ځیز انتفاء نه لازمیږی ، دا هم ممکنه ده چه د هغې دپاره څه بل دلیل وی، او دلته هم د وجوب الصلوة دلیل هغه دې چه د هغې ذکر د معراج د واقعې په اخبارو کښې په کثرت او تواتر سره موجود دې او په دې اخبارو کښې د پنځه وقته مونځونو د فرضیت ذکر دې . ابن نجیم ویلې دې : صحیح خبره داده چه د وخت په نشتوالی باندې کوم مونځونه ادا کړې شی، په هغې کښې به د قضا نیت نه کوی او چا چه د وجوب د عشاء فتوی ورکړې ده په دې قول باندې وتر هم واجبیږی ، (بحر الرائق ص ۱۴۷، ج۱) .

او ابن همام لیکلی دی چه کوم ځائ کښې دسبا راختل دشفق دپریوتلو نه وړاندې وی هلته دماسخوتن مونځ او وتر واجب نه دی ځکه چه سبب دوجوب نشته .

صاحب دکنزهم دا اختیار کړې ده اودا دعدم وجوب فتوی بقالی ورکړې ده، اودا یی په مقطوع الیدین باندې قیاس کړې ده. فقیه حلوانی مخکښې خو ددې نه انکار کولو بیا یی دبقالی سره اتفاق وکړو لیکن امام برهانی الکبیر یی دوجوب فتوی ورکړې ده .

امام ابن همام لیکلی دی چه : هیڅ دغور اوفکر خاوند کله هم شک نشی کولې چه دمحل دفرض دنیشتوالی اودسبب په نیشتوالی کښې چه محض علامت دوجوب ګرځولې شوې دې ، او هغه وجوب خو خفی دې اونفس الامرکښې ثابت دې دمعرّفاتو د متعدد کیدلوهم جواز دې دوخت انتفاء صرف د یو معرف انتفاء ده، دڅه ځیز ددلیل انتفاء دهغه ځیز انتفاء لره مستلزم نه وی ځکه چه دلیل خو بل هم کیدې شی، دمعراج واقعې نه یقینی طور باندې د پنځه وقته مونځونو فرضیت ثابت دې اودا دټولو آفاقو او اطرافو دپاره دې دڅه ملك یا دخطې تخصیص په دې کښې نشته .

اود دجال په باره کښې چه کوم حدیث منقول دې (چه هغه مسلم او ترمذی نقل کړې دې ) چه رسول الله ﷺ فرمائی چه اندازه کوه او مونځ کوه، یقینا درې سوو نه زیات دعصر مونځونه یو مثل اودوه مثل سیورو نه مخکې واجب ګرځولې شوی دی، په دې قیاس وکړه، ددې نه مونږ پوهه حاصلولې شو چه واجب په نفس الامر کښې پینځه مونځونه دی لیکن ددې تقسیم به په هغه وختونو باندې وی چه کله هغه وختونه موجود وی اوچه کله هغه وختونه میسر نه شی نوهغه مونځونه نه ساقطیږی. همدغه رنګه دنبی کریم ﷺ ارشاد دې :

(خَمسُ صَلَوَاتٍ کتبهُنّ اللهُ تعالیٰ عَلَی العِبَادِ)

**ترجمه**: چه الله ﷻ په ورځ اوشپه کښې پينځه مونځونه فرض کړی دی.

بیا ابن همام بیان کوی چه: د اداء دوقت په نیشتوالی سره دقضاء نیت نه کیږی، چا چه فرض واجب ګرځولی دی هغوی دوجوب دوترو هم قول کړې دې. (فتح القدیر ص۱۵۶ ج۱)

دحضرت ګنګوهی تشریح اګر چه ډیره ښه ده چه دهغې سره دحدیث مطلب په آسانئ سره په پوهه کښې راځی لیکن (اَلعِبرَةُ لِعُمُومِ الاَلفَاظِ) قاعدې ته کتل او ددې تخصیص صرف د دجال دزمانې سره مناسب نه معلومیږی، له همدې کبله زمونږ په ناقص خیال کښې دعلامه ابن همام تحقیق راجح معلومیږی، همدغه رنګه ابن نجیم او نورو فقهاؤ هم دا اختیار کړې دې چه مونځ او روژه په ارض تسعین کښې اودغه رنګه نورو مقاماتو کښې که هغه قطب شمالی وی یا قطب جنوبی یا نور کُرَات او د سیّاراتو سطحه وی، ټولوځایونو کښې به حساب اواندازې سره مونځ کول وی، او روژه نیول به هم همداسې وی، دحدیث دالفاظو عمومیت د ارض تسعین وغیره دمکان په حق کښې دنمر د راختلو او ډوبیدلو حکم ثابتوی لکه څنګه یې چه په زمانه ددجال کښې ثابتوی.

همدغه رنګه په فضائی سفر کښې هم دمونځ مسئله پیښیږی، بالفرض که دولس بجې دورځې په وخت کښې په هوائی جهاز کښې دماښام طرفته نهایت په تیزرفتاره طیاره کښې پرواز وی مسلسل پنځلس ساعته نو نمرخوبه پریوتې نه وی، نو د ماسپښین ،مازدیګر اوماښام دمونځونوبه څه حکم وي، سیوا ددې نه چه له درې ساعته تیریدو نه پس د مازدیګر او ماښام مونځ ادا شی، بغیر ددې نه بل صورت په پوهه کښې نه راځی، اوترک صلوة هم ممکن نه دې ،څکه چه دمونځ خطرناك نه خطرناك وخت کښې هم د کولو حکم دې .(فَرِجَالاً اَوْرُکبَاناً)

ارض تسعین کښې او دغه رنګه سپوږمئ وغیره سیاراتو باندې هم په نن زمانه کښې ریډیو او نور ذرائع دخبر رسانئ ښه په اسانئ سره دخبر ورکولو مسئله ختمولې شی، او دصوم اوصلوة تعین ښه په اسانئ سره کولې شی.

په سپوږمئ ،په مشتری، په زهره، اودنوروسیاراتووغیره په سطح باندې درسانئ صورت کښې آخر دمونځ څه حکم دې ،څکه چه فوق القمر ته رسیدل خو یقینی طورباندې له مشاهدې نه ثابته ده، دې وجې نه دحدیث الفاظ په عمومیت باندې ساتلو سره هلته هم اندازه لګول او مونځ کول دی، حالانکه هلته خودا معهوده او معروفه شپه او ورځ بالکل نشته ، لیکن عقل سلیم باور نشی کولې چه روژه اومونځ داسې اهم عبادات دې هلته پریښودلې شی، د (اقدروا له قدره) په مخکښې اینبودلو سره حساب لګول دهر ربع نهار نه پس چه څنګه دلته متمدنه دنیا کښې دمونځ دوختونو دپاره وقفه وګرزولې شی،او د هر مونځ نه بل مونځ پورې هم په دغه وقفه باندې ادا کول

وی، اوروژه نیول به هم هلته وی.
دقطب شمالي او قطب جنوبی علاقو کښې دا صورت هم کیدې شی،چه ددوی پیوست متمدن خطونو کښې دورځې اوشپې څومره وقفه وی هلته دې دغه معیار مقررشی،اوددې مطابق مونځ او روژه دې ادا شی.
روژه کښې اشکال دمونځ په نسبت زیات دې ،مونځ کښې وخت صرف سبب دې اوعلت نه دې اودورځې میقات د روژې دپاره ظرف دې چیرته چه دمظروف تصور بدون له ظرف نه زیات موجب داشکال کیدې شی مګردروژې اصلی مقصد بهرحال په دې ظرفیت باندې موقوف نه وی. روژه خو قهربهیمیت او کسر شهوت اوکسرطبیعت دې ،اوهغه ددې ظرف نه بغیرهم حاصلیدې شی
یخو ملکونو کښې د (مئ ،جون ،جولائی اچپت) په میاشتو کښې ورځ چه څومره اوږده وی دهغې وقفه هم معیار جوړولې شی، زمونږ په اکابرو کښې حضرت مولانا شاه رفیع الدین صاحب محدث دهلوی په دې مسئله ډیر ښه مفید کلام کړې دې ،اوپه وجوب صلوة او صوم باندې یې دوه قسم دلائل مهیا کړې دی، یو قسم هغه دې چه د ریاضی په اصولو مبنی دی ،اودویم قسم هغه دی کوم چه شاه رفیع الدین دقرآنی آیاتونو نه استنباط کړی دی ،او ولی اللهی طریقه باندې یې استدلال کړې دې ،استدلال سره زړهٔ کافی مطمئن کیږی، دشاه رفیع الدین درسالې ترجمه بعینه د لوستونکو په خدمت کښې پیش کولې شی.

## دمونځ او روژې حکم په ارض تسعین ((اومه زمکه)) کښې

حضرت مولاناشاه رفیع الدین محدث دهلوی په خپلو بعض افاداتو کښې داسې فرمائیلی دی:
. چه ما په قدیم اهل علم کښې څوك نه دې موندلی چه په دې مسئله کښې یې کلام کړې وی، اونه فقهاءکرامو چیرته فقهی کتاب کښې ددې ذکر کړې دې ،او د دې وجه دا کیدې شی،چه شاید وړاندینو علماؤ دا لیدلی وی چه په دې ځایونو کښې خو چرته ځناور هم نه دی اوسیدلې، پاتې لا انسان دې ، نو هلته به انسان څنګه اوسیږی، ددې امکان نه ؤو، له همدې کبله هغوی ددې بحث نه ډډه کړې ده، اوهغوی دا خیال کړې دې چه ددې بحث څه فائده نشته، څکه چه نمر ددې علاقو نه ډیر لرې دې او په دې مقاماتو باندې یخ په زور داره طریقې سره خور شوې دې، هلته په مستقل طور د هیڅ ځناور د اوسیدو امکان هم نشو کیدې څکه چه دژوندون دپاره دطبعی حرارت ضرورت وی ، او هلته طبعی حرارت موجود نه وو، نو د هیڅ قسم ځناور اوسیدل څنګه ممکن کیدې شی، له همدې کبله د مونځ او روژې دحکم د بحث په دې علاقه کښې څه فائده نه وه ، لیکن له قرآن کریم نه د دوی د عبادت حکم په دې علاقه کښې هم مستفاد دې ، او د دې سورة دادې چه کله نمر د خپل خاص حرکت سره بروج شمالی کښې داخلیږی ، حمل نه د سنبلې تر

آخره پورې نو هلته دساکنینو د شپې او ورځې تولـه دوره غائبه نه وی بلکه هره ورځ مدار پوره کوی ، د فلك الافلاك د حرکت سره نو له دې کبله مناسبت دی چه مونځ گزار دهرې ورځی مدار (or bit) په دوو حصو کښې تقسیم کړی ، یو به په ورځ حساب کړی او دا مدار به په وختونو تقسیم کړې ، او په د ې کښې به درې مونځونه (سحر ماسپښین مازدیگر ،) وکړی .

او آخری نیم به په شپه کښې حساب کړی ، په دې کښې به اول د ماښام مونځ وکړی بیا چه کله نمر ځلورمې حصې د مدار ته ورسیږی نود ماسخوتن مونځ به وکړی ، او دا دې د مونځ حکم کله چه نمر په مدارات شمالیه د هغه ځائ د اوسیدونکو په نظر کښې ښکاره وی . لیکن څه وخت چه نمر بروج جنوبی کښې وی نو د میزان نه د حوت ترآخره پورې نو مدار جنوبیه به دمدارات شمالیه په شان اندازه کړې شی، نیم مدار به ورځ او نیم به شپه حساب شی، ځکه چه جنوبی او شمالی مدارات برابر دی په دې کښې هیڅ تفاوت نشته اگر چه د اوج اود حضیض د اختلاف له کبله په نظر کښې متفاوت دی، او دا تفاوت هم غیر محسوس دې .

**صوم** ((**روژه**)) :- دا خو د مونځ حال وو ، اوس د روژې باره کښې پوښتنه کولې شی د هغه جهاز والا نه کوم چه هلته نزدې متمدنه (آباده) زمکې ته راځی چه په قمر ی میاشتو کښې کومه میاشت ده ، نوچه کله دامعلومه شی نو هره میاشت به دیرش ورځو کښې تقسیم کړی شی. نو بیا چه کله دې حساب سره د رمضان میاشت راشی، نو نیم مدار ته به ورځ او نیم ته به د شپې اعتبار ورکړی، د ورځې به روژه ساتی او د شپې به افطار کوی او دا طریقه آسانه (قابل عمل ده) اگر چه په دې سلسله کښې نجومی آلات (هغه آلات چه هغې سره د ستورو حرکات معلومیږی) هم دی، او جغرافیایی حالات او واقعا ت د متعین کولو آلات او اسباب هم دی ، لکه څنگه چه د روم په ښارونو کښې ذکر کولې شی چه د خاص قسم آلات جوړ کړې شوی دی چه د هغې په ذریعې د تولو قمری میاشتو تشکیل د اول نه ترآخره پورې معلومیږی ، بیا په دې د رمضان میاشت معلومه شی، بیا د شپې او د ورځې وختونه د دې سره معلوم شی، او په خپل وخت باندې له دې سره افطار کولې شی، اوممکنه ده چه منازل د قمر د دې میاشتې د ابتدا نه معلوم شی، او هر منزل په دوو حصو تقسیم شی، نیم ته د ورځې اعتبار ورکړې شی او نیم ته د شپې .

د تولو نه آسانه طریقه داده چه د قمر منطقه پنځه درجې د بروج دمنطقې طرف ته مائله ده نو چه کله قمر منازل شمالی کښې وی نو د دې مدار په دغو علاقو باندې همیشه ظاهر وی نو هر مدار به نیم کړی او روژه به ونیسی او افطار به وکړې چه کله قمر د بروج جنوبی طرف ته شی، نو دې حساب سره چه کوم بروج شمالی کښې ویلې شوې وو، همدغه رنگه به دلته هم عمل وکړې شی، دا حکم ( د صوم والصلوة ) داسې دې کوم چه قرآن پاك په سورة یونس آیت ۵ کښې د الله

ارشاد دي، (هوالذی جعل الشمس ضیاء والقمر نورا وقدره منازل لتعلموا عدد السنین والحساب)
ترجمه : الله هغه ذات دی ، چه نمر یی چمك دار او سپوږمۍ یی روښانه جوړه کړه، او دسپوږمۍ دپاره یی منزلونه مقرر کړل دي دپاره چه تاسو د کلونو شمیر او د وختونو حساب ترې معلوم کړي.
او منازل د قمر اته ویشت دی، او دامنازل دولسو بروجو کښې تقسیم دی او هر برج دپاره دوه منزله او ثلث دمنزل دې ، نو قمر په هره شپه کښې د دې منزل نه راخیژی ، او ددې میاشتې اختتام په دې منازلو کښې دقمر په ختو سره وی، او د دې آیت مطلب دادې چه تاسومیاشتې ، ورځې او د ساعتونو او کوم څیزونه چه په دې متفرع کیږی د هغې حساب معلوم کړئ لکه مونځ روژه ، د قرض نیټه ، او د الله پاك ارشاد دې سورة الرحمن آیت ۵. (والشمس القمر بحسبان) چه نمر اوسپوږمۍ په حساب سره چلیږی، مطلب دادې چه د بروج او د منازلو په حساب سره دا چلیږی ، او د دې نه تجاوز نه کوی، یعنې د وختونواود نیټې په اعتبا رسره.
**اعتراض** :- که دا اشکال پیښ شی چه د مونځ وختونه خو د شپې او د ورځې په ساعتونو باندې موقوف دی که هغه اوږدې وی اوکه وړې ، نو په دې لحاظ سره چه چرته شپږ میاشتې ورځ وی تږ هلته به درې مونځونه کولې شی، ا و باقی نصف کښې دوه مونځونه ،او همدا رنګه روژه هم په شریعت کښې د میاشتې د ابتدا نه د سپوږمۍ د راختلو سره واجبیږی ، په دې بنا باندې چه کله د قطب شمالی ساکینینو باندې سپوږمۍ د خپل خاص حرکت سره راوخیژی نو هغه وخت دې روژه ونیولې شی او چه کله سپوږمۍ د جنوب طرف ته لاړه شی نو هغه وخت دې افطار وکړې شی.
**جواب** :- دادې چه دا صورت دمقصود د شرع نه سراسر خلاف دې او دقرآن کریم د آیاتونو نه هم د څو وجوهو نه مخالف دې .
اوله وجه داده چه تقسیم دوختونو دمونځونود شپې او ورځې په ساعاتوباندې دتعلق دنمر دحرکت اولیه سره وی چه حرکات دهغې سریع تر(تیز) وی کله چه نمر په خپل فلك کښې حرکت خاصه کوی، دالله ﷻ ارشاد په سورة فرقان آیت ۶۲ کښې دې چه : (وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ خِلْفَةً لِّمَنْ أَرَادَ أَن يَذَّكَّرَ أَوْ أَرَادَ شُكُورًا)
**ترجمه** : اوالله ﷻ هغه ذات دې چه هغه شپه او ورځ دیوبل جانشین جوړکړل دا ټول دلائل دهغه چا دپاره دې چه دفکر اراده لری، یا شکر په ځائ راوړل غواړی.
دا په دوی کښې د یوبل پسې راځی، یو لاړشی نو بل ددې پسې متعاقب راشی، نو دا رڼا او

تیارۀ زیادت او نقصان کښې د یو بل پسې راځی، نو چه دچا عمل یو کښې فوت شی نو بل کښې به قضا راوړی، اومعنی داده چه ذکر وکړی په ژبه او زړۀ سره یا دخپل رب دنعمتونو شکریه ادا کړی په بدن اعضاء او جوارحو سره.

نو ددې آیت نه معلومه شوه چه ورځ او شپه چه «دنمر» دحرکت اولیه سره متعلق دی هغه متعین دی دذکر او شکر دپاره ، اوروژه هم په شکر کښې داخله ده ځکه چه روژه دار خپل بدن محفوظ ساتی دغذاء پرېښودل کوی دالله ﷻ دپاره.

دویمه وجه داده چه مونځ له دې کبله فرض وګرځولې شو چه بنده خپل پیدا کوُنکی ته دلګې لګې وقفې نه پس «ساعةً فساعةً» متوجه کیږی،اودهغه عبادت کوی حتی چه دده دعبادت رنګ اوتوجه ددۀ په روح اونفس باندې پوره خوره شی،اودغفلت رنګ ترې لرې شی نوداخبره که کال کښې صرف پنځه ځله واقع شی نوهغه روح او جسم باندې اصلا مؤثر نه وی، بلکه هغه ددې روحانیت اثر بالکل واخلی.

له دې کبله د یوې روژې د افطار اوږدوالې شپږو میاشتو پورې ؤو، نوددې علاقې د اوسیدونکو دپاره تکلیف مالایطاق ؤو. دومره مودې پورې خوراك نه کول عادةً مهلك دی، حالانکه قرآن کښې دالله ﷻ ارشاد دې : (لایکلف الله نفساً الاوسعها)، (بقره آیت ۲۸۶)

**ترجمه** : الله ﷻ چاته تکلیف نه ورکوی مګر دهغه د توان او طاقت موافق، همدارنګه دالله ﷻ ارشاد دې دروژې دفرضیت ذکرکولونه وروسته چه : (کما کتب علی الذین من قبلکم لعلکم تتقون ایاماً معدودات)، (بقره ۱۸۳،۱۸۴)

ترجمه : څنګه چه تاسو نه وړاندې خلقو باندې روژه فرض کړې شوې وه،په دې امید چه تاسو پرهیزګار جوړ شئ نو دشمیر یوڅوورځو کښې روژه نیسئ.

نوظاهره ده چه دورځو شمیر کول یوه میاشت کښې یقینا هغه یوه میاشت نه په عرف کښې کمه وی، ځکه چه عرف کښې ایام شهر دمیاشتې ورځو ته وایی اوداسې شمیر کیږی، یوه ورځ، دوه ورځې، درې ورځې ،څلور ورځې.....

اوکله چه دمیاشتې نه تجاوزوکړی نو بیا میاشت ، دوه میاشتې ، دوه نیمې میاشتې شمار کیږی، نوددې نه معلومه شوه چه روژه کله هم دمیاشتې زیاته نشی کیدې نو دشپږو میاشتو به یی څه وایی.

**د تکلف کوونکو فقهاؤ شبهه** :- ځینی متکلف فقهاؤ په دې ځائ کښې دا شبهه کړې ده چه داصول فقه په کتابونو کښې دصلوة او صوم سبب وجوب دوخت ګرزولې شوې دې او ارض تسعین کښې دا وخت له سره نشته، یعنی هره ورځ راختل او زوال او پریوتل نه وی، نو بیا مونځ

روژه په کومه طریقه دسبب یعنی دوخت نه بغیر متحقق کیدې شی ځکه چه هر ځیز په خپل سبب سره واجبیږی۔

**جواب** :- دادې چه دوخت دسبب کیدو نه مراد دادې چه وخت سبب دوجود دې یعنی علامت دې ددې دوجود دپاره اوکه نه نو اصلی سبب دوجوب دصوم اوصلوة هغه دالله ﷻ حکم دې ، د یو خاص حکمت له کبله نودمونځ په سلسله کښې سبب حقیقةً هغه دخالق ﷻ د ذکر اوفکر سره تنبیه ده،اودهغه دیاد نه دغفلت لرې والې دې اودروژې دننه کسر نفس او هضم نفس دې دمالوفاتو دترك کولو دپاره یوې اوږدې مودې پورې «دشاه ولی الله په قول روژه کسر شهوت، تضعیف قوت بهیمیت ،قهر طبیعت تصقیل روح،اوتکفیر دخطایاؤ دې » او دا اسباب دنوع انسانی سره لازم دی هغه چه هرځائ وی اوکوم حال کښې وی.

## د روژې او د مونځ د وجوب یوه بله وجه :-

په شرع کښې دآسانئ قانون مسلّم دې (اَلدِّينُ يُسْرٌ) وغیره ، له دې سره هم دمونځ اوروژې دحکم استخراج کولې شی، اوهغه دادې چه کله ورځ دشپږو میاشتو په اندازه اوږده شی اودغه رنګې «کله » شپه هم دومره اوږده شی، نو دا په عادت کښې محال دی چه دومره اوږدې مودې پورې سړې بیدار پاتې شی، اوکاروغیره کښې مشغول شی، دومره مودې پورې مسلسل یا دومره ډیرې مودې پورې ویده شی ، جبلت بشریت دا نه تسلیموی، بلکه ضروری ده چه دې موده کښې به تفریق وکړی، اوڅه وخت داستراحت اوخوب دپاره مقررکړي، او دویم وخت دکسب معاش دپاره ، خو حقیقة دغه وخت ددې سړی په حق کښې ورځ وی اودې کښې به هغه دوَرځې مونځونه ادا کوی اودویم وخت به شپه وی، نودې کښې به هغه په اول وخت او اوسط وخت کښې دشپې مونځونه کوی . اوهمدغه رنګې روژه کښې به روژه نیسی،اوافطار به هم کوی، داطریقه د آسانئ نه علاوه دقاعدو دفقهې هم موافق ده،ځکه چه دعرف اوعادت دضرورت په وخت ځینی احکامو کښې اعتبار کولې شی، اوقرآن پاك کښې ددې خبرې طرفته اشاره موندلې شی، د الله ﷻ ارشاد دې په سورة انعام آیت ۹۶ کښې : (فَالِقُ الاِصْبَاحِ وَجَعَلَ الَّيْلَ سَكَناً وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ حُسْبَانًا)

**ترجمه** : اوهغه څیری کونکې دې دسبا درڼا او هم هغه شپه موجب دآرام جوړه کړې ده، او د حساب دپاره یې نمر او سپوږمی مقررکړی دی .

یعنی نمر اوسپوږمئ په حساب چلیږی هغه حساب چه دمیاشتې اوکال دپاره معلوم دې او دهغې نه تجاوز نه کوی تردې چه هغه خپل منزل پوره کړی .

له دې نه علاوه دالله ﷻ ارشاد دې په سورة القصص آیت ۷۳ کښې : (ومن رحمته جعل لکم اللیل والنهار لتسکنوا فیه ولتبتغوا من فضله)

**ترجمه**: اودې الله ﷻ په خپل رحمت سره ستاسو دپاره شپه او ورځ پيدا کړې دی، دې دپاره چه تاسو آرام حاصل کړئ، اوپه ورځ کښې دهغه فضل تلاش کړئ دې دپاره چه تاسو شکر په ځائ راوړئ.

يعنی الله ﷻ شپه ستاسو دسکون او آرام دپاره اوورځ دکسب معاش دپاره جوړه کړې ده.

ددې نه معلومه شوه چه شپه حقيقةً داستراحت دپاره پيدا ده، هر کيفيت کښې چه وی اوورځ دهغه دفضل دتلاش کولو دپاره يعنی دتلاش دمعاش دپاره پيدا ده په هر کيفيت کښې چه وی، او دا خبره دراختلو دنمر يا سپوږمۍ يا ددې په پريوتلو باندې موقوفه نه ده.

دشاه رفيع الدين رحمه الله دا رساله د نواب صديق حسن خان کتاب لقطة العجلان مطبوعه مطبع نظامی کانپور ۱۲۹۱ھ ص۸۲تا۸۴ نه نقل کړې شوې ده. **والحمدلله علی ذلك**

**مسئله**:- که دسحر مونځ کښې په ولاړه کښې نمر را وخيژی نو مونځ باطليږی ځکه چه دسحر دمونځ وخت کامل دې ځکه چه کامل وخت کښې شروع کړې شوې ده، مونځ په ناقص وخت کښې نه ادا کيږی او د مازديگر مونځ په کولو که دنمر غروب وشی، نو دمازديگر مونځ ادا کيږی،ځکه چه دمازديگر آخری وخت ناقص او مکروه دې ،کله چه په نمر کښې تغير راغلې وی، نو ناقص وخت کښې شروع کونکی مونځ په ناقص وخت کښې ادا کيږی.

## جمع بين الصلوتين يعنی دوه مونځونه په يوځای کول:-

جمع بين الصلوتين يعنی دوه مونځونه په يو ځای کول چه کومو احاديثو کښې راغلې دی دهغې نه مراد جمع صوری ده اوجمع حقيقی نده مراد ، جمع صوری داده چه ړومبی مونځ (يعنی دماسپښين او ماښام مونځونه) وروسته کړې شی او د دې په آخری وخت کښې اداء کړې شی، اوبيا دوه مونځونه (مازديگر او ماسخوتن په خپل خپل وخت کښې) ددې نه په اول وخت کښې ادا کړې شی، له همدې کبله دواړه يوځای هم شول اوهر يو په خپل خپل وخت کښې هم اداء شو، دا توجيه اقویٰ ده، اوپه دې باندې دامام ابوحنيفه عمل دې .اوفتویٰ هم ده.

دوه مونځونه جمع کول مثلا ماسپښين او مازديگر په يو وخت کښې اوماښام او ماسخوتن په يو وخت کښې دکولو په باره کښې دفقهاء کرامو کافی اختلاف موندلې شوې دې ، حضرت امام شافعی امام مالك، اماماحمد اوځه نور محدثين ددې قائل دی چه جمع بين الصلوتين دعذر له کبله مثلا دسفر حالت وی يا باران، طوفان وغيره وی نو دواړه مونځونه په يو وخت کښې کول افضل دی، جمع تاخير (دظهر مونځ به مؤخرکړی د عصرسره اودمغرب به مؤخرکړی د عشاء سره سره) نو دا جائزدی اودارنگه جمع تقديم (دظهر وخت کښې عصر اودمغرب په وخت کښې عشاء کول )جائزدی،او دواړوکښې به دکولو په وخت کښې دجمع کولونيت وکړی، د ړومبی مونځ

دشروع کولونه وړاندې په د دویم مونځ یوځای کولو نیت وکړي.

حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ حضرت سعد بن ابی وقاص ﷺ، حضرت عبدالله بن عمر ﷺ، امام ابو حنیفه رحمه الله اونور ډیرفقهاء کرام، امام نخعي رحمه الله، ابن سیرین رحمه الله، مکحول رحمه الله، جابر بن زید رحمه الله، عمروبن دینار رحمه الله، دا وایي چه دواړه مونځونه په یو وخت کښې کول داصرف دحج په احکامو کښې دي چه عرفات کښې د مازدیګر او دماسپښین مونځ وکړي اودماښام مونځ په لاره کښې نه کوي بلکه دماسخوتن مونځ سره یې په مزدلفه کښې په یو وخت وکړي.

ددې نه علاوه دعذر نه یا بغیر دعذرنه په یو وخت کښې دوه مونځونه کول روا نه دی، په دې سلسله کښې یو خو دحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ بیان دې چه:

عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ ﷺ قَالَ مَارَاَیْتُ النَّبِیَّ ﷺ صَلّٰی صَلٰوۃً قَطُّ اِلَّا لِوَقْتِهَا اِلَّا اَنَّهُ جَمَعَ بَیْنَ الظُّهْرِوَالْعَصْرِ بِعَرَفَةَ وَالْمَغْرِبِ وَالْعِشَآءِ بِجَمْعٍ (مصنف عبدالرزاق ص۵۵۱ ج۲، نسائی ص۳۳ ج۲، کبیر ص۵۲۷)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائی چه ما رسول الله ﷺ نه دې لیدلې چه هغوی کله هم یو مونځ بغیر دوخته کړې وی سیوا ددې نه چه هغوی دماسپښین اومازدیګر مونځ (دماسپښین په وخت کښې) په عرفات کښې یو ځای وکړل او ماښام او ماسخوتن یی (دماسخوتن په وخت کښې) په مزدلفه کښې یو ځای وکړل.

دویمه خبره داده چه په دې سلسله کښې په صحیح حدیث اود درجه اول حدیث نه ثابت نه دی چه رسول الله ﷺ د مازدیګر مونځ دماسپښین په وخت کښې اداء کړې وی، اودارنګه دماسخوتن مونځ یی دماښام په وخت کښې اداء کړې وی.

په کومو روایاتو کښې چه د جمع تقدیم ذکر دې هغه د دویمې درجې او د دریمې او کمزورې درجې او منکر بلکه بعضې موضوعي روایات دي اوبیا امام ابو حنیفه فرمائی چه دجمع بین الصلوتین یو داسې صورت هم دې چه په هغې کښې په ټولو روایاتو کښې تطبیق هم کیږي او اشکال هم نه پیدا کیږي یعنی جمع صوري چه هغې ته جمع فعلی هم وایي اوددې صورت دادې چه ړومبې مونځ مؤخر کړې شی اوددې آخری وخت کښې اداء کړې شی اوددې دفارغیدو نه پس ددویم مونځ وخت راشي او هغه هم بالفور اداء کړې شی په ظاهر کښې دا یوځای هم دی او هر یو مونځ په خپل خپل ځای کښې هم ادا کیږي. او دا خبره دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ د روایت سره هم متبادر اوښکاره ده.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ قَالَ صَلَّیْتُ مَعَ النَّبِیِّ ﷺ بِالْمَدِیْنَةِ ثَمَانِیًا جَمِیْعًا وَسَبْعًا جَمِیْعًا وَاَخَّرَ الظُّهْرَ وَعَجَّلَ الْعَصْرَ وَاَخَّرَ الْمَغْرِبَ وَعَجَّلَ الْعِشَآءَ (نسائی ص۹۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائی چه ما درسول الله ﷺ سره (دماسپښین اومازدیګر)

اته رکعته یوځای وکړل او د (ماښام اوماسخوتن) اوه رکعته مې یوځای وکړل. اوماسپښین یې (ترآخر وخته پورې) وروسته کړو اوعصر یېابتدائی وخت کښې زر وکړو او ماښام (یې آخر وخت) ته وروسته کړو اوماسخوتن یې ابتدائی وخت کښې زر وکړو.

همدارنګه به دقرآن کریم دنص قطعي خلاف هم نه وی چه په هغې کښې راغلی دی چه:

(اِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتٰبًا مَّوْقُوْتًا). (النسآء آیت ۱۰۳)

**ترجمه**: بیشکه الله ﷻ مونځ په مؤمنانو باندې په خپل وخت فرض کړې دې.

په دې سلسله کښې چه کوم حضرات دا مونځونه په جمع حقیقی محمول کوی دهغوی دپاره دحضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه صحیح روایت دسخت اشکال باعث جوړیږی او هغه دادې چه:

(صَلّٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ جَمِيْعًا وَالْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ جَمِيْعًا فِيْ غَيْرِ خَوْفٍ وَّلَا سَفَرٍ) (مسلم ص۲۴۶ ج۱)

حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ په مدینه کښې بغیر دڅه خوف او دخطر نه دماسپښین او مازدیګرمونځ یوځای او ماښام او ماسخوتن مونځ یوځای وکړل.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنه قَالَ جَمَعَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ وَالْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ بِالْمَدِيْنَةِ فِيْ غَيْرِ خَوْفٍ وَّلَا مَطَرٍ (مسلم ص۲۴۶ ج۱، نسائی ص۹۹ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه فرمائی چه رسو ل الله ﷺ د ماسپښین او مازدیګر او دماښام او ماسخوتن مونځ په مدینه کښې بغیر د ویرې او باران نه جمع کړل.

څکه چه په دې حدیث کښې واضحه تصریح ده چه رسو ل الله ﷺ په مدینه منوره کښې بغیر دڅه ویرې یا باران اویا سفر یا څه عذر نه دوه مونځونه په یو ځای اداء کړی دی. (عمروبن دینار عن ابی الشعثاء)، د حضرت جابر رضي الله عنه په روایت کښې راځی چه:

(قُلْتُ يَا اَبَا الشَّعْثَاءِ اَظُنُّهٗ اَخَّرَ الظُّهْرَ وَعَجَّلَ الْعَصْرَ وَاَخَّرَ الْمَغْرِبَ وَعَجَّلَ الْعِشَاءَ قَالَ اَنَا اَظُنُّ ذٰلِكَ) (مسلم ص۲۴۶ ج۱، بخاری ص۱۵۷ ج۱)

ما وویل: اې ابو شعثاء! زه دا ګمان کوم چه هغوی ماسپښین وروسته کړو او د مازدیګر مونځ یې زر وکړو او مغرب یې وروسته کړو او دماسخوتن مونځ یې زر وکړو، ابو شعثاء (جابر بن زید وفرمایل) زه هم دا ګمان کوم.

بیا چه کله عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه پوښتنه وکړې شوه چه رسول الله ﷺ داسې ولې کړ ؤ، نو هغوی وفرمایل: (فَقَالَ اَرَادَ اَنْ لَّا يُحْرِجَ اَحَدًا مِّنْ اُمَّتِهٖ) (مسلم ص۲۴۶ ج۱)

**ترجمه**: د رسول الله ﷺ دا اراده وه چه دهغوی ﷺ امت نه څوک په حرج کښې مبتلاء نشی.

دې دپاره چه د امت دپاره آسانی وی بعضې وخت کښې داسې اجتماعی امور پیښیږی چه په

هغې کښې تاخیر راځی نو له همدې کبله یو مونځ په آخری وخت کښې کول او دویم ددې په ابتدائی وخت کښې کولو کښې آسانی هم وی او اشکال هم نه پیدا کیږی، د دې په خلاف د دویم مطلب د اخذ کولو په صورت کښې یو صحیح حدیث بلاوجه پریښودل راځی، چنانچه امام ترمذی په کتاب العلل کښې لیکلې دی چه د محدثینو په اتفاق سره د عبدالله عباس ﷺ دا حدیث:

(اَنَّ النَّبِیَّ ﷺ جَمَعَ الظُّهرَ وَالْعَصرَ بِالْمَدِینَةِ وَالْمَغرِبَ وَالْعِشَاءَ مِنْ غَیرِ خَوفٍ وَلاَ سَفَرٍ وَلاَ مَطَرٍ) (کتاب العلل ملحقه ترمذی ص۵۵۹)

**ترجمه**: چه رسول الله ﷺ دماسپښین او مازدیگر او د ماښام او ماسخوتن مونځونه په مدینه منوره کښې دویري، سفر، او د باران نه بغیر جمع کړل.

دا ناقابل عمل دې او دا معلول گرځولې شوې دې حالانکه جمع صوری والا معنی باندې حدیث محمول کولو سره هیڅ قسم اشکال نه راځی او په حدیث باندې عمل هم کیږی.

په دې سلسله کښې دحضرت امام ابو حنیفه مسلك نهایت قوی دې، اونصوص قرآن اوصحیح احادیثو باندې دعمل کولو بهترین صورت دې، کوم خلق چه ددې خلاف بعید تاویلات کوی هغه بهتر او ښه کار نه کوی.

**دجُمعې دمونځ وخت**:- دجمعې دمونځ وخت د ماسپښین وخت دې.

**داخترونو دمونځونو وخت**:- داخترونو دمونځونو وخت چه کله نمر ښه را وخیژی نودې نه وروسته شروع کیږی اوتر غرمې پورې وی. (هدایه ص۱۱۱ ج۱ شرح نقایه ص۱۲۸ ج۱)

خَرَجَ عَبْدُاللهِ بْنُ بُسرٍ صَاحِبُ رَسُولِ اللهِ ﷺ مَعَ النَّاسِ فِی یَومِ عِیدِ فِطرٍ اَوْاَضحٰی فَاَنکَرَ اِبْطَاءَ الْاِمَامِ فَقَالَ اِنَّا کُنَّا قَدْ فَرَغْنَا سَاعَتَنَا هٰذِهٖ وَذٰلِكَ حِینَ التَّسبِیحِ (ابوداؤد ص۱۶۱ ج۱ ابن ماجه ص۹۳ مستدرك حاکم ص۲۹۵ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن بسر ﷺ دخلقوسره ووتلو په عیدالفطر یا عید الاضحٰی کښې او هغوی دامام په تاخیر باندې انکار وکړو او وې فرمایل چه مونږ خو به دمونځ نه هغه وخت فارغیدلو چه هغه به داشراق دمونځ وخت ؤو.

عُمَیرِ بْنِ اَنَسٍ ﷺ قَالَ حَدَّثَنِی عُمُومَتِی (الی ان قالوا) فَجَاءَ رَکْبٌ مِنْ آخِرِ النَّهَارِ فَشَهِدُوا عِندَ النَّبِیِّ ﷺ اَنَّهُم رَاَوُا الْهِلَالَ بِالْاَمسِ فَاَمَرَهُم رَسُولُ اللهِ ﷺ اَنْ یُفطِرُوا وَاَنْ یَخرُجُوا اِلٰی عِیدِهِم مِنَ الْغَدِ (ابن ماجه ص۱۱۹ نسائی ص۲۳۱ ج۱ ابوداؤد ص۱۶۳ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عمیر فرمائی چه زما ترونو وفرمایل چه یو جماعت رسول الله ﷺ ته د ورځې په آخر کښې حاضر شو اوهغوی گواهی ورکړه چه مونږ دشپې میاشت لیدلې وه نورسول الله ﷺ وفرمایل خلق دې روژه ماته کړی اوپه دویمه ورځ دې دمونځ دپاره عیدگاه ته حاضر شی.

**مسئله** :- کله چه امام خطبه وایی (که دجمعې وی اوکه داختر وی یا دحج خطبه وی) نوهغه وخت کښې مونځ کول مکروه دي . (هدایه ص۱۱۷ ج۱ عالمگیری ص۱۵۶ ج۱)

**عَنْ ثَعْلَبَةَ بْنِ مَالِكٍ الْقُرَظِيِّ قَالَ أَدْرَكْتُ عُمَرَ ﷺ وَعُثْمَانَ ﷺ وَكَانَ الْإِمَامُ إِذَا خَرَجَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ تَرَكْنَا الصَّلٰوةَ فَإِذَا تَكَلَّمَ تَرَكْنَا الْكَلَامَ (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۲۲ ج۱)**

**ترجمه** : حضرت ثعلبه بن مالك قرظی فرمائی چه ما دحضرت عمر ﷺ اوحضرت عثمان ﷺ زمانه او دور موندلې دې کله به چه امام دجمعې په ورځ (دخطبې اودمونځ دپاره) را ووتلو، نوموږ به مونځ کول پرېښودل اوکله به چه امام خطبه شروع کړه نوموږ به خبرې بندې کړې .

**عَنْ عَطَاءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ وَابْنِ عُمَرَ ﷺ أَنَّهُمَا كَانَا يَكْرَهَانِ الصَّلٰوةَ وَالْكَلَامَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ بَعْدَ خُرُوجِ الْإِمَامِ (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۲۲ ج۱)**

**ترجمه** حضرت عطاء فرمائی چه حضرت عبدالله بن عباس ﷺ او حضرت عبدالله بن عمر ﷺ دواړو به دامام دخطبې دراوتلو په وخت مونځ او خبرې مکروه ګڼلې دجمعې په ورځ .

**عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ قَالَ وَجَبَ الْإِنْصَاتُ فِي أَرْبَعَةِ مَوَاطِنَ الْجُمُعَةِ وَالْفِطْرِ وَالْأَضْحٰى وَالْاِسْتِسْقَاءِ (مصنف عبدالرزاق ص۲۸۳ ج۳)**

**ترجمه** . حضرت مجاهد دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ نه نقل کوی هغوی فرمائی چه څلورو ځایونو کښې خاموشی واجب ده . جمعه، عیدالفطر، عیدالاضحی او استسقاء (دخطبودوران کښې)

**عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قُلْتُ لِعَطَاءٍ أَيُكْرَهُ اللهُ الْإِنْسَانُ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ يَوْمَ عَرَفَةَ أَوْ يَوْمَ فِطْرٍ وَهُوَ يَعْقِلُ قَوْلَ الْإِمَامِ قَالَ لَا كُلُّ عِيدٍ فَلَا يَتَكَلَّمُ فِيهِ . (مصنف عبدالرزاق ص۲۸۲ ج۳)**

**ترجمه** حضرت ابن جریج فرمائی چه ما حضرت عطاء ته ووېل چه آیا څوك دالله ﷻ ذکر په هغه وخت کولې شي؟ کله چه امام خطبه کوی، دعرفې یا دعیدالفطر په ورځ ،اوهغه دامام په وینا هم پوهیږی، نوهغوی وفرمایل چه نه، هیڅ اختر کښې هم کلام نشته، یعنی دخطبې په دوران کښې

**مسئله** :- داخترونو دمونځ نه وړاندې په عید ګاه کښې او په کور کښې هم نفل مونځ مکروه دې او داختر دمونځ نه پس په عید ګاه کښې مکروه دې اوکور ته چه واپس شی نو کول یې جائز دی (هدایه ص۱۱۸ ج۱، کبیری ص۳۶۵ شرح نقایه ص۱۲۸ ج۱)

**عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ خَرَجَ يَوْمَ الْفِطْرِ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ لَمْ يُصَلِّ قَبْلَهَا وَلَا بَعْدَهَا . (بخاری ص۱۳۵ ج۱ مسلم ص۲۹۱ ج۱ ابوداؤد ص۱۶۳ ج۱ نسائی ص۲۳۵ ج۱ ابن ماجه ص۹۲)**

**ترجمه** : حضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ داختر په ورځ بر ووتلو اودوه

رکعته مونځ یې وکړو نه یې ددې نه وړاندې څه مونځ کړې وو او نه ددې نه وروسته.

عَنْ اَبِیْ مَسْعُوْدٍ قَالَ لَیْسَ مِنَ السُّنَّةِ الصَّلَاةُ قَبْلَ خُرُوْجِ الْاِمَامِ یَوْمَ الْعِیْدِ (نسائی ص۲۳۲ ج۱، مجمع الزوائد ص۲۰۲ ج۲ بحواله طبرانی فی الکبیر)

**ترجمه**: حضرت ابو مسعود فرمائی چه دا سنت نه دی چه مونځ وکړې شی د امام دوتلونه وړاندې داختر په ورځ.

اَبْنِ مَسْعُوْدٍ وَحُذَیْفَةَ کَانَا یَنْهَیَانِ النَّاسَ اَوْقَالَ یُجْلِسَانِ مَنْ یَرَیَاهُ یُصَلِّیْ قَبْلَ خُرُوْجِ الْاِمَامِ (مجمع الزوائد ص۲۰۲ بحواله طبرانی فی الکبیر)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن مسعود او حضرت حذیفه دواړه حضراتو خلق منع کړې ؤولدې نه چه د امام دوتلو نه وړاندې به یې مونځ کولو، یا به یې دوی کینول.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ کَرِهَ الصَّلٰوةَ قَبْلَ الْعِیْدِ

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن عباس نه روایت دې چه هغه داختر دمونځ نه وړاندې نفلونه کول بد ګڼل.

## مکروه وقتونه

**مسئله**:- پس دختلو دسبا نه دسنت مؤکده نه علاوه نفل کول مکروه دی ترڅو چه نمر یوه نیزه یا یوه نیمه نیزه را اوچت شوې نه وی، همدغه رنګه دمازدیګر دمونځ نه پس تر نمر پریوتلو پورې نفل کول مکروه دی. (هدایه ص۵۳ ج۱ شرح نقایه ص۶۶ ج۱، کبیری ص۲۲۸)

عَنْ عَلِیٍّ قَالَ کَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ یُصَلِّیْ فِیْ اَثْرِ کُلِّ صَلٰوةٍ مَکْتُوْبَةٍ رَکْعَتَیْنِ اِلَّا الْفَجْرَ وَالْعَصْرَ (ابوداؤد ص۱۸۱ ج۱، مسند احمد ۱۴۴ ج۱)

**ترجمه**: حضرت علی نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به دهر فرض مونځ نه پس دوه رکعته (نفل) مونځ کولو سیوا دسحر او مازدیګر نه.

عَنْ عُمَرَ اَنَّ نَبِیَّ اللّٰهِ ﷺ قَالَ لَاصَلٰوةَ بَعْدَ صَلٰوةِ الصُّبْحِ حَتّٰی تَطْلُعَ الشَّمْسُ وَلَاصَلٰوةَ بَعْدَ الْعَصْرِ حَتّٰی تَغْرُبَ الشَّمْسُ (مسلم ص۲۷۵ ج۱، ابوداؤد ص۱۸۱ ج۱، ترمذی ص۵۳)

**ترجمه**: حضرت عمر نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی: دسحر دمونځ نه پس هیڅ (نفل) مونځ نشته، تردې چه نمر را وخیژی او دمازدیګر دمونځ نه پس هم څه (نفل) مونځ نشته تردې چه نمر پریوزی.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ نَهَى عَنِ الصَّلٰوةِ بَعْدَ الْعَصْرِ حَتّٰى تَغْرُبَ الشَّمْسُ وَعَنِ الصَّلٰوةِ بَعْدَ الصُّبْحِ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ (مسلم ص۲۷۵ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابوهريره ﷺ روايت کوی چه رسول الله ﷺ منع فرمايلي ده چه دمازديګر دمونځ نه پس (نفل) نه کيږی ترڅو چه نمر نه وی ډوب شوي، او دسحردمونځ نه پس چه ترڅو نمر نه وی را ختلي نو لمونځ نه کيږی.

اِبْنِ عُمَرَ ﷺ قَالَ لِيُبَلِّغْ شَاهِدُكُمْ غَائِبَكُمْ لَا صَلٰوةَ بَعْدَ الْفَجْرِ إِلَّا سَجْدَتَيْنِ (ابوداؤد ص۱۸۱ ج۱، ترمذی ص۸۷)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر ﷺ فرمائی تاسو کښې چه څوك حاضردی هغه دې غائبينو ته دا خبره ورسوی چه دسبا دختلو نه پس دې څوك نفل مونځ نه کوی سيوا ددوو رکعتوسنتونه.

**مسئله**:- عين طلوع آفتاب، اود استواء اودعين غروب په وخت هيڅ مونځ مثلا فرض، سجده، جنازه، سجده تلاوت، جائزنه دي بلکه مکروه تحريمی دی. (هدايه ص۵۲ ج۱، شرح نقايه ص۵۶ ج۱، کبيری ص۲۳۶)

عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ الْجُهَنِيِّ ﷺ يَقُوْلُ ثَلَاثُ سَاعَاتٍ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَنْهَانَا أَنْ نُصَلِّيَ فِيْهِنَّ أَوْ أَنْ نَقْبُرَ مَوْتَانَا حِيْنَ تَطْلُعُ الشَّمْسُ بَازِغَةً حَتّٰى تَرْتَفِعَ وَحِيْنَ يَقُوْمُ قَائِمُ الظَّهِيْرَةِ حَتّٰى تَمِيْلَ الشَّمْسُ وَحِيْنَ تَضِيْفُ الشَّمْسُ لِلْغُرُوْبِ حَتّٰى تَغْرُبَ (مسلم ص۲۷۶ ج۱، ترمذی ص۱۶۷) وَقَالَ اِبْنُ الْمُبَارَكِ مَعْنٰى هٰذَا الْحَدِيْثِ أَوْ أَنْ نَقْبُرَ فِيْهِنَّ مَوْتَانَا يَعْنِي الصَّلٰوةَ عَلَى الْجَنَازَةِ عِنْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَعِنْدَ غُرُوْبِهَا وَإِذَا انْتَصَفَ النَّهَارُ حَتّٰى تَزُوْلَ الشَّمْسُ (ترمذی ص۱۶۷)

**ترجمه**: حضرت عقبه بن عامر جهنی ﷺ فرمائی چه درې وختونه داسې دی چه رسول الله ﷺ به مونږ منع کولو چه مونږ په دې کښې مونځ وکړو يا مړی دفن کړو (لدې نه دجنازې مونځ کول مراد دی) کله چه نمر راخيژی ترڅو چه را اوچت شوې نه وی، او چه کله دغرمې داستواء وخت وی، ترڅو چه دنمرزوال نه وی شوې اوکله چه نمر پريوزی، حضرت عبدالله بن مبارك فرمائی چه مړی په قبرونو کښې ښخولو نه مراد د جنازې مونځ دې ځکه چه دجنازې مونځ هم دنمر راختلو، داستواء، او دپريوتلو په وخت کښې مکروه دې.

**مسئله**:- دمازديګر او دماښام په مينځ کښې دنمر دمتغير کيدو نه وړاندې سجده تلاوت، نمازجنازه، قضاء دفرضو، او وتر جائزدی او نفلونه مکروه دی.

**مسئله**:- دصبح صادق نه تر نمر راختلو پورې دمازديګرنه تر نمر پريوتلو پورې د اقامت په وخت، دجمعې دخطبې په وخت، داخترونو په ورځو کښې دنمر د ختلونه د اختر تر مونځ پورې، اودغه مونځ وخت که تنګ شی نو په دې ټولو صورتونو کښې دفرضونه علاوه ټول نفل مکروه دی.

**مسئله**:- عرفات اومزدلفه کښې دواړو مونځونو (جمع بين الصلواتين) په مينځ کښې نفل کول مکروه دی، (هدايه ص۱۸۳، ۱۸۲ ج۱)

عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ ﷺ مَرْفُوعاً ثُمَّ اَذَّنَ ثُمَّ اَقَامَ فَصَلَّى الظُّهْرَ ثُمَّ اَقَامَ فَصَلَّى الْعَصْرَ وَلَمْ يُصَلِّ بَيْنَهُمَا شَيْئًا (مسلم ص۳۹۷ ج۱)

**ترجمه**: حضرت جابر ﷺ نه روايت دې چه بيا اذان وشوبيا اقامت او دماسپښين مونځ وشو بيا يې اقامت وكړواورسول الله ﷺ دمازديگرمونځ وكړواوددې په مابين كښې يې هيڅ مونځ ونكړو.

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ ﷺ قَالَ جَمَعَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ بِجَمْعٍ لَيْسَ بَيْنَهُمَا سَجْدَةٌ (مسلم ص۴۱۷ ج۱ بخاری ص۲۲۷ ج۱ وَفِي رِوَايَةِ الْبُخَارِيِّ وَعَلَى اِثْرِ كُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر فرمائی چه رسول الله ﷺ دماښام اوماسخوتن مونځ په مزدلفه كښې يوځاى وكړل اوددې په مابين كښې يې هيڅ مونځ (سنت اونفل وغيره) ونكړل اودبخارى په روايت كښې دى چه ددې دواړو مونځونو نه پس يې هم هيڅ مونځ ونكړو.

عَنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ ﷺ مَرْفُوعاً ثُمَّ اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَصَلَّى وَلَمْ يُصَلِّ بَيْنَهُمَا (بخاری ص۲۲۷ ج۱)

**ترجمه**: حضرت اسامه بن زيد ﷺ فرمائی: بيا اقامت وكړې شو بيا هغوى مونځ وكړو، اوددې دواړو په مينځ كښې يې هيڅ نفل وغيره ونكړل.

## متبرک وختونه

الله ﷻ اگر چه د زمانې نه پاك دې لكه څنگه چه دمكان اودتمامې مادې اوحسى څيزونو نه پاك دې ليكن ډيرو احاديثو اورواياتو نه ثابت دى چه ځينى وختونه الله ﷻ خپل بنده ته ډير قريب وى، اوځينى وختونه دبنده اعمال دالله ﷻ په حضور كښې پيش كولې شى، اوالله ﷻ ځينى وختونو كښې ځينو حادثو اوو قعاتو فيصله فرمائى اگر چه ددې امورو حقيقت الله ﷻ په خپله ښه پيژنى.

يَنْزِلُ رَبُّنَا كُلَّ لَيْلَةٍ اِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا حِيْنَ يَبْقَى ثُلُثُ اللَّيْلِ (مسلم ص۲۵۸ ج۱)

**ترجمه**: زمونږ رب ﷻ هره شپه ددنيا آسمان طرفته نزول فرمائى اوخاص تجلى فرمائى كله چه دشپې دريمه حصه پاتې شى.

تُعْرَضُ الْاَعْمَالُ يَوْمَ الْاِثْنَيْنِ وَالْخَمِيْسِ (ترمذی ص۱۳۱)

**ترجمه**: دبندگانو اعمال د دوشنبې او پنج شنبى په ورځ پيش كولې شى.

وَقَالَ فِي لَيْلَةِ نِصْفِ شَعْبَانَ

**ترجمه**: اودشعبان د پنځلسمې شپې په باره كښې يې فرمايلى دى: (اِنَّ اللهَ لَيَطَّلِعُ فِيْهَا وَيَنْزِلُ فِيْهَا اِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا) (ترمذی ص۱۳۰، ابن ماجه ص۹۹)

**ترجمه**: بيشكه الله ﷻ خاص توجه فرمائى اوتجلى فرمائى د دنيا دآسمان په طرف.

یقینا څه وختونه دزمانې داسې دی چه په هغې کښې روحانیت خوریږی په زمکه کښې اوقوت مثالیه سرایت کوی، اوددې وختونو نه زیات اقرب وختونه نشته چه هغې کښې اطاعت قبلولې شی، او دعاء په کښې مقبوله وی، په دې کښې بعض وختونه کال اوسر گردش کوی لکه چه قرآن پاك کښې راغلی دی: (إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ إِنَّا كُنَّا مُنذِرِينَ. فِيهَا يُفْرَقُ كُلُّ أَمْرٍ حَكِيمٍ. أَمْرًا مِّنْ عِندِنَا إِنَّا كُنَّا مُرْسِلِينَ)، (سورة دخان ۲۵ پاره)

**ترجمه**: دالله ﷻ ارشاد دې چه بیشکه مونږ قرآن په یو مبارك وخت کښې نازل کړې دې، بیشکه مونږ ویرؤونکې یو، په دې شپه کښې دهرې محکمې معاملې فیصله کولې شی، زمونږ په حکم باندې، بیشکه مونږ رسولانو لره لیگونکی یو. «دا وخت په رمضان کښې وی».

اوبعض وختونه په هفتو کښې گردش کوی، دا وختونه مختصر وی په دې کښې د اطاعت او د دعا دقبولیت مواقع زیات وی، رسول الله ﷺ فرمائی چه هغه وخت دجمعې ورځ وی په دې ورځ کښې لویی حادثې هم واقع کیږی، دحضرت آدم؈ تخلیق هم په دې ورځ کښې شوې وو اوځناور هم د ملاء سافل نه د دې ساعت په باره کښې څه حاصلوی اودهشت زده او مرعوب کیږی، لکه څنگه چه دخوفناك آواز آوریدو نه وروسته مرعوب کیږی!

اوبعضې وختونه دغه لمحې دورځې په گردش کښې گرځی، ددې وختونو روحانیت دنورو وختونو نه کمزورې وی، دملا اعلی نه د علوم حاصلونکوپه دې اتفاق دې چا چه دا په خپل ذوق سره معلوم کړی دی، داخلور لمحې وی، دنمر دا رختلو نه څه لږ وړاندې، داستواء نه څه وخت پس، دغروب نه پس، او د نیمې شپې نه تر پیشمنی پورې، په دې وختونو کښې اوددې نه څه وړاندې اوڅه لږ وروسته روحانیت خوریږی، اوبرکت ظاهریږی، نیمه شپه کښې خو مونځ فرض نه دې څکه چه پدې کښې حرج دې لیکن پدې کښې ډیر فوائد موجود دی:

وَقَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ إِنَّ فِي اللَّيْلِ لَسَاعَةً لَا يُوَافِقُهَا رَجُلٌ مُسْلِمٌ يَسْأَلُ اللهَ فِيهَا خَيْرًا مِنْ أَمْرِ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ إِلَّا أَعْطَاهُ إِيَّاهُ (مسلم ص۲۵۸ ج۱)

**ترجمه**: رسول الله ﷺ فرمائی بیشکه په شپه کښې یو داسې لمحه او ساعت دې چه کوم مسلمان بنده په دې کښې دالله ﷻ نه د دنیا او آخرت دمعاملې بهتری غواړی، نو الله ﷻ به یی ده ته ورکړی، «اوداسې هره شپه کیږی»

وَقَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ أَفْضَلُ الصَّلٰوةِ نِصْفُ اللَّيْلِ وَقَلِيلٌ فَاعِلُهُ (بیهقی ص۶ ج۳)

**ترجمه**: رسول الله ﷺ فرمایی: افضل مونځ دنیمې شپې مونځ وی اوډیر کم خلق ددې ویونکی یا ددې کوونکی دی.

وَسُئِلَ اَیُّ الدُّعَاءِ اَسْمَعُ قَالَ جَوْفُ اللَّیْلِ (ترمذی ص۵۰۲)
**ترجمه**: دهغوی ﷺ نه پوښتنه وکړې شوه چه کومه دعا زیاته افضله ده هغوی ﷺ وفرمایل چه کومه دعاء دشپې په مینځ کښې وی.

وَقَالَ فِیْ سَاعَةِ الزَّوَالِ اِنَّهَا سَاعَةٌ تُفْتَحُ فِیْهَا اَبْوَابُ السَّمَاءِ فَاُحِبُّ اَنْ یَّصْعَدَ لِیْ فِیْهَا عَمَلٌ صَالِحٌ (ترمذی ص۱۰۸)
**ترجمه**: اوهغوی ﷺ د زوال دلمحې په باره کښې وفرمایل چه دا داسې وخت دې چه په دې کښې دآسمان (درحمتونو) دروازې پرانیستل کیږی اوزه دا خوښوم چه پدې وخت کښې زما نیک عملونه پورته لاړشی.

یَتَعَاقَبُوْنَ فِیْکُمْ مَلَائِکَةٌ بِاللَّیْلِ وَمَلَائِکَةٌ بِالنَّهَارِ وَیَجْتَمِعُوْنَ فِیْ صَلٰوةِ الْفَجْرِ وَالْعَصْرِ (ترمذی ص۲۲۷ ج۱)
**ترجمه**: دورځې اودشپې فرشتې وړاندې او وروستو راځی ستاسو مینځ ته، (او دسحر اومازدیگر په مونځ کښې یوځای کیږی).

وَقَالَ مَلٰئِکَةُ النَّهَارِ تَصْعَدُ اِلَیْهِ قَبْلَ مَلٰئِکَةِ اللَّیْلِ وَمَلٰئِکَةُ اللَّیْلِ تَصْعَدُ اِلَیْهِ قَبْلَ مَلٰئِکَةِ النَّهَارِ
**ترجمه**: اوهغوی ﷺ فرمائی چه دورځې فرشتې هغه طرف ته خیژی دشپې دفرشتو نه وړاندې او دشپې فرشتې د هغه طرفته خیژی دورځې دفرشتونه وړاندې.

توجه الی الله دپاره هغه وخت زیات موزون اومناسب دې کله چه انسان دطبعی تشویشاتو نه خالی وی د لوږې زیاتیدل (جوع مفرط)، یا د ګیډې زیات ډکیدل، غلبه دنعاس، دخوب سترپې والي، او دبول او بزارنه زیات تنګیدل نه وی او له دې نه علاوه د خیالی تشویشاتونه هم خالی وی، او دصورتونو نه چه کوم مشوش وی خالی وی، مثلا غوږونه یې د بیهوده خبرونه ډک نوی، اوسترګې یې دمختلف رنګونو اوصورتونو نه کوم چه مشوش وی خالی وی،

د اطاعت ادا کول هغه وخت پکار دې چه یو نعمت وریادونکی وی، لکه یوم عاشوراء او رمضان چه په دې کښې قرآن نازل شوې وو، یا هغه وخت چه د انبیاؤ اطاعت لره یادؤنکی وی لکه یوم اضحیٰ یا هغه وخت کښې چه طاعت موجب دتعظیم دځینو شعائرو ددین وی لکه عید الفطر او د رمضان دشان دتعظیم دپاره.

## وخت څه خیزدې

خورشید به دامانم انجم بگریبانم — درمن نگری هیچم درخود نگری جانم
در شهر و بیابانم درکاخ شبستانم — من در دم ودرمانم، من عشق فراوانم
من تیغ جهان سوزم من چشمه حیوانم
چنگیزی وتیموری مشتی زغبار من — هنگامه افرنگی یک جسته شرار من

انسان وجهانِ او زنقش و نگار من خون جگر مردان سامان بهار من
من آشت سوزانم من روضه رضوانم
اراده آب و گل دریاب مقام دل گنجیده به جامی ببی ای قلزم بی ساحل
از موج بلند تو سر بر زده طوفام
(اقبال)

چودی رفت و فردا نیاید بدست
حساب ازهمین یک نفس کن که هست
(سعدی)

## مساجد او دهغې حکمونه او مسئلې

وَأَنَّ الْمَسَٰجِدَ لِلَّهِ فَلَا تَدْعُوا مَعَ اللَّهِ أَحَدًا (سورة الجن آیت ۱۸)

**ترجمه**: بیشکه جوماتونه دالله ﷻ دپاره دی نو دالله ﷻ سره بل څوک مه رابلئ

﴿ فِي بُيُوتٍ أَذِنَ اللَّهُ أَن تُرْفَعَ وَيُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ يُسَبِّحُ لَهُ فِيهَا بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ ﴿٣٦﴾ رِجَالٌ لَّا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ وَلَا بَيْعٌ عَن ذِكْرِ اللَّهِ وَإِقَامِ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ يَخَافُونَ يَوْمًا تَتَقَلَّبُ فِيهِ الْقُلُوبُ وَالْأَبْصَارُ ﴿٣٧﴾ ﴾
(النور آیت ۳۶،۳۷)

**ترجمه**: په داسې کورونو (یعنی جوماتونو) کښې چه الله ﷻ دهغې (کورونو) په حقله دا حکم ورکړې دې چه دهغې د ادب لحاظ دې وساتلې شی اودهغه نوم دې پکښې واخستلې شی په هغې کښې سحر اومابنام خلق دالله ﷻ پاکی بیانوی.
داسې خلق کوم چه دالله ﷻ دذکر نه یی نه تجارت غافله کولې شی، اونه اخستل او خرڅول، او نه دمونځ قائمولو اوزکوة ادا کولونه څه څیزدوئ منع کولې شی، هغوی دهغه ورځې نه ویریږی چه زړونه اوسترګې به په کښې په بل مخ واړوی.

﴿ الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِن دِيَارِهِم بِغَيْرِ حَقٍّ إِلَّا أَن يَقُولُوا رَبُّنَا اللَّهُ ۗ وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُم بِبَعْضٍ لَّهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَاتٌ وَمَسَاجِدُ يُذْكَرُ فِيهَا اسْمُ اللَّهِ كَثِيرًا ۗ ﴾ (الحج آیت ۴۰)

**ترجمه**: اوکچیرې الله ﷻ خلق دیوبل په ذریعه نه دفع کولې نو د راهبانو خانقاه ګانې، دعیسایانو ګرجې اود یهودیانو عبادت خانې اودمسلمانانو جوماتونه چه دالله ﷻ نوم پکښې ډیر ډیر اخستې شی.

**دهغې جوماتونو مذمت او بدوالي چه دالله ﷻ عبادت پکښې نه وی :**

﴿وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا مَسْجِدًا ضِرَارًا وَكُفْرًا وَتَفْرِيقًا بَيْنَ الْمُؤْمِنِينَ وَإِرْصَادًا لِّمَنْ حَارَبَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ مِن قَبْلُ وَلَيَحْلِفُنَّ إِنْ أَرَدْنَا إِلَّا الْحُسْنَىٰ وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ ﴿١٠٧﴾ لَا تَقُمْ فِيهِ أَبَدًا لَّمَسْجِدٌ أُسِّسَ عَلَى التَّقْوَىٰ مِنْ أَوَّلِ يَوْمٍ أَحَقُّ أَن تَقُومَ فِيهِ فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَن يَتَطَهَّرُوا وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِينَ ﴿١٠٨﴾ أَفَمَنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ عَلَىٰ تَقْوَىٰ مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانٍ خَيْرٌ أَم مَّنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ عَلَىٰ شَفَا جُرُفٍ هَارٍ فَانْهَارَ بِهِ فِي نَارِ جَهَنَّمَ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ﴿١٠٩﴾ لَا يَزَالُ بُنْيَانُهُمُ الَّذِي بَنَوْا رِيبَةً فِي قُلُوبِهِمْ إِلَّا أَن تَقَطَّعَ قُلُوبُهُمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿١١٠﴾﴾ (سورة توبه آیت ۱۰۷،۱۰۸،۱۰۹،۱۱۰)

**ترجمه** : اوځینې نور خلق دی چه یو جومات یې دضرر رسولو په غرض او دکفر دپاره ، او دمسلمانانو ترمینځه دجدایی راوستو په نیت یې جوړکړې دې اودهغه چا داستوګنې په خاطرچه دپخوا راهیسې دالله ﷻ او د هغه درسول ﷺ مخالفت کوی اودوی به درته قسمونه خوری،چه زمونږ غرض دښیګړې نه بغیر نور هیڅ نشته،اوالله ﷻ ګواه دې چه دوئ دروغ وائی.

ته په دغه جومات کښې هیچرې (مونځ ته) مه ودریږه.! البته دکوم جومات بنیادچه د اولې ورځې نه په تقوی ایښودې شوې دې هغه ددې قابل دې چه ته په کښې (مونځ ته) ودریږې، په هغې کښې داسې خلق دی چه پاکه استوګنه خوښوی، اوپاك اوسیدونکی خلق دالله ﷻ خوښ وی.

آیا چا چه دخپل عمارت بنیاد دالله ﷻ نه په ویره اودهغه درضامندی په خاطر ایښې دې هغه بهتر دې اوکه هغه څوك چه دخپل عمارت بنیاد یې دیو زوړند اوغورزیدونکی کمر په سر ایښې دې . او هغه عمارت دغه سرې خپل خان سره ددوزخ په اورکښې وغورزولواوالله ﷻ ظالمانو ته هدایت نه کوی.

کوم عمارت چه دوی جوړکړې دې دابه تول عمر ددوی په زړونو کښې دشك زړې وی. ترهغې چه ددوی زړونه (دجومات په غورزولو ) توټې توټې شی،اوالله ﷻ ښه پوهه اودحکمت خاوند دې

﴿مَا كَانَ لِلْمُشْرِكِينَ أَن يَعْمُرُوا مَسَاجِدَ اللَّهِ شَاهِدِينَ عَلَىٰ أَنفُسِهِم بِالْكُفْرِ أُولَٰئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ وَفِي النَّارِ هُمْ خَالِدُونَ ﴿١٧﴾ إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ وَلَمْ يَخْشَ إِلَّا اللَّهَ فَعَسَىٰ أُولَٰئِكَ أَن يَكُونُوا مِنَ الْمُهْتَدِينَ ﴿١٨﴾﴾ سورة توبه آیت ۱۸،۱۷)

**ترجمه** : دکافرانو خو بیخي دا حق نشته چه دالله ﷻ جوماتونه دې آباد کړي ، په داسې حال کښې چه دخپل کفر اقرار هم کوي، دا هغه خلق دي چه دکومو عملونه برباد شوې دي او په اورکښې دوی همیشه اوسیدلی دي.

بیشکه د الله پاك مسجدونه هغه څوك آبادوي چه هغوئ په الله او د آخرت په ورځې ایمان لري اومونځ قائموي اوزکاتونه ورکوي اوله الله پاك نه پرته له بل چا څخه نه ویریږي، نوزرده چه دغه خلك به هدایت موندونکي شي .

﴿ يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ خُذُواْ زِينَتَكُمۡ عِندَ كُلِّ مَسۡجِدٖ وَكُلُواْ وَٱشۡرَبُواْ وَلَا تُسۡرِفُوٓاْۚ إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلۡمُسۡرِفِينَ ﴿٣١﴾ ﴾

سورة اعراف آیت ۳۱

**ترجمه** : اې د آدم اولاده ! دهر عبادت په موقع باندې خپلې ښائسته جامې اغوندئ او حلال څیزونه خورئ او څښئ او اسراف مه کوئ، بیشکه الله ﷻ دحد نه تیریدونکي خلك نه خوښوي.

﴿ وَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّن مَّنَعَ مَسَٰجِدَ ٱللَّهِ أَن يُذۡكَرَ فِيهَا ٱسۡمُهُۥ وَسَعَىٰ فِي خَرَابِهَآۚ أُوْلَٰٓئِكَ مَا كَانَ لَهُمۡ أَن يَدۡخُلُوهَآ إِلَّا خَآئِفِينَۚ لَهُمۡ فِي ٱلدُّنۡيَا خِزۡيٞ وَلَهُمۡ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٞ ﴿١١٤﴾ ﴾

سورة بقرة آیت ۱۱۴

**ترجمه** : اودهغه چانه لوې ظالم بل څوك کیدې شي چه جوماتونه ددې خبرې نه بندوي چه په هغې کښې دالله ﷻ نوم واخستلې شي اودهغې دشاړولو او ورانولو کوشش کوي، د هغه خلقو دپاره خو مناسب دا وو چه دې جوماتونو ته په ویره ویره ورننوتلې ، (یاد ساتئ!) هغوئ دپاره په دنیا کښې خواري او رسوائي ده اوپه آخرت کښې دوئ ته ډیر لوې عذاب مقرر دې .

## دجوماتو آبادؤل اودهغې فضیلت

عَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ مَنْ بَنٰى مَسْجِدًا يُذْكَرُ اللهُ عَزَّوَجَلَّ فِيهِ بَنَى اللهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ . (نسائی صـ۱۱۲ ج۱، مسلم صـ۲۰۱ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عمروبن عبسه ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائي : چاچه جومات آباد کړو د دې دپاره چه په هغې کښې دالله ﷻ ذکر وشي، نو الله ﷻ به دهغه دپاره په جنت کښې کور جوړ کړي .

أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ أَحَبُّ الْبِلَادِ إِلَى اللهِ تَعَالٰى مَسَاجِدُهَا وَأَبْغَضُ الْبِلَادِ إِلَى اللهِ أَسْوَاقُهَا (مسلم صـ۲۳۶ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابو هریره ﷛ فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائی دالله ﷻ په نزد دټولو نه خوښ خایونه جوماتونه دی اوناخوښ خایونه بازارونه دی.

اَبِي اُمَامَةَ ﷛ قَالَ اِنَّ حَبْرًا مِنَ الْيَهُودِ سَأَلَ النَّبِيَّ ﷺ اَيُّ الْبِقَاعِ خَيْرٌ فَسَكَتَ عَنْهُ وَقَالَ اَسْكُتُ حَتّٰى يَجِيْئَ جِبْرِيْلُ فَسَكَتَ وَجَاءَ جِبْرِيْلُ ﷵ فَقَالَ مَا الْمَسْئُولُ عَنْهَا بِاَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ وَلٰكِنْ اَسْأَلُ رَبِّي تَبَارَكَ وَتَعَالٰى ثُمَّ قَالَ جِبْرِيْلُ يَا مُحَمَّدُ ﷺ اِنِّي دَنَوْتُ مِنَ اللّٰهِ دُنُوًّا مَا دَنَوْتُ مِنْهُ قَطُّ قَالَ وَكَيْفَ كَانَ جِبْرِيْلُ قَالَ وَكَانَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ سَبْعُوْنَ اَلْفَ حِجَابٍ مِنْ نُوْرٍ فَقَالَ شَرُّ الْبِقَاعِ اَسْوَاقُهَا وَخَيْرُ الْبِقَاعِ مَسَاجِدُهَا. (زجاجة المصابيح ص۲۰۶ ج۱ بحواله ابو یعلی وطبرانی وبزار وقریبا منه ابن حبان ص۵۵ ج۱، مستدرك حاکم ص۸۷ ج۳ و مسند احمد ص۸۱ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابو امامه ﷛ فرمائی چه د یهودو یو عالم دنبی کریم ﷺ نه پوښتنه وکړه چه کوم خای دټولو نه زیات افضل دی؟ رسول الله ﷺ خاموش شو او ارشاد یی وفرمائلو چه زه به ترهغې خاموش یم ترڅو چه جبریل امین ﷵ راشی. بیا جبریل ﷵ راغي نورسول الله ﷺ دهغه نه پوښتنه وکړه. جبریل ﷵ وفرمایل چه دچانه سوال وکړې شو هغه دسوال کونکی نه زیات نه پوهیږی، لیکن زه به دالله ﷻ په دربار کښې حاضر شم او سوال به وکړم، بیا به درته وه وایم. بیا(راغې) او وې فرمایل ایې محمد ! زه دالله ﷻ په دربار کښې دومره نزدې شوم چه کله هم دومره نه ؤوم نزدې شوې، په مینځ کښې اویازره دنور پردې وې، نو (دالله ﷻ دطرفنه) ارشاد وشوچه ډیر بد خایونه بازارونه دی او بهترین خایونه جوماتونه دی.

عُثْمَانَ ﷛ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ بَنٰى لِلّٰهِ مَسْجِدًا بَنَى اللّٰهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ (بخاری ص۶۴ ج۱، مسلم ص۲۰۱ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عثمان ﷛ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی : کوم سړی چه دالله د رضا دپاره جومات جوړ کړو، الله ﷻ به دهٔ دپاره په جنت کښې کور جوړ کړی.

اَبِي ذَرٍّ ﷛ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ اَيُّ مَسْجِدٍ وُضِعَ فِي الْاَرْضِ اَوَّلُ قَالَ الْمَسْجِدُ الْحَرَامُ قَالَ قُلْتُ ثُمَّ اَيٌّ قَالَ الْمَسْجِدُ الْاَقْصٰى قَالَ كَمْ بَيْنَهُمَا قَالَ اَرْبَعُوْنَ عَامًا ثُمَّ الْاَرْضُ لَكَ مَسْجِدٌ فَحَيْثُ مَا اَدْرَكَتْكَ الصَّلٰوةُ فَصَلِّ (مسلم ص۱۹۹ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابوذر ﷛ فرمائی چه ماعرض وکړو چه یارسول الله ﷺ ! کوم مسجد په زمکه باندې دټولونه اول جوړشوې دې، هغوی ﷺ وفرمایل : مسجدحرام، ماعرض وکړو بیا کوم مسجد، هغوی وفرمایل : مسجد اقصی ماعرض وکړو ددې دواړو دجوړیدو په مینځ کښې څومره وقفه وه، هغوی ﷺ وفرمایل څلویښت کاله، اوبیا ټوله زمکه ستاسو دپاره دجومات حکم کښې ده، کوم ځای چه هم دمونځ وخت راغې نو هلته یې کوئ

## دجومات طرفته تګ اوپه هغې کښې دناستې فضیلت

دجومات طرفته پیاده تلل ډیر فضیلت لري، ددې متعلق درسول الله ﷺ دا مبارك حدیث دې:

عن معاذ بن جبل ﷺ قال احتبس عنا رسول الله ﷺ ذات غداة عن صلوة الصبح حتى كدنا نترای عين الشمس فخرج سريعا فثوب بالصلوة فصلى رسول الله ﷺ وتجوز في صلوته فلما سلم دعا بصوته فقال لنا على مصافكم كما انتم ثم انفتل الينا ثم قال اما اني ساحدثكم ما حبسني عنكم الغداة اني قمت من الليل فتوضات وصليت ما قدر لي فنعست في صلوتي حتى استثقلت فاذا انا بربي تبارك وتعالى في احسن صورة فقال يا محمد قلت لبيك رب قال فيما يختصم الملا الاعلى قلت لا ادرى قالها ثلاثا قال فرايته وضع كفه بين كتفي حتى وجدت بردا انامله بين ثديي فتجلى لي كل شيء وعرفت فقال يا محمد قلت لبيك قال فيم يختصم الملا الاعلى فقلت في الكفارات قال وما هن قال مشي الاقدام الى الجماعات والجلوس في المساجد بعد الصلوة واسباغ الوضوء حين الكريهات قال ثم فيم قلت في الدرجات قال وما هن قال اطعام الطعام ولين الكلام والصلوة والناس نيام (وفي رواية المصابيح افشاء السلام) قال سل قلت اللهم اني اسئلك فعل الخيرات وترك المنكرات وحب المساكين وان تغفرلي وترحمني واذا اردت فتنة في قوم فتوفني غير مفتون واسئلك حبك وحب من يحبك وحب عمل يقربني الى حبك فقال رسول الله ﷺ انها حق فادرسوها ثم تعلموها.

(ترمذي ص۳٦٦، مسند احمد ص۲۴۳ ج۵)

**ترجمه**: حضرت معاذ بن جبل ﷺ فرمائی چه حضور ﷺ یوځل زمونږ نه د سحر په مانځه کښې وروستو شو تر دې پورې، نزدې وه چه نمر راختلې وای، بیا هغوی زر بهر راووتل تکبیر وشو، هغوی زر مونځ راکړو او د سلام نه وروسته یې په اوچت آواز وفرمائل: په خپل خپل ځای کینئ! بیا یې زمونږ طرف ته مخ راوګرزولو چه زه تاسو ته دا ښودل غواړم چه د سحر مونځ ته له وختی راتلو نه زه څه څیز منع کړم، ارشاد وشو چه ما د شپې اودس وکړو بیا چه څومره مونځ مقدر وو هغه مې وکړو بیا ماته مونځ کښې خوب راغې، بیا زه ویده شوم، ما په خوب کښې خپل رب په بهترین صورت کښې ولیدلو الله ﷻ وفرمائل: اې محمده! ما عرض وکړو لبیك اې زما ربه! ارشاد وشو: وه وایه چه ملاء اعلی په څه څیز کښې جګړه کوی؟ ما عرض وکړو چه زه نه پوهیږم، درې ځله داسې ارشاد وشو، بیا ما ولیدل چه الله ﷻ خپل د قدرت لاس زما د اوږو په مینځ کښې کینښودلو چه د هغې یخ والې ما په خپله سینه کښې ومونډلو، په ما باندې هر څیز روښانه شو او ما وپیژندل، (هغه خبرې د کومې چه الله پوښتنه کړې وه) وې فرمائل: اې محمده! ما عرض وکړو لبیك، ارشاد وشو: ملاء الاعلی په څه څیز کښې جګړه کوی؟ ماعرض وکړو چه په کفاراتو کښې،

وې فرمائل: هغه څه دی؟ ما عرض وکړو پیاده جماتونو ته تلل او په جماعت کښې شریکیدل او په جماعت کښې د جمعې نه وروستو ناسته او د تکلیفونو برداشت کولو سره کامله اودس کول، بیا یې وفرمائل: او په څه خبره کښې ملا ء الاعلی جګړه کوی، ماعرض وکړو په درجاتو کښې، ارشاد وشو هغه څه دی؟ ماعرض وکړو: حاجت مندو ته خوراك ورکول، په نرمی سره خبرې کول، او په داسې وخت کښې مونځ ادا کول چه ټول خلق ویده وی.

او د مصابیح په روایت کښې د سلام خورولو هم ذکر راغلې دې، بیا الله ﷻ وفرمائل: اې محمد! وغواړه! ماعرض وکړو (د دې دعا) چه: اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ فِعْلَ الْخَيْرَاتِ وَتَرْكَ الْمُنْكَرَاتِ وَحُبَّ الْمَسَاكِيْنِ وَاَنْ تَغْفِرَلِيْ وَتَرْحَمَنِيْ وَاِذَا اَرَدتَّ فِتْنَةً فِيْ قَوْمٍ فَتَوَفَّنِيْ غَيْرَ مَفْتُوْنٍ وَاَسْئَلُكَ حُبَّكَ وَحُبَّ مَنْ يُّحِبُّكَ وَحُبَّ عَمَلٍ يُّقَرِّبُنِيْ اِلٰى حُبِّكَ.

عن ابی هریرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ من غدا الی المسجد او راح اعد الله له نزله من الجنة کلما غدا او راح (بخاری، ص۹۱ ج۱ مسلم ص۲۳۵ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی: کوم سړې چه د سحر وخت کښې یا ماسپښین کښې د جومات طرف ته ځی، الله ﷻ د ده دپاره په جنت کښې میلمستیا تیاروی.

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اِذَا مَرَرْتُمْ بِرِيَاضِ الْجَنَّةِ فَارْتَعُوْا قِيْلَ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ وَمَا رِيَاضُ الْجَنَّةِ قَالَ الْمَسَاجِدُ قِيْلَ وَمَا الرَّتْعُ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ. (ترمذی ص ۵۰۰)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چه تاسو په ریاض الجنة (یعنې د جنت په باغونو) تیریږئ نو خوراك کوی، عرض وشوه: اې د الله رسوله! د جنت د باغونو نه څه مراد دی؟ ارشاد وشو جوماتونه، عرض وشو خوراك څه څیز دې؟ ارشاد وشو: ((سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر)) (یعنی دا کلمات وایئ)

عَنْ جَابِرٍ خَلَتِ الْبِقَاعُ حَوْلَ الْمَسْجِدِ فَاَرَادَ بَنُوْ سَلِمَةَ اَنْ يَّنْتَقِلُوْا اِلٰى قُرْبِ الْمَسْجِدِ فَبَلَغَ ذَالِكَ النَّبِيَّ ﷺ فَقَالَ لَهُمْ بَلَغَنِيْ اِنَّكُمْ تُرِيْدُوْنَ اَنْ تَنْتَقِلُوْا قُرْبَ الْمَسْجِدِ قَالُوْا نَعَمْ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ قَدْ اَرَدْنَا ذَالِكَ فَقَالَ يَابَنِيْ سَلِمَةَ دِيَارَكُمْ تُكْتَبْ اٰثَارُكُمْ دِيَارَكُمْ تُكْتَبْ اٰثَارُكُمْ (مسلم ص۲۳۵ ج۱)

**ترجمه**: حضرت جابر ﷺ فرمائی، چه د مسجد نبوی نه چاپیره څه کورونه خالی شول نو بنو سلمة هلته منتقل کیدل غوښتل، دا خبره نبی کریم ﷺ ته ورسیده، نو هغوی ﷺ دوی ته وفرمائل چه آیا تاسو جمات ته نزدې منتقل کیدل غواړئ؟ هغوی عرض وکړو آو! یا رسول الله! مونږ دا اراده

کړې ده ، رسول الله ﷺ وفرمائل خپل کورونه لازم ونیسئ ستاسو د قدمونو نقشونه لیکلې کیږي .

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ سَبْعَةٌ يُظِلُّهُمُ اللهُ فِيْ ظِلِّهِ يَوْمَ لَا ظِلَّ اِلَّا ظِلُّهُ (وَفِيْهِ) وَرَجُلٌ قَلْبُهُ مُعَلَّقٌ بِالْمَسْجِدِ اِذَا خَرَجَ مِنْهُ حَتّٰى يَعُوْدَ اِلَيْهِ. (بخاري ص۱۱ ج۱، مسلم ص۳۳۲ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابو هريره ﷺ فرمائي چه رسول الله ﷺ وفرمايل : اوه (۷) سړي هغه دي چه هغوی باندې به الله ﷻ خپل خاص سيورې وکړی په کومه ورځ چه به د ده د سيوری نه سيوا هيڅ سورې نه وی، په دوی کښې يو هغه سړی دې چه د هغه زړه د جومات سره تړلې شوې وی، کله چه دې له جمات نه وځی نو زر واپس راځی .

اَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ فَاِذَا صَلّٰى لَمْ تَزَلِ الْمَلٰئِكَةُ تُصَلِّيْ عَلَيْهِ مَادَامَ فِيْ مُصَلَّاهُ . اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَيْهِ اَللّٰهُمَّ ارْحَمْهُ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَهُ اَللّٰهُمَّ تُبْ عَلَيْهِ مَالَمْ يُؤْذِ فِيْهِ مَالَمْ يُحْدِثْ. (بخاري ص۹۰ ج۱، مسلم ص۲۳۴ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابوهريره ﷺ فرمائي چه درسول الله ﷺ ارشاد دې کله چه يو سړې مونځ کوی نو ترکومه پورې چه هغه دمونځ په ځای کښې وی، فرښتې دهغه دپاره دا دعا کوی «يا الله په ده درود او رحمت نازل کړې ، يا الله په هغه رحم وکړې، يا الله هغه ببښې ، يا الله دهغه توبه قبوله کړې» ترڅو چه هغه د ايذاء (تکليف) باعث جوړنشی (يعنی بې اودسه نشی)

عُثْمَانَ بْنَ مَظْعُوْنٍ قَالَ يَارَسُوْلَ اللهِ ﷺ اِئْذَنْ لَنَا فِي الْاِخْتِصَاءِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لَيْسَ مِنَّا مَنْ خَصٰى وَلَا اِخْتَصٰى اِنَّ خِصَاءَ اُمَّتِي الصِّيَامُ . فَقَالَ اِئْذَنْ لَنَا فِي السِّيَاحَةِ قَالَ اِنَّ سِيَاحَةَ اُمَّتِي الْجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ قَالَ اِئْذَنْ لَنَا فِي التَّرَهُّبِ فَقَالَ اِنَّ تَرَهُّبَ اُمَّتِي الْجُلُوْسُ فِي الْمَسَاجِدِ وَانْتِظَارُ الصَّلٰوةِ (شرح السنة ص۳۰۰ ج۲)

**ترجمه** : حضرت عثمان بن مظعون ﷺ عرض وکړو چه اې دالله رسوله ! مونږ ته اجازت راکړه چه مونږ ځانونه خصيان کړو (چه شهوت نه راځی) نورسول الله ﷺ وفرمايل چه چا ځان خصی کړويا يی خصی توب وکړو هغه زمونږ نه ندې ، زما د امت خصی توب دروژې نيول دی. بيا يی عرض وکړو چه اې د الله رسوله مونږ ته دسياحت اجازت راکړه ! نورسول الله ﷺ وفرمايل : زما د امت سياحت جهاد فی سبيل الله دې ، بيا يی عرض وکړو اې د الله رسوله ! د راهب جوړيدلو اجازت راکړه ! ارشاد يی وفرمايلو چه : زما د امت راهب جوړيدل په جوماتونو کښې ناسته ده او دمونځ انتظار کول دی .

اَبِيْ اُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ ثَلَاثَةٌ كُلُّهُمْ ضَامِنٌ عَلَى اللهِ رَجُلٌ خَرَجَ غَازِيًا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ فَهُوَ ضَامِنٌ عَلَى اللهِ حَتّٰى يَتَوَفَّاهُ فَيُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ اَوْيَرُدَّهُ بِمَا نَالَ مِنْ اَجْرٍ اَوْغَنِيْمَةٍ وَرَجُلٌ رَاحَ اِلَى الْمَسْجِدِ ضَامِنٌ عَلَى اللهِ وَدَخَلَ بَيْتَهُ بِسَلَامٍ فَهُوَ ضَامِنٌ عَلَى اللهِ (ابوداؤد ص۳۳۶ ج۱، مستدرک حاکم ص۷۳ ج۲) (اَيْ مُسَلِّمًا عَلٰى اَهْلِهِ اَوْسَالِمًا مِنَ الْفِتَنِ

أَوْطَالِبًا لِسَلَامَةٍ مِنَ الْفِتَنِ).

**ترجمه**: حضرت ابو امامه ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی: د دري قسمه سړیو ضمانت دالله ﷻ په ذمه دې: یو غازی چه دجهاد دپاره لاړشی، هغه دالله ﷻ په ضمانت کښې دې ترڅو چه الله ﷻ یې وفات کړی اوجنت کښې یې داخل کړی او یا یې دغنیمت او اجر سره خپل کور ته واپس کړی، دویم هغه سړې چه دجومات طرفته ځی هغه هم دالله ﷻ په ضمانت کښې دې، دریم هغه سړې چه کورته دسلام سره داخل شی، (یعنی کوروالا ته سلام کوی یا کور کښې دفتنو نه سلامتیا سره داخل شی).

بُرَيْدَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ بَشِّرِ الْمَشَّائِينَ فِي الظُّلَمِ إِلَى الْمَسَاجِدِ بِالنُّورِ التَّامِّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ (ابوداؤد ص۸۳ ج۱، ابن ماجه ص۵۶، مستدرک حاکم ص۲۱۲ ج۱) وفي رواية أُولٰئِكَ الْخَوَّاضُونَ فِي رَحْمَةِ اللهِ (ابن ماجه ص۵۶)

**ترجمه**: حضرت بریده ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: خوشخبری واوروئ هغه خلقو ته چه دشپې په تیاروکښې جوماتونو ته ځی چه ددوی سره به دقیامت په ورځ پوره نوروی

طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ ﷺ قَالَ خَرَجْنَا وَفْداً إِلَى النَّبِيِّ ﷺ فَبَايَعْنَاهُ وَصَلَّيْنَا مَعَهُ وَأَخْبَرْنَاهُ أَنَّ بِأَرْضِنَا بِيعَةً لَنَا فَاسْتَوْهَبْنَاهُ مِنْ فَضْلِ طَهُورِهِ فَدَعَا بِمَاءٍ فَتَوَضَّأَ وَتَمَضْمَضَ ثُمَّ صَبَّهُ فِي إِدَاوَةٍ وَأَمَرَنَا فَقَالَ اخْرُجُوا فَإِذَا أَتَيْتُمْ أَرْضَكُمْ فَاكْسِرُوا بِيعَتَكُمْ وَانْضَحُوا مَكَانَهَا بِهٰذَا الْمَاءِ وَاتَّخِذُوهَا مَسْجِداً قُلْنَا إِنَّ الْبَلَدَ بَعِيدٌ وَالْحَرَّ شَدِيدٌ وَالْمَاءَ يَنْشِفُ فَقَالَ مُدُّوهُ مِنَ الْمَاءِ فَإِنَّهُ لَا يَزِيدُهُ إِلَّا طِيباً فَخَرَجْنَا حَتّٰى قَدِمْنَا بَلَدَنَا فَكَسَرْنَا بِيعَتَنَا ثُمَّ نَضَحْنَا مَكَانَهَا وَاتَّخَذْنَاهَا مَسْجِداً فَنَادَيْنَا فِيهِ بِالْأَذَانِ قَالَ وَالرَّاهِبُ رَجُلٌ مِنْ طَيٍّ فَلَمَّا سَمِعَ الْأَذَانَ قَالَ دَعْوَةُ حَقٍّ ثُمَّ اسْتَقْبَلَ تَلْعَةً مِنْ تِلَاعِنَا فَلَمْ نَرَهُ بَعْدُ (نسائی ص۱۱۳ ج۱)

**ترجمه**: حضرت طلق بن علی ﷺ فرمائی چه: مونږ دخپلې علاقې نه ووتلو او د وفد په شکل کښې دنبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اودهغوی ﷺ په لاس باندې مو بیعت (داسلام) وکړو، او دهغوی سره مو مونځ وکړو، او مونږ رسول الله ﷺ ته عرض وکړو چه زمونږپه زمکه کښې زمونږ ګرجه (عبادتخانه) ده اومونږ دهغوی نه دهغوی د اودس پاتې شوې اوبه طلب کړې نوهغوی اوبه را وغوښتلې، اودس یې وکړه اومضمضه یې وکړه اوهغه اوبه یې په لوښی کښې واچولې اومونږ ته یې حکم وکړو چه تاسو اوس لاړ شئ چه کله تاسو خپلې زمکې ته ورسیږئ نوخپله ګرجه ونړویی، هلته دهغې په ځای باندې دا اوبه وشیندئ اوجومات جوړ کړئ، مونږ عرض وکړوچه زمونږ ښار ډیر لرې دې اوګرمی ډیره ده اودا اوبه خوبه وچې شی؟ هغوی ﷺ وفرمایل: په دې کښې نورې اوبه ګډې کړئ، ځکه چه دا به ددې په پاکیزګی کښې اضافه وکړی، پس مونږ ووتلو تردې چه مونږ خپل ښار ته ورسیدلو، مونږ خپله ګرجه ورانه کړه اوهغه ځای کښې مو هغه اوبه

وشیندلي اوپه هغه ځایي مو جومات جوړکړو اوپه هغې کښې مو اذان وکړو ،اوراهب هلته دقبیله طئ یو سړې ؤو، کله چه هغه اذان واوریدلونو وې ویل دعوت حق دې . بیا هغه خپل رُخ زمونږ دغونډو نه یو غونډئ طرفته کړو دهغې نه پس مونږ هغه ونه لیدلو.

## دجومات آداب

**مسئله** :- جومات کښې د داخلیدو په وخت رومبې ښئ پښه دا خلول پکار دی، او دبهر وتلو په وخت کښې رومبې چپه پښه ویستل سنت دی.

عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ ؓ اَنَّهٗ كَانَ يَقُوْلُ مِنَ السُّنَّةِ اِذَا دَخَلْتَ الْمَسْجِدَ اَنْ تَبْدَاَ بِرِجْلِكَ الْيُمْنٰى وَاِذَا خَرَجْتَ اَنْ تَبْدَاَ بِرِجْلِكَ الْيُسْرٰى (مستدرك حاكم ص۲۱۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت انس بن مالك نه روایت دې ،هغه فرمائي چه داخبره د سنتو څخه ده چه کله ته جومات ته دا خلیږې نو اول ښئ پښه داخله کړه اوچه کله دجومات نه بهر وځې نواول چپه پښه بهر کړه.

كَانَ ابْنُ عُمَرَ ؓ يَبْدَاُ بِرِجْلِهِ الْيُمْنٰى فَاِذَا خَرَجَ بَدَاَ بِرِجْلِهِ الْيُسْرٰى (بخاری ص۶۱ ج۱ التعلیقا)

**ترجمه** : حضرت ابن عمر ؓ به ښئ پښه اول داخلوله اوجومات نه چه به وتلو نو اول به یې چپه پښه بهر کوله.

اُسَيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اِذَا دَخَلَ اَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ فَلْيَقُلْ اَللّٰهُمَّ افْتَحْ لِيْ اَبْوَابَ رَحْمَتِكَ وَاِذَا خَرَجَ فَلْيَقُلْ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ (مسلم ص۲۴۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت اسید ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایلی : کله چه تاسو کښې څوك په جومات کښې دا خلیږی نو دا دعا به وه وایی : (اَللّٰهُمَّ افْتَحْ لِيْ اَبْوَابَ رَحْمَتِكَ) اوکله چه دجومات نه بهر وځي نودا دعا دې وکړی (اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ).

عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ ؓ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ اِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ الْعَظِيْمِ وَبِوَجْهِهِ الْكَرِيْمِ وَسُلْطَانِهِ الْقَدِيْمِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ قَالَ فَاِذَا قَالَ ذٰلِكَ قَالَ الشَّيْطٰنُ حُفِظَ مِنِّيْ سَائِرَ الْيَوْمِ (ابوداؤد ص۶۷ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص ؓ وایی چه چه رسول الله ﷺ به کله په جومات کښې دا خلیدلو نو دا دعا به یې کوله : (اَعُوْذُ بِاللّٰهِ الْعَظِيْمِ وَبِوَجْهِهِ الْكَرِيْمِ وَسُلْطَانِهِ الْقَدِيْمِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ) رسول الله ﷺ وفرمایل : کله چه څوك دا وه وایی نوشیطان دا وایی چه : دې توله ورځ

زمانه محفوظ شو.

اَبِي قَتَادَةَ ﷺ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ إِذَا دَخَلَ اَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ اَنْ يَجْلِسَ (بخاری صه۶۳ ج۱، مسلم صه۲۴۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابوقتاده ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چه تاسو کښې څوك جومات کښې داخلیږی نو د ناستې نه وړاندې دې دوه رکعته مونځ وکړی «دا تحیة المسجد مونځ دې» په شرط ددې چه وخت مکروه نه وی.

كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ ﷺ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ لَا يَقْدِمُ مِنْ سَفَرٍ إِلَّا نَهَارًا فِي الضُّحٰى فَإِذَا قَدِمَ بَدَأَ بِالْمَسْجِدِ فَصَلّٰى فِيْهِ رَكْعَتَيْنِ (بخاری صه۶۳ ج۱، مسلم صه۲۴۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت کعب بن مالك ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ به کله د سفر نه واپس راتلو نو د څاښت وخت کښې به راتلو نو د ټولو نه اول به جومات ته لاړو او دوه رکعته مونځ به یې وکړو.

جَابِرٍ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ اَكَلَ مِنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ قَالَ اَوَّلَ يَوْمٍ الثُّوْمَ ثُمَّ قَالَ الثُّوْمَ وَالْبَصَلَ وَالْكُرَّاثَ فَلَا يَقْرَبَنَّ فِي مَسَاجِدِنَا فَإِنَّ الْمَلٰئِكَةَ تَتَاَذّٰى مِمَّا تَتَاَذّٰى مِنْهُ الْإِنْسُ (نسائی صه۱۱۶ ج۱، مطبع نور محمد کراچی، مسلم صه۲۰۹ ج۱)

**ترجمه**: حضرت جابر ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: چاچه ددې بوټی نه خوراك وکړو په ړومبئ ورځ یې د وږې ذکروکړواوپه دویمه ورځ یې د هوږې، پیازو اوګندنې ذکر وکړو، چه چا دا وخوړلو هغه دې زمونږ مساجدو ته نزدې نه راځی ځکه چه فرښتې د هغه څیزنه تکلیف مومی دځه نه چه انسان ته تکلیف رسیږی.

اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ ﷺ قَالَ رَاٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ نُخَامَةً فِي قِبْلَةِ الْمَسْجِدِ فَغَضِبَ حَتّٰى اِحْمَرَّ وَجْهُهٗ فَقَامَتْ اِمْرَاَةٌ مِنَ الْاَنْصَارِ فَحَكَّتْهَا وَجَعَلَتْ مَكَانَهَا خُلُوْقًا فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَا اَحْسَنَ هٰذَا. (نسائی صه۱۱۹ ج۱)

**ترجمه**: حضرت انس بن مالك ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ د جومات د قبلې طرف دیوال باندې توکانې «بلغم» ولیدلونو ناراضه شو او مخ مبارك یې سور شو، د انصارو د خاندان یوه ښځه پاڅیدله او هغه یې صفا کړې او په هغه ځای باندې یې د «خلوق» خوشبو ولګوله. رسول الله ﷺ وفرمایل دا کار څومره ښه دې.

مَالِكٌ قَالَ بَنٰى عُمَرُ ﷺ رَحْبَةً فِي نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ تُسَمَّى الْبُطَيْحَاءَ وَقَالَ مَنْ كَانَ يُرِيْدُ اَنْ يَلْغَطَ اَوْ يُنْشِدَ شِعْرًا اَوْ يَرْفَعَ صَوْتَهٗ فَلْيَخْرُجْ اِلٰى هٰذِهِ الرَّحْبَةِ (مؤطا امام مالك صه۱۶۲)

**ترجمه**: حضرت امام مالك ﷺ فرمائی چه حضرت عمرفاروق ﷺ د مسجد سره خوا کښې یوه

چبوتره (جونګړه) جوړه کړې وه ، هغې ته به يې بطيحاء ويله او حضرت عمر ﷺ وفرمايل چه کوم سړې خبرې کوي يا شعرونه وايي يا خپل آواز اوچتول غواړي نو هغه دې دغې چبوترې ته ځي او په مسجد کښې دې دا نه کوي.

الْحَسَنُ مُرْسَلاً قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ يَكُونُ حَدِيثُهُمْ فِي مَسَاجِدِهِمْ فِي أَمْرِ دُنْيَاهُمْ فَلَا تُجَالِسُوهُمْ فَلَيْسَ لِلّٰهِ فِيهِمْ حَاجَةٌ (زجاجة المصابيح ص۲۱۳ ج۱ بحواله بيهقي في شعب الايمان)

**ترجمه**: حضرت حسن بصري رحمه الله نه روايت دې چه رسول الله ﷺ وفرمايل: په خلقو داسې زمانه را روانه ده چه ددوي د دنياوي معاملاتو خبرې اترې به په جوماتونو کښې وي، پس تاسو د داسې خلقو سره ناسته او ولاړه ختمه کړئ، الله ﷻ ته د دوي هيڅ ضرورت نشته.

السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ ﷺ قَالَ كُنْتُ نَائِمًا فِي الْمَسْجِدِ فَحَصَبَنِي رَجُلٌ فَنَظَرْتُ فَإِذَا هُوَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ ﷺ فَقَالَ اذْهَبْ فَأْتِنِي بِهَذَيْنِ فَجِئْتُهُ بِهِمَا فَقَالَ مِمَّنْ أَنْتُمَا أَوْ مِنْ أَيْنَ أَنْتُمَا قَالَا مِنْ أَهْلِ الطَّائِفِ قَالَ لَوْ كُنْتُمَا مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ لَأَوْجَعْتُكُمَا تَرْفَعَانِ أَصْوَاتَكُمَا فِي مَسْجِدِ رَسُولِ اللهِ ﷺ (بخاري ص۶۷)

**ترجمه**: حضرت سائب بن يزيد ﷺ فرمائي چه زه په جومات کښې ويده ووم، نو زه يو سړي په سنګريزي (واړه کاڼي) وه ويشتم، ما وکتل چه هغه عمرفاروق ﷺ ؤو، هغوي ﷺ وفرمايل: لاړشه اودا دوه کسان راوله، ما هغوي راوستل حضرت عمر ﷺ هغوي ته وفرمايل: تاسو څوک يئ او د کوم ځايي نه راغلي يئ، هغوي ويل: مونږ د طائف اوسيدونکي يو، حضرت عمر ﷺ وفرمايل که تاسو د مدينې اوسيدونکي واي نو ما به تاسو ته سزا درکړې وه، تاسو د رسول الله ﷺ په جومات کښې په تيز آواز خبرې کوئ.

أَنَسٍ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ الْبُزَاقُ فِي الْمَسْجِدِ خَطِيئَةٌ وَكَفَّارَتُهَا دَفْنُهَا (بخاري ص۵۹ ج۱، مسلم ص۲۰۷ ج۱)

**ترجمه**: حضرت انس ﷺ فرمائي چه رسول الله ﷺ وفرمايل: توکاڼې په جومات ګناه (صغيره) ده او ددې کفاره ددې صفاکول دي (کچيرې د مسجد زمکه دشګې وغيره نه وي او که نه وي نو پاکول يې پکار دي).

حديث الإمام ومنعه من الصلوة وفي آخره إنك آذيت الله ورسوله (ابوداؤد ص۶۹ ج۱)

**ترجمه**: «په کوم حديث کښې چه نبي کريم ﷺ يو امام د مونځ ورکولونه په دې وجه منع کړې ؤو چه د جومات په ديوال يې توکل کړي وو د هغې حديث په آخر کښې راغلي دي چه» : تا الله ﷻ او د هغه رسول ته تکليف رسولې دې.

أَبِي هُرَيْرَةَ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَنْ سَمِعَ رَجُلاً يَنْشُدُ ضَالَّةً فِي الْمَسْجِدِ فَلْيَقُلْ لَا رَدَّهَا اللهُ عَلَيْكَ فَإِنَّ الْمَسَاجِدَ لَمْ تُبْنَ لِهَذَا (مسلم ص۲۱۰ ج۱) وفي رواية دارمي والترمذي عنه اذا رايتم من يبيع او يبتاع في المسجد

فقولوا لااربح الله تجارتك (ترمذی ص۲۱۰، دارمی ص۲۶۶ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دي چه رسول الله ﷺ وفرمایل: چا چه واوریدل چه د وروك شوی څیز اعلان په جومات کښې کیږی نودهغې په جواب کښې دې ووایی چه الله ﷻ دې هغه څیزتاته واپس نه کړی، ځکه چه جوماتونه ددې مقصد دپاره نه دی جوړ شوي، او دسنن ترمذی او دارمی په روایت کښې راغلی دی چه کله تاسو ووینئ چه څوك په جومات کښې اخیستل اوخرڅول کوی نوتاسو ووایئ چه الله ﷻ دې درته په تجارت کښې برکت درنکړی.

حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ ﷺ قَالَ نَهٰى رَسُولُ اللهِ ﷺ اَنْ يُسْتَقَادَ فِي الْمَسْجِدِ وَاَنْ يُنْشَدَ فِيهِ الْاَشْعَارُ وَاَنْ تُقَامَ فِيهِ الْحُدُودُ (ابوداؤد ص۲۶۱ ج۱، فی المصابیح عن جابر ﷺ)

**ترجمه**: حکیم بن حزام نه روایت دې چه رسول الله ﷺ په جومات کښې دقصاص اخستلو، دشعر او اشعار دویلو اوحدودو قائمولو نه منع فرمایلې وه.

جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَنْ اَكَلَ مِنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ الْمُنْتِنَةِ فَلَا يَقْرَبَنَّ مَسْجِدَنَا فَاِنَّ الْمَلٰئِكَةَ تَتَاَذّٰى مِمَّا تَتَاَذّٰى مِنْهُ الْاِنْسُ (مسلم ص۲۰۹ ج۱، بخاری ص۱۱۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت جابر ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی چا چه ددې بدبودار بوټی (هوګې، پیاز وغیره) نه خوراك وکړو، نوهغه دې زمونږ جومات ته نه راځی ځکه چه فرشتې تکلیف مومی دهغه څیزنه د کوم نه چه انسانانو ته تکلیف رسیږی.

**مسئله**:- د هوګې اوپیاز په باره کښې رسول الله ﷺ فرمایلی دی چه: کچیرې یی خورئ نوپخه یی کړئ او بیا یی وخورئ.

اِنْ كُنْتُمْ لَابُدَّ اٰكِلِيْهَا فَاَمِيْتُوْهَا طَبْخًا (ابوداؤد ص۱۸۰ ج۲)

**ترجمه**: که خامخا یی خورئ نوبیا هغه پخه کړئ او وې خورئ، دې دپاره چه ددې بدبویی مړه او ختمه شی.

**مسئله**:- دپیاز او هوګې په شان چیلم، سګریټ، مولئ، نسوار، ګندهك، دخاوروتیل (تیل خاك)، اودهر بدبودار څیز همدا حکم دې. له همدې کبله سګریټ، نسوار وغیره استعمالونکو ته ضروری ده چه خوله ښه صفا کړی اوجومات ته دراتلونه وړاندې ښه مسواك ووهی.

اَبِي ذَرٍّ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ عُرِضَتْ عَلَيَّ اَعْمَالُ اُمَّتِي حَسَنُهَا وَسَيِّئُهَا فَوَجَدْتُ فِي مَحَاسِنِ اَعْمَالِهَا الْاَذٰى يُمَاطُ عَنِ الطَّرِيقِ وَوَجَدْتُ فِي مَسَاوِي اَعْمَالِهَا النُّخَاعَةَ تَكُونُ فِي الْمَسْجِدِ لَا تُدْفَنُ (مسلم ص۲۰۷ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابوذر ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: په ما ته زما دامت ښه او بد اعمال پیش کړې شول، نوما دهغوی په ښو اعمالو کښې دلارې نه د ضررناك څیز لرې کول

ومونډل، او په بدواعمالوکښې مې ولیدل چه هغوی لاړې په جومات کښې وه وینې اودفن (یا صفا) یې نه کړی.

**وَفِي رِوَايَةِ أَنَسٍ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ حَتَّى الْقَذَاةُ يُخْرِجُهَا الرَّجُلُ مِنَ الْمَسْجِدِ وَعُرِضَتْ عَلَيَّ ذُنُوبُ أُمَّتِي فَلَمْ أَرَ ذَنْبًا أَعْظَمَ مِنْ سُورَةٍ مِنَ الْقُرْآنِ أَوْ آيَةٍ أُوتِيَهَا رَجُلٌ ثُمَّ نَسِيَهَا (ترمذی ص۲۱۳،ابوداؤد ص۶۶ ج۱)**

**ترجمه**: دحضرت انس ﷺ په روایت کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی: زما د امت په ښو اعمالو کښې ما دا ومونډل چه څه معمولی بد څیز یوسړې دجومات نه بهر وباسی ، او زما دامت په ګناه هم ما ته پیش کړې شوه. نو ما ددې نه بله لویه ګناه ونه لیدله چه څوك دقرآن یو سورة یا آیت یاد کړی اوبیا دې هغه هیر کړی.

**وَاثِلَةَ بْنِ أَسْقَعَ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ جَنِّبُوا مَسَاجِدَكُمْ صِبْيَانَكُمْ وَمَجَانِينَكُمْ وَشِرَاءَكُمْ وَبَيْعَكُمْ وَخُصُومَاتِكُمْ وَرَفْعَ أَصْوَاتِكُمْ وَإِقَامَةَ حُدُودِكُمْ وَسَلَّ سُيُوفِكُمْ وَاتَّخِذُوا عَلَى أَبْوَابِهَا الْمَطَاهِرَ وَجَمِّرُوهَا فِي الْجُمَعِ (ابن ماجه ص۵۴،وجامع صغیر للسیوطی ص۱۵۱ ج۳،وجمع الفوائد ص۶۰ ج۱،بحواله طبرانی ومجمع الزوائد ص۲۶ ج۲،بحواله طبرانی فی الکبیر عن معاذ ﷺ وابی امامة ﷺ وواثلة ﷺ)**

**ترجمه**: حضرت واثله بن اسقع ﷺ فرمائی چه نبی کریم ﷺ وفرمایل: خپل ماشومان بچی دجوماتونو نه لرې وساتئ اوهمدارنګه لیونولره ، اواخستلو خرڅولو او جنګ جګړو ، اوآوازونو اوچتولو لره، اوحدودو قائمولو، اوتورې دتیکونه ویستلو (نه په جوماتونو کښې ځان وساتیی) او دجوماتونو د دروازونه بهر دپاکیدوځایونه جوړکړئ، اوجمعه کښې هغې لره خوشبودار جوړ کړئ

**مسئله**:- په جومات کښې دعود اونورو خوشبویانولوګې کول (یا لګول) سنت دی، دصحابه کرامو دا دستوراو عادت وو، حضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه روایت دې چه حضرت عمر فاروق ﷺ به دجمعې په ورځ جومات ته دخوشبوئ لوګې ورکولو. **(مصنف ابن ابی شیبه ص۲۶۳ ج۱)**

**مسئله**:- سپږه یاکټمل په جومات کښې وژل مکروهه دی.

**مسئله**:- دجومات نه خټه ،چونه، خښته وغیر ~~ط~~غستل مکروه دی.

**مسئله**:- دشپې رومبئ دریمې حصه کښې چراغ یا بلب وغیره لګول درست دی، ددې نه بعد که د محلې د خلقو ، یا دمسجد دکمیټیئ اجازت وی نو جائزدی اوکه نه نو دخپلې رڼا انتظام دې هر سړې په خپله وکړی. **(فتاوی قاضیخان ص۳۳ مطبع نولکشور)**

**مسئله**:- مسجد کښې دنیاوی خبرې کول نیکیانو او ښو عملونو لره داسې سوزی ، لکه څنګه چه اور وچ لرګی سوزی.

## دمسجد گلکاري اونقش اونگار

عَائِشَةَ قَالَتْ صَلَّی رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فِی خَمِیْصَةٍ لَهَا اَعْلَامٌ فَنَظَرَ اِلٰی اَعْلَامِهَا نَظْرَةً فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ اذْهَبُوْا بِخَمِیْصَتِیْ اِلٰی اَبِیْ جَهْمٍ وَأْتُوْنِیْ بِاَنْبِجَانِیَّةِ اَبِیْ جَهْمٍ فَاِنَّهَا اَلْهَتْنِیْ آنِفًا عَنْ صَلٰوتِیْ (بخاری ص۵۳ ج۱، مسلم ص۲۰۸ ج۱) وفی البخاری قَالَ کُنْتُ اَنْظُرُ اِلٰی عَلَمِهَا وَاَنَا فِی الصَّلٰوةِ فَاَخَافُ اَنْ یَفْتِنَنِیْ.

**ترجمه**: حضرت عائشه فرمائی چه رسول الله ﷺ په یوکمبل کښې مونځ وکړوچه په هغې کښې نقش اونگار جوړشوي ؤو، هغوی ﷺ ددې نقش اونگار ته وکتل، کله چه دمونځ نه فارغ شو، نووې فرمایل: زما دا کمبل ابوجهم ته یوسه، اودهغه ساده کمبل ماته راوړه، ځکه چه دې زه اوس په مونځ کښې مشغول کړم، او د بخاری په روایت کښې داسی راغلی دی چه ددې نشانات به مې لیدل اوپه مونځ کښې راته دا ویره وه چه ما په فتنه کښې ونه غورزوی.

اَنَسٍ ؓ قَالَ کَانَ قِرَامٌ لِعَائِشَةَ ؓ سَتَرَتْ بِهٖ جَانِبَ بَیْتِهَا فَقَالَ لَهَا النَّبِیُّ ﷺ اَمِیْطِیْ عَنَّا قِرَامَكِ هٰذَا فَاِنَّهٗ لَایَزَالُ تَصَاوِیْرُهٗ تَعْرِضُ لِیْ فِیْ صَلٰوتِیْ (بخاری ص۵۳ ج۱)

**ترجمه**: حضرت انس ؓ فرمائی چه دحضرت عائشي ؓ یو باریکه پرده وه، چه هغه یې دخپل کور په یوطرف راښکته کړې وه، حضور ﷺ وفرمایل: زمونږ د نظر نه دا خپله نری پرده لرې کړه، ځکه چه ددې تصویرونه همیشه زمامخکښې په مونځ کښې راوړاندې کیږی.

عَنْ اَنَسٍ ؓ اَنَّ النَّبِیَّ ﷺ قَالَ مِنْ اَشْرَاطِ السَّاعَةِ اَنْ یَتَبَاهَی النَّاسُ فِی الْمَسَاجِدِ (نسائی ص۱۱۲ ج۱، ابوداؤد ص۶۵ ج۱، ابن ماجه ص۵۴، صحیح ابن حبان ص۱۰۴ ج۳)

**ترجمه**: حضرت انس ؓ فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: دقیامت د نښونه دا هم دی چه خلق به دجوماتونو په تعمیر کښې فخر کوی اودیو بل نه به وړاندې کیږی.

**مسئله**:- دجومات چنده اوجومات ته وقف مال به دجومات په بنیادی او اساسی ضرورتونو کښې استعمالولې شی، داسې قسمه نقش اونگار باندې خرچ کول جائز نه دی، دخپل ذاتی مال نه یا دچندې ورکونکو په رضا باندې بیا جائز دی. (بحر الرائق ص۳۷ ج۲)

**مسئله**:- دجومات د قبلې طرف په دیوال باندې نقش اونگاردهر قسمه مال نه مکروه دې خواه دچندې مال وی یا ذاتی، همدارنگه دجومات په قبلې طرف دیوال باندې کتبه «داسې تخته یا بل څیز چه په هغې لکل شوی وی» لگول یا څه خط لیکل مکروه دی. (بحر الرائق ص۳۷ ج۲)

عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ ؓ مَرْفُوْعًا مَاسَاءَ عَمَلُ قَوْمٍ قَطُّ اِلَّا زَخْرَفُوْا مَسَاجِدَهُمْ (ابن ماجه ص۵۴)

**ترجمه**: حضرت عمر بن الخطاب ؓ روایت کوی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: کله هم چه دیو قوم

عمل بد شي نو هغوی به خپل جومات لره مزین کړي (نقش اونګار به پکښې شروع کړي)

اِبْنِ عَبَّاسٍ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَا اُمِرْتُ بِتَشْيِيْدِ الْمَسَاجِدِ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ ﷺ لَتُزَخْرِفُنَّهَا كَمَا زَخْرَفَتِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصَارٰى (ابوداؤد ص۶۵ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: ماته حکم نه دې کړې شوې دجوماتونو دنقش اونګار کولو، حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمائی چه تاسو هم جوماتونه داسې ملمع اومزین کړل لکه څنګه چه یهودو اونصاراؤ کړې دی

## هغه ځایونه چرته چه مونځ کول ممنوع دی

عَنْ اَبِىْ سَعِيْدِ الْخُدْرِىِّ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَلْاَرْضُ كُلُّهَا مَسْجِدٌ اِلَّا الْمَقْبَرَةَ وَالْحَمَّامَ (ابوداؤد ص۷۰ ج۱، ترمذی ص۴۳)

**ترجمه**: حضرت ابوسعید خدری ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: زمکه دجومات په حکم کښې ده ماسوا دمقبرې اودحمام نه، (یعنی ټوله زمکه دجومات په حکم کښې ده هر ځای مونځ کیږی سیوا دمقبرې نه چه هلته مونځ جائزنه دې اوماسوا دحمام نه ځکه چه په مقبره کښې دشرک اندیښنه وی، اوحمام کښې دنجاست له کبله نه مونځ روا نه دې. څه مقامات نور هم داسې شته)

اِبْنِ عُمَرَ ﷺ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَنْ يُّصَلّٰى فِىْ سَبْعَةِ مَوَاطِنَ الْمَزْبَلَةِ وَالْمَجْزَرَةِ وَالْمَقْبَرَةِ وَقَارِعَةِ الطَّرِيْقِ وَفِى الْحَمَّامِ وَفِىْ مَعَاطِنِ الْاِبِلِ وَفَوْقَ ظَهْرِ بَيْتِ اللهِ (ترمذی ص۴۴، ابن ماجه ص۵۴)

**ترجمه**: حضرت ابن عمر ﷺ فرمائی چه نبی کریم ﷺ په اوه ځایونو کښې مونځ کول منع فرمایلې دی، دکبارړ (« فاللو ځیزونو لکه ګندګی .....») وغیره دغورزولو په ځایی کښې، په قصاب خانه کښې، په قبرستان کښې او دلارې په مینځ کښې اوپه حمام کښې، او د داوښانو دتړلو په ځای کښې، او دبیت الله شریف دپاسه

## اذان

داذان معنی خبر ورکول دی. لیکن په شریعت کښې دپینځومونځونواودجمعې دمونځ دپاره په مخصوصو الفاظوسره اعلان کولو ته اذان وائی، دالله ﷻ ارشاد دې:

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُوا۟ دِينَكُمْ هُزُوًا وَلَعِبًا مِّنَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ مِن قَبْلِكُمْ وَٱلْكُفَّارَ أَوْلِيَآءَ ۚ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٥٧﴾ وَإِذَا نَادَيْتُمْ إِلَى ٱلصَّلَوٰةِ ٱتَّخَذُوهَا هُزُوًا وَلَعِبًا ۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُونَ ﴿٥٨﴾﴾

(سورة مائدہ آیت: ۵۸،۵۷)

**ترجمه** : اې مؤمنانو ! هغه خلقوسره دوستی مه ساتئ چه ستاسو په دین پورې توقې اومسخرې کوی چه له تاسونه وړاندې تیر شوی دی که هغه اهل کتاب دی اوکه کافران دی، اودالله ﷻ نه ویره کوئ که په رښتیا مؤمنان یاستئ او هرکله چه تاسو مونځ دپاره رابلل کیږئ نو دا خلق دا لوبې اوتوقې گڼی، ددې وجه دا ده چه دا خلق عقل نه لری.

په اذان پورې چه به کوم سړی استهزاء کوله، دهغه واقعه په تفسیرونو او روایاتو کښې موجوده ده، حضرت مولانا شبیراحمدعثمانی رحمه الله لیکلی دی چه بعضې روایتونو کښې راغلی دی چه په مدینه کښې یو نصرانی وو کله به چه هغه (اشهدان محمدارسول الله) واوریدلونو ویل به یې چه (قَدْحَرَقَ الْكَاذِبُ) (یعنی دروغژن وسوزیدلو او یا به وسوزی) د ده نیت ددې الفاظونه هر څه چه وو لیکن دا خبره بالکل دده له حال سره مطابق شوه ځکه چه هغه خبیث دروغجن ووا و د اسلام په عروج اوترقی لیدلو سره دحسد په هور کښې سوزیدلو، اتفاقا یوه شپه چیرته یو هلك دده کورته هور راوړو او د ده اهل اوعیال ویده وو لږه سکروټه ناګهانه د هغه دلاس نه پریوتله، نو په هغې سره دده ټول کور او د کور خلق وسوزیدل او همدارنګه الله ﷻ وښودله چه دروغژن خلق ددوزخ د هور نه وړاندې څنګه سوزی، (تفسیرعثمانی ص۲۰۶ ج۱)

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٩﴾﴾ (سورة جمعة پاره۲۸ آیت۹)

**ترجمه** : اې مؤمنانو ! هرکله چه دجمعې په ورځ دمونځ دپاره اذان اوکړې شی نو د الله ﷻ د یادولو دپاره روان شئ او اخیستل اوخرخول پریږدئ دا ستاسودپاره غوره ده، که تاسو پوهیږئ.

## د اذان فضائل :-

**اِبْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ اَذَّنَ سَبْعَ سِنِيْنَ مُحْتَسِباً كُتِبَ لَهٗ بَرَاءَةٌ مِّنَ النَّارِ (ترمذی ص۵۰ ابن ماجه ص۵۳)**

**ترجمه** : حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل : چا چه تر اوه کالو پورې اذان وکړو دالله د رضا او د ثواب او اجر دپاره نو دده دپاره به د دوزخ نه براءة ولیکلې شی.

**اَبِیْ سَعِيْدِ الْخُدْرِیْ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لَا يَسْمَعُ مُدٰى صَوْتِ الْمُؤَذِّنِ جِنٌّ وَّلَا اِنْسٌ وَّلَا شَیْءٌ اِلَّا شَهِدَ لَهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ (بخاری ص۸۴ ج۱)**

**ترجمه**: حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل : دمؤذن آواز چه کوم ځای پورې څه جن یا انسان، یا څه بل خیز آوری نودهغه (مؤذن) دپاره به دقیامت په ورځ ګواهی کوی

عَنْ مُعَاوِيَةَ رضي الله عنه قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ اَلْمُؤَذِّنُوْنَ اَطْوَلُ النَّاسِ اَعْنَاقًا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ (مسلم ص۱۶۷ ج۱)

**ترجمه**: حضرت معاویه رضي الله عنه فرمائی چه ماد رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی چه آزان کوونکی به دقیامت په ورځ د اوچتو څټونو والا وی. (یعنی خاص نورانیت سره به ښکاره وی).

اِبْنِ عُمَرَ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ ثَلَاثَةٌ عَلٰى كُثْبَانِ الْمِسْكِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَبْدٌ اَدّٰى حَقَّ اللهِ وَحَقَّ مَوَالِيْهِ وَرَجُلٌ اَمَّ قَوْمًا وَهُمْ بِهٖ رَاضُوْنَ وَرَجُلٌ يُنَادِيْ بِالصَّلَوَاتِ الْخَمْسَةِ كُلَّ يَوْمٍ وَّلَيْلَةٍ (ترمذی ص۲۹۶)

**ترجمه**: حضرت ابن عمر رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: چه درې قسمه خلق به دقیامت په ورځ دمشکو په غونډو باندې وی، یو هغه غلام چه دالله ﷻ حق ادا کوی اودخپلو مالکانو حق هم ادا کوی، دویم هغه سړې چه دچا امامت کوی اوهغوی ترې خوشحاله وی، دریم هغه سړې چه پینځه وخته مونځ دپاره هره ورځ اذان کوی.

عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَعْجَبُ رَبُّكَ مِنْ رَاعِيْ غَنَمٍ فِيْ رَاْسِ شَظِيَّةٍ لِلْجَبَلِ يُؤَذِّنُ بِالصَّلٰوةِ وَيُصَلِّيْ فَيَقُوْلُ اللهُ ﷻ اُنْظُرُوْا اِلٰى عَبْدِيْ هٰذَا يُؤَذِّنُ وَيُقِيْمُ الصَّلٰوةَ يَخَافُ مِنِّيْ قَدْ غَفَرْتُ لِعَبْدِيْ وَاَدْخَلْتُهُ الْجَنَّةَ

(نسائی ص۱۰۸ ج۱، ابوداؤد ص۱۸۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: الله ﷻ په ډیر خوښ نظر سره ګوری دهغه شپونکی طرفته چه دغرونو په یوه غونډۍ چیلیې څروی، او اذان وکړی اومونځ کوی، الله ﷻ فرمائی: زما بنده ته وګوره! اذان یې وکړواو مونځ کوی، هغه زمانه ویریږی، ما هغه بښلي دې اوجنت ته به یې داخلوم.

عَنْ اَنَسٍ رضي الله عنه كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يُغِيْرُ اِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ وَكَانَ يَسْتَمِعُ الْاَذَانَ فَاِنْ سَمِعَ اَذَانًا اَمْسَكَ وَاِلَّا اَغَارَ فَسَمِعَ رَجُلًا يَقُوْلُ اَللهُ اَكْبَرُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ عَلَى الْفِطْرَةِ ثُمَّ قَالَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ خَرَجْتَ مِنَ النَّارِ فَنَظَرُوْا اِلَيْهِ فَاِذَا هُوَ رَاعِيْ مِعْزًى (مسلم ص۱۶۶ ج۱)

**ترجمه**: حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ دجنګ په وخت دشمن باندې حمله کوله دسحر دختلو نه وروسته او هغوی به منتظر وو، که د اذان آواز به یې واوریدلو نوحملې کولونه په بند شو، اوکه نه نو حمله به یې کوله، نوهغوی له یو سړی نه واوریده چه هغه «الله اکبر» ویلو، هغوی ﷺ وفرمایل: په فطرت سلیمه باندې دې، بیا هغه «اشهد ان لا اله الاالله» وویل نو هغوی ﷺ وفرمایل: ته د دوزخ د هورنه وه وتلې، نوخلقو وکتل چه هغه چیلی څروونکې (شپون) وو.

اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوةِ اَدْبَرَ الشَّيْطٰنُ لَهٗ ضُرَاطٌ حَتّٰى لَا يَسْمَعَ التَّاْذِيْنَ فَاِذَا قُضِيَ النِّدَاءُ اَقْبَلَ حَتّٰى اِذَا ثُوِّبَ بِالصَّلٰوةِ اَدْبَرَ حَتّٰى اِذَا قُضِيَ التَّثْوِيْبُ اَقْبَلَ حَتّٰى يَخْطُرَ بَيْنَ الْمَرْءِ وَنَفْسِهٖ يَقُوْلُ اُذْكُرْ كَذَا

اُذْکُرْ کَذَا لِمَا لَمْ یَکُنْ یَذْکُرُ حَتّٰی یَظَلَّ الرَّجُلُ لَا یَدْرِیْ کَمْ صَلّٰی . (بخاری ص۸۵ ج۱، مسلم ص۱۶۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابوهریره ﷺ فرمائي چه رسول الله ﷺ وفرمایل: څه وخت چه دمونځ دپاره اذان کولې شی، نوشیطان شا کړی باد ترینه وخی اوتښتی، دومره لرې ځی چه اذان ورته نه رسیږی، بیا چه کله اذان ختم شی نوبیا راځی کله چه اقامت کیږی نوبیا دغه رنګبه تښتی چه کله هغه ختم شی نوبیا راځی تردې چه دسړی په زړه کښې خیالات او وسوسې اچوی، چه فلانې څیز یاد کړه، فلانئ خبره یاده کړه، تردې چه مونځ ګزار په شك کښې واقع شی چه څو رکعته یې کړی دی.

اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اَلْمُؤَذِّنُ یُغْفَرُ لَهٗ مَدٰی صَوْتِهٖ وَیَشْهَدُ لَهٗ کُلُّ رَطْبٍ وَّیَابِسٍ (مسند احمد ص۲۶۶ ج۲، ابوداؤد ص۷۶ ج۱، ابن ماجه ص۵۳، نسائی ص۱۰۶ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابوهریره ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: دمؤذن دپاره دهغه د آواز درسیدو ترځای پورې چه څومره لامده او وچ څیزونه وی هغه ټول معافی غواړی.

رسول الله د امامانو او مؤذنینو دپاره خصوصی دعا فرمایلې ده:

اَبِیْ هُرَیْرَةَ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اَلْاِمَامُ ضَامِنٌ وَالْمُؤَذِّنُ مُؤْتَمَنٌ اَللّٰهُمَّ اَرْشِدِ الْاَئِمَّةَ وَاغْفِرْ لِلْمُؤَذِّنِیْنَ (مسند احمد ص۲۳۲ ج۲، ابوداؤد ص۷۷ ج۱، ترمذی ص۵۰ ج۱، مسند شافعی ملحقه کتاب الامام ص۳۴۵ ج۸)

**ترجمه**: حضرت ابوهریره ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: امام ضامن وی (دخپلو مقتدیانو دمونځ ضامن وی اود دوی دمونځ صحیح والې دامام دمونځ په صحیح والی پورې موقوف وی) اوپه مؤذن باندې د امانت دار ګومان کولې شی (بیا هغوی ﷺ دعا وفرمایله) یا الله ﷻ امامانو ته هدایت وکړې او دمؤذنینو غلطۍ معاف کړې.

عَنْ جَابِرٍ ﷺ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ یَقُوْلُ اِنَّ الشَّیْطَانَ اِذَا سَمِعَ النِّدَاءَ بِالصَّلٰوةِ ذَهَبَ حَتّٰی یَکُوْنَ مَکَانَ الرَّوْحَاءِ قَالَ الرَّاوِیْ وَالرَّوْحَاءُ مِنَ الْمَدِیْنَةِ سِتَّةٌ وَّثَلَاثِیْنَ مِیْلاً (مسلم ص۱۶۷ ج۱)

**ترجمه**: حضرت جابر ﷺ فرمائی چه مادرسول الله ﷺ نه آوریدلی دی هغوی ﷺ وفرمایل: چه شیطان کله چه اذان آواز واوزی نومنډې وهی تردې چه دومره لرې لاړشي لکه مدینې نه چه روحاء (مقام) څومره لرې دې، چه هغه شپږ دیرش میله لرې دې.

## د اذان دلفظ ذکر په قرآن کښې:-

﴿وَاَذَانٌ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖٓ اِلَی النَّاسِ یَوْمَ الْحَجِّ الْاَکْبَرِ اَنَّ اللّٰهَ بَرِیْٓءٌ مِّنَ الْمُشْرِکِیْنَ وَرَسُوْلُهٗ﴾

**ترجمه**: او دالله ﷻ او دده درسول ﷺ دطرفنه په خلقو کښې دحج اکبر په ورځ اعلان وکړه چه الله ﷻ او دده رسول دمشرکانو نه بیزاره دې.

## د اذان مشروعیت او حکمت :-

په اذان کښې د اسلام یو خاص شان ظاهریږي (من اعظم شعار الله) لهذا ددې ډیر تاکید دې ، په پاک صاف اوچت مقام او ځای ودریدلو سره د الله ﷻ لوئیي او یووالې ، د رسول الله ﷺ د رسالت آواز کونکې په اوچت آواز خلق د عبادت او د فلاح طرفته بلل دی نو آیا ددې نه به هم لازیات بل څیز ښه او قابل د عزت او احترام او موجب د عزت کیدې شي؟

(وَمَنْ اَحْسَنُ قَوْلاً مِّمَّنْ دَعَا اِلَى اللهِ وَعَمِلَ صَالِحًا وَّقَالَ اِنَّنِيْ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ) . (حم السجدة آیت ۳۳)

**ترجمه** : او د خبرې په اعتبار سره دهغه سړي نه ښه خبره دچا کیدې شي چه خلقو له د الله ﷻ طرفته رابلي او خپله نیک کار کوي، او دا وايي چه زه د الله ﷻ د فرمانبردارو نه یم.

ددې سره توقې مسخرې اوتحقیر اوتذلیل کول دېې عقلي اوکج فهمیي نه سیوا نور څه کیدې شي؟ .امام ولي الله رحمه الله فرمائي :

وَاقْتَضَتِ الْحِكْمَةُ الْاِلٰهِيَّةُ اَنْ لَّا يَكُوْنَ الْاَذَانُ صِرْفَ اِعْلَامٍ وَّتَنْبِيْهٍ بَلْ يُضَمُّ مَعَ ذٰلِكَ اَنْ يَّكُوْنَ مِنْ شَعَائِرِ الدِّيْنِ بِحَيْثُ يَكُوْنُ النِّدَاءُ بِهٖ عَلٰى رُؤُوْسِ الْخَامِلِ وَالتَّنْبِيْهِ تَنْوِيْهًا بِالدِّيْنِ وَيَكُوْنُ قُبُوْلُهٗ مِنَ الْقَوْمِ اٰيَةَ انْقِيَادِهِمْ لِدِيْنِ اللهِ .فَوَجَبَ اَنْ يَّكُوْنَ مُرَكَّبًا مِّنْ ذِكْرِ اللهِ وَمِنَ الشَّهَادَتَيْنِ وَالدَّعْوَةِ اِلَى الصَّلٰوةِ لِيَكُوْنَ مُصَرِّحًا بِمَا اُرِيْدَ بِهٖ.

(حجة الله البالغة ص۱۱۱ ج۱)

**ترجمه** : حکمت الهي د دې خبرې تقاضا کوي چه اذان دې صرف اعلان نه بلکه ددې سره دې دا خبره هم وي چه دا دې ددین د شعائرو نه وي، په داسې شان چه دا اذان دهر سړي دپاره که گمنام وي اوکه ذی شان وي، دهر یو په وړاندې دې دا اذان ددین تعظیم وي ،اوخلقو له ددې قبلول د مطیع اوتابعدار کیدلو نښه ده ، پس ضروري ده چه اذان به مرکب وي د ذکرالله او شهادتینو نه (دتوحید اورسالت له گواهي نه) اود مونځ طرفته ددعوت نه، ځکه چه په دې کښې دهغې خبرې تصریح وي چه په دې سره دڅه اراده کړې شوې ده.

اسلام د عبادت د اعلان دپاره داسې طریقه راویستې ده، چه په خپله یو عبادت دې، په نورو مذاهبو کښې چه که ضرورت شي (پنځه وخته څه چه روزانه هم نه بلکه په هفته کښې یوځل) نو دټلې (زنگ، دټنګارۍ او غړولونه کار اخلي، لیکن په اذان کښې نه ټلې شته او نه جرس، نه ناقوس،نه باجه،نه سندره،نه قومي نغمه، نه ملي ترانه ،نه سیټي ،او نه ښکر شته ،بلکه صرف دالله ﷻ دحکومت او لویي اود الله ﷻ دتوحید اودحضرت محمد رسول الله ﷺ د رسالت د اقرار سره خلق مونځ ته رابلل دي.

امام ولي الله رحمه الله فرمائي : لما علمت الصحابة ان الجماعة مطلوبة مؤكدة ولا تيسر الاجتماع في زمان

واحد ومکان واحد بدون اعلان وتنبیه تکلموا فیما یحصل به الاعلام فذکروا النار فردها رسول الله ﷺ لمشابهة المجوس وذکروا القرن فرده ﷺ لمشابهة الیهود وذکروا الناقوس فرده لمشابهة النصاری فرجعوا من غیر تعیین فاری عبدالله بن زید الاذان والاقامة فی منامه (حجة الله البالغة ص۱۹۰ ج۱ مطبوعه سلفیه لاهور)

**ترجمه**: کله چه صحابه کرامو ؓ دا خبره معلومه کړه ، چه جماعت په دومره موکدې طریقې سره مطلوب دې نو په یو مکان او په یو وقت کښې بغیر د اعلان او د خبرداری نه دا ممکن نه وو، نو هغوی ؓ په خپلو کښې مشوره وکړه چه څه داسې صورت اختیار کړو چه په هغې سره خلقو ته اطلاع کیږی ، نو هغوی د هور بلولو اراده وکړه، نو حضور ﷺ د مجوسیانو سره د تشبیه له کبله هغه رد کړه ، بیا هغوی د هارن یعنې بیګل وهلو ذکر وکړو، نو حضور ﷺ د یهودو سره د مشابهت له کبله هغه رد کړو ، بیا هغوی ؓ د ناقوس وهلو اراده وکړه، نو حضور ﷺ د انصارو د مشابهت له کبله هغه رد کړو، نو صحابه کرام ؓ بغیر د څه کار متعین کولو نه خپلو کورونو ته واپس شول ، په دې وخت کښې حضرت عبد الله بن زید ؓ ته په خوب کښې د اذان او د اقامت طریقه وښودلې شوه نو حضور ﷺ د هغې تصدیق وکړو .

داحکامو او مصالحو دپاره په شرع کښې د اجتهاد دخل وی، او امام شاه ولی الله فرمائی :

(ان مخالفة اقوام تمادوا فی ضلالتهم فیما یکون من شعائر الله مطلوب) (حجة الله البالغه ص ۱۹۱ ج۱)

**ترجمه** : د هغه خلقو مخالفت کول چه په خپله ګمراهی کښې ژور تللی دی، په هغه خبرو کښې چه په شعائرو د دین کښې دی، د هغوی په (جلوس ، ماتم ، تعزیت ، وغیره ) کښې مخالفت مطلوب دې ، ځکه چه حضور ﷺ د یهودو او نصاریٰ د دینی شعائرو په سلسله کښې دهغوی د مخالفت حکم کړې دې ، دغه شان نن صبا د اهل شرك ، او رافضیان او اهل بدعت وغیره په جلوس او مذهبی ماتم ، تعزیت او سرتور سر ژړا وغیره کښې مخالفت ضروری دې .

وان غیر النبی ﷺ قد یطلع بالمنام اوالنفث فی الروع علی مراد الحق لکن لا یکلف الناس به ولا تنقطع الشبهة حتی یقرره النبی ﷺ (حجة الله البالغة ص ۱۹۱ ج۱)

**ترجمه** : او د نبی ﷺ نه علاوه نور خلق هم د حق په مراد باندې په خوب کښې یا د القاء په شکل کښې خبرولې شی، لیکن خلق په هغې باندې مکلف نشی جوړولې او نه په هغې سره شبه ختمیږی تر څو پورې چه حضور ﷺ هغه پوره مقرر کړی نه وی ، او د هغې توثیق ئې نه وی کړې .

**د اذان الفاظ :-**

(اَللّٰهُ اَكْبَرُ) الله ډیر لوئ دې (څلور ځله)

(اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ) زه ګواهي ورکوم چه د الله نه سیوا بل معبود نشته، (دوه ځله)

(اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ) زه ګواهي ورکوم چه محمد ﷺ د الله رسول دې ، (دوه ځله)

(حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ) راشئ وکړئ د مانځه طرف ته ، (دوه ځله)

حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ راشئ وکړئ د کامیابئ طرف ته، (دوه ځله)

(اَللّٰهُ اَكْبَرُ الله ډیر لـــــــــــوئ دې ، (دوه ځله)

**مسئله** :- د سحر په اذان کښې د (حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ) نه وروسته دومره الفاظ اضافه دی چه :

(اَلصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ) مونځ بهتر دې د خوب نه . (دوه ځله)

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ زَيْدٍ ﷺ قَالَ لَمَّا اَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ بِالنَّاقُوْسِ يَعْمَلُ لِيَضْرِبَ بِهٖ لِلنَّاسِ لِجَمْعِ الصَّلٰوةِ طَافَ بِيْ وَاَنَا نَائِمٌ رَجُلٌ يَحْمِلُ نَاقُوْسًا فِيْ يَدِهٖ فَقُلْتُ يَا عَبْدَ اللّٰهِ اَتَبِيْعُ النَّاقُوْسَ قَالَ وَمَا تَصْنَعُ بِهٖ قُلْتُ نَدْعُوْا بِهٖ اِلَى الصَّلٰوةِ قَالَ اَفَلَا اَدُلُّكَ عَلٰى مَا هُوَ خَيْرٌ مِّنْ ذٰلِكَ فَقُلْتُ لَهٗ بَلٰى قَالَ فَقَالَ تَقُوْلُ اللّٰهُ اَكْبَرُ ، اللّٰهُ اَكْبَرُ ، اللّٰهُ اَكْبَرُ ، اللّٰهُ اَكْبَرُ . اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ . اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ . اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ . اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ . حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ . حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ . حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ . اَللّٰهُ اَكْبَرُ . اَللّٰهُ اَكْبَرُ . لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ . (اِلٰى اَنْ قَالَ) . فَلَمَّا اَصْبَحْتُ اَتَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ فَاَخْبَرْتُهٗ بِمَا رَاَيْتُ فَقَالَ اِنَّهَا رُؤْيَا حَقٌّ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ فَقُمْ مَعَ بِلَالٍ فَاَلْقِ عَلَيْهِ مَا رَاَيْتَ فَلْيُؤَذِّنْ بِهٖ فَاِنَّهٗ اَنْدٰى صَوْتًا مِّنْكَ فَقُمْتُ مَعَ بِلَالٍ فَجَعَلْتُ اُلْقِيْهِ عَلَيْهِ وَيُؤَذِّنُ بِهٖ فَقَالَ فَسَمِعَ بِذٰلِكَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ وَهُوَ فِيْ بَيْتِهٖ فَخَرَجَ يَجُرُّ رِدَائَهٗ يَقُوْلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَقَدْ رَاَيْتُ مِثْلَ مَا اُرِيَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ . (ابو داؤد ص ۶۳ ج ۱ ، واللفظ له دارمي ، ابن ماجه ص ۵۱ ترمذی ص ۴۸ صحیح ابن حبان ص ۱۳۹ ج ۳)

**ترجمه** : حضرت عبد الله بن زید ﷺ فرمائي چه کله رسول الله د ناقوس جوړولو حکم وکړو ، دې دپاره چه خلق پرې د مونځ دپاره جمع کولې شی نو په خوب کښې زما سره یو سړې تیرشو ، چه په لاس کښې یې ناقوس نیولې وو ، ما هغه ته وویل چه اې د الله بنده ! آیا ته دا ناقوس خرڅوې؟ هغه وویل : په دې څه کوې؟ نو ما وویل د دې په ذریعه به خلق مونځ دپاره رابلو ، نو هغه وویل : آیا زه تاته د دې نه بهتر څیز ونه ښائم؟ ما وویل ضرور وښایه ! نو هغه وویل داسې وایه چه : ((الله اکبر ، الله اکبر ، الله اکبر ، الله اکبر . اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ . اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ . اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ . اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا

رَسُولُ اللهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ، حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، اَللهُ اَكْبَرُ، اَللهُ اَكْبَرُ، لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ)) کله چه د صبا وخت شو نو زه د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم، د خپل خوب واقعه مې د هغوی په وړاندې عرض کړه، هغوی وفرمایل: دا رښتینې خوب دې انشاء الله، پس ته د بلال سره ودریږه او تا چه څه لیدلی دی هغه ده ته وښایه اوهغه به اذان وکړی. ځکه چه آواز ئې ستا نه اوچت دې، زه د بلال ﷺ سره ودریدم، ما به ورته ښودل او بلال ﷺ به اذان کولو. کله چه عمرابن الخطاب ﷺ دا الفاظ واوریدل نو هغه د خپل کور نه د خپل څادر راښکلو سره راووتلو او عرض یی وکړو چه یا رسول الله! په هغه ذات مې دې قسم وی چا چه ته په حقه مبعوث کړې یی، ماهم همدغه شان خوب لیدلې دې ځنګه چه ده لیدلې دې، نو رسول الله وفرمائل: دالله جل جلاله دپاره تعریف دې.

عبدالرحمٰنِ ابْنِ اَبِي لَيْلٰى قَالَ حَدَّثَنَا اَصْحَابُ مُحَمَّدٍ اَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ زَيْدِ الْاَنْصَارِيَّ جَاءَ اِلَى النَّبِيِّ كَانَ رَجُلًا قَامَ وَعَلَيْهِ بُرْدَانِ اَخْضَرَانِ عَلٰى جِذْمَةِ حَائِطٍ فَاَذَّنَ مَثْنٰى وَاَقَامَ مَثْنٰى (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۰۳ ج۱ بیهقی ص۴۲۰ ج۱ وقال ابن حزم وهذا فی غاية الصحة محلی ابن حزم ص۱۱۴ ج۳)

**ترجمه**: حضرت عبدالرحمن ابن ابی لیلی فرمائی چه درسول الله اصحابوکرامو مونږ ته بیان وکړو، چه عبدالله بن زید انصاری دحضور کریم صلی الله علیه سولم په خدمت کښې حاضر شو او د اذان واقعه یی بیان کړه چه ما ولیدل چه یو سړی باندې دوه شنه څادرونه دی اوهغه په دیوال باندې ولاړ وو او دوه دوه خله یی اذان وکړو.

عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدَ قَالَ كَانَ الْاَذَانُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ وَاَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ.

**ترجمه**: حضرت سائب بن یزید ﷺ فرمائی چه آذان د رسول الله ﷺ په زمانه کښې دحضرت ابوبکر او عمر ﷺ په زمانه کښې دوه دوه خله وو.

عَنْ اَبِي مَحْذُوْرَةَ قَالَ كُنْتُ اُؤَذِّنُ لِرَسُوْلِ اللهِ ﷺ فِي صَلٰوةِ الْفَجْرِ فَاَقُوْلُ اِذَا قُلْتُ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ اَلصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ، اَلصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ. (مصنف عبدالرزاق ص۴۷۲ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو محذوره ﷺ فرمائی چه ما به دنبی کریم ﷺ په حکم باندې دسحر دمونځ دپاره اذان کولو او د (حی علی الفلاح) نه وروستو به مې (الصلوة خير من النوم) دوه خله ویلو.

عَنْ اَبِي مَحْذُوْرَةَ ﷺ اَنَّهُ اَذَّنَ لِرَسُوْلِ اللهِ ﷺ وَلِاَبِي بَكْرٍ ﷺ وَلِعُمَرَ ﷺ فَكَانَ يَقُوْلُ فِي اَذَانِهِ اَلصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۰۹ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو محذوره ﷺ نه نقل دی چه هغوی ﷺ درسول الله ﷺ په زمانه کښې اذان وکړو بیا یی د حضرت ابوبکرصدیق ﷺ په زمانه کښې اودحضرت عمرفاروق ﷺ په زمانه کښې اذان

وکړو، او په خپل اذان (د سبا) کښې به يې (الصلوة خير من النوم) هم ويلو
وَقَالَ الزُّهْرِيُّ وَزَادَ بِلَالٌ ﷺ فِي نِدَاءِ صَلٰوةِ الْغَدَاةِ اَلصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ فَاَقَرَّهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ. (ابن ماجه ص۵۱)
**ترجمه**: امام زهری فرمائی چه حضرت بلال ﷺ د سحر په اذان کښې د الصلوة خير من النوم لفظ زيات کړو، نو رسول الله ﷺ هغه برقرار وساتلو.
**مسئله**:- په اذان کښې ترجيع (شهادتين په دويم ځل په اوچت آواز ويل) هم جائز دی. اگر چه بهتر دا دی چه ترجيع ونشی. لکه څنګه چه د رسول الله ﷺ د مؤذنينو نه ثابت دی، او د حضرت ابو محذوره ﷺ په اکثرو رواياتو کښې د ترجيع ذکر موندل کيږی ليکن د هغوی نه د عدم ترجيع روايات هم شته.

عَنْ اَبِيْ مَحْذُوْرَةَ ﷺ قَالَ عَلَّمَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ الْاَذَانَ (اِلٰى اَنْ قَالَ) اللّٰه اكبر، اللّٰه اكبر، اللّٰه اكبر، اللّٰه اكبر، اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ، اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ، اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ، اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ، لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ
**ترجمه**: حضرت ابومحذوره ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ ماته د اذان الفاظ وښودل او هغه دا دی چه (الله اكبر، الله اكبر، الله اكبر، الله اكبر، اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ، اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ، اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ، اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ، حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ، لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ).

## د اذان مقاصد او معناګانې

په دين کښې اهم ترين څيز توحيد دې، د توحيد دوه شعبې دی يو توحيد عبادت (اياك نعبد) او دويم توحيد استعانت (اياك نستعين) نو توحيد عبادت اگر چه مقصد حقيقی دې لکه چه الله پاک جل جلاله فرمايي: (وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنَ) (الذريت آيت ۵۶)
**ترجمه**: او ما پيريان او انسانان دې دپاره پيدا کړی دی چه زما عبادت وکړی.
او بل ځای کښې فرمايي چه: (اِنَّمَا اُمِرْتُ اَنْ اَعْبُدَ اللّٰهَ وَلَا اُشْرِكَ بِهٖ). (الرعد آيت ۳۶)
**ترجمه**: ما ته خو دا حکم کړې شوې دې چه زه صرف د الله ﷻ عبادت وکړم او د هغه سره څوک شريك ونه ګرځوم.
ليکن توحيد استعانت هم د اهمو مقاصدو څخه دې، توحيد عبادت بغير د توحيد استعانت نه مکمل نه شی کيدې، توحيد په څلورو صفتونو باندې موقوف دې.
د محتاجينو د حوائجو او مصالحو علم.
د قدرت فيضان بغير د مزاحمت او موانع داخلی نه لکه بخل وغيره او خارجی نه لکه مغلوبيت.

وفور رحمت پیژندل او د قوت باوجود که اراده دخیر نه وی نو حصول دنفع او دفع دضرر نه وی.
شرف ذاتی (قبول دنعمت کم تر او همسر نه هم دحقارت اوعار نه خالی نه وی) پس الله اکبر (علماً)
یعنی الله ﷻ دعلم په اعتبار سره د ټولو نه لوئ دې.
الله اکبر (قدرةً) یعنی الله ﷻ دقدرت په اعتبار سره دټولو نه لوئ دې.
الله اکبر (رحمةً) یعنی الله ﷻ درحمت په اعتبار سره د ټولو نه لوئ دې.
الله اکبر (شرفاً) یعنی الله ﷻ دشرف په اعتبار سره د ټولو نه لوئ دې.

(اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ) متصرف فی الوجود. زه ګواهی کوم چه دالله نه سیوا څوك متصرف فی الوجود (کائنات) نشته

(اشهدان لا اله الا الله). مستحق معبودیت. زه ګواهی ورکوم چه دالله ﷻ نه سیوا څوك مستحق دمعبودیت نشته.

(اشهدآن محمداً رسول الله) رسالت ابلاغ. زه ګواهی کوم چه محمد ﷺ دالله رسول دې هغوی ﷺ پیغام رسالت را رسولې دې.

(اشهدان محمدرسول الله). رسالت ایصال، چه محمد ﷺ ترمقصده پورې درسولو والا پیغام رسولې دې

(حَیَّ عَلَی الصَّلٰوةِ باجسامکم). له بدنونو سره دفلاح دپاره حاضر شئ.

(حی علی الصلوة بقلوبکم). له زړونو سره دفلاح دپاره حاضر شئ

(حی علی الفلاح). دنیا کښې دمال اوجان حفاظت، او د مناجات دلذت حاصلول، فلاح دآخرت، دسختئ نه امن، د دوزخ نه نجات، دجنت دنعمتونو نه استفاده، اورؤیت نه تمتع اوفائده حاصلول

(اللهُ اَکْبَرُ عُلُوّاً اِلٰی خَالِقِهٖ) احاطه دټول کائنات.

په دې کښې د عرفان قیومیت، نفی حجابات، اومحوه دظلمات کثسره اع اشاره ده.

(لا اله الا الله) تحقق فی الحقیقت دې دتمامو کمالاتو سره ظهور او جمیع کمالات اومراتب صرف اوصرف دالله ﷻ دپاره دی (شاه رفیع الدین).

**د اذان مسائل** - اذان د پنځومونځونو (یعنی پنځو فرض مونځونو) دپاره سنت دې (هدایه ص۸۳ ج۱، شرح نقایه ص۵۹ ج۱، درمختار ص۲۶۲ ج۱، کبیری ص۳۷۰)

عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضی الله عنه مَرْفُوعًا ثَلَاثَةٌ عَلٰی کُثْبَانِ الْمِسْكِ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ (الی ان قال) وَرَجُلٌ یُنَادِی بِالصَّلَوٰتِ الْخَمْسَةِ کُلَّ یَوْمٍ وَّلَیْلَةٍ. (ترمذی ص۲۹۲)

**ترجمه**: حضرت ابن عمر رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی: درې قسمه خلق به دقیامت په ورځ دمشکو په غونډیو باندې وی، (په دوی کښې یو هغه سړې دې) چه دپنځه وخته مونځ دپاره هره ورځ اذان کوی.

**مسئله**:- فرائض خمسه (فرض عین) او د جمعې دمونځ نه علاوه مونځونه لکه سنت. وتر، تراویح، اخترونه. استسقاء، جنازه، تطوعاتو او نوافلو دپاره (ماسیوا دتهجدونه په رمضان کښې) د اذان او اقامت حکم نشته. (هدایه ص۸۵ ج۱ شرح نقایه ص۵۹ ج۱)

عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ ﷺ الْعِيدَيْنِ غَيْرَ مَرَّةٍ وَلَا مَرَّتَيْنِ بِغَيْرِ أَذَانٍ وَلَا إِقَامَةٍ (مسلم ص۲۹۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت جابر بن سمره رضی الله عنه فرمائی چه ما څو ځله دنبی کریم ﷺ سره د وړوکی اختر او لوئ اختر مونځ کړې دې بغیر د اذان او بغیر د اقامت نه.

عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ الشَّمْسَ خَسَفَتْ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ ﷺ فَبَعَثَ مُنَادِيًا الصَّلٰوةُ جَامِعَةٌ (مسلم ص۲۹۶ ج۲)

**ترجمه**: ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چه درسول الله ﷺ په زمانه کښې نمرتور شو، نورسول الله ﷺ (اذان اونکړو، بلکه) داعلان کولو والا یې اولیګلو چه **الصلوة جامعة** آوازوکړه خلق راجمع کړه.

**مسئله**:- دخطرې وخت کښې دشیطانانو او جناتو د تښتولودپاره اذان ثابت دې او د نوی پیدا شوی ماشوم په غوږ کښې اذان او اقامت کول مستحب دی.

عَنْ سُهَيْلٍ رضی الله عنه قَالَ أَرْسَلَنِي أَبِي إِلَى بَنِي حَارِثَةَ قَالَ وَمَعِيَ غُلَامٌ لَنَا أَوْصَاحِبٌ لَنَا فَنَادَاهُ مُنَادٍ مِنْ حَائِطٍ بِاسْمِهِ قَالَ فَأَشْرَفَ الَّذِي مَعِيَ عَلَى الْحَائِطِ فَلَمْ يَرَ شَيْئًا فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِأَبِي فَقَالَ لَوْ شَعَرْتُ أَنَّكَ تَلْقَى هٰذَا لَمْ أُرْسِلْكَ وَلٰكِنْ إِذَا سَمِعْتَ صَوْتًا فَنَادِ بِالصَّلٰوةِ (مسلم ص۱۶۷ ج۱)

**ترجمه**: حضرت سهیل رضی الله عنه فرمائی چه زما پلار زه دبنی حارثه کلی ته ولیږلم. زما سره زما یو همزولې هلك هم ؤو، دباغ نه دهغه د نوم په اخستلو سره یو آواز کونکی آواز وکړو، هغه باغ ته ور پورته شو وې کتل نوهیڅ په نظر نه راتلل. مونږ چه واپس راغلو نو پلارته مې ددې خبرې ذکر وکړو، نوهغوی وفرمایل که ماته معلومه وای چه تاسو ته به داسې واقعه پیښیږی نوتاسو به ما نه وای لیږلي، لیکن کله چه تاسو داسې قسم آواز واورئ (داشیطان یا پیرې وغیره وی) نو اذان کوئ.

عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ رضی الله عنه عَنْ أَبِيهِ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ أَذَّنَ فِي أُذُنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ حِينَ وَلَدَتْهُ فَاطِمَةُ بِالصَّلٰوةِ (ترمذی ص۱۳۸)

**ترجمه**: حضرت ابورافع فرمائی چه کله حضرت فاطمې ﷞ حضرت حسن ﷜ وزیږولو نوما رسول الله ولیدلو چه هغوی ﷺ دحضرت حسن ﷜ په غوږ کښې اذان وکړو.

**مسئله**: - مړی ته د دفن کولو په وخت یا ددفن کولو نه پس دقبر سره اذان کول بدعت دی . چرته د حدیث نه ثابت نه دی او نه دسلف صالحینو نه منقول دی.

**مسئله**: - د اذان او اقامت دپاره نیت شرط نه دې البته ثواب بغیر دنیت څخه نه حاصلیږی نیت دادې چه په زړه کښې دا اراده وکړې چه زه دا اذان صرف دالله ﷻ د رضا او د ثواب حاصلولو دپاره کوم، ددې نه علاوه زما بل څه مقصد نشته.

**مسئله**: - د اذان په وخت په غوږونو کښې ګوتې ورکول مستحب دی. (هدایه صـ۵۵ ج۱، شرح نقایه صـ۶۰ ج۱، کبیری صـ۳۷۵)

أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ أَمَرَ بِلَالًا أَنْ يَجْعَلَ إِصْبَعَيْهِ فِي أُذُنَيْهِ وَقَالَ إِنَّهُ أَرْفَعُ لِصَوْتِكَ (ابن ماجه صـ۵۲)

**ترجمه**: رسول الله ﷺ حضرت بلال ﷜ ته حکم وکړوچه د اذان په وخت کښې خپلې ګوتې په غوږونو کښې ورکړه . دې سره به ستا آواز زیات اوچت وی.

وَيُذْكَرُ عَنْ بِلَالٍ أَنَّهُ جَعَلَ إِصْبَعَيْهِ فِي أُذُنَيْهِ (بخاری صـ۸۸ ج۱ تعلیقا)

**ترجمه**: حضرت بلال ﷜ نه نقل دی چه هغوی به داذان په وخت خپلې ګوتې په غوږونو کښې ورکولې.

**مسئله**: - اذان په آرام اوسکون سره په قرار قرار ویل پکار دی او اقامت حدر او روانګی سره. (هدایه صـ۵۵ ج۱، شرح نقایه صـ۶۰،۶۱ ج۱، کبیری صـ۳۷۶، در مختار صـ۲۶۳ ج۱)

عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ ﷜ يَقُولُ كَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ يَأْمُرُنَا أَنْ نُرَتِّلَ الْأَذَانَ وَنَحْذِفَ الْإِقَامَةَ (دار قطنی صـ۲۳۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت علي ﷜ فرمائی چه رسول الله ﷺ موږ خلقو ته حکم راکولوچه موږ اذان په قرار قرار وکړو او اقامت په تیزئ سره.

جَابِرٍ ﷜ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ لِبِلَالٍ ﷜ إِذَا أَذَّنْتَ فَتَرَسَّلْ وَإِذَا أَقَمْتَ فَاحْدُرْ (ترمذی صـ۵۵)

**ترجمه**: حضرت جابر ﷜ فرمائی چه حضور ﷺ حضرت بلال ﷜ ته وفرمایل چه: کله ته اذان کوې نو په سکون سره یې کوه اوچه کله اقامت کوې نو په تیزئ سره یې کوه.

**مسئله**: - دمؤذن دپاره ضروری مسائل اودمونځ د وختونو نه واقف کیدل ضروری دي. که جاهل او ناواقف سړې اذان وکړی نوهغه ته به د مؤذنینو په اندازه ثواب نه ورکول کیږی (فتاوی قاضیخان صـ۸۲، هدایه صـ۵۶ ج۱)

اِبْنِ عُمَرَ ﷜ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ خَصْلَتَانِ مُعَلَّقَتَانِ فِي أَعْنَاقِ الْمُؤَذِّنِينَ لِلْمُسْلِمِينَ صِيَامُهُمْ وَصَلَوٰتُهُمْ

(ابن ماجه ص۵۲)

**ترجمه**: حضرت ابن عمر رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: دوه خصلتونه د مؤذنینو په څټونو کښې معلق دی دمسلمانانو دپاره، دهغوی روژې اودهغوی مونځونه.

**عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ لِيُؤَذِّنَ لَكُمْ خِيَارُكُمْ (ابوداؤد ص۸۷ ج۱)**

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: تاسو کښې ښه خلق (زیات پوه خلق) اذان کوی دی.

**مسئله**:- مؤذن به عاقل، بالغ او سړې وی، او ښځه به وی (اگر چه ځان له مونځ کوی) لیونې به نه وی، او نه به ناپوهه ماشوم وی. او (که ښځه مجنون یا ناپوهه ماشوم) اذان وکړو نو اعاده به یی پکار وی. **(شرح نقایه ص۶۲ ج۱ در مختار ص۶۳ ج۱)**

**عَنِ الثَّوْرِيِّ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ يُكْرَهُ لِلصَّبِيِّ أَنْ يُؤَذِّنَ حَتَّى يَحْتَلِمَ (مصنف عبدالرزاق ص۴۶۹ ج۱)**

**ترجمه**: حضرت ابو اسحاق نه نقل دی چه هغه به دناپوهه ماشوم اذان مکروه گڼلو، ترڅو چه هغه بالغ شوې نه وی.

**عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ قُلْتُ لِعَطَاءٍ هَلْ يُؤَذِّنُ الْغُلَامُ غَيْرُ مُحْتَلِمٍ قَالَ لَا (مصنف عبدالرزاق ص۴۷۰ ج۱)**

**ترجمه**: حضرت عطا نه پوښتنه وکړې شوه چه آیا نابالغ (ناپوهه) ماشوم اذان کولې شی؟ نو هغه وفرمایل چه: نه!

**مسئله**:- دلس یا دولسو کلونو (پوه) ماشوم اذان کولې شی. **(در مختار ص۶۳ ج۱)**

**عَنِ الشَّعْبِيِّ قَالَ لَا بَأْسَ أَنْ يُؤَذِّنَ الْغُلَامُ إِذَا أَحْسَنَ الْأَذَانَ قَبْلَ أَنْ يَحْتَلِمَ وَكَذَا عَنْ عَطَاءٍ (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۲۶ ج۱)**

**ترجمه**: امام شعبی فرمائی چه دبالغیدو نه وړاندې که یو هوښیار ماشوم اذان وکړی نو صحیح دې همدارنگه دحضرت عطاء نه هم نقل دی.

**قَالَ إِبْرَاهِيمُ فَكَانَ يُعْجِبُنِي أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ ابْنَ أَبِي لَيْلَى كَانَ يَأْمُرُ ابْنًا لَهُ غُلَامٌ فَيُؤَذِّنُ (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۲۶ ج۱)**

**ترجمه**: دحضرت ابن ابی لیلی یو (نابالغ هوښیار) زوئ وو هغه ته به یی داذان کولو حکم کولو.

**عَنِ الثَّوْرِيِّ سُئِلَ عَنِ الْغُلَامِ غَيْرِ الْمُحْتَلِمِ هَلْ يُؤَذِّنُ وَيُقِيمُ الصَّلٰوةَ فَقَالَ نَعَمْ.**

**ترجمه**: حضرت سفیان ثوری نه پوښتنه وکړې شوه چه آیا نابالغه ماشوم اذان او اقامت کولې شی؟ نو هغه وویل: هو!

**مسئله** :- اذان دسړو دپاره سنت دي د ښځو دپاره نشته. بلکه د ښځو اذان مکروه تحریمی دي (هدایه صـ۵۰ ج۱ شرح نقایه صـ۶۲ ج۱)

اِبْنِ عُمَرَ قَالَ لَيْسَ عَلَى النِّسَاءِ اَذَانٌ وَلَا اِقَامَةٌ (سنن الکبری بیهقی صـ۴۰۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابن عمر﷜ فرمائی چه په ښځو باندي اذان او اقامت نشته.

عَنْ اِبْرَاهِيمَ وَعَنْ قَتَادَةَ وَسَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَالْحَسَنِ قَالُوا لَيْسَ عَلَى النِّسَاءِ اَذَانٌ وَلَا اِقَامَةٌ (مصنف ابن ابی شیبه صـ۲۲۲ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابراهیم ،قتاده سعید بن المسیب ،حسن بصری فرمائی چه نه په ښځو باندینه اذان شته او نه اقامت

همدارنګي امام محمد بن سیرین ،حضرت عطاء حضرت جابر بن زید ،امام زهری امام ضحاك نه هم همدغه شان نقل شوی دی .(مصنف ابن ابی شیبه صـ۲۲۲ ج۱)

**یاد داشت** :- نن وخت کښې خو ښځې په سندرو، رقصونو، دحسن قراءة وغیره په مجلسونو کښې هم برابر حصه اخلی نو دابه څنګه جائز شی. (فَاعْتَبِرُوا يَا اُولِي الْاَبْصَارِ).

**مسئله** :- اذان مخ په قبلې کول مستحب دی. (هدایه صـ۵۵ ج۱ شرح نقایه صـ۶۰ ج۱ جامع صغیر صـ۱۰)

عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ﷜ (فِي حَدِيثٍ طَوِيلٍ) وَقَالَ فِيهِ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ قَالَ اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ (ابو داؤد صـ۷۰ ج۱)

**ترجمه**: دحضرت عبد الله بن زید﷜ په روایت کښې دا هم راغلی دی چه فرشتې قبلې ته مخ کړو او اذان یی وکړو

**مسئله** :- اذان کښې د (حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ) او (حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ) په وخت کښې مخ ښی او چپ طرفته تاوول مستحب دی. جامع صغیر صـ۱۰ هدایه صـ۵۵ ج۱ شرح نقایه صـ۳۷ ج۱، کبیری صـ۶۳ در مختار صـ۲۴ ج۱)

عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِي لَيْلٰى جَاءَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ رَبِّهِ الْاَنْصَارِيُّ اِلٰى رَسُولِ اللّٰهِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اِنِّي رَاَيْتُ رَجُلًا نَزَلَ مِنَ السَّمَاءِ فَقَامَ عَلٰى حَائِطٍ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَقَالَ الله اكبر الله اكبر ، اَشْهَدُ اَنْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ، اَشْهَدُ اَنْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مَرَّتَيْنِ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ ، اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ مَرَّتَيْنِ ثم قال عن يمينه حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ مرتين ثم قال عن يساره حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ ، حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ مرتين ثم استقبل القبلة فقال اَللّٰهُ اَكْبَرُ ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ ، لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ .(نصب الرایه صـ۲۷۵ ج۱ شرح نقایه صـ۶۱ ج۱ بحواله مسند امام اسحق بن راهویه و کذا مستدرك حاکم صـ۶۰۰ ج۳ عن بلال﷜)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن زید بن عبدربه﷜ د رسول الله ﷺ په وړاندې عرض وکړو چه یا

رسول الله ! ما یو سړي په خوب کښې ولیدلو چه دباغ په دیوال باندې یې مخ په قبله داسې اذان وکړو ((الله اکبر الله اکبر اشهد ان لا اله الا الله اشهد ان لا اله الا الله)) دوه خله او ((اشهد ان محمدا رسول الله اشهد ان محمدا رسول الله)) دوه خله، او بیا یې ښی طرف ته مخ کړو او ((حی علی الصلوة، حی علی الصلوة)) یې دوه خله ووییل ، بیایې چپ طرف ته مخ کړو او وې ویل چه ((حی علی الفلاح، حی علی الفلاح)) دوه خله بیا یې مخ په قبله وفرمایل ((الله اکبر الله اکبر لا اله الا الله)). او په مستدرک حاکم کښې دحضرت بلال ﷺ نه هم همداسې روایت دې.

اَبِي جُحَيْفَةَ وَاَذَّنَ بِلَالٌ ﷺ قَالَ فَجَعَلْتُ اَتَتَبَّعُ فَاهُ هٰهُنَا وَهٰهُنَا يَقُوْلُ يَمِيْناً وَّشِمَالاً يَقُوْلُ حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ (مسلم ص۱۹۶ ج۱) وروایة ابی داؤد عنه قَالَ رَاَيْتُ بِلَالاً خَرَجَ اِلَى الْاَبْطَحِ فَاَذَّنَ فَلَمَّا بَلَغَ حَيَّ عَلَى الصَّلٰوةِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ لَوٰى عُنُقَهُ يَمِيْناً وَّشِمَالاً وَّلَمْ يَسْتَدِرْ (ابوداؤد ص۷۷ ج۱)

**ترجمه** حضرت ابو جحیفه ﷺ فرمائی چه حضرت بلال ﷺ اذان وکړو نو مالیدلو هغه به د (حی علی الصلوة، حی علی الفلاح) دویلو په وخت کښې ښی او چپ طرفته مخ اړولو. ما به هم دهغوی سره ښی او چپ طرفته کتل. حضرت ابو جحیفه ﷺ فرمائی چه ما حضرت بلال ﷺ ولیدو دبطحاء طرفته ووتلو. بیایې اذان وکړو او د ((حی علی الصلوة، حی علی الفلاح)) په وخت کښې یې خپل څټ ښی او چپ طرفته تاو کړو او سینه یې هم تاو نه کړه.

**مسئله** - اذان د مسجد نه بهر کول مستحب دی.

عَنْ اَبِي بَرْزَةَ الْاَسْلَمِيِّ ﷺ قَالَ مِنَ السُّنَّةِ اَلْاَذَانُ فَوْقَ الْمَنَارَةِ وَالْاِقَامَةُ فِي الْمَسْجِدِ (نصب الرایه ص۲۹۳ ج۱ بحواله ابوالشیخ)

**ترجمه** حضرت ابو برزة اسلمی ﷺ نه روایت دې هغوی فرمائی چه د سنتو نه دادی چه اذان په اوچت ځای باندې وه ویلې شی او اقامت په مسجد کښې.

عُرْوَةَ بْنِ زُبَيْرٍ ﷺ عَنِ امْرَاَةٍ مِّنْ بَنِي النَّجَّارِ قَالَتْ كَانَ بَيْتِي مِنْ اَطْوَلِ بَيْتٍ كَانَ حَوْلَ الْمَسْجِدِ فَكَانَ بِلَالٌ يُؤَذِّنُ عَلَيْهِ (ابوداؤد ص۷۷ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عروه بن زبیر ﷺ دبنی نجار له یوې ښځې نه نقل کوی هغه وایی چه زما کور جومات ته نزدې دټولو کورونو نه اوچت ؤو، نو حضرت بلال ﷺ به په دې باندې ورختلو او اذان به یې کولو.

اِبْنِ عُمَرَ ﷺ قَالَ كَانَ ابْنُ اُمِّ مَكْتُوْمٍ يُؤَذِّنُ فَوْقَ الْبَيْتِ (نصب الرایه ص۲۹۳ ج۱ بحواله ابو الشیخ)

**ترجمه** . حضرت ابن عمرؓ فرمائی چه حضرت عبدالله بن ام مکتومؓ به دکوتې دپاسه اذان کولو مګر دجمعې دویم اذان چه دممبر په وړاندې کولې شی **(هدایه ص۱۱۸ ج۱ شرح نقایه ص۱۲۶ ج۱، کبیری ص۵۶۰)**

**مسئله** - اودس سره آذان کول مستحب دی اوبغیر د اودس نه اذان کول جائز دې (مګر عادت جوړول بده خبره ده) . **(هدایه ص۸۰ ج۱ شرح نقایه ص۶۳ ج۱ در مختار ص۶۳ ج۱)**

**قَالَ اِبْرَاهِيمُ لَا بَأْسَ اَنْ يُؤَذِّنَ عَلٰى غَيْرِ وُضُوْءٍ وَقَالَ عَطَاءٌ اَلْوُضُوْءُ حَقٌّ وَسُنَّةٌ (بخاری ص۸۸ ج۱، تعلیقا، مصنف ابن ابی شیبه ۲۱۱ ج۱ مصنف عبدالرزاق ص۴۶۶ ج۱)**

**ترجمه** . حضرت ابراهیم نخعی فرمائی چه که څوك بغیر داودس نه اذان وکړی نوددې څه باك نشته. حضرت عطاء فرمائی چه اذان دپاره اودس برحق او سنت ده.

**عَنِ الْحَسَنِ قَالَ لَا بَأْسَ اَنْ يُؤَذِّنَ غَيْرُ طَاهِرٍ وَكَذَا عَنْ قَتَادَةَ وَحَمَّادٍ وَعَطَاءٍ وَعَبْدِالرَّحْمٰنِ بْنِ الْاَسْوَدِ (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۱۱ ج۱)**

**ترجمه** . حضرت حسن ،حضرت قتاده،حضرت حماد ،حضرت عطاء او حضرت عبدالرحمن بن الاسود فرمائی چه بغیر د اودس نه اذان کول جائزدی (لیکن داسې عادت جوړول جائز نه دی)

**مسئله** - دجنابت په حالت کښې اذان کول مکروه تحریمی دی . **(جامع صغیر ص۱۰ ج۱ هدایه ص۸۰ ج۱، شرح نقایه ص۶۲ ج۱ در مختار ص۶۳ ج۱)**

**مسئله** . اذان او اقامت په عربۍ کښې په هغه خاصو الفاظو سره کول ضروری دی، کوم چه د نبی ﷺ نه نقل دی. که څوك په بله ژبه کښې یا په عربۍ کښې د دې الفاظو نه علاوه نور الفاظ ووایی نو اذان صحیح او د سنت مطابق نه دې . اګر چه خلق د دې له آوریدو سره دا اذان وګنی او د اذان مقصود د دینه حاصل شي . **(شامی ص۲۸۲ ج۱ مطبوع کویټه)**

**مسئله** . که څوك اذان او اقامت غلط ووایی نو اعاده کول یې پکار دی

**مسئله** . د یو مؤذن د یو مونځ دپاره په دوو جماتونو کښې اذان کول مکروه دی، کوم مسجد کښې چه فرض کوی هغې کښې دې اذان هم کوی

**مسئله** :- د اذان او اقامت په مینځ کښې څه نور کلام کول نه دی پکار اګر که د سلام جواب هم وی . که څه کلام (خبرې) یی وکړو نو اعاده به یی کوی. **(فتاوی قاضی خان ص۳۸ ج۱ در مختار ص۷۳ ج۱ کبیری ص۳۷۵)**

**عَنْ اِبْرَاهِيمَ وَعَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ اَنَّهُمَا كَرِهَا اَنْ يَتَكَلَّمَ حَتّٰى يَفْرُغَ. (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۱۲ ج۱)**

**ترجمه**: حضرت ابراهيم نخعي او ابن سيرين به د اذان په مينځ کښې خبرې کول مکروه ګڼلې.

**عَنِ الشَّعْبِيِّ اَنَّهُ كَرِهَ الْكَلَامَ فِي الْاَذَانِ (مصنف ابن ابی شیبه ص ۲۱۲ ج ۱)**

**ترجمه**. امام شعبی به د اذان په مينځ کښې خبرې کول مکروه ګڼلې.

**عُثْمَانَ ابْنِ اَبِيْ رَوَّادٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ اِذَا تَكَلَّمَ فِيْ اِقَامَتِهٖ فَاِنَّهُ يُعِيْدُ (مصنف ابن ابی شیبه ص ۲۱۳ ج ۱)**

**ترجمه** حضرت امام زهري فرمائي چه د اقامت په دوران کښې که چا خبرې وکړې نو دوباره به اقامت کولې شي.

**عَنْ اِبْرَاهِيْمَ اَنَّهُ كَرِهَ اَنْ يَّتَكَلَّمَ فِيْ اَذَانِهٖ وَاِقَامَتِهٖ حَتّٰى يَفْرُغَ. (مصنف عبد الرزاق ص ۴۶۸ ج ۱ مصنف ابن ابی شیبه ص ۲۱۳)**

**ترجمه** حضرت ابراهيم به د اذان او داقامت مينځ کښې خبرې مکروه ګڼلې.

**مسئله** -- که مؤذن ته داذان په مينځ کښې څه حادثه (بې هوشي مرګ، وغيره) پيښه شوه، نو د اذان اعاده به کولې شي

**مسئله** -- د اذان او اقامت حکم د ادا او قضا دواړو مونځونو دپاره دې، مسافر هم چه کله جماعت سره مونځ کوي نو د اذان پريښودل د دوی دپاره مکروه دی. **(جامع الصغير ص ۱۱، هدایه ص ۷۵ ج ۱، شرح نقایه ص ۶۲ ج ۱)**

حضرت ابو قتاده ﷺ نه روايت دې، چه د رسول الله ﷺ نه د سحر مونځ قضا شو **((ثُمَّ اَذَّنَ بِلَالٌ بِالصَّلٰوةِ فَصَلّٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ صَلَّى الْغَدَاةَ فَصَنَعَ كَمَا يَصْنَعُ كُلَّ يَوْمٍ))**.

**ترجمه** بيا حضرت بلال ﷺ اذان وکړو، او رسول الله ﷺ اول دصبا دوه رکعته سنت وکړل او بيايي فرض مونځ وکړو څنګه چه به ئې هره ورځ کولو.

حضرت ابو هريره ﷺ نه روايت دې چه **(وَاَمَرَ بِلَالًا فَاَقَامَ الصَّلٰوةَ فَصَلّٰى بِهِمُ الصُّبْحَ فَلَمَّا قَضَى الصَّلٰوةَ قَالَ مَنْ نَسِيَ الصَّلٰوةَ فَلْيُصَلِّهَا اِذَا ذَكَرَهَا) (مسلم ص ۲۳۸ ج ۱)**

**ترجمه**: او رسول الله ﷺ بلال ﷺ ته حکم وکړو نو هغوی اذان او اقامت وکړو او رسول الله د صبا مونځ ورکړو، بيا يې وفرمايل چه کوم سړې مونځ هير کړی نو چه کله هغه ته مونځ رایاد شی، نومونځ دې وکړی.

**عَنْ مَالِكِ ابْنِ الْحُوَيْرِثِ قَالَ قَدِمْتُ عَلٰى رَسُوْلِ اللهِ ﷺ اَنَا وَابْنُ عَمٍّ لِّيْ فَقَالَ لَنَا اِذَا سَافَرْتُمَا فَاَذِّنَا وَاَقِيْمَا وَلْيَؤُمَّكُمَا اَكْبَرُكُمَا (ترمذی ص ۵۰)**

**ترجمه**: حضرت مالك ابن حويرث فرمائي، رسول الله ﷺ ماته او زما د تره خوی ته وفرمايل:

کله چه تاسو سفر کوئ نو په تاسو کښې دې یوتن اذان او اقامت کوی ، او چه څوك په تاسو کښې مشر وی هغه دې مونځ ورکوی.

**مسئله** :- کوم خلق چه په کور کښې مونځ کوی د هغوی دپاره د محلې اذان کافی دې ،(عَنْ عِکْرَمَةَ قَالَ اِذَا صَلَّیْتَ فِی مَنْزِلِكَ اَجْزَاَكَ مُؤَذِّنُ الْحَيِّ).(مصنف ابن ابی شیبه ص ۲۲۰ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت عکرمه فرمائی چه کله تاسو خپل کور کښې مونځ کوئ نو بیا د محلې اذان ستاسو دپاره کافی دې.

**مسئله** :- د مونځ په وخت او د اذان په وخت سندرې او سرود وغیره ویل اوغږول زیات مکروه او سخت قبیح دی.

**مسئله** :- کوم مسجد کښې چه د اذان او اقامت سره مونځ شوې وی ، نو په هغې کښې دوباره جماعت کول مکروه دی ، که مونځ وشی، نو بیا اذان او اقامت مکروه دې ، البته که څوك اما م او مؤذن مقرز نه وی نو بیا د دوباره جماعت دپاره اذان او اقامت افضل دې لکه د لارې مسجد .

عَنِ الْحَسَنِ فِی رَجُلٍ یَنْتَهِی اِلَی الْمَسْجِدِ وَقد صلی فیه قال لا یؤذن ولا یقیم (مصنف ابن ابی شیبه ص ۲۲۱ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت حسن فرمائی چه څوك جمات ته ورسیږی او مونځ شوې وی نو هغه به نه اذان کوی او نه اقامت.

عَنْ جَرِیرِ ابْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ دَخَلْتُ مَعَ اِبْرَاهِیمَ مَسْجِدَ مُحَارِبَ فَلَمْ یُؤَذِّنْ وَلَمْ یُقِمْ (مصنف ابن ابی شیبه ص ۲۲۱ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت جریر ابن عبد الله فرمائی چه زه د ابراهیم سره مسجدبنی محارب کښې داخل شوم نو هغوی ماته مونځ راکړو او اذان او اقامت یې ونه کړو ، (ځکه چه دواړه مخکښې شوی وو) همدا رنګه د حضرت عکرمه او عروه او ابن ابی لیلی نه هم نقل دی. (مصنف ابن ابی شیبه ص ۲۲۱ ج ۱)

**مسئله** :- د څو مؤذنینو په یو ځای اذان کول جائزدی.

**مسئله** :- په اذان کولو باندې اُجرت اخیستل جائز دی لکه څنګه چه د مونځ په امامت باندې اجرت اخستل هم جائز دی، یعنی امامت او اذان کولو باندې اجرت او تنخواه احستل جائز دی، نه په نفس مونځ باندې ځکه چه هغه خو عبادت مقصو ده دې او فرض عین دې ، په هغې باندې معاوضه ناجائزه ده.

اَنَّ عُمَرَ ابْنَ الْخَطَّابِ وَعُثْمَانَ ابْنَ عَفَّانَ کَانَا یُرْزِقَانِ الْمُؤَذِّنِیْنَ وَالْاَئِمَّةَ (الفاروق ص ۵۵ بحواله سیرت العمرین للابن الجوزی)

**ترجمه** :حضرت عمربن الخطاب او حضرت عثمان غنی به موذنینو او امامانو ته تنخواه ورکوله

**مسئله** :- د اذان او اقامت په مینځ کښې لږه وقفه کول پکار دی، بغیر د ماښام د اذان نه (جامع الصغیرص۱۰، هدایه ص۵۶ ج۱، شرح نقایه ص۶۲ ج۱)

عَنْ اُبَيِّ ابْنِ كَعْبٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَا بِلَالُ اجْعَلْ بَيْنَ اَذَانِكَ وَاِقَامَتِكَ نَفْسًا يَفْرُغُ الْاٰكِلُ مِنْ طَعَامِهٖ فِيْ مَهْلٍ يَقْضِ الْمُتَوَضِّئُ حَاجَتَهٗ فِيْ مَهْلٍ (مجمع الزوائد ص۴ ج۲)

**ترجمه** : حضرت ابی ابن کعب فرمائی چه رسول الله حضرت بلال ﷺ ته وفرمایل چه د خپل اذان او اقامت په مینځ کښې دومره وقفه وساته چه خوړلو والا د خوراك نه فارغ شی، او اودس کونکې خپل ضرورت نه په آرام سره فارغ شی.

**مسئله** :- د ماښام د اذان نه وروسته د مسنون دعا ویلو نه بعد د درې آیتونو په مقدار وقفه کولو نه وروسته دې اقامت وکړی – اتصال مکروه دې ، (درمختار ص۶۳ ج۱)

**مسئله** :- د جمعې اذان آوریدلو سره ټول کارونه پریښودل د جمعې د مونځ دپاره جامع مسجد ته تلل ضروری دی ، که دغه وخت کښې څه اخستل خرڅول یا څه بل کار وی، نومکروه تحریمی دې ، البته د دویم اذان نه پس په څه کار کښې مشغولیدل حرام دی .

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ .(الجمعة ایت۹)

**ترجمه** : اې مومنانو ! کله چه د جمعې په ورځ د مونځ دپاره اذان وشی نو د الله د یاد دپاره بغیر د تاخیر نه روانیږئ او اخستل خرڅول پریږدئ .

**مسئله** :- د وخت نه وړاندې د اذان کولو په باره کښې په څلورو مونځونو کښې د څلورو امامانو اتفاق دې ، چه په هغې کښې اذان مخکښې دوخت نه جائز نه دې ،البته د صبا د اذان په باره کښې امام ابویوسف، امام مالك امام شافعی ،او دامام احمد ابن حنبل به نزد د صبا د ختو نه وړاندې اذان کول جائز دی، او د امام ابو حنیفه، امام محمد او سفیان ثوری په نزد جائز نه دی، د شپې په اذان باندې که د صبا د ختو نه پس چا مونځ وکړو نو هغه مونځ گویا بغیر د اذان نه خلاف سنت گڼلې شی، او د وخت نه وړاندې د صبا مونځ جائز نه دې ، دا مسلك راجح دې ، د صبا نه مخکښې اذان جائز گڼلو والا امامانو د ټولونه اقوی دلیل د حضرت بلال ﷺ اذان دې چه : شپې به یی کولو لیکن دا استدلال درست نه دې ، ځکه چه هغه اذان د صبا د مونځ دپاره نه وو ، بلکه هغه د پیشمنی یا دتهجدو دپاره وو، له همدې کبله حضور ﷺ فرمائی : ((لَا يَغُرَّنَّكُمْ مِنْ سُحُوْرِكُمْ اَذَانُ بِلَالٍ وَلَا بَيَاضُ الْاُفُقِ الْمُسْتَطِيْلِ)) (مسلم ص۳۵۰ ج۱)

**ترجمه** : چه تاسو دې د پیشمنی کولو نه د حضرت بلال ﷺ اذان په دهوکه کښې وانه چوی او نه صبح کاذب .

**مسئله** :- د اذان نه پس د جمعې د مونځ نه مخکښې که یو سړې د جمات نه بغیر د عذر نه ووتلو نو دا مکروه دی.

**عَنْ اَبِي الشَّعْثَاءِ قَالَ خَرَجَ رَجُلٌ مِنَ الْمَسْجِدِ بَعْدَ مَا اُذِّنَ فِيهِ بِالْعَصْرِ فَقَالَ اَبُو هُرَيْرَةَ رضی اللہ عنہ اَمَّا هٰذَا فَقَدْ عَصٰى اَبَا الْقَاسِمِ ﷺ** (ابن ماجه ص ۵۳ نسائی ص ۱۱۱ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابو شعثاء فرمائی چه د مازدیگر اذان شوې وو چه یو سړې د جمات نه ووتلو نو حضرت ابو هریره رضی اللہ عنہ وفرمایل چه دې شخص د ابو القاسم ﷺ مخالفت وکړو.

**عَنْ عُثْمَانَ رضی اللہ عنہ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ اَدْرَكَهُ الْاَذَانُ فِي الْمَسْجِدِ ثُمَّ خَرَجَ لَمْ يَخْرُجْ لِحَاجَةٍ وَهُوَ لَا يُرِيدُ الرَّجْعَةَ فَهُوَ مُنَافِقٌ** . (ابن ماجه ص ۵۳)

**ترجمه** . حضرت عثمان رضی اللہ عنہ نه روایت دې چه حضور ﷺ وفرمایل چه کوم سړې د اذان په وخت کښې په مسجد کښې وی او بیا د څه کار دپاره د مسجد نه ووځی او بیا یې د راتلو اراده نه وی نو دا سړې به منافق وی.

## د اذان اجابت ((د اذان جواب ورکول)) :-

اذان آوریدونکې سړې وی او که ښځه (طاهر وی یا غیر طاهر) د اذان جواب ورکول مستحب دی، بعض ورته واجب ویلی دی، لیکن ظاهر او معتمد مذهب د استحباب دې. (قاضیخان ص۳۹،۳۸)

**عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ رضی اللہ عنہ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ فَقَامَ بِلَالٌ رضی اللہ عنہ يُنَادِي فَلَمَّا سَكَتَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ قَالَ مِثْلَ هٰذَا يَقِينًا (اَيْ خَالِصًا مُخْلِصًا مِنْ قَلْبِهِ) دَخَلَ الْجَنَّةَ** (نسائی ص۱۰۹ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابوهریره رضی اللہ عنہ فرمائی چه مونږ دنبی کریم ﷺ سره وو، حضرت بلال رضی اللہ عنہ په ولاړه باندې اذان کولوسره چه کله اذان وکړو اوخاموش شو، نو رسوالله ﷺ وفرمایل چا چه دغه شان کلام وکړو په یقین (یعنی اخلاص) سره، نو هغه به جنت ته داخلیږی.

**عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رضی اللہ عنہ قَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اِنَّ الْمُؤَذِّنِينَ يَفْضُلُونَنَا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ قُلْ كَمَا يَقُولُونَ فَاِذَا انْتَهَيْتَ فَسَلْ تُعْطَ** (ابوداؤد ص۸۰ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمر رضی اللہ عنہ روایت کوی چه یو سړی عرض وکړو چه اې دالله رسوله ﷺ، بیشکه مؤذنین زمونږ نه زیات فضیلت والا دی حضور ﷺ وفرمایل ته هم دغه شان وه وایه، څنګه چه هغو وایی کله چه تا هماغه کلمات وویل اوپوره دې کړل نو دالله ﷻ نه وغواړه اوسوال وکړه نو ستا سوال به قبول کړې شی اوهغه څه به درکړې شی.

**مسئله** - د اذان جواب د اذان پشان دې مګر د «حی علی الصلوة» او «حی علی الفلاح» په

وخت کنبې «لاحول ولاقوة الا باالله» ویل پکار دی . (مسلم ص۱۶۷ ج۱، ابوداؤد ص۸۰)

عن عمر بن الخطاب قال قال رسول الله ﷺ اذا قال المؤذن الله اکبر الله اکبر فقال احدکم الله اکبر الله اکبر (الی ان قال) ثم قال حی علی الصلوة قال لاحول ولاقوة الا بالله، ثم قال حی علی الفلاح قال لاحول ولاقوة الا بالله (مسلم ص۱۶۷، ج۱، ابوداؤد ص۸۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عمر ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه: کله مؤذن «الله اکبر الله اکبر» وائی نو تاسو هم «الله اکبر الله اکبر» ووایئ. او چه کله موذن «حی علی الصلوة» ووایی نو تاسو «لا حول ولا قوة الا باالله» وایئ او چه کله «حی علی الفلاح» ووایی نو تاسو «لا حول ولا قوة الا با الله» ووایئ.

**مسئله**: - د «الصلوة خیر من النوم» په جواب کښې «صدقت وبررت» ویل پکار دی . (کتاب الاذکار للنووی، ص۳۷)

**مسئله**: - د اذان نه د فارغیدو په وخت اول درود شریف او بیا د وسیلې دعا کول سنت دی.

عبدالله بن عمرو بن العاص قال قال رسول الله ﷺ اذا سمعتم المؤذن فقولوا مثل ما یقول ثم صلوا علی فانه من صلی علی صلوة صلی الله بها عشرا ثم سلوا الله لی الوسیلة فانها منزلة فی الجنة لا تنبغی الا لعبد من عباد الله وارجوا ان اکون انا هو فمن سئل لی الوسیلة حلت علیه الشفاعة (مسلم ص۱۶۶ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل کله چه تاسو د مؤذن اذان واورئ نو په هماغه قسم الفاظو سره جواب دوباره ورکوئ، بیا په آخر کښې په ما باندې درود شریف ووایئ . چا چه په ما یوځل درود وویلو الله ﷻ به پرې لس رحمته نازل کړی. بیا څما دپاره د الله نه د وسیلې دعا کوئ څکه چه دا یو مقام دې په جنت کښې. هغه د الله په بندګانو کښې صرف د یو دپاره دی، او زه امید کوم چه هغه بنده زه یم نو چاچه زما دپاره د وسیلې دعا وغوښتله د هغه دپاره زما شفاعت ضروری دې.

عن جابر قال قال رسول الله ﷺ من قال حین یسمع النداء (اَللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ وَالصَّلٰوةِ الْقَائِمَةِ اٰتِ مُحَمَّدَنِ الْوَسِیْلَةَ وَالْفَضِیْلَةَ وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَّحْمُوْدَانِ الَّذِیْ وَعَدْتَّهٗ حلت له شفاعتی یوم القیمة (بخاری ص۸۶ ج۱)

**ترجمه**: حضرت جابر ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم سړی چه د اذان آوریدو نه پس دادعا وکړی «اَللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ وَالصَّلٰوةِ الْقَائِمَةِ اٰتِ مُحَمَّدَنِ الْوَسِیْلَةَ وَالْفَضِیْلَةَ وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَّحْمُوْدَانِ الَّذِیْ وَعَدْتَّهٗ» نو دهغه دپاره به زما شفاعت ضرور وی، دقیامت په ورځ

**یادونه** بخاري شریف کښې تر (وَعَدْتَهٗ) پورې الفاظ نقل کړي دي، او دبیهقي په روایت کښې تر (انك لا تخلف المیعاد) پورې نورهم زیات دي.

البته د (وارزقنا شفاعته یوم القیمة) الفاظ په دې موقع زیاتول ندي پکار، ځکه چه چیرته له کوم صحیح حدیث نه ثابت نه دي

**مسئله** :- دوسیلة او فضیلة دواړو نه مراد یوه خبره ده او دا عطف تفسیری دې یا ممکنه ده چه څه بله مرتبه عالیه ترې مراد وي

## مقام محمود :-

مقام محمود هغه مقام دې چیرته چه په ټولو ژبو سره درسول الله ﷺ تعریف کولې شي، اوهغه د قرب او شفاعت مقام دې. په دې مقام به هغوی ﷺ ودریږي او شفاعت (صغری او کبری) به کوي.

**سوال** - کله چه الله ﷻ دهغوی ﷺ سره د مقام محمود پورې د رسیدلو وعده کړې ده. نو بیا د دعا څه ضرورت دې ؟

**جواب** - دې دپاره چه امت ته فائده ورسیږي او له دې نه علاوه د تواضع او انکسار د کسر نفسی په بنا باندې هم د اُمت دپارهد دې ویل پکار دي . ځکه چه هغوی ﷺ به د بې نیازه رب په وړاندې عجز او انکساری خوښولو

عن سعد بن ابی وقاص قال قال رسول الله ﷺ من قال حین یسمع اذان اشهد ان لا اله الا الله وحده لا شریك له وان محمد عبده ورسوله، رضیت بالله ربا وبمحمد رسولا غفر له ذنبه. (مسلم ۱٦٧ ج۱)

**ترجمه** حضرت سعد بن ابی وقاص ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی کوم سړی چه د اذان آوریدو سره دا دعاء وویله (اشهد ان لا اله الا الله وحده لا شریك له وان محمد عبده ورسوله، رضیت بالله ربا وبمحمد رسولا) نو د هغه ګناهونه به معاف کولې شي

**مسئله** - په اوو حالتونو کښې د اذان جواب ورکول نه دي پکار : د مونځ په حالت کښې، د خطبې په وخت کښې . د جنسی اختلاط په وخت کښې ، د بولو په حالت کښې ، د حیض او نفاس په حالت کښې ، ( جواب ورکول ضروری نه دي) د علم دین د درس اوتدریس په وخت کښې ، خوراك کولو په وخت کښې

البته د دې کارونو د فراغت نه پس که د اذان څه زیاته وقفه نه وي شوي نو جواب به ورکړي او که زیات وخت یې شوې وي نو بیا ضروری ندې

## د اذان او اقامت په وخت دعا :-

سهل ابن سعد رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ ثنتان لا تردان او قل ما تردان الدعاء عند النداء وعند الباس حين يلحم بعضهم بعضا وفي رواية وقت المطر (ابو داؤد ص۳۴۳ ج۱ دارمی ص۲۱۷ ج۱ مستدرک حاکم ص۱۹۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت سهل ابن سعد فرمائی ، چه رسول الله ﷺ وفرمایل : دوه خبرې نه رد کیږی او یا دیرې کمې رد کیږی : د اذان په وخت دعا او د جنګ په وخت کښې چه کله یو بل سره تیز شی په جنګ کښې او په یو روایت کښې د باران په وخت کښې هم راغلی دی .

انس قال قال رسول الله ﷺ لا یرد الدعا بین الاذان والاقامة (ابو داؤد ص۷۸ ج۱ ترمذی ص۵۸)

**ترجمه** : حضرت انس رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه د اذان او اقامت په مینځ کښې دعا نه رد کیږی .

## (تقبیل الانامل) د اذان په وخت د ګوتو ښکلول :-

په دې سلسله کښې چه کوم روایات په جواز کښې پیش کولې شی هغه قابل داعتبار نه دی لوئ لوئ محدثین مثلا دعلامه شمس الدین سخاومی، ابن طاهرفتنی، زرقانی مالکی، ملا علی قاری حنفی، علامه عینی حنفی، علامه جلال الدین سیوطی، شاه عبدالعزیزمحدث دهلوی، له کلام نه معلومیږی چه دا فعل غیر مشروع او ممنوع دی، او دهغه احادیثو نه خلاف دی کوم چه صحاح ستهاونورو د احادیثو په کتابونو کښې موجود دی کوموکښې چه د اذان دجواب طریقه ښودلې شوې ده .

عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَنْ أَحْدَثَ فِي أَمْرِنَا هٰذَا مَا لَيْسَ مِنْهُ فَهُوَ رَدٌّ (بخاری ص۳۷۱ ج۱ مسلم ص۷۷ ج۲)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل : چا چه زمونږ په دې دین کښې څه نوې خبره را پیدا کړه چه هغه په دین کښې نه وی نو هغه خبره مردوده ده .

جَابِرٍ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّ خَيْرَ الْحَدِيثِ كِتَابُ اللهِ وَخَيْرُ الْهَدْيِ هَدْيُ مُحَمَّدٍ ﷺ وَشَرَّ الأُمُورِ مُحْدَثَاتُهَا وَكُلُّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ (رواه مسلم ص۲۸۴ ج۱)

**ترجمه** : حضرت جابر رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل : اما بعد ! بهترینه خبره د الله ﷻ کتاب دې اوبهترین سیرت دحضرت محمد ﷺ سیرت دې اوبدترینې خبرې هغه نوې نوې خبرې را ویستل دی په دین کښې، اوهر بدعت ګمراهی وی .

عَنْ مُغِيرَةَ بْنِ شُعْبَةَ وَعَلِيٍّ وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ وَأَبِي هُرَيْرَةَ قَالُوا قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ وَمَنْ يَكْذِبْ عَلَيَّ يَلِجِ النَّارَ (بخاری ص۲۱ ج۱ مسلم ص۷ ج۱)

**ترجمه** : حضرت مغیره بن شعبه ﷺ حضرت علی ﷺ حضرت انس ﷺ حضرت ابوهریره ﷺ فرمائی چه رسول اللهﷺ وفرمایل : کوم سړي چه سره د پوهې نه زما طرفته د دروغ خبره منسوب کړی نو هغه خپل ځای په دوزخ کښې ځانته تیاروی، او یا یې وفرمایل چه : څوك په ما دروغ وایی هغه به په دوزخ کښې داخلیږی.

## دګوتو د ښکلو لو والا روایت :-

رسول اللهﷺ فرمائی چا چه په اذان کښې زما نوم واوریدلو او دخپلو ګوتو نوکو نه یې ښکل کړل، اوپه سترګو یې راښکل هغه به کله هم فکر مند او غمګین نه وی.

امام سخاوی په خپل کتاب «المقاصد الحسنه» کښې لیکلي دی چه دا حدیث مرفوعا صحیح نه دې، مرفوع هغه حدیث وی چه هغه یو صحابی رسول اللهﷺ ته نسبت کولو سره بیان کړی، اوپه شرح الیمانی کښې یې لیکلې دی چه ګوتمه ښکلول او په سترګو باندې کیښودل مکروه دی، په دې باره کښې څه صحیح حدیث وارد نه دې، اوکوم روایات چه راغلی دی هغه صحیح نه دی.
(حاشیه جلالین ص۳۵۷)

دجمهورو علماء کرامو په نزد اګر چه په ضعیفو احادیثو باندې په فضائل اعمال کښې عمل کول جائز دی لیکن په دې سلسله کښې دا خبره واضحه ده چه په ضعیفو احادیثو باندې چه کومو محدثینو عمل کول جائز ګرزولی دی هغه مطلق نه دې بلکه په بعضې شرائطو سره مقید دی، لکه چه ابن حجر رحمه الله لیکلی دی :

اول شرط : چه په هغې باندې د ټولو محدثینو اتفاق دې او هغه دا چه ضعف شدید نه وی.

دویم شرط : داسې حدیث چه د څه عامې قاعدې لاندې درج وی بې اصله او اختراع نه وی.

دریم شرط : په دې باندې دعمل کولو په وخت دا اعتقاد نه وی چه دا رسول اللهﷺ نه ثابت دی.

استاد العلماء حضرت مولانا عبدالحی لکهنوی هم همداسې فرمایی چه ضعیف حدیث باندې باالاتفاق عمل کولو والا خبره باطله ده، البته دجمهوروړا مسلك دې چه که حدیث شدید ضعیف نه وی نو پدې باندې په فضائلو کښې عمل کولې شی، که ضعف یې زیات وی نو قابل قبول نه دې لیکن پدې مقام باندې خو په صحیح احادیثو کښې د اذان داجابت په باره کښې چه رسول اللهﷺ کومه طریقه ښودلې ده، هغه باالکل واضحه ده . (اذاسمعتم المؤذن فقولوا مثل مایقول ثم صلوا علی).

**ترجمه** : رسول اللهﷺ فرمایی چه کله تاسو دمؤذن آواز واورئ نو تاسو هم هغسې الفاظ وایی څنګه چه یې هغه وایی او بیا په ما درود لیږئ.

ثم قال حی علی الصلوة قال لا حول ولا قوة الا بالله، ثم قال حی علی الفلاح قال لا حول ولا قوة الا بالله.
(مسلم ص۱۶۶ ج۱)

چه کله مؤذن (الله اکبر الله اکبر) ووایی نو تاسو هم (الله اکبر الله اکبر) ووایئ او چه کله موذن (حی علی الصلوة) ووایی نو تاسو (لاحول ولا قوة الا بالله) ووایئ او چه کله هغه (حی علی الفلاح) ووایی نو تاسو (لاحول ولا قوة الا بالله) ووایئ.

اودسحرَ په اذان کښې د (الصلوة خیر من النوم) په جواب کښې (صدقت وبررت) ووایئ (کتاب الاذکار للنووی ص۳۷) اوپه اقامت کښې د (قد قامت الصلوة) په جواب کښې (اقامها الله واقامها) الفاظ ووایئ (ابوداؤد ص۸۰ ج۱)

دا پرېښودل او په هغه ضعیفو او منکرو روایاتو باندې عمل کول د انتهائی درجه مکابره ده.

## دګوتو د ښکلولو مسئله :-

چا په اذان کښې دنبی کریمﷺ دنوم آوریدوسره دګوتې ښکلولو په باره کښې پوښتنه وکړه، نو مخدوم صاحب (شرف الدین بن یحیی منیری) وفرمایل چه هغوئ په هیڅ کتاب کښې ددې دجواز په باره کښې څه نه دی موندلی کوم چه ددوی سره دی. په هغې کښې هم څه ذکر ددې نه دې راغلې. (بحواله زین بدر عربی معدن المعانی ص۱۱۶)

مخدوم صاحب فرمائی چه مولانا ضیاء الدین سنامی محدث هم ؤو او مفسر هم، یوه ورځ هغوی په وعظ کښې وو چه مخدوم صاحب هم پکښې شریك ؤو. اتفاقا چا د ګوتو دښکلولوپه باره کښې له هغوئ څخه پوښتنه وکړه نو هغوی په جواب کښې ووییل چه په کتابونو کښې دا مسئله چیرته په نظر نه ده راغلې (معقول ازرساله الحق ص۵۲، ماهنامه ذی الحجه ۱۴۰۲هـ مطابق ستمبر ۱۹۸۲ء)

«مضمون پروفیسرمحمد اسلم صاحب لاهور، تبصره بر کتاب ملفوظات معدن المعانی مرتبه زین بدر عربی مطبوعه مطبع اشرف الاخباربهار شریف ۱۸۸۴م».

## له اذان نه وړاندې یا وروسته درورد اوسلام ویل :-

له اذان نه وړاندې یا وروسته درود اوسلام په اوچت آواز ویل بدعت دې او دا کار له بلالی اذان نه خلاف دې، راروان نسل به دا د اذان جزء او لازم وګرځوی او په دین کښې به دتحریف دروازه پرانیستې شی. اعاذنا الله من ذلك

رسول اللهﷺ او حضرات صحابه کرامو، تابعینو او د امامانو مجتهدینو اذان به د (الله اکبر) نه شروع کیدلو او په (لااله الاالله) باندې به ختمیدلو.

أبو محذورة أمرني رسول اللهﷺ أن أؤذن لأهل مكة ومسح على ناصيته وقال قل الله أكبر الله أكبر (مصنف

عبدالرزاق صـ۴۵۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو محذوره فرمائي: رسول الله ﷺ حکم وکړو چه مکې والو ته اذان وکړه او خپل لاس یې زما په سر راښکلو او وې فرمائيل داسې اذان کوه: ((الله اکبر الله اکبر)).

عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ يَزِيْدَ أَنَّ بِلَالًا كَانَ يُثَنِّي الْأَذَانَ وَيُثَنِّي الْإِقَامَةَ وَأَنَّهُ كَانَ يَبْدَأُ بِالتَّكْبِيْرِ (مصنف عبدالرزاق صـ۴۶۳ ج۱)

**ترجمه** حضرت اسود بن یزید فرمائي چه حضرت بلال ؓ به اذان او اقامت دوه دوه ځله کولو او شروع به یې د «الله اکبر» نه کوله

عَنِ الْأَسْوَدِ كَانَ آخِرُ أَذَانِ بِلَالٍ اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ (مصنف عبدالرزاق صـ۴۵۷ ج۱، مصنف ابن ابي شيبه صـ۲۰۶ ج۱، دار قطني صـ۲۴۳ ج۱)

**ترجمه**: حضرت اسود ؓ فرمائي چه د حضرت بلال ؓ د اذان آخر الفاظ ((الله اکبر. الله اکبر ش— لا اله الا الله)) وو.

عَنْ أَبِي مَحْذُوْرَةَ قَالَ كَانَ آخِرُ الْأَذَانِ الله اكبر الله اكبر لا اله الا الله (مصنف ابن ابي شيبه صـ۲۰۶ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو محذوره نه روایت دې هغوی فرمائي چه د اذان آخر الفاظ «الله اکبر . الله اکبر-- لا اله الا الله» دي.

عَنْ عَطَاءٍ عَنْ أَبِي مَحْذُوْرَةَ أَنَّهُ أَذَّنَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ وَلِأَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ وَكَانَ آخِرُ أَذَانِهِ الله اكبر الله اكبر لا اله الا الله (مصنف ابن ابي شيبه صـ۲۰۶ ج۱)

**ترجمه** حضرت عطاء د حضرت ابو محذوره نه روایت کوي چه هغوی د رسول الله ﷺ او حضرت ابو بکر ؓ صدیق حضرت عمر ؓ په وړاندې اذان وکړو او د اذان په آخر کښې یې: «الله اکبر. الله اکبر -- لا اله الا الله» ویل

عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ كَانَ يَجْعَلُ آخِرَ أَذَانِهِ اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ (مصنف ابن ابي شيبه صـ۲۰۶ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابن عمر ؓ فرمائي چه هغوی به د اذان اختتام په «الله اکبر. الله اکبر -- لا اله الا الله» باندې کولو

**اقامت**:-

اقامت هم د اذان په شان دې په هغې کښې صرف دومره اضافه ده چه د «حی علی الفلاح» نه وروسته «قد قامت الصلوة» الفاظ دی (هدایه صـ۵۲ ج۱ شرح نقایه صـ۶۱ ج۱)

عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رضی الله عنه قَالَ فَجَاءَ عَبْدُاللهِ بْنُ زَيْدٍ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ وَقَالَ فِيهِ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ قَالَ اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ أشهد ان لا اله الا الله، اشهد ان محمدا رسول الله اشهد ان محمدا رسول الله حی علی الصلوة مَرَّتَيْنِ حی علی الفلاح مَرَّتَيْنِ الله اكبر الله اكبر لا اله الا الله ثُمَّ أَمْهَلَ هُنَيَّةً ثُمَّ قَالَ مِثْلَهَا إِلَّا أَنَّهُ زَادَ بَعْدَ مَا قَالَ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ قد قامت الصلوة قد قامت الصلوة (ابوداؤد ص۸۰ ج۱، مصنف عبدالرزاق ص۴۶۲ ج۱).

**ترجمه** حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه فرمائی چه عبدالله بن زید رضی الله عنه چه دانصارو د قبیلې نه دې هغه راغې حضرت معاذ رضی الله عنه فرمائی چه قبلې ته یی مخ کړو اذان یی شروع کړو او دوه دوه ځله یی د اذان الفاظ وویل . بیا یی لګه وقفه وکړه او دهغې نه بعد یی بیا اقامت هم هغه شان دوه دوه ځله وکړو البته د (حی علی الصلوة) نه پس یی دوه ځله (قد قامت الصلوة) وویلو.

عَنِ الْأَسْوَدِ رحمه الله أَنَّ بِلَالًا كَانَ يُثَنِّي الْأَذَانَ وَيُثَنِّي الْإِقَامَةَ. (مصنف عبدالرزاق ص۴۶۲ ج۱، دار قطنی ص۲۳۶ ج۱، مصنف ابن ابی شیبه ص۲۰۶ ج۱)

**ترجمه** حضرت اسود رحمه الله فرمائی چه دحضرت بلال رضی الله عنه اذان او اقامت الفاظ به دوه دوه ځله وو

أَبُو إِسْحَاقَ قَالَ كَانَ أَصْحَابُ عَلِيٍّ رضی الله عنه وَأَصْحَابُ عَبْدِاللهِ يَشْفَعُونَ الْأَذَانَ وَالْإِقَامَةَ . (مصنف ابن بی شیبه ص۲۰۶ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابو اسحاق فرمائی چه دحضرت علی رضی الله عنه او دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه شاګردانو او اصحابو به اذان او اقامت دوه دوه ځله کولو.

عَبْدُالرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلٰى قَالَ حَدَّثَنَا أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صلی الله علیه وسلم أَنَّ عَبْدَاللهِ بْنَ زَيْدٍ الْأَنْصَارِيَّ (الی أن قال) فَأَذَّنَ مَثْنٰى وَأَقَامَ مَثْنٰى (بیهقی ص۴۲۰ ج۱، طحاوی ص۹۳ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبدالرحمن بن ابی لیلی فرمائی چه مونږ ته درسول الله صلی الله علیه وسلم صحابو رضی الله عنهم ښودنه وکړه چه حضرت عبدالله بن زید رضی الله عنه «دآنحضرت مؤذن» به اذان او اقامت دوه دوه ځله کولو.

عَبْدُالْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ رحمه الله قَالَ سَمِعْتُ أَبَا مَحْذُورَةَ يُؤَذِّنُ مَثْنٰى مَثْنٰى وَيُقِيمُ مَثْنٰى مَثْنٰى (طحاوی ص۹۳ ج۱، الجوهر النقی علی بیهقی ص۴۲۲ ج۱))

**ترجمه** حضرت عبدالعزیزبن رفیع فرمائی چه ما حضرت ابو محذوره رضی الله عنه نه آوریدلی دی چه هغوی به اذان هم او اقامت هم دوه دوه ځله کولو

**مسئله** - اقامت کښې ایتار «طاق ویل» هم جائز دې لیکن افضل دا کلمات دوه دوه ځله ویل دی.

**مسئله** :- کوم سړې چه اذان کوی هماغه به اقامت هم کوی ، دا مستحب دی.

زِيَادِ بْنِ الْحَارِثِ الصُّدَائِيِّ قَالَ أَمَرَنِي رَسُولُ اللهِ صلی الله علیه وسلم أَنْ أُؤَذِّنَ فِي صَلٰوةِ الْفَجْرِ فَأَذَّنْتُ فَأَرَادَ بِلَالٌ أَنْ يُقِيمَ فَقَالَ

رَسُولُ اللهِ ﷺ اِنَّ اَخَا صُدَاءٍ قَدْ اَذَّنَ وَمَنْ اَذَّنَ فَهُوَ يُقِيْمُ . (ترمذی ص۵۰ ،ابوداؤد ص۷۲، ج۱،ابن ماجه ص۵۲)

**ترجمه**: حضرت زیاد بن الحارث صدائی ﷛ ویلی دی چه ماته رسول الله ﷺ حکم وکړو چه زه اذان وکړم، دسحر دمونځ وخت وو، ما اذان وکړو، حضرت بلال ﷛ د اقامت اراده وکړه نو حضور ﷺ وفرمایل د صداء د قبیلې سړی اذان کړې دې اوچه څوك اذان وکړی داقامت حق هم دهغه کیږی.

**مسئله**:- مستحب اگر چه د مؤذن اقامت کول دی لیکن دمؤذن نه علاوه که بل چا اقامت وکړو نو جائز دی.

مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ عَنْ عَمِّهِ قَالَ فَاُرِيَ عَبْدُ اللهِ بْنُ زَيْدٍ الْاَذَانَ فِي الْمَنَامِ فَاَتَى النَّبِيَّ ﷺ (الى ان قال) فَاَذَّنَ بِلَالٌ ﷛ فَقَالَ عَبْدُ اللهِ اَنَا رَاَيْتُهُ وَاَنَا كُنْتُ اُرِيْدُهُ قَالَ فَاَقِمْ اَنْتَ (ابوداؤد ص۷۲، ج۱)

**ترجمه**: محمدبن عبدالله ﷬ دخپل تره نه روایت کوی اوفرمائی چه حضرت عبدالله بن زید ﷛ ته په خوب کښې اذان وښودلې شو، بیا هغوی ﷛ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، نو حضور ﷺ حضرت بلال ﷛ ته حکم وکړو نو هغوی اذان وکړو، نوحضرت عبدالله بن زید ﷛ عرض وکړو چه ما په خوب کښې اذان لیدلې وو، او زما اراده وه چه همدا زه به اذان کوم، نو رسول الله ﷺ وفرمایل ته اقامت وکړه.

**مسئله**:- اقامت دامام نه چپ یا ښی طرفته هرخوا چه اتفاق وشو درست دې، هیڅ طرفته مکروهه نه دې.

**مسئله**:- کوم ځای کښې چه دې اقامت شروع کړو هماغه ځای کښې یی ختم کړه.

**مسئله**:- د اقامت جواب هم مستحب دې ځکه چه په احادیثو کښې اقامت یی په مثل د اذان فرمایلې دې، او ددې اجابت هم د اذان په شان دې، البته د (قدقامت الصلوة) په جواب کښې (اقامها الله وادامها) ویل پکار دی.

اَنَّ بِلَالًا اَخَذَ فِي الْاِقَامَةِ فَلَمَّا اَنْ قَالَ قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوةُ قَالَ النَّبِيُّ ﷺ اَقَامَهَا اللهُ وَاَدَامَهَا وَقَالَ فِي سَائِرِ الْاِقَامَةِ كَنَحْوِ حَدِيْثِ عُمَرَ ﷛ فِي الْاَذَانِ (ابوداؤد ص۸۰، ج۱)

**ترجمه**: حضرت بلال ﷛ اقامت شروع کړو، کله یی چه (قدقامت الصلوة) ووېل نو رسول الله ﷺ په جواب کښې وفرمایل: (اقامها الله وادامها) باقی اقامت کښې یی د اذان په شان جواب ورکړو.

**مسئله**:- بعضې خلق (لااله الاالله) نه پس دخپل طرفنه (په اذان کښې) (محمدرسول الله) هم وایی په دې مقام کښې دا ویل هم تحریف او بدعت دې

## د مانځه شرائط

مونځ په هر مسلمان عاقل بالغ نارینه او ښځه باندې فرض دې لیکن دحیض اودنفاس په ورځو کښې د ښځه دپاره مونځ کول حرام دی اوپه دې باندې ددغه ورځو مونځ بالکل معاف دې، او دمونځ کولو دپاره یو څه شرطونه دی چه مونږ یې په لاندې ډول ذکر کوو :

**دبدن پاکوالې** :- دمونځ کوونکی لپاره خپل بدن د نجاست حقیقی نه پاك ساتل ضروری دی، یعنی د وینې، بولو، پیپ، شراب وغیره نه .(هدایه ص۵۸ ج۱ شرح نقایه ص۶۳ ج۱، کبیری ص۱۷۷)

(وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ) (المدثر آیت ۵)

**ترجمه** : اوګندګی دخپل ځان نه لرې کړه .

(فِیهِ رِجَالٌ یُحِبُّونَ أَنْ یَتَطَهَّرُوا وَاللهُ یُحِبُّ الْمُطَّهِّرِینَ) (توبه ۱۰۸)

**ترجمه** : اي مسجد (قبا) کښې داسې خلق دی چه پاکی خوښوی او الله ﷻ پاکی کونکی خوښوی .

(قَدْ أَفْلَحَ مَنْ تَزَكَّىٰ وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّىٰ) (الاعلی ۱۴،۱۵)

**ترجمه** : بیشکه کامیاب شو هغه څوك چا چه تزکیه حاصله کړه،او دخپل رب نوم یې واخستلو او مونځ یې وکړو .

(مَا یُرِیدُ اللهُ لِیَجْعَلَ عَلَیْکُم مِّنْ حَرَجٍ وَلٰکِن یُرِیدُ لِیُطَهِّرَکُمْ وَلِیُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَیْکُمْ لَعَلَّکُمْ تَشْکُرُونَ).

**ترجمه** : الله ﷻ نه غواړی چه تاسو په تنګی کښې واچوی، هغه غواړی چه تاسو پاك کړی او خپل نعمت په تاسو باندې پوره کړی ، دپاره ددې چه تاسو شکرګزار جوړ شئ . (المائده آیت ۵)

او همدارنګه له نجاست حکمی نه هم پاکی ضروری ده .(هدایه ص۵۸ ج۱ شرح نقایه ص۶۳ ج۱، کبیری ص۱۴)

(وَهُوَ مَا لَا یُرَیٰ) او (وَهُوَ الْحَدَثُ الْأَکْبَرُ وَالْأَصْغَرُ)، (کبیری ص۱۴)

**ترجمه** : نجاست حکمی هغه دې چه نه ښکاری ، لکه بې اودسه کیدل اوجنابت کښې مبتلاء کیدل. اوهمدغه رنګه حیض او نفاس هم دې .

(وَإِن کُنتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا) (المائده آیت ۶)

**ترجمه** : (دالله ﷻ ارشاد دې) که تاسوپه جنابت کښې یئ نو ښې طریقې سره پاکی حاصله کړئ .

عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضی الله عنه قَالَ إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ یَقُولُ لَا یَقْبَلُ اللهُ صَلٰوةً بِغَیْرِ طُهُورٍ (مسلم ص۱۱۹ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمائی چه ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی هغوی ﷺ به فرمائیل چه الله ﷻ بې د طهارت نه مونځ نه قبلوی.

عَنْ أَبِي هُرَیْرَةَ رضی الله عنه قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ لَا تُقْبَلُ صَلٰوةُ أَحَدِکُمْ إِذَا أَحْدَثَ حَتّٰی یَتَوَضَّأَ (مسلم ص۱۱۹ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دي چه رسول الله ﷺ فرمائی چه الله ﷻ په تاسو کښې دهغه چا مونځ نه قبلوی چه بې اودسه وی تردې چه اودس وکړی

**دجامو پاکوالې**:- دمونځ کوونکی دجامو هم دنجاست نه پاکی ضروری ده. (شرح نقایه صـ۳۳ ج۱، کبیری صـ۵۸)

(وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ) (المدثر آیت۴)

**ترجمه**: خپل لباس او جامې پاکې کړه.

**مسئله**:- که جیب کښې ناپاکه کپړه وی یا دبولو بوتل وی نو مونځ ورسره نه کیږی.

**مسئله**:- سګریټ، تمباکو، نسوار (دمونځ وخت کښې) دخان سره ساتل هم مکروه دی.

**دځای پاکوالې**:- دبدن په شان د مونځ دپاره دا هم ضروری ده چه هغه ځای به هم پاک وی په کوم ځای کښې چه مونځ کوی

وَعَهِدْنَا إِلَى إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ أَنْ طَهِّرَا بَيْتِيَ لِلطَّائِفِينَ وَالْعَاكِفِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ (البقرة ۱۲۵ آیت)

**ترجمه**: او مونږ حکم وکړو ابراهیم او اسماعیل (علیهما السلام) ته چه تاسو دواړه زما کور پاك اوصفا وساتئ د طواف کونکو، اعتکاف کونکو او رکوع او سجده کونکو (مونځ کونکو) دپاره

عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ أَمَرَ رَسُولُ اللهِ ﷺ بِبِنَاءِ الْمَسَاجِدِ فِي الدُّورِ وَأَنْ تُنَظَّفَ وَتُطَيَّبَ (ابوداود صـ۶۶ ج۱، ترمذی صـ۱۱۰، ابن ماجه صـ۵۵)

**ترجمه**: ام المؤمنین حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه رسول الله ﷺ حکم وکړو چه په کورونو کښې دمونځ دپاره ځایونه جوړکړئ او هغه پاك اوصفا ساتئ.

**مسئله**:- دمونځ دپاره دهر قسم پاکې مصلې استعمالول روا او جائز دی.

رسول الله ﷺ په خالی زمکه باندې، همدارنګه په بوریا باندې، په دباغت والا څرمنې باندې، او دکجورو وغیره د پاڼونه جوړشوی پوزی باندې مونځ کړې دې. لکه چه (ترمذی صـ۵۵، ابوداؤد صـ۹۶ ج۱، مسلم صـ۲۳۲ ج۱) وغیره کښې په مختلفو روایتونو کښې موجود دی

دحضرت امام مالك رحمه الله په نزد په زمکه باندې مونځ کول افضل دی

**مسئله**:- چه دمونځ ځای پاك وی لیکن دې سره خوا کښې ځایونه ناپاك او بد بودار وی، نو داسې ځای کښې مونځ کول مکروه دی.

**دعورت پټول**:- اعضاء مستوره دمونځ دپاره پټول فرض اوضروری دی.

يَا بَنِي آدَمَ خُذُوا زِينَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ (الاعراف آیت ۳۱)

**ترجمه**: «د الله ﷻ ارشاد دې، اې بنيادمو ! زينت اختيار کړئ د هر مونځ په وخت کښې.

عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لَا يُقْبَلُ صَلٰوةُ حَائِضٍ اِلَّا بِخِمَارٍ (ابوداؤد ص۹۳ ج۱، ترمذی ص۸۱)

**ترجمه**: ام المؤمنين حضرت عائشه فرمائي چه رسول الله ﷺ وفرمايل چه الله ﷻ د بالغې ښځه هيڅ مونځ بغير د څادر (لوپټې او ټيکرې) څخه نه قبلوي.

**د ستر حدود**:- د سړي دپاره د نوم نه ترګونډو پورې پټول فرض دي، او د آزادې ښځې دپاره ټول بدن ستر دې، او پټول يې فرض دي، ماسيوا د مخ، لاسونو او پښو نه. (هدايه ص۵۸ ج۱ شرح نقايه ص۶۴،۶۵ ج۱، کبيری ص۲۱۰)

عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فَاِنَّمَا اَسْفَلَ مِنْ سُرَّتِهٖ اِلٰى رُكْبَتَيْهِ مِنْ عَوْرَتِهٖ.
(دارقطنی ص۲۳۰ ج۱، مسند احمد ص۱۷۸ ج۲)

**ترجمه**: حضرت عمروبن شعيب د خپل سند سره بيان کوي چه رسول الله ﷺ وفرمايل: د سړي د نوم نه واخله ترګونډو پورې ستر دې.

عَنْ عَبْدِ اللهِ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ اَلْمَرْاَةُ عَوْرَةٌ. (ترمذی ص۱۸۹)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ وفرمايل: د ښځې ټول بدن عورت دې.

عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ اِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا. قَالَ مَا فِي الْكَفِّ وَالْوَجْهِ (سنن الکبری بيهقی ص۲۲۵ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابن عباس ﷺ فرمائي چه د الله ﷻ ارشاد دې چه: «او ښځې دې نه ښکاره کوي خپل زينت مګر هغه زينت کوم چه ښکاره وي د دينه» نو له دينه مراد هغه زينت دې چه په لاسونو او مخ کښې وي (ځکه چه دا دواړه په مونځ کښې) په ستر کښې داخل نه دي او د دينه علاوه ټول بدن په ستر کښې داخل دي، د دې زينت ظاهرول روا نه دي.

**مسئله**:- د پرديو سړيو په وړاندې بې ضرورته د ښځو دپاره د مخ ښکاره کول هم جائز نه دي.

**مسئله**:- بعضې ښځې په بربنډه غسل کوي او نورو ښځو نه پرده نه کوي دا سخته ګناه ده، يوې ښځې دپاره بلې ښځې ته د نوم نه ترګونډو پورې بدن ته کتل که هغه يې مور وي او يا يې خور وي، ناجائز او ګناه ده.

عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ الْخُدْرِيِّ ﷺ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ لَا يَنْظُرُ الرَّجُلُ اِلٰى عَوْرَةِ الرَّجُلِ وَلَا الْمَرْاَةُ اِلٰى عَوْرَةِ الْمَرْاَةِ

(مسلم ص۱۵۴ ج۱، ترمذی ص۳۹۷)

**ترجمه** : حضرت ابو سعید خدری ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه سړې دې دسړی عورت ته نه ګوری او همدارنګه ښځه به هم دبلې ښځې عورت ته نه ګوری.

**مسئله** :- د ښځو دپاره په مونځ کښې پښې پټول افضل دی.

**مسئله** :- دسړی اوښځې که په اندامونو دستر کښې دځه اندام څلورمه حصه د درې تسبیحاتو په مقدار باندې ښکاره پاتې شوه نومونځ یی باطلیږی اوکه فورا یی پټ کړی نو څه حرج نشته. (کبیری ص۲۱۵)

**مسئله** :- که د ښځې دسر څلورمه حصه ښکاره وی نو مونځ به جائز نه وی ، همدارنګه که د ښځې دسر دزوړندو ویښتو څلورمه حصه ښکاری نو مونځ یی نه کیږی.

عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ لَا يَقْبَلُ اللهُ صَلٰوةَ حَائِضٍ اِلَّا بِخِمَارٍ. (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۳۰ ج۲،بیهقی ص۲۳۳ ج۱)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه الله ﷻ دبالغې ښځې هیڅ مونځ بغیر د څادر (لوپټې سره دپټولو) نه ، نه قبلوی.

عَنِ الْحَسَنِ قَالَ اِذَا بَلَغَتِ الْمَرْأَةُ الْحَيْضَ لَمْ تَغُطَّ اُذُنَهَا وَرَاْسَهَا لَمْ تُقْبَلْ لَهَا صَلٰوةٌ . (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۳۰ ج۲)

**ترجمه** : حضرت امام حسن بصری رحمه الله فرمائی چه کله کومه ښځه بالغه شی نوکه هغه خپل سر او غوږونه نه پټوی نو دهغې مونځ نه کیږی.

عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ اَيُّمَا امْرَأَةٍ صَلَّتْ وَلَمْ تُغَطِّ شَعْرَهَا لَمْ تُقْبَلْ لَهَا صَلٰوةٌ (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۳۰ ج۱)

**ترجمه** : حضرت مجاهد فرمائی چه کومه ښځه مونځ کوی اوخپل سر نه پټوی نو مونځ یی نه قبلیږی.

**مسئله** :- همدارنګه که نری جامې واغوندی چه د بدن یا ویښتو رنګ یی په کښې په نظر راځی نو مونځ یی نه کیږی.

عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا سُئِلَتْ عَنِ الْخِمَارِ فَقَالَتْ اِنَّمَا الْخِمَارُ مَا وَارَى الْبَشَرَةَ وَالشَّعْرَ (بیهقی ۲۳۵ ج۲)

**ترجمه** : د ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه دڅادر(لوپټې) په باره کښې پوښتنه وکړې شوه نو هغوی رضی الله عنها وفرمایل چه لوپټه هغه ده چه دبدن څرمن او ویښته پټ کړی.

**مسئله** :- صرف لنګ (پرتوګ) کښې د د قمیص نه بغیر د بنیان وغیره سره دسړی مونځ درست دې په شرط ددې چه دنوم نه لاندې حصه ښکاره نه وی اوکه نه (که دنوم نه لاندې حصه ښکاریده نو) مونځ یی نه کیږی.

عَنْ اَبِي الزُّبَيْرِ الْمَكِّيِّ اَنَّهُ رَاٰى جَابِرَ بْنَ عَبْدِاللهِ يُصَلِّي فِي ثَوْبٍ مُتَوَشِّحًا بِهٖ وَعِنْدَهٗ ثِيَابُهٗ وَقَالَ جَابِرٌ اَنَّهٗ رَاٰى رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَصْنَعُ ذٰلِكَ (مسلم ص۱۹۸ ج۱، ص۲۱٦ ج۲)

**ترجمه** : ابو زبير مكي حضرت جابر ﷺ لره وليدلو چه هغوی یوه جامه (لنگ) کښې مونځ کولو، اوهغوی سره نوره جامه هم وه ،او حضرت جابرﷺ وفرمایل چه ما رسول اللهﷺ داسې لیدلې وو.

عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ اَنَّ سَائِلًا سَأَلَ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ عَنِ الصَّلٰوةِ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ فَقَالَ اَوَ لِكُلِّكُمْ ثَوْبَانِ (مسلم ص۱۹۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابو هريره ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ نه يو سړی پوښتنه وکړه چه آيا يوه جامه (لنگ) کښې مونځ کيږی؟ نو هغوی ﷺ وفرمايل : آيا په تاسو کښې هر سړی ته دوه جامې ميسّر (یعنی ترلاسه) دی. (یعنی داسې خلق به هم وی چه هغوی ته به دوه جامې نه ملاویږی).

**مسئله** :- په بربنډ سر که د سستی او بې پرواهی له کبله مونځ کوی نو مکروهه دی ،او که کپړه ورته ميسره نه وی یا عاجزی او تضرع کوی نو مونځ يې صحيح دې.

فَقَالَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ اِنَّمَا كَانَ ذٰلِكَ اِذَا كَانَ فِي الثِّيَابِ قِلَّةٌ فَاَمَّا اِذَا اَوْسَعَ اللهُ فَالصَّلٰوةُ فِي ثَوْبَيْنِ اَزْكٰى (مسند احمد ص۱۲۱ ج۵ سنن الكبرى للبيهقي ص۲۳۸ ج۲)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائی چه (دا یوه کپړه کښې مونځ کول) هغه وخت ؤو کله چه دجامو په ترلاسه کيدو کښې قلت وی، او اوس کله چه الله ﷻ فراخي راوستلې ده، نو دؤو جامو کښې مونځ کول زياته پاکيزگی ده او بهتر دی.

عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ ﷺ اَيُصَلِّي الرَّجُلُ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ؟ قَالَ اَوَ كُلُّكُمْ يَجِدُ ثَوْبَيْنِ؟ قَالَ فَلَمَّا كَانَ عُمَرُ قَامَ اِلَيْهِ رَجُلٌ فَقَالَ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اَيُصَلِّي الرَّجُلُ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ؟ قَالَ اِذَا وَسَّعَ اللهُ عَلَيْكُمْ فَاَوْسِعُوْا عَلٰى اَنْفُسِكُمْ. دار قطنی ص۲۸۲ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دې چه يو سړې ودريدلو او دنبی کريم ﷺ په وړاندې يې عرض وکړو چه آيا سړې په یوه جامه کښې مونځ کولې شی، نو هغوی ﷺ وفرمایل چه آيا تاسو کښې به هر سړې دوه جامې بيا مومی؟ بيا چه کله دحضرت عمرﷺ دور ؤو ، نو يو سړی ترې پوښتنه وکړه اې اميرالمؤمنين ! آيا يو سړې په يوه جامه کښې مونځ کولې شی ؟ نو هغه وفرمایل : چه کله الله ﷻ په تاسو وسعت راوستلو نو تاسو هم فراخی اختيار کړئ . ( ددؤو جامو په موجودگی کښې په یوه جامه کښې مونځ بهتر نه دې ) .

عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ نَادٰى رَجُلٌ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ اَيُصَلِّي اَحَدُنَا فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ قَالَ اِذَا وَسَّعَ اللهُ عَلَيْكُمْ

فَأَوْسِعُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ (موارد الظمآن الى زوائد ابن حبان ص۱۰۵)

**ترجمه**: حضرت ابو هريرة ﷺ فرمائي چه يو سړي دنبي كريم ﷺ نه په اوچت آواز باندې پوښتنه وکړه چه يوه جامه کښې مونځ کيږي؟ نو رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چه الله ﷻ فراخي راوستله نو تاسو هم په خپلو ځانونو باندې فراخي اختيار کړئ.

**مسئله**:- بغير د پټکي نه صرف په رومال يا ټوپۍ باندې مونځ کول مکروه نه دی اګر چه پټکې تړل مستحب دی.

عَنِ ابْنِ عُمَرَ ﷺ قَالَ كَانَ يَلْبَسُ قَلَنْسُوَةً بَيْضَاءَ (السراج المنير ص۱۸۳ ج۲ باسناد حسن و تحفة الاحوذی ص۱۰ ج۳)

**ترجمه**: له حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلی الله عليه وسلم به سپين ټوپۍ پسر کوله.

**مسئله**:- که له دوبی نه جامې وروکې شوې نو هغه ددې په ځايي دويمه جامه ورکړه، نوکه دده خپلې جامې وی نو ډيره بهتره ده، اوسړې هم حاجتمند وی نو دې کښې مونځ جائز دی اوکه نه نو صدقه به يې کړی.

**مسئله**:- څلورمه حصه دجامې که پاکه وی اونورې جامې يا اوبه موجودې نه وی نو پدې صورت کښې په داسې جامو کښې مونځ کول ضروری دی، په بربنډه به مونځ نه کوی.

**وخت**:- دمونځ په شرطونو کښې يو شرط وخت هم دې، لکه چه دالله ﷻ ارشاد دې:

(فَإِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلوٰةَ فَاذْكُرُوا اللهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَى جُنُوبِكُمْ فَإِذَا اطْمَأْنَنْتُمْ فَأَقِيمُوا الصَّلوٰةَ إِنَّ الصَّلوٰةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَوْقُوتًا). (النساء آيت ۱۰۳)

**ترجمه**: نو کله چه تاسو مونځ پوره کړئ نو الله ﷻ يادوئ، په ولاړه او په ناسته، او په اړخ، پس کله چه تاسو د اطمينان په حالت کښې شوئ نو بيا مونځ قائموئ، بيشکه الله ﷻ په مؤمنانو باندې مونځ د وخت د پابندئ سره فرض کړې دې.

**دقبلې طرفته مخ کول**:- دا هم دمونځ په شرطونو کښې داخل دې.

وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ. (البقرة آيت ۱۴۴)

**ترجمه**: او کوم ځای کښې چه تاسو هم ياستئ پس خپل مخ د بيت الله شريف طرفته کوئ.

**مسئله**:- مکه مکرمه کښې اوسيدونکو دپاره عين د کعبې طرفته مخامخ مخ کول ضروری دی، او د غير مکی دپاره دهغې سمت او طرف ته مخ کول هم صحيح دی. (هدايه ص۶۱،۶۲ ج۱، شرح نقايه ص۶۶ ج۱، کبيری ۲۱۸،۲۱۴)

**مسئله**:- که يو سړې په داسې ځای باندې وی چه هلته هيڅ داسې سړې نه وی چه پوښتنه ترې

وکړي شی او دکعبې شریفې طرف هم معلوم نه وی نو په داسې صورت کښې ښه سوچ «تحری» کول اویو طرف متعین کول اومونځ کول پکار دی، نو هغه مونځ صحیح دې اګر که طرف غلط وی.

(هدایه ص۲۶۲ ج۱، شرح نقایه ص۶۶ ج۱، کبیری ص۲۱۸،۲۱۶)

لکه څنګه چه صحابه کرامو سره داسې واقعه پیښه شوې وه نوهغوی همداسې کړې ؤو.

(مستدرك حاکم ص۲۰۶ ج۱، ترمذی ص۷۷، ابن ماجه ص۱۷، دار قطنی ص۲۷۲،۲۷۱، سنن الکبری بیهقی ص۱۰ ج۲).

**مسئله** :- که بغیر دسوچ نه مونځ غلط طرفته وشی نو صحیح ندې اودوباره کول یی ضروری دی.

**مسئله** :- بغیر دسوچ کولو نه که دصحیح طرف د مونځ شروع کولو په دوران کښې ددې معلومات وشی نو دوباره به یی کوی، اوکه دمونځ نه وروسته دا معلومه شی چه صحیح طرفته یی مونځ کړې دې، نود دوباره کولو ضرورت نشته، لیکن که دسوچ او فکر نه پس طرف غلط هم وی نوهم مونځ صحیح دې. (شرح نقایه ص۶۶ ج۱، درمختار ص۶۹ ج۱)

**مسئله** :- که دمونځ په دوران کښې چا ښودونکی ښودنه وکړه چه د کعبې طرف دادې، نو دمونځ په حالت کښې ګرځیدل پکار دی او مونځ د اول نه درست او صحیح دې، «د دوباره کولو ضرورت یی نشته». (هدایه ص۶۲ ج۱، کبیری ص۲۲۱)

حضرت انس ﷺ نه روایت دی چه کله د تحویل د قبلې آیت نازل شو نو: (فَمَرَّ رَجُلٌ مِنْ بَنِي سَلِمَةَ وَهُمْ رُكُوعٌ فِي صَلٰوةِ الْفَجْرِ وَقَدْ صَلَّوْا رَكْعَةً فَنَادٰى اَلَا إِنَّ الْقِبْلَةَ قَدْ حُوِّلَتْ فَمَالُوا كَمَا هُمْ نَحْوَ الْقِبْلَةِ) (مسلم ص۲۰۰ ج۱)

**ترجمه** : نو یو سړې دبنی سلمه په محله کښې تیر شو هغه وخت خلق دمونځ په رکوع کښې ؤو، او یو رکعت یی کړې وو، نو هغه سړی په اوچت آواز سره وویل چه قبله «دبیت المقدس د طرفنه» بدله شوې ده، نوهغه خلق دمونځ په حالت کښې دبیت الله شریف طرفته را وګرځیدل.

**مسئله** :- په کشتی یا ګاډی کښې که د قبلې طرف اخوا دیخوا آوړی نو مونځ ګزار به هم دقبلې طرف پسې ګرځی، که ممکن وی، او که ممکن نه وی یا په مخ ګرځولو کښې دسامان د غلا کولو خطره وی نودمونځ د شروع کولو په وخت قبلې ته مخ کول پکار دی او بیا چه په هر حال کښې یی کوی نو پروا نکوی لکه څنګه چه نبی کریم ﷺ په بعضې وختونو کښې په نفل مونځ کښې داسې کړې دی.

اَنَسٍ ﷺ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ اِذَا سَافَرَ فَاَرَادَ اَنْ يَتَطَوَّعَ اِسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ بِنَاقَتِهٖ ثُمَّ كَبَّرَ ثُمَّ صَلّٰى حَيْثُ وَجْهَهُ رِكَابُهُ.

(جمع الفوائد ص۷۰ ج۱ بحواله طبرانی)

**ترجمه** : حضرت انس ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ به کله سفر کولو، او هغوی ﷺ به اراده کړې وه

چه په دې حالت کښې نفل وکړی نو هغوی ﷺ به د اوښې مخ دقبلې په طرف کړو، بیا به یې تکبیر وویلو، بیا به یې مونځ کولو د اوښې مخ چه به هر خوا وو.

عَنْ عَطَاءٍ قَالَ يُصَلُّونَ فِي السَّفِينَةِ قِيَامًا إِلَّا أَنْ يَخَافُوا أَنْ يَغْرَقُوا فَيُصَلُّونَ جُلُوسًا يَتَّبِعُونَ الْقِبْلَةَ حَيْثُمَا زَالَتْ

(مصنف عبدالرزاق ص۵۸۱ ج۲)

**توجمه**: حضرت عطاء فرمائی چه خلق که په کشتئ کښې سواره وی نو په ولاړه دې مونځ وکړی او که د دوبیدو خطره وه نو په ناسته دې وکړی او د قبلې طرفته دې مخ ګرځوی کله چه کشتئ بل طرفه آوړی

عَنْ إِبْرَاهِيمَ قَالَ تُصَلِّي فِي السَّفِينَةِ قَائِمًا فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ فَقَاعِدًا تَتَّبِعُ الْقِبْلَةَ حَيْثُ مَا مَالَتْ. (مصنف عبدالرزاق ص۵۸۱ ج۲)

**توجمه**: حضرت ابراهیم نخعی فرمائی چه تاسو په کشتئ کښې په ولاړه مونځ کوئ او که د ولاړې طاقت مو نوی نو بیا یې په ناسته کوئ او که کشتئ تاویږی نو تاسو خپل مخ د قبلې طرفته کوئ

**نیت**: -

دمونځ دپاره نیت هم ضروری دې او دا هم د شرائطو نه دې

وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللّٰهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ حُنَفَاءَ (سورة البينة آيت ۵)

**توجمه**: او دوی ته حکم ورکړې شوې دې چه دالله ﷻ عبادت په اخلاص سره (چه په دې کښې صحیح نیت هم دې) ادا کړئ. دحنیف کیدو سره.

إِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ (بخاری ص۲ ج۱، مسلم ص۱۴۰ ج۲)

**توجمه**: بیشکه اعمال هم دنیتونو سره وی.

هیڅ عبادت مقصوده بغیر د نیت څخه نه صحیح کیږی او دا نیت د عبادت او عادت په مینځ کښې امتیاز راولی

وَإِنَّمَا لِامْرِئٍ مَا نَوَى (بخاری ص۲ ج۱، مسلم ص۱۴۰ ج۲)

**توجمه**: بیشکه دسړی دپاره هغه دی دځه چه ده نیت کړې وی.

وَنِيَّةُ الْمُؤْمِنِ خَيْرٌ مِنْ عَمَلِهِ (فیض القدیر شرح جامع صغیر للمناوی ص۲۹۱ ج۶ بحواله بیهقی شعب الایمان)

**توجمه**: او دمؤمن نیت دده د عمل نه بهتر دې.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ يَوْمَ الْفَتْحِ لَا هِجْرَةَ بَعْدَ الْفَتْحِ وَلَكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ وَإِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوا.

(بخاری ۳۳۲ ج۱، مسلم ۱۳۰ ج۲)

**ترجمه** : حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ د فتح مکه په ورځ وفرمایل چه دنن نه پس (دمکې نه مدینې) ته هجرت نشته لیکن جهاد او نیت دې اوکله چه تاسو ته د کوچ او د وتلو وویل شی نو کوچ کوئ.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَنْ مَاتَ وَلَمْ يَغْزُ وَلَمْ يُحَدِّثْ بِهِ نَفْسَهُ مَاتَ عَلَى شُعْبَةٍ مِنَ النِّفَاقِ.

**(مسلم ۱۴۱ ج ۲)**

**ترجمه** : حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه کوم سړې پداسې حالت کښې مړ شوچه نه یې جهاد کړې وی اونه یې خپل زړه کښې د جهاد نیت کړې وی نو دا سړې د منافقت په شعبه مړ شو.

**حدیث عمر رضی الله عنه قَالَ عَلَّمَنِي رَسُولُ اللهِ ﷺ قَالَ قُلِ اللَّهُمَّ اجْعَلْ سَرِيرَتِي خَيْراً مِنْ عَلَانِيَتِي وَاجْعَلْ عَلَانِيَتِي صَالِحَةً (ترمذی ص ۵۱۶)**

**ترجمه** : حضرت عمر رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ ماته دا دعا وښودله چه :اې الله! زما باطن زما دظاهر نه ښه جوړ کړه او زما ظاهر نیکی والا جوړ کړه.

تصحیح دنیت هم د دین د اهمو اصولو نه ده، حضرت مولانا قاسم نانوتوی رحمه الله فرمائی چه کله ته څه کار کول غواړې نوته اول د هغې نیت او اراده کوې، که یو سړې د دې اراده وکړی چه زه به دالله ﷻ دټولو حکمونو تعمیل کومنو دا جامع نیت ایمان دې.

**مسئله** :- دنیت نه مراد دزړه سره اراده کول دی دهغه فرض مونځ اراده چه هغه ته اداکول غواړې، مثلاً ماسپښین ،مازدیګر، قضاء مونځ اوکه د امام پسې یې نو د اقتداء نیت هم ضروری دې، فرض ،وتر د جمعې دپاره دا پیژندل ضروری دی چه فلانې مونځ دې (نه شمیر درکعتونو ) په دې کښې مطلق نیت نه کافی کیږی. **(شرح نقایه ص ۶۷ ج ۱، شرح وقایه ص ۱۳۹ ج ۱، بحر الرائق ص ۲۷۷ ج ۱، کبیری ص ۲۵۴)**

**مسئله** :- دنفل مونځ دپاره دومره کافی دی چه نفل مونځ کوم، دا حکم د سنت تراویح هم دې.

**مسئله** :- نیت په ژبه لازمی نه دې ، نه دحضور ﷺ نه ، نه د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه، نه داسلافونه او نه د اسلام داامامانو نه د نیت دلفظ ثبوت شته . **(بحر الرائق ص ۲۷۷ ج ۱)**

نیت خو صرف د زړه اراده ده چه محل یې زړه دې نه ژبه، له همدې کبله حضرت مجدد الف ثانی رحمه الله دې ته بدعت ویلی دی ، (یعنی که ضروری یې وګنی) **(مکتوبات امام ربانی ص ۱۸ دفتر اول حصه سوم مکتوب ۱۸۶)**.

شیخ عبدالحق رحمه الله لیکلې دی چه دنیت په ژبه ویل مشروع نه دی . **(لمعات شرح مشکوة شیخ عبدالحق ص ۵۵ ج ۱)**

لیکن دتجربې نه معلومه ده که چیرې عوام د ژبې دنیت نه منع کړې شی نو دلسانی او قلبی دواړو نیتونو نه به محروم پاتې شی.

نو له همدې کبله پداسې صورت کښې به فقدان دنیت راشی او دا د تلفظ بالنیت نه زیات قبیح دې، له همدې کبله فقهاء متاخرین په دې خیال سره دنیت دتلفظ هدایت کړې دې. (استحباب یې ښودلې دې) چه دفریضې نه محرومه نشی. (لمعات شرح مشکوة ص۵۵ ج۱ هدایه ص۱۱۶ ج۱ شرح نقایه ص۶۸ ج۱ شرح وقایه ص۱۳۹ ج۱، کبیری ص۲۵۲)

وَمَا خُيِّرَ بَيْنَ أَمْرَيْنِ إِلَّا اخْتَارَ أَيْسَرَهُمَا مَا لَمْ يَكُنْ مَأْثَمًا (ترمذی ص۵۲۶).

**ترجمه**: (لکه څنګه چه پدې حدیث کښې درسول الله ﷺ په باره کښې راغلې دی) کله چه به هغوی ﷺ ته په دوو خبرو کښې اختیار ورکړې شو نوهغوی ﷺ به هغه خبره اختیاروله چه په هغې کښې به آسانی وه، ترڅو چه به هغه دګناه خبره نه وه

وَإِذَا ابْتُلِيتُمْ بِبَلِيَّتَيْنِ فَاخْتَارُوا أَهْوَنَهُمَا.

**ترجمه** کله چه تاسو په دوه مصیبتونو کښې مبتلاء شوئ نو په هغې کښې آسان اختیار کړئ

**مسئله** - که په زړه دې اراده وکړه او په ژبه دې هیڅ ونه ویل، نو مونځ صحیح دې. البته دعوامو دپاره دزړه د ارادې سره په ژبه هم تلفظ کول بهتر دی.

**مسئله** - مقتدی دپاره دخپل امام تعیین شخصی ضروری نه دې، بلکه په امام پسې کیدل ضروری دی، که د امام شخصیت متعین کړی او بیا دهغې خلاف وی نو مونځ یې نه کیږی (شرح نقایه ص۶۰ ج۱)

**مسئله** - اوږدې قصې د دمونځ په الفاظو کښې ویل بې فائدې او ناخوښه دی، ددې لویه خرابی داده چه ددې الفاظو بار بار ویلو نه به فارغ شوې هم نه یې چه امام به قراة شروع کړې وی، او دتکبیر تحریمه د اجرعظیم نه به محرومه پاتې شې، او د ثناء ویلو موقع به دې هم دلاسه ووځی چه دقراءة نه پس یې ویل هم غیر مشروع دی

## دمونځ ارکان

**رکن** - رکن هغه داخلی جزء ته وایی چه هغې نه بغیر مونځ نه کیږی، رکن په معنی د فرض سره دې، ارکان یعنی فرائض. د فرض په پرینبودلو سره مونځ بالکل باطلیږی.

**مسئله** - په اول د اسلام کښې دوه مونځونه وو دمعراج په شپه پنځه مونځونه فرض شول

**درکعتونو شمیر :-**

| | | |
|---|---|---|
| دسحر مونځ | .................... | دوه رکعته فرض دی. |
| دماسپښین مونځ | .................... | څلور رکعته فرض دی. |
| دمازدیګر مونځ | .................... | څلور رکعته فرض دی. |
| دماښام مونځ | .................... | درې رکعته فرض دی. |
| د ماسخوتن مونځ | .................... | څلور رکعته فرض دی. |

عَنْ اَبِیْ مَسْعُوْدِ الْاَنْصَارِیِّ رضی الله عنه قَالَ جَاءَ جِبْرَئِیْلُ اِلَی النَّبِیِّ ﷺ وَقَالَ قُمْ فَصَلِّ وَذٰلِكَ لِدُلُوْكِ الشَّمْسِ حِیْنَ مَا مَالَتْ فَقَامَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فَصَلَّی الظُّهْرَ اَرْبَعًا ثُمَّ اَتَاهُ حِیْنَ كَانَ ظِلُّهٗ مِثْلَهٗ فَقَالَ قُمْ فَصَلِّ فَقَامَ فَصَلَّی الْعَصْرَ اَرْبَعًا ثُمَّ اَتَاهُ حِیْنَ غَرَبَتِ الشَّمْسُ فَقَالَ لَهٗ قُمْ فَصَلِّ فَقَامَ فَصَلَّی الْمَغْرِبَ ثَلَاثًا ثُمَّ اَتَاهُ حِیْنَ غَابَ الشَّفَقُ فَقَالَ لَهٗ قُمْ فَصَلِّ فَقَامَ فَصَلَّی الْعِشَاءَ الْاٰخِرَةَ اَرْبَعًا ثُمَّ اَتَاهُ حِیْنَ بَرَقَ الْفَجْرُ فَقَالَ لَهٗ قُمْ فَصَلِّ فَقَامَ فَصَلَّی الصُّبْحَ رَكْعَتَیْنِ (نصب الرایه ص۲۲۳ ج۱ بحواله مسند اسحاق بن راهویه)

**ترجمه** : حضرت ابو مسعود انصاری رضی الله عنه نه روایت دې هغوی فرمائی چه حضرت جبریل علیه السلام د رسول الله ﷺ په وړاندې تشریف راوړو ، اوعرض یی وکړوچه تاسو پاسیږئ او مونځ وکړئ اودا دنمر د زوال وخت وو، تر دې چه د نمر زوال شوې وو، رسول الله ﷺ د ماسپښین څلورکعته مونځ وکړو، بیا هغوی ﷺ ته جبرئیل علیه السلام راغې چه سیوری یی د مثل برابر ؤو نوهغوی حضور ﷺ ته عرض وکړو چه مونځ وکړی، نورسول الله ﷺ د مازدیګر څلور رکعته مونځ وکړو، بیا جبرئیل علیه السلام راغې کله چه نمر پریوتې ؤو ،او عرض یی وکړو مونځ وکړی، نورسول الله ﷺ دماښام درې رکعته مونځ وکړو، بیا جبرئیل علیه السلام راغې کله چه شفق غائب شوې ؤو، نوهغوی ﷺ دماسخوتن څلور رکعته مونځ وکړو بیا جبرئیل علیه السلام راغې کله چه سبا ختلې ؤو، نورسول الله ﷺ دسبا دوه رکعته مونځ وکړو.

**نوټ** :- ددینه علاوه دهر مونځ سره دسنتو او نفلو بحث دنوافلو په باب کښې او د واجب مونځونو رکعتونه اوتفصیل په خپل خپل ځایی کښې راروان دې (انشاءالله)

**د شمیر حکمت او درکعتونو تعداد :-**

امام ولی الله رحمه الله فرمائی حقه خبره داده چه دمونځ د رکعتونو دتعداد دتعین په باره کښې تول توارث دې دسلف صالحینو نه اودسلفو علوم ختم شوې دی، پس دامکنه نه ده چه په پوخ او په قطعی طریقې سره ددې علت بیان شی. لیکن له حق سره زیاته مناسبه خبره هم دامعلومیږی چه کوم څیز د سبب د جوړیدوسره مشابهت لری هغه دادې چه اصل کښې کم نه کم مونځ دوه رکعته کیدې شی، همدا وجه ده چه دهرو دوو رکعتونه نه وروسته قعده او تشهد کول مشروع ګرځولې

شوې دی ، په دې بناء باندې دهرو دوو رکعتو نه وروسته التحيات مشروع ګرځولې شوې ده. او دا هم مناسب دی چه مونځ به نه دومره کم مقدار کښې وی چه هغې سره مقصد هم نه شی حاصليدې، اونه به ډير زيات وی چه په خلقو باندې سخت تمام شی، سره له دينه چه خلق په قسم قسم کارونو کښې مشغول وی.

او د اهم مناسب دی چه درکعتونو تعداد دې تول وتر وی ځکه چه د وتر رعايت په اعداد متبرکه کښې کيږی ، اومناسب دی چه هر دوه رکعته مستقل مونځ وی، او دې مسئلې نه ددې قاعدې هم استخراج کړې شوې دې چه هر مونځ رباعی کيدل پکار دی ماسوا دماښام دمونځ نه ، ځکه چه دماښام مونځ نسبتا کم وی ، له همدې کبله ددې مونځ درې رکعته مقرر کړې شول.

او دسبا مونځ دوه رکعته مقر کړې شوې دې ځکه چه پدې کښې زيات مقصود د قرآن مجيد ويل دی، او د قرآن دسحر وخت کښې ويل د فرشتو د حاضری وخت دې (بدوربازغه ص ۲۱۰)

امام طحاوی دصلوة وسطی د وجه تسميه په باره کښې ليکلی دی چه : «که څوك سوال وکړی چه صلوة عصر ته صلوة وسطی ولې ويلې شوې دې، نوجواب يی دادې چه دخلقو نه پدې باره کښې دوه قوله نقل شوی دی : يوداچه دامونځ د دوو مونځونو دورځې او د دوو مونځونو د شپې په مينځ کښې واقع شوې دې، له همدې کبله ورته صلوة وسطی وائی، اوبل قول نورو حضراتو بيان کړې دې،چه هغه امام طحاوی په خپل سند سره دعبدالرحمن بصری، عبيدالله بن محمدبن حفص تميمی المعروف بابن عائشه نه نقل کړې دې، هغوی ويلې دی چه کله دسحر په وخت د حضرت آدم ﷺ توبه قبوله شوه نوهغوی دوه رکعته مونځ د شکر دپاره وکړو، يورکعت خو دشپې دتيارې د لرې کيدو دوجې نه اودويم رکعت د رڼا د دوباره راتلو دوجې نه. دا دهغوی د دوؤ رکعتو سبب ؤو او په مونږ باندې هم دغه شان دا دوه رکعته فرض کړې شو»

اوکله چه دحضرت ابراهيم ﷺ د زوئ فديه د ماسپخښين په وخت اداکړې شوه، نوحضرت ابراهيم ﷺ څلور رکعته مونځ ادا کړو له همدې کبله د ماسپښين مونځ څلور رکعته وګرځيدلو.

اوحضرت عزير ﷺ چه کله را اوچت کړې شونوهغوی نه پوښتنه وکړې شوه چه تا څومره وخت تير کړو، پدې حالت کښې هغوی وويل : يوه ورځ ، بيا چه کله هغوی نمر وليدلو نو وې ويل چه : بلکه ما په دې حالت کښې دورځې بعضې حصه تيره کړه ده، لهذا هغوی څلور رکعته مونځ وکړو، نو دمازديګر مونځ هم څلور رکعته مقرر شو.

اوبعضو ويلې دی چه کله حضرت داؤد ﷺ ته کوم لغزش وشواو هغه د ماښام وخت کښې معاف کړې شو، نوهغه ودريدلو اوڅلور رکعته مونځ يی شروع کړو ليکن ستړې شو، نو دريم رکعت باندې کيناستلو، نو له دې کبله دماښام مونځ درې رکعته وګرځيدلو . اودماسخوتن مونځ

دټولو نه وړاندې زمونږ پیغمبر حضرت محمد ﷺ کړې و. (طحاوی ص۸۶ ج۱)
دا آثار اګر چه دومره قوی نه دی لیکن بطور حکمت په څه نه څه درجه کښې قابل د لحاظ دی.
بعضې علماء کرامو دپینځه مونځونو دتعین دپاره حواس خمسه مبدء ګرځولی دی، مجموعی طور باندې ددې انعاماتو د شکر دپاره پنځه مونځونه فرض کړې شول، او د رکعتونو دشمیر حکمت یې داسې بیان کړې دې چه الله ﷻ :
۱- قوة لمس یا حس انسان ته عطاء کړې دې، ددې په ذریعې سره انسان دګرم او یخ څیزونو علم حاصلوی، ددې په شکریه کښې دسحر دوه رکعته مونځ فرض ګرځولې شوې دې.
۲- اوقوة شامّه چونکه د هر څلور واړو طرفونو نه خوشبو محسوسه او معلوموی نو له دې کبل مناسب دی چه ددې په شکریه کښې دماسپښین څلور رکعته مونځ فرض کړې شو.
۳ - قوة ذائقه : دڅلورو قسمو خوندونو،خوږ، ترش، مالګین، تریخ خوند معلوموی نو له دې کبله څلور رکعته د مازدیګر مونځ فرض کړې شو.
۴ - قوة باصره سترګې چونکې دریو طرفونو ته کتلې شی، ښی او چپ او وړاندې طرفته، نو دماښام درې رکعته مونځ ددې دشکریه دپاره فرض کړې شو.
۵ - قوة سامعه غوږونه د څلورو طرفونو نه آوازونه آوریدې شی، نو له دې کبه دماسخوتن څلور رکعته مونځ مقرر کړې شو.
که چیرې دا فرض مونځونه نه وای نو انسان به ددې بیش بها او قیمتی نعمتونو شکریه څنګه ادا کړې وه ؟ واللهاعلم.
شیخ فقیه زاهد بو علی حسین بن یحیی بخاری زندیسی خپل کتاب روضة العلماء کښې لیکلې دی چه علی بن یحیی ویلې دی چه ما د یو بزرګ (ابو الفضل بر معذیری) نه سوال وکړوچه تاسو ماته دا خبره وښایئ چه دسحر دوه رکعته مونځ ولې دې؟ او د ماسپښین او مازدیګر څلور څلور رکعته او په مغرب کښې درې اوماسخوتن کښې څلور رکعته ولې دې ؟
هغوی اول وویل چه شریعت کښې همدارنګه راغلی دی، ما عرض وکړو دزیات وضاحت ضرورت دې نوهغوی وویل چه حکماؤ دا ویلی دی چه مختلف انبیاء علیهم السلام په خپل خپل وخت کښې داټول مونځونه کړی دی، او آخر کښې الله ﷻ ددې ټولو ثواب اوفضیلت دحضور ﷺ د امت دپاره مقرر فرمایلې دې.
**فجر (دسحرمونځ)** :- دټولو نه اول حضرت آدم ؑ کړې دې کله چه دجنت نه را ووینستلې شو نو دنیا پرې توره تیاره شوه، اوکله چه دشپې تیاره راغله نو حضرت ادم ؑ ډیر وه ویریدلو شو څکه چه داسې تیاره یې لیدلې نه وه، چه سحر شو نوهغوی دالله ﷻ د شکر دپاره دوه رکعته مونځ

وکړو، لدې کبله چه دشپې د تیارې نه نجات ورته حاصل شو ،اوبل دورځې د رڼا دشکر دپاره، اومونږ ته هم ددې حکم دې د دې لپاره چه زمونږ نه تیارې د ګناهونو لرې وی اونُور د طاعت راته ښکاره وی نو باید دا دوه رکعتونه وکړو.

**ظهر (د ماسپښین مونځ)** :- دتولو نه اول کله چه حضرت ابراهیم ﷺ ته حکم وشو د بچی د ذبح کولو اوبیا د **(صدقت الرؤیا)** اعلان ورته وشو نو دحضرت ابراهیم ﷺ په وړاندې **څلور حالته وو** یو دبچی دذبحې ، دویم دبچی غم، دریم دبچی دطرف نه د ګډ فدیه، څلورم حالت دالله ﷻ درضا، او دا آواز د زوال په وخت ورته شوې وو، نو دالله ﷻ دشکر د اداء کولو دپاره څلور رکعته مونځ دماسپښین هغوئ اداء کړو.

اومونږ ته هم داحکم دې چه مونږ ددې په ذریعه شیطان لاندې کړو ،اوزمونږ نه غم لرې شی، اوزمونږ نه هم فدیه ادا شی. او د الله ﷻ رضا راته حاصله شی.

**عصر (د مازدیګر مونځ)** - دمازدیګر څلور رکعته دټولو نه اول حضرت یونس ﷺ اداء کړې وو، هغه په څلورو تیارو کښې بند شوې وو، یوه دکمزورئ اوضعف تیاره، دویمه ددریاب تیاره، دریمه دشپې تیاره او څلورمه دمهی دګیډې تیاره. الله ﷻ چه کله ددینه آزاد کړونو دمازدیګر وخت وو، نوهغوی دالله ﷻ دشکر دپاره څلور رکعته مونځ اداء کړو . او دغه مونځ زمونږ دپاره هم دمختلفو تیارونه دبچ کیدو ذریعه ده، دقیامت دتیارې نه، د دوزخ ، دقبر، دشپې، دضعف او کمزورۍ او دخطاګانو دتیارونه هم نجات دې.

**مغرب (دماښام مونځ)** - دماښام مونځ اول عیسی ﷺ اداء کړې وو چه کله الله ﷻ حضرت عیسی ﷺ ته وحې وکړه چه ستا قوم به په ما باندې د دریم ددریونه (ثالث ثلاثة) اعتقادلری ، په حضرت عیسی ﷺ باندې چه کله د نمر پریوتلو په وخت دا وحی وشوه، نوهغوی د الله تعالی لپاره درې رکعته مونځ اداکړو ، په اول رکعت کښې دځپل طرف نه دالوهیت نفی مراد وه، په دویم رکعت کښې دخپلې والدې دطرف نه، په دریم رکعت کښې دالله ﷻ دالوهیت اثبات وو

اوزمونږ دپاره هم په دې کښې دحساب آسانی، ددوزخ نه نجات،اودقیامت په هولناکه ورځ کښې به امن وی.

**عشاء (دماسخوتن مونځ)** - دماسخوتن مونځ دټولونه اول حضرت موسی ﷺ کړې وو. کله چه هغوی دمدین نه وتلی وو نو دسفر په دوران کښې ترې لاره وروکه شوه، یوطرف ته دکوروالا غم، او د ورورهارون ﷺ غم، اود دښمن غم، اود اولاد غم. دالله ﷻ دطرف نه آواز وشو **(أنا ربك)** چه زه به درته لار ښائم، اوزه به تاسو جمع کوم د اهل اوعیال او ورور سره، اوپه دشمن به غلبه درکوم.

لومونږ ته هم دا حکم دې چه دماسخوتن مونځ کوئ دې دپاره چه لاز د هدایت درته معلومه

شی. او الله ﷻ ستاسو کفایت وکړی څنګه یې چه دحضرت موسی علیه السلام دپاره کفایت وکړو. او مونږ به هم دحضرات انبیاء کرامو علیهم السلام سره او صدیقینو سره جمع کړی. او په دشمن (شیطان) به راته غلبه عطاء کړی لکه څنګه یې چه حضرت موسی علیه السلام ته په فرعون باندې غلبه ورکړه. **(امالی الاحبار ص۳۶۳ ج۲)**

# دمونځ د ارکانو تعداد

تکبیر تحریمه، قیام، قراۃ، رکوع، سجده، آخری قعده دتشهد په اندازه. دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد **(هدایه ص۶۲ ج۱)**

۱ - **تکبیر تحریمه** - په حقیقت کښې تکبیر تحریمه زمونږ داحنافو په نزد شرط دې **(شرح نقایه ص۶۷ ج۱)**

**(وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّىٰ) (الاعلیٰ آیت ۱۵)**

**ترجمه** او هغه دخپل رب نوم واخستلو او مونځ یې وکړو.

لیکن دا دمونځ سره یوځای دې نو له همدې کبله په ارکانو کښې شمیرلې شی.

دتکبیر تحریمه معنی داده چه هغه ټول کارونه چه ددینه وړاندې مباح وو او اوس هغه په دې سره (تر سلام ګرځولو پورې) حرام شول. لکه خوراک، څښکاک، خبرې وغیره

**وَالتَّحْرِيمُ جَعْلُ الشَّيْءِ مُحَرَّمًا (شرح نقایه ص۶۷ ج۱)**

**ترجمه** او تحریم دڅه څیز حرامیدو ته وای

**(وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ) (المدثر پ۲۹).**

**ترجمه** او دخپل رب لویی بیان کړه.

**عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ الْحَكَمِ (مَرْفُوعًا) إِنَّ هٰذِهِ الصَّلٰوةَ لَا يَصْلُحُ فِيهَا شَيْءٌ مِنْ كَلَامِ النَّاسِ إِنَّمَا هِيَ التَّسْبِيحُ وَالتَّكْبِيرُ وَقِرَاءَةُ الْقُرْاٰنِ (مسلم ص۲۰۳ ج۱)**

**ترجمه** حضرت معاویه رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی: بیشکه په دې مونځ کښې دخلقو دخبرونه هیڅ هم صحیح نه دی دا خو تسبیح، تکبیر او دقرآن مجید قرائت دې

**وَعَنْ عَلِيٍّ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ مِفْتَاحُ الصَّلٰوةِ الطُّهُورُ وَتَحْرِيمُهَا التَّكْبِيرُ وَتَحْلِيلُهَا التَّسْلِيمُ (ابوداؤد ص۹۱ ج۱. ترملی ص۲، ابن ماجه ص۲۴)**

**ترجمه** حضرت علی رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی دمونځ کیلی (چابی) پاکی ده، او ددې تحریم تکبیر دې. او ددې نه بهر وتل سلام دې

۲ - **قیام**:- یعنی په مونځ کښې ودریدل فرض دی او د مونځ د ارکانو نه جملې څخه دی.

**(هدایه ص۶۳ ج او شرح نقایه ص۷۰ ج۱، کبیری ص۲۶۱)**

**(وَقُومُوا لِلّٰهِ قَانِتِينَ) (البقرة آیت ۲۳۸) (ای ساکتین خاشعین داعین طائعین مخلصین فی الصلوة لان القیام خارج الصلوة لیس بفرض)**

**ترجمه**: الله ﷻ ته په عاجزیی سره ودریږئ، (یعنی خاموش خشوع کونکی، دعا کونکې، او اطاعت کونکې، مخلص، یعنی په مونځ کښې، ځکه چه دمونځ نه بهر قیام فرض نه دې.

**عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ ؓ قَالَ اَنَّهُ ﷺ قَالَ صَلِّ قَائِمًا فَإِنْ لَّمْ تَسْتَطِعْ فَقَاعِدًا فَإِنْ لَّمْ تَسْتَطِعْ فَعَلٰى جُنُبٍ.**

**(بخاری ص۱۵۰ ج۱، مسند احمد ص۴۲۶ ج۴)**

**ترجمه**: حضرت عمران بن حصین ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: په ولاړه مونځ کوئ که ستاسو په ولاړه طاقت نه وی نو بیا یی په ناسته کوئ او که ددې طاقت هم نه وی نو بیا په اړخ څملئ او مونځ وکړئ.

**مسئله**:- بیمار، شیخ، (مشر) ضعیف جومات ته که لاړشی، نو د ساه دګډوډوالی دوجې نه مونځ په ولاړه نشی کولې، نوداسې سړو ته په کور کښې په ولاړه مونځ کول پکار دی.

**مسئله**:- څوك چه په تیزئ سره راشی او الله اکبر ووایی او سمدستی رکوع ته لاړشی نومونځ یی ونشو ځکه چه تکبیر تحریمه په ولاړه فرض اوضروری دې له همدې کیله په ولاړه تکبیر تحریمه ویل پکاردی، بیا به ددینه بعدرکوع ته ځی. **(فتاوی قاضیخان ص۷۰ ج۱)**

**مسئله**:- په یوه پښه باندې ودریدل اوبله بغیر دعذرنه اوچتول مکروه تحریمی دی.

**مسئله**:- دړې عذرونه داسې دی چه په هغې کښې په ناسته مونځ کول جائزدی، بیماری کښې، شیخوخت (انتهائی بوډاوالی) کښې. په بربنډه (چه کله جامې نه وی).

**عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ ؓ قَالَ كَانَ بِيَ النَّاصُوْرُ فَسَأَلْتُ النَّبِيَّ ﷺ فَقَالَ صَلِّ قَائِمًا فَإِنْ لَّمْ تَسْتَطِعْ فَقَاعِدًا**

**(ابوداؤد ص۱۳۷ ج۱ واللفظ له، بخاری ص۱۵۰ ج۱، ترمذی ص۸۰، ابن ماجه ص۸۶)**

**ترجمه**: حضرت عمران بن حصین ؓ فرمائی چه زه دناسور په بیمارئ کښې مبتلاء ووم ما د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه، نوهغوی ﷺ وفرمایل: په ولاړه مونځ کوه، که په ولاړه دکولو دې طاقت نه وی نو په ناسته مونځ کوه.

**عَنْ عَلِيِّ ابْنِ اَبِيْ طَالِبٍ ؓ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ يُصَلِّي الْمَرِيْضُ قَائِمًا اِنِ اسْتَطَاعَ فَإِنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ صَلّٰى قَاعِدًا**

**(دارقطنی ص۴۲ ج۲)**

**ترجمه** حضرت علی بن ابی طالب ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی مریض به په ولاړه مونځ کوی که طاقت لری او که په ولاړه طاقت نه لری نو په ناسته به یې کوی

**عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ؓ قَالَ الَّذِیْ یُصَلِّیْ عُرْیَانًا یُصَلِّیْ جَالِسًا** (مصنف عبدالرزاق ص۵۸۳ ج۲)

**ترجمه** حضرت ابن عباس ؓ نه روایت دې چه کوم سړې «دلباس دنیشتوالی له کبله» په بربنډه مونځ کوی نوهغه به په ناسته مونځ کوی

**اِبْنِ جُرَیْجٍ قَالَ سُئِلَ عَطَاءٌ عَنِ الرَّجُلِ یَخْرُجُ مِنَ الْبَحْرِ عُرْیَانًا، قَالَ یُصَلِّیْ قَاعِدًا وَ کَذَا عَنْ قَتَادَةَ** (مصنف عبدالرزاق ص۵۸۳ ج۲)

**ترجمه** حضرت ابن جریج ؓ فرمائی چه حضرت عطاء ؓ نه پوښتنه وکړې شوه چه کوم سړې د دریاب دحادثې نه بربنډ را ووځی نودهغه د مونځ څه حکم دې ؟ نوهغوی وفرمایل په ناسته به مونځ کوی. دحضرت قتاده ؓ نه هم همدا رنګه نقل دی

**مسئله** وتر، سنت فجراو نذر مونځ دفرض سره ملحق دی لهذا دا هم په ولاړه کول پکار دی

**مسئله** . په نفل مونځ کښې قیام فرض نه دې. البته بغیر دعذر نه به ثواب نیم وی (هدایه ص۹۹ ج۱ شرح نقایه ص۱۰۳ ج۱)

**عَنْ عَائِشَةَ ؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ صَلٰوةُ الْقَاعِدِ عَلَی النِّصْفِ مِنْ صَلٰوةِ الْقَائِمِ** (مسند احمد ص۶۱ ج۶)

**ترجمه** ام المؤمنین حضرت عائشه ؓ نه نقل دی چه رسول الله ﷺ فرمائی دناستې مونځ د ولاړې د مونځ کولو په نسبت نیم ثواب لری

**عَبْدِاللهِ بْنِ شَقِیْقٍ قَالَ سَاَلْتُ عَائِشَةَ ؓ عَنْ صَلٰوةِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ مِنَ التَّطَوُّعِ فَقَالَتْ وَکَانَ یُصَلِّیْ لَیْلًا طَوِیْلًا وَلَیْلًا طَوِیْلًا جَالِسًا** (مسلم ص۲۵۲ ج۱، مسند احمد ص۳۰ ج۶)

**ترجمه** حضرت عبد الله بن شقیق فرمائی چه ما ام المؤمنین حضرت عائشه ؓ نه پوښتنه وکړه د رسول الله ﷺ دنفل مونځ په باره کښې . نو ام المؤمنین وفرمایل بعضې اوقات به یې ترکافی وخته پورې دشپې په ولاړه مونځ کولو ،اوبعضې اوقات به یې ډیروخته پورې په ناسته مونځ کولو

**عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو ؓ قَالَ حُدِّثْتُ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ صَلٰوةُ الرَّجُلِ قَاعِدًا نِصْفُ الصَّلٰوةِ قَالَ فَاَتَیْتُهٗ فَوَجَدْتُهٗ یُصَلِّیْ جَالِسًا فَوَضَعْتُ یَدِیْ عَلٰی رَاْسِهٖ فَقَالَ مَا لَکَ یَا عَبْدَاللهِ بْنَ عَمْرٍو ؓ قُلْتُ حُدِّثْتُ یَا رَسُوْلَ اللهِ ﷺ اِنَّکَ قُلْتَ صَلٰوةُ الرَّجُلِ قَاعِدًا عَلٰی نِصْفِ الصَّلٰوةِ وَاَنْتَ تُصَلِّیْ قَاعِدًا قَالَ اَجَلْ وَلٰکِنِّیْ لَسْتُ کَاَحَدٍ مِّنْکُمْ.** (مسلم ص۲۵۳ ج۱)

**ترجمه** حضرت عبد الله بن عمرو ؓ فرمائی ماته بیان وکړې شو چه رسول الله ﷺ فرمائلی دی

چه په ناسته مونځ کونکی ته په نسبت دولاړمونځ کونکی نیم ثواب ورکول کیږی، نو یوځل زه درسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم ، ما ولیدل چه هغوی په ناسته مونځ کوی نوما دخپل ګمان خلاف کله چه هغوی په ناسته مونځ کونکی ولیدل نوما خپل لاس په سر باندې کیښودلو. رسول الله ﷺ وفرمایل : اې عبدالله څه وشو! نو ماعرض وکړو : دالله رسوله ﷺ ! ما خو داسې آوریدلی وو چه تاسو فرمایلی دی چه په ناسته مونځ کونکی ته نیم ثواب ورکول کیږی. نورسول الله ﷺ وفرمایل آو : مسئله همداسې ده. لیکن دا زما خصوصیت دې چه ماته په ناسته کولوباندې هم پوره ثواب راکول کیږی. زه ستاسو په شان نه یم

**مسئله** - قیام ، رکوع او سجده دا درې واړه داسې فرائض او ارکان دی چه په هررکعت کښې ضروری دی.

**مسئله** - قومه ،جلسه، اوتعدیل د ارکانو (یعنی داندامونو قرار نیولپه مانځه کښې) د امام ابو یوسف رحمه الله په نزد فرض دی

دتعدیل ارکان په باره کښې درسول الله ﷺ دا ارشاد مبارک دې چه

**عَنْ رِفَاعَةَ رضي الله عنه مَرْفُوْعًا فَإِذَا فَعَلْتَ ذٰلِكَ فَقَدْ تَمَّتْ صَلٰوتُكَ وَاِنِ انْتَقَصْتَ مِنْهُ شَيْئًا اِنْتَقَصْتَ مِنْ صَلٰوتِكَ.**

**(ترمذی ص۰ ،مسند احمد ص۳۴۰ ج۴،ابوداؤد ص۱۲۴ ج۱،عن ابی هریرة)**

**ترجمه** حضرت رفاعه رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی کله چه تا دا کار وکړو نو ستا مونځ تمام اومکمل شو. اوکه ستا نه په دې کښې څه کم شول نوتا خپل مونځ کم کړو، یعنی هغه دې ناقص جوړکړو

۳ - **قراءت** - یعنی په مونځ کښې قرآن لوستل فرض دی **(هدایه ص۶۴ ج۱،شرح نقایه ص۶۷ ج۱، کبیری ص۲۶۵)**

**(فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ)، (المزمل آیت ۲۰)**

**ترجمه** نو قرآن لولئ څومره چه (په مونځ کښې) درته آسان وی

**مونځ کښې مطلق قرائت فرض دې** - مونځ کښې مطلق قراءة فرض دې لکه څنګه چه په احادیثو کښې موجوددې

**عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ لَا صَلٰوةَ اِلَّا بِقِرَاءَةٍ (مسلم ص۱۷۰ ج۱،منتقی ابن جارود ص۶۳)**

**ترجمه** حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل بغیر دقرآن نه مونځ نه کیږی

**اَبِیْ سَعِيْدٍ رضي الله عنه قَالَ اُمِرْنَا اَنْ نَقْرَءَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَمَا تَيَسَّرَ (ابوداؤد ص۱۱۸ ج۱)**

**ترجمه** حضرت ابو سعید خدری رضي الله عنه فرمائی چه مونږ خلقو ته د دې امر شوې دې چه فاتحة

الکتاب او چه کومه حصه راته میسره او آسانه وی هغه ولولو .

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ ﷺ اَنَّ النَّبِیَّ ﷺ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَدَخَلَ رَجُلٌ فَصَلّٰی ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ عَلَی النَّبِیِّ ﷺ فَرَدَّ عَلَیْهِ النَّبِیُّ ﷺ فَقَالَ ارْجِعْ فَصَلِّ فَاِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ عَلَی النَّبِیِّ ﷺ فَقَالَ وَالَّذِیْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا اُحْسِنُ غَیْرَ هٰذَا فَعَلِّمْنِیْ فَقَالَ اِذَا قُمْتَ اِلَی الصَّلٰوةِ فَکَبِّرْ ثُمَّ اقْرَءْ مَا تَیَسَّرَ مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ ثُمَّ ارْکَعْ حَتّٰی تَطْمَئِنَّ رَاکِعاً . (بخاری ص۱۰۹ ج۱، مسلم ص۱۷۰ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ مسجد ته داخل شو یوسړې هم مسجد ته راغې اومونځ یې وکړو بیایې په رسول الله ﷺ باندې سلام وکړو هغوی ﷺ د دې جواب ورکړو او وې فرمایل واپس لاړ شه اوبیا مونځ وکړه تا مونځ نه دې کړې. هغه واپس لاړو مونځ یې وکړو او بیا راغې سلام یې وکړو هغوی ﷺ وفرمایل زاپس شه اومونځ وکړه تا مونځ نه دې کړې هغه واپس شو بیا راغې، هغوی ﷺ بیا وفرمایل واپس شه اومونځ وکړه تا مونځ نه دې کړې، هغه سړی عرض وکړو په هغه ذات قسم چا چه ته دحق سره رالیږلې یې ، زه خوددینه ښه مونځ نه پیژنم، تاسو راته وښایئ، نوهغوی ﷺ وفرمایل : کله چه ته مونځ دپاره ودریږې نو تکبیر وایه، بیا چه تاته کوم قرآن میسر وی هغه وایه ، بیا رکوع کوه تردې چه ښه په اطمینان سره تیټ شې او رکوع وکړې.

دلته مقام ضرورت او مقام تعلیم کښې صرف د قرآن ذکر شوې دې دسورة فاتحه ذکر یې ونکړو خکه چه دا د تعلیم مقام وو .

وَعَنْ عُبَادَةَ ابْنِ الصَّامِتِ ﷺ اَخْبَرَهٗ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ لَا صَلٰوةَ لِمَنْ لَمْ یَقْرَأْ بِاُمِّ الْقُرْاٰنِ فَصَاعِداً. (مسلم ص۱۶۹ ج۱، ابوداؤد ص۱۱۹ ج۱، مصنف عبدالرزاق ص۹۳ ج۲)

**ترجمه** : حضرت عباده بن صامت ﷺ خبر ورکوی چه رسول الله ﷺ فرمایی دهغه چا مونځ صحیح نه دې چا چه ام القرآن (سورة فاتحه ) اوځه زیات قرآن ونه ویلو.

وَفِیْ حدیث اَبِیْ هُرَیْرَةَ ﷺ قَالَ قَالَ لِیْ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اُخْرُجْ فَنَادِ فِی الْمَدِیْنَةِ اَنَّهٗ لَا صَلٰوةَ اِلَّا بِقُرْاٰنٍ وَلَوْ بِفَاتِحَةِ الْکِتَابِ فَمَا زَادَ (ابوداؤد ص۱۱۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابوهریره ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ ماته وفرمایل : لاړشه ! اوپه مدینه کښې اعلان وکړه چه مونځ نشته مګر دقرآن دویلو سره ،چه فاتحة الکتاب اوځه زیات وی .

وَفِیْ حدیث عُبَادَةَ ﷺ لَا صَلٰوةَ اِلَّا بِفَاتِحَةِ الْکِتَابِ وَاٰیَتَیْنِ مِنَ الْقُرْاٰنِ . (شرح نقایه ص۷۹ ج۱، کنزالعمال ص۲۱۳ ج۴ بحواله طبرانی)

**ترجمه** : حضرت عباده ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی مونځ نه دې مګر چه سورة فاتحه اوچه دوه آیتونه دهغې سره وی دقرآن نه .

اَبِي قَتَادَةَ ﷺ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَقْرَءُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَسُورَةٍ وَيُسْمِعُنَا الْآيَةَ اَحْيَانًا (بخاری ص۱۰۵ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو قتاده ؓ نه روايت دې چه رسول اللهﷺ به دماسپښين اومازديګرپه رومبو دوو رکعتونو کښې سورة فاتحه اوځه سورة لوستلو. اوکله کله به يې يو آيت هم مونږ ته آورولو.

اَبِي هُرَيْرَةَ ؓ اَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ اَمَرَهُ قَالَ اُخْرُجْ فَنَادِ فِي اَهْلِ الْمَدِينَةِ اَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ لَا صَلٰوةَ اِلَّا بِفَاتِحَةِ الْقُرْآنِ فَمَا زَادَ (منتقى ابن جارود ص۶۲)

**ترجمه**: حضرت ابوهريره ؓ نه روايت دې چه بيشکه رسول الله ﷺ حکم وکړوچه لاړ شه اومدينه کښې اعلان وکړه، چه رسول الله ﷺ فرمايلي دی چه مونځ نه کيږی مګر د سورة فاتحه اوځه زياته حصه دقرآن په لوستلو.

عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ ؓ قَالَ لَا تَجُوزُ صَلٰوةٌ لَا يُقْرَءُ فِيهَا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ آيَتَيْنِ فَصَاعِدًا. (مصنف ابن ابى شيبة ص۳۶۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عمران بن حصين ؓ نه روايت دې هغوی فرمائی چه مونځ جائز نه دې ترڅوچه په دې کښې سورة فاتحه اودوه آيتونه يادډېنه زياته حصه دقرآن ونه لولی.

عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ جَلَسْتُ اِلٰى رَهْطٍ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ ﷺ مِنَ الْاَنْصَارِ فَذَكَرُوا الصَّلٰوةَ وَقَالُوا لَا صَلٰوةَ اِلَّا بِقِرَاءَةٍ وَلَوْ بِاُمِّ الْكِتَابِ قَالَ خَالِدٌ فَقُلْتُ لِعَبْدِاللهِ بْنِ الْحَارِثِ هَلْ سَمّٰى اَحَدًا مِنْهُمْ قَالَ نَعَمْ خَوَّاتَ بْنِ جُبَيْرٍ ؓ (مصنف ابن ابى شيبة ص۳۶۱ ج۱)

**ترجمه**: عبد الله بن حارث ؓ نه روايت دې هغوی ؓ فرمائی چه زه درسول اللهﷺ دصحابو د يوې ډلې د انصارو سره ناست وم، نوهغوی دمونځ ذکر وکړو او هغوی وفرمايل چه مونځ بغير دقرآن دتلاوت نه نه کيږی. اګر که سورة فاتحه وی. حضرت خالد ؓ فرمائی چه ما حارث بن عبد الله ؓ ته عرض ووکړو، چه په صحابو کښې دچانوم هم ذکر دې نوهغوی وفرمايل آو! دحضرت خوات بن جبير ؓ نوم يې ذکر کړو.

**مسئله**:- دحضرت امام ابو حنيفه ؒ په نزد دفرائض خمسه په اولودوو رکعتونو کښې قرات فرض دې. (هدايه ص۱۰۱، ج۱، شرح نقايه ص۶۸ ج۱، کبيری ص۲۷۶).

**مسئله**:- دفرضوپه آخری دوو رکعتوکښې او د مابنام آخری رکعت کښې سورة فاتحه ويل سنت دی. (هدايه ص۹۶ ج۱، شرح نقايه ص۸۰ ج۱، کبيری ص۲۷۸)

عَنْ اَبِي قَتَادَةَ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ لَا يَقْرَءُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْاُولَيَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَسُورَةٍ

وَيُسْمِعُنَا الآيَةَ أَحْيَانًا وَيَقْرَءُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الأُخْرَيَيْنِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ (مسلم ص۱۸۵ ج۱، بخاری ص۱۰۷ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو قتاده ﷜ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به دمازدیګر او ماسپښین په ړومبو دوو رکعتو کښې سورة فاتحه اوڅه سورة لوستلو. اوکله کله به یې یو آیت مونږ ته هم آورولو. او آخری دوو رکعتو کښې به هغوی ﷺ صرف سورة فاتحه لوستله.

**مسئله**: - دفرضو آخری دوو رکعتو کښې که فاتحه وئه وایی اوصرف تسبیح ووایی یا باالکل چُپ ولاړ وی، نوهم جائز دی. لیکن تسبیح د چپ والی نه بهتره ده. (هدایه ص۹۹ ج۱، شرح نقایه ص۸۱ ج۱، کبیری ص۲۷۷)

عَنْ عَلِيٍّ وَعَبْدِاللهِ أَنَّهُمَا قَالاَ اِقْرَأْ فِي الأُوْلَيَيْنِ وَسَبِّحْ فِي الأُخْرَيَيْنِ (مصنف ابن ابی شیبه ص۳۷۲ ج۱)

**ترجمه**: حضرت علی ﷜ اوحضرت عبد الله ﷜ نه روایت دې هغوی فرمائی چه دفرضو په ړومبو دوو رکعتو کښې قرآن لولئ او وروستو دوو رکعتو کښې تاسو تسبیح لولئ.

عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ قَيْسٍ أَنَّ عَبْدَاللهِ بْنَ مَسْعُوْدٍ﷜ كَانَ لاَ يَقْرَءُ خَلْفَ الإِمَامِ فِيْمَا يُجْهَرُ فِيْهِ. وَفِيْمَا يُخَافَتُ فِيْهِ فِي الأُوْلَيَيْنِ وَلاَ فِي الأُخْرَيَيْنِ وَإِذَا صَلّٰى وَحْدَهُ قَرَءَ فِي الأُوْلَيَيْنِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَسُوْرَةٍ وَلَمْ يَقْرَءْ فِي الأُخْرَيَيْنِ شَيْئًا (مؤطا امام محمد ص۹۹)

**ترجمه**: حضرت علقمه ﷫ فرمائی چه حضرت عبد الله بن مسعود ﷜ به دامام نه وروستو نه په ښکاره مونځونو کښې قراءة کولو او نه په پټو مونځونو کښې. نه په ړومبو دوو رکعتونو کښې او نه په آخری دوو رکعتونو کښې. په یو کښې به یې هم قرائت نه کولو اوکله چه به یې ځان له مونځ کولونو ړومبو دوو رکعتونو کښې به یې سورة فاتحه او څه بل سورة لوستلو. او آخری دوو رکعتو کښې به یې هیڅ نه لوستل.

**مسئله**: - د وترو په ټولو رکعتونو کښې او دنفلو په هر رکعت کښې همدارنګه دجمعې او د اخترونو په دواړو رکعتونو کښې قراءة فرض دې (هدایه ص۹۹ ج۱، شرح نقایه ص۸۱، کبیری ص۲۷۵، ۲۷۶)

**مسئله**: - اندازه دقراءة په یو رکعت کښې یو آیت اوږد یا درې آیتونه مختصر. لکه (انااعطیناك۔ الخ). فرض دې. (هدایه ص۱۰۰ ج۱، شرح نقایه ص۸۱ ج۱، کبیری ص۲۷۸)

(فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ) (المزمل آیت ۲۰).

**ترجمه**: لوله څومره چه دقرآن نه درته آسان وی (په مونځ کښې)!

**مسئله**: - په قرائت کښې د الفاظو لوستل ضروری دی. صرف په خیال او سوچ سره دقرائت کولو سره مونځ نه کیږی، ترڅو چه ژبې ته حرکت ورنکړې شی. او په خپلو غوږونو یې آوریدلی نوی. نو

تر هغې به قرائت متحقق نه وي مګر دا چه معذور وي ، بعضو ويلي دي چه تصحيح د حروفو واجب ده، ليکن اصح او ارجح او زيات احتياط والا رومبې مسلك دې، (هدايه ص۱۰۳ ج۱ شرح وقايه ص۱۳۹ شرح نقايه ص۸۲ ج۱)

عَنْ عَبِيدَةَ فِي الْقِرَاءَةِ فِي صَلوٰةِ النَّهَارِ (قَالَ) إِسْمَعْ نَفْسَكَ . (مصنف ابن ابي شيبه ص۳۶۳ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبيده بن عمر السلماني رحمه الله مشهور تابعي فرمائي چه د ورځې په مونځونو کښې هم داسې لوله چه ته يې خپله آوريدې شې اوغوږونو ته دې آواز ورسيږي .

عَنِ ابْنِ سَابِطٍ قَالَ أَدْنَى مَا يَقْرَءُ الْقُرآنَ أَنْ تُسْمِعَ أُذُنَيْكَ (مصنف ابن ابي شيبة ص۳۶۳ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبد الرحمن بن سابط رحمه الله مشهور تابعي فرمائي د ادنی درجې قرآن لوستل دادې چه ته يې په خپلو غوږونو واورې .

**مسئله** :- د امام دپاره دسحر ماښام ، ماسخوتن ،جمعې ،اخترونو، تراويحو او صرف په رمضان المبارك کښې د وترو په مونځ کښې قرائت په زوره ويل واجب دی، همدغه رنګه په ماسپښين او مازديګر کښې په پټه قرائت لوستل واجب دی (هدايه ص۱۰۳ ج۱ شرح نقايه ص۸۲ ج۱)

اِبْنِ شِهَابٍ قَالَ سَنَّ رَسُولُ اللهِ ﷺ أَنْ يُجْهَرَ بِالْقِرَاءَةِ فِي الْفَجْرِ كِلَيْهِمَا وَيُقْرَءُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ فِي صَلوٰةِ الظُّهْرِ بِأُمِّ الْقُرْآنِ وَسُورَةٍ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ سِرًّا فِي نَفْسِهِ وَيَقْرَءُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُخْرَيَيْنِ فِي صَلوٰةِ الظُّهْرِ بِأُمِّ الْقُرْآنِ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ سِرًّا فِي نَفْسِهِ يَفْعَلُ فِي الْعَصْرِ مِثْلَ مَا يَفْعَلُ فِي الظُّهْرِ وَيَجْهَرُ الْإِمَامُ بِالْقِرَاءَةِ فِي الْأُولَيَيْنِ مِنَ الْمَغْرِبِ وَيَقْرَءُ فِي كُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ وَسُورَةٍ وَيَقْرَءُ فِي الرَّكْعَةِ الْأَخِرَةِ مِنْ صَلوٰةِ الْمَغْرِبِ بِأُمِّ الْقُرْآنِ سِرًّا فِي نَفْسِهِ ثُمَّ يَجْهَرُ بِالْقِرَاءَةِ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ مِنْ صَلوٰةِ الْعِشَاءِ وَيَقْرَءُ فِي الْأُخْرَيَيْنِ فِي نَفْسِهِ بِأُمِّ الْقُرْآنِ وَيَنْصِتُ مَنْ وَرَاءَ الْإِمَامِ وَيَسْتَمِعُ لِمَا جَهَرَ بِهِ الْإِمَامُ لَا يَقْرَءُ مَعَهُ أَحَدٌ. (نصب الرايا ص۱ ج۲ ومراسيل ابي داؤد ص۶ ملحقه سنن ابي داؤد)

**ترجمه** : حضرت امام ابن شهاب زهري رحمه الله نه نقل دی چه رسول الله ﷺ مقرر فرمايلی دی چه دسحر په دوو رکعتو کښې دې قرائت بالجهر وکړې شی، او د ماسپښين په مونځ کښې په رومبو دوو رکعتونو کښې دې سورة فاتحه اوځه سورة په پټه ولولی ، او د ماسپښين په وروستو دوو رکعتونو کښې دې سورة فاتحه پټه ولولی ، او د مازديګر په مونځ کښې دې هم همداسې وکړی ، څنګه چه په ماسپښين کښې دی، او د ماښام مونځ کښې به هم امام په رومبو دوو رکعتو کښې سورة فاتحه او ځه سورة په زوره وايي ، اوپه آخري رکعت کښې به صرف سورة فاتحه پټ لولی. او دماسخوتن په رومبو دوو رکعتو کښې به امام قرائت په زوره لولی ، اوپه آخری دوو رکعتو کښې به صرف سورة فاتحه پټه لولی، اوچه کوم خلق په امام پسې وی هغوی به خاموش اوسيږی ،

او چه امام څه وایي هغه به آوري، او د امام سره به څوك هم قرائت نه لولي.

عَنْ أَبِي مَعْمَرٍ رضي الله عنه قُلْتُ لِخَبَّابِ بْنِ الْأَرَتِّ أَكَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ قَالَ نَعَمْ قُلْتُ بِأَيِّ شَيْءٍ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ قِرَاءَتَهُ قَالَ بِاضْطِرَابِ لِحْيَتِهِ (بخاري ص۱۰۵ ج۱ بيهقي ص۱۹۳ ج۲).

**ترجمه**: حضرت ابو معمر فرمائی چه ما دحضرت حباب بن ارت رضي الله عنه نه پوښتنه وکړه. چه آیا رسول الله ﷺ به د ماسپښین او مازدیگر مونځ کښې قرائت کولو؟ هغوی وفرمایل: آو! کولو به یې؛ نوما عرض وکړو تاسو ته به څنګه معلومیدله چه هغوئ قرائت کوی، نو هغوئ وفرمایل چه دهغوئ د ګیرې مبارکې دخوزیدلو او حرکت نه به مونږ ته معلومیدله.

عَنْ أَبِي نَضْرَةَ قَالَ كُنَّا عِنْدَ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رضي الله عنه فَكُنَّا نَتَذَاكَرُ الْعِلْمَ وَقَالَ رَجُلٌ لَا تُحَدِّثُوا إِلَّا بِمَا فِي الْقُرْآنِ فَقَالَ لَهُ عِمْرَانُ إِنَّكَ لَأَحْمَقُ أَوَجَدْتَ فِي الْقُرْآنِ صَلٰوةَ الظُّهْرِ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ وَالْعَصْرَ أَرْبَعًا لَا تَجْهَرُ بِالْقِرَاءَةِ فِي شَيْءٍ مِنْهَا وَالْمَغْرِبَ ثَلَاثَةً تَجْهَرُ بِالْقِرَاءَةِ فِي الرَّكْعَتَيْنِ مِنْهَا وَلَا تَجْهَرُ فِي رَكْعَةٍ وَالْعِشَاءَ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ تَجْهَرُ بِالْقِرَاءَةِ فِي رَكْعَةٍ مِنْهَا وَلَا تَجْهَرُ فِي رَكْعَتَيْنِ وَالْفَجْرَ رَكْعَتَيْنِ تَجْهَرُ فِيهِمَا بِالْقِرَاءَةِ. (سنن الكبرى ص۱۹۳ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابو نضرة رحمه الله فرمائی چه مونږ دحضرت عمران بن حصین رضي الله عنه سره وو، مونږ دعلم تذکره کوله، یو سړی وویل چه صرف هغه څیز بیان کړه چه په قرآن کښې وی، نوحضرت عمران رضي الله عنه وفرمایل: ته کم عقل یې چه داسې خبرې کوې، آیا تا په قرآن کښې د ماسپښین او مازدیګر دمونځ دڅلورو رکعتو ذکر موندلې دې، او دا دې موندلی دی چه دې کښې به قرائت په ښکاره نه کیږی، او د ماښام د درې رکعتو ذکر دې پکښې موندلې دې، اودا چه پدې کښې دې په رومبو دوو رکعتو کښې جهر وشی، او یو رکعت دې پټ ولوستلې شی، او د ماسخوتن د څلورو رکعتو ذکر دې موندلې دې دا چه پدې کښې دې په دوو رومبو رکعتو کښې ښکاره ولوستلې شی او په دوو نور کښې دې پټ ولوستلې شی. او د سحر دوه رکعته کښې دې ښکاره ولوستلې شی، آیا دا تا په قرآن کښې موندلی دی؟

ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ رَأَى رَجُلًا يَجْهَرُ بِالْقِرَاءَةِ فَدَعَاهُ فَقَالَ إِنَّ صَلٰوةَ النَّهَارِ لَا تَجْهَرُ فِيهَا فَأَسِرَّ قِرَاءَتَكَ (مصنف ابن ابي شيبة ص۳۶۴ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه یو سړې ولیدلو چه د ورځې په وخت کښې په زوره قرائت کوی، نو هغه یې را وغوښتو او ورته یې وفرمایل چه د ورځې په مونځونو کښې په زوره قرائت نه دی کول پکار، خپل قرائت پټ کړه.

عَنِ الْحَسَنِ قَالَ صَلٰوةُ النَّهَارِ عَجْمَاءُ وَصَلٰوةُ اللَّيْلِ تُسْمِعُ أُذُنَيْكَ (مصنف ابن ابي شيبة ص۳۶۳ ج۱).

**ترجمه**: حضرت حسن بصری رحمه الله نه روایت دې چه دورځې مونځونه خاموش وی، اودشپې

مونځونه دومره په زوره لوستل پکاردي چه ستا غوږونه يې واوري

عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَأُمُّنَا فَيَجْهَرُ وَيُخَافِتُ فَنَجْهَرُ فِيمَا جَهَرَ وَنُخَافِتُ فِيمَا خَافَتَ. (مسلم صه ۱۷۰ ج ۱، مصنف عبدالرزاق صه ۱۲۱ ج ۲، مصنف ابن ابي شيبة صه ۳۶۲ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هريره ﷺ نه روايت دي چه رسول الله ﷺ به مونږ ته مونځ راكولو. هغوی ﷺ به ښكاره هم لوستلو او پټ هم. كومو مونځونو كښې چه هغوی ﷺ ښكاره لوستل كول په هغې كښې به مونږ هم ښكاره لوستل كول. اوپه كوموكښې چه به هغوی پټ لوستل كول په هغې كښې به مونږ هم پټ لوستل كول.

اِبْنِ جُرَيْجٍ قُلْتُ لِعَطَاءٍ اَلسُّنَّةُ رَفْعُ الصَّوْتِ بِالْقِرَاءَةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ قَالَ نَعَمْ (مصنف عبدالرزاق صه ۱۷۰ ج ۳)

**ترجمه**: ابن جريج رحمه الله فرمايي چه ما حضرت عطاء نه پوښتنه وكړه چه آيل دجمعې په مونځ كښې قرائت په زوره مسنون دې؟ نو هغوی وفرمايل: آو!

عَنْ عَطَاءٍ قَالَ يُرْفَعُ الصَّوْتُ بِالْقِرَاءَةِ فِي الْجُمُعَةِ وَالْعِيدَيْنِ (مصنف ابن ابي شيبة صه ۱۸۰ ج ۲)

**ترجمه**: حضرت عطاء فرمائي چه په اخترونو اوجمعو كښې دې قرات په زوره وكړې شي.

اِبْنِ جُرَيْجٍ قَالَ قُلْتُ لِعَطَاءٍ مَا يُجْهَرُ بِهِ الصَّوْتُ مِنَ الْقِرَاءَةِ مِنْ صَلوٰةِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ الْمَكْتُوبَةِ؟ قَالَ الصُّبْحُ وَالْاُوْلَيَيْنِ الْعِشَاءِ وَالْاُوْلَيَيْنِ الْمَغْرِبِ وَالْجُمُعَةَ اِذَا كَانَتْ فِي جَمَاعَةٍ فَاَمَّا اِذَا كَانَ الْمَرْءُ وَحْدَهُ فَلَا هِيَ الظُّهْرُ حِينَئِذٍ وَالْفِطْرِ حِينَئِذٍ قَالَ وَاَظُنُّ الْاَضْحٰى مِثْلَ الْفِطْرِ (مصنف عبالرزاق صه ۹۹، ۱۰۰ ج ۲)

**ترجمه**: ابن جريج فرمائي چه ما حضرت عطا نه پوښتنه وكړه چه هغه كوم فرض مونځونه دورځې او دشپې دی چه په هغې كښې په اوچت آوازباندې قرائت كول پكار دی؟ هغوی وفرمايل: دسبا مونځ او دماسخوتن ړومبو دوو ركعتونو كښې او د ماښام په ړومبو دوو ركعتونو كښې، او د جمعې مونځ چه كله په جماعت سره وی، كه دجمعې په ورځ څان له وی نو بيا هغه دماسپښين مونځ دې، چه په پټه كيږی. او وړوكی اختر كښې او دغه اختر په مونځونو كښې به په زوره قرائت لوستلې شی

**مسئله**:- كه جهری مونځونه څان له وی نوپه زوره لوستل يې بهتر دی، كله چه نورو ته تكليف نه رسيږی. څان له مونځ كونكی ته اختيار دې چه په زوره يې لولی او كه په پټه. (شرح نقايه صه ۸۲ ج ۱ هدايه صه ۱۰۲ ج ۱)

**مسئله**:- كه دتولو نه مونځ قضاء شی نو بيا به امام جهر كوی. (هدايه صه ۱۰۲ ج ۱ شرح نقايه صه ۸۲ ج ۱)

په سفر كښې دنبی ﷺ او صحابو رضی الله عنهم نه دسحر مونځ قضاشو نوهغوی دنوركله په شان په جماعت سره قضاء وفرمايلو

عَنْ اَبِي قَتَادَةَ ﷺ (فِي حَدِيْثٍ طَوِيْلٍ) ثُمَّ اَذَّنَ بِلَالٌ بِالصَّلٰوةِ فَصَلّٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ صَلَّى الْغَدَاةَ فَصَنَعَ كَمَا كَانَ يَصْنَعُ كُلَّ يَوْمٍ (مسلم صـ۲۳۹ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابو قتاده ﷺ نه يو اوږد حديث کښې نقل دی (چه دسحرمونځ قضاء شوې ؤو، په سفر کښې) چه بيا حضرت بلال ﷺ اذان وکړو اوبيا رسول الله ﷺ ړومبې دسحر دوه رکعته سنت وکړل، بيا يې دسحر مونځ داسې اداء کړو څنګه چه به يې هره ورځ اداکولو.

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ عَرَّسَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ (اِلٰى اَنْ قَالَ) ثُمَّ اُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَصَلَّى الْفَجْرَ بِاَصْحَابِهٖ وَجَهَرَ فِيْهَا بِالْقِرَاءَةِ كَمَا كَانَ يُصَلِّيْ بِهَا فِيْ وَقْتِهَا. نصب الرايه صـ۲ ج۲ بحواله كتاب الآثار للامام محمد)

**ترجمه** : له حضرت ابراهيم نه نقل دی چه رسول الله ﷺ دشپې په آخری حصه کښې د آرام دپاره کوزشو، (تر دې پورې يې وفرمايل چه ...) بيا دمونځ اقامت وشو، بيا رسول الله ﷺ خپلو صحابو ﷺ ته دسحر مونځ دښکاره قرائت سره وکړو لکه څنګه چه به يې هره ورځ کولو، دمونځ وخت کښې.

**مسئله** :- د کوم خاص مونځ دپاره څه خاص سورة مقررول چه ددينه علاوه به بل سورة نه لولی، دا مکروه دی ځکه چه پدې کښې دبعضې سورتونو په بعضو باندې دفوقيت وهم دې، اوبعضې ناپوهه خلق دا ګمان کوی چه پدې رکعت کښې دا سورة جائزدې دينه علاوه بل سورة په کښې جائز نه دې، رسول الله ﷺ بغير دتعيين نه په مونځ کښې تلاوت فرمايلې دې. (هدايه صـ۹ ج۱ شرح نقايه صـ۸۲ ج۱)

عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ مَا مِنَ الْمُفَصَّلِ سُوْرَةٌ صَغِيْرَةٌ وَلَا كَبِيْرَةٌ اِلَّا قَدْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَؤُمُّ بِهَا النَّاسَ فِي الصَّلٰوةِ الْمَكْتُوْبَةِ (جمع الفوائد صـ۷۰ ج۱ بحواله نسائی)

**ترجمه** : دحضرت عمروبن شعيب عن ابيه عن جده ﷺ په روايت کښې دی چه دقرآن مفصل سورتونو کښې د قرآن اوه منزله ، واړه او لوئ تول سورتونه رسول الله ﷺ په مونځ کښې تلاوت کړی وو په فرض مونځونو کښې به يې ددې سره امامت کولو، ما په خپله د رسول الله ﷺ نه دا سورتونه په فرض مونځونو کښې لوستل آوريدلی دی.

**مسئله** :- حضرت ابو قتاده ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به ړومبې رکعت د دويم رکعت نه اوږد کولو ، (بخاری صـ۱۰۵ ج۱، مسلم صـ۱۸۵ ج۱) . دامام ابوحنيفه رحمه الله او امام ابو يوسف رحمه الله په نزد دا دسحر دمونځ سره مخصوص دې (هدايه صـ۷۲ ج۱).

**مسئله** :- د ړومبی رکعت قرائت به ددويم رکعت دقرائت نه ډير نه اوږد وی.

**مسئله** :- دچا دپاره په مونځ کښې د قرآن د الفاظو په ځای د آيت ترجمه کول جائز نه دې.

**مسئله** :- نومسلم سړې چه ترکومې يې د قرآن څه حصه نه وی ياده کړې او ناپوهه (اُمی) چه دقرآن څه حصه هم نشی تلاوت کولې نوداسې سړې به په ځای دقرائت . تسبيح کوی.

عَن عَبدِاللہ بنِ اَبِي اَوفٰی قَالَ جَاءَ رَجُلٌ اِلَی النَّبِيِّ ﷺ فَقَالَ اِنِّي لَا اَستَطِیعُ اَن اٰخُذَ مِنَ القُرآنِ شَیئًا فَعَلِّمنِي مَا یُجزِئُنِي مِنهُ فَقَالَ قُل سُبحَانَ اللہِ وَالحَمدُ لِلّٰہِ وَلَا اِلٰہَ اِلَّا اللہُ وَاللہُ اَکبَرُ وَلَا حَولَ وَلَا قُوَّۃَ اِلَّا بِاللہِ قَالَ یَا رَسُولَ اللہِ هٰذَا لِلّٰہِ فَمَا لِي قَالَ قُل اَللّٰهُمَّ ارحَمنِي وَارزُقنِي وَعَافِنِي وَاهدِنِي.

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن ابی اوفی ﷺ نه روایت دې چه یو سړې د رسول اللهﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض یې وکړو چه زه د قرآن نه څه څیز تلاوت نشم کولې. نو تاسو ماته څه وښایئ چه دې سره زما مونځ درست شی، هغوئ وفرمایل: دا وایه چه: (سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر ولا حول ولا قوة الا بالله) هغه سړی عرض وکړو چه یا رسول الله! دا خو د الله ﷻ د پاره دی او زما د پاره څه دی؟ هغوی مبارک وفرمایل: داسې وایه: (اَللّٰهُمَّ ارحَمنِي وَارزُقنِي وَعَافِنِي وَاهدِنِي).

عَن رِفَاعَةَ بنِ رَافِعٍ اَنَّ رَسُولَ اللہِ ﷺ قَالَ فِي حَدِیثِ مُسِيءِ صَلٰوۃٍ فَلَمَّ ثُمَّ کَبِّر فَاِن کَانَ مَعَکَ قُرآنٌ فَاقرَأ بِهٖ وَاِلَّا فَاحمِدِ اللہَ عَزَّ وَجَلَّ وَکَبِّرهُ وَهَلِّلهُ (ابوداؤد صه ۱۲۵ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت رفاعه بن رافع ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ (هغه سړی ته چه په مونځ کښې یې نقصان کړې وؤ، هغه ته د تعلیم ورکولو د پاره وفرمایل) پس ته ودریږه! بیا تکبیر وکړه! که تاته د قرآن څه حصه حفظ وی نو هغه ووایه! او که نه نو د الله ﷻ تعریف کوه، او: ((الله اکبر)) او ((لا اله الا الله)) وایه (دا ستا لپاره کافي دی).

۴ - **رکوع** :- رکوع هم د مونځ د فرائضو اوارکانو څخه ده، لکه چه د الله ﷻ ارشاد دې:

(وَارکَعُوا مَعَ الرَّاکِعِینَ) (بقره آیت ۴۳)

**ترجمه**: او رکوع کوئ د رکوع کونکو سره.

(وَاِذَا قِیلَ لَهُمُ ارکَعُوا لَا یَرکَعُونَ) (المرسلات آیت ۴۸)

**ترجمه**: او الله ﷻ د کافرو په مذمت او بدی کښې فرمائی: ) او کله چه دوئ (کافرو) ته وویلې شی چه رکوع کوئ نو دوئ رکوع نه کوی.

**د رکوع فضائل** :- یوځل د رسول الله ﷺ په خدمت کښې د بنی ثقیف سرداران حاضر شول، د مونځ په سلسله کښې یې د رکوع نه ځان بند کړ وکړو، یعنی دو ویل چه مونږ مونځ کوو لیکن رکوع زمونږ څخه نه کیږی ځکه چه پدې کښې مونږ خپل تذلیل ګڼو، نو رسول اللهﷺ وفرمایل ،(لَا خَیرَ فِي دِینٍ لَا رُکُوعَ فِیهِ) یعنی په هغه دین کښې هیڅ بهتری نشته په کوم کښې چه رکوع نه وی.

(مسند احمد صه ۲۱۸ ج ۴ بیهقی صه ۲۲۵ ج ۲).

يٰأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا وَاعْبُدُوا رَبَّكُمْ وَافْعَلُوا الْخَيْرَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ (الحج آيت ۷۷)

**ترجمه** اې مؤمنانو! رکوع اوسجده کوئ او د خپل رب عبادت کوئ او دنيکيي کار کوئ، دې دپاره چه تاسو فلاح او کاميابي بيا مومئ.

**د رکوع حقيقت** - وحقيقت روح انقياد دل است براى تحمل بار امانت الهى ولهذا اين صورت را درين شريعت عبادت گردانيده اند، تا اشعار باشد بآنکه من بار امانت الهى بر پشت خود گرفتم و أو مرا آدمى منتصب القامة آفريده فرمان داد که اين بار را بردارم بحکم او براستى قامت خود مغرور نشدم وخود را مانند شتر وگاؤ واسپ پشت خم کرده بحضور وحاضر شدم تا هرچه خواهد بر پشت من بار کند (تفسير عزيزى فارسى ص ۳۰ پاره ۳۰ ازشاه عبدالعزيز رحمة الله عليه )

**ترجمه** د رکوع حقيقت دادې چه دا دزړه اطاعت او فرمانبردارى ده د امانت الهى دبوج د اوچتولو دپاره، لهذا دا درکوع صورت په دې آخرى شريعت کښې عبادت وګرځولې شو. دې دپاره چه دا ددې خبرې علامه اوښيه وى چه هر مسلمان ددې اقرار کوى چه ما د امانت الهى پيټې په خپله شا اخيستې دې، ځکه چه زه الله ﷻ نيغ قد والا (مستقيم القامة) پيدا کړې يم. اوحکم يې راکړې دې چه زه دا پيټې اوچت کړم. نو د الله ﷻ دفرمان سره به زه په خپل نيغ قدکيدو سره مغرور نشم. بلکه ما خپله شا ټيټه کړې ده او د اوښ، غوا او آس په شان ټيټ قامت کيدو سره دالله په دربار کښې حاضر شوم چه هغه ذات څه غواړى چه زما په شا يې بار کړى زه به هغه باروم

حضرت شاه محدث دهلوى رحمة الله عليه فرمائى:

ورکوع از ملاحظه کمال عظمت وهيبت معبود ومالک وازحياء بر خود بقصور در بندگى سرنگون کردن وکمر دوتا گردانيدن، بلکه چون بنده گنهگار بر فداى جان گردن خودپيش سيف حاضر ساختن. (رساله فوائد نماز)

**ترجمه** دخپل معبود برحق او د مالك الله ﷻ دکمال عظمت اوهيبت نه اوپه خپل ځان کښې دحياء نه چه بندګى کښې قصور وار يم د دغه ډول سرښکته کولو نوم رکوع دې. اوخپله شا ټيټول، بلکه لکه څنګه چه بنده ګنهګارمجرم دخپل ځان دقربانولو دپاره خپل څټ تورې ته پيش کوى د همدغه رنګه کولو نوم رکوع دې

۵ - **سجده** - دمونځ په اهمو ارکانو او فرائضو کښې يو اهم رکن سجده ده **(هدايه ص۶۳ ج۱، شرح نقايه ص۶۸ ج۱، کبيرى ص۲۸۲)**.

يٰأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ارْكَعُوا وَاسْجُدُوا وَاعْبُدُوا رَبَّكُمْ وَافْعَلُوا الْخَيْرَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ (الحج آيت ۷۷)

**ترجمه** اې مؤمنانو! رکوع اوسجده کوئ اودخپل رب عبادت کوئ او دنيکى کار کوئ دې دپاره چه تاسو فلاح اوکاميابي بيا مومئ.

يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ وَّيُدْعَوْنَ اِلَى السُّجُوْدِ فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ. خَاشِعَةً اَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ وَقَدْ كَانُوْا يُدْعَوْنَ اِلَى السُّجُوْدِ وَهُمْ سٰلِمُوْنَ. (القلم آيت ۴۲،۴۳)

**ترجمه**: هغه ورځ (دهيريدو نده) چه پنډئ به ښكاره كړې شي، اودوی به سجدې ته را وغوښتلې شي خو سجده به كولې نشي. سترګې به يې ټيټې وی، ذلت به پرې راغوړيدلې وی، حال دا دې چه (په دنيا كښې) به دوئ دسجدې طرفته رابللې شول اودوئ به ښه روغ او جوړ وو. (او بيا به يې هم سجده نه كوله).

كَلَّا لَا تُطِعْهُ وَاسْجُدْ وَاقْتَرِبْ (العلق آيت ۱۹)

**ترجمه**: خبردار ! دده خبره ونه منې اوسجدې لګوه، اوالله ﷻ ته ځان نزدې كوه.

وَمِنَ اللَّيْلِ فَاسْجُدْ لَهٗ وَسَبِّحْهُ لَيْلًا طَوِيْلًا (الدهر آيت ۲۶)

**ترجمه**: اودشپې په يوه برخه كښې هم هغه ته سجده كوه، اودهغه تسبيح دشپې په يوه لويه برخه كښې لوله.

**دسجدې فضيلت**:- وَفِي حَدِيْثِ ثَوْبَانَ رضی الله عنه اَنَّهٗ ﷺ قَالَ عَلَيْكَ بِكَثْرَةِ السُّجُوْدِ لِلّٰهِ فَاِنَّكَ لَا تَسْجُدُ لِلّٰهِ سَجْدَةً اِلَّا رَفَعَكَ اللّٰهُ بِهَا دَرَجَةً وَحَطَّ عَنْكَ بِهَا خَطِيْئَةً (مسلم ص۱۹۳ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ثوبان رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الل هﷺ فرمائی چه ته دالله ﷻ دپاره كثرت سره سجدې كوه ځكه چه ته كله هم دالله ﷻ دپاره سجده كوې نوالله ﷻ به ددې له كبله ستا درجه اوچتوی، اوستا نه به خطايانې ختموی.

اَبِي هُرَيْرَةَ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اِذَا قَرَءَ ابْنُ آدَمَ السَّجْدَةَ (آيَةَ السَّجْدَةِ) فَسَجَدَ اِعْتَزَلَ الشَّيْطٰنُ يَبْكِيْ يَقُوْلُ يٰوَيْلَتٰى اُمِرَ ابْنُ آدَمَ بِالسُّجُوْدِ فَسَجَدَ فَلَهُ الْجَنَّةُ وَاُمِرْتُ بِالسُّجُوْدِ فَاَبَيْتُ فَلِيَ النَّارُ (مسلم ص۶۱ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابزهريره رضی الله عنه روايت كوی چه رسول الله ﷺ فرمائی كله چه بنی آدم دسجدې آيت تلاوت كړی اوبيا سجده اداء كړی نو شيطان ترې لرې شی او په ژړا شی او داسې وائی چه افسوس دې زما په حال . بنی آدم ته دسجدې حكم وكړې شو نوهغه سجده وكړه نودهغه دپاره جنت دې، اوماته دسجدې حكم وكړې شو او ما انكار وكړونو زما دپاره دوزخ دې.

د ابليس دا خبره دبنيادم سره دحسد په بناء باندې ده، پښيمانتيا او توبه نه ده.

حضرت ربيعه بن كعب رضی الله عنه چه كله دحضورﷺ سره جنت كښې دملګرتيا سوال كړې وو، نو رسول الله ﷺ وفرمايل چه : (فَاَعِنِّيْ عَلٰى نَفْسِكَ بِكَثْرَةِ السُّجُوْدِ) (مسلم ص۱۹۳ ج۱)

**ترجمه**: زما اعانت او امداد وكړه د خپل نفس په خلاف په ډيرو سجدو كولو سره.

يعنی زيات مونځونه كوه چه ستا نفس ستا په قابو كښې وی اوزه به هم دعا كوم او بيا به جنت

کښې ملګرتیا نصیب شي.

اَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ اَقْرَبُ مَا يَكُوْنُ الْعَبْدُ مِنْ رَبِّهٖ وَهُوَ سَاجِدٌ فَاَكْثِرُوا الدُّعَاءَ (مسلم ۱۹۱ ج۱)

**ترجمه** حضرت ابو هریره ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل. دټولو نه زیات چه په کوم حالت کښې بنده دخپل رب سره قریب وی نو هغه دسجدې حالت وی. له همدې کبله زیاتې دعاګانې غواړئ دسجدې حالت کښې.

سورة فتح کښې الله ﷻ دحضور ﷺ دصحابو ﷺ په باره کښې فرمایی چه:

(تَرٰهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَّبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا سِيْمَاهُمْ فِيْ وُجُوْهِهِمْ مِّنْ اَثَرِ السُّجُوْدِ). (الفتح آیت ۲۹)

**ترجمه** ته یی وینې او ګورې چه کله په رکوع ټیټ وی او کله په سجده پراته وی د الله ﷻ فضل او رضا مندی غواړی. دهغوی په مخونو کښې دسجدو د اثر نښې څرګندې ښکاری.

په سورة فرقان کښې الله ﷻ دخپلو بندګانو یعنی عبادالرحمن په تعریف کښې فرمائی چه

((وَالَّذِيْنَ يَبِيْتُوْنَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَّقِيَامًا)) (الفرقان آیت ۶۴).

**ترجمه** اوځوك چه شپه خپل رب ته په سجده اوقیام کښې تیروی.

یعنی دشپې په شراب خانو کښې او نشاط خانو. اوډم خانواوسینماګانو او کلبونو کښې نه تیروی بلکه دخپل رب په وړاندې یی په سجده اوقیام کښې تیروی.

په سورة سجده کښې ارشاد دې چه (اِنَّمَا يُؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِّرُوْا بِهَا خَرُّوْا سُجَّدًا وَّسَبَّحُوْا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ) (السجده آیت ۱۵)

**ترجمه** بیشکه زمونږ په آیتونو باندې هغه ځوك ایمان لری چه څه وخت ورته یادولی شی، نوپه سجده کښې پریوزی. او دخپل رب حمد اوثنا وایی اوهغوئ تکبر نه کوی.

عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ ﷺ قَالَ النَّبِيُّ ﷺ (فِيْ حَدِيْثٍ طَوِيْلٍ) فَيَكْشِفُ عَنْ سَاقِهٖ فَيَسْجُدُ لَهٗ كُلُّ مُؤْمِنٍ وَيَبْقٰى مَنْ كَانَ يَسْجُدُ لِلّٰهِ رِيَاءً وَسُمْعَةً فَيَذْهَبُ كَيْمَا يَسْجُدُ فَيَعُوْدُ ظَهْرُهٗ طَبَقًا وَاحِدًا (بخاری ص۱۱۰۷ ج۲)

**ترجمه** حضرت ابو سعید خدری ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ یو اوږد حدیث کښې فرمائی چه زمونږ پروردګار الله ﷻ به دخپل ساق تجلی وفرمایی پس هر سړی نارینه (اوښځه) به په سجده پریوزی. اوهغه خلق چه دنیا کښې یی د ریاکارۍ سجدې کولې هغه به باقی پاتې شی او سجده به نه شی کولې. هغوی به دسجدې اراده وکړی لیکن دهغوی د شاګانونه به یوه تخته جوړه شی.

وَقَالَ اِسْمَاعِيْلُ عَنْ سَاقٍ بِشِدَّةٍ وَكَرْبٍ كَمَا اَخْرَجَهُ الْحَاكِمُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ وَيَحْتَمِلُ اَنْ يَكُوْنَ الْمُرَادُ التَّجَلِّيَ لَهُمْ وَكَشْفَ الْحُجُبِ وَقَالَ الْقَاضِيْ عِيَاضُ اَلسَّاقُ هٰهُنَا نُوْرٌ عَظِيْمٌ وَقِيْلَ مَعْنَاهُ كَشْفُ الْخَوْفِ وَاِزَالَةُ الرُّعْبِ

عَنْهُمْ وَمَا كَانَ غَلَبَ عَلَى عُقُوْلِهِمْ مِنَ الْأَهْوَالِ فَتَطْمَئِنَّ نُفُوْسُهُمْ عِنْدَ ذٰلِكَ وَيَتَجَلّٰى لَهُمْ فَيَخِرُّوْنَ سُجَّدًا (نووی شرح مسلم مع مسلم ص۱۰۲ ج۱)

**ترجمه**: محدث اسماعیلی فرمایلي دي چه دساق نه مراد شدت او بې آرامي ده، لکه څنګه چه حاکم د ابن عباس ﷺ نه نقل کړې دی اودا هم احتمال دی چه کشف ساق نه مراد تجلی وی ددوی په وړاندې او حجابات لرې کول وی ، قاضي عیاض فرمایلي دي چه له ساق نه مراد دلته نورعظیم دی او بعضو ویلي دي چه ویره لرې کول دي اورعب زائل کول مراد دي، اوکوم چه ددوی په عقلونو باندې ویره غالبه شوې وي هغه لرې کېدل مراد دي، بیا به دغه وخت ددوی نفسونه مطمئن شي. اوالله ﷻ به ددوی په وړاندې تجلي وفرمايي، پس هغوی به په سجده کښې پریوزي.

وَاَيْضًا عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ ﷺ (قَالَ) فَيُكْشِفُ عَنْ سَاقٍ فَلَا يَبْقٰى مَنْ كَانَ يَسْجُدُ لِلّٰهِ مِنْ تِلْقَاءِ نَفْسِهِ اِلَّا اَذِنَ اللّٰهُ لَهُ بِالسُّجُوْدِ وَلَا يَبْقٰى مَنْ كَانَ يَسْجُدُ اتِّقَاءً وَرِيَاءً اِلَّا جَعَلَ اللّٰهُ ظَهْرَهُ طَبَقَةً وَاحِدَةً كُلَّمَا اَرَادَ اَنْ يَسْجُدَ خَرَّ عَلٰى قَفَاهُ (مسلم ص۱۰۲ ج۱)

**ترجمه**: دحضرت ابوسعید خدري ﷺ په روایت کښې دي چه: پس ساق به وښودلې شي، نوچا چه په سر او سترګو سره دالله ﷻ په وړاندې په دنیا کښې سجده کوله. نوهغه وخت به هغه ته هم د سجدې کولو اجازت وشي اوچا چه په دنیا کښې دخلقو داعتراض نه د بچ کېدلو په خاطر او درياکارۍ له کبله سجده کوله نودهغوی شا به یوه تخته شي. که دسجدې کولو کوشش کوي نو په شا به پریوزي.

وَفِيْ حَدِيْثِ اَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ حَتّٰى اِذَا فَرَغَ اللّٰهُ مِنَ الْقَضَاءِ بَيْنَ الْعِبَادِ وَاَرَادَ اَنْ يُّخْرِجَ بِرَحْمَتِهٖ مَنْ اَرَادَ مِنْ اَهْلِ النَّارِ اَمَرَ الْمَلٰٓئِكَةَ اَنْ يُّخْرِجُوْا مِنَ النَّارِ مَنْ كَانَ لَا يُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَيْئًا مِمَّنْ اَرَادَ اللّٰهُ اَنْ يَّرْحَمَهُ مِمَّنْ يَّقُوْلُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَيَعْرِفُوْنَهُمْ فِي النَّارِ يَعْرِفُوْنَهُمْ بِاَثَرِ السُّجُوْدِ تَاْكُلُ النَّارُ مِنِ ابْنِ اٰدَمَ اِلَّا اَثَرَ السُّجُوْدِ حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَى النَّارِ اَنْ تَاْكُلَ اَثَرَ السُّجُوْدِ. (مسلم ص۱۰۱ ج۱)

**ترجمه**: دحضرت ابوهریره ﷺ په روایت کښې دي چه رسول الله ﷺ فرمائي چه کله الله ﷻ دبندګانو په منځ کښې فیصله وکړي او اراده وفرمايي چه د دوزخ نه دوزخیان په خپل رحمت سره را وباسي نو فرښتو ته به حکم وکړي چه ددوزخ نه هغه څوك را وباسئ چا چه دالله ﷻ سره شرك نه وي کړې. په هغه چا باندې به الله ﷻ رحم وفرمايي چه «لااله الاالله» یې ویلي وي، نو فرښتې به یې په دوزخ کښې دسجدې په نښو سره پیژني، ځکه چه دبنیادم ټول بدن به اور وخوري ،لیکن د سجدو نښې (هغه اندامونه چه سجده پرې کولې شي هغه به نه شي خوړلې)، الله ﷻ په اور باندې حرام کړې دي چه دسجدو نښې وخوري.

أَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ آنَاءَ اللَّيْلِ سَاجِدًا وَقَائِمًا يَحْذَرُ الْآخِرَةَ وَيَرْجُوا رَحْمَةَ رَبِّهِ (الزمر آيت ۹ پ ۲۳).

**ترجمه** : آيا (هغه مذكور دوزخي سړ غوره دې) اوكه هغه څوك چه دشپې په وختونو كښې په سجده پروت او په قيام ولاړ وي، دآخرت نه ويريږي اودخپل رب درحمت اميدوار وي.

يٰمَرْيَمُ اقْنُتِي لِرَبِّكِ وَاسْجُدِي وَارْكَعِي مَعَ الرَّاكِعِينَ (آل عمران آيت ۴۳ پ ۳)

**ترجمه** : (دالله ﷻ ارشاد دې چه : ) اې مريم ! دخپل رب اطاعت كوه ،هغه ته سجده لګوه او ركوع كوه دركوع كونكو سره.

وَقَالَ إِمَامُ وَلِيُّ اللهِ قَوْلُهُ ﷺ أُمَّتِي يَوْمَ الْقِيٰمَةِ غُرٌّ مِنَ السُّجُودِ مُحَجَّلُونَ مِنَ الْوُضُوءِ .(حجة الله البالغة ص۱۱ ج۲).

**ترجمه** : حضرت امام ولي الله رحمه الله فرمائي چه دحضور ﷺ ارشاد دې چه : زما د امت خلق به دقيامت په ورځ سپينو تندو والاوى او د اودس د اثر نه سپينو پښو والابه وى.

وَقَالَ أَبُو سَعِيدٍ ضَرِيرٌ يَوْمَ يَظْهَرُ حَقَائِقُ الْأَشْيَاءِ وَأُصُولُهَا الَّتِي مَبْنِيَّةٌ عَلَيْهِ فَتَمَيَّزُ عِبَادَتُهُمُ الَّتِي كَانَتْ عَلَى غَيْرِ أَصْلٍ عَنْ عِبَادَةِ الْمُؤْمِنِينَ الَّتِي كَانَتْ مَبْنِيَّةً عَلَى أَصْلٍ صَحِيحٍ (تفسير عزيزى فارسى ص۵۱ پاره ۲۹)

**ترجمه** : ابو سعيد ضرير رحمه الله فرمايي دقيامت ورځ به داسې وى چه په دې ورځ به دڅيزونو حقيقتونه ظاهر شي اوهغه اصول به ظاهر شي په كومو باندې چه هغه اعمال مبني وو. نودهغه خلقو اعمال به جدا كوونكي وى چه په څه صحيح اصولو باندې مبني نه وو، او د مؤمنانو عبادت چه په صحيح اصولو باندې مبني وو هغه به هم ښكاره شي.

**دسجدې حقيقت** :- سجده كښې دالله ﷻ په وړاندې اوچته درجه تواضع او عبوديت دې. ځكه چه دانسان بلند ترين او عزيزترين اندام په خاورو كښې ككړ كيږي، هغه خاورې چه دپښو دلاندې راځي. حضرت شاه رفيع الدين محدث دهلوى دسجدې حقيقت بيانولو سره فرمايي چه :

ودرسجود بملاحظه كمال علو خود را در مذلت پستي ومقام نيستي باخاك برابر ساختن .ودرمقام عذر جبه سائي وبيني سائي نمودن يا بدون قدم بوسي سر بپاي محبوب نهادن.(رساله فوائد نماز)

**ترجمه** : چه سجده يوطرفته دالله ﷻ دكمال بلندى لحاظ كول اوخپل ځان لره دكمال عاجزى اونيشتوالي په مقام كښې دخاورو سره ځان برابرول دى او دخپلې كوتاهى اوعذر په مقام كښې تندې اوپوزه مږل، يا بغير دقدم بوسيي نه سر د محبوب په پښو كښې ايښودل دى.

۶ - **اخيره قعده** :- په مونځ كښې آخرى ناسته دتشهد په اندازه امام ابو حنيفه او امام سفيان ثورى فرض ګرځولې ده. (هدايه ص۱۳ ج۱ شرح نقايه ص۶۱ ج۱، كبيرى ص۲۸۹).

ددې قعدې په باره كښې په ائمه كرامو كښې اختلاف موندلې شوې دې. د امام اعظم او امام سفيان ثورى په نزد فرض ده، لهذا كه آخرى ناسته ونشوه نوفرض مونځ به يې باطليږي، امام

ترمذی لیکلي دی چه: (وَقَالَ بَعْضُهُمْ إِذَا صَلَّى الظُّهْرَ خَمْسًا وَلَمْ يَقْعُدْ فِي الرَّابِعَةِ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ فَسَدَتْ صَلٰوتُهُ وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ ثَوْرِيِّ وَبَعْضُ أَهْلِ الْكُوفَةِ). (ترمذی ص۸۳).

**ترجمه**: اوبعضې ائمه کرامو دا ویلی دی چه کله څوك دماسپښین مونځ پنځه رکعته وکړی اوڅلورم رکعت باندې دتشهد په مقدار په قعده کیناستل ونکړی نودده مونځ فاسدیږی دا قول دامام سفیان ثوری اودبعضې اهل کوفه دې.

امام شافعی رحمه الله، امام احمد رحمه الله، او امام اسحاق رحمه الله دا فرمائی چه که پنځه رکعته وکړی نو دسجده سهوې سره ددې تلافی کیږی دا قعده فرض نه ده.

حضرت امام ابو حنیفه ددې روایت نه استدلال کوی چه حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه ته چه کله دتشهد تعلیم ورکول کیدلو نود ابن مسعود رضی الله عنه لاس یې ونیولو اووې فرمایل: (قُلِ التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ (إِلَى أَنْ قَالَ) فَإِذَا قَضَيْتَ هٰذَا أَوْقَالَ فَعَلْتَ هٰذَا فَقَدْ قَضَيْتَ صَلٰوتَكَ). (مسند احمد ص۴۲۲ ج۱ واللفظ له، ابوداؤد ص۱۳۹ ج۱ بیهقی ص۱۷۴ ج۲).

**ترجمه**: یعنی (التحیات لله) ووایه اوپه آخر کښې یې وفرمایل کله چه ته دا پوره کړې یا کله چه تا داسې وکړل نوتا خپل مونځ پوره کړو.

یعنی تشهد لوستل او کیناستل په دې باندې دمونځ تمام کیدل موقوف ګرځیدلی دی. له دې سره ددې ضروری کیدل ثابتیږی.

نورو امامانو دا سنت ګرځولې دی.

## د مونځ واجبات

**مسئله**:- د واجب په پریښودو سره په مونځ کښې نقصان راځی.

**مسئله**:- دواجبو منکر فاسق دې او د فرضو منکر کافر دې.

**مسئله**:- که واجب په مونځ کښې پاتې شی نو په سجد سهو سره مونځ صحیح کیږی.

**مسئله**:- قصدا چه واجب پریښودې شی نو دمونځ دوباره کول واجب دی.

**مسئله**:- ترك د واجبو مکروه تحریمی دې او دمکروه تحریمی کوونکې فاسق او ګنهګار دې.

فقهاء کرام فرمایی چه «کوم مونځ چه د مکروه تحریمی سره اداء شی نو دهغې دوباره کول واجب دی، مثلا دسختو بولو راتللو سره مونځ کول یا د جاندار تصویر والا جامه دې اچولې وی او مونځ کوې نو ددې دواړو مونځونو دوباره کول واجب دی

**دمونځ دواجباتو تعداد :-**

ویل دفاتحة الکتاب،له هغې سره دیو سورت پیوسته کول اویا دیوغټ آیت یا درې وړو آیتونو یوځای کول ، د ترتیب خیال ساتل (دقیام ،قرات، رکوع اوسجدې په منځ کښې) قومه ، ړومبئ قعده، دتشهد لوستل، په لفظ دسلام سره مونځ نه وتل، قنوت وتر، داخترونو تکبیرونه، ړومبې دوه رکعتونه د قرائت دپاره مقررول، ارکان په اطمینان سره اداء کول، کومو مونځونو کښې چه جهر کیږی په هغې کښې جهر کول، او په کوموکښې چه پټ لوستل دی په هغې کښې پټ لوستل.

۱ - **دسورة فاتحه لوستل** :- په مونځ کښې دسورة فاتحه لوستل واجب دی دمقتدی نه علاوه . (هدایه ص۶۷ ج۱،شرح نقایه ص۶۹ ج۱، کبیری ص۲۹۵)

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ مَنْ صَلَّى صَلٰوةً لَمْ يَقْرَأْ فِيهَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ فَهِيَ خِدَاجٌ ثَلَاثًا غَيْرُ تَمَامٍ . (مسلم ص۱۶۹ ج۱،ابوداؤد ص۱۱۹ ج۱، ابن حبان ص۲۰۶ ج۳)

**ترجمه** : حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی چه کوم سړې مونځ کوی اوپه هغې کښې سورة فاتحه ونه لولی نو دهغه مونځ ناقص اوغیر مکمل دې، اونبی ﷺ داجمله درې ځله وفرمایله .

امام نووی لیکلی دی چه : (قَالَ الْخَلِيلُ ابْنُ أَحْمَدَ وَالْأَصْمَعِيُّ وَأَبُو حَاتِمٍ السِّجِسْتَانِيُّ وَالْهَرَوِيُّ رحمهم الله تعالى وَآخَرُونَ الْخِدَاجُ النُّقْصَانُ يُقَالُ خَدَجَتِ النَّاقَةُ إِذَا أَلْقَتْ وَلَدَهَا قَبْلَ أَوَانٍ وَإِنْ كَانَ تَامَّ الْخَلْقِ) . (نووی شرح مسلم مع مسلم ص۱۷۰،۱۶۹ ج۱).

**ترجمه** : حضرت خلیل ابن احمد رحمه الله ،امام اصمعی رحمه الله او ابو حاتم سجستانی هروی رحمه الله او نور علماء او فقهاء فرمایی چه خداج نقصان ته ویلې شی، اوښه چه کله دخپلې نیتې نه وړاندې بچې راوړی اګر چه هغه پوره وی نو هغې ته خداج وایی .

استاد العلماء حضرت مولانا عبدالحی لکهنوی رحمه الله ددې روایت اودغه شان دنورو روایاتو په باره کښې لیکلی دی چه : (دَلِيلٌ عَلَى عَدَمِ رُكْنِيَّةِ الْفَاتِحَةِ فَإِنَّ الْخِدَاجَ بِفَتْحِ الْخَاءِ الْمُعْجَمَةِ بِمَعْنَى النَّاقِصِ وَلَوْ كَانَتْ رُكْنًا لَقَالَ فَهِيَ بَاطِلَةٌ فَإِنَّ تَرْكَ الرُّكْنِ إِنَّمَا يُوجِبُ الْبُطْلَانَ وَالنُّقْصَانَ مِنْ مُوجِبَاتِ الْوُجُوبِ فَعُلِمَ أَنَّ قِرَاءَةَ الْفَاتِحَةِ وَاجِبَةٌ) .(السعایه ص۱۱۷ ج۲)

**ترجمه** : په دې کښې د دې خبرې دلیل دې چه سورة فاتحه رکن نه دې ځکه چه خداج دناقص په معنی سره دې اوکه دا نقص وې نوهغوی به ضرور فرمایلې وې چه مونځ باطل دې ځکه چه درکن په پرېښودو سره بطلان راځی او نقصان د موجباتو دوجوب نه دې، نومعلومه شوه چه سورة فاتحه

په مونځ کښې ویل واجب دی. (رکن نه دې).

۲- **دفاتحې سره بل سورة یوځای کول** :- دسورة دفاتحې سره د بل سورة پیوست کول په دوو اولو رکعتونو دفرضو کښې (دمقتدی نه علاوه) دباقی ټولو مونځ ګزارو لپاره په ټولو رکعتونو کښې واجب دی. (هدایه ص۶۷ ج۱ شرح نقایه ص۶۹ ج۱، کبیری ص۲۹۶).

**عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيْ ﷺ قَالَ اَمَرَنَا نَبِيُّنَا ﷺ اَنْ نَقْرَءَ الْفَاتِحَةَ وَمَا تَيَسَّرَ.** (صحیح ابن حبان ص۱۱۲ ج۳، ابوداؤد ص۱۱۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابوسعیدری ﷺ فرمایي چه رسول الله ﷺ مونږ ته حکم راکړې دې چه مونږ په مونځ کښې سورة فاتحه اوکوم چه دقرآن نه آسان سورت وی هغه ولولو.

**عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ (مَرْفُوْعًا) لَاصَلٰوةَ اِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ فَمَا زَادَ** (ابوداؤد ص۱۱۸ ج۱، مستدرک حاکم ص۲۳۹ ج۱، **وقال الحاکم هذا حدیث صحیح لاغبار علیه.**

**ترجمه** : حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی چه مونځ دفاتحه اوڅه زیاتو حصو د قرآن نه بغیر نه وی.

**لَاصَلٰوةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَءْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ فَصَاعِداً** (مسلم ص۱۶۹ ج۱، نسائی ص۱۴۵ ج۱)

**ترجمه** : سورة فاتحه او څه زیاتو حصو د قرآن نه بغیر مونځ نه وی.

**لَاصَلٰوةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَءْ بِالْحَمْدُ وَسُوْرَةٍ فِيْ فَرِيْضَةٍ اَوْغَيْرِهَا** (ترمذی ص۶۱، ابن ماجه ص۶۰، مصنف ابن ابی شیبه ص۳۶۱ ج۱).

**ترجمه** : مونځ دالحمد (سورة فاتحه) اونوروسورتونو یوځای کولو نه بغیر نه کیږی، خواه مونځ فرض وی اوکه دینه علاوه بل څه وی.

**لَاصَلٰوةَ اِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَآيَتَيْنِ (اَیْ طَوِيْلَتَيْنِ).** (شرح نقایه ص۶۹ ج۱، کنزالعمال ص۲۱۳ ج۴، بحواله طبرانی)

**ترجمه** : دسورت فاتحه او دوو غټو آیتونو نه بغیر مونځ نه کیږی.

**لَاتُجْزِئُ الْمَكْتُوْبَةُ اِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَثَلَاثِ آيَاتٍ فَصَاعِداً.** (کنزالعمال ص۲۱۳ ج۴، بحواله ابن عدی عن ابن عمر ﷺ (ونصب الرایه ص۳۶۵ ج۱).

**ترجمه** : فرض مونځ نه کیږی دسورة فاتحې اودریو آیتونو یا له دڅخه د زیاتو نه بغیر.

**لَاتُجْزِئُ صَلٰوةٌ لَايُقْرَءُ فِيْهَا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَشَيْءٍ مَعَهَا مِنَ الْقُرْآنِ** ، (نصب الرایه ص۳۶۵ ج۱ بحواله ابونعیم)

**ترجمه** : هغه مونځ درست نه وی په کوم کښې چه سورة فاتحه اوڅه حصه دقرآن ونه ویلې شي.

**عَنْ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ مَرْفُوْعاً اِذَا اسْتَقْبَلْتَ الْقِبْلَةَ فَكَبِّرْ ثُمَّ اقْرَءْ بِاُمِّ الْقُرْآنِ ثُمَّ اقْرَءْ بِمَا شِئْتَ.** (صحیح ابن حبان ص۲۰۹ ج۳ واللفظ له وابوداؤد ص۱۲۵ ج۱)

**ترجمه** : حضرت رفاعه بن رافع‌ﷺ نه روایت دي چه رسول الله ﷺ فرمائی کله چه ته مخ په قبله اودریږې نو اول تکبیر اؤوایه بیا سورة فاتحه او بیا چه دقرآن کومه حصه غواړې نو اولوله.

**مسئله** :- دفرضو په آخری دوو رکعتونو کښې پیوستول د سورة سره دفاتحې نه مکروه تنزیهی اوخلاف سنت دی.

**۳ – د ارکانو تعدیل** :- په مونځ کښې اطمینان دارکانو واجب دې، یعنی رکوع ، سجده، قومه، جلسه دا ټول په اطمینان سره اداکول په کار دی.

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ‌ﷺ اَنَّ اَعْرَابِیًّا جَاءَ فَصَلّٰی وَسَلَّمَ عَلَیْهِ فَقَالَ ارْجِعْ فَصَلِّ فَاِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ فَفَعَلَ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ فَقَالَ وَالَّذِیْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا اُحْسِنُ غَیْرَ هٰذَا فَعَلِّمْنِیْ فَقَالَ اِذَا قُمْتَ اِلَی الصَّلٰوةِ فَکَبِّرْ ثُمَّ اقْرَءْ مَا تَیَسَّرَ مَعَكَ مِنَ الْقُرْاٰنِ ثُمَّ ارْکَعْ حَتّٰی تَطْمَئِنَّ رَاکِعًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتّٰی تَسْتَوِیَ قَائِمًا ثُمَّ اسْجُدْ حَتّٰی تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا ثُمَّ افْعَلْ ذٰلِكَ فِیْ صَلٰوتِكَ کُلِّهَا (بخاری ص۱۰۹ ج۱، مسلم ص۱۷۰ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه یو کوچې راغې اومونځ یی وکړو، اوبیا راغې حضور ﷺ ته یی سلام وکړو، حضور ﷺ وفرمایل : واپس لاړشه اوبیا مونځ وکړه تاخومونځ نه دې کړې، هغه درې ځله داسې وکړل اوحضور ﷺ ورته همدغه شان وویل ، بیا هغه سړی وویل : په هغه ذات مې قسم دې چا چه ته دحق سره رالیږلې یی، زه ددینه ښه مونځ نه پیژنم، تاسو ماته وښایئ ، نو حضور ﷺ وفرمایل چه ته کله مونځ ته ودریږې نو اول تکبیر ووایه، بیا چه څومره قرآن درته آسان وی نو هغه ووایه، بیاپه اطمینان سره رکوع وکړه، بیا رکوع نه سر اوچت کړه او نیغ ودریږه بیا په اطمینان سره سجده وکړه اوبیا همدغه شان په خپل مونځ‌کښې کوه.

وَفِیْ رِوَایَةِ اَبِیْ دَاوٗدَ وَالتِّرْمِذِیِّ فَاِذَا فَعَلْتَ هٰذَا فَقَدْ تَمَّتْ صَلٰوتُكَ وَمَا انْتَقَصْتَ مِنْ هٰذَا فَقَدِ انْتَقَصْتَ مِنْ صَلٰوتِكَ. (ابوداؤد ص۱۲۴ ج۱، ترمذی ص۶۰)

**ترجمه** : دابو داؤد اوترمذی په روایت کښې دا الفاظ راغلی دی : «اوچه کله تا دا پوره کړل نوتا خپل مونځ پوره کړو ،اوچه کوم تا ددینه کم کړو نوبیشکه تا خپل مونځ کښې کمې وکړو».

**دقراة دپاره ړومبی دوه رکعتونه مقررول** :- دفرضو ړومبی دوه رکعتونه د قراءة دپاره مقررول واجب دی ، (شرح نقایه ص۷۰ ج۱، کبیری ص۲۹۵)

**مسئله** :- که ړومبی رکعتونوکښې یی سورة پیوست نه کړو نو آخری رکعتونو کښې دې سورة پیوست کړی اوپه آخرکښې دې سجده سهو وکړی. (شرح نقایه ص۱۱۲ ج۱)

عَنْ اِبْرَاهِیْمَ سَاَلْتُ عِکْرَمَةَ ﷺ عَنْ رَجُلٍ نَسِیَ اَنْ یَّقْرَءَ فِی الْاُوْلَیَیْنِ فَقَرَءَ فِی الْاُخْرَیَیْنِ قَالَ یُجْزِئُ عَنْهُ اِنْشَاءَ اللّٰهُ

• قَالَ سُفْيَانُ وَنَقُولُ نَحْنُ يَسْجُدُ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ .(مصنف عبد الرزاق ص۳۲۶ ج۲)

**ترجمه** : حضرت ابراهیم رحمه الله فرمایی چه ما دحضرت عکرمه نه پوښتنه وکړه چه یو سړی په ړومبو دوو رکعتونو کښې قرائت هیر کړی اوبیا یی په آخری دوو رکعتونو کښې ولولی نودهغې به څه حکم وی؟ نو هغوی وفرمایل چه دهغه مونځ به صحیح وی انشاء الله، حضرت سفیا ثوری رحمه الله فرمائی چه مونږ هغې سره دا وایو چه دغه سړې به سجده هم کوی .

**فاتحه دسورة نه وړاندې لوستل**:- سورة فاتحه د سورة نه وړاندې لوستل واجب دی، که دسورة یوه جمله د سورة فاتحې نه وړاندې وویلې شي نو سجده سهوه به لازمه وی ،(شرح نقایه ص ۱۱۲،۱۱۱ج۱)

**د ترتیب رعایت کول «یعنی په ارکانوکښې ترتیب قائمول»** :- دمونځ ګزار دپاره په قراءة، رکوع اوسجده کښې ترتیب قائمول واجب دی ، اول قیام بیا تکبیر تحریمه، بیا قراءة بیا رکوع او بیا سجده او په آخر کښې قعده ،(شرح نقایه ص۶۹ ج۱،هدایه ص۶۳ ج۱)

**مسئله** :- که رکوع یی مکرّره کړه، یا یی درې سجدې وکړې یا یی په ړومبی تشهد پسې درود شریف ووئیلو، نو د دې له کبله د دریم رکعت په قیام کښې تاخیر راغې، نوسجده سهوه لازمیږی، (شرح نقایه ص۶۹ ج۱،هدایه ص۶۳ ج۱).

**مسئله** :- که ړومبی رکعت کښې یی یوه سجده هیره شوه نو په آخری رکعت کښې دې قضا وکړی. (شرح نقایه ص۱۱۱ ج۱، کبیری ص۲۹۷).

**اوله قعده** :- اوله قعده واجبه ده. (هدایه ص۶۳ ج۱،شرح نقایه ص۷۰ ج۱، کبیری ص۲۹۶).

**تشهد (التحیات) ویل** : په دواړو قعدوکښې تشهد ویل هم واجب دی. (شرح نقایه ص۷۰ ج۱، کبیری ص۲۹۶)

عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رضي الله عنه قَالَ لَا تَجُوزُ صَلَاةٌ إِلَّا بِتَشَهُّدٍ. (مصنف عبد الرزاق ص۲۰۶ ج۲، کتاب الاثار للامام محمد مترجم ص۷۰)

**ترجمه** : حضرت عمربن الخطاب رضي الله عنه نه روایت دې هغوی فرمایی چه مونځ بغیر دتشهد نه صحیح نه دې .

**جَهر اوسِرّ «په پټه او په ښکاره قرائت ویل»** :- دامام دپاره په جهری مونځونو کښې جهر اوپه سری مونځونو کښې سر (یعنی په ښکاره مونځونو کښې ښکاره لوستل اوپه پټو مونځونو کښې پټ لوستل) واجب دی . (هدایه ص۶۲ ج۱،شرح نقایه ص۷۱ ج۱ کبیری ص۲۹۶).

عَنِ الْحَسَنِ أَنَّهُ سُئِلَ عَنِ الرَّجُلِ يَجْهَرُ فِيمَا لَا يُجْهَرُ فِيهِ قَالَ يَسْجُدُ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ. (مصنف ابن ابی شیبه ص۳۶۳ ج۱)

**ترجمه** : حضرت حسن بصری نه پښتنه وکړې شوه چه که یو سړې په هغه ځای کښې ښکاره قرائت وکړي په کوم ځای کښې چه ښکاره قرائت نوی نو څه به کوی ، نوهغوی وفرمایل چه دوه سجدې به کوی د سهوې.

عَنْ اِبْرَاهِيمَ قَالَ اِذَا جَهَرَ فِيمَا يُخَافَتُ فِيهِ اَوْ خَافَتَ فِيمَا يُجْهَرُ فِيهِ فَعَلَيْهِ سَجْدَتَا السَّهْوِ. (مصنف ابن ابی شیبه صـ۳۶۳ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابراهیم نخعی نه روایت دې چه په کومو مونځونو کښې دپټو لوستلو حکم دې او په هغې کښې څوك جهر كوی يا په کومو کښې چه د ښکاره قرائت کولو حکم دې په هغې کښې پټ یې لولی نو په ده باندې لازم دی چه دسهوې دوه سجدې وکړي.

عَنِ الثَّوْرِيِّ قَالَ اِذَا قُمْتَ فِيمَا يُجْلَسُ فِيهِ اَوْ جَلَسْتَ فِيمَا يُقَامُ فِيهِ اَوْ جَهَرْتَ فِيمَا يُخَافَتُ فِيهِ اَوْ خَافَتَّ فِيمَا يُجْهَرُ فِيهِ نَاسِيًا سَجَدْتَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ. (مصنف عبدالرزاق صـ۳۱۳ ج۲)

**ترجمه** : حضرت سفیان ثوری فرمائی کله چه ته هغه ځای کښې ودریږې په کوم ځای کښې چه د ناستې حکم دې یا هغه ځای کښې کینې په کوم ځای کښې چه دولاړې حکم دې، یا ښکاره قرائت هغه ځای کښې وکړې په کوم ځای کښې چه د پټو لوستلو حکم دې په هیره سره ، نودوه سجدې به دسهوې لپاره کوې.

**دسلام په لفظ سره وتل** :- په لفظ دسلام سره دمونځ نه وتل واجب دی، (هدایه صـ۷۳ ج۱، شرح نقایه صـ۷۰ ج۱، کبیری صـ۲۹۸)

عَنْ عَلِيٍّ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ مِفْتَاحُ الصَّلٰوةِ الطُّهُورُ وَتَحْرِيمُهَا التَّكْبِيرُ وَتَحْلِيلُهَا التَّسْلِيمُ. (ترمذی صـ۲۷، ابوداؤد صـ۱۰ ج۱)

**ترجمه** : حضرت علی رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمايی چه دمونځ کیلی (چابی) طهارت دې (دطهارت سره انسان په مونځ کښې داخلیدې شی) اوددې تحریم (یعنی دټولوڅیزونو په دې حالت کښې ممنوع کیدل) تکبیردې، او د مونځ نه بهر راتلل (چه پدې سره ټول حلال څیزونه د ده دپاره حلال کیږی) هغه سلام دې.

اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ اَخَذَ بِيَدِ عَبْدِ اللّٰهِ فَعَلَّمَهُ التَّشَهُّدَ فِي الصَّلٰوةِ (الی ان قال) اِذَا قُلْتَ هٰذَا اَوْ قَضَيْتَ هٰذَا فَقَدْ قَضَيْتَ صَلٰوتَكَ اِنْ شِئْتَ اَنْ تَقُومَ فَقُمْ وَاِنْ شِئْتَ اَنْ تَقْعُدَ فَاقْعُدْ. (ابوداؤد صـ۱۳۹ ج۱، بیهقی صـ۱۷۴ ج۱، طحاوی صـ۱۸۵ ج۱، مسند احمد صـ۴۲۲ ج۱)

**ترجمه** : رسول الله ﷺ دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه لاس ونیولو اوهغه ته یی تشهد وښودلو

راودې حديث په آخر کښې دا راغلي دي چه هغوی ﷺ وفرمايل : › کله چه تا دا تشهد ولوستلو، يا قعده کښې کيناستې نو تا مونځ پوره کړو، اوس که وغواړې نو کينه، او که وغواړې نو پاځيږه.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ كَانَ إِذَا فَرَغَ مِنَ التَّشَهُّدِ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ وَقَالَ مَنْ أَحْدَثَ حَدَثًا بَعْدَمَا يَفْرَغُ مِنَ التَّشَهُّدِ فَقَدْ تَمَّتْ صَلوتُهُ (حلية الاولياء ص۱۱۷ ج۵)

**ترجمه** : حضرت ابن عباس ﷺ نه روايت ﷺ دې، چه رسول الله ﷺ به کله دمونځ نه فارغ شو نو زمونږ طرفته به متوجه شو او فرمايل به يې چه څوك قصداً بې اودسه شي، دتشهد دفارغيدو نه بعد نو دده مونځ تام او مکمل شو.

عَنْ عَطَاءٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ كَانَ إِذَا قَضَى التَّشَهُّدَ فَذَكَرَ نَحْوَهُ. (حلية الاولياء ص۱۱۷ ج۱)

**ترجمه** : دحضرت عطاء نه روايت دې چه دهغې مفهوم هغه دې کوم چه د ابن عباس ﷺ دروايت دې

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ إِذَا رَفَعَ الْمُصَلِّي رَأْسَهُ مِنْ آخِرِ صَلوتِهِ وَقَضَى تَشَهُّدَهُ ثُمَّ أَحْدَثَ فَقَدْ تَمَّتْ صَلوتُهُ (طحاوی ص۱۸۹ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمايي : کله چه مونځ گزار خپل سر اوچت کړي د آخرې سجدې نه او آخرې تشهد پوره کړي او بيا قصداً بې اودسه شي نو دده مونځ پوره شو.

عَنِ الْحَكَمِ وَحَمَّادٍ قَالَا (فِي هٰذِهِ الْمَسْئَلَةِ) حَتّٰى يَتَشَهَّدَ أَوْ يَقْعُدَ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ (مصنف ابن ابی شيبه ص۲۹۰ ج۲)

**ترجمه** : حضرت حکم او حضرت حماد (اودغه رنگې مکحول) هم فرمايي چه کله څوك تشهد ووايي يا دتشهد په مقدار کيني نودهغه مونځ مکمل کيږي.

**د وترو په دريم رکعت کښې دعاء قنوت لوستل** :- دوترو په دريم رکعت کښې دعاء قنوت لوستل هم د احنافو په نيزد واجب دی. (هدايه ص۶۳ ج۱، شرح نقايه ص۷۰ ج۱، کبيری ص۲۹۶)

**د اخترونو دمونځونو تکبيرونه**:- دعيدالفطر اوهمدغه رنگې د عيدالاضحی شپږ تکبيرونه ويل هم واجب دی. (هدايه ص۶۳ ج۱، شرح نقايه ص۷۰ ج۱، کبيری ص۲۹۶).

## سنن الصلوة ((دمونځ سنت))

(۱) اذان (۲) دتکبير تحريمه په وخت لاسونه پورته کول (۳) گوتې دتکبير تحريمه په وخت مخ په قبله په خپل حالت خلاصې ساتل (۴) د امام دپاره تکبيرونه په ښکاره ويل (۵) ښي لاس په چپ لاس اينښودل (۶) دسړو دپاره لاسونه دنوم نه لاندې او د ښځو دپاره په سينه اينښودل (۷) ثناء (سبحانك اللهم) ويل (۸) تعوذ (اعوذ بالله) ويل (۹) تسميه (بسم الله) ويل (۱۰) آمين ويل (۱۱)

ثناء تعوذ، تسميه، اوتامين په پټ آواز کښې لوستل (۱۲) رکوع اوسجدې ته دتللو په وخت او سجدې نه د اوچتيدلو په وخت تکبير ويل (۱۳) درکوع تسبيحات (۱۴) دسجدې تسبيحات (۱۵) درکوع په حالت کښې دواړه ګونډې په فراخه ګوتو نيول (۱۶) دقومې په حالت کښې دامام دپاره (سمع الله لمن حمده) ويل او د مقتدى دپاره (ربنا لك الحمد) ويل او د ځان له مونځ کونکى (منفرد) دپاره دواړه ويل (۱۷) دسجدې په وخت اول ګونډې په زمکه ايښودل، بيا لاس اوتندې، (دسجدې نه دپاڅيدلو په وخت ددې په عکس)، (۱۸) اوله ناسته اودويمه ناسته کښې دسړو دپاره چپه پښه لاندې غوړول، اوښئ پښه داسې ودرول چه ګوتې يې قبلې ته مخامخ وى.او ښځو دپاره تورک (يعنى دواړه پښې ښى طرفته ويستل او په کوناټو باندې کيناستل). (۱۹) تشهد کښې دواړه لاسونه په ورنونو باندې ايښودل (۲۰) مسبحه (مسواکه) ګوتې سره اشاره کول (۲۱) نبى کريم ﷺ باندې درود ليږل (۲۲) دعا کول (۲۳) ښى طرفته اول سلام ګرځول (۲۴) د فرضو په آخرى رکعتونو کښې سورة فاتحه ويل.

## دمونځ آداب يا مستحبات

۱- د تکبير تحريمه په وخت کښې به سړې خپل لاسونه دلستوڼو نه بهر کړى، او ښځه به يې په لستوڼو کښې وساتى

۲ - دقيام اورکوع په وخت کښې تقريبا دڅلورو ګوتو فاصله دپښو په مينځ کښې پريښودل.

۳ - ځانتله مونځ کونکى دپاره د درې ځله نه زيات مګر طاق (وتر) تسبيحات ويل.

۴ - دقيام په دوران کښې نظر دسجدې په ځايى ساتل، د رکوع په حالت کښې په د پښو په ګوتو باندې نظرساتل . درکوع اوسجدې په حالت کښې په غيږه کښې، او د سلام په وخت په اوګو باندې نظر ساتل پکار دى

۵ - داسويلى په وخت خوله بنده ساتل، دقيام په حالت کښې دښى لاس په شا باندې او په باقى حالتونو کښې د چپ لاس په شا باندې يا په لستوڼى باندې خوله بندول.

**مسئله** :- اسويلې دمونځ په حالت کښې يا بهر دمونځ نه هم مکروه دې، او عموماًلاندې شونډې ته په زور ورکولو سره بنديږى.

شامى (ابن عابدين) او ابوالحسن قدورى خپله تجربه بيان کړې ده، او هغه دا چه که په زړه کښې فکر وکړې چه انبياء عليهم السلام اسويلې ندې کړې نوسمدستى بنديږى. **والله اعلم**

## صفة الصلوة يعنى دمونځ کولو طريقه

**اجمالى بيان** :- په اودس کښې چه کله مخ په قبله ودريږې نو اول نيت کول، لاسونه ترغوږونو

پورې پورته کول، تکبیر تحریمه ویل. بیا ثناء ویل ،بیا تعوذ اوتسمیه ویل اوقراة کول.اول به سورة فاتحه ووایي ، بیا به آمین په پټه ووایي ،بسم الله به ووایي څه سورة یا یو اوږد آیت یا درې واړه آیتونه به ووایي.

دقراءة ختم کولو سره به رکوع وکړي ، رکوع کښې به درې ځله (سبحان ربي العظيم) ووایي، بیا به (سمع الله لمن حمده) ووایي، نیغ ودریدلو سره به (ربنا لك الحمد) ووایي، او بیا به سجده کوی او درې ځله به (سبحان ربي الاعلى) ووایي ، جلسه به وکړي ، اوبیا به دویمه سجده وکړي ، د دویم رکعت دپاره به ودریږي، دویم رکعت کښې به (بسم الله) ووایي،سورة فاتحه به شروع کړي، او د اول رکعت په شان به یې مکمل کړي، قعده به وکړي، قعده کښې به (التحيات)ووایي، که مونځ دوه رکعته وی نودتشهد نه بعد به درود شریف ووایي او دعا به وکړي، او اول به ښی طرفته سلام وکړي او بیا به چپ طرفته سلام وکړی اوکه مونځ د دوو رکعتونو نه زیاتو رکعتونو والا وی، نو (التحيات) به ووایي اوبیا به ودریږي، درود شریف به نه وایي، دمونځ مکمل کولو آخری قعده کښې به درود اودعا ووایي او سلام به وګرځوی.

**مسئله** :- مونځ دنفل او سنتو اوغیر مؤکده هر دوه رکعته مستقل مونځ دې، لهذا د دوو رکعتونو نه پس قعده کښې به درود شریف اودعا وایي اود دریم رکعت دپاره به ودریږي، دریم رکعت چه دثناء نه شروع کړي نوبهتر دې.

**مسئله** :- پدې سلسله کښې دسنن مؤکده اودواجب مونځونوحکم د فرض مونځونوپه شان دې.

**تفصیل**:-کله چه مونځ ګزار دبدن پاکی په اودس،غسل یا تیمم سره وکړی، اولباس یې پاك وی، نوکوم ځای چه مونځ کوی هغه به هم پاك ساتي، دقبلې اړخ به هم متعین کړي، او د مونځ وخت هم راشي، اوبیا درکعتونو دفرضوتعین کول هم ضروری دی، که امام پسې مونځ کوی نودهغه داقتداء خیال کول هم ضروری دی، اودمونځ نیت کول، یعنی دزړه عقد او اراده کول همدا نیت دې که په ژبه دنیت الفاظ وه وایي نوعام سړی دپاره دا هم صحیح دی، په شرط ددې چه د الفاظو ویل ضروری ونه ګڼي، بلکه محض د خپل زړه داطمینان دپاره یې ووایي، اوکه نه نو بدعت کښې به داخلیږي، ددې ټولو خبرولحاظ کول پکار دی.

**تکبیر تحریمه**:- دټولو نه اول به مونځ ګزار تکبیر تحریمه ووایي، داشرط دې ، اودبعضې فقهاء کرامو په نزد دا رکن اوفرض دې، دالله ﷻ ارشاد دې چه : (وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّى).(الاعلى آیت۱۵).

**ترجمه** : اویاد یې کړو دخپل رب نوم اوبیا یې مونځ وکړو.

او رسول الله ﷺ هم دتکبیر تحریمه متعلق دا تعلیم ورکړې دې چه : (وَتَحْرِيمُهَا التَّكْبِيرُ) (ترمذی

ص۲۷،ابوداؤدص۹۱ج۱)

**ترجمه**: چه دمونځ تحریمه یعنی مونځ کښې دداخلیدلو شروع کول دتکبیر نه وی.

چنانچه امام ترمذی فرمایلي دی چه: (اِنَّ تَحْرِیْمَ الصَّلٰوةِ التَّکْبِیْرُ وَلَا یَکُوْنَ الرَّجُلُ دَاخِلًا فِي الصَّلٰوةِ اِلَّا بِالتَّکْبِیْرِ). (ترمذی ص۶۲)

**ترجمه**: بیشکه دمونځ تحریمه تکبیر دې اوڅوك هم بغیر دتکبیر ویلو نه په مونځ کښې نشی داخلیدلې.

چنانچه امام ترمذی رحمه الله فرمایی چه ائمه کرام مثلا دسفیان ثوری رحمه الله، عبد الله بن مبارك رحمه الله، امام شافعی رحمه الله، امام احمد رحمه الله، اسحاق بن راهویه رحمه الله (اودحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله) همدا مسلك دې.

**مسئله**:- تکبیر تحریمه کښې یی که بغیر له عذر نه قیام پریښودلو، نوتحریمه نه صحیح کیږی (شرح نقایه ص۶۷ج۱)

**مسئله**:- دتکبیر تحریمه دپاره دټولو نه بهترین الفاظ (اللّٰه اکبر) دی، چه پدې باندې درسول الله ﷺ عمل نقل شوې دې.

**مسئله**:- که په ځایی د(الله اکبر) باندې یی (الله اجل)، او یا (الله اعظم) او یا (الرحمن اکبر) او یا (لااله الاالله) وویل نوبیا هم تحریمه صحیح کیږی، (یعنی هر هغه لفظ چه په هغې کښې محض خالص دالله ﷻ تعظیم وی) (جامع صغیر ص۱۳،هدایه ص۶۳ج۱،شرح نقایه ص۷۰ج۱)

مسئله:- د الله اکبر دهمزې مد (آلله اکبر) سره تحریمه نه صحیح کیږی لهذا مونځ نه کیږی.

**مسائل تحریمه**:- رفع یدین عند الافتتاح (یعنی لاسونه پورته کول دمونځ په شروع کښې) باالاتفاق دټولو محدثینو په نزد سنت ده. (هدایه ص۶۳ج۱، کبیری ص۲۹۸،ص۳۰۰)

**مسئله**:- دتکبیر تحریمه سره به دواړه لاسونه اوچت کړي. (هدایه ص۶۳ج۱، کبیری ص۲۹۸،شرح نقایه ص۷۱ج۱)

په دې سلسله کښې څواقوال دی:

۱- تکبیر اولاسونه پورته کول دواړه به یوځای وی، لکه چه شیخ عبد الحق محدث دهلوی رحمه الله فرمایلي دی چه په ډیرو احادیثو کښې راغلي دی چه رسول الله ﷺ به دتکبیر سره لاسونه پورته کول دامام ابو یوسف رحمه الله، امام طحاوی رحمه الله، قاضی خان، اود احنافو دیو جماعت همدا مسلك دې. (کبیری ص۲۹۸)

۲- اول به لاسونه اوچتول وی بیا به دهغې نه پس تکبیر وی، او دا دامام ابوحنیفه رحمه الله، امام

محمد رحمه الله، او دعامو مشائخو مذهب دي، او هدایه کښې یې دې ته اصح ویلی دی. (هدایه ص۶۴ ج۱)

۳ - امام ابن همام رحمه الله یو دریم قول هم ذکر کړې دې او هغه دا چه اول به تکبیر وی بیا به لاسونه پورته کول وی، وجه دتطبیق یی داده چه ممکنه ده چه رسول الله ﷺ نه په مختلفو وختونو کښې دا مختلف صورتونه ثابت شوی وی. والله اعلم. (فتح القدیر ص۱۹۸ ج۱).

**مسئله** :- په لاسونو پورته کولو کښې د غیر دلویی نفی ده، او په تکبیر کښې دالله ﷻ دلویی اثبات دې لکه چه په (لااله الاالله) کښې دی. (کبیری ص۲۹۸)

**مسئله** :- په تکبیر تحریمه کښې دلاسونو پورته کولو په وخت به دلاسونو تلی دقبلې په طرف وی. (کبیری ص۳۰۰)

عن ابن عمر رضی الله عنه مرفوعا إِذَا اسْتَفْتَحَ اَحَدُكُمْ فَلْيَرْفَعْ يَدَيْهِ وَالْيَسْتَقْبِلْ بِبَاطِنِهِمَا الْقِبْلَةَ فَإِنَّ اللهَ تَعَالٰى اَمَامَهُ.

(کنز العمال ص۲۰۶ ج۴ بحواله طبرانی فی الاوسط وبیهقی ص۲۷ ج۲ وقال ضعیف و کذا مجمع الزوائد ص۱۰۲ ج۲).

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی : کله چه په تاسو کښې څوك مونځ شروع کوی نو هغه ته پکاردی چه خپل دواړه لاسونه پورته کړی، او دهغې دتلو والا حصه دقبلې په طرف کړی، ځکه چه الله ﷻ خاص دده په وړاندې وی.

**مسئله** :- په تحریمه کښې دلاسونو دپورته کولو په وخت دلاسونو ګوتې خوروړل پکار دی. (کبیری ص۳۰۰)

عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ رضی الله عنه كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا كَبَّرَ لِلصَّلٰوةِ نَشَرَ اَصَابِعَهُ. (ترمذی ص۶۲، بیهقی ص۲۷ ج۲، صحیح ابن حبان ص۱۹۵ ج۳)

**ترجمه** : له حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به کله دمونځ دپاره تکبیر کولو، نو خپلې ګوتې به یې خورولې.

**مسئله** :- په تکبیر تحریمه کښې دسړیو دپاره دلاسونو ګوتې دغوږونو تر نرمو پورې پورته کول پکار دی. (هدایه ص۶۴ ج۱، کبیری ص۳۰۰).

عَنْ اَنَسٍ رضی الله عنه قَالَ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ كَبَّرَ ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى يُحَاذِيَ بِإِبْهَامَيْهِ اُذُنَيْهِ ثُمَّ يَقُوْلُ سُبْحَانَكَ الخ (دار قطنی ص۳۰۰ ج۱ رواته کلهم ثقات کذا فی نصب الرایه ص۳۱۱ ج۱)

**ترجمه** : حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې، چه رسول الله ﷺ به کله مونځ شروع کولو، نو تکبیر به یې ویلو، تردې چه ګوتې به یې دغوږونو سره برابرې کړې، بیا به یې (سبحانك اللهم ـ الخ) ویلو.

عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ رضی الله عنه قَالَ قَدِمْتُ الْمَدِيْنَةَ فَقُلْتُ لَاَنْظُرَنَّ إِلٰى صَلٰوةِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ فَكَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى رَاَيْتُ

إِبْهَامَيْهِ قَرِيبًا مِنْ أُذُنَيْهِ (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۲۳ ج۱ و بیهقی ص۲۷ ج۲)

**ترجمه**: حضرت وائل بن حجرؓ نه روایت دی هغوی فرمایی چه زه مدینې ته راغلم او مادا وویل چه زه به د رسول اللهﷺ مونځ ضرور وینم. کله چه هغوی دمونځ شروع وکړه، نو اول یی تکبیر وکړو، او دواړه لاسونه یی اوچت کړل تردې چه هغوی دواړه ګوتې خپلو دواړو غوږونو ته نزدې کړې

عَنْ وَائِلٍ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ ﷺ إِذَا افْتَتَحَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى تَكَادَ إِبْهَامَاهُ تُحَاذِي شَحْمَةَ أُذُنَيْهِ (نسائی ص۱۴۱ ج۱)

**ترجمه**: حضرت وائل ؓ فرمائی چه هغوی رسول الله ﷺ ولیدلو. کله چه هغوی ﷺ مونځ شروع کولو، نوهغوی خپل دواړه لاسونه پورته کړل تردې چه نزدې وه چه هغوی خپلې دواړه ګوتې د خپلو دواړو غوږونو دنرمو سره برابرې کړې وې.

**مسئله**:- دواړه لاسونه د اوګو برابر پورته کول هم درست دی، لیکن بهتر دادی چه ګوتې دغوږونو برابر پورته کړې (په حدیث کښې حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ (یعنی د اوګو برابر) او حیال اذنیه (یعنی دغوږونو برابر) دواړه طریقې راغلې دی.

قَالَ أَبُو حُمَيْدٍ فِي أَصْحَابِهِ رَفَعَ النَّبِيُّ ﷺ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ (بخاری ص۱۰۲ ج۱، ص۱۱۳ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو حمید دخپلو ملګرو په وړاندې وویل چه رسول اللهﷺ په مونځ کښې لاسونه د اوګو برابر پورته کول.

حضرت ابن همام فرمائی چه مرندونه داوګوبرابر کولو سره ګوتې دغوږونو برابرول. (فتح القدیر ص۱۹۸ ج۱).

دابن همام دقول تائید دحضرت وائل بن حجرؓ ددې روایت نه هم کیږی:

عَنْ وَائِلٍ ؓ أَنَّهُ أَبْصَرَ النَّبِيَّ ﷺ حِينَ قَامَ إِلَى الصَّلٰوةِ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتَّى كَانَتَا بِحِيَالِ مَنْكِبَيْهِ وَحَاذَى بِإِبْهَامَيْهِ أُذُنَيْهِ ثُمَّ كَبَّرَ (ابوداؤد ص۱۰۵ ج۱).

**ترجمه**: حضرت وائل ؓ نه روایت دی، چه هغوی رسول الله ﷺ ولیدلو کله چه هغویﷺ دمونځ دپاره ودریدل نوخپل لاسونه یی د اوګو برابر پورته کړل، او دهغوی دواړه ګوتې د غوږونو برابر شوې. بیا هغویﷺ تکبیر وکړو.

**مسئله**:- دې یخنې په موسم کښې که لاسونه دجامې یا څادر دننه وی، نودسینې اواوګوپورې هم د پورته کولو ګنجائش شته.

عَنْ وَائِلِ ابْنِ حُجْرٍ ؓ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ ﷺ حِينَ افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ رَفَعَ يَدَيْهِ حِيَالَ أُذُنَيْهِ قَالَ ثُمَّ أَتَيْتُهُمْ فَرَأَيْتُهُمْ يَرْفَعُونَ أَيْدِيَهُمْ إِلَى صُدُورِهِمْ فِي افْتِتَاحِ الصَّلٰوةِ وَعَلَيْهِمْ بَرَانِسُ وَأَكْسِيَةٌ (ابوداؤد ص۱۰۵ ج۱، بیهقی ص۲۸ ج۲)

**ترجمه**: حضرت وائل بن حجرؓ فرمائی چه ما رسول اللهﷺ ولیدلو. کله چه هغوی مونځ شروع

کړو، نو دواړه لاسونه یې ترغوږونو پورې پورته کړل، بیا زه په بله موقع راغلم، نوما د رسول اللهﷺ صحابه ولیدل چه هغوی خپل لاسونه ترسینو پورې پورته کوی اوهغوی اوږدې توپئ اوکمبل اوڅادرونه اغوستې وو.

دحضرت وائل بن حجرؓ دوباره راتلل د یخنی په موسم کښې ؤو، لکه څنګه چه دعاصم ابن کلیب په سند کښې دحضرت وائل بن حجرؓ نه بل روایت دې.

**ثُمَّ جِئْتُ بَعْدَ ذٰلِكَ فِي زَمَانٍ فِيهِ بَرْدٌ شَدِيدٌ فَرَأَيْتُ النَّاسَ عَلَيْهِمْ جُلُّ الثِّيَابِ تَحَرَّكُ أَيْدِيهِمْ تَحْتَ الثِّيَابِ.**

**(ابوداؤدص۱۰۵ ج۱، بمعناه ص۱۰۶ ج۱)**

**ترجمه**: بیا زه ددینه بعد دسختې یخنی په زمانه کښې راغلم، نوما ولیدل چه خلقو غټې جامې اغوستې دی، او د جامو لاندې دخلقو لاسونه حرکت کوی.

**مسئله**:- لاسونه د پورته کولو په وخت دڅادر وغیره نه بهر ویستل مستحب دی اګر چه د څادر دننه هم لاسونه پورته کول درست دی. **(کبیری ص۲۹۸)**

**مسئله**:- دښځې دپاره بهتر دی چه تر اوګو پورې لاسونه پورته کړی ځکه چه دا ددې دپاره ډیره دستر (او د پرده پوشی ذریعه) ده اګر چه د غوږونو پورې هم دښځې لاسونه پورته کول جائز دی. **(هدایه ص۶۳ ج۱، کبیری ص۳۰۰، شرح نقایه ص۷۲ ج۱).**

**عَنْ حَمَّادٍؓ أَنَّهُ يَقُولُ فِي الْمَرْأَةِ إِذَا اسْتَفْتَحَتِ الصَّلٰوةَ تَرْفَعُ يَدَيْهَا إِلٰى ثَدْيَيْهَا. (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۳۹ ج۱).**

**ترجمه**: حضرت حماد فرمائی چه کله ښځه مونځ شروع کوی نوهغه به خپل لاسونه تر سینې پورې پورته کوی.

**عَنْ عَبْدِ رَبِّهِ ابْنِ زَيْتُونَ قَالَ رَأَيْتُ أُمَّ الدَّرْدَاءِ تَرْفَعُ كَفَّيْهَا حَذْوَ مَنْكِبَيْهَا حِينَ تَفْتَتِحُ الصَّلٰوةَ. (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۳۹ ج۱).**

**ترجمه**: حضرت عبدربه بن زیتون فرمائی چه ما ام درداء (صحابیه رضی الله عنها) ولیدله، دمونځ شروع کولو په وخت به یې خپل لاسونه د اوګو برابر پورته کول.

**عَنِ الزُّهْرِيِّؓ قَالَ تَرْفَعُ يَدَيْهَا حَذْوَ مَنْكِبَيْهَا (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۳۹ ج۱).**

**ترجمه**: امام زهری نه هم همداسې نقل دی، چه ښځه به لاسونه د اوګو پورې پورته.

**عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ قُلْتُ لِعَطَاءٍ تُشِيرُ الْمَرْأَةُ بِيَدَيْهَا بِالتَّكْبِيرِ كَالرَّجُلِ قَالَ لَا تَرْفَعُ يَدَيْهَا كَالرَّجُلِ وَأَشَارَ فَخَفَضَ يَدَيْهِ جِدًّا وَجَمَعَهُمَا جِدًّا وَقَالَ إِنَّ لِلْمَرْأَةِ هَيْئَةً لَيْسَتْ لِلرَّجُلِ وَإِنْ تَرَكَتْ ذٰلِكَ فَلَا حَرَجَ. (مصنف ابن ابی شیبه**

ص۲۲۹ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابن جریج فرمائی چه ما حضرت عطاء ته عرض وکړو چه آیا ښځه به هم خپل لاسونه داسې پورته کوی څنګه یې چه سړی پورته کوی ، نوهغوی وفرمایل چه ښځې به داسې خپل لاسونه نه پورته کوی اوبیا هغوی خپل لاسونه پورته کړل او یوځایی یی کړل او وې ښودل چه داسې به ښځه لاس پورته کوی او بیا یی وفرمایل چه ښځې دپاره په مونځ کښې داسې هیئت دې کوم چه دسړی دپاره نه وی اوکه هغه ددې پابندی ونه کړی نو هیڅ حرج نشته. (یعنی دښځې دپاره داسې کول مستحب او بهتر دی.

صاحب دکنزالعمال دحضرت وائل بن حجر ﷺ په روایت کښې په حواله دطبرانی درسول اللهﷺ نه نقل کړې دی چه هغوی ﷺ وفرمایل : (اِذَا صَلَّیْتَ فَاجْعَلْ یَدَیْكَ حِذَاءَ اُذُنَیْكَ وَالْمَرْاَةُ تَجْعَلُ یَدَیْهَا حِذَاءَ ثَدْیَیْهَا . (کنزالعمال ص۳۰۷ ج۷)

**ترجمه** : چه کله تاسو مونځ کوئ نو لاسونه دغوږونو برابر پورته کوئ اوښځه به خپل لاسونه د سینې برابر پورته کوی .

**په مونځ کښې لاسونه تړل** :- دلاسونو پورته کولو نه پس به ښې لاس په چپ لاس کیږدې ، او وبه یی تړې. (هدایه ص۶۵، کبیری ص۳۰۰).

**په مونځ کښې دلاس ایښودلو طریقه** :- دلاس تړلو طریقه داده چه دچپ لاس مړوند به دښی لاس په وړه ګوته او غټه ګوته باندې ونیسې او باقی ګوتې به خورې کړې . (شرح نقایه ص۶۲ ج۱، کبیری ص۳۰۰).

عَنْ سَهْلِ ابْنِ سَعْدٍ ﷺ قَالَ كَانَ نَاسٌ يُؤْمَرُوْنَ اَنْ يَّضَعَ الرَّجُلُ الْيَدَ الْيُمْنٰى عَلٰى ذِرَاعِهِ الْيُسْرٰى فِى الصَّلٰوةِ . (بخاری ص۱۰۲ ج۱)

**ترجمه** : حضرت سهل بن سعد فرمائی چه خلقوته به حکم کیدلو چه هغوی خپل ښې لاس دچپ لاس په مړوند باندې کیږدی .

عَنْ جَابِرٍ ﷺ قَالَ مَرَّ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بِرَجُلٍ وَهُوَ يُصَلِّىْ قَدْ وَضَعَ يَدَهُ الْيُسْرٰى عَلَى الْيُمْنٰى فَانْتَزَعَهَا وَوَضَعَ عَلَى الْيُسْرٰى. (مجمع الزوائد ص۱۰۲ ج۲ بحواله طبرانی وقال رجاله الصحیح. مصنف ابن ابی شیبه ص۳۹۱ ج۱).

**ترجمه** : حضرت جابر ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ په یو سړی باندې تیر، شو هغه مونځ کولو، هغه خپل چپ لاس په ښی لاس باندې ایښودلې وو نو رسول اللهﷺ هغه په زور باندې لرې کړو، دچپ لاس دپاسه یی کیښودلو.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ؓ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ ﷺ يَقُولُ إِنَّا مَعْشَرَ الْأَنْبِيَاءِ أُمِرْنَا بِتَعْجِيلِ فِطْرِنَا وَتَأْخِيرِ سُحُورِنَا وَأَنْ نَضَعَ أَيْمَانَنَا عَلَى شَمَائِلِنَا فِي الصَّلوٰةِ. (مجمع الزوائد ص۱۰۵ ج۲، بحواله طبرانی وقال رجاله رجال الصحيح، وصحيح ابن حبان ص۱۹۶ ج۳).

**ترجمه**: حضرت ابن عباس ؓ فرمائي چه ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلي دي، هغوی ﷺ فرمايل: مونږ دنبيانو ډله يو، مونږ ته حکم کړې شوې دې چه مونږ په افطار کښې جلدي کوو. او په پيشمنی کښې وروستوالې يعنی تاخير کوو، او دا هم راته حکم کړې شوې دې چه مونږ په مونځ کښې خپل ښې لاس په چپ لاس باندې کيږدو.

عَنْ عَلِيٍّ ؓ قَالَ إِنَّ مِنَ السُّنَّةِ فِي الصَّلوٰةِ وَضْعُ الْأَكُفِّ عَلَى الْأَكُفِّ تَحْتَ السُّرَّةِ. (مسند احمد ص۱۱۰ ج۱)

**ترجمه**: له حضرت علی ؓ نه روايت دې چه هغوی فرمايي چه بيشکه دسنتو نه دی اينبودل د يو لاس په بل لاس د نوم نه لاندې.

عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ هُلْبٍ ؓ عَنْ أَبِيهِ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ يَؤُمُّنَا فَيَأْخُذُ شِمَالَهُ بِيَمِينِهِ. (ترمذی ص۶۳، ابن ماجه ص۵۸)

**ترجمه**: حضرت قبيصه بن هلب دخپل والد ؓ نه روايت کوی چه رسول الله ﷺ مونږ ته مونځ راکولو، نو په خپل ښی لاس به يی خپل چپ لاس ونيولو.

(وَوَضَعَ عَلِيٌّ كَفَّهُ عَلَى رُسْغِهِ الْأَيْسَرِ)، (بخاری ص۱۵۹).

**په مونځ کښې دلاس اينبودلو مقام**:- لاس به دنوم نه لاندې ږدې. (هدايه ص۶۵ ج۱، شرح نقايه ص۶۳، ج۱، کبيری ص۳۰۰).

محدث ابن ابی شيبه رحمه الله، چه دامام بخاری رحمه الله اوامام مسلم رحمه الله استاد دې، هغه دحضرت وکيع رحمه الله اوهغه د حضرت موسی بن عمر رحمه الله نه اوهغه دعلقمه بن وائل رحمه الله نه اوهغه د خپل پلار وائل بن حجر رحمه الله نه روايت کوی چه: (رَأَيْتُ النَّبِيَّ ﷺ يَضَعُ يَمِينَهُ عَلَى شِمَالِهِ تَحْتَ السُّرَّةِ). (مصنف ابن ابی شيبه ص۳۹۰ ج۱، طبع کراتشی، آثار السنن ص۶۹ ج۱، وقال اسناده صحيح).

**ترجمه**: ما نبی کريم ﷺ وليدلو چه هغوی ﷺ خپل ښې لاس په چپ لاس باندې دنوم لاندې کيښودلو.

عَنْ عَلِيٍّ قَالَ مِنْ سُنَّةِ الصَّلوٰةِ وَضْعُ الْأَيْدِي عَلَى الْأَيْدِي تَحْتَ السُّرَّةِ. (مصنف ابن ابی شيبه ص ۳۹۱ ج۱، مسند احمد ص۱۱۰ ج۱).

**ترجمه**: حضرت علی ؓ فرمائي چه دمونځ د سنتونه دادی چه ښې لاس په چپ لاس باندې دنوم نه لاندې کيښودل شي.

اَلْحَجَّاجُ ابْنُ حَسَّانٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا مِجْلَزٍ اَوْسَأَلْتُهُ قَالَ قُلْتُ كَيْفَ يَصْنَعُ قَالَ يَضَعُ بَاطِنَ كَفِّ يَمِيْنِهٖ عَلٰى ظَاهِرِ كَفِّ شِمَالِهٖ وَيَجْعَلُهَا اَسْفَلَ مِنَ السُّرَّةِ. (مصنف ابن ابی شیبه ص۳۹۱ ج۱ و آثار السنن ص۱۰، ج۱، وقال اسناده صحیح.

**ترجمه** : حضرت حجاج بن حسان فرمائی چه ما دابو مجلز نه واوریدل او یا مې ترینه پوښتنه وکړه چه مونځ گزار به لاس څنگهږدی؟ نو هغوی ﷺ وفرمایل چه دخپل ښی لاس تلې به دچپ لاس په پورتنۍ حصه باندې کیږدې او د نوم لاندې به یې کیږدې.

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ يَضَعُ يَمِيْنَهٗ عَلٰى شِمَالِهٖ فِى الصَّلٰوةِ تَحْتَ السُّرَّةِ. (مصنف ابن ابی شیبه ص۳۹۰ ج۱، وآثار السنن ص۱۰، ج۱ قال اسناده حسن)

**ترجمه** : حضرت ابراهیم نخعی فرمائی چه خپل ښې لاس به په چپ لاس دنوم دلاندې کیږدې.

عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ وَضْعُ الْكَفِّ عَلَى الْكَفِّ فِى الصَّلٰوةِ تَحْتَ السُّرَّةِ . (الجوهر النقی علی البیهقی ص۳۱ ج۲ بحواله ابن حزم)

**ترجمه** : حضرت ابوهریره ﷺ فرمائی چه په مونځ کښې دې لاس په لاس باندې دنوم نه لاندې کیښودلې شی.

عَنْ اَنَسٍ قَالَ ثَلٰثَةٌ مِنْ اَخْلَاقِ النُّبُوَّةِ تَعْجِيْلُ الْاِفْطَارِ وَتَاْخِيْرُ السُّحُوْرِ وَوَضْعُ الْيَدِ الْيُمْنٰى عَلَى الْيُسْرٰى فِى الصَّلٰوةِ تَحْتَ السُّرَّةِ (الجوهر النقی علی البیهقی ص۱۳۲ ج۲ بحواله ابن حزم)

**ترجمه** : حضرت انس ﷺ فرمائی چه درې خبرې دنبوت داخلاقو نه دی : یو د روژې په ماتولو کښې جلدی کول دویم پیشمنی کښې تاخیرکول، او دریم په مونځ کښې ښې لاس په چپ لاس باندې دنوم نه لاندې ایښودل.

**یادونه** :- دنوم دلاندې لاس ایښودل، یا دنوم دپاسه، یا په سینه باندې، پدې باره کښې ټول مرفوع روایات د دویمې اودریمې درجې دی یا ضعیف دی، حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دنوم نه لاندې لاس ایښودل زیات اقرب الی التعظیم گڼلی دی او د روایاتو په اعتبار سره یې همدا راجح گڼلی دی، دا مسئله هم دترجیح سره تعلق ساتی.

**مسئله** :- دښځې دپاره ښې لاس په چپ لاس دسینې دپاسه ایښودل ډیره دستر خبره ده . (شرح نقایه ص۷۳، ج۱، کبیری ص۳۰۱).

استاد العلماء حضرت مولانا عبدالحی لکهنوی رحمه الله لیکلی دی : (وَاَمَّا فِىْ حَقِّ النِّسَاءِ فَاتَّفَقُوْا عَلٰى اَنَّ السُّنَّةَ لَهُنَّ وَضْعُ الْيَدَيْنِ عَلَى الصَّدْرِ)، (السعایه ص۱۵۶ ج۲)

**ترجمه** : بهرحال دعلماؤ اتفاق دې چه د ښځو په حق کښې سنت دادی چه هغوی په مونځ کښې

لاسونه په سینه باندې کیږدي.

امام بیهقی فرمائی چه جامعه خبره په دې سلسله کښې (چه د ښځو احکام د سړو داحکامونه جدا دي) دستر او پردې طرف ته راجع دي، له همدې کبله ښځه ماموره ده په هر هغه څیز باندې چه په هغې کښې ددې پرده وي، نو دا خبره ددې په حق کښې بهتره ده، په سجده او رکوع کښې همدا خبره دنظر لاندې ده، چنانچه امام بیهقی په دې باره کښې باب قائم کړې دې، او هغه دادې چه: «مستحب دی دښځې دپاره چه هغه په رکوع اوسجده کښې متې د اړخونو نه نه جدا کوی».

بیا امام بیهقی فرمائی چه حضرت امام ابراهیم نخعی به فرمایل چه ښځې ته حکم ورکړې شوې دې چه خپله ګیډه دې دخپلو ورنونو سره یوځای کړی، چه ددې ورنونه اوچت نشی، اوخپلې متې دې دخپلو اړخونو نه لرې نه ساتی لکه څنګه یې چه سړی کوی. (سنن الکبری ص۲۲۲ ج۲)

حضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه روایت دی چه رسول الله ﷺ فرمایی کله چه ښځه مونځ کښې کینی نو یو ورون دې په بل ورون باندې کیږدی (تورک دې اختیار کړی) اوکله چه سجده کوی نو خپله ګیډه دې د ورنونو سره یوځای کړی، دا به ددې دپاره د زیاتې پردې باعث وي، اوبیشکه دالله ﷻ ددې طرف ته په داسې حالت کښې نظر درحمت وی اوفرشتو ته فرمایی چه اې زما ملائکو! تاسو ګواه اوسیږئ چه ما ددې ښځې بخښنه وکړه. (سنن الکبری ص۲۲۳ ج۲)

په دې ټولو امورو کښې دښځې دپاره دستر لحاظ ساتلې شوې دې، نوهم دارنګه لاسونه د اوګو پورې پورته کول اوپه سینه باندې ایښودلو کښې هم ستر ملحوظ دې.

**مسئله**:- د دواړو پښو په مینځ کښې به یې تقریبا دڅلورو ګوتو فاصله وی.

استاد العلماء حضرت مولانا عبدالحی لکهنوی رحمه الله لیکلې دی چه: (يُسْتَحَبُّ أَنْ يَكُونَ بَيْنَ الرِّجْلَيْنِ عِنْدَ الْقِيَامِ مِقْدَارَ أَرْبَعَةِ أَصَابِعَ كَمَا فِي الْبَزَّازِيَّةِ وَغَيْرِهَا لِكَوْنِهِ أَقْرَبَ إِلَى الْخُشُوعِ). (السعایه ص۱۱۱ ج۲)

**ترجمه**: دقیام په وخت کښې مستحب دی چه د دواړو پښو په درمیان کښې د څلورو ګوتو فاصله وساتی لکه څنګه چه فتاوی بزازیه اونورو کتابونو کښې موجود دی، او دا په مونځ کښې خشوع ته زیاته قریب ده.

**مسئله**:- په جماعت کښې دالصاق الکعب نه دګیتو باالمقابل ساتل مراد دی، نه الصاق حقیقی. څکه چه بخاری ص۱۰۰ ج۱، کښې د (الزَّقُ مَنكِبَهُ) د ذکر سره (وَقَدَمَهُ بِقَدَمِهِ) هم راغلی دی او په مسند احمد ص۲۷۲ ج۴ کښې د (الزَّقُ كَعْبَهُ بِكَعْبِ صَاحِبِهِ وَرُكْبَتِهِ بِرُكْبَتِهِ وَمَنْكِبَهُ بِمَنْكِبِهِ) او ابوداؤد ص۹۷ ج۱ کښې د (حَاذُوا الأَعْنَاقَ) هم ذکر دې.

**ثناء «سبحانک اللهم» ویل**:- دتکبیر تحریمه نه پس ثناء ویل دی، (هدایه ص۱۱ ج۱، شرح نقایه

صـ۴۳ج۱، کبیری صـ۳۰۱)

(وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ حِينَ تَقُومُ) (الطور آیت۴۸پاره۲۷)

**ترجمه**: او تسبیح کوه دخپل رب سره دثناء کله چه مونځ ته ودریږې.

عَنِ الْحَكِيمِ بنِ عُمَيْرِ الثُّمَالِيِّ مَرفُوعًا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ فَارْفَعُوا أَيْدِيَكُمْ وَلَا تُخَالِفُ آذَانَكُمْ ثُمَّ قُولُوا اللهُ أَكْبَرُ. سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ وَإِن لَّمْ تَزِيْدُوا عَلَى التَّكْبِيرِ أَجْزَأَتْكُمْ.

(کنزالعمال صـ۲۰۷ ج۷بحواله طبرانی شرح نقایه صـ۷۴ ج۱ونصب الرایه صـ۳۱۲ ج۱).

**ترجمه**: حضرت حکیم بن عمیر الثمالی فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چه تاسو مونځ دپاره ودریږئ نوخپل لاسونه پورته کړئ لیکن دغوږونونه یی مه پورته کوئ، بیا «الله اکبر» ووایئ. او «سبحانك اللهم» (ترآخره پورې) ووایئ، که تاسو صرف په «الله اکبر» اکتفاء وکړه، نومونځ صحیح کیږی.

**مسئله**: - دثناء دپاره مختلف الفاظ لکه «سبحانك اللهم ـ الخ»، او «وجهت وجهی ـ الخ» او «اللهم باعد ـ الخ» وغیره په احادیثو کښې راځی، په دې کښې چه کومو الفاظو سره هم ثناء وکړې شی نوصحیح ده. البته په بعضې احادیثو کښې دثناء الفاظ ډیر اوږده دی، چه په فرائضو کښې مناسب نه دی. البته په نوافلو (تهجدووغیره) کښې مناسب دی، رسول الله ﷺ به هم باالعموم په نوافلو کښې دغه الفاظو سره ثنا ویله، په فرائضو کښې چه څومره اختصار وی نومناسب دې.

عَنْ أَنَسٍ ﷺ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ أَنَّهُ إِذَا كَبَّرَ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى يُحَاذِيَ أُذُنَيْهِ يَقُولُ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ (مجمع الزوائد صـ۱۰۷ ج۲).

**ترجمه**: حضرت انس ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به کله مونځ شروع کولو، نوتکبیر به یی ویلو، بیا به یی لاس پوره کړلو، تردې چه دواړه لاسونه مبارك به یی دغوږونو برابر کړل، بیا به یی «سبحانك اللهم» ویله.

عَنْ عَبْدَةَ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ ﷺ كَانَ يَجْهَرُ بِهٰؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ يَقُولُ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ الخ (مسلم صـ۱۷۲ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدة ﷺ فرمائی چه حضرت عمر بن خطاب ﷺ به (سبحانك اللهم) (دتعلیم په غرض) په زوره ویله.

عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ ﷺ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ قَالَ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ. (ترمذی صـ۶۲، ابن ماجه صـ۵۸).

**ترجمه**: ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به کله مونځ

شروع کولونو «سبحانك اللهم» به یې ویله.

عَنْ اَبِیْ سَعِیْدِ الْخُدْرِیِّ رضی الله عنه قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا قَامَ اِلَی الصَّلٰوةِ بِاللَّیْلِ كَبَّرَ ثُمَّ یَقُوْلُ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰی جَدُّكَ وَلَا اِلٰهَ غَیْرُكَ ثُمَّ یَقُوْلُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ كَبِیْرًا ثُمَّ یَقُوْلُ اَعُوْذُ بِاللهِ السَّمِیْعِ الْعَلِیْمِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْمِ مِنْ هَمْزِهٖ وَنَفْخِهٖ وَنَفْثِهٖ. (ترمذی ص ۶۲).

**ترجمه** : حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه نه روایت دي چه رسول الله ﷺ به کله د شپې دمونځ دپاره ودریدلو، نو دتکبیر نه پس به یې په دې کلماتو سره ثنا ویله (سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰی جَدُّكَ وَلَا اِلٰهَ غَیْرُكَ). بیا به یې وویل چه (الله اکبر کبیرا) بیا به یې وویل (اَعُوْذُ بِاللهِ السَّمِیْعِ الْعَلِیْمِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْمِ مِنْ هَمْزِهٖ وَنَفْخِهٖ وَنَفْثِهٖ).

**ترجمه** : پنا غوارم په الله سره چه آوریدونکې او پوه دې، دشیطان دوسوسې نه دتکبر نه، اودده دسحر او د فساد نه.

حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دي، چه ماد رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه چه تاسو دتکبیر او د قرائت په مینځ کښې څه واییئ، نوهغوی وفرمائیل : زه دا دعا کوم :((اَللّٰهُمَّ بَاعِدْ بَیْنِیْ وَبَیْنَ خَطَایَایَ كَمَا بَاعَدْتَ بَیْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ اَللّٰهُمَّ نَقِّنِیْ مِنَ الْخَطَایَا كَمَا یُنَقَّی الثَّوْبُ الْاَبْیَضُ مِنَ الدَّنَسِ اَللّٰهُمَّ اغْسِلْ خَطَایَایَ بِالْمَاءِ وَالثَّلْجِ وَالْبَرَدِ)، (بخاری ص ۱۰۳ ج ۱، مسلم ص ۲۱۹ ج ۱).

**ترجمه** : اې الله ! زما او زما دګناهونو په مینځ کښې دومره لرې والې رلوله لکه دمشرق اومغرب، اوما دګناهونو نه داسې پاک کړې لکه څنګه چه سپینه جامه دخیرې نه صفا کوې ، زما ګناهونه په اوبو ،واوره، اوګلئ سره ووه مینځه.

عَنْ عَائِشَةَ رضی الله عنها مَرْفُوْعًا قَالَتْ كَانَ اِذَا قَامَ مِنَ اللَّیْلِ افْتَتَحَ صَلٰوتَهٗ اَللّٰهُمَّ رَبَّ جِبْرِیْلَ وَمِیْكَائِیْلَ وَاِسْرَافِیْلَ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ عَالِمَ الْغَیْبِ وَالشَّهَادَةِ اَنْتَ تَحْكُمُ بَیْنَ عِبَادِكَ فِیْمَا كَانُوْا فِیْهِ یَخْتَلِفُوْنَ اِهْدِنِیْ لِمَا اخْتُلِفَ فِیْهِ مِنَ الْحَقِّ بِاِذْنِكَ اِنَّكَ تَهْدِیْ مَنْ تَشَاءُ اِلٰی صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ. (مسلم ص ۲۶۳ ج ۱، نسائی ص ۲۲۲ ج ۱، ترمذی ص ۲۶۳ ابن ماجه ص ۹۶).

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه روایت دي چه رسول الله ﷺ به کله دشپې دمونځ دپاره پاڅیدلو اومونځ به یې شروع کړو نو دا دعا به یې کوله چه : «اې الله ! اې دجبریل، میکائیل، اسرافیل ربه ! اې د آسمانونو اوزمکې پیدا کوونکیه ! اې په پټو اوښکاره «او محسوساتو اوغیر محسوساتو» باندې عالمه ! ته فیصله کوې دخپلوبندګانو په مینځ کښې په هغه خبرو کښې چه کومو خبرو کښې هغوی خپل مینځ کښې اختلاف کوی، زماپه خپل حکم سره

رهنمایي وکړې په هغه خبرو کښې په کومو کښې چه اختلاف کړې شوې دې، بیشکه ته دنیغې لارې چه ته وغواړې نوهدایت ورکونکې یې.

عَنْ عَلِيِّ بْنِ اَبِي طَالِبٍ رضي الله عنه عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ اَنَّهُ كَانَ اِذَا قَامَ اِلَى الصَّلٰوةِ قَالَ وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ حَنِيْفًا وَّمَا اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ اِنَّ صَلَاتِيْ وَنُسُكِيْ وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِيْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَبِذٰلِكَ اُمِرْتُ وَاَنَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ. اَللّٰهُمَّ اَنْتَ الْمَلِكُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ رَبِّيْ وَاَنَا عَبْدُكَ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ وَاعْتَرَفْتُ بِذَنْبِيْ فَاغْفِرْ لِيْ ذُنُوْبِيْ جَمِيْعًا اِنَّهٗ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اَنْتَ وَاهْدِنِيْ لِاَحْسَنِ الْاَخْلَاقِ لَا يَهْدِيْ لِاَحْسَنِهَا اِلَّا اَنْتَ وَاصْرِفْ عَنِّيْ سَيِّئَهَا لَا يَصْرِفُ عَنِّيْ سَيِّئَهَا اِلَّا اَنْتَ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ وَالْخَيْرُ كُلُّهٗ فِيْ يَدَيْكَ وَالشَّرُّ لَيْسَ اِلَيْكَ اَنَا بِكَ وَاِلَيْكَ تَبَارَكْتَ وَتَعَالَيْتَ اَسْتَغْفِرُكَ وَاَتُوْبُ اِلَيْكَ (مسلم ص۲۶۳ ج۱،ابوداؤد ص۱۱۰ ج۱، ترمذی ص۲۹۳، نسائی ص۱۴۲ ج۱)

**ترجمه** : حضرت علی رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به کله مونځ دپاره ودریدلو نو دا دعا به یې فرمایله : (وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ حَنِيْفًا وَّمَا اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ اِنَّ صَلَاتِيْ وَنُسُكِيْ وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِيْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَبِذٰلِكَ اُمِرْتُ وَاَنَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ. اَللّٰهُمَّ اَنْتَ الْمَلِكُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ رَبِّيْ وَاَنَا عَبْدُكَ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ وَاعْتَرَفْتُ بِذَنْبِيْ فَاغْفِرْ لِيْ ذُنُوْبِيْ جَمِيْعًا اِنَّهٗ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اَنْتَ وَاهْدِنِيْ لِاَحْسَنِ الْاَخْلَاقِ لَا يَهْدِيْ لِاَحْسَنِهَا اِلَّا اَنْتَ وَاصْرِفْ عَنِّيْ سَيِّئَهَا لَا يَصْرِفُ عَنِّيْ سَيِّئَهَا اِلَّا اَنْتَ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ وَالْخَيْرُ كُلُّهٗ فِيْ يَدَيْكَ وَالشَّرُّ لَيْسَ اِلَيْكَ اَنَا بِكَ وَاِلَيْكَ تَبَارَكْتَ وَتَعَالَيْتَ اَسْتَغْفِرُكَ وَاَتُوْبُ اِلَيْكَ)

**مسئله** :- دابوداؤد اونسائی په روایت کښې د (انامن المسلمین) په ځایی (انا اول المسلمین) راغلی دی ، دا علی سبیل الحکایت دې ځکه چه رسول الله ﷺ ددې امت دټولو نه اول د الله جل جلاله تابعدار وو، اومطلقا هم هغوی ﷺ (اول المسلمین) دی، او د جناب روح مبارک (اول ماخلق الله) دی. له همدې کبله هغوی ﷺ د «الست بربکم» په جواب کښې تر ټولونه اول دفرمانبرداری اظهار فرمایلې وو.

عَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ اَنَّهٗ رَاٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يُصَلِّيْ صَلٰوةً فَقَالَ اَللّٰهُ اَكْبَرُ كَبِيْرًا وَّالْحَمْدُ لِلّٰهِ كَثِيْرًا اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ كَثِيْرًا وَّسُبْحَانَ اللّٰهِ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا ثَلَاثًا اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ مِنْ نَفْخِهٖ وَنَفْثِهٖ وَهَمْزِهٖ. (ابوداؤد ص۱۱۱ ج۱، ابن ماجه ص۵۸، مسند احمد ص۸۰ ج۴)

**ترجمه** : حضرت جبیر بن مطعم نه روایت دې چه هغوی رسول الله ﷺ په مونځ کولو ولیدلو، هغوی ﷺ به دثنا په وخت دا الفاظ ویل : «الله جل جلاله دټولونه لوئ دې، ډیر لوی دې،اوټول تعریفونه دالله جل جلاله دپاره دی په کثرت سره،اودالله جل جلاله ذات پاک دې، «دالویی ، پاکی ،اوتعریف دالله جل جلاله دپاره

دي، سحر هم، او وروستو دزوال نه هم، هغوی ﷺ به داکلمات درې ځله ويل، «بيا به يې ويل» اې الله ﷻ زه ستا په ذات سره پناه غوارم، دشيطان دتکبر او دهغه دسحر او وسوسې نه.

**مسئله** :- (وَجَّهتُ وَجهِيَ) دتکبير له افتتاح نه وړاندې دويلو څه قوی توجيه نشته. خواه دنيت نه وړاندې وی يا وروسته. (شرح نقايه ص۷۲ ج۱، کبيری ص۳۰۲).

اوشاه عبدالعزيز اوبعضې نوروفقهاء کرامو فرمايلی دی چه له بعضې رواياتو نه معلوميږی چه که دتکبير نه وړاندې يې ووايي نوڅه حرج پکښې نشته. (فتاوی عزيزی فارسی ص۱۲ ج۱)

**مسئله** :- فقهاء کرام فرمايي چه : (وَجَلَّ ثَنَاءُكَ لَم يُذكَر فِي المَشَاهِيرِ فَلَا يَأتِي فِي الفَرَائِضِ) (هدايه ص۶۶ ج۱)

**ترجمه** : يعنی د(جل ثناءك) لفظ په مشهورو رواياتو کښې ندې ذکر شوې ، لهذا په فرائضو کښې به دا لفظ نشي لوستلې.

**مسئله** :- دالله اکبر نه وروسته به ثنا وايي اوچه کله امام قرائت بالجهر شروع کړی نو بيا به ثناء نه وايي. (کبيری ص۳۰۴)

**تعوّذ «اعوذبالله» ويل** :- دثنا نه وروسته به تعوذ وايي يعنی که امام يا منفرد وی، نو(اعوذ بالله من الشيطن الرجيم) به په پټ آواز سره ووايي. لکه څنګه چه په احاديثو کښې راغلی دی. (هدايه ص۶۶ ج۱، شرح نقايه ص۷۲، ج۱، کبيری ص۳۰۲).

(فَإِذَا قَرَأتَ القُرآنَ فَاستَعِذ بِاللهِ مِنَ الشَّيطٰنِ الرَّجِيمِ) (النحل آيت ۹۸ پاره ۱۴)

**ترجمه** : نو کله چه تاسو قرآن لولئ نو اول په الله ﷻ سره دشيطان رټلې شوی نه پناه وغوارئ.

عَن جُبَيرِ بنِ مُطعِمٍ عَن أَبِيهِ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ إِذَا دَخَلَ الصَّلٰوةَ قَالَ اللهُ أَكبَرُ كَبِيرًا وَالحَمدُ لِلّٰهِ كَثِيرًا ثَلَاثًا سُبحَانَ اللهِ بُكرَةً وَّأَصِيلًا ثَلَاثًا أَعُوذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيطٰنِ الرَّجِيمِ مِن نَّفخِهِ وَهَمزِهِ وَنَفثِهِ. (صحيح ابن حبان ص۳۰۲ ج۳ مسند احمد ص۸۰ ج۴ ابوداؤد ص۱۱۱ ج۱)

**ترجمه** : حضرت جبير بن مطعم ﷺ دخپل والد نه روايت کوی، هغوی فرمايي چه رسول الله ﷺ به کله په مونځ کښې داخليدلو، نو (اَللهُ أَكبَرُ كَبِيرًا) به يې ويلو او (الحَمدُ لِلّٰهِ كَثِيرًا) او (سُبحَانَ اللهِ بُكرَةً وَّأَصِيلًا) به يې درې ځله ويلو، او (أَعُوذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيطٰنِ الرَّجِيمِ مِن نَّفخِهِ وَهَمزِهِ وَنَفثِهِ) به يې هم ويلو.

عَن أَبِي سَعِيدِ الخُدرِيِّ ﷺ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ كَانَ يَقُولُ قَبلَ القِرَاءَةِ أَعُوذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيطٰنِ الرَّجِيمِ. (مصنف عبدالرزاق ص۸۶ ج۲)

**ترجمه** : حضرت ابوسعید خدری ﷛ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به دقرائت نه وړاندې اعوذ باالله ویله.

**عَنِ الْاَسْوَدِ ﷛ قَالَ اِفْتَتَحَ عُمَرُ الصَّلٰوةَ ثُمَّ كَبَّرَ ثُمَّ قَالَ سُبحانك اللهم وبحمدك وتبارك اسمك وتعالی جدك ولااله غيرك اعوذ بالله من الشيطن الرجيم (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۳۶ ج۱)**

**ترجمه** : حضرت اسود ﷛ فرمایی چه حضرت عمر ﷛ به کله مونځ شروع کولونو تکبیر به یی وویلو او بیا به یی دا د ثناء کلمات ویل: **(سبحانك اللهم)** بیا به یی **(اعوذ بالله)** ویله.

**تسمیه «(بسم الله)» ویل** :- ددینه وروسته دې بسم الله ووایی، (امام او منفرد دې په پټ آواز سره ووایی) **(هدایه ص۶۶ ج۱، شرح نقایه ص۶۷ ج۱، کبیری ص۳۰۶).**

لکه څنګه چه دعبدالله بن مسعود ﷛ نه نقل شوی دی : **(اَنَّهُ كَانَ يُخْفِي بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وَالْاِسْتِعَاذَةَ وَرَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ)، (مصنف ابن ابی شیبه ص۴۱۱ ج۱).**

**ترجمه** : چه هغه به «بسم الله الرحمن الرحیم» او «اعوذ باالله» او «ربنا لك الحمد» په پټه ویله.

**مسئله** :- بسم الله چونکه دسورة فاتحې جزء نده لهذا امام به قرائت د «الحمد لله» نه په ښکاره شروع کوی. حضرت ابوهریره ﷛ فرمایی : **((اِنِّي سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ قَالَ اللهُ تَعَالٰى قَسَمْتُ الصَّلٰوةَ بَيْنِيْ وَبَيْنَ عَبْدِيْ نِصْفَيْنِ وَلِعَبْدِيْ مَا سَاَلَ فَاِذَا قَالَ الْعَبْدُ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ فَقَالَ اللهُ حَمِدَنِيْ عَبْدِيْ وَاِذَا قَالَ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ قَالَ اللهُ تَعَالٰى اَثْنٰى عَلَيَّ عَبْدِيْ وَاِذَا قَالَ مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ قَالَ مَجَّدَنِيْ عَبْدِيْ وَاِذَا قَالَ اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ، قَالَ هٰذَا بَيْنِيْ وَبَيْنَ عَبْدِيْ وَلِعَبْدِيْ مَا سَاَلَ فَاِذَا قَالَ اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ قَالَ هٰذَا لِعَبْدِيْ وَلِعَبْدِيْ مَا سَاَلَ))**.

**ترجمه** : ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی، هغوی وفرمایل چه الله ﷻ فرمایی چه ما مونځ دځان اوبنده په مینځ کښې نیم په نیمه تقسیم کړې دې، او زما دبنده دپاره هغه څه دی چه هغه یی غواړی پس بنده چه کله په مونځ کښې (سورة فاتحه ووایی اوهغه) «الحمدلله رب العلمین» ووایی، (نو دسورة ابتداء دالحمد نه وشوه او بسم الله ددې حصه نه ده) نو الله ﷻ فرمایی چه : زما بنده زما تعریف وکړو اوکله چه بنده الرحمن الرحیم ووایی نو الله ﷻ فرمایی چه زما بنده زما ثناء بیان کړه، اوکله چه بنده ووایی ملك یوم الدین نو الله ﷻ فرمایی چه زما بنده زما بزرګی او عظمت بیان کړو، اوکله چه بنده ایا ك نعبد وایاك نستعین ووایی نو الله ﷻ فرمایی چه دا زما دبنده اوزما په مینځ کښې شریك دې، (یعنی عبادت زما حق دې او مددغوښتل دبنده حق دې) او زما دبنده دپاره به هغه څه وی چه هغه یی غواړی، اوچه کله بنده اهدنا الصراط المستقیم نه ر ولاالضآلین پورې ووایی

نو الله ﷻ فرمايي چه دا زما دبنده دپاره دي او زما دبنده دپاره به هغه څه وی چه هغه يې غواړي، «دصراط المستقيم غوښتل، دمغضوب او ضالين دلارې نه دبچ کيدو درخواست کول دا دبنده حق دې، او نيغه لاره ښودل اودمغضوبين اوضالين دلارې نه بچ کول دا دالله ﷻ کار دې».

حضرت شيخ ابراهيم حلبی ليکلي دی چه : ((وَلَا شَكَّ اَنَّ الْمُرَادَ بِالصَّلٰوةِ الْفَاتِحَةُ لِاَنَّ الْمَقْسُوْمَ بِهَا فَسَّرَ (اِلٰى اَنْ قَالَ) فَالْبِدَاءَةُ بِاَلْحَمْدُ لِلّٰهِ دَلِيْلٌ عَلٰى اَنَّ التَّسْمِيَةَ لَيْسَتْ مِنَ الْفَاتِحَةِ وَاِنَّهَا سَبْعُ اٰيَاتٍ بِدُوْنِهَا حَيْثُ جَعَلَ الْوُسْطٰى وَهِيَ اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ بَيْنَهٗ وَبَيْنَ عَبْدِهٖ وَالثَّلٰثُ قَبْلَهَا لَهٗ تَعَالٰى وَالثَّلٰثُ بَعْدَهَا لِعَبْدِهٖ فَقَطْ)). (کبیری ص۳۰۷).

**ترجمه** : اوپه دې کښې شك نشته چه دصلوة نه مراد پدې حديث کښې سورة فاتحه دد. (ځکه چه ددې سورة دمونځ سره خصوصيت حاصل دې، له همدې کبله ددې ويل په مونځ کښې واجبيږي) ځکه چه کوم ځيز تقسيم کړې شو، د هغې تفسير هغوی دسورة فاتحه نه وفرمايلو، پس دسورة فاتحې شروع دالحمد نه کول دا ددې خبرې دليل دې چه بسم الله دسورة فاتحې جزء نه دې، او دسورة فاتحه اوه ۷ آيتونه دی بغير دبسم الله نه، ځکه چه مينځنې آيت (اياك نعبد واياك نستعين) د الله ﷻ اودبنده په مينځ کښې تقسيم شوې دې، باقی درې آيتونه ددينه وړاندې هغه دالله ﷻ دپاره دی، اوددينه بعد درې آيتونه دبنده دپاره دی.

عَنْ عَلِيٍّ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يَقْرَأُ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ فِيْ صَلَاتِهٖ. (دار قطنی ص۳۰۲ ج۱).

**ترجمه** : حضرت علی﷛ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به په مونځ کښې بسم الله ويله.

عَنْ اَنَسٍ﷛ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ وَاَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ كَانُوْا يَفْتَتِحُوْنَ الصَّلٰوةَ بِاَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ. (بخاری ص۱۰۳ ج۱)

**ترجمه** : حضرت انس﷛ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوحضرت ابوبکر﷛ اوحضرت عمر﷛ به مونځ دالحمد لله رب العمين نه شروع کولو، (يعنی په ښکاره به يې ددې ځای نه شروع کولو).

عَنْ اَنَسٍ﷛ قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ النَّبِيِّ ﷺ وَاَبِيْ بَكْرٍ وَعُمَرَ وَعُثْمَانَ فَلَمْ اَسْمَعْ اَحَدًا مِّنْهُمْ يَقْرَأُ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ (مسلم ص۱۷۲ ج۱)

**ترجمه** : حضرت انس﷛ نه روايت دې هغوی فرمائی چه ما په رسول الله ﷺ پسې مونځ وکړو، همدغه رنګه په حضرت ابوبکر﷛ حضرت عمر﷛ حضرت عثمان﷛ پسې مې هم مونځ وکړو، ما په هغوی کښې دچانه هم دا وانه وريدل چه هغوی بسم الله الرحمن الرحيم (په ښکاره) ويلې وی.

وَفِيْ رِوَايَةٍ عَنْهُ كَانُوْا يَسْتَفْتِحُوْنَ بِاَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ لَا يَذْكُرُوْنَ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ فِيْ اَوَّلِ قِرَاءَةٍ وَلَا فِيْ اٰخِرِهَا (مسلم ۱۷۲ ج۱).

**ترجمه** : اوپه یو روایت کښې دحضرت انس ﷺ نه نقل دی هغوی فرمایي چه دې ټولو حضراتو به مونځ (په ښکاره) دالحمد لله رب العلمین نه شروع کولو، اوبسم الله به یې نه دقرائت په اول کښې اونه په آخر کښې (په ښکاره) لوستله.

وَعَنهُ قَالَ صَلَّيتُ خَلفَ النَّبِيِّ ﷺ وَخَلفَ اَبِي بَكرٍ ﷺ وَعُمَرَ ﷺ وَعُثمَانَ ﷺ فَكَانُوا لاَ يَجهَرُونَ بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيمِ (مسند احمد صـ ۱۱۴ ج ۳، نسائی ۱۱۴ ج ۱، طحاوی صـ ۱۳۹ ج ۱ باسناده علی شرط الصحیح.

**ترجمه** : حضرت انس ﷺ فرمایي چه ما په رسول الله ﷺ پسې، او ابوبکر ﷺ اوعمر ﷺ اوعثمان ﷺ پسې مونځ وکړو، دې ټولو حضراتو بسم الله الرحمن الرحیم په اوچت آواز نه لوستله.

عَن اَبِي وَائِلٍ ﷺ قَالَ كَانَ عُمَرَ ﷺ وَعَلِيٌّ ﷺ اَنّ بِبِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيمِ وَلاَ بِالتَّعَوُّذِ وَلاَ بِالتَّامِينِ. (طحاوی صـ ۱۴۰ ج ۱) وفی روایة الطبرانی کان علی وعبدالله الخ (مجمع الزوائد صـ ۱۰۸ ج ۲).

**ترجمه** : حضرت ابو وائل ﷺ فرمایي چه حضرت عمر ﷺ اوحضرت علی ﷺ اوحضرت عبدالله بن مسعود ﷺ به بسم الله، تعوذ، او آمین په اوچت آواز نه ویل.

عَنِ ابنِ عَبدِاللهِ بنِ مُغَفَّلٍ ﷺ قَالَ سَمِعَنِي اَبِي وَاَنَا فِي الصَّلٰوةِ اَقُولُ بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيمِ فَقَالَ اَي بُنَيَّ مُحدَثٌ اِيَّاكَ وَالحَدَثَ فَاِنِّي لَم اَرَ اَحَدًا مِن اَصحٰبِ رَسُولِ اللهِ ﷺ كَانَ اَبغَضَ اِلَيهِ الحَدَثُ فِي الاِسلاَمِ يَعنِي مِنهُ. قَالَ وَقَد صَلَّيتُ مَعَ النَّبِيِّ ﷺ وَمَعَ اَبِي بَكرٍ وَعُمَرَ وَمَعَ عُثمَانَ ﷺ فَلَم اَسمَع اَحَدًا مِنهُم يَقُولُهَا (اَي بِالجَهرِ) فَلاَ تَقُلهَا اِذَا اَنتَ فِي الصَّلٰوةِ فَقُلِ الحَمدُ لِلّٰهِ (ترمذی صـ ۶۲، طحاوی صـ ۱۳۹ ج ۱).

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن مغفل ﷺ دخپل زوی نه واوریدل چه په اوچت آواز یې بسم الله لوستله، نوهغوی وفرمایل، اې زویه ! دا نوې خبره ده اوځان دنوې خبرې نه وساته، ځکه چه ما د رسول الله ﷺ په صحابه کرامو کښې داسې څوك ندې لیدلې چه دهغوی په نزد به دنوې خبرې (بدعت) نه زیات څه څیز مبغوض وی. ما په رسول الله ﷺ پسې، همدارنګه په حضرت ابوبکر ﷺ حضرت عمر ﷺ حضرت عثمان ﷺ پسې مونځ کړې دې، ما په هغوی کښې دچانه هم ندی آوریدلی چه هغوی به په زوره بسم الله ویله، ته هم دا په زوره مه وایه، ته چه کله مونځ کوې نو د الحمد لله نه په زوره مونځ شروع کوه.

**مسئله** :- امام یې که دتعلیم په غرض په زوره ووایی نوجائزدی، د بسم الله په زوره ویلو په باره کښې چه کوم روایات د احادیثوپه کتابونو کښې موجود دی، نوزیادتر په کښې ضعیف اوناقابل اعتباردی، لیکن که کوم روایات پدې هکله راغلی وی نوهغه به په تعلیم باندې حمل کیږی. لکه څنګه چه رسول الله ﷺ په ماسپښین وغیره کښې مونځونو کښې په کومو کښې چه قرائت په پټه وی، کله کله به یې یو آیت دتعلیم دپاره په اوچت آواز ویلو، نوهم داسې بسم الله کښې که هغوی ﷺ

چرته په یو موقع جهر کړې وی نو هغه به دتعلیم په غرض وی. (**والله اعلم بالصواب**).

مولانا عبدالرحمن مبارکپوری رحمه الله صاحب په تحفة الاحوذی شرح دترمذی کښې لیکلي دی:

زه وایم چه زیلعی (صاحب د نصب الرایه) ویلی دی چه دحضرت انس رضی الله عنه نه (دبسم الله په پټه دلوستلو) په هکله کوم انکار نقل دې نو هغه ددې مقابله نشی کولې کوم چه ددې خلاف په صحیح روایتو سره نقل دی (چه رسول الله ﷺ او خلفاء راشدینو به په پټه لوستله) اودا هم امکان شته چه حضرت انس رضی الله عنه نه دبوډاوالی په وجه هیره شوې وی. دا قسمه خبرې ډیرځله واقع شوی دی، لکه څنګه چه حضرت انس رضی الله عنه نه یو ورځ دمسئلې پوښتنه وکړې شوه نوهغوی وفرمایل چه حسن بصری نه پوښتنه وکړئ هغه ته یاده ده اومونږ نه هیره شوې ده او ډیرحضرات داسې وی چه حدیث یې بیان کړې وی اوبیا ترې هیر شوې وی او دا هم احتمال شته چۀ حضرت انس رضی الله عنه نه سوال کونکی دبسم الله په مونځ کښې دویلو پوښتنه کړې وی نه دجهر او اخفاء په باره کښې (دزیلعی کلام ختم شو).

مبارکپوری صاحب فرمایی چه زیلعی دا هم ویلی دی چه دا حدیث دلالت کوی په دې خبره باندې چه بسم الله په زوره دنه ویلو سلسله دصحابه کرامو په نزد درسول الله ﷺ نه په توارث سره ثابته ده. ټولو متقدمینو نقل کړې وه اوصرف دا خبره (توارث دصحابو او تابعینو) په دې مسئله کښې کافی ده ځکه چه جهری مونځونه صرف سحر اوماښام وی، نو که رسول الله ﷺ همیشه بسم الله په زوره ویلې نو پدې کښې به اشتباه او اختلاف نه واقع کیدلو، اوالبته داخبره به ټولو ته مجبورا معلومه وه، حضرت انس رضی الله عنه به دا نه فرمائیل چه رسول الله ﷺ اوخلفاء راشدینو دا نه ده ویلې، او عبدالله بن مغفل رضی الله عنه به ددې ویلو ته بدعت نه ویلو. او د اهل مدینه عمل درسول الله ﷺ په مسجد اومحراب کښې اوپه هغه مقام کښې ترك دجهر دا متوارث عمل وو چه ټولو وړاندینو به له یوبل نه رانقل کولو اوداخبره دهغوی په نزد داسې جاری وه لکه دصاع اومد مسئله. (داهل مدینه صاع اومد ډیر مشهوروو، په هغې کښې کله هم اختلاف نه ؤو.

بلکه ددینه زیاته بلیغه دبسم الله معامله ده چه په دې کښې ټول مسلمانان شریکیږی، په ټولومونځونو کښې اومونځونه هم روزانه مکرر وی، شپه اوورځ، او ډیر انسانان داسې دی چه هغوی ته دصاع اومد ضرورت نه راځی، اوچاته چه کله ضرورت راشی نوهغه دهغې دپاره څه موده توقف هم کوی اوڅوك عقل مند دا وهم اوګمان هم نشی کولې چه اکابر صحابه رضی الله عنهم اوتابعین او اکثراهل علم دې دهغې خلاف مواظبت (همیشه والې) وکړی کوم چه رسول الله ﷺ کړې وی. (**تحفة الاحوذی ص۲۰۰ ج۱**).

**مسئله**: - په مقتدی قرائت نشته لهذا اعوذ بالله او بسم الله به هم نه وایی، البته که مقتدی نه رکعت شوې وی نوچه کله د فوت شوی رکعتونو دپاره ودریږی نوبیا به یې وایی. (**شرح نقایه**

صه۲ ج۱، کبیری صه۲۰۷).

**مسئله** :- چونکه تعوذ دقرآن سره وی نو له همدې کبله دثناء نه وروسته به یې وایی او قرائت به دتعوذ اوتسمیه نه وروسته شروع کوی. (شرح نقایه صه۷۲ ج۱، کبیری صه۳۰۲).

**مسئله** :- تعوذ به صرف په اول رکعت کښې اوبسم الله به په هر رکعت کښې وایی. (کبیری صه۳۰۶)

**قـراءت** :- دتعوذ اوتسمیه نه وروسته قرائت شروع کول، دقرائة معنی ده قرآن لوستل لهذا که څان له مونځ کونکې وی اوکه امام وی، نوماتیسر چه څومره میسر وی هغه به ولولی، کم ازکم یو آیت اوږد یا درې آیتونه واړه به په یو رکعت کښې لولی.

**مسئله** :- امام به ښکاره قرائت د الحمد نه شروع کوی.

**مسئله** :- د امام اومنفرد دپاره سورة فاتحه لوستل واجب دی، او بیا ددې سره څه سورة یوځای کول یا کم نه کم یو اوږد آیت یا درې لنډ آیتونه ورسره یوځای کول واجب دی. درسول الله ﷺ طریقه دمونځ همداسې وه.

**مسئله** :- مقتدی به امام پسې قرائت نه کوی اونه به سورة فاتحه لولی دده وظیفه اوکار سکوت، (چپ والې) اواستماع (آوریدل) دی. (هدایه صه۱۰۶ ج۱شرح نقایه صه۸۳ ج۱).

**مسئله** :- فاتحه دقرآن پاك حصه ده اوهم دقرآن سورت دې لکه څنګه چه له صحیح روایاتونه ثابت دی.

عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ اُمُّ الْقُرْآنِ هِيَ السَّبْعُ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنُ الْعَظِيمُ. (بخاری صه۶۸۳ ج۲، ابوداؤد صه۲۰۵ ج۱).

**ترجمه** : حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې، هغوی فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه ام القرآن (سورة فاتحه) سبع المثانی اوقرآن عظیم دې.

عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُعَلّٰى قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ ﷺ اَلَا اُعَلِّمُكَ اَعْظَمَ سُورَةٍ فِي الْقُرْآنِ قَبْلَ اَنْ اَخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ فَذَهَبَ النَّبِيُّ ﷺ لِيَخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ فَذَكَّرْتُهُ فَقَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِينَ هِيَ السَّبْعُ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنُ الْعَظِيمُ الَّذِي اُوتِيتُهُ. (بخاری صه۶۴۳،۶۴۲ ج۲، ابوداؤد صه۲۰۵ ج۱، نسائی صه۱۴۵ ج۱)

**ترجمه** : حضرت سعید بن المعلی ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ ماته وفرمایل : آیا زه تاته دجومات نه دوتلونه وړاندې دقرآن کریم دتولونه لوئ سورة (په اعتبار د درجې سره) ونه ښایم؟ بیا چه کله رسول الله ﷺ دجومات نه وتلو، نو ما وریاد کړل، نو هغوی ﷺ وفرمایل: (اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِينَ) (سورة فاتحه) همدا قرآن عظیم او سبع مثانی ده کوم چه ماته راکړې شوې دې، (یعنی دا اوه بار بار

لوستونکی آیتونه او د قرآن کریم خلاصه اونچوړ دې، له همدې کبله دا په فضیلت کښې دټولو نه زیات دی.

عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ جَابِرٍ ﷺ اِنْتَهَيْتُ اِلٰی رَسُوْلِ اللهِ ﷺ (اِلٰی اَنْ قَالَ) ثُمَّ قَالَ اَلَا اُخْبِرُكَ يَا عَبْدَاللهِ بْنَ جَابِرٍ ﷺ بِخَيْرِ سُوْرَةٍ فِي الْقُرْآنِ قُلْتُ بَلٰی يَا رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ اقْرَءْ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ حَتّٰی تَخْتِمَهَا. (مسند احمد ص۱۷۷ ج۴).

**ترجمه** حضرت عبدالله بن جابر ﷺ فرمایی چه زه رسول الله ﷺ ته ورسیدم، هغوی وفرمایل: اې عبدالله! آیا زه تاته دقرآن کریم دټولو نه بهتر سورة ونه ښایم، ماعرض وکړو یا رسول الله! ضرور یی راته وښایه! هغوی ﷺ وفرمایل دا لوله: (اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ) تر آخره پورې.

## دقراءة خلف الامام بحث

### «یعنی امام پسې وروستو دقراءة دکولو بحث»

امام پسې وروستو دقراءة کولو مسئله مختلف فیه ده.

۱- دحضرت امام ابو حنیفه امام محمد، امام ابو یوسف، حضرت سفیان ثوری، اودابن عیینه وغیره په نزد به په هیڅ مونځ کښې هم مقتدی امام پسې قراءة نه کوی.

**یادونه**:- صاحب دهدایه دامام محمد قول نقل کړې دې چه په پټو مونځونو کښې یی قراءة خلف الامام مستحسن ګرځولې دې، لیکن دا درست نه دی په صاحب دهدایه باندې په دې کښې ځای کښې اشتباه شوې ده ځکه چه امام محمد په خپل کتاب مؤطا امام محمد کښې اوکتاب الحجة کښې دامام ابوحنیفه اوخپل مذهب نقل کړې دې چه مقتدی به امام پسې قراءة نه کوی. دصاحب هدایه نه په نقل کولو کښې تسامح شوې ده، لکه چه امام محمد څخه نقل دی: (قَالَ مُحَمَّدٌ لَا قِرَاءَةَ خَلْفَ الْاِمَامِ فِيْمَا جَهَرَ فِيْهِ وَلَا فِيْمَا لَمْ يَجْهَرْ وَبِذٰلِكَ جَاءَتْ عَامَّةُ الْاٰثَارِ وَهُوَ قَوْلُ اَبِيْ حَنِيْفَةَ رحمه الله) (مؤطا امام محمد ص ۹۸)

**ترجمه**: حضرت امام محمد فرمایی چه په امام پسې دقراءة کولو حکم نشته، که په ښکاره مونځ کښې وی او که په پټ مونځ کښې. اوهمدا قول د امام ابوحنیفه رحمه الله دې.

قَالَ اَبُوْ حَنِيْفَةَ لَا قِرَاءَةَ خَلْفَ الْاِمَامِ فِيْ شَيْءٍ مِّنَ الصَّلٰوةِ مَا يُجْهَرُ فِيْهِ بِالْقِرَاءَةِ وَمَا لَا يُجْهَرُ فِيْهِ بِالْقِرَاءَةِ.

(کتاب الحجة ص۱۱۶ ج۱)

**ترجمه**: حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله فرمایی چه په امام پسې په هیڅ مونځ کښې قراءة کول نشته که په ښکاره مونځ کښې وی او که په پټ مونځ کښې «دقراءة حکم هیڅ مونځ کښې نشته».

وَقَالَ الثَّوْرِيُّ وَابْنُ عُيَيْنَةَ وَاَبُوْحَنِيْفَةَ لَا يَقْرَءُ الْمَاْمُوْمُ بِحَالٍ (مغنی ص۵۶۶ ج۱).

**ترجمه** : امام سفیان ثوری ،امام ابن عیینه،او امام ابو حنیفه فرمایي چه مقتدي به په هیڅ حال کښې هم قراءة نه کوي.

دامام مالك رحمه الله ، اوامام احمد بن حنبل رحمه الله په نزد په ښکاره مونځونو کښې په مقتدي قراءة کول نشته اوپه پټو مونځونو کښې قراءة کول مستحب دي ،واجب نه دي، لکه چه مؤطا امام مالك کښې همداسې راغلي دي.

**قَالَ يَحْيَى سَمِعْتُ مَالِكًا يَقُولُ الأَمْرُ عِنْدَنَا أَنْ يَقْرَءَ الرَّجُلُ وَرَآءَ الإِمَامِ فِيمَا لَا يَجْهَرُ فِيهِ الإِمَامُ بِالْقِرَاءَةِ وَيَتْرُكُ فِيمَا يَجْهَرُ فِيهِ الإِمَامُ بِالْقِرَآءَةِ .(مؤطا امام مالك ص۲۸).**

**ترجمه** : حضرت یحیی فرمایي چه ما د امام مالك نه واوریدل چه هغوی به فرمایل چه دمونځ معامله زمونږ په نزد داده چه کوم سړې په امام پسې مونځ کوي هغه په هغه مونځونو کښې په کومو کښې چه جهر نشته قراءة کولې شي، اوپه کومو کښې چه امام قراءة بالجهر کوي نو په هغې کښې به قراءة پریږدي.

**وَجُمْلَةُ ذٰلِكَ أَنَّ الْقِرَآءَةَ غَيْرُ وَاجِبَةٍ عَلَى الْمَأْمُومِ فِيمَا جَهَرَ بِهِ الإِمَامُ وَلَا فِيمَا أَسَرَّ بِهِ نَصَّ عَلَيْهِ أَحْمَدُ فِي رِوَايَةِ الْجَمَاعَةِ وَبِذٰلِكَ قَالَ الإِمَامُ الزُّهْرِيُّ وَالثَّوْرِيُّ وَابْنُ عُيَيْنَةَ وَمَالِكٌ وَأَبُو حَنِيفَةَ وَإِسْحَاقُ .(مغني ص۵۵۷ ج۱)**

**ترجمه** : اوخلاصه داده چه قراءة په مقتدي باندې واجب نه دې که ښکاره مونځ وي اوکه پټ ، امام احمد چه کوم روایت دمحدثینو دجماعت نه نقل کړې دې، په هغې کښې یې دهغې تصریح کړې ده، او دا خبره امام زهري رحمه الله ، سفیان ثوري رحمه الله ، ابن عیینه رحمه الله مالك رحمه الله ، ابوحنیفه رحمه الله ، اوامام اسحاق رحمه الله هم کړې ده.

**قَالَ مَالِكٌ وَأَحْمَدُ أَنَّهُ لَا تَجِبُ الْقِرَاءَةُ عَلَى الْمَأْمُومِ بِحَالٍ بَلْ كَرِهَ مَالِكٌ لِلْمَأْمُومِ أَنْ يَقْرَءَ فِيمَا يَجْهَرُ بِهِ الإِمَامُ (الميزان الكبرى ص۱۵۲ ج۱).**

**ترجمه** : امام مالك او امام احمد ویلي دي چه مقتدي باندې په هیڅ حال کښې قراءة واجب نه دې، بلکه امام مالك په ښکاره مونځونو کښې دمقتدي قراءة ته مکروه ویلي دي.

دامام شافعي په نزد به مقتدي په ښکاره مونځونو کښې قراءة نه کوي اوپه پټومونځونو کښې دهغوی په نزد مقتدي په امام پسې قراءة کولې شي، امام شافعي په خپل آخري کتابونو کښې دکتاب الام خپل لیکل داسې کړي دي : ((**هُمْ يَقُولُونَ إِنَّمَا يَقْرَءُ فِيمَا يَخْفِي لِنَفْسِهِ فَأَمَّا وَهُوَ وَرَاءَ الإِمَامِ فَلَا قِرَاءَةَ عَلَيْهِ وَنَحْنُ نَقُولُ كُلُّ صَلوٰةٍ صُلِّيَتْ خَلْفَ الإِمَامِ وَالإِمَامُ يَقْرَءُ قِرَاءَةً لَا يُسْمَعُ فِيهَا قَرَءَ فِيهَا**)). (کتاب الام ص۱۶۶ ج۷)

**ترجمه** : او دا فقهاء اومحدثین فرمایي چه کوم مونځ ګزار خان ته مونځ کوي هغه به قراءة کوي

اوچه کله هغه په امام پسې وی نو په هغه قراءة نشته ، اومونږ وایو چه کوم مونځ په امام پسې کیږی اوامام قراءة په زوره نه کوی نو هغه دې قراءة کوی.

وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ (الاعراف آیت ۲۰۴ پاره ۹)

**ترجمه** : اوکله چه قرآن لوستلې شی نوتاسو هغه ښه په توجه سره آورئ اوخاموشه اوسیږئ چه په تاسو باندې رحم وکړې شی.

عَنْ اَبِیْ مُوْسَی الْاَشْعَرِیِّ ؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ خَطَبَنَا فَبَیَّنَ لَنَا سُنَّتَنَا وَعَلَّمَنَا صَلٰوتَنَا فَقَالَ اِذَا صَلَّیْتُمْ فَاَقِیْمُوْا صُفُوْفَکُمْ ثُمَّ لِیَؤُمَّکُمْ اَحَدُکُمْ فَاِذَا کَبَّرَ فَکَبِّرُوْا وَاِذَا قَرَءَ فَاَنْصِتُوْا (مسلم ص۱۷۴ ج۱، مسند احمد ص۴۱۵ ج۴)

**ترجمه** : حضرت ابوموسی اشعری ؓ فرمائی چه رسول الله ﷺ مونږ ته خطبه ارشاد وفرمایله او زمونږ دپاره یې زمونږ سنت بیان کړل، اومونږ ته یې دمونځ طریقه وښودله ، هغوی ﷺ وفرمایل چه کله تاسو مونځ کوئ نوخپل صفونه نیغ کړئ بیا دې په تاسو کښې یو سړې ستاسو امامت وکړی نوکله چه هغه تکبیر کوی نوتاسو هم تکبیر کوئ اوچه کله هغه قراءة کوی نوتاسو خاموش اوسیږئ

قَوْلُ عَلِیٍّ لَا خَیْرَ فِیْ عِبَادَةٍ لَا فِقْهَ فِیْهَا وَلَا فِیْ قِرَاءَةٍ لَا تَدَبُّرَ فِیْهَا اَفَلَا یَتَدَبَّرُوْنَ الْقُرْآنَ. (اتحاف شرح شمائل للدارمی ص۳۳۲)

**ترجمه** : په هغه عبادت کښې بهتری نشته په کوم عبادت کښې چه عبادت گزار ته پوهه حاصله نه وی، اوپه هغه قرآن لوستلو کښې خیر نشته په کوم کښې چه تدبر نه وی.

اَلْاِنْصَاتُ اَلسُّکُوْتُ لِلْاِسْتِمَاعِ وَالْاِصْغَاءُ وَالْمُرَاعَاتُ (تفسیر قرطبی ص۳۵۳ ج۷)

**ترجمه** : دانصات معنی سکوت ده داوریدلو دپاره غوږ اینبودل، اورعایت کول.

قَالَ اَهْلُ اللُّغَةِ الْاِنْصَاتُ الْاِمْسَاکُ عَنِ الْکَلَامِ وَالسُّکُوْتُ لِاِسْتِمَاعِ الْقُرْآنِ (احکام القرآن للجصاص ص۴۰ ج۳)

**ترجمه** : اهل لغت وایی چه دانصات معنی بندیدل دی دکلام کولونه اوچپ اوسیدل دی دکلام آوریدلو دپاره

عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِاللهِ ؓ اَنَّ النَّبِیَّ ﷺ قَالَ مَنْ کَانَ لَهٗ اِمَامٌ فَقِرَاءَةُ الْاِمَامِ لَهٗ قِرَاءَةٌ . (طحاوی ص۱۴۹ ج۱، مصنف ابن ابی شیبه ص۳۷۷ ج۱، ابن ماجه ص۶۱، مسند احمد ص۳۳۹ ج۳، اسناده صحیح)

**ترجمه** : حضرت جابر ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه دچا امام وی (یعنی جماعت سره مونځ کوی) نو د امام قراءة دده قراءة دې.

یعنی مقتدی ته دقراءة کولو ضرورت نشته، د امام قراءة سره دمقتدی دقراءة فریضه ادا کیږی.

وَرَوَاهُ مُحَمَّدٌ فِي مُوَطَّاهُ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ عَنْ مُوسَى، الخ بِلَفْظِ مَنْ صَلَّى خَلْفَ الإِمَامِ فَإِنَّ قِرَاءَةَ الإِمَامِ لَهُ قِرَاءَةٌ

(مؤطا امام محمد ص۹۸ وفتح القدیر ص۲۳۹ ج۱ بحواله مؤطا امام محمد وقال اسناده صحیح بحواله مسند احمد بن منیع وقال صحیح علی شرط مسلم.)

**ترجمه** : او دا (ذکر شوې روایت) امام محمد رحمه الله په خپل کتاب مؤطا امام محمد کښې دامام ابوحنیفه رحمه الله په سند سره ذکرکړې دې، په دې الفاظو سره، چه رسول الله ﷺ وفرمایل: چا چه په امام پسې مونځ وکړو نو د امام قراءة دده قراءة دې. امام ابن همام دا په فتح القدیر کښې په حواله د مؤطا امام محمد سره ذکر کړې دې، او ویلی یې دی چه ددې سند صحیح دې. او دا روایت مسند احمد د ابن منیع په روایت سره نقل کړې دې، او ویلی یې دی چه ددې سند صحیح دې او دمسلم په شرط باندې دې.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ إِنَّمَا جُعِلَ الإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ فَإِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا وَإِذَا قَرَءَ فَأَنْصِتُوا وَإِذَا قَالَ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ فَقُولُوا آمِينَ وَإِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوا وَإِذَا قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَقُولُوا رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ. (ابن ماجه ص۶۱ دار قطنی ص۳۳۶ ج۱. نسائی ۱۴۶ ج۱ طحاوی ۱۲۹ ج۱، وصححه مسلم ص۱۷۴)

**ترجمه** : حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: بیشکه امام دې دپاره مقرر کړې شوې دې چه په هغه پسې اقتداء وکړې شی، پس چه کله امام تکبیر ووایی نوتاسو هم تکبیر وایئ اوچه کله هغه قراءة کوی نوتاسو خاموش اوسیږئ اوچه کله هغه (غیر المغضوب علیهم ولاالضالین) وایی نو تاسو آمین وایئ، او چه کله هغه رکوع کوی نو تاسو هم رکوع کوئ، او چه کله هغه (سمع الله لمن حمده) وایی نو تاسو (ربنا لك الحمد) وایئ.

عَنْ عَبْدِ اللهِ قَالُوا كَانُوا يَقْرَءُونَ خَلْفَ النَّبِيِّ ﷺ فَقَالَ خَلَطْتُمْ عَلَيَّ الْقُرْآنَ. (طحاوی ص۱۲۹ ج۱ مسند احمد ص۴۵۱ ج۱، مجمع الزوائد ص۱۱۰ ج۲ وقال رجال احمد رجال الصحیح)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه فرمایی چه خلقو په رسول الله ﷺ پسې په مونځ کښې قراءة کولو نو حضور ﷺ وفرمایل: تاسو په ما باندې قرآن ګډوډ کړو (یعنی ستاسو کار قراءة کول نه دی دا خو دامام کار دې، تاسو ولې بنګ بنګ کوئ).

عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ صَلَّى الظُّهْرَ فَجَعَلَ رَجُلٌ يَقْرَأُ خَلْفَهُ بِسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الأَعْلَى فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ قَالَ أَيُّكُمْ قَرَءَ وَأَيُّكُمُ الْقَارِي قَالَ رَجُلٌ أَنَا فَقَالَ قَدْ ظَنَنْتُ أَنَّ بَعْضَكُمْ خَالَجَنِيهَا. (مسلم ص۱۷۲ ج۱ فی باب ترك القراءة خلف الامام فیما لم یجهر فیه، ابن ابی شیبه ص۳۷۶ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عمران بن حصین نه روایت دې چه رسول الله ﷺ دماسپښین مونځ وکړو نویو

سرې ورپسې (سبح اسم ربك الاعلى) سورة ولوستلو کله چه هغوی ﷺ دمونځ نه فارغ شول اوخلقو ته متوجه شول نوهغوی ﷺ وفرمایل: په تاسو کښې څوك قراءة کونکې وُو، يوسړی عرض وکړو چه زه وم! اوما لوستلو، نوهغوی ﷺ وفرمایل: ما خیال وکړوچه په تاسو کښې بعضو په دې قراءة کښې زما سره خلجان اوملګرتیا پیدا کړې ده.

عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ ﷺ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ قَالَ اِذَا قَالَ الْقَارِیْ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ. (مسلم ص ۱۷۰ ج ۱)

**توجمه**: حضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دې چه بيشکه رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چه قاری يعنی قراءة کونکې امام (غيرالمغضوب عليهم ولاالضالين) ووايی «دقاری او دامام له لفظ نه دا خبره متبادره ده چه دجماعت په مونځ کښې قراءة کول د يوسړی «قاری يا امام» کار دې، مقتدی په آمين کښې دده سره شريکيږی ،که دټولو دپاره دويلو حکم وای نوقارئون به يې ويلې وو ، نه قارئ چه مفرد دې».

عَطَاءِ ابْنِ يَسَارٍ اَنَّهٗ سَاَلَ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ ﷺ عَنِ الْقِرَآءَةِ مَعَ الْاِمَامِ فِیْ شَيْءٍ. (مسلم ص ۲۱۵ ج ۱)

**توجمه**: حضرت عطاء بن يسار نه روايت دې چه ده دحضرت زيد بن ثابت ﷺ نه له امام سره دمونځ کولو په صورت کښې دقراءة کولو په باره کښې پوښتنه وکړه، نوهغوی وفرمایل: چه دامام سره په هيڅ مونځ کښې «ښکاره وی او که پټ» قراءة نشته.

عَنْ اَبِیْ وَائِلٍ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ اِلَی ابْنِ مَسْعُوْدٍ ﷺ فَقَالَ اَقْرَءُ خَلْفَ الْاِمَامِ قَالَ اَنْصِتْ لِلْقُرْاٰنِ فَاِنَّ فِی الصَّلٰوةِ شُغُلًا وَسَيَكْفِيْكَ ذَالِكَ الْاِمَامُ. (مجمع الزوائد ص ۱۱۰ ج ۲، بحواله طبرانی فی الاوسط والکبير وقال رجاله موثقون ومصنف عبد الرزاق ص ۱۳۷ ج ۲، کتاب الحجه للامام محمد ص ۱۲۰ ج ۱، وطحاوی ص ۱۵۰، ج ۱، ابن ابی شيبه ص ۳۸۴ ج ۱)

**توجمه**: حضرت ابووائل ﷺ فرمايی چه يو سړې حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ ته راغې اوعرض يې وکړو چه آيا زه په امام پسې قراءة کولې شم؟ نو عبدالله بن مسعود ﷺ ورته وفرمایل چه ته دقرآن د آوريدلو دپاره خاموشه شه! خکه چه دا «مونځ په حالت کښې مشغولتيا ده اوستا دپاره دامام لوستل کافی دی.

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَقْسَمٍ اَنَّهٗ سَاَلَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ ﷺ وَزَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ وَجَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ فَقَالُوْا لَا يَقْرَءُ خَلْفَ الْاِمَامِ فِیْ شَیْءٍ مِّنَ الصَّلَوٰتِ. (طحاوی ص ۱۵۱، ج ۱ واسناده صحيح مصنف عبدالرزاق ص ۱۴۰ ج ۲)

**توجمه**: حضرت عبدالله بن مقسم ﷺ دحضرت عبدالله بن عمر ﷺ حضرت زيدبن ثابت ﷺ او حضرت جابر بن عبدالله ﷺ نه پوښتنه وکړه په امام پسې دقراءة په باره کښې، نودې حضراتو وفرمایل چه امام پسې په هيڅ مونځ کښې هم قراءة نشته «نه په سری کښې اونه په جهری کښې».

عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ خَلْفَ الْإِمَامِ فَحَسْبُهُ قِرَاءَةُ الْإِمَامِ وَإِذَا صَلَّى وَحْدَهُ فَلْيَقْرَأْ قَالَ وَكَانَ عَبْدُ اللهِ لَا يَقْرَءُ خَلْفَ الْإِمَامِ. (موطا امام مالك ص ۶۲، و کتاب الحجه ص ۱۱۹ ج ۱، اسناده صحیح)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمرؓ فرمایی کله چه په تاسوکښې څوك په امام پسې قراءة کوی، نو د هغه دپاره د امام قراءة کافی دې، اوکله چه څان له مونځ کوئ نوبیا به قراءة کوئ، اوحضرت عبدالله ؓ به په امام پسې قراءة نه کولو.

عَنْ إِبْرَاهِيمَ أَنَّهُ كَانَ يَكْرَهُ الْقِرَاءَةَ خَلْفَ الْإِمَامِ وَكَانَ يَقُولُ تَكْفِيكَ قِرَاءَةُ الْإِمَامِ. (مصنف ابن ابی شیبه ص ۳۸۸ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت ابراهیم نخعی به په امام پسې قراءة کول مکروه ګڼل اووفرمایل به یی چه د امام قراءة ستاسو دپاره کافی دې.

اِبْنُ جُرَيْجٍ قَالَ قُلْتُ لِعَطَاءٍ أَيُجْزِئُ عَمَّنْ وَرَاءَهُ الْإِمَامِ قِرَاءَتُهُ فِيمَا يَرْفَعُ بِهِ الصَّوْتَ وَفِيمَا يُخَافِتُ قَالَ نَعَمْ. (مصنف عبد الرزاق ص ۱۴۱ ج ۲)

**ترجمه**: حضرت ابن جریج فرمایی چه ما دحضرت عطاء نه پوښتنه وکړه چه په امام پسې کوم مونځ کیږی آیا دهغې دپاره په سری اوجهری مونځونو کښې دامام قراءة کافی دې؟ نوهغوی وفرمایل: آو! د امام قراءة دمقتدیانو دپاره کافی دې

عَنْ نَافِعٍ وَأَنَسِ بْنِ سِيرِينَ قَالَا قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ تَكْفِيكَ قِرَاءَةُ الْإِمَامِ. (مصنف ابن ابی شیبه ص ۳۸۴ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت نافع اوحضرت انس بن سیرین فرمایی چه حضرت عمرؓ فرمایلی دی چه ستاسو دپاره دامام قراءة کافی دې.

عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ لَا يَقْرَءُ خَلْفَ الْإِمَامِ إِنْ جَهَرَ وَلَا إِنْ خَافَتَ (مصنف ابن ابی شیبه ص ۳۸۶ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت زید بن ثابت فرمایی چه په امام پسې به قراءة نه شی کولې که جهری (ښکاره) مونځ وی اوکه سری (پټ).

عَنْ أَبِي بِشْرٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ سَأَلْتُهُ عَنِ الْقِرَاءَةِ خَلْفَ الْإِمَامِ قَالَ لَيْسَ خَلْفَ الْإِمَامِ قِرَاءَةٌ. (مصنف ابن ابی شیبه ص ۳۳۸ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت ابو بشر فرمایی چه ما دسعید بن جبیر نه په امام پسې د قراءة کولو په باره کښې پوښتنه وکړه نوهغوی وفرمایل: په امام پسې هیڅ قراءة نشته.

عَنْ قَتَادَةَ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ أَنْصِتْ لِلْإِمَامِ. (مصنف ابن ابی شیبه ص ۳۷۷ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت قتاده دحضرت سعید بن المسیب نه نقل کوی چه هغوی وفرمائیل چه تاسو په

امام پسې خاموشي اختيار کړي.

قَالَ أَحْمَدُ مَا سَمِعْنَا أَحَدًا مِّنْ أَهْلِ الْإِسْلَامِ يَقُولُ إِنَّ الْإِمَامَ إِذَا جَهَرَ بِالْقِرَاءَةِ فَلَا تُجْزِئُ صَلَاةُ مَنْ خَلْفَهُ إِذَا لَمْ يَقْرَأْ وَقَالَ وَهٰذَا النَّبِيُّ ﷺ وَأَصْحَابُهُ وَالتَّابِعُونَ وَهٰذَا مَالِكٌ فِي أَهْلِ الْحِجَازِ هٰذَا الثَّوْرِيُّ فِي أَهْلِ الْعِرَاقِ هٰذَا الْأَوْزَاعِيُّ فِي أَهْلِ الشَّامِ وَهٰذَا اللَّيْثُ فِي أَهْلِ مِصْرٍ مَا قَالُوا الرَّجُلِ صَلَّى وَقَرَءَ إِمَامَهُ وَلَمْ يَقْرَءْ هُوَ صَلَاتُهُ بَاطِلَةٌ. (مغنی ابن قدامه ص۵۶۲ ج۱)

**ترجمه** : حضرت امام احمد فرمايي : مونږ په اهل اسلام کښې دچانه هم نه دی آوريدلی چه دا وايي چه امام کله په ښکاره قراءة کوی نو په هغه پسې دمونځ کونکی مونځ کله چه هغه قراءة نه کوی جائز نه دې، وګورئ : د رسول الله ﷺ او د هغوی صحابه ﷺ اوتابعين او دا دامام مالك په اهل حجاز کښې،اوسفيان ثوری په اهل عراق کښې،او اوزاعی په اهل شام کښې،او امام ليث په اهل مصر کښې،په دوی کښې چا هم دا نه دی ويلی، دهغه سړی په باره کښې څوك چه مونځ کوی، او دهغه امام قراءة کوی اودې په خپله قراءة نه کوی،چه دده مونځ باطل دې،داسې چاهم نه دی ويل.

**تامين** :- کله چه سورة فاتحه وويلې شی نوبيا به امام په پټ آواز آمين وايي او مقتدی به هم په پټ آواز آمين وه وايي (هدايه ص۶۷ ج۱شرح نقايه ص۷۵ ج۱، کبيری ص۳۰۹)

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ إِذَا قَالَ الْقَارِئُ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ فَقَالَ مَنْ خَلْفَهُ آمِينَ فَوَافَقَ قَوْلُهُ قَوْلَ أَهْلِ السَّمَاءِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ. (مسلم ص۱۷۶ ج۱، بخاری ص۱۰۸ ج۱، وفيه اذا قال الامام)

**ترجمه** : حضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دې چه بيشکه رسول الله ﷺ فرمايي : کله چه قاری يعنی قراءة کونکې امام (غير المغضوب عليهم ولا الضالين) ووايي نو څوك چه په ده پسې وی (يعنی مقتدی) چه کله آمين ووايي اودده قول د آسمان والا (فرشتو) سره موافق شی (دفرشتو سره دموافقت خبره يو په اخلاص کښې وی ، دويم په هغه وخت کښې،او دريم په پټ لوستلو کښې وی) نودده وړاندينی ګناهونه ټول معاف شی، اوبخاری کښې دا تصريح ده چه (کله امام ووايي)

**مسئله** :- آمين بالاتفاق سنت دې، دامام احمد بن حنبل اوامام شافعی په نزد په زوره، او دامام ابوحنيفه په نزد په پټه.

عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ أَنَّهُ صَلَّى مَعَ النَّبِيِّ ﷺ فَلَمَّا بَلَغَ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ قَالَ آمِينَ وَأَخْفٰى بِهَا صَوْتَهُ.

(مسند احمد ص۳۱۶ ج۴، ابوداؤد طيالسی ص۱۳۸، ترمذی ص۶۳، دار قطنی ص۳۳۴ ج۱، مستدرك حاكم ص۲۳۲ ج۲، وَقَالَ هٰذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلٰى شَرْطِهِمَا وَأَقَرَّهُ الذَّهَبِيُّ ونصب الرايه ص۳۶۹ ج۱، بحواله طبرانی ومسند ابويعلی)

**ترجمه**: حضرت وائل بن حجر ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ (غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ)

ته ورسيدلو نو هغوی ﷺ آمين وويلو او په پټ آواز سره يې وويلو.

عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ اِذَا قَالَ الْاِمَامُ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ فَقُولُوا آمِيْنَ فَاِنَّ الْمَلٰئِكَةَ تَقُولُ آمِيْنَ وَاِنَّ الْاِمَامَ يَقُولُ آمِيْنَ. (نسائی ص۱۴۷ ج۱، مصنف عبدالرزاق ص۹۷ ج۲، صحیح ابن حبان ص۲۱۰ ج۳)

**ترجمه**: حضرت ابوهريره ﷺ نه روايت دي چه رسول الله ﷺ فرمايي: کله چه امام (غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ) ووايي نو تاسو آمين وايئ پس بيشکه فرشتې هم آمين وايي او بيشکه امام هم آمين وايي.

حضرت عطاء ﷫ چه د امام ابوحنيفه ﷫ استاد دې، او د تابعينو نه دې هغوی فرمائی چه:

(قَالَ عَطَاءٌ آمِيْنَ دُعَاءٌ) (بخاری ص۱۰۷ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عطاء رحمه الله فرمايي چه آمين دعاء ده.

او د دعا قانون دادې چه (اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً). (الاعراف آيت ۵۵ پاره ۸)

**ترجمه**: دعا د خپل رب نه وغواړئ په عاجزی او خفيه طريقې سره.

اِذْ نَادٰی رَبَّهٗ نِدَآءً خَفِيًّا. (مريم آيت ۳ پاره ۱۶)

**ترجمه**: حضرت زکريا ﷺ چه کله خپل رب را وبله يعنی دعاء يې وکړه په خفيه طريقه باندې.

دَعْوَةُ السِّرِّ تَعْدِلُ سَبْعِيْنَ دَعْوَةً فِي الْعَلَانِيَةِ. (فتح القدير ص ۲۷۵ ج ۳ بحواله ابوالشيخ عن انس مرفوعاً بسند صحيح)

**ترجمه**: پټه دعا دهغه اويا دعاګانو برابره ده کومې چه علانيه (يعنی په ښکاره) سره وی.

آمِيْنَ لَيْسَ مِنَ الْقُرْاٰنِ بِالْاِجْمَاعِ فَلَا يُنَاسِبُ اَنْ يُّسَاوِيْ صَوْتَهٗ بِصَوْتِ الْقُرْاٰنِ وَلِهٰذَا لَا يَكْتُبُ الْقُرْاٰنَ وَنَحْوَهٗ (فی اعلاء السنن ص۱۸ ج۲)

**ترجمه**: آمين بالاتفاق دقرآن نه نه دې، پس مناسب نه دی چه دا په آواز کښې دقرآن د الفاظو مساوی وګرځولې شی، له همدې کبله دا په قرآن کښې نه ليکلې کيږی.

حضرت عمر ﷺ او حضرت علی ﷺ به اعوذ باالله، بسم الله، او آمين په زوره نه ويلو. (طحاوی ص۱۴۰ ج۱، وعمدة القاری ص۵۳ ج۶ بحواله طبری فی تهذيب الآثار.)

حضرت سمره بن جندب ﷺ او حضرت عمران بن حصين مذاکره وشوه، سمره ﷺ دوه سکتې کولې، او عمران بن حصين ﷺ ته يوه سکته ياده وه، دوی حضرت ابی بن کعب ﷺ ته خط وليکلو، نو حضرت ابی بن کعب ﷺ جواب را وليږو چه دسمره ﷺ ياد درست او صحيح دې (يعنی اوله سکته دثناء دپاره او دويمه سکته دآمين دپاره). (ترمذی ص۳۴ ابوداؤد ص۱۱۳ ج۱، دار قطنی ص۳۳۶ ج۱ اسناده صحيح).

عَنْ أَبِي وَائِلٍ قَالَ كَانَ عُمَرُ وَعَلِيٌّ لَا يَجْهَرَانِ بِبِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، وَلَا بِالتَّعَوُّذِ وَلَا بِالتَّامِيْنِ. (طحاوی ص۱۴۰ ج۱، وفی روایة الطبرانی کان علی و عبد الله الخ. مجمع الزوائد ص۱۰۸ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابو وائل رضی الله عنه فرمایي چه حضرت علی رضی الله عنه، حضرت عمر رضی الله عنه حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه به بسم الله. اوتعوذ، او آمین په اوچت آواز نه لوستل.

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ خَمْسٌ يُخْفِيْنَ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَالتَّعَوُّذُ وَبِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، وَآمِيْنَ وَاَللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ. (مصنف عبد الرزاق ص۸۷ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله فرمایي چه پنځه څیزونه په مونځ کښې پټ لوستلې کیږي، (سبحانك اللهم - الخ، تعوذ، بسم الله، آمین او ربنا لك الحمد).

وَعَنْهُ يُخْفِي الْإِمَامُ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وَالْاِسْتِعَاذَةَ وَآمِيْنَ وَرَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ. (مصنف ابن ابی شیبه ص ۴۱۱ ج۱ مصنف عبد الرزاق ص۸۷ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله فرمایي، چه امام به بسم الله، اوتعوذ، او آمین، او ربنا لك الحمد پټ لولي.

علامه ماردینی رحمه الله لیکلي دي: (وَقَدْ قَدَّمْنَا فِي بَابِ الْجَهْرِ بِالْبَسْمَلَةِ اَنَّ عُمَرًا وَعَلِيًّا لَمْ يَكُوْنَا يَجْهَرَانِ بِآمِيْنَ قَالَ الطَّبَرِيُّ وَرُوِيَ ذٰلِكَ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ وَرُوِيَ عَنِ النَّخَعِيِّ وَشَعْبِيٍّ وَاِبْرَاهِيْمَ التَّيْمِيِّ كَانُوْا يُخْفُوْنَ بِآمِيْنَ وَالصَّوَابُ اَنَّ الْخَبَرَيْنِ بِالْجَهْرِ وَالْمُخَافَتَةِ صَحِيْحَانِ وَعَمِلَ بِكُلٍّ مِنْ فِعْلَيْهِ جَمَاعَةٌ مِنَ الْعُلَمَاءِ وَاِنْ كُنْتُ مُخْتَارًا خَفْضَ الصَّوْتِ بِهَا اِذْ اَكْثَرُ الصَّحَابَةِ وَالتَّابِعِيْنَ عَلٰى ذٰلِكَ). (الجوهر النقی علی البیهقی ص۵۸ ج۲ عمدة القاری ص۵۱ ج۱)

**ترجمه**: اومونږ باب الجهر بالبسمله کښې دا خبره ذکر کړې ده چه حضرت عمر رضی الله عنه اوحضرت علی رضی الله عنه به آمین په زوره نه ویلو. حضرت امام طبری فرمایلي دي چه دارنګه روایت کړې شوې دې دحضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه. امام ابراهیم نخعی رحمه الله امام شعبی رحمه الله، ابراهیم تیمی رحمه الله نه چه هغوی به په پټ آواز باندې آمین ویلو. صحیح خبره داده چه په پټ آواز اواوچت آواز باندې دآمین ویلو دواړه روایتونه صحیح دي، او دعلماؤ جماعت دواړو باندې عمل کړې دې، اګر چه زه د آمین په باره کښې، پټ آواز والا روایت اختیاروم، ځکه چه داکثر صحابه کرامو او تابعینو عمل په همدې باندې دې.

**مسئله**: آمین په پټ آواز باندې ویل اولیٰ او افضل دي او که چیرته دتعلیم په غرض په ښکاره ونوستلې شي نو بیا هم جائز دي، لکه چه علامه ابن نجیم جوزي رحمه الله لیکلي دي:

فَاِذَا جَهَرَ بِهِ الْاِمَامُ اَحْيَانًا وَيُعَلِّمُ الْمَامُوْمِيْنَ فَلَا بَأْسَ بِذٰلِكَ وَقَدْ جَهَرَ عُمَرُ بِالْاِفْتِتَاحِ لِيُعَلِّمَ الْمَامُوْمِيْنَ

وَجَهَرَ ابْنُ الْعَبَّاسِ بِقِرَاءَةِ الْفَاتِحَةِ فِي صَلَاةِ الْجَنَازَةِ لِيُعَلِّمَهُمُ الْمَاسَنَةَ وَمِنْ هٰذَا اَيْضًا جَهْرُ الْاِمَامِ بِالتَّامِيْنِ وَهٰذَا مِنَ الْاِخْتِلَافِ الْمُبَاحِ الَّذِي لَا يُعَنَّفُ فِيْهِ مَنْ فَعَلَهُ وَلَا مَنْ تَرَكَهُ وَهٰذَا كَرَفْعِ الْيَدَيْنِ فِي الصَّلَاةِ وَتَرْكِهِ وَكَالْخِلَافِ فِي اَنْوَاعِ التَّشَهُّدَاتِ وَاَنْوَاعِ الْاَذَانِ وَالْاِقَامَةِ وَاَنْوَاعِ النُّسُكِ مِنَ الْاِفْرَادِ وَالْقِرَانِ وَالتَّمَتُّعِ. (زادالمعاد ص۰۰ ج۱)

**ترجمه** : پس کله چه امام (دعاء قنوت) هم په زوره دمقتديانو دتعليم په غرض ولولی، نو پدې کښې هم هيڅ حرج نشته ، حضرت عمرؓ دثناء الفاظ هم دمقتديانو دخاطره کله په جهر هم لوستل اوحضرت عبدالله بن عباسؓ به په جنازه کښې سورۃ فاتحه په جهر لوستله. دې دپاره چه خلقوته معلومه شی چه سورۃ فاتحه لوستل سنت دی، (حضرت عبدالله بن عباسؓ پدې باب کښې منفرد دې، ځکه چه اکثرصحابهؓ په جنازه کښې دسورۃ فاتحه دلوستلو قائل نه دی) او پدې سلسله کښې د آمين بالجهر ويل هم (د تعليم په غرض) دمباح اختلاف دقبيلې څخه دې، چه پدې کښې هيڅ طرفته هم سختي کول درست نه دی، چه څوك يې کوی دهغه دپاره اوچه څوك يې نه کوی دهغوی دپاره هم گنجائش شته دې او داهم داسې دی لکه په مونځ کښې رفع اليدين کول اونه کول، په دواړو طريقو سره درست دی، اولکه دتشهد مختلفو الفاظو سره ويل اولکه چه د اذان او اقامت الفاظ اوطريقه کښې او دحج انواع افراد يا قران اودتمتع وغيره اختلاف دې.

دعلامه ابن قيم جوزیؒ تائيد دحضرت وائل بن حجرؓ درروايت نه هم کيږی، لکه علامه ابوبشر محمدبن احمد دولابی نقل کړی دی چه : (عَنْ اَبِي السَّكَنِ حُجْرِ بْنِ عَنْبَسٍ الثَّقَفِيِّ قَالَ سَمِعْتُ وَائِلَ بْنَ حُجْرٍ الْحَضْرَمِيَّ يَقُوْلُ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ حِيْنَ فَرَغَ مِنَ الصَّلٰوةِ حَتّٰى رَاَيْتُ خَدَّهُ مِنْ هٰذَا الْجَانِبِ وَقَرَءَ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّيْنَ فَقَالَ اٰمِيْنَ يَمُدُّ بِهَا صَوْتَهُ مَا اَرَاهُ اِلَّا لِيُعَلِّمَنَا) (کتاب الکنی والاسماء ص۱۹۶ ج۱ مطبوعه مکتبة الاثريه سانگله هل)

**ترجمه** حضرت وائل بن حجرؓ فرمايي چه ما رسول اللهﷺ وليدلو، کله چه هغه دمونځ نه فارغ شو، نودسلام په وخت ما د هغویﷺ رخسار مبارك دواړو طرفو ته آوريدونکې وليدلو، اوچه کله هغویﷺ (غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّيْنَ) ولوستلو. نوهغویﷺ آمين وويلو، هغوی ددې سره خپل آواز اوږدولو ،اوزما خيال دې چه هغویﷺ داسې دتعليم ورکولو په غرض کړی وو.

علامه ابو بشر دولابیؒ خپله په دې روايت باندې جرح هم نقل کړې ده او ليکلي يې دی چه :

سَمِعْتُ الْعَبَّاسَ يَقُوْلُ سَمِعْتُ يَحْيٰى يَقُوْلُ اَبُو السَّكَنِ كَانَ بِالْحَرَمِ وَكَانَ يَقُوْلُ سَمِعْتُ الشَّعْبِيَّ وَلَمْ يَكُنْ بِشَيْءٍ وَفِي مَوْضِعٍ اٰخَرَ زَادَ اَبُو السَّكَنِ لَيْسَ بِشَيْءٍ. (کتاب الکنی والاسماء ص۱۹۷ ج۱)

**ترجمه** : د علامه ابوالبشر دولابی ابوالسکن راوی باندې کوم چه مشهور تابعی دې، جرح کول

درست نه دی، ځکه چه خطیب بغدادی لیکلی دی چه : (حجر بن عنبس ابو العنبس ویقال ابو السکن الحضرمی ادرک الجاهلیة ولم یلق رسول الله ﷺ روی عن علی و وائل بن حجر ﷺ حدث عنه سلمة بن کهیل (الی ان قال) وکان ثقة احتج بحدیثه غیر واحد من الائمة). (تاریخ بغداد ص ۲۷۴ ج ۸)

علامه ابن حجر عسقلانی رحمه الله لیکلی دی چه : (حجر ابن عنبس الحضرمی ابو العنبس ویقال ابو السکن الکوفی روی عن علی و وائل بن حجر وعنه سلمة بن کهیل وعلقمه (الی ان قال) قال ابن معین شیخ کوفی ثقة مشهور (الی ان قال) وقال الخطیب کان ثقة احتج واله حدیثا واحدا فی الجهر بآمین وصحح الدار قطنی وغیره حدیثه وذکره ابن حبان فی الثقات فی التابعین). (تهذیب التهذیب ص ۲۱۴ ج ۲)

له دینه علاوه هم دې راوی نه (چه ابو العنبس هم دې اوده ته ابو السکن هم ویلې شی. لکه څنګه چه په تاریخ بغدادنه د تهذیب التهذیب حواله همدا اوس تیر شول) دارقطنی په سنن دار قطنی کښې صـ۳۳۴ج۱، روایت نقل کولو نه پس دې روایت ته صحیح ویلی دی ،او امام ترمذی په ترمذی صـ۲۳کښې دده روایت ته حسن ویلی دی، او د دې راوی په صحیح ابن حبان صـ۲۲۰ج۳،اودارمی صـ۲۲۸ج۱ وغیره کښې هم روایت موجود دې، نودا راوی مجروح نه دې، البته پدې روایت کښې یحیی ابن سلمه بن کهیل مجروح دې، اګر چه ده ته ابن حبان ثقه هم ویلې دې. لیکن نوروامامانو په دې باندې جرح کړې ده، اومونږ ددې روایت نه استدلال نه کولو بلکه دا مو د آمین بالجهر او باالسّر روایاتو دتطبیق دپاره پیش کولو دې دپاره چه په دواړو روایاتو باندې عمل وشی.

**مسئله** :- هر رکعت کښې الحمد نه وړاندې او د سورة د ویلو په وخت (بسم الله الرحمن الرحیم) ویل مستحب دی. (شرح نقایه صـ۷۳ ج۱، کبیری صـ۳۰۷).

**رکوع** :- کله چه قراءة ختم شی نو بیا تکبیر دې وایه او رکوع دې وکړه. (هدایه صـ۱۰۷ ج۱، شرح نقایه صـ۷۳ ج۱، کبیری صـ۳۱۳).

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ ﷺ کَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا قَامَ اِلَی الصَّلٰوةِ یُکَبِّرُ حِیْنَ یَقُوْمُ ثُمَّ یُکَبِّرُ حِیْنَ یَرْ کَعُ. (بخاری صـ۱۰۹ ج۱، مسلم صـ۱۶۹ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به کله مونځ دپاره ودریدلو نو تکبیر به یې کولو، بیا چه به کله رکوع ته تللو نو تکبیر به یې کولو.

**مسئله** :- رکوع ته دتللو په وخت او درکوع نه د پورته کیدلو په وخت لاسونه مه اوچتوه، لاسونه اوچتول صرف د اولنی تکبیر په وخت کښې دی. (کتاب الحجه صـ۹۴ ج۱، هدایه صـ۱۰۷ ج۱، شرح

نقایه ص۹۰ ج۱، کبیری ص۳۲۴).

**رکوع ته د تلو او د رکوع نه د راپورته کیدلو په وخت لاسونه پورته کول :-**

صحیح خبره داده چه په مونځ کښې لاسونه پورته کول صرف د تکبیر تحریمه په وخت سنت او متفق علیه دی ، رکوع ته د تللو په وخت یا درکوع نه د پورته کیدلو په وخت اصح خبره داده چه لاسونه اوچتول بهتر نه دی، لکه څنګه چه د رسول الله ﷺ د قول او د فعل نه او د صحابه کراموا و د تابعینو د تعامل نه ثابت دی.

جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَالِيْ اَرَاكُمْ رَافِعِيْ اَيْدِيْكُمْ كَاَنَّهَا اَذْنَابُ خَيْلٍ شُمْسٍ اُسْكُنُوْا فِي الصَّلٰوةِ.

(مسلم ص۱۸۱ ج۱، ابوداود ص۱۴۳ ج۱)

**ترجمه** : حضرت جابر﷜ فرمائی چه رسول الله ﷺ وفرمایل : څه شوی دی مالره چه زه تاسو لاسونه اوچتونکی وینم ګویا چه هغه د مستو آسونو لکئ دی.

(اُسْكُنُوْا) یعنی په مونځ کښې سکون لازم ونیسئ.

اِبْنِ مَسْعُوْدٍ اَلَا اُصَلِّيْ بِكُمْ صَلٰوةَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَصَلّٰى وَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ اِلَّا اَوَّلَ مَرَّةٍ. (ترمذی ص۶۴، ابوداود ص۱۰۹ ج۱، نسائی ص۱۵۷ ج۱، مصنف ابن ابی شیبه ۲۳۶ ج۱، محلی ص۱۸۳ ج۲).

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن مسعود﷜ فرمایی چه آیا زه تاسو ته د رسول الله ﷺ مونځ ونکړم، بیا یی مونځ وکړو او لاسونه یی صرف په شروع دمونځ کښې اوچت کړل.

حضرت عبدالله بن مسعود﷜ فرمائی چه ما رسول الله ﷺ حضرت ابو بکر صدیق﷜ اوحضرت عمر﷜ سره مونځ وکړو ، دې حضراتو به صرف په شروع د مونځ کښې لاسونه اوچتول.

اِبْنِ مَسْعُوْدٍ﷜ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ وَاَبِيْ بَكْرٍ﷜ وَعُمَرَ﷜ فَلَمْ يَرْفَعُوْا اَيْدِيَهُمْ اِلَّا عِنْدَ الْاِفْتِتَاحِ الصَّلٰوةِ. (بیهقی ص۸۰ ج۲، والجوهر النقی علی البیهقی ص۷۸ ج۲، دار قطنی ص۲۹۵ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن مسعود﷜ فرمایی چه ما رسول الله ﷺ حضرت ابو بکر صدیق﷜ او حضرت عمر﷜ سره مونځ وکړو، دې حضراتو به صرف په شروع د مونځ کښې لاسونه اوچتول.

بَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ اِذَا كَبَّرَ لِاِفْتِتَاحِ الصَّلٰوةِ رَفَعَ يَدَيْهِ حَتّٰى تَكُوْنَ اِبْهَامَاهُ قَرِيْبًا مِّنْ شَحْمَتَيْ اُذُنَيْهِ ثُمَّ لَا يَعُوْدُ. (طحاوی ص۱۵۴ ج۱، ابوداود ص۱۰۹ ج۱، مصنف ابن ابی شیبه ص۲۳۶ ج۱)

**ترجمه** : حضرت براء بن عازب﷜ فرمایی چه رسول الله ﷺ به کله دمونځ د شروع کولو دپاره تکبیر کولو نو لاسونه به یی اوچتول، تر دې چه ګوتې به یی د غوږونو د نرمو سره برابرې شوې، بیا به هغوی ﷺ لاسونه نه اوچتول.

عُبَادَةَ ابنِ الزُّبَيرِ اَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ كَانَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ رَفَعَ يَدَيهِ فِي اَوَّلِ الصَّلٰوةِ ثُمَّ لَمْ يَرْفَعْهُمَا فِي شَيْءٍ حَتّٰى يَفْرُغَ. (نصب الرايه ص ۴۰۳ ج ۱، بحواله بيهقى فى الخلافيات)

**ترجمه**: حضرت عباده بن زبير ؓ فرمائی چه رسول الله ﷺ به کله مونځ شروع کولو، نو په مونځ کښې به یې لاسونه صرف په ړومبی ځل پورته کول، بیا به یې دوباره نه پورته کول.

اَنَّ عَلِيًّا يَرْفَعُ يَدَيهِ فِي اَوَّلِ تَكْبِيرَةٍ مِنَ الصَّلٰوةِ ثُمَّ لَا يَرْفَعُ بَعْدُ. (طحاوى ص ۱۵۳ ج ۱، بيهقى ۸۰ ج ۱، مصنف ابن ابى شيبه ص ۲۳۶ ج ۱، موطا امام محمد ص ۸۸)

**ترجمه**: حضرت علی ؓ به مونځ کښې د اول تکبیر تحریمه په وخت لاسونه پورته کول. بیا به یې نه پورته کول.

سعيد ابن جبير ؓ عن ابن عباس قال لا ترفع الايدى الا فى سبع مواطن اذا قام الى الصلوة الخ. (مصنف ابن ابى شيبه ص ۲۳۷ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن عباس ؓ فرمايي چه لاسونه مه اوچتوئ مګر په اوه ځایونو کښې په هغې کښې یو دمونځ د شروع کولو په وخت کښی دي.

عَنِ الْاَسْوَدِ قَالَ رَأَيْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ يَرْفَعُ يَدَيهِ فِي اَوَّلِ تَكْبِيرَةٍ ثُمَّ لَا يَعُودُ قَالَ عَبْدُ الْمَلِكِ وَرَأَيْتُ الشَّعْبِيَّ وَاِبْرَاهِيمَ وَاَبَا اِسْحَاقَ لَا يَرْفَعُونَ اَيْدِيَهُمْ اِلَّا حِينَ يَفْتَتِحُونَ الصَّلٰوةَ. (طحاوى ص ۱۵۶ ج ۱، مصنف ابن ابى شيبه ۲۳۷ ج ۱، والجوهر النقى على البيهقى ص ۷۵ ج ۲، وقال السند ايضا صحيحا على شرط المسلم.)

**ترجمه**: حضرت اسود ؓ فرمايي چه ما حضرت عمر بن الخطاب ؓ ولیدلو، چه هغوی به د اول تکبیر سره لاسونه اوچتول، بیا به یی دوباره په مونځ کښې لاسونه نه اوچتول، او عبد الملك فرمايي چه ما امام شعبی، ابراهیم نخعی، او ابو اسحاق ولیدل، چه صرف دمونځ په شروع کښې به یی لاسونه اوچتول.

عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ ابْنِ عُمَرَ فَلَمْ يَكُنْ يَرْفَعُ يَدَيهِ اِلَّا فِي التَّكْبِيرَةِ الْاُولٰى مِنَ الصَّلٰوةِ. (طحاوى ص ۱۵۵ ج ۱، مصنف ابن ابى شيبه ص ۲۳۷ ج ۱، اسناده صحيح)

**ترجمه**: حضرت مجاهد رحمه الله فرمايي چه ما حضرت عبد الله بن عمر ؓ پسې مونځ وکړو. هغوی به په مونځ کښې صرف په اول تکبیر کښې لاسونه اوچتول.

اَبِي اِسْحَاقَ قَالَ كَانَ اَصْحَابُ عَبْدِ اللهِ وَاَصْحَابُ عَلِيٍّ لَا يَرْفَعُونَ اَيْدِيَهُمْ اِلَّا فِي اِفْتِتَاحِ الصَّلٰوةِ قَالَ وَكِيعٌ ثُمَّ لَا يَعُودُونَ. (مصنف ابن ابى شيبه ص ۲۳۶ ج ۱، الجوهر النقى على البيهقى ص ۷۹ ج ۲.)

**ترجمه**: حضرت ابو اسحاق رحمه الله فرمايي چه دحضرت عبد الله بن مسعود ؓ ملګرو اوشاګردانو

او دحضرت علیؓ ملګرو او شاګردانو په مونځ کښې لاسونه نه اوچتول. سیوا داولنی تکبیر نه حضرت وکیع رحمه الله فرمایی چه بیا ددې اول تکبیر نه پس به یې په مونځ کښې لاسونه نه اوچتول.

**عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِيْ اَوَّلِ شَيْءٍ ثُمَّ لَا يَرْفَعُ بَعْدُ.(مصنف عبدالرزاق ۷۱ ج۱، موطا امام محمد ص۹۰، طحاوی ۱۵۳ ج۱، الجوهر النقی علی البیهقی ص۷۹ ج۲).**

**ترجمه** : حضرت ابراهیم رحمه الله بیان فرمایی چه حضرت عبدالله بن مسعودؓ به صرف داولنی تکبیر په وخت کښې لاسونه اوچتول، اوددینه پس به یې په مونځ کښې لاسونه نه اوچتول.

**مسئله** :- رکوع ته د تللو په وخت او ددینه د پورته کیدلو په وخت لاسونه نه اوچتول ډیر بهتر دی، او که وې کړی نو جائز دی، حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله دې ته خلاف اولی ویلې دی. د لاسونه نه اوچتولو والا دحضرت عبدالله بن مسعودؓ روایت ته یې ترجیح ورکړې ده. لیکن ددې خلاف کولو والا باندې نکیر ندې پکار، ځکه چه دا دجواز او عدم جواز مسئله ده، نو له هسې کبله بعضې حضراتو دواړه ارخونه سنت ګرځولی دی. لکه علامه ابن حزم رحمه الله لیکلې دی چه:

**فلما صح انه علیه السلام کان یرفع فی کل خفض ورفع بعد تکبیرة الاحرام ولا یرفع کان کل ذالك مباحا لا فرضا وکان لنا ان نصلی کذالك فان رفعنا صلینا کما کان رسول الله ﷺ یصلی فان لم نرفع فقد صلینا کما کان ﷺ یصلی.(محلی ۹۲ ج۴)**

**ترجمه** : نو کله چه په صحیح طور باندې دا خبره ثابته ده چه رسول الله ﷺ په مونځ کښې دتکبیر تحریمه نه پس رکوع ته دتللو په وخت یا د رکوع نه د پورته کیدلو په وخت کله کله لاسونه اوچت کړی وو او دا هم ثابت دی چه کله یې نه وو اوچت کړې، او دا ټول مباح دی اوفرض نه دی او زمونږ دپاره ګنجائش دې چه مونږ داسې مونځ وکړو، پس که مونږ لاسونه اوچت کړو، نو مونږ داسې مونځ وکړو ځنګه چه رسول الله ﷺ کړې وو، او که مونږ لاسونه اوچت نه کړو، بیا هم مونږ داسې مونځ وکړو لکه چه رسول الله ﷺ کړې وو.

**د رکوع کیفیت** :- په رکوع کښې دواړو لاسونو سره زنګونونه نیول، او ګوتې فراخه کول.

**(هدایه ص۸۷ ج۱، شرح نقایه ص۷۶ ج۱، کبیری ص۳۱۵).**

**عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ لِيْ يَعْنِي النَّبِيَّ ﷺ يَا بُنَيَّ اِذَا رَكَعْتَ فَضَعْ كَفَّيْكَ عَلٰى رُكْبَتَيْكَ وَفَرِّجْ بَيْنَ اَصَابِعِكَ وَارْفَعْ يَدَيْكَ عَنْ جَنْبَيْكَ.(نصب الرایه ص۳۷۳ ج۱، بحواله طبرانی فی الاوسط الکبیر وصحیح ابن حبان ص۲۷۶ ج۳، عن ابی عمر فی حدیث طویل ومصنف عبدالرزاق ص۱۵۱ ج۲).**

**ترجمه** : حضرت انسؓ فرمایی چه رسول الله ﷺ فرمایی اې زویه ! کله چه ته رکوع کوې نو

خپل لاسونه په زنګنونو باندې کیږدي، او ګوتې فراخه کړه، او خپل لاسونه د اړخونو نه لرې وساته.

وَفِي حَدِيثِ رِفَاعَه ﷺ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ فَإِذَا رَكَعْتَ فَاجْعَلْ رَاحَتَيْكَ عَلَى رُكْبَتَيْكَ وَامْدُدْ ظَهْرَكَ وَمَكِّنْ رکوعك. (مسند احمد ص۳۴۰ ج۴)

**ترجمه**: حضرت رفاعه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایي: کله چه ته رکوع کوې نو دخپلو لاسونو تلی په زنګنونو باندې کیږدي، ملا خوره کړه او ښه په اطمینان سره رکوع وکړه.

عَنْ أَبِي حُمَيْدٍ قَالَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ رَكَعَ فَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ كَأَنَّهُ قَابِضٌ عَلَيْهِمَا وَوَتَّرَ يَدَيْهِ فَنَحَّاهُمَا عَنْ جَنْبَيْهِ. (ترمذی ص۶۵ وقال حدیث حسن صحیح بیهقی ص۸۵ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابو حمید ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ رکوع وکړه، نو خپل لاسونه مبارك یې په زنګنونو باندې داسې کیښودل، ګویا چه هغه یې نیولی وی، او خپل لاسونه یې نیغ کړل، او د اړخونو نه یې لرې وساتل.

**د رکوع مسائل**: رکوع او سجده په صحیح شکل کښې ادا کول پکار دی.

عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ أَقِيمُوا الرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ فَوَاللهِ إِنِّي لَأَرَاكُمْ مِنْ بَعْدِي. (بخاری ص۱۰۲ ج۱ مسلم ص۱۸۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت انس ﷺ فرمایي چه رسول الله ﷺ فرمایي اې خلقو! رکوع او سجده په صحیح طریقه باندې ادا کوئ. په الله قسم! چه زه تاسو د وروسته نه هم وینم

انس بن مالك مرفوعا اعتدلوا فی الرکوع ولا یبسط احدکم ذراعیه انبساط الکلب. (دارمی ص۲۴۶ ج۱)

**ترجمه**: حضرت انس بن مالك ﷺ نه روایت دې چه: رکوع کښې اعتدال سره اوسیږئ او د سجدې په وخت دې په تاسو کښې یو سړې خپل لاسونه نه غوړوی لکه څنګه چه یې سپې غوړوی، (یعنی ټول لاسونه په زمکه باندې مه لګوئ، لاس په زمکه باندې وی او څنګلې به دزمکې نه اوچتې وی).

**مسئله**:- درکوع په حالت کښې ملا نیغه ساتل ضروری دی. (هدایه ص۶۷ ج۱ شرح نقایه ص۶۹ ج۱، کبیری ص۳۱۵).

عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ لَا تُجْزِئُ صَلٰوةٌ لَا يُقِيمُ الرَّجُلُ فِيهَا يَعْنِي صُلْبَهُ فِي الرُّكُوعِ وَفِي السُّجُودِ. (ترمذی، ص۶۵، ابوداود ص۱۲۳ ج۱، نسائی ۱۵۸ ج۱، ابن ماجه ۶۲، دارمی ص۲۴۷ ج۱، بیهقی ص۸۸ ج۲).

**ترجمه**: حضرت ابو مسعود انصاری ﷺ فرمایي چه رسول الله ﷺ وفرمال: دهغه سړی مونځ درست نه دې چه سجده او رکوع کښې خپله ملا نیغه نه ساتی.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ إِذَا رَكَعَ اسْتَوَى فَلَوْ صُبَّ عَلَى ظَهْرِهِ مَاءٌ لَاسْتَقَرَّ. (مجمع الزوائد ص ۱۳۲ ج ۲ بحواله طبرانی فی الکبیر و ابویعلی و عن ابی برزة الاسلمی بحواله طبرانی فی الکبیر و الاوسط و قال رجالهما موثقون).

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمایي چه رسول الله ﷺ به کله رکوع کوله نو ملا مبارکه به یې داسې نیغه ساتله چه که د هغوی ﷺ په ملا مبارکه به اوبه وبهولې شوې نوهغه به پرې ودریدلې. (دغه رنګه د حضرت ابوبرزه اسلمی ﷺ نه هم روایت دې)

عَلِيِّ بْنِ شَيْبَانَ وَكَانَ مِنَ الْوَفْدِ قَالَ خَرَجْنَا حَتَّى قَدِمْنَا عَلَى رَسُولِ اللهِ ﷺ فَبَايَعْنَاهُ وَصَلَّيْنَا خَلْفَهُ فَلَمَحَ بِمُؤْخِرِ عَيْنِهِ رَجُلًا لَا يُقِيمُ صَلَاتَهُ يَعْنِي صُلْبَهُ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ فَلَمَّا قَضَى النَّبِيُّ ﷺ قَالَ يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِينَ لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَا يُقِيمُ صُلْبَهُ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ. (ابن ماجه ص ۶۲ اسناده صحیح).

**ترجمه** : حضرت علی بن شیبان ﷺ په هغه وفد کښې وو په کوم چه رسول الله ﷺ ته راغلې وو، فرمایي چه مونږ د خپلو کورونو نه را ووتلو، د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، دهغوی ﷺ په لاس باندې مو بیعت وکړو، او په هغوی ﷺ پسې مو مونځونه وکړل، د رسول الله ﷺ نظر مبارک په یو سړی باندې پریوتلو چه په مونځ کښې په رکوع او سجده کښې یی خپله ملا نه نیغوله کله چه هغوی د مونځ نه فارغ شول، نو رسول الله ﷺ وفرمایل: اې د مسلمانانو ټولیه! د هغه چا مونځ صحیح نه دې چه رکوع او سجده کښې ملا نیغه نه ساتی.

**مسئله** :- په رکوع کښې سر د ملا سره برابر ساتل پکار دی، بغیر د عذر نه سر ښکته او پورته نه دی کول پکار. (هدایه ص ۸۷ ج ۱ شرح نقایه ص ۷۶ ج ۱، کبیری ص ۳۱۵).

عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ يَسْتَفْتِحُ الصَّلوٰةَ بِالتَّكْبِيرِ وَالْقِرَاءَةِ بِالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ وَكَانَ إِذَا رَكَعَ لَمْ يُشْخِصْ رَأْسَهُ وَلَمْ يُصَوِّبْهُ وَلٰكِنْ بَيْنَ ذٰلِكَ. (مسلم ص ۱۹۴ ج ۱).

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي چه رسول الله ﷺ به مونځ د تکبیر نه شروع کولو، او قراءة به یی د (الحمد لله رب العلمین) نه، او کله چه به یی رکوع کوله، نو سر مبارك به یی نه بره ساتلو او نه ښکته، بلکه ددې په مینځ مینځ کښې به وو (دملا برابر).

**مسئله** :- د رکوع په حالت کښې نظر د سجدې ځای ته کول پکار دې.

أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ يَا أَنَسُ اجْعَلْ بَصَرَكَ حَيْثُ تَسْجُدُ. (بیهقی ص ۲۸۳ ج ۲)

**ترجمه** : حضرت انس ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: اې انس! خپل نظر هغه ځای باندې ساته په کوم ځای کښې چه سجده کوې.

(وقال ثناء الله هو مجرب لدفع الوسواس).

**ترجمه**: قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله فرمايي چه دا خبره (نظر د سجدې په ځای ساتل) د وسواس د دفع کولو دپاره مجرب دي.

نَظَرُهُ إِلَى مَوْضِعِ سُجُودِهِ حَالَ قِيَامِهِ وَإِلَى ظَهْرِ قَدَمَيْهِ حَالَ رُكُوعِهِ وَإِلَى أَرْنَبَةِ أَنْفِهِ حَالَ سُجُودِهِ وَإِلَى حِجْرِهِ حَالَ قُعُودِهِ وَإِلَى مَنْكِبِهِ الْأَيْمَنِ وَالْأَيْسَرِ عِنْدَ تَسْلِيمَةِ الْأُولَى وَالثَّانِيَةِ وَإِمْسَاكُ فَمِهِ عِنْدَ التَّثَاؤُبِ وَإِنْ لَمْ يَقْدِرْ غَطَّاهُ بِظَهْرِ يَدِهِ وَدَفْعُ السُّعَالِ مَا اسْتَطَاعَ. (در مختار ص ۴۷۸ ج ۱، آداب الصلوة)

**ترجمه**: فقهاء کرامو فرمايلي دي چه د قيام په حالت کښې نظر د سجدې په ځای کول پکار دي، د رکوع په حالت په پښو ته نظر کول پکار دي، او د سجدې په حالت کښې د پوزې په ارخ باندې، د ناستې (قعدې) په حالت کښې په غيږه (سينه) نظر ساتل پکار دي، د سلام اړولو په وخت په ښئ او چپه اوږه باندې، او د اسويلي په وخت خوله بندول او که قابو يې نه مونده شي، نو د خپل لاس شا په خوله ايښودل، او ټوخې چه کومې پورې ممکن وي نو د دفع کولو کوشش کول.

**مسئله**:- په رکوع او سجده کښې کمي کول بدترين قسم غلا ده.

عَنْ نُعْمَانَ ابْنِ مُرَّةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ مَا تَرَوْنَ فِي الشَّارِبِ وَالسَّارِقِ وَالزَّانِي وَذَالِكَ قَبْلَ أَنْ يُنْزَلَ فِيهِمْ قَالُوا اللهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ هُنَّ فَوَاحِشُ وَفِيهِنَّ عُقُوبَةٌ وَأَسْوَأُ السَّرِقَةِ الَّذِي يَسْرِقُ صَلوتَهُ قَالُوا وَكَيْفَ يَسْرِقُ صَلوتَهُ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ لَا يُتِمُّ رُكُوعَهَا وَلَا سُجُودَهَا. (موطا امام مالك ص ۱۵۲)، آخري حصه دارمي ص ۲۴۷ ج ۱ کښې ابو قتاده او صحيح ابن حبان ص ۲۷۷ ج ۳ کښې د ابو هريره نه نقل شوي موجود دي

ترجمه: حضرت نعمان بن مرة رضی الله عنه فرمايي چه رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو خلق د شرابي، زناکار، او د غل په باره کښې څه وايئ، (او دا د هغه وخت خبره ده چه کله ددې جرمونو په باره کښې حدود نه وو نازل شوي) خلقو عرض وکړو، الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ ښه پوهيږي، هغوی ﷺ وفرمايل: دا فواحش دي، يعنې د فحش په شان ګناهونه دي، او په دې کښې سزا ده، ليکن د ټولو نه بده غلا دا ده چه کوم سړې په خپل مونځ کښې غلا کوي خلقو عرض وکړو: يا رسول الله! هغه په خپل مونځ کښې څنګه غلا کوي، وي فرمايل چه دهغې رکوع او سجده پوره نه کوي.

**د رکوع تسبيحات**:- په رکوع کښې کم نه کم درې ځله (سبحان ربي العظيم) (يعنې زما رب پاك دې چه عظمت او لويي والا دې) اودا درې ځله تسبيح ويل د سنت کامل ادنى درجه ده. (هدايه ص ۶۷ ج ۱ شرح نقايه ص ۷۶ ج ۱، کبيري ص ۳۱۵).

عُقْبَةَ بْنَ عَامِرٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ اِجْعَلُوهَا فِي رُكُوعِكُمْ فَلَمَّا نَزَلَتْ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ اِجْعَلُوهَا فِي سُجُودِكُمْ. (ابو داود ص ۱۲۶ ج ۱، ابن ماجه ص ۶۳، دارمي ص ۲۲۱ ج ۱).

**ترجمه**: حضرت عقبه بن عامر ؓ فرمايي چه کله (فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيْمِ) آيت نازل شو نورسول الله ﷺ وفرمايل چه: دا په رکوع کښې مقرر کړئ، او چه کله (سبح اسم ربك الاعلى) نازل شو نو هغوی ﷺ وفرمايل چه دا په سجده کښې مقرر کړئ.

**عَنْ اِبْنِ مَسْعُوْدٍ ؓ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ اِذَا رَكَعَ اَحَدُكُمْ فَقَالَ فِيْ رُكُوْعِهٖ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فَقَدْ تَمَّ رُكُوْعُهٗ وَذٰلِكَ اَدْنَاهُ وَاِذَا سَجَدَ فَقَالَ فِيْ سُجُوْدِهٖ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْاَعْلٰى ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فَقَدْ تَمَّ سُجُوْدُهٗ وَذٰلِكَ اَدْنَاهُ. (ترمذى ص۶۱، ابوداود ص۱۲۶ ج۱ ابن ماجه ص۶۳)**

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن مسعود ؓ فرمايي چه رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چه په تاسو کښې څوك رکوع کوی او په رکوع کښې سبحان ربى العظيم درې ځله وايی نودده رکوع پوره شوه، او دا درې ځله ويل د کامل سنت ادنى درجه ده اوچه کله سجده کوی، او درې ځله (سبحان ربى الاعلى) وايی نو دده سجده پوره شوه، او دا ادنى درجه د سنت ده.

## د رکوع د تسبيحاتو نور الفاظ:-

**(وَفِيْ حَدِيْثِ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ ؓ قَالَ قُمْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ (الى ان قال) يَقُوْلُ فِيْ رُكُوْعِهٖ سُبْحَانَ ذِي الْجَبَرُوْتِ وَالْمَلَكُوْتِ وَالْكِبْرِيَاءِ وَالْعَظَمَةِ). (نسائى ص۱۶۱ ج۱)**

**ترجمه**: حضرت عوف بن مالك ؓ روايت کوی چه زه له رسول الله ﷺ سره په مونځ کښې ودريدم، نو هغه مبارك په رکوع کښې (سُبْحَانَ ذِي الْجَبَرُوْتِ وَالْمَلَكُوْتِ وَالْكِبْرِيَاءِ وَالْعَظَمَةِ) ويل.

**وَفِيْ حَدِيْثِ عَائِشَةَ ؓ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يَقُوْلُ فِيْ رُكُوْعِهٖ وَسُجُوْدِهٖ سُبُّوْحٌ قُدُّوْسٌ رَبُّ الْمَلٰئِكَةِ وَالرُّوْحِ. (مسلم ص۱۹۲ ج۱ ابوداود ص۱۲۷ ج۱ نسائى ص۱۶۰ ج۱)**

**ترجمه**: ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه ؓ فرمايي چه رسول الله ﷺ به خپله رکوع او سجده کښې (سُبُّوْحٌ قُدُّوْسٌ رَبُّ الْمَلٰئِكَةِ وَالرُّوْحِ) ويل.

**عَنْ عَائِشَةَ ؓ مَرْفُوْعًا يَقُوْلُ فِيْ رُكُوْعِهٖ وَسُجُوْدِهٖ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ اللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ. (بخارى ص۱۰۹ ج۱، مسلم ص۱۹۲ ج۱)**

**ترجمه**: ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه ؓ فرمايي چه رسول الله ﷺ به په کثرت سره په رکوع کښې دا دعا (سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ اللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ) کوله.

**عَنْ عَلِيِّ بْنِ اَبِيْ طَالِبٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ اِذَا رَكَعَ قَالَ اَللّٰهُمَّ لَكَ رَكَعْتُ وَلَكَ اَسْلَمْتُ وَبِكَ اٰمَنْتُ خَشَعَ لَكَ سَمْعِيْ وَبَصَرِيْ وَعِظَامِيْ وَمُخِّيْ وَعَصَبِيْ. (نسائى ص۱۶۱ ج۱)**

**ترجمه**: حضرت علی ﷺ نه روایت دي چه رسول الله ﷺ به په رکوع کښې دا دعا (اَللّٰهُمَّ لَكَ رَكَعْتُ وَلَكَ اَسْلَمْتُ وَبِكَ اٰمَنْتُ خَشَعَ لَكَ سَمْعِيْ وَبَصَرِيْ وَعِظَامِيْ وَمُخِّيْ وَعَصَبِيْ). فرمایله.

**مسئله**:- دا دعاګانې اګر چه په فرض مونځونو کښې هم ویلې شی، لیکن په فرضو کښې چونکه تخفیف زیات مناسب دې، نو له همدې کبله په نفلو کښې دا دعاګانې لوستل زیات بهتر دی.

**مسئله**:- د رکوع په حالت کښې قرآن پاك لوستل مکروه دی.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ مَرْفُوعًا اَلَا اِنِّیْ نُهِيْتُ اَنْ اَقْرَءَ الْقُرْاٰنَ رَاكِعًا اَوْ سَاجِدًا فَاَمَّا الرُّكُوْعُ فَعَظِّمُوْا فِيْهِ الرَّبَّ. (مسلم ص۱۹۱ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابن عباس ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ فرمایی واورئ! زه منع کړې شوي یم له دې نه چه زه د رکوع او سجدې په حالت کښې قرآن ولولم، د رکوع په حالت کښې د رب ﷻ تعظیم کوئ. (یعنی سبحان ربی العظیم وایئ).

**قومه**:- بیا به د رکوع نه نیغ ودریږې ښه په اطمینان سره، نو دې ته قومه وایی. او دا واجبه ده. (فتح القدیر ص۲۱۲ ج۱).

**ترجمه**: حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې، چه رسول الله ﷺ یو سړی ته د مونځ تعلیم ورکولو نو وې فرمایل چه: (ثُمَّ ارْكَعْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ ثُمَّ ارْفَعْ حَتّٰى تَعْتَدِلَ قَائِمًا ثُمَّ اسْجُدْ). (بخاری ص۱۰۹ ج۱، ترمذی ص ۷۰، ابوداود ص۱۲۴ ج۱)

**ترجمه**: بیا ته رکوع وکړه، تردې چه ښه په اطمینان سره رکوع کونکې شې، بیا خپل سر پورته کړه، بیا بالکل نیغ ودریږه او بیا سجده وکړه.

دحضرت رفاعه بن رافع ﷺ په روایت کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ فرمایی: (ثُمَّ ارْكَعْ فَاطْمَئِنَّ رَاكِعًا ثُمَّ اعْتَدِلْ قَائِمًا ثُمَّ اسْجُدْ). (ترمذی ص۷۰، ابوداود ص۱۲۴ ج۱)

**ترجمه**: بیا رکوع وکړه په اطمینان سره، بیا په اعتدال سره بالکل نیغ ودریږه، بیا سجده وکړه.

عَنْ عَائِشَةَ ﷺ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا رَفَعَ رَاْسَهٗ مِنَ الرُّكُوْعِ لَمْ يَسْجُدْ حَتّٰى يَسْتَوِيَ قَائِمًا. (مسلم ص ۱۹۴ ج۱)

**ترجمه**: دحضرت عائشه ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به کله سر مبارك د رکوع نه پورته کولو، نو سجده به یې نه کوله تر څو چه به بالکل نیغ ولاړ نه وو.

**تسمیع او تحمید**:- په قومه کښې به امام (سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ)، وایی او مقتدی به (رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ) وایی.

حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله هم داسې فرمایي او نور امامان صاحبان فرمایي چه امام او مقتدي به تسمیع هم وایي او تحمید هم. (هدایه ص۶۸ ج۱، شرح نقایه ص۷۷ ج۱، کبیری ص۳۱۸)

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رضی الله عنه اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ اِذَا قَالَ الْاِمَامُ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ فَقُوْلُوْا اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ فَاِنَّهٗ مَنْ وَافَقَ قَوْلُهٗ قَوْلَ الْمَلٰٓئِکَةِ غُفِرَ لَهٗ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ (بخاری ص۱۰۹ ج۱، مسلم ص۱۷۶ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره رضی الله عنه فرمایي چه رسول الله ﷺ و فرمایل چه کله امام «سمع الله لمن حمده» ووایي، نو تاسو وه وایئ «اللهم ربنا لك الحمد» ځکه چه د چا ویینا د فرشتو د وینا سره برابره شوه نو دده به وړاندینی ګناهونه معاف شي

رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ قَالَ كُنَّا نُصَلِّیْ وَرَآءَ النَّبِیِّ ﷺ فَلَمَّا رَفَعَ رَأْسَهٗ مِنَ الرَّكْعَةِ (ای الرکوع) قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ فَقَالَ رَجُلٌ وَرَآءَهٗ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ حَمْدًا كَثِیْرًا طَیِّبًا مُّبَارَكًا فِیْهِ فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ مَنِ الْمُتَكَلِّمُ اٰنِفًا قَالَ اَنَا قَالَ رَاَیْتُ بِضْعَةً وَّثَلٰثِیْنَ مَلَكًا یَّبْتَدِرُوْنَهَا اَیُّهُمْ یَكْتُبُهَا اَوَّلُ. (بخاری ص۱۱۰ ج۱، ابوداود ص۱۱۲ ج۱)

**ترجمه**: حضرت رفاعه بن رافع رضی الله عنه فرمایي چه موږ په رسول الله ﷺ پسې مونځ کولو نو چه کله هغوی ﷺ خپل سر مبارك د رکوع نه پورته کړو، یو سړي چه په هغوی ﷺ پسې ولاړ وو، هغه وویل (رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ حَمْدًا كَثِیْرًا طَیِّبًا مُّبَارَكًا فِیْهِ) رسول الله ﷺ چه کله دمونځ نه فارغ شو نو وې فرمایل چا دا کلمات وویل؟ هغه سړی عرض وکړو چه یا رسول لله! ما ویلی دی، رسول الله ﷺ وفرمایل: ما څه دپاسه دیرش فرشتې ولیدلې هرې یوې دهغوی نه دا کوشش کولو چه له نورو نه ړومبې دغه دعاء ولیکی

**مسئله** - ځان له مونځ کونکې به تسمیع او تحمید دواړه وایي. (هدایه ص۶۸ ج۱، شرح نقایه ص۷۷ ج۱، کبیری ص۳۱۸).

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رضی الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ قَالَ اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ. (بخاری ص۱۰۹ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به کله (سمع الله لمن حمده) وویله، (بحالة الانفراد) نو (ربنا لك الحمد) به یې هم ویله.

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ اَبِیْ اَوْفٰی رضی الله عنه قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا رَفَعَ ظَهْرَهٗ مِنَ الرُّكُوْعِ قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ مِلْأُ السَّمٰوٰتِ وَمِلْأُ الْاَرْضِ وَمِلْأُ مَا شِئْتَ مِنْ شَیْءٍ بَعْدُ. (مسلم ص۱۹۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن ابی اوفی رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به کله خپله ملا مبارکه درکوع نه پورته کړه نو دا کلمات به یې ویل: (سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ مِلْأُ السَّمٰوٰتِ وَمِلْأُ

الْأَرْضِ وَمِلْأُ مَا شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدُ. أَهْلَ الثَّنَاءِ وَالْمَجْدِ أَحَقُّ مَا قَالَ الْعَبْدُ وَكُلُّنَا لَكَ عَبْدٌ اَللّٰهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ. (مسلم ص ۱۹۰ ج ۱)

دحضرت ابو سعيد خدری ﷛ په روايت کښې د تير شوی ورروايت نه وروسته دا الفاظ زيات شوی دی : (أَهْلَ الثَّنَاءِ وَالْمَجْدِ أَحَقُّ مَا قَالَ الْعَبْدُ وَكُلُّنَا لَكَ عَبْدٌ اَللّٰهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ)

**مسئله** :- بهتر دادی چه په فرضو کښې په (رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ حَمْدًا كَثِيرًا طَيِّبًا مُبَارَكًا فِيهِ) باندې اکتفاء وکړې شی.

عَنْ أَنَسٍ ﷛ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ مِنْ أَخَفِّ النَّاسِ صَلٰوةً فِي تَمَامٍ. (مسلم ص ۱۸۸ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت انس ﷛ نه روايت دی چه رسول الله ﷺ به د ټولو خلقو نه زيات مختصر مونځ کولو، ليکن ټول ارکان به يې په مکمله طريقه باندې ادا کول.

عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّهُ قَالَ مَا صَلَّيْتُ وَرَاءَ إِمَامٍ قَطُّ أَخَفَّ صَلٰوةً وَلَا أَتَمَّ مِنْ رَسُولِ اللهِ ﷺ (مسلم ص ۱۸۸ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت انس ﷛ فرمايی چه ما په هيڅ امام پسې کله هم دمره مختصر او مکمل مونځ نه دې کړې څنګه چه درسول الله ﷺ مونځ وو.

عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ قَالَ آخِرُ مَا عَهِدَ إِلَيَّ رَسُولُ اللهِ ﷺ إِذَا أَمَمْتَ قَوْمًا فَأَخِفَّ بِهِمِ الصَّلٰوةَ (مسلم ص ۱۸۸ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت عثمان بن ابی العاص ﷛ فرمايی چه آخری خبره چه رسول الله ﷺ ماته په تاکيد سره فرمايلې وه، هغه دا وه کله چه ته خلقو ته مونځ ورکوې نو مونځ د هغوی د پاره مختصر کړه. اونفلو کښې هغه ټول ذکرونه چه رسول الله ﷺ نه ثابت دی هغه لوله باعث د ثواب او اجر به وی.

**سجده** :- بيا به تکبير وايی او سجدې ته به لاړ شي، اول به زنګونه او بيا به لاسونه او بيا تندې سره دپوزې نه به په زمکه باندې کيږدې. (هدايه ص ۶۹ ج ۱، شرح نقايه ص ۸۰ ج ۱، کبيری ص ۳۲۱)

وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ إِذَا سَجَدَ يَضَعُ رُكْبَتَيْهِ قَبْلَ يَدَيْهِ.. (ترمذی ص ابوداود ص ۱۲۲ ج ۱ نسائی ص ۱۶۵ ج ۱، دارمی ص ۲۲۵ ج ۱، ابن ماجه ۱۳، مستدرک حاکم ص ۲۲۶ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت وائل بن حجر ﷛ فرمايی : ما رسول الله ﷺ ليدلې دې کله چه به يې سجده کوله، نو زنګنونه به يې د خپلو لاسونو نه وړاندې په زمکه کيښودل.

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ يَسَارٍ إِذَا سَجَدَ وَضَعَ رُكْبَتَيْهِ ثُمَّ يَدَيْهِ ثُمَّ وَجْهَهُ فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَقُومَ رَفَعَ وَجْهَهُ ثُمَّ يَدَيْهِ ثُمَّ رُكْبَتَيْهِ قَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ وَمَا أَحْسَنَهُ مِنْ حَدِيثٍ وَأَعْجَبَهُ. (مصنف عبد الرزاق ص ۱۷۷ ج ۲).

**ترجمه** : حضرت عبد الله بن يسار ﷛ چه به کله سجده کوله نو اول به يې زنګونه کيښودل او کله

چه به پورته کیدلو نو اول به یې مخ پورته کولو بیا به یې دواړه لاسونه، او بیا به یې دواړه زنګنونه پورته کول.

عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ الْخُدْرِيِّ فَصَلّٰى بِنَا النَّبِيُّ ﷺ حَتّٰى رَاَيْتُ اَثَرَ الطِّيْنِ وَالْمَآءِ عَلٰى جَبْهَةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ وَاَرْنَبَتِهٖ.
(بخاری ص۱۱۲ ج۱ مسلم ص۳۷۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ مونږ ته مونځ راکړو، ما د رسول الله ﷺ په تندی او پوزه باندې د خاورې (ختې) او اوبو نښه (اثر) ولیدو.

**مسئله**:- دسجدې په وخت به اوه اندامونه په زمکه لګوی، دواړه زنګنونه، دواړه لاسونه، دواړه پښې، او تندې سره د پوزې نه. (هدایه ص۱۰۰ ج۱، شرح نقایه ص۸۷ ج۱، کبیری ص۳۲۱).

عن ابن عباس رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ امرت ان اسجد علی سبعة اعظم علی الجبهة واشار بیده علی انفه والیدین والرکبتین واطراف القدمین ولا نکفت الثیاب والشعر. (بخاری ص۱۱۲ ج۱، مسلم ۱۹۳ ج۱).

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه فرمایي چه رسول الله ﷺ وفرمایل: ماته حکم کړې شوې دې چه زه په اوه اندامونو باندې سجده وکړم، په تندی باندې سره له پوزې نه، په دواړو لاسونو، په دواړو زنګنونو، په دواړو پښو، او دا حکم هم راته کړې شوې دې چه مونږ په مونځ کښې جامې او ویښته نه راغونډوو.

**مسئله**:- تندې او پوزه د دواړو لاسونو په مینځ کښې کیږده. (هدایه ص۱۰۰ ج۱، شرح نقایه ص۸۷ ج۱، کبیری ص۳۲۱).

عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ رضی الله عنه قَالَ قُلْتُ لِلْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ اَيْنَ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَضَعُ وَجْهَهٗ اِذَا سَجَدَ فَقَالَ بَيْنَ كَفَّيْهِ (مستدرک حاکم ص۲۲۷ ج۱، طحاوی ص۱۵۱ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو اسحاق فرمایي چه ما د حضرت براء بن عازب رضی الله عنه نه پوښتنه وکړه چه رسول الله ﷺ به د سجدې په وخت مخ مبارک په کوم ځائ کښې کیښودلو؟ نو حضرت براء رضی الله عنه وفرمایل: د دواړو لاسونو په مینځ کښې.

وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ قَالَ رَمَقْتُ النَّبِيَّ ﷺ فَلَمَّا سَجَدَ وَضَعَ يَدَيْهِ حِذَآءَ اُذُنَيْهِ. (مصنف عبد الرزاق ص۱۷۵ ج۲، طحاوی ۱۵۱ ج۱)

**ترجمه**: حضرت وائل بن حجر رضی الله عنه فرمایي چه ما نبی کریم ﷺ ولیدلو کله چه هغوی ﷺ سجده وکړه نو دواړه لاسونه به یې د غوږونو برابر کیښودل.

عَنْ نَافِعٍ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَضَعُ يَدَيْهِ اِذَا سَجَدَ حُلُوَ اُذُنَيْهِ. (مصنف عبد الرزاق ص۱۷۵ ج۲)

**ترجمه**: حضرت نافع رضی الله عنه نه روایت دې چه عبدالله بن عمر رضی الله عنه به کله سجده کوله نو دواړو لاسونه

به یې د دواړو غوږونو په برابر کیښودل.

**مسئله** :- د سجدې په وخت کښې څنګلې (لیچې) په زمکه باندې مه لګوه. (هدایه ص۱۰۰ ج۱، شرح نقایه ص۸۰ ج۱، کبیري ص۳۲۱).

عَنْ بَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ إِذَا سَجَدْتَ فَضَعْ كَفَّيْكَ وَارْفَعْ مِرْفَقَيْكَ. (مسلم ص۱۹۳ ج۱)

**ترجمه** : حضرت براء بن عازب ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چه ته سجده کوې نو خپل لاسونه لاندې په زمکه کیږده. او څنګلې د زمکې نه پورته وساته.

عن انس ﷺ قال قال رسول الله ﷺ اعتدلوا في السجود ولا يبسط احدكم ذراعيه انبساط الكلب. (بخاري ص۱۱۳ ج۱، مسلم ص۱۹۳ ج۱)

**ترجمه** : حضرت انس ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: په سجده کښې اعتدال اختیار کړه، او په تاسو کښې دې څوک خپل لاسونه داسې نه خوروی لکه څنګه چه یې سپې خوروی.

**مسئله** :- دسجدې په حالت کښې ګوتې د قبلې په طرف کړه. (هدایه ص۱۰۰ ج۱، شرح نقایه ص۸۰ ج۱).

اَبُوْ حُمَيْدِ السَّاعِدِيُّ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ إِذَا سَجَدَ وَضَعَ يَدَيْهِ غَيْرَ مُفْتَرِشٍ وَلَا قَابِضَهُمَا وَاسْتَقْبَلَ بِأَطْرَافِ اصابع رِجْلَيْهِ الْقِبْلَةَ. (بخاري ص۱۱۴ ج۱).

**ترجمه** : حضرت ابو حمید ساعدی ﷺ نه روایت دې، هغوی ﷺ وایی چه ما رسول الله ﷺ ولیدلو کله چه هغوی سجده کوله نو خپل لاس به یې کیښودلو، ګوتې به یې نه خورې ساتلې او نه بالکل نیغې. هغوی ﷺ به دخپلو پښو ګوتې هم د قبلې په طرف ساتلې.

**مسئله** :- خپلې متې (بازوګان) به د اړخونو نه لرې ساتې او پنډۍ به له پښونو نه لرې ساتې. (هدایه ص۱۰۰ ج۱، شرح نقایه ص۸۰ ج۱، کبیري ص۳۲۱).

عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ إِذَا سَجَدَ فَرَّجَ يَدَيْهِ عَنْ إِبْطَيْهِ حَتّٰى إِنِّيْ لَأَرٰى بَيَاضَ إِبْطَيْهِ (مسلم ص۱۹۴ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عمرو بن حارث ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ به کله سجده کوله نو خپلې متې به یې داړخونو او ترخونو نه لرې ساتلې. تردې چه د هغوی د ترخونو مبارکو سپینوالی به په نظر راتلو.

عَنْ اِبْنِ عُمَرَ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ لَا تَبْسُطْ ذِرَاعَيْكَ وَادَّعِمْ عَلٰى رَاحَتَيْكَ وَتَجَافَ عَنْ ضَبْعَيْكَ فَإِنَّكَ إِذَا فَعَلْتَ ذٰلِكَ سَجَدَ كُلُّ عُضْوٍ مَّعَكَ مِنْكَ. (مستدرک حاکم ص۲۲۷ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابن عمر ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: خپل لاسونه مه خوروئ او خپل لاسونه په زمکه مضبوط کیږدئ او خپلې متې (بازوګان) د اړخونو نه لرې وساتئ کله چه تاسو داسې کوئ نو ستاسو به د هر اندام سجده کیږي.

**مسئله** :- په رکوع او سجده کښې خپله ملا نیغه ساتئ.

عَنْ طَلْقِ ابْنِ عَلِيِّ الْحَنَفِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لَا يَنْظُرِ اللهُ عَزَّوَجَلَّ اِلٰى صَلٰوةِ عَبْدٍ لَا يُقِيْمُ فِيْهَا صُلْبَهُ بَيْنَ رُكُوْعِهَا وَسُجُوْدِهَا. (مسند احمد ص۲۲ ج۴)

**ترجمه** : حضرت طلق بن علی الحنفی رضی الله عنه فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل : الله جل جلاله د هغه سړی د مونځ طرفته نظر نه کوی څوك چه خپله ملا په رکوع او سجده کښې نیغه نه ساتی.

**مسئله** :- رکوع او سجده په صحیح طریقه په اطمینان سره ادا کول پکار دی.

حُذَيْفَةَ رَاٰى رَجُلًا لَا يُتِمُّ رُكُوْعَهُ وَلَا سُجُوْدَهُ فَلَمَّا قَضٰى قَالَ لَهُ حُذَيْفَةُ رضی الله عنه مَا صَلَّيْتَ وَلَوْ مِتَّ مِتَّ عَلٰى غَيْرِ سُنَّةِ مُحَمَّدٍ ﷺ. (بخاری ص۱۰۹ ج۱، جمع الفوائد ص۲۱۳ ج۱، بحواله رزین)

**ترجمه** : حضرت حذیفه رضی الله عنه یو سړي ولیدلو چه هغه رکوع او سجده په صحیح طریقه نه ادا کوله، کله چه هغه مونځ ختم کړو نو حضرت حذیفه رضی الله عنه ورته وفرمایل : تا مونځ ونکړو او که ته پدې حالت کښې مړ شوې نو دمحمد ﷺ د سنت نه خلاف په بل حالت به مړ کیږې.

**تسبیحات او دسجدې دعاګانې** :- په سجده کښې درې ځله تسبیح ویل دکامل سنت ادنی درجه ده

عن ابن مَسْعُوْدٍ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ اِذَا سَجَدَ (احدکم) فَقَالَ فِيْ سُجُوْدِهٖ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْاَعْلٰى ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فَقَدْ تَمَّ سُجُوْدُهُ وَذٰلِكَ اَدْنَاهُ. (ابن ماجه ص۶۳، ترمذی ص۶۵، ابوداود ص۱۲۰ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل : کله چه په تاسو کښې څوك سجده کوی او درې ځله (سبحان ربی الاعلی) ووایی نو دده سجده پوره شوه، او دا ادنی درجه ده.

عقبة بن عامر قال لما نزلت سبح اسم ربك الاعلى قال رسول الله ﷺ اجعلوها في سجودكم. (مستدرك حاكم ص۲۲۵ ج۱، ابوداود ص۱۲۶ ج۱، طحاوی ص۱۳۸ ج۱، ابن ماجه ص۶۳، دارمی ص۲۳۱ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه نه روایت دې هغوی رضی الله عنه فرمائی چه کله دا آیت نازل شو. (سبح اسم ربك الاعلى) نو رسول الله ﷺ وفرمایل، دا په خپله سجده کښې لولئ. یعنی د سجدې په حالت کښې (سبحان ربي الاعلى) وایئ.

اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يَقُوْلُ فِيْ سُجُوْدِهِ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ ذَنْبِيْ كُلَّهُ دِقَّهُ وَجِلَّهُ وَاَوَّلَهُ وَاٰخِرَهُ وَعَلَانِيَتَهُ وَسِرَّهُ. (مسلم ص۱۱۱)

**ترجمه** : حضرت ابو هریره رضی الله عنه فرمایی چه رسول الله ﷺ به په (نفلو کښې) په سجده کښې دا دعاء ویله : (اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ ذَنْبِيْ كُلَّهُ دِقَّهُ وَجِلَّهُ وَاَوَّلَهُ وَاٰخِرَهُ وَعَلَانِيَتَهُ وَسِرَّهُ).

عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُكْثِرُ اَنْ يَّقُوْلَ فِيْ رُكُوْعِهٖ وَسُجُوْدِهٖ سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَبِحَمْدِكَ اِغْفِرْلِيْ.

(مسلم ص۱۹۲ ج۱)

**ترجمه** : ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي چه رسول الله ﷺ به په رکوع او سجده کښې اکثر وختونه دا تسبيح ويله : (اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا وَبِحَمْدِكَ اِغْفِرْلِيْ).

عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ كَانَ يَقُوْلُ فِيْ رُكُوْعِهٖ وَسُجُوْدِهٖ سُبُّوْحٌ قُدُّوْسٌ رَبُّ الْمَلٰئِكَةِ وَالرُّوْحِ.

(مسلم ص۱۹۲ ج۱)

**ترجمه** : ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي چه رسول الله ﷺ به په رکوع او سجده کښې (سُبُّوْحٌ قُدُّوْسٌ رَبُّ الْمَلٰئِكَةِ وَالرُّوْحِ)، ويل.

عَائِشَةَ فَقَدْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ لَيْلَةً مِّنَ الْفِرَاشِ فَالْتَمَسْتُهٗ فَوَقَعَتْ يَدِيْ عَلٰى بَطْنِ قَدَمِهٖ وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ وَهُمَا مَنْصُوْبَتَانِ وَهُوَ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِرِضَاكَ مِنْ سَخَطِكَ وَاَعُوْذُ بِكَ مِنْكَ لَا اُحْصِيْ ثَنَاءً عَلَيْكَ اَنْتَ كَمَا اَثْنَيْتَ عَلٰى نَفْسِكَ. (مسلم ص۱۹۲ ج۱)

**ترجمه** : ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي چه يوه شپه ما رسول الله ﷺ په بستره ونه موندلو، ما تلاش وکړو نو زما لاس د نبی کريم ﷺ د پښو په تلو باندې ولګيدلو، او هغه په سجده کښې وو، او دواړه پښې يې ودرولې وې، او هغوی ﷺ دا دعاء لوستله : (اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُ بِرِضَاكَ مِنْ سَخَطِكَ وَاَعُوْذُ بِكَ مِنْكَ لَا اُحْصِيْ ثَنَاءً عَلَيْكَ اَنْتَ كَمَا اَثْنَيْتَ عَلٰى نَفْسِكَ).

عَنْ عَلِيِّ بْنِ اَبِيْ طَالِبٍ (مرفوعا) اِذَا سَجَدَ قَالَ اَللّٰهُمَّ لَكَ سَجَدْتُّ وَبِكَ اٰمَنْتُ وَلَكَ اَسْلَمْتُ سَجَدَ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ خَلَقَهٗ وَصَوَّرَهٗ وَشَقَّ سَمْعَهٗ وَبَصَرَهٗ تَبَارَكَ اللهُ اَحْسَنُ الْخَالِقِيْنَ. (مسلم ص۲۶۳ ج۱)

**ترجمه** : امير المؤمنين حضرت علي رضي الله عنه نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ به کله سجده کوله نو دا دعاء به يې ويله : (اَللّٰهُمَّ لَكَ سَجَدْتُّ وَبِكَ اٰمَنْتُ وَلَكَ اَسْلَمْتُ سَجَدَ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ خَلَقَهٗ وَصَوَّرَهٗ وَشَقَّ سَمْعَهٗ وَبَصَرَهٗ تَبَارَكَ اللهُ اَحْسَنُ الْخَالِقِيْنَ).

عَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ كَانَ يَدْعُوْ بِهٰذَا الدُّعَاءِ رَبِّ اغْفِرْلِيْ خَطِيْئَتِيْ وَجَهْلِيْ وَاِسْرَافِيْ فِيْ اَمْرِيْ كُلِّهٖ وَمَا اَنْتَ اَعْلَمُ بِهٖ مِنِّيْ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ خَطَايَايَ وَعَمْدِيْ وَجَهْلِيْ وَهَزْلِيْ وَكُلُّ ذٰلِكَ عِنْدِيْ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ مَا قَدَّمْتُ وَمَا اَخَّرْتُ وَمَا اَسْرَرْتُ وَمَا اَعْلَنْتُ اَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَاَنْتَ الْمُؤَخِّرُ وَاَنْتَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ. (بخاری ص۹۴۷ ج۲)

**ترجمه** : حضرت ابو موسی اشعری رضي الله عنه بيان کوی چه نبی کريم ﷺ به په سجده کښې دا دعاء

ویله : (رَبِّ اغْفِرْلِي خَطِيْئَتِي وَجَهْلِي وَاِسْرَافِي فِي اَمْرِي كُلِّهِ وَمَا اَنْتَ اَعْلَمُ بِهِ مِنِّي اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِي خَطَايَايَ وَعَمْدِي وَجَهْلِي وَهَزْلِي وَكُلُّ ذَالِكَ عِنْدِي اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِي مَا قَدَّمْتُ وَمَا اَخَّرْتُ وَمَا اَسْرَرْتُ وَمَا اَعْلَنْتُ اَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَاَنْتَ الْمُؤَخِّرُ وَاَنْتَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ) .

عن ابن عباس (مرفوعا) یقول فی صلوته وفی سجوده اللهم اجعل فی قلبی نورا وفی سمعی نورا وفی بصری نورا وعن یمینی نورا وامامی نورا وخلفی نورا وفوقی نورا وتحتی نورا واجعل لی نورا وقال واجعلنی نورا. (مسلم ص۲۶۱ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عباس ﷛ نه روایت دي چه رسول الله ﷺ به په سجده کښې دا دعا کوله : (اللهم اجعل فی قلبی نورا وفی سمعی نورا وفی بصری نورا وعن یمینی نورا وامامی نورا وخلفی نورا وفوقی نورا وتحتی نورا واجعل لی نورا وقال واجعلنی نورا)

**مسئله** :- دا دعاګانې اګر چه په فرض مونځ کښې هم لوستلې شي لیکن چونکه په فرضو کښې تخفیف زیات مناسب دې و له همدې کبله په نفلو کښې ددې دعاګانو ویل زیات بهتر دی.

**د سجدې مسائل** :- د امام ابو حنیفه په نزد جبهه (تندې) او پوزه دواړو باندې سجده کول فرض دی، (الا عند الضرورة) (مګر دضرورت په وخت په یو باندې هم اکتفاء کولې شي) او د صاحبینو په نزد (عَلَى الْجَبْهَةِ وَعَلَيْهِ الْفَتْوىٰ وَرُجُوْعُ الْاِمَامِ اِلَيْهِ).

**مسئله** بغیر دعذر نه صرف په پوزه باندې سجده کولو سره مونځ نه ادا کیږی او په تندی باندې اکتفاء مکروه تحریمی ده . (عالمګیری ص۷۳ ج۱، کبیری ص۲۸۴).

**مسئله** :- د پټکی ولونه که په تندی راشی نو په هغې سره سجده ادا کیږی. (اګر چه مکروه تنزیهی ده) لیکن که په سر باندې پټکې وی او دهغې د وجې نه تندې په زمکه ونه لګی نو سجده نه ادا کیږی . (کبیری ص۱۸۶).

**مسئله** :- نرم وانبه ، مالوچ ، یا د فوم وغیره په ګدئ باندې یا دغنمو وغیره په ډیرئ باندې که سر لاندې تللو ، او قراریږی نه نیولو نو سجده نه ادا کیږی. لکه د (سپرنګانو) په ګدئ باندې چونکه تندر نه ټینګیږی، نو له دې کبله سجده نه پرې کیږی. (شرح نقایه ص۸۰ ج۱، کبیری ص۲۸۹).

**مسئله** :- د جمعې او داخترونو په ګڼه کښې د تنګئ له کبله وروستی صف والا د وړاندینی صف والا په ملا باندې هم سجده کولې شی . (شرح نقایه ص۹۰ ج۱، کبیری ص۲۸۶).

عَنْ عُمَرَ ﷛ قَالَ اِذَا لَمْ يَسْتَطِعِ الرَّجُلُ اَنْ يَسْجُدَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَلْيَسْجُدْ عَلٰى ظَهْرِ اَخِيْهِ. (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۶۵ ج۱).

**ترجمه** : امیر المؤمنین حضرت عمر ﷺ فرمایي چه کله څوك د جمعې په ګڼه کښې د ګڼې له کبله په زمکه سجده کولې شي، نو دخپل ورور په ملا باندې دې سجده وکړي.
حضرت ابراهیم نخعي رحمة الله طاؤس رحمة الله او مجاهد رحمة الله نه هم همداسې نقل دي. **(مصنف ابن ابي شيبه ص۲۶۵ ج۱)**.

**مسئله** :- دسجدې ځای که دولس يو ذراع د پښو د ځای نه اوچت وي نو په هغې به هم سجده کول بې د عذر نه جائز نه وي. **(شرح نقايه ص۹۰ ج۱، کبيري ص۲۸۶)**.

**مسئله** :- په سجده کښې د پښو ګوتې د قبلې په طرف کول سنت دي ددې پريښودل مکروه تحريمي دي. **(العرف الشذي ص۱۲۷ طبع سهارنپور، در مختار ص۶۰ ج۱)**.

**مسئله** :- دپوره سجدې په حالت کښې پښې په زمکه باندې لګول ضروري دي، دواړه پښې که د زمکې نه اوچتې شي، نو سجده نه صحيح کيږي، د يوې پښې اوچتول هم مکروه تحريمي دي. **(فتاوى شامي ص۳۱۷ ج۱، کبيري ص۲۸۵)**.

**مسئله** :- د سجدې په ځای باندې بغير دعذر نه لستوڼې وغيره يا د بدن سره متصل جامه (کومه چه اغوستې يې وي) غوړول مکروه تحريمي دي، که د خاورې، کاڼي، ګرمۍ او يخنۍ نه د بچ کولو په غرض وي نو صحيح دي او که د تکبر د وجې نه غوړولې وي نو مکروه تحريمي دي.

عَنْ إِبْرَاهِيمَ قَالَ صَلَّى عُمَرُ ذَاتَ يَوْمٍ بِالنَّاسِ الْجُمُعَةَ فِي يَوْمٍ شَدِيدِ الْبَرْدِ فَطَرَحَ طَرَفَ ثَوْبِهِ بِالْأَرْضِ فَجَعَلَ يَسْجُدُ عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِذَا وَجَدَ أَحَدُكُمُ الْحَرَّ (وَالْبَرْدَ) فَلْيَسْجُدْ عَلَى طَرَفِ ثَوْبِهِ. **(مصنف ابن ابي شيبه ص۲۶۸ ج۱)**

**ترجمه** : حضرت ابراهيم نخعي فرمايي چه د يوې سختې يخنۍ په ورځ حضرت عمر ﷺ خلقو ته د جمعې مونځ ورکړلو، نو دخپلې جامې غاړه يې په زمکه باندې خوره کړه چه په هغې باندې سجده وکړي او بيا يې وفرمايل: اې خلقو! کله چه په تاسو کښې څوك سخته يخني ومومي نو هغه له په خپله جامه باندې سجده کول پکار دي.

**جلسه** :- بيا به دسجدې نه پورته شي او په اطمينان سره به د دواړو سجدو په مينځ کښې کيني دې ته جلسه وايي. او دا هم واجب ده. **(هدايه ص۱۰۰ ج۱، شرح نقايه ص۹۹ ج۱، کبيري ص۳۲۲)**.

علامه شامي ليکلي دي : (وَيَجِبُ التَّعْدِيلُ فِي الْقَوْمَةِ مِنَ الرُّكُوعِ وَالْجَلْسَةِ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ)، **(شامي ۳۳۲)**
ترجمه : درکوع نه د ودريدلو (قومې) او دسجدې نه په کيناستو (جلسه) کښې يعني د دواړو سجدو په مينځ کښې په جلسه کښې تعديل واجب دي.

عَنْ عَائِشَةَ (مرفوعا) كَانَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ لَمْ يَسْجُدْ حَتّٰى يَسْتَوِيَ قَائِماً وَكَانَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السَّجْدَةِ لَمْ يَسْجُدْ حَتّٰى يَسْتَوِيَ جَالِساً وَكَانَ يَقُوْلُ فِيْ كُلِّ رَكْعَتَيْنِ اَلتَّحِيَّةُ وَكَانَ يَفْرِشُ رِجْلَهُ الْيُسْرٰى وَيَنْصِبُ رِجْلَهُ الْيُمْنٰى. (مسلم ص۱۹۴ ج۱)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت دي چه رسول الله ﷺ به کله سر مبارك د رکوع نه پورته کړو نو سجده به یې نه کوله تردې چه نیغ به ودریدلو، او چه کله به یې سر مبارك د سجدې نه پورته کړو نو دویمه سجده به یې نه کوله تردې چه به نیغ کیناستو، او هغوی ﷺ به فرمایل چه د هر دوو رکعتونو نه وروسته تشهد دې او رسول الله ﷺ به خپله چپه پښه لاندې غوړوله او ښۍ پښه به یې ودروله.

عَنْ أَنَسٍ ﷺ (مرفوعا) قَالَ اِعْتَدِلُوْا فِي الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ. (نسائی ص۱۵۸ ج۱)

**ترجمه** : له حضرت انس ﷺ نه روایت دې، چه رسول الله ﷺ وفرمایل: په رکوع او سجده کښې اعتدال اختیار کړئ.

**دجلسې دعاء** :- بهتر دا دی چه دجلسې په وخت کښې مسنونه دعا ووایی.

اِبْنِ عَبَّاسٍ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ وَارْحَمْنِيْ وَارْفَعْنِيْ وَاجْبُرْنِيْ وَعَافِنِيْ وَاهْدِنِيْ وَارْزُقْنِيْ. (ترمذی ص۳۷۱ ابوداود ص۱۲۲ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابن عباس ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ به د دواړو سجدو په مینځ کښې دا دعاء ویله: (اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ وَارْحَمْنِيْ وَارْفَعْنِيْ وَاجْبُرْنِيْ وَعَافِنِيْ وَاهْدِنِيْ وَارْزُقْنِيْ).

**مسله** :- که زیات وخت، نه موندل شي نو دوه یا درې ځله دي، (رَبِّ اغْفِرْلِيْ) ووایي.

عَنْ حُذَيْفَةَ (مرفوعا) وَكَانَ يَقُوْلُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ رَبِّ اغْفِرْلِيْ رَبِّ اغْفِرْلِيْ. (نسائی ص۱۷۲ ج۱ دارمی ص۲۲۶ ج۱)

**ترجمه** : له حضرت حذیفه ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به د دواړو سجدو په مینځ کښې (رَبِّ اغْفِرْلِيْ، رَبِّ اغْفِرْلِيْ) ویل.

**دویمه سجده** :- بیا به تکبیر ووایي او دویمه سجده دې هم د اولې سجدې پشان وکړي.

**مسله** :- دوه سجدې فرض دي.

عَنْ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ (في حديث مسيء صلوته مرفوعاً) ثُمَّ اسْجُدْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ سَاجِداً ثُمَّ ارْفَعْ رَأْسَكَ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ قَاعِداً ثُمَّ اسْجُدْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ سَاجِداً. (سنن نسائی ص۱۶۱ ج۱ بخاری ص۹۸۶ ج۲ عن ابی هریرة)

**ترجمه** : حضرت رفاعه بن رافع ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: بیا ته په اطمینان سره سجده وکړه او بیا دسجدې نه سر پورته کړه او په اطمینان سره کینه او بیا په اطمینان سره

دویمه سجده وکړه.

**مسئله**:- جلسه که په صحیح طریقې سره ونه شوه نو دواړه سجدې ادا نه شوې. **(هدایه ص۶۰ ج۱، کبیري ص۳۲۲)**.

**حکمت**:- اوله سجده د خپل ځان او ذات په بارګاه الهی کښې دپیش کولو په تعمیل کښې ده او دویمه سجده د مال او د متعلقینو په بارګاه الهی کښې د پیش کولو تعمیل دې.

**مسئله**:- دویمه سجده که په هیره پاتې شوه، نو په دویم رکعت کښې به یې قضائی وکړي، یعنی درې سجدې به وکړي او بیا به په آخر کښې سجده سهو وکړي.

**مسئله**:- ښځه به د خپلو اندامونو په پیوست والی سره سجده کوي. **(هدایه ص۶۰ ج۱، شرح نقایه ص۷۹ ج۱، کبیري ص۳۲۲)**.

**دنارینه او ښځې د مونځونو تر مینځ فرق**:- دمونځ احکام چه کوم د سړو دپاره دی هماغه د ښځو دپاره هم دی. صرف په لاندینیو امورو کښې یې فرق دې:

۱- ښځه به خپل بدن په غټه (دبله) جامه باندې پټوي، چه د بدن رنګ او ویښته وغیره په نظر رانشي که رنګ یا ویښته ښکاره وي نو مونځ یې نه صحیح کیږي. **(فتاوی عزیزیه ص۲۴۸، کبیري ص۲۱۲، شرح نقایه ص۶۵ ج۱، هدایه ص۹۵ ج۱،** (ددې بحث له حوالې سره دمونځ په شرطونو کښې تیر شوې دې).

۲- اذان او اقامت د ښځو په حق کښې مسنون نه دې. **(فتاوی عزیزی ص۴۴۸)**.

۳- دتکبیر تحریمه په وخت به دواړه لاسونه تر غوږونو پورې نه پورته کوي بلکه تر اوګو پورې به یې پورته کوي. **(هدایه ص۶۴ ج۱، شرح نقایه ص۷۱ ج۱، کبیري ص۳۰۰، فتاوی عزیزی ص۲۴۸،)** (ددې بحث له حوالې سره په باب مسائل تحریمه کښې وګورئ).

۴- دواړه لاسونه به په سینه باندې (معمولی ښکته) کیږدي. **(شرح نقایه ص۷۳ ج۱، کبیري ص۳۰۱، فتاوی عزیزی ص۲۴۸)**

۵- کله چه د تشهد یا دسجدې دپاره کیني نو دواړه پښې به یو طرفته (چپ طرفته) وغوروي، (دتورک په شکل) په زمکه به کیني. **(هدایه ص۱۷ ج۱، شرح نقایه ص۸۰ ج۱، کبیري ص۳۳۳، فتاوی عزیزی ص۲۴۸)**. (ددې مسائلو بحث هم په تفصیل سره تیر شوې دې).

**مسئله**:- د ښځو دپاره تورک افضل دې یعنی که ښځه د سړو په شان هم کیني نو جائز دی (خو افضل طریقه نه ده).

عَنْ مَكْحُولٍ أَنَّ أُمَّ الدَّرْدَاءِ كَانَتْ تَجْلِسُ فِي الصَّلوٰةِ كَجِلْسَةِ الرَّجُلِ. (مصنف ابن ابي شيبه ص۲۷۰ ج۱، بخاری ص۱۱۴ ج۱ تعليقاً).

حضرت مکحول فرمایي چه حضرت ام الدرداء رضي الله عنها به په مونځ کښې داسې کیناستله لکه څنګه چه سړی کیني.

۶ - ښځه به په اوچت آواز قراءة نه کوی، نه به تکبیر او سلام په او چت آواز سره وایي. (لکه څنګه چه منفرد ته اختیار دې چه که پټ یې لولي او که په ښکاره، بلکه په پټ آواز به یې وایی او که امام هیره وکړی نو هم به په اوچت آواز سره تسبیح نه کوی بلکه تصفیح به کوی، (یعنی دچپ لاس تلې به د ښی لاس په شا باندې وهی) (فتاوی عزیزی ص۲۴۸)

**مسئله** :- که صرف ښځه خپل ځان ته د جماعت سره مونځ کوی، نو معمولی په اوچت آواز سره تکبیر او قراءة کولې شی، لکه څنګه چه تفصیلی بحث به یې په (باب امامة النساء) (دزنانو د امامت باب) کښې راشی.

۷ - په سجده کښې به ورنونه نه پورته کوی، ګیډه به د ورنونو سره پیوسته ساتی، سینې به د ورنونو سره باالکل نزدې کړی. فقهاء کرام فرمایی چه دا د ښځو د پاره زیاته د پردې خبره ده (هدایه ص۱۰۰ ج۱، شرح نقایه ص۹۰ ج۱، کبیری ص۳۲۲، فتاوی عزیزی ص۲۴۹).

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ صَلوٰةِ الْمَرْأَةِ فَقَالَ تَجْتَمِعُ وَتَحْتَفِزُ. (مصنف ابن ابي شيبه ص۲۷۰ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه د ښځو د مونځ په باره کښې پوښتنه وکړې شوه، نو هغوی وفرمایل چه ښځه به پیوست والی سره وی. (یعنی ګیډه به یې د ورنونو سره یو ځائ وی).

عَنْ إِبْرَاهِيمَ قَالَ إِذَا سَجَدَتِ الْمَرْأَةُ فَلْتُلْزِقْ بَطْنَهَا بِفَخِذَيْهَا وَلَا تَرْفَعْ عَجِيزَتَهَا وَلَا تُجَافِي كَمَا يُجَافِي الرَّجُلُ. (مصنف ابن ابي شيبه ص۲۷۰ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابراهیم نخعی فرمایی چه کله ښځه سجده کوی، نو خپله ګیډه به د ورنونو سره یو ځائ کوی، اوخپل ورنونه به نه اوچتوی او خپلې متې (څنګلې) به د اړخونو نه لرې نه ساتی لکه څنګه یې چه سړې په خپل مونځ کښې کوی.

عَنِ الْحَسَنِ قَالَ الْمَرْأَةُ تَضْطَمُّ فِي السُّجُودِ. (مصنف ابن ابي شيبه ص۲۷۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت حسن بصری رحمه الله فرمایی چه ښځه به بالکل د بدن پیوست والی سره سجده کوی.

عَنْ مُجَاهِدٍ أَنَّهُ كَانَ يَكْرَهُ أَنْ يَضَعَ الرَّجُلُ بَطْنَهُ عَلَى فَخِذَيْهِ إِذَا سَجَدَ كَمَا تَضَعُ الْمَرْأَةُ. (مصنف ابن ابي شيبه ص۲۷۰ ج۱)

**ترجمه** : حضرت مجاهد رحمه الله فرمایی چه دسړی دپاره مکروه دی چه هغه خپله ګیډه د خپلو

ورنونو سره یو ځای کړی لکه څنګه چه یې پښې یو ځای کوي

استراحت جلسه :- کله چه دویمه سجده پوره کړي ، نو بیا به تکبیر وکړي او دویم رکعت ته به ودریږي او جلسه داستراحت (یعني لږ شان کینستل بیا پاسیدل) به نه کوي . (کتاب الحجه ص۳۱۵ ج۱، هدایه ص۱۰۰ ج۱، شرح نقایه ص۹۰ ج۱، کبیری ص۳۲۲).

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ (فی حدیث مسئ صلاته مرفوعا ) ثُمَّ اسْجُدْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَسْتَوِيَ وَتَطْمَئِنَّ جَالِسًا ثُمَّ اسْجُدْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَسْتَوِيَ قَائِمًا (بخاری ص۹۸۶ ج۲)

**ترجمه** : حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دي چه رسول الله ﷺ وفرمایل : بیا به ته په اطمینان سره سجده وکړې او بیا به سر له سجدې نه پورته کړې، په اطمینان سره به نیغ کینې او بیا به اطمینان سره بله سجده وکړې بیا به سر له سجدې نه پورته کړې تردې چه نیغ ودریږې .

مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ عَنْ عَبَّاسٍ أَوْ عَيَّاشِ بْنِ سَهْلٍ السَّاعِدِيِّ ﷺ أَنَّهُ كَانَ فِي مَجْلِسٍ فِيهِ أَبُوهُ ثُمَّ كَبَّرَ فَسَجَدَ ثُمَّ كَبَّرَ فَقَامَ وَلَمْ يَتَوَرَّكْ. (ابوداود ص۱۰۷ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عباس یا عیاش بن سهل ساعدی د خپل پلار په مجلس کښې تکبیر وویلو، بیا یې سجده وکړه بیا یې تکبیر وکړو او نیغ ودریدلو او جلسه داستراحت یې ونه کړه.

عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ يَزِيدَ قَالَ رَمَقْتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ مَسْعُودٍ فِي الصَّلٰوةِ فَرَأَيْتُهُ يَنْهَضُ وَلَا يَجْلِسُ قَالَ يَنْهَضُ عَلٰى صُدُورِ قَدَمَيْهِ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولٰى وَالثَّالِثَةِ. (مصنف عبدالرزاق ص۱۷۸ ج۲، ابن ابی شیبه ص۳۹۴ ج۱ مجمع الزوائد ص۱۳۶ ج۲ بیهقی ص۱۲۵ ج ).

**ترجمه** : حضرت عبد الرحمن بن یزید فرمایي چه ما حضرت [illegible] بن مسعود [illegible] په مونځ کښې ولیدلو، هغه د [illegible] په [illegible] اندېنۍ حصه پاسیدلو او جلسه داستراحت یې نه کوله . د اولنی رکعت په ختمیدو او د دویم رکعت په شروع د دریم رکعت په ختمیدو او د څلورم رکعت په شروع کښې .

همدغه رنګه ابن ابی شیبه رحمه الله د حضرت نعمان بن ابی عیاش رحمه الله نه په حسن سند سره د ډیرو صحابه کرامو ﷺ او په صحیح سند سره د حضرت وهب بن کیسان رحمه الله نه او د حضرت عبد الله بن زبیر ﷺ تعامل نقل کړي دي .

**مسئله** :- حضرت امام ابو حنیفه او نور ډیر امامان صاحبان دا جلسه داستراحت د عذر په حالت باندې حمل کوي، که د عذر له کبله جلسه وکړي نو بیا درسته ده، د رسول الله ﷺ نه هم جلسه د استراحت ثابته ده، هغه د امامانو صاحبانو په نزد دعذر په حالت باندې محمول ده، آخري عمر کښې نبی کریم ﷺ نوافل هم اکثر په ناسته کول، بدن مبارک یې درونډ شوې وو او په هغې کښې ضعف راغلې وو، په دغه حالاتو کښې به یې جلسه د استراحت هم کوله . (کتاب الحجه ص۳۱۵ ج۱).

لکه چه علامه ماردینی د تمهید په حواله لیکلي دي چه:

(اختلف الفقهاء في النهوض من السجود إلى القيام فقال مالك والأوزاعي والثوري وأبو حنيفة وأصحابه ينهض على صدور قدميه ولا يجلس وروي ذالك عن ابن مسعود وابن عمر وابن عباس وقال النعمان بن أبي عياش أدركت غير واحد من أصحاب النبي ﷺ يفعل ذالك وقال أبو الزناد ذالك السنة وبه قال بن حنبل وابن راهويه وقال أحمد وأكثر الأحاديث على هذا (الى ان قال) وفي نوادر الفقهاء لابن بنت نعيم أجمعوا أنه إذا رفع رأسه من آخر سجدة من الركعة الأولى والثالثة نهض ولم يجلس إلا الشافعي فإنه استحب أن يجلس كجلوسه للتشهد ثم ينهض قائما. (الجوهر النقي على البيهقي مع البيهقي ص ۱۲۵،۱۲۶ ج ۲)

**ترجمه**: د فقهاء کرامو په اول رکعت او دریم رکعت کښې د دویمې سجدې نه وروسته په پاڅیدلو کښې اختلاف دې. امام مالك .امام اوزاعی. امام سفیان ثوری ، امام ابو حنیفه او دهغوی اصحاب فرمایی چه د پښو په وړاندینۍ حصه به پاسیږي. جلسه داستراحت به نه کوي. او دا خبره د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه او عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه نقل ده . او حضرت نعمان بن عیاش فرمایی چه ما درسول الله ﷺ ډیر اصحاب بیا موندلی دی چه هغوی به جلسه داستراحت نه کوله او حضرت ابوالزناد فرمایی چه سنت، همدغه دی، او دا قول دې دامام احمد بن حنبل رحمه الله . اود حضرت امام اسحاق بن راهویه رحمه الله، او امام احمد فرمایی، چه اکثرو احادیثو نه هم همدا ثابت دی، بیا امام ماردینی فرمایی چه په «نوادر الفقهاء» چه د ابن بنت نعیم تنصیف دې په هغې کښې یې لیکلی دی چه دټولو په دې باندې اتفاق دې چه کله مونځ گزار د اول او دریم رکعت د آخری سجدې نه سر پورته کوی نو نیغ به ودریږي او جلسه داستراحت به نه کوي، بغیر دامام شافعی نه. هغوی دې نه مستحب ویلی دی، لکه څنګه چه د تشهد دپاره ناسته ده دغه شان به کینی بیا به پاڅیږي.

علامه ابن قیم جوزی . (۶۹۱هـ. ۷۵۱هـ) د یوسف بن موسی په حواله نقل کوی چه

وقال أخبرني يوسف بن موسى أن أبا أمامة سئل النهوض فقال على صدور القدمين على حديث رفاعة وفي حديث ابن عجلان ما يدل على أنه كان ينهض على صدور قدميه وقد روي عن عدة من أصحاب النبي ﷺ وسائر من وصف صلاته صلى الله عليه وسلم لم يذكره هذه الجلسة وإنما ذكرت في حديث أبي حميد ومالك بن الحويرث ولو كان هديه صلى الله عليه وسلم فعلها دائما لذكرها كل واصف لصلاته صلى الله عليه وسلم ومجرد فعله صلى الله عليه وسلم لها لا يدل على أنها من سنن الصلوة إلا إذا علم أنه فعلها سنة يقتدى به فيها وأما إذا قدر أنه فعلها للحاجة لم يدل على كونها سنة من سنن الصلاة فهذا من تحقيق المناط في هذه المسئلة. (زاد المعاد ص ۶۱ ج ۱)

**ترجمه** : د حضرت ابو امامه نه په مونځ کښې د پاڅیدلو په باره کښې پوښتنه وکړې شوه نو هغوی وفرمایل چه د پښو په وړاندینۍ حصه به ودریږي، لکه څنګه چه د حضرت رفاعه ﷺ د حدیث نه ثابت دی او دابن عجلان په روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ به د پښو په وړاندینۍ حصه پاڅیدلو او د رسول الله ﷺ ډیر صحابه او ټول هغه خلق چه د رسول الله ﷺ دمونځ کیفیت بیانوی، هغوی د رسول الله ﷺ په مونځ کښې د دې جلسې «داستراحت دجلسې» ذکر نه دې کړې، دا صرف د حضرت ابو حمید ﷺ او د مالك بن حویرث روایت کښې دی. که دا د رسول الله ﷺ عامه طریقه وې، اویا دا د هغوی ﷺ دائمی عمل وې نو هغه ټولو حضراتو به ددې ذکر کړې وو چا چه د هغوی ﷺ د مونځ کیفیت بیان کړې دې. او صرف د هغوی ﷺ محض فعل کول په دې باندې دلالت نه کوی چه دا دمونځ د سنتو نه دی، تر څو چه ددې ثبوت نه وی چه رسول الله ﷺ دا په طور د سنت کړې دی اوکه نه ؟ چه دهغې اقتداء وکړې شی، که چیرې معامله داسې وی چه رسول الله ﷺ دا دضرورت له کبله کړې وی نو بیا ددې په مونځ کښې د سنت کیدو ثبوت نشته. نو دا په دې مقام کښې په دې مسئله کښې له تحقیق د مناط څخه دې.

**مسئله** - د دویمې سجدې نه د سر پورته کولو په وخت به تکبیر وایی او په اطمینان سره به سر پورته کړی ، بیا به لاسونه او بیا به زنګنونه او د لاسونو په زمکه د لګولو نه بغیر به ودریږي .که څه عذر نه وُو. (شرح نقایه ص۷۹ ج۱).

عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ ﷺ سَجَدَ وَضَعَ رُكْبَتَيْهِ قَبْلَ يَدَيْهِ وَإِذَا نَهَضَ رَفَعَ يَدَيْهِ قَبْلَ رُكْبَتَيْهِ. (ابوداود ص۱۲۲ ج۱ ترمذی ص۳۶)

**ترجمه** : حضرت وائل بن حجر ﷺ فرمایی چه ما رسول الله ﷺ ولیدلو چه کله به هغوی سجده کوله نو دلاسونو نه وړاندې به یې زنګنونه کیښودل او چه کله به د سجدې نه پورته کیدلو نو اول به یې لاسونه پورته کړل بیا به یې زنګنونه پورته کول .

**دویم رکعت** :- په دویم رکعت کښې به ثناء او تعوذ نه وایی ، بلکه صرف (بسم الله الرحمن الرحيم) به وایی او سورة فاتحه به شروع کړې او څه سورة به ورپسې وایی، دویم رکعت ته د ودریدلو په وخت به لاسونه هم نه پورته کوی، په باقی نورو ټولو مسائلو کښې دویم رکعت د اولنی رکعت په شان دې.

**اوله قعده** :- کله چه د دویم رکعت د دویمې سجدې نه فارغ شې او د سجدې نه سر پورته کړی. نو قعده به وکړی . که مونځ د دوو رکعتو نه د زیاتو رکعتو وی نو دا قعده اولی ده او دا واجب ده. (هدایه ص۱۰۵ ج۱، شرح نقایه ص۸۰ ج۱، کبیری ص۲۹۶).

عَنِ الشَّعْبِيِّ قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ مُغِيرَةَ بْنِ الشُّعْبَةَ ﷺ فَقَامَ فِي الثَّانِيَةِ فَسَبَّحَ النَّاسُ بِهٖ فَلَمْ يَجْلِسْ فَلَمَّا سَلَّمَ وَانْفَتَلَ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ ثُمَّ قَالَ هٰكَذَا رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ صَنَعَ. (مصنف ابن ابی شیبه ص ۳۴ ج ۲)

**ترجمه**: حضرت امام شعبی فرمائی چه ما په حضرت مغیره بن شعبه ﷺ پسې مونځ وکړو. کله چه هغوی دویم رکعت وکړو نو د قعدې کولو په ځائ ودریدلو خلقو د وروستو نه تسبیح وویله، لیکن هغه قعدې ته واپس نه شو. کله یې چه سلام واړولو نو هغوی دوه سجدې دسهوې وکړې. بیا یې وویل چه ما رسول الله ﷺ لیدلې دې چه هغوی داسې کړې وو.

حضرت عبد الله بن بجینه ﷺ نه هم درسول الله ﷺ عمل همداسې نقل دې، (مسلم ص ۲۱۱ ج ۱).

**مسئله**:- په اوله قعده کښې تشهد ویل هم واجب دی. (شرح نقایه ص ۰۰ ج ۱، کبیری)

عن عائشة (مرفوعا) وَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ اَلتَّحِيَّاتُ بَيْنَ كُلِّ رَكْعَتَيْنِ، (مصنف عبد الرزاق ص ۲۰۶ ج ۱، مسلم ص ۱۹۴ ج ۱، مصنف ابن ابی شیبه ص ۲۹۶ ج ۱)

**ترجمه**: ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایلی: د هرو دوو رکعتونو نه وروسته التحیات (قعده) وی.

عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ فِي كُلِّ رَكْعَتَيْنِ تَشَهُّدٌ. (مجمع الزوائد ص ۱۳۹ ج ۲)

**ترجمه**: له حضرت ام سلمه ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: د هرو دوو رکعتونو نه وروسته تشهد وی.

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ عَلَّمَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اَلتَّشَهُّدَ فِيْ وَسْطِ الصَّلَاةِ وَفِيْ اٰخِرِهَا، (مسند احمد ص ۴۵۹ ج ۱، مجمع الزوائد ص ۱۳۲ ج ۲، وقال رجاله موثقون)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ فرمایی چه ماته رسول الله ﷺ د مونځ په مینځ کښې یعنی د دوو رکعتونو نه وروسته او د مونځ په آخر کښې هم تشهد وښودلو.

وَعَنْهُ قَالَ لَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ قُوْلُوْا فِيْ كُلِّ جَلْسَةٍ اَلتَّحِيَّاتُ الخ (نسائی ص ۱۷۴ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ مونږ ته وفرمایل: هره جلسه (یعنی ناسته) کښې التحیات لولئ.

عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ يَقُوْلُ سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ يَقُوْلُ لَا تَجُوْزُ الصَّلٰوةُ اِلَّا بِتَشَهُّدٍ، (کتاب الاثار لامام محمد مترجم ص ۶۵، مصنف عبد الرزاق ص ۲۰۶ ج ۲

**ترجمه**: له حضرت عمر بن خطاب ﷺ نه روایت دې چه هغوی وویل: له تشهد نه بغیر مونځ نه صحیح کیږی.

**په قعده کښې د ناستې کیفیت** :- په قعده کښې د ناستې صورت دا دې چه چپه پښه به په زمکه وغوړوې، او ښۍ پښه به ودروی، او د ګوتو مخ به دقبلې په طرف متوجه کړې. چه کله څه عذر نه وی، لکه چه د حضرت عمر ؓ په روایت کښې د رسول الله ﷺ په قعده کښې د ناستې کیفیت همداسې راغلې دې.

**عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ قَاسِمٍ اَنَّهٗ كَانَ يَرٰى عَبْدَ اللهِ بْنِ عُمَرَ يَتَرَبَّعُ فِي الصَّلٰوةِ اِذَا جَلَسَ فَفَعَلْتُهٗ وَاَنَا يَوْمَئِذٍ حَدِيْثُ السِّنِّ فَنَهَانِيْ عَبْدُ اللهِ بْنِ عُمَرَ وَقَالَ اِنَّمَا سُنَّةُ الصَّلٰوةِ اَنْ تَنْصِبَ رِجْلَكَ الْيُمْنٰى وَتُثْنِيَ الْيُسْرٰى فَقُلْتُ اِنَّكَ تَفْعَلُ ذٰلِكَ فَقَالَ اِنَّ رِجْلَايَ لَا تَحْمِلَانِيْ. (بخاری ص ۱۱۴ ج ۱ موطا امام مالک ص ۴۳)**

**ترجمه** : عبدالرحمن بن قاسم نه روایت دی چه هغوی حضرت عبدالله بن عمر ؓ په پرلت (تربّع) طریقې سره په ناسته ولیدلو. هغوی فرمایی چه زه هغه وقت کښې کم عمره ووم ، زه هم هغسې کیناستم. نو حضرت عبدالله بن عمر ؓ زه د هغسې ناستې نه منع کړم. او وې فرمایل چه د مونځ سنت دا دی چه (په جلسه کښې) ته ښۍ پښه ودروه . او چپه پښه خوره کړه او په هغې کینه. حضرت ابن قاسم فرمایی : ما عرض وکړو چه بیا تاسو ولې داسې کیناستئ؟ نو حضرت عبدالله بن عمر ؓ وفرمایل : زما پښې داسې نشو برداشت کولې.

(یهودیانو هغوی ؓ د خپلې نه را غورځولی ... ې نه کبله د هغه پښه کمزورې شوې وه، او وزن یې نشو برداشت کولې لدې کبله به هغوی ؓ په قعده کښې پرلت وهلو ، پښه به یې غزوله او بیا به کیناستلو )

**مسئله** :- اوله قعده او آخره قعده دواړو کښې د ناستې یو طریقه ده . **(هدایه ص ۲، ج ۱، کبیری ص ۳۳۳ شرح نقایه ص ۸۱ ج ۱).**

**عَائِشَةَ ؓ (مرفوعا) وَكَانَ يَقُوْلُ فِيْ كُلِّ رَكْعَتَيْنِ التَّحِيَّةُ وَكَانَ يَفْرِشُ رِجْلَهُ الْيُسْرٰى وَيَنْصِبُ رِجْلَهُ الْيُمْنٰى وَكَانَ يَنْهٰى عَنْ عُقْبَةِ الشَّيْطَانِ وَيَنْهٰى اَنْ يَفْتَرِشَ الرَّجُلُ ذِرَاعَيْهِ اِفْتِرَاشَ السَّبُعِ (مسلم ص ۱۹۴، ۱۹۵، ج ۱)**

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه ؓ روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی دهرو دوو رکعتونو نه وروسته التحیات وی . لدینه علاوه رسول الله ﷺ به چپه پښه غوړوله. او ښۍ پښه به یې په قعده کښې ودروله. او منع به یې فرمایله د شیطان په طریقه له ناستې نه. (په کوناټو کیناستل چه دواړه زنګنونه یې ولاړ وی دا دشیطان ناسته ده) او لدینه به یې هم منع فرمایله چه څوک په سجده کښې خپل دواړه لاسونه داسې په زمکه خوار کړی.لکه څنګه چه درنده ځناور په ناسته کښې خپلې پښې خوروی.

**مسئله** :- په قعده کښې دواړه تلې په ښی اوچت وړون باندې کیږده او ګوتې خورې کړه . **(هدایه**

ص۱۰۷ ج۱، شرح نقایه ص۸۰ ج۱، کبیری ص۳۲۸).

عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ (مرفوعا) كَانَ إِذَا جَلَسَ فِي الصَّلٰوةِ وَضَعَ كَفَّهُ الْيُسْرٰى عَلٰى فَخِذِهِ الْيُسْرٰى وَوَضَعَ كَفَّهُ الْيُمْنٰى عَلٰى فَخِذِهِ الْيُمْنٰى. (مصنف عبدالرزاق ص۱۹۵ ج۲، موطا امام مالک ص۷۱، ومسلم ص۲۱۶ ج۱)

**ترجمه** حضرت عبدالله بن عمر ﷛ نه روایت دي چه رسول الله ﷺ به کله به مونځ کښي کیناستلو نو خپل چپ لاس به یې په چپ ورون او ښي لاس به یې په ښي ورون باندي کښېښودلو.

**تشهد** - په دواړو قعدو کښي به تشهد لولی او ددې په احادیثو کښي مختلف الفاظ نقل دي په دې کښي دیولو نه بهتر او مشهور د حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ روایت دی

**دحضرت عبدالله بن مسعود ﷛ تشهد**

عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ عَلَّمَنِيْ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ التَّشَهُّدَ كَفِّيْ بَيْنَ كَفَّيْهِ كَمَا يُعَلِّمُنِي السُّوْرَةَ مِنَ الْقُرْاٰنِ فَقَالَ إِذَا قَعَدَ اَحَدُكُمْ فِي الصَّلٰوةِ فَيَقُلْ اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوٰتُ وَالطَّيِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللهِ الصّٰلِحِيْنَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ. (مسلم ص۱۷۳ ج۱، بخاری ص۹۲۶ ج۲، ترمذی ۶۸)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ فرمایي چه رسول الله ﷺ ماته په ډیر اهتمام سره تشهد ښودلو په داسي حال کښي چه زما لاس د رسول الله ﷺ د دواړو مبارکو لاسونو په مینځ کښي وو. اهتمام دباره رسول الله ﷺ زما لاس په خپلو دواړو لاسونو کښي نیولي وو. لکه چه د بیعت او د ... تحي په وخت کښي چه وی) داسي اهتمام هغوی ﷺ وفرمایلو لکه چه دقرآن د کوم سورة ښودلو په وخت به یې اهتمام فرمایلو .نوهغوی ﷺ وفرمایل کله چه په تاسو کښي څوک دمونځ په قعده کښي کښي نو هغه ته پکار دی چه داسي ووایي (اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوٰتُ وَالطَّيِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللهِ الصّٰلِحِيْنَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ ...

**دحضرت عبدالله بن عباس ﷛ تشهد** - اَلتَّحِيَّاتُ الْمُبَارَكَاتُ الصَّلَوٰتُ الطَّيِّبَاتُ لِلّٰهِ سَلَامٌ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهٗ سَلَامٌ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللهِ الصّٰلِحِيْنَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللهِ). (ترمذی ص۶۸)

**د امیرالمؤمنین حضرت عمربن الخطاب ﷛ تشهد** - اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ الزَّاكِيَاتُ لِلّٰهِ الطَّيِّبَاتُ لِلّٰهِ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهٗ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللهِ الصّٰلِحِيْنَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَاَشْهَدُ

اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ. (مصنف عبد الرزاق ص۲۰۲ ج۲، موطا امام مالک ص۶۲)

**دام المؤمنين حضرت عائشه صديقه** رضي الله عنها **تشهد**:- اَلتَّحِيَّاتُ الطَّيِّبَاتُ الصَّلَوٰتُ الزَّاكِيَاتُ لِلّٰهِ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهٗ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ. (بيهقى ص۱۴۲ ج۲ موطا امام مالک ص۶۳ ج۱)

**د حضرت عبدالله بن زبير** رضي الله عنه **تشهد**:- بِسْمِ اللّٰهِ وَبِاللّٰهِ خَيْرِ الْاَسْمَاءِ اَلتَّحِيَّاتُ الطَّيِّبَاتُ الصَّلَوٰتُ لِلّٰهِ اَشْهَدُ اَنْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَاَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ اَرْسَلَهٗ بِالْحَقِّ بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا وَاَنَّ السَّاعَةَ اٰتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيْهَا اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ الْكَرِيْمُ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهٗ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ وَاهْدِنِيْ. (مجمع الزوائد ص۱۴۱ ج۲)

**د اميرالمؤمنين حضرت على المرتضى** رضي الله عنه **تشهد**:- اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوٰتُ وَالطَّيِّبَاتُ الْغَادِيَاتُ الرَّائِحَاتُ الزَّاكِيَاتُ الْمُبَارَكَاتُ الطَّاهِرَاتُ لِلّٰهِ. (مجمع الزوائد ص۱۴۱ ج۲)

**دحضرت جابر عبدالله** رضي الله عنه **تشهد**:- بِسْمِ اللّٰهِ وَبِاللّٰهِ اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوٰتُ لِلّٰهِ وَالطَّيِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهٗ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ وَاَسْاَلُ اللّٰهَ الْجَنَّةَ وَاَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ النَّارِ. (نسائى ص۱۷۵ ج۱ص۱۶۹ ج۱ مصنف ابن ابى شيبه ص۲۹۲ ج۱)

لدينه علاوه دحضرت عمر رضي الله عنه اوحضرت سعيد بن جبير رحمه الله نه هم په تشهد کښې بسم الله ثابته ده. وګورئ: (مصنف ابن ابى شيبه ص۲۹۵ ج۱).

**مسئله**:- د ثناء، تسميه، تعوذ او آمين په شان تشهد هم پټ لوستل سنت دى. (شرح نقايه ص۸۰ ج۱).

عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ مِنَ السُّنَّةِ اَنْ يُّخْفِيَ التَّشَهُّدَ. (ترمذى ص۶۸، ابوداود ص۱۴۲ ج۱، مصنف ابن ابى شيبه ص۲۹۵ ج۱)

دحضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه قول دې چه دا دسنتو نه دى چه پټ ولوستلې شى.

**مسئله**:- دهر مومن په مونځ کښې د مومنانو حق دې.

**د التحيات معناګانې**:

**اَلتحيات**:- اَنْوَاعُ الثَّنَاءِ وَالْمَدْحِ وَالصَّلَوٰتُ الدَّعَوَاتُ الْمَاْلُوْفَةُ.

**الطيبات**، اَلْكَلِمَاتُ الدَّالَّةُ عَلٰى تَسْبِيْحِ الذَّاتِ تَقْدِيْسِ الصِّفَاتِ وَقَالَ الْخَطَّابِيُّ. اَلتَّحِيَّاتُ اَسْمَاءُ اللّٰهِ وَهِيَ السَّلَامُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ الْعَزِيْزُ الْاَحَدُ الصَّمَدُ لَا يَحِلُّ بِهَا غَيْرُهٗ وَالصَّلَوٰتُ الْاَدْعِيَةُ.

وَقَالَ بَعْضُ الْمَشَائِخِ اَلتَّحِيَّاتُ الْعِبَارَاتُ الْقَوْلِيَّةُ. اَلصَّلَوٰتُ الْعِبَادَاتُ الْبَدَنِيَّةُ اَلطَّيِّبَاتُ الْعِبَادَاتُ الْمَالِيَّةُ

أي بجميع العبادات وبلا يستحقها غيره. (فتح الباري ص ۳۱۴ ج ۲)

د التحيات معنی قسما قسم ثناء او مدح ده، د الصلوة معنی مالوفه دعاګانې دی، د الطيبات معنی هغه کلمات دی چه کوم تسبيحات په ذات باندې دلالت کوی او دصفاتو په تصديق باندې دلالت کوي، امام خطابی فرمايي چه التحيات نه اسمآء الله مراد دی، او هغه (السلام المؤمن المهيمن الحي القيوم العزيز الاحد الصمد) دی، ددې اسماء سره دالله ﷻ نه سيوا دغير تحية (سلام نشی کولې، او صلوات نه مراد دعوات دی.

اوبعضې مشائخو فرمايلی دی چه (التحيات) نه عبادات قوليه، اود (صلوات) نه مراد عبادات بدنيه او د (الطيبات) نه مراد عبادات ماليه دی يعنی د تمامو عباداتو مستحق سيوا دالله نه نور هيڅوك نشته.

**د أيها النبيّ په لفظ باندې يو اشکال** :- شيخ عبد الحق محدث دهلوی رحمه الله ليکلی دی چه ((خطاب حاضر رابود آنحضرت ﷺ درين مقام حاضر نيست)).

نبی کريم صلی الله عليه وسلم ﷺ ته د حاضر په صيغې سره خطاب کړې شوې دې، حالانکه هغوی ﷺ خو پدې مقام کښې حاضر نه دی.

**جواب**:- چون ورود اين کلمه در اصل درشب معراج بصيغه خطاب بود ديگر تغيرش ندادند وبر همان اصل گزاشتند (مکاتيب ورسائل شيخ عبدالحق محدث دهلوی ص ۱۸۹ طبع مجتبانی)

کله چه ددې کلمې ورود په شب معراج کښې په صيغه د خطاب سره شوې وو،نو په دې کښې څه تغير او تبديل نه دې کړې شوې، همدغه شان هم دا پريښودې شوې دې.

لکه څنګه چه پدې مثالونو کښې راغلی دی:

وَإِنِّي لَأَظُنُّكَ يَا فِرْعَوْنُ مَثْبُورًا (بنی اسرائيل آيت ۱۰۲ پاره ۱۵).

**ترجمه** : او بيشکه زه ګمان کوم اې فرعونه ! ستا په باره کښې چه ته هلاکيدونکې يې.

يُوسُفُ أَعْرِضْ عَنْ هَٰذَا ۚ وَاسْتَغْفِرِي لِذَنبِكِ ۖ إِنَّكِ كُنتِ مِنَ الْخَاطِئِينَ (يوسف آيت ۲۹)

**ترجمه** : اې يوسف ! (عليه السلام) اعراض وکړه ددې خبرې نه ، او وه وايه زليخې ته د خپلې غلطئ معافی وغواړه بيشکه ته د خطاکارو څخه يې.

در حقيقت اين دعا است درنماز اگر چه بصيغه خطاب است . (مدارج النبوة ص ۱۶۵ ج ۱)

په حقيقت کښې دا دعا ده په مونځ کښې اګر چه په صيغه د خطاب سره وارده شوې ده.

او وجه د خطاب يعنی د سلام او دعا په صيغې د خطاب سره پيش کول ، له د کبله دی چه دا

کلام همدغسې باقي پرېښودې شوې دې، څنګه چه شب معراج کښې الله ﷻ رسول الله ﷺ سره خطاب فرمایلې وو، رسول الله ﷺ د امت د تعلیم په وخت دا لفظ په اصلي حالت باندې برقرار پرېښودلو، دې دپاره چه دا لفظ دهغې حالت یاد دهانی کوی.

لدینه علاوه دهغوی ﷺ ذات مبارک د مؤمنانو دپاره همیشه نصب العین اود عابدینو دپاره دقرة العین درجه لری. په تمامو حالاتو کښې خصوصا د عباداتو او دعبادت داختتام په وخت کښې چه د نورانیت وجود او انکشاف په دې مقام کښې ډیر زیاتیږی.

بعضې عارفینو ویلی دی چه دا خطاب د حقیقت محمدیه د سریان په اعتبار سره دې لدې کبله چه د تمامو موجوداتو په ذراتو او په تمامو ممکنو افرادو کښې سرایت وکړی، پس په دې اعتبار سره هغه حقیقت محمدیه د مونځ ګزارو په ذات کښې هم موجود اوحاضر دې، پس مونځ ګزار ته پکار دی چه هغه ددې معنی نه خبر وی او ددې شهودو «مشاهدې» نه غافل نه وی، چه د انوار قرب او اسرار معرفت سره متنور او مستفیض وی. (اشعة اللمعات فارسی ص۴۰۰ ج۱).

په حقیقت کښې دهغوی ﷺ روح مبارك یا دجسم اطهر په څه ځائ کښې حاضریدل، او دحقیقت محمدیه سرایت په ټولو کائناتو کښې دا بالکل جدا جدا خبرې دی. دا په خپل مینځ کښې ګډوډ کول اوخلق په شرك کښې مبتلاء کول نهایت قبیح امر دې، حقیقت محمدیه، حقیقت صلوة، حقیقت قرآن وغیره هغه حقائق دی چه په هغې سره د دین بزرګان د خپلو روحانی مشاهداتو په سلسله کښې بحث کوی، لکه چه د حقیقت محمدیه په باره کښې شیخ اکبر رحمه الله او مجدد الف ثانی رحمه الله لیکلی دی چه هغه صادر اول یا تعین اول دې، او هغه د الله ﷻ د صفت علم ظهور دې، ددینه پورته درجه د لاتعین یا د ذات حجت درجه ده، درسول الله ﷺ ذات مبارکه ددې صفت مظهر اتم دې، او دهغوی صفت خاصه لکه څنګه چه هغوی ﷺ په خپله فرمایلې دی (أُعْطِيتُ عِلْمَ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ) «یعنی دعلم الاولین او آخرین نه زه آګاه کړې شوې یم» نو د هغوی ﷺ د ظهور صفت که په څه درجه کښې د کائناتو په ټولو افرادو یا دممکناتو په ذراتو کښې وی، نو دا مستبعده نه ده، له همدې کبله ددې عرفاؤ خیال دې دټولو کائناتو د ایجاد او ظهور باعث او علت درسول الله ﷺ ذات مقدس دې، دمؤمن ایمان او د کمالاتو فیضان دټولو علت دهغوی ﷺ ذات مقدس دې، د مؤمن ایمان هم ددې ذات نبوت یو شعاع ده، که ایماندار خپلې ایمانی هستئ کښې غور وکړی نو دخپلې ایمانی هستئ نه وړاندې به ده ته د نبی کریم ﷺ معرفت حاصلول ضرور وی، له همدې کبله د نبی وجود مبارك به په خپله زمونږ د هستئ نه هم مونږ ته زیات نزدې او اقرب وی. او که ددې روحانی تعلق په بناء باندې وویلې شی چه دمؤمنانو په حق کښې نبی ﷺ د والد په منزله دې، نو دا به صحیح وی، دپلار او زوی د تعلق خلاصه دا ده چه د زوی جسمانی او مادی وجود دپلار د جسم

نه وتلې دې، له همدې کبله دپلار تربیت، مهربانی، او شفقت هم د نورو نه زیات وی ، د نبی او امتی تعلق هم یقینا ددینه ډیر زیات وی، د امتی روحانی وجود دنبی د روحانیت عظمی یو عکس وی، او چه کوم رافت او شفقت د تربیت او مهربانئ ظهور د نبی دطرف نه د امتی په حق کښې وی، هغه د مور اوپلار نه بلکه دټول مخلوق نه زیات وی، دپلار په ذریعه که د دنیا عارضی حیات حاصل وی، نو د نبی په برکت ابدی ، دائمی،او لازوال حیات نصیب کیږی، نبی ته په خپله زمونږ په حق کښې هغه همدردی او خیر خواهی وی ، چه هغه زمونږ خپل نفس سره هم نه شی کیدې نو له همدې کبله نبی زمونږ په په ځان اومال کښې د هغه تصرف کولو حق لری چه هغه بل چاته حاصل نه دې، دحضرت شاه عبدالقادر محدث دهلوی رحمه الله په قول نبی د الله ﷺ نائب دې، زمونږ په خپل ځان اومال کښې زمونږ خپل تصرف دومره نه چلیږی خومره چه د نبی چلیږی، خپل ځان په سور اور کښې ور اچول روا نه دی او که نبی حکم وکړی نو فرض کیږی، له همدې کبله په حدیث کښې هغوی ﷺ فرمایلې دی چه د مور اوپلاو او ټولو رشته دارو او ټولو خلقو بلکه دخپل ځان نه هم زیات چه ترځو نبی محبوب نشی نو ایمان نشی کامل کیدلې .(حاشیه‌شیخ‌الاسلام‌سورة‌احزاب بتغیر‌یسیر) ، نو له همدې کبله د مونځ گزار ددې حقیقت محمدیه د سرایت په بناء باندې خطاب کول په څه نا مناسب نه وی .

او دا حقیقت به هم څه پټ نه وی چه علت العلل او اصل ذات باری تعالی دې، چه خالق او فاطر او بدیع دې، مربی، علیم کل ،متصرف بالذات ، او مدبر ،نافع او ضار، قیوم او مسبب الاسباب دې، لیکن فرشتې هم واسطه د فیضان دی، او دنبی ذات مبارکه هم د تربیت او روحانی فیضان په اعتبار سره واسطه او سبب دې، او دا توسط رسول الله ﷺ ته په عالم ارواح کښې هم حاصل ؤو، دځه په بناء چه دهغوی ﷺ په توسط سره د انبیاء علیهم السلام ارواحو ته فیضان حاصل شو، که معلول خپل علت سره منفك کیدې نشی نو بیا ټول افراد د کائناتو او موجوده ذرات د کمالاتو د افاضې دپاره د هغوی ﷺ ذات مقدس سره څه داسې تعلق او لری چه دهغوی ﷺ د تربیت ، هدایت ، فیضان او روحانیت او نبوت و رسالت وغیره په اعتبار سره د ټولو خلقو د ځانونو نه هم د هغوی ﷺ سره قوی تعلق ولری .

او دحدیث مفهوم همداسې دې چه (کنت نبیا وآدم بین الروح والجسد) یا (کنت نبیا وآدم منجدل بین الماء والطین) یقینا هغوی ﷺ ته په عالم ارواح کښې هم د تعلیم اوتربیت فضیلت حاصل وو چه دانبیاؤ د ارواحو وغیرهم تهذیب او تکمیل الله ﷻ د هغوی ﷺ په وجه سره کړې وو ، په دغه عالم کښې هم د هغوی ﷺ ظهور تام وو چه د هغې نه په لفظ د (کنت نبیا) سره تعبیر وکړې شو ،امام

ولی الله هم په (فیوض الحرمین) او (الدّر الثمین) کښې دا خبره ذکر کړې ده، او دا قسم حقائق ډیرو دین بزرګان مثلا امام مجدد الف ثانی رحمه الله، شیخ ابن عربی رحمه الله، شیخ عبدالکریم جیلی رحمه الله، او شیخ صدرالدین قونوی رحمه الله، مولانا عبدالرحمن جامی رحمه الله، شاه عبدالعزیز محدث دهلوی رحمه الله، مولانا شاه اسماعیل شهید رحمه الله، او مولانا محمد قاسم نانوتوی رحمه الله وغیرهم په خپلو کتابونو او رسالو کښې لیکلی دی.

حافظ ابن حجر رحمه الله هم په فتح الباری شرح دصحیح البخاری کښې یو خاص طرز باندې ددې ذکر کړې دې، لکه چه هغه لیکلی دی: په دې کښې څه حکمت دې چه دلته د غائب د صیغې نه د مخاطب صیغې ته عدول شوې دې، (عَلَيكَ أيُّهَا النَّبِيُّ) باوجود ددینه چه دا مقام ددې تقاضا کوی چه د غائب صیغه استعمالول پکاررو، چه باید دا سې ووایی (السَّلَامُ عَلَى النَّبِيِّ) یعنی اول د الله ﷻ په وړاندې د تحیه او مناجات پیش کولو نه پس دنبی ﷺ طرفته سلام متوجه شی، بیا خپل نفس او دنورو صالحینو طرفته

۱- ددې جواب د مشکوة شارح (طیبی) دا کړې دې چه مونږ د رسول الله ﷺ د ښودلې شوې لفظ اتباع کوو، هغوی ﷺ صحابه کرامو رضی الله عنهم ته همداسې ښودلې وو

۲- او دا هم احتمال شته چه د اهل عرفان (د معرفت الهی لرونکو خلقو) په طریقه باندې ددې جواب هم داسې کیدې شی، کله چه مونځ ګزار د تحیات سره دملکوت دروازه پرانیزی. (یعنی د التحیات په ذریعه چه کله هغه مناجات کوی نو د عالم ملکوت دروازه د هغوی دپاره پرانیستې کیږی) او هغوی ته د (حَيٌّ لَا يَمُوتُ) ذات په بارګاهِ رفیع کښې د داخلیدو اجازت ورکول کیږی، دهغوی سترګې یخیږی، نو هغوی ته تنبیه کولې شی، او خبردارکولې شی چه دا خبره هغوی ته د رحمت دنبی په واسطې سره او دهغه د متابعت په برکت سره حاصله شوې ده، بیا چه هغه کله ګوری نو حبیب د رب العٰلمین په حرم حبیب کښې حاضر وینی، نو دغه انسان د هغوی ﷺ طرفته متوجه شی او وایی چه (السَّلَامُ عَلَيكَ أيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ)

۳- اود حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د حدیث په بعضې طریقو کښې داسې هم نقل دی چه لفظ د خطاب د رسول الله ﷺ د ژوند له زمانې سره خاص دی او دهغوی د وفات نه وروسته به په لفظ د غائب یعنی (السَّلَامُ عَلَى النَّبِيِّ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ) سره ویلې شی، لکه چه بخاری په باب الاستیذان صـ ۹۲۲ ج ۲ کښې د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په روایت سره نقل کړی دی چه تر کومې رسول الله ﷺ زمونږ په مینځ کښې موجود وو نو مونږ به داسې د (السلام علیك ایها النبی) لفظ سره سلام کولو. د بخاری نه علاوه دا روایت ابو عوانه په خپل صحیح کښې او محدث سراج او جوزقی او

ابو نعیم اصبهانی او بیهقی په متعددو طرقو سره له ابو نعیم نه چه د بخاري شیخ دې نقل کړې دی. (فَلَمَّا قُبِضَ قُلْنَا السَّلَامُ عَلَى النَّبِيِّ) لکه چه علامه سبکی د ابو عوانه په دې روایت باندې بحث کړې او لیکلی یې دی چه که دا خبره د صحابه کرامو نه ثابته وی نو بیا دا په دې خبره دلالت کوی چه د رسول الله ﷺ د وفات نه وروسته د (علیك ایها النبی) لفظ ویل واجب یعنی ضروری نه دی. (فتح الباری ص۲۵۸ ج۲)

**(رفع سبابه) یعنی په تشهد کښې د شهادت ګوته پورته کول** :- په تشهد کښې دشهادت ګوته پورته کول سنت دی او له صحیح احادیثو نه ثابت دی. په دې باندې د ائمه کرامو اتفاق دې. حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله، امام مالك رحمه الله، امام شافعی رحمه الله، امام احمد رحمه الله، امام ابو یوسف رحمه الله امام محمد رحمه الله ټول ددې خبرې قائل دی. (کبیری ص۳۲۸).

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يُشِيْرُ بِإِصْبَعِهِ إِذَا دَعَا وَلَا يُحَرِّكُهَا (وفی روایة عنه) فَلَا يُجَاوِزُ بَصَرَهُ إِشَارَتَهُ. (ابوداود ص۱۴۲ ج۲، نسائی ص۱۸۷ ج۱، مسند احمد ص۲ ج۴، بیهقی ص۱۳۲ ج۲)

**ترجمه** حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه فرمایی چه رسول الله ﷺ به له خپلې ګوتې سره اشاره فرمایله. اودې ته به یې حرکت نه ورکولو. او په یو روایت کښې دی چه د هغوی نظر به په دې اشاره باندې وو. ددینه به یې تجاوز نه کولو.

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ لَهِيَ اَشَدُّ عَلَى الشَّيْطَانِ مِنَ الْحَدِيْدِ يَعْنِي السَّبَابَةَ. (مسند احمد ص۱۱۹ ج۲)

**ترجمه** حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمایی چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی چه په سبابه (مسواکه ګوته) دا اشاره کول په شیطان باندې د اوسپنې (د تبر) نه زیات سخت وی.

**په تشهد کښې د ګوتې د پورته کولو طریقه** :- د ګوتې پورته کولو کومه طریقه چه فقهاء کرامو اختیار کړې ده، هغه دا چه کله تشهد ته کینی نود ښی لاس تلې به په ښی ورون او د چپ لاس تلې به په چپ ورون باندې کیږدې او د تشهد په وخت به د درې پنځوس 53 (عقد ثلاث و خمسین) حلقه جوړه کړې، یعنی وړه ګوته او ورسره نزدې ګوتې نه به حلقه جوړه کړې او د میخنې او غټې ګوتې نه به حلقه جوړه کړې او په مسواکه یعنی دشهادت په ګوته به اشاره وکړې.

په تشهد کښې به د (لا) په لفظ باندې ګوته پورته کړې او په (الا) باندې به یې ښکته کړی، او په همدې حالت باندې به تر آخر د مونځ پورې ورسیږې. احناف کرام دا طریقه غوره ګنی او دا د احنافو مرجحه طریقه ده، لکه چه امام حلبی لیکلی دی چه

(قَالَ الْمُرَادُ وَضْعُ الْاَكُفِّ ثُمَّ قَبْضُ الْاَصَابِعِ بَعْدَ ذٰلِكَ عِنْدَ الْاِشَارَةِ وَهُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ مُحَمَّدٍ فِي كَيْفِيَّةِ الْاِشَارَةِ قَالَ

يَقْبِضُ الْخِنْصَرَ وَالَّتِيْ تَلِيْهَا وَيُحَلِّقُ الْوُسْطٰى وَالْإِبْهَامَ وَيُشِيْرُ الْمُسَبِّحَةَ وَكَذَا عَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ فِي الْأَمَالِيْ (الى ان قال) وَصِفَةُ الْإِشَارَةِ عَنِ الْحَلْوَانِيْ أَنَّهُ يَرْفَعُ الْاِصْبَعَ عِنْدَ النَّفْيِ وَيَضَعُهَا عِنْدَ الْإِثْبَاتِ إِشَارَةً إِلَيْهِمَا). (كبيري ص ۳۲۸ شرح نقايه ص ۸۰ ج ۱)

**ترجمه**: پس مراد دادي چه اول به لاسونه په ورنونو باندې کيږدي، ددينه وروسته به د اشارې په وخت ګوتې راغونډې (يعنی حلقه به يې) کړي همدغه رنګې د اشارې د کيفيت په باره کښې د امام محمد رحمه الله نه روايت دې چه اوړه به ګڅې (وړه) ګوته او ددې سره څوا کښې ګوته راغونډه کړي بيا به د مينځنۍ ګوتې اودغټې ګوتې حلقه جوړه کړي او په سبابه ګوتې سره به اشاره وکړي، همدغه رنګې د امام ابو يوسف نه په کتاب الامالی کښې هم نقل ده ، او کبيري والا ليکلی دی چه د امام حلوانی نه د اشارې کيفيت داسې نقل دې چه ګوته به د نفی (يعنی لااله) په وخت پورته کړي او د اثبات يعنی (الاالله) په وخت به يې ښکته کړی دې دپاره چه په دواړو طريقو سره اشاره وشی

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ (مرفوعا) إِذَا جَلَسَ فِي الصَّلٰوةِ وَضَعَ كَفَّهُ الْيُسْرٰى عَلٰى فَخِذِهِ الْيُسْرٰى وَوَضَعَ كَفَّهُ الْيُمْنٰى عَلٰى فَخِذِهِ الْيُمْنٰى وَقَبَضَ أَصَابِعَهُ وَأَشَارَ بِإِصْبَعِهِ الَّتِيْ تَلِي الْإِبْهَامَ. (مصنف عبد الرزاق ص ۱۹۵ ج ۲، مسلم ۲۱۶ ج ۱، موطا امام مالك ص ۷۰، موطا امام محمد ص ۱۰۸)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به مونځ ته کيناستلو نوخپل ښې لاس به يې په ښی ورون او چپ لاس به يې په چپ ورون باندې کيښودلو او خپلې ګوتې به راغونډې کړې او د غټې ګوتې سره نزدې ګوتې باندې به يې اشاره وکړه

قَالَ مُحَمَّدٌ وَبِصَنِيْعِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ نَأْخُذُ وَهُوَ قَوْلُ أَبِيْ حَنِيْفَةَ.

**ترجمه**: حضرت امام محمد رحمه الله فرمايي چه مونږ د رسول الله ﷺ طريقه اختيارو، او دا د امام ابو حنيفه رحمه الله قول دې

عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ (مرفوعا) ثُمَّ قَعَدَ فَافْتَرَشَ رِجْلَهُ الْيُسْرٰى وَوَضَعَ كَفَّهُ الْيُسْرٰى عَلٰى فَخِذِهِ وَرُكْبَتِهِ الْيُسْرٰى وَجَعَلَ حَدَّ مِرْفَقِهِ الْأَيْمَنِ عَلٰى فَخِذِهِ الْيُمْنٰى ثُمَّ قَبَضَ ثَلَاثَةً مِنْ أَصَابِعِهِ وَحَلَّقَ حَلْقَةً ثُمَّ رَفَعَ إِصْبَعَهُ (محلى ص ۱۳۲ ج ۲)

**ترجمه**: حضرت وائل بن حجر رضي الله عنه نه روايت دې چه بيا رسول الله ﷺ په قعده باندې کيناستلو او چپه پښه يې لاندې خوره کړه، د چپ لاس تلې يې د چپې پښې په ورون او ځنګون باندې کيښودلو او ښې لاس يې د ښې پښې په ورون باندې کيښودلو، بيا يې درې ګوتې راغونډې کړې او حلقه يې جوړه کړه، او بيا يې يوه ګوته (مسواکه) پورته کړه او اشاره يې وکړه.

وَفِيْ رِوَايَةِ ابْنِ مَاجَةَ حَلَّقَ الْإِبْهَامَ وَالْوُسْطٰى وَرَفَعَ الَّتِيْ تَلِيْهِمَا. (ابن ماجه ص ۶۵)

**ترجمه**: او د ابن ماجه په روایت کښې دی چه د منځنۍ ګوتې او غټې ګوتې حلقه يې جوړه کړه او د هغې سره نزدې ګوتې (سبابه) سره يې اشاره وکړه.
حضرت امام شاه ولی الله دهلوی رحمه الله لیکلي دی (وموضع اشاره قول لااله است بحدیث مسلم و بجهت آنکه غرض از اشاره توحید است تا قول وفعل معاضد یکدیگر واقع شود). (مصفی شرح مؤطا ص۱۱۶ ج۱)
**ترجمه**: چه د اشارې مقام (الاالله) دې لکه څنګه چه د مسلم له روایت نه معلومیږی او بل له دې کبله هم چه غرض د اشارې نه د توحید الهی اظهار دې، دې دپاره چه قول او فعل په خپل مینځ کښې د یو بل سره مؤید او معاون شی.
دحضرت امام شافعی په نزد په تشهد کښې د ناستې په وخت به د ګوتو حلقه جوړه کړی او (اشهدان لااله الاالله) باندې به اشاره وکړې.
د اشارې نه پس به ګوته تر آخره پورې ولاړه وساتی.
دا ټولې طریقې صحیح دی پدې کښې چه په کومه طریقه باندې عمل وشی نو صحیح کیږی.
**مسئله**: دوو ګوتو سره اشاره مکروه ده. (کبیری ۳۲۸).
وَيُكْرَهُ اَن يشير بكلتا مسبحتيه (كبيری ص۳۲۸)
عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ اَنَّ رَجُلًا كَانَ يَدْعُوا بِاِصْبَعَيْهِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ اَحِّدْ اَحِّدْ. (نسائی ص۱۸۸ ج۱)
**ترجمه**: حضرت ابو هریره رضی الله عنه فرمایی چه یو سړی به په خپلو دوارو ګوتو سره اشاره کوله نو رسول الله ﷺ وفرمایل چه په یوې ګوتې سره اشاره کوه.
عَنْ سَعْدٍ قَالَ مَرَّ رَسُولُ اللهِ ﷺ وَاَنَا اَدْعُوا بِاِصْبَعَيَّ فَقَالَ اَحِّدْ اَحِّدْ وَاَشَارَ بِالسَّبَّابَةِ. (نسائی ص۱۸۸ ج۱)
**ترجمه**: حضرت سعد رضی الله عنه فرمایی چه د رسول الله ﷺ په ما تیریدل وشول، او ما په خپلو دوو ګوتو اشاره کوله، هغوی ﷺ وفرمایل چه په یوه ګوته اشاره کوه، او هغوی په مسواکه ګوته اشاره وکړه.
حضرت خفاف بن ایماء بن رخضه فرمایی چه ما رسول الله ﷺ ولیدلو چه هغوی ﷺ په خپلې یوې ګوتې سره اشاره کوله. (سنن الکبری للبیهقی ص۱۳۳ ج۲).
حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به په هغه ګوته اشاره کوله چه غټې ګوتې سره نزدې ده. (بیهقی ص۱۳۳ ج۲)
حضرت جابر رضی الله عنه نه همدغه شان نقل دی (مسند ابوعوانه ص۲۲۹ ج۲).
حضرت مالك بن نمیر خزاعی عن ابیه نه هم داسې نقل دی (ابوداؤد ص۱۳۲ ج۱، نسائی ص۱۸۷ ج۱، ابن

ماجه ص۶۶، سنن کبری ص۱۳۱ ج۲).

**یادونه** :- بعضې حضراتو مثلا امام ابن همام، حضرت مجدد الف ثاني، حضرت مولانا حسین علي او نورو نقشبندي حضراتو ته اشتباه شوې ده او هغوی اشاره في الصلوة د سکون خلاف ګرځولې ده، او پرېښودلې یې ده، او دا احادیث یې مؤل ګرځولي دي، حال دا چه داسې نه ده، په دې باره کښې صریح او صحیح احادیث او غیر متضاد احادیث موجود دي چه په هغې کښې څه تعارض هم نشته، او د علماء کرامو اتفاق هم په هغې باندې دې، لکه څنګه چه وړاندې تیر شو.

**مسئله** :- د فرضو، واجباتو او سنن مؤکده په اوله قعده کښې په تشهد باندې اضافه نه کول، بلکه تشهد به وایي او ودرېږي به. (هدایه ص۱، ج۱، شرح نقایه ص۸۰ ج۱، کبیري ص۳۳۰).

**مسئله** :- که په فرائضو او واجباتو کښې په اوله قعده کښې په تشهد باندې د «اللهم صل علی محمد» په اندازه اضافه وشي نو سجده سهو کول به لازم وي. (شرح نقایه ص۱۱۱ ج۱، کبیري ص۳۳۰).

**مسئله** :- که څلور رکعته نفل وي نو تشهد نه وروسته که ودرېږي نو هم جائز دي لیکن ډیر بهتر دادي چه د تشهد نه پس درود شریف او دعا هم ووایي. (درمختار ص۹۵ ج۱).

**دریم رکعت** :- که دریم رکعت وي نو ثناء او تعوذ به نه وایي. (درمختار ص۹۵ ج۱، کبیري ص۳۳۲)

**مسئله** :- په دریم او څلورم رکعت کښې صرف سورة فاتحه لوستل (په فرضو کښې) سنت دي. (هدایه ص۹۶ شرح نقایه ص۸۰ ج۱، کبیري ص۲۷۸).

لکه څنګه چه تفصیلي بحث یې په ارکان صلوة، باب قراءة مسائل کښې تیر شوې دي.

**مسئله** :- د فرضو په آخري دوو رکعتو کښې که تسبیح ووایي او یا خاموش واوسیږي نو هم مونځ صحیح کیږي. (هدایه ص۹۶ شرح نقایه ص۸۰ ج۱، کبیري ص۲۷۸).

**مسئله** :- د نفلو په دریم رکعت کښې د قراءة شروع کولو نه وړاندې د ثناء ویل بهتر او افضل دي. (کبیري ص۳۳۲، درمختار ص۹۵ ج۱).

**مسئله** :- وتر او سنت مؤکده او د نفلو په ټولو رکعتونو کښې سورة فاتحه او د هغې سره څه سورة یوځای کول ضروري دي. (کبیري ص۳۳۳).

**آخري قعده** :- په دوه رکعتیز مونځ کښې په دوو رکعتو پسې او په درې رکعتیز مونځ کښې په دریم رکعت پسې او په څلور رکعتیز مونځ کښې په څلورم رکعت پسې قعده اخیره کول، دا قعده د امام ابو حنیفه په نزد فرض ده، او په دې کښې هم د تشهد ویل واجب دي، لکه چه په ارکان صلوة او واجبات صلوة کښې د «په لفظ د سلام سره وتل» تر عنوان لاندې په بحث کښې سره له

حوالې نه تیرشوی دی.

**مسئله**:- په آخری قعده کښې د تشهد نه وروسته درود شریف ویل.

**د التحیات نه وروسته په مونځ کښې درود شریف ویل**:- دحضرت امام ابو حنیفه، امام مالك او جمهورو په نزد د تشهد نه وروسته درود شریف ویل سنت دی، او که د څه وجې نه پریښودلې شی نو مونځ صحیح کیږی، او د امام احمد او شافعی په نزد د درود ویل واجب دی، ددې په پریښودلو سره مونځ نه صحیح کیږی. **(نووی شرح مسلم مع مسلم ص۱۷۵ ج۱)**.

**د درود شریف فضائل**:- د الله ﷻ ارشاد دې چه:

(إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا). **(احزاب پ۲۲)**

**ترجمه**: بیشکه الله ﷻ رحمت کامله نازلوی په خپل نبی او دهغه فرشتې نزول د رحمت او دعا کوی د نبی دپاره، اې مؤمنانو! تاسو هم په نبی باندې درود او سلام ولیږئ.

قَالُوا أَبُو الْعَالِيَةِ صَلَوٰةُ اللّٰهِ ثَنَاءُهُ عَلَيْهِ عِنْدَ الْمَلٰئِكَةِ وَصَلَوٰةُ الْمَلٰئِكَةِ الدُّعَاءُ. **(بخاری ص۷۰۰ ج۲)**

**ترجمه**: حضرت ابو العالیه رحمه الله فرمایی چه دالله ﷻ د طرف نه د صلوة دا هغه تعریف دې چه الله ﷻ یی د خپل نبی ﷺ په هکله د فرشتو په وړاندې کوی او دفرشتو صلوة دعا ده.

وَرُوِيَ عَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ وَغَيْرِ وَاحِدٍ مِّنْ أَهْلِ الْعِلْمِ قَالُوا صَلَوٰةُ الرَّبِّ الرَّحْمَةُ وَصَلَوٰةُ الْمَلٰئِكَةُ الْاِسْتِغْفَارُ.

**(ترمذی ص۹۶)**

**ترجمه**: حضرت سفیان ثوری رحمه الله او ډیرو اهل علمو نه نقل دی، هغوی ویلی دی چه د رب ﷻ صلوة هغه رحمت او دفرشتو صلوة هغه استغفار دې.

اَلصَّلٰوةُ مِنَ الْعِبَادِ طَلَبُ الرَّحْمَةِ الشَّامِلَةِ لِخَيْرِ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ.

**ترجمه**: صلوة د بندګانو دطرف نه د هغه رحمت طلب دې چه د دنیا او آخرت خیر لره شامل وی د نبی کریم ﷺ ثناء او تعظیم له رحمت او عطوفت سره ضروری دې، له الله ﷻ نه رحمت غوښتل په خپل پیغمبر باندې، او ددې سره د هغوی په کورنۍ باندې لوئ قبولیت لری، په هغوئ باندې د هغوی لائق رحمت نازلیږی.

إِنَّمَا تَجِبُ الصَّلٰوةُ عَلَيْهِ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ فِي الْعُمُرِ مَرَّةً وَّاحِدَةً. **(تفسیر ابن کثیر ص۵۱۲ ج۱)**

**ترجمه**: په ټول عمر کښې یو ځل درود شریف ویل په هر مؤمن باندې فرض دی.

وَسُنَّةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ فِي التَّشَهُّدِ وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ وَأَحْمَدَ فَرْضٌ. **(شرح نقایه ص۸۱ ج۱، کبیری ص۳۳۳)**

**ترجمه**: او په تشهد کښې سنت دی دامام ابو حنیفه رحمه الله په نزد او امام احمد رحمه الله او د امام شافعی رحمه الله په نزد فرض دی.

وَمُسْتَحَبٌّ كُلَّمَا ذُكِرَ اِسْمُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ. (ابن کثیر ص۵۱۲ ج۳)

**ترجمه**: او کله چه هم د رسول الله ﷺ د اسم مبارك ذکر وکړې شي نو هغه وخت مستحب دی.

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ صَلُّوا عَلَيَّ فَاِنَّهَا زَكَاةٌ لَّكُمْ وَسَلُوا اللهَ لِيَ الْوَسِيْلَةَ فَاِنَّهَا دَرَجَةٌ. (تفسیر ابن کثیر ص۵۱۱ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی: په ما باندې درود وایئ ځکه چه دا ستاسو د پاره د پاکیزګئ باعث دې، او الله ﷻ نه زما د پاره وسیله غواړئ او هغه یو درجه ده (د الله پاك په نیزد باندې).

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ صَلّٰى عَلَيَّ وَاحِدَةً صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ عَشْرًا. (مسلم ص۱۷۵ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی: چا چه په ما باندې یو ځل درود وویلو، الله ﷻ به په ده باندې لس ځله رحمت نازل کړی.

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ مَنْ صَلّٰى عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاحِدَةً صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَمَلٰئِكَتُهُ سَبْعِيْنَ صَلٰوةً. (مسند احمد ص۲۰۲ ج۲ و تفسیر ابن کثیر ص۵۱۱ ج۳)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن عمرو ﷺ نه روایت دی چه چا په رسول الله ﷺ باندې یو ځل درود وویلو، نو الله ﷻ به په ده باندې اویا ځله رحمت نازل کړی، او او د ده د پاره به اویا فرشتې د نزول د رحمت دعا کوی.

ولعل هذا مخصوص بيوم الجمعة.

**ترجمه**: بعضې عالمانو ویلې دی چه دا خبره شاید د جمعې تر ورځې پورې خاص وی.

عَنْ عَلِيٍّ مرفوعا اَلْبَخِيْلُ مَنْ ذُكِرْتُ عِنْدَهُ فَلَمْ يُصَلِّ عَلَيَّ. (ترمذی ص۵۱۰، مسند احمد ص۲۰۱ ج۱، مستدرك حاکم ص۵۴۹ ج۱)

**ترجمه**: له حضرت علی ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی: بخیل هغه دې چه زما ذکر د هغه په وړاندې وشیلو هغه په ما درود ونه وایی.

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَوْلَى النَّاسِ بِيْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اَكْثَرُهُمْ عَلَيَّ صَلٰوةً. (ترمذی ص۴۹)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ روایت کوی چه رسول الله ﷺ فرمایی: چه بیشکه ماته نزدې انسان به د قیامت په ورځ هغه څوك وی چه په ما باندې زیات درود شریف وایی.

عَنْ اَنَسٍ (مرفوعا) مَنْ صَلّٰى عَلَيَّ صَلٰوةً وَّاحِدَةً صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ عَشْرَ صَلَوٰتٍ وَّحُطَّتْ عَنْهُ عَشْرُ خَطِيْئَاتٍ وَّرُفِعَتْ لَهُ عَشْرُ دَرَجَاتٍ. (نسائی ص۱۹۱ ج۱)

**ترجمه** : حضرت انس ﷺ نه روایت دي چه رسول الله ﷺ فرمایي : څوک چه په ما یو ځلي درود شریف ووایي ، نو الله ﷻ په ده باندې لس ځله رحمت نازلوي او دهغه به لس ګناهونه معاف ترلې شي، او دهغه لس درجې به اوچتولې شي .

عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ إِنَّ الدُّعَاءَ مَوْقُوفٌ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ لَا يَصْعَدُ مِنْهَا شَيْءٌ حَتّٰى تُصَلِّيَ عَلٰى نَبِيِّكَ .

(ترمذي ص ۹۶ و کذا عن علي)

**ترجمه** : له حضرت عمر فاروق ﷺ نه روایت دي هغوی فرمایي چه دعا د زمکې او آسمان په مینځ کښې موقوفه وي او پورته نه خی تر څو چه ته په خپل نبی ﷺ باندې درود ونه وایې (له حضرت علی ﷺ نه هم همداسې نقل دی) .

حضرت ابو طلحه ﷺ فرمایي چه رسول الله ﷺ یو ځل ډیر په خوشحالۍ سره تشریف راوړو، او ارشاد یې وفرمایلو چه : (اِنَّ مَلَكًا اَتَانِيْ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ اِنَّ رَبَّكَ يَقُوْلُ لَكَ اَمَا يُرْضِيْكَ اَنْ لَا يُصَلِّيَ عَلَيْكَ اَحَدٌ مِّنْ اُمَّتِكَ اِلَّا صَلَّيْتُ عَلَيْهِ عَشْرًا وَلَا يُسَلِّمُ عَلَيْكَ اِلَّا سَلَّمْتُ عَلَيْهِ عَشْرًا) ، (نسائی ص ۱۸۹ ج ۱، دارمی ص ۲۲۵ ج ۲)

**ترجمه** : بیشکه حضرت جبرئیل ﷺ ماته راغې او هغوی ماته ووېل چه ستا پروردګار فرمایي چه : اې محمده ! آیا ستاسو دا خوښه نه ده چه څوک هم ستاسو ﷺ له امت نه په تاسې درود ووایي نو زه به په هغوی لس ځله رحمت نازلوم، او ستاسو د امت نه چه څوک یو ځل په تاسو سلام ووایي نو زه به په هغوی لس ځله سلامتی نازلوم ؟ .

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ كُنْتُ اُصَلِّيْ وَالنَّبِيُّ ﷺ وَاَبُوْ بَكْرٍ وَعُمَرُ مَعَهُ فَلَمَّا جَلَسْتُ بَدَأْتُ بِالثَّنَاءِ عَلَى اللّٰهِ تَعَالٰى ثُمَّ الصَّلٰوةِ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ سَلْ تُعْطَهْ سَلْ تُعْطَهْ . (ترمذی ص ۱۱۰)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمایي چه ما مونځ کولو، رسول الله ﷺ او حضرت ابو بکر ﷺ او حضرت عمر ﷺ هم د هغوی ﷺ سره وو، کله چه زه د هغوی ﷺ سره کیناستم، نو ړومبې مې د الله ﷻ ثناء وکړه، بیا مې په رسول الله ﷺ باندې درود وویلو، بیا مې د خپل ځان د پاره دعا وکړه، نو رسول الله ﷺ وفرمایل : غواړه ! تاته درکولې شي، غواړه تاته درکولې شي، (یعني صحیح طریقه دې وکړه، دې طریقې سره که الله ﷻ نه غواړې نو هغه به یې درکوي)

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ لَا تَجْعَلُوْا بُيُوْتَكُمْ قُبُوْرًا وَلَا تَجْعَلُوْا قَبْرِيْ عِيْدًا وَصَلُّوْا عَلَيَّ فَاِنَّ صَلٰوتَكُمْ تَبْلُغُنِيْ حَيْثُ كُنْتُمْ (ابوداود ص ۲۷۹ ج ۱ مسند احمد ص ۳۶۷ ج ۲)

**ترجمه** : حضرت ابو هریره ﷺ فرمایي چه ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلي دي ، هغوی ﷺ فرمایي چه : اې خلقو ! خپلو کورونو نه قبرونه مه جوړوئ، (مراد دادې چه د عبادتونو نه یې مه خالي کوئ) او زما د قبر نه میله مه جوړوئ، او په ما باندې درود وایئ ځکه چه ستاسو درود ما ته رارسولې

کیږی ، هر ځائ کښې چه تاسو یاستئ.

عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ (مَرْفُوْعًا) اِنَّ لِلّٰهِ مَلٰئِكَةً سَيَّاحِيْنَ فِي الْاَرْضِ يُبَلِّغُوْنِي مِنْ اُمَّتِي السَّلَامَ. (نسائی ص۱۸۹ ج۱، دارمی ص۲۲۵ ج۲).

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی : بیشکه د الله ﷻ څه فرشتې داسې دی چه په زمکه کښې ګرځی او ماته زما د امت سلام رارسوی.

عَنْ عَبْدِالرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِي لَيْلٰى قَالَ لَقِيَنِي كَعْبُ ابْنُ عُجْرَةَ فَقَالَ اَلَا اُهْدِي لَكَ هَدِيَّةً سَمِعْتُهَا مِنَ النَّبِيِّ ﷺ فَقُلْتُ بَلٰى فَاَهْدِهَا لِي فَقَالَ سَاَلْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ كَيْفَ الصَّلٰوةُ عَلَيْكُمْ اَهْلَ الْبَيْتِ فَاِنَّ اللّٰهَ قَدْ عَلَّمَنَا كَيْفَ نُسَلِّمُ عَلَيْكَ قَالَ قُوْلُوا اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ اِلخ. (نسائی ص۱۹۰ ج۱، دارمی ص۲۵۱ ج۱، ابن ماجه ص۶۴، بخاری ص۴۷۷ ج۱).

**ترجمه** : حضرت عبدالرحمن ابن ابی لیلی رحمه الله فرمایی چه ماسره حضرت کعب ابن عجره ﷺ مخامخ شو، هغوی وفرمایل : آیا زه تاته یو ه هدیه در نکړم ؟ کومه چه ما د رسول الله ﷺ د ژبې مبارکې نه آوریدلې ده، ما عرض وکړو : ضروریی راکړئ، نو هغوی وفرمایل : مونږ د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه چه یا رسول الله ! په تاسو او ستاسو په اهل بیت باندې څنګه درود ولیږو. ځکه چه د سلام طریقه خو مونږ معلومه کړې ده، نو هغوی وفرمایل ووایه چه : (اللهم صل علی محمد) (تر آخره پورې)

اِبْنِ عَبَّاسٍ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ نَسِيَ الصَّلٰوةَ عَلَيَّ خَطِئَ طَرِيْقَ الْجَنَّةِ (ابن ماجه ص۶۵).

**ترجمه** : حضرت ابن عباس ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل : کوم سړې چه په ما درود ویل هیرکړی ، نو هغه په حقیقت کښې د جنت لاره هیره کړه.

اِبْنِ مَسْعُوْدٍ ﷺ قَالَ اِذَا صَلَّيْتُمْ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ فَاَحْسِنُوا الصَّلٰوةَ عَلَيْهِ فَاِنَّكُمْ لَا تَدْرُوْنَ لَعَلَّ ذٰلِكَ يُعْرَضُ عَلَيْهِ. (ابن ماجه ص۶۵).

**ترجمه** : حضرت ابن مسعود ﷺ فرمایی تاسو چه کله په نبی ﷺ باندې درود وایئ نو په ښې طریقې سره وایئ ځکه چه تاسو نه پوهیږئ ، شاید هغه درود په هغوی ﷺ باندې پیش کولې شی.

ابراهیم ابن ادهم بسنده عن علی ﷺ (مرفوعا) من صلی علی یوم الجمعة مائة مرة........

**ترجمه** : حضرت ابراهیم ابن ادهم په خپل سند سره د حضرت علی ﷺ نه روایت کړې دې هغه بیان کوی چه رسول الله ﷺ فرمایی : چا چه په ما باندې د جمعې په ورځ سل ځله درود و لیږلو، هغه به د قیامت په ورځ داسې راشی چه له هغه سره به داسې نور وی ، که هغه په ټول مخلوق تقسیم کړې شی نو ټولو ته به کافی شی.

قَالَ اُبَیٌّ فَقُلْتُ یَارَسُوْلَ اللہِ اِنِّیْ اُکْثِرُ الصَّلٰوۃَ عَلَیْکَ فَکَمْ اَجْعَلُ لَکَ مِنْ صَلَاتِیْ قَالَ مَا شِئْتَ قُلْتُ الرُّبُعَ قَالَ شِئْتَ فَاِنْ زِدْتَّ قُلْتُ فَالنِّصْفُ قَالَ مَاشِئْتَ فَاِنْ زِدْتَّ فَهُوَ خَیْرٌ قُلْتُ فَثُلُثَیْ قَالَ مَا شِئْتَ فَاِنْ زِدْتَّ فَهُوَ خَیْرٌ قُلْتُ اِجْعَلُ صَلَاتِیْ کُلَّهَا قَالَ اِذًا تُکْفٰی هَمَّکَ وَیُغْفَرُ ذَنْبُکَ هٰذَا حَدِیْثٌ حَسَنٌ. (ترمذی ص۲۷۵)

**ترجمه**: حضرت ابی بن کعب ﷺ فرمایی چه ما د رسول الله ﷺ په خدمت کښې عرض وکړوچه یا رسول الله! زه په تا باندې اکثردرود وایم، نوزه د هغې څومره مقدار مقرر کړم؟ هغوی ﷺ وفرمایل: څومره چه ته غواړې! ما عرض وکړو: (د خپل نفلی عباداتو په وختونو کښې) زه به څلورمه حصه وخت مقرر کړم، هغوی ﷺ وفرمایل څومره چه ته غواړې! او که ددینه دې زیات کړو نو هغه به ډیره بهتره وی، نو ما عرض وکړو چه یا رسول الله! زه به نیم وخت د دې دپاره مقرر کړم، نو هغوی ﷺ وفرمایل: څومره چه ته غواړې! که لدینه دې زیات کړو نو ډیره به بهتره وی. نوما عرض وکړو چه یا رسول الله! بیا به درې حصې وخت مقرر کړم. هغوی ﷺ وفرمایل څومره چه ته غواړې! او که زیات ییکړې نو هغه به بهتره وی، نو ما عرض وکړو چه یا رسول الله! بیا به زه د ټولو عباداتو وختونه په تاسو باندې د درود ویلو دپاره مقرر کړم، نو حضور ﷺ وفرمایل بیا به دغه وخت ستا ټول مقاصد (دینی او دنیاوی) پوره کړې شی، او ستا ګناهونه به معاف کړې شی.

**د درود شریف الفاظ**:- په احادیثو کښې د درود شریف ډیر الفاظ راغلی دی، کوم الفاظ هم چه ووایی نو صحیح دی.

عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِیْ لَیْلٰی قَالَ لَقِیَنِیْ کَعْبُ بْنِ عُجْرَۃَ فَقَالَ اَلَا اُهْدِیْ لَکَ هَدِیَّۃً سَمِعْتُهَا مِنَ النَّبِیِّ ﷺ فَقُلْتُ بَلٰی فَاَهْدِهَا لِیْ فَقَالَ سَاَلْنَا رَسُوْلَ اللہِ ﷺ فَقُلْنَا یَارَسُوْلَ اللہِ کَیْفَ الصَّلٰوۃُ عَلَیْکُمْ اَهْلَ الْبَیْتِ فَاِنَّ اللہَ قَدْ عَلَّمَنَا کَیْفَ نُسَلِّمُ عَلَیْکَ قَالَ قُوْلُوْا اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی اٰلِ مُحَمَّدٍ کَمَا صَلَّیْتَ عَلٰی اِبْرَاهِیْمَ وَعَلٰی اٰلِ اِبْرَاهِیْمَ اِنَّکَ حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ، اَللّٰهُمَّ بَارِکْ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی اٰلِ مُحَمَّدٍ کَمَا بَارَکْتَ عَلٰی اِبْرَاهِیْمَ وَعَلٰی اٰلِ اِبْرَاهِیْمَ اِنَّکَ حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ. (بخاری ص۴۷۷ج۱، مسلم ص۱۷۵ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالرحمن ابن ابی لیلی رحمة الله علیه فرمایی چه ماسره حضرت کعب ابن عجره ﷺ مخامخ شو، هغوی وفرمایل: آیا زه تاته یوه هدیه در نکړم کومه چه ما د رسول الله ﷺ د ژبې مبارکې نه آوریدلې ده؟ ما عرض وکړو ضرور یې راکړه! نو هغوی وفرمایل: مونږ د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه چه یا رسول الله! په تاسو او ستاسو په اهل بیت باندې څنګه درود ولیږو، ځکه چه د سلام طریقه خو مونږ معلومه کړې ده، نو هغوی وفرمایل چه: ووایه: (اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی اٰلِ مُحَمَّدٍ کَمَا صَلَّیْتَ عَلٰی اِبْرَاهِیْمَ وَعَلٰی اٰلِ اِبْرَاهِیْمَ اِنَّکَ حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ. اَللّٰهُمَّ بَارِکْ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی اٰلِ مُحَمَّدٍ کَمَا بَارَکْتَ عَلٰی

اِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ).

د درود شریف په مختلفو روایاتو کښې نور الفاظ هم راغلی دی لکه:

(اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اَزْوَاجِهٖ وَذُرِّيَّتِهٖ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَبَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اَزْوَاجِهٖ وَذُرِّيَّتِهٖ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ). (بخاری ص۴۷۷ ج۱، موطا امام محمد ص۱۶۰، مسلم ص۱۷۵ ج۱)

(اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدِنِ النَّبِيِّ وَاَزْوَاجِهٖ اُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ وَذُرِّيَّتِهٖ وَاَهْلِ بَيْتِهٖ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ). (ابوداود ص۱۴۱ ج۱)

**یو اشکال او دهغې جواب**:- په (صلوات) او (برکات) له حضرت ابراهیم ﷺ سره ولې تشبیه ورکړې شوه؟ حال دا چه رسول الله ﷺ خو د ټولونو افضل دې.

جواب:- چونکه حضرت ابراهیم خلیل الله ﷺ د رسول الله ﷺ جدّ امجد دې او د فضائلو په باب کښې له پلار او نیکه سره تشبیه مرغوب اوښه وی، نوځکه یې له هغه سره تشبیه ورکړه، او مشبه به کله د مشبه نه کمه هم وی، لکه چه له لاندې لیکلې شوی مثالونو نه معلومیږی:

(مَثَلُ نُوْرِهٖ كَمِشْكٰوةٍ). (النور آیت ۳۵).

❁ او ته نیکی کوه له خلقو سره لکه څنګه چه الله ﷻ احسان کړې دې له تا سره.

❁ د هغوی ﷺ مخ مبارك ځلیدلو په مثل د څوارلسمې شپې د سپوږمۍ د ځلیدلو.

❁ اې د ښائست خاونده او د ټولې نوع انسانی سرداره! ستاسو روښانه مخ نه البته په تحقیق سپوږمۍ روښانه کړې شوې ده.

د شهرت په بناء باندې چونکه د رحمتونو او برکتونو کیدل په حضرت ابراهیم او آل ابراهیم باندې په ټولو ملتونو کښې مشهور او واضح وو نو له همدې کبله له هغه سره تشبیه ورکړې شوه.

حضرت مولانا قاسم نانوتوی رحمه الله لیکلی دی:

په تشبیه فی النسبة کښې د نسبت مساوی کیدل ضروری دی، د منسوب الیه او منسوب برابریدل ضروری نه دی، لکه چه د یو له دوو سره هغه نسبت دې کوم چه د یو کروړ د دوو کروړو سره دې وعلی هذا القیاس لکه څنګه چه روح دې هغسې فرشتې دی، لکه څنګه چه روح دې هغسې بدن دې، لکه څنګه چه نمر دې هغسې ګرمی ده، لکه څنګه چه سپوږمۍ ده هغسې یې رڼا ده، لکه څنګه چه ونه ده هغسې یې میوه ده. (ملخصا مباحثه شاهجهانپور ص۵۹، ۶۰)

د نوعې په مساوات کښې دا لازم نه دی چه مراتب شخصی هم مساوی شی، لکه یو سوې چه [illegible] د [illegible] او [illegible] [illegible] سره زر احسئل درنه منظور ذی؟ او هغه زر (۱۰۰۰) سره زر اخلی. (مباحثه شاهجهانپور ص۶۱)

**مسئله** :- که د قرآن په قرائت اویا په خطبه کښې دهغه مبارك نوم راشي نو آوریدونکې به درود نه وایي ځکه چه قراءة او خطبه آوریدل واجب دی.
**مسئله** :- د قرآن په تلاوت کولو کښې هم که دهغه مبارك نوم راشي نو افضل دا دی چه درود ونه وایي ، د فارغیدلو نه وروسته یی اختیار دې.
**مسئله** :- د مونځ په اقامت او اذان کښې د (اشهدان محمدارسول الله) پۀ وخت په جواب کښې به همدا کلمه وایي او درود به نه وایي - دلته حکم همداسې دې.
**مسئله** :- د کتابت په وخت کښې به دهغه مبارك له نوم سره (صلعم) او یا (ص) نه لیکې بلکه پوره درود لیکل پکار دی.
**مسئله** :- دبعضې خلقو نوم محمد یا احمد وی او هغه له هغې سره (صلعم) او یا (ص) لیکی دا بی ادبی او زیاتې دې.
**مسئله** :- په شرح فقه اکبر کښې راغلی دی چه امام ابو حنیفه فرمایلی دی چه د نبیانو علیهم السلام او فرشتو نه سیوا به په بل چا هم درود نه وایي (دا داهل رفض او بدعتیانو شعار دې) او د تبعیت په شکل کښې جائز دی. (شرح فقه اکبر ص۲۰۴).

**د رحمت مصداق** :- په دنیاکښې د دین لوړوالي ، د دعوت اظهار ، د ذکر عظمت او (وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ) ، د شریعت باقی پاتې کیدل اوپه آخرت کښې د شفاعت قبلیدل ، د ثواب ضعف ، د فضل اظهار په تیروشو او وروستنیو ، اوتقدم علی كافة الانبياء والمرسلين والملئكة المقربين والناس اجمعين دې.

**د درود شریف نه وروسته دعاء** :- درود شریف نه وروسته دعاء وکړی لدې کبله چه د درود نه وروسته دعاء مستحب ده او مقبولیت مقبولیت ته ډیره زیاته نږدې ده.

(حديث ابن مسعود فى التشهد) ثُمَّ لِيَتَخَيَّرْ مِنَ الدُّعَاءِ أَعْجَبَهُ إِلَيْهِ فَيَدْعُوا. (بخاری ص۱۱۵ ج۱، مسلم ص۱۷۳ ج۱)
**ترجمه** : دحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه کوم حدیث چه د تشهد په باب کښې راغلې دې، په هغې کښې داهم راغلی دی چه رسول الله ﷺ وفرمایل : بیا به د دعاء نه خوښه کړی کومه چه ورته ښه معلومه وی او دعاء به وکړی.

**د دعاء فضائل** :

وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ. (مومن پ۲۴)
**ترجمه** : او ستاسو رب فرمایلی دی : مانه دعا غواړئ زه به ستاسو دعاء قبلوم ، بیشکه کوم

خلق چه زما د عبادت نه تکبر کوی هغوی به د ډیر ذلت سره په دوزخ کښې داخلیږی.

فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُونَ اِلَيْهِ اِنْ شَاءَ. (انعام آیت ۴۱ پ۷)

**ترجمه**: بیا هغه لرې کوی هغه (تکلیف) د کوم د پاره چه تاسو هغه رابلئ که چرې هغه وغواړی.

عَنْ نُعْمَانَ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِنَّ الدُّعَاءَ هُوَ الْعِبَادَةُ. (مسند احمد ص ۲۷۶ ج ۴)

**ترجمه**: حضرت نعمان بن بشیر رضی الله عنه فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: بیشکه دعاء، هغه خو عبادت دې.

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ لَّمْ يَدْعُ اللهَ عَزَّوَجَلَّ غَضِبَ عَلَيْهِ. (تفسیر ابن کثیر ص ۸۵ ج ۴، بحواله مسند احمد)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره رضی الله عنه فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: چا چه د الله جل جلاله په وړاندې دعاء ونکړه، الله جل جلاله له هغه څخه نا راضه کیږی.

عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ فِيْمَا يَرْوِيْ عَنْ رَبِّهٖ عَزَّوَجَلَّ قَالَ اَرْبَعُ خِصَالٍ وَاحِدَةٌ مِّنْهُنَّ لِيْ وَوَاحِدَةٌ لَّكَ وَوَاحِدَةٌ فِيْمَا بَيْنِيْ وَبَيْنَكَ وَوَاحِدَةٌ فِيْمَا بَيْنَكَ وَبَيْنَ عِبَادِيْ. فَاَمَّا الَّتِيْ لِيْ فَتَعْبُدُنِيْ وَلَا تُشْرِكُ بِيْ شَيْئًا وَاَمَّا الَّتِيْ لَكَ عَلَيَّ فَمَا عَمِلْتَ مِنْ خَيْرٍ جَزَيْتُكَ بِهٖ وَاَمَّا الَّتِيْ بَيْنِيْ وَبَيْنَكَ فَمِنْكَ الدُّعَاءُ وَعَلَيَّ الْاِجَابَةُ وَاَمَّا الَّتِيْ بَيْنَكَ وَبَيْنَ عِبَادِيْ فَاَرْضِ لَهُمْ مَا تَرْضٰى لِنَفْسِكَ. (تفسیر ابن کثیر ص ۸۵ ج ۴)

**ترجمه**: حضرت انس رضی الله عنه د نبی ﷺ نه روایت کوی چه الله جل جلاله فرمایی: څلور خصلتونه دی یو زما دپاره، یو ستا دپاره، یو زما او ستا په مینځ کښې، او یو ستا او زما دبندګانو په مینځ کښې، په هرحال کوم خصلت چه زما دپاره دې هغه دا دې چه ته خاص زما عبادت وکړې، او هیڅ څیز زما سره شریك جوړ نکړې، او هغه خصلت کوم چه ستا دپاره دې هغه دا دې چه ته هم څه د نیکئ عمل کوې، نو زه به د هغې بدل تاته درکوم، په هرحال هغه خصلت کوم چه زما او ستا په مینځ کښې دې هغه دادې چه ستا د طرف نه دعاء کول وی او زما دطرفنه د هغې قبلول وی، او هغه خصلت کوم چه ستا او زما د بندګانو په مینځ کښې دې هغه دا دې چه ته دهغوی د پاره هغه خبره خوښه کړې کومه چه د خپل خان دپاره خوښوې.

**ماثوره دعاګانې او د دعا الفاظ**:- د درود شریف نه وروسته دې دقرآن دالفاظو او یا له هغې سره په مشابهو الفاظو سره دې دعا وکړی، یا هغه دعاء چه د رسول الله ﷺ نه یا د سلفو نه منقول دی هغه دې وکړی.

وَيَدْعُوْ بِمَا يُشْبِهُ اَلْفَاظَ الْقُرْاٰنِ وَالْاَدْعِيَةِ الْمَاثُوْرَةِ وَلَا يَدْعُوْ بِمَا يُشْبِهُ كَلَامَ النَّاسِ (هدایه ص ۲، ج ۱، شرح

نقایه ص۸۱ ج۱، کبیری ص۳۳۵)

**ترجمه**: دعاء به په داسې الفاظو سره غواړې چه د قرآن سره مشابه وی او د منقولې دعا سره مشابه وی او په داسې الفاظو سره دې دعاء نه غواړی چه د خلقو د کلام سره مشابه وی.

یو څو دعا ګانې لاندې لیکلې کیږی:

((رَبِّ اجْعَلْنِيْ مُقِيْمَ الصَّلٰوةِ وَمِنْ ذُرِّيَّتِيْ رَبَّنَا وَتَقَبَّلْ دُعَاءِ، رَبَّنَا اغْفِرْلِيْ وَلِوَالِدَيَّ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ يَوْمَ يَقُوْمُ الْحِسَابُ)).

**ترجمه**: اې زما ربه! مونږ مونځ قائموونکی جوړ کړه او زما له اولاد څخه هم اې ربه زمونږ! او زمونږ دعاء هم قبوله کړه، اې زمونږ ربه! ما ته هم بښنه وکړه او زما مور او پلار ته هم بښنه وکړه او مؤمنانو ته هم بښنه وکړه د حساب په ورځ باندې.

((رَبَّنَا اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ)).

**ترجمه**: اې ربه زمونږ! راکړه مونږ ته په دنیا کښې نیکی او په آخرت کښې نیکی او مونږ وساته د دوزخ له عذاب نه.

((عَنْ اَبِيْ بَكْرِنِ الصِّدِّيْقِ ﷺ اَنَّهٗ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ عَلِّمْنِيْ دُعَاءً اَدْعُوْا بِهٖ فِيْ صَلَاتِيْ قَالَ قُلْ. اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ ظُلْمًا كَثِيْرًا وَلَا يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اَنْتَ فَاغْفِرْلِيْ مَغْفِرَةً مِّنْ عِنْدِكَ وَارْحَمْنِيْ اِنَّكَ اَنْتَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ)).

(بخاری ص۱۱۵ ج۱، مسلم ص۳۴۷ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابو بکر صدیق ﷺ نه روایت دې چه هغوی د رسول الله ﷺ په وړاندې عرض وکړو چه اې د الله ﷺ رسوله! ما ته څه دعا وښایه! دې د پاره چه زه په مونځ کښې په هغې سره دعاء کوم. نو رسول الله ﷺ وفرمایل چه: داسې وایه: ((اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ ظُلْمًا كَثِيْرًا وَلَا يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اَنْتَ فَاغْفِرْلِيْ مَغْفِرَةً مِّنْ عِنْدِكَ وَارْحَمْنِيْ اِنَّكَ اَنْتَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ)).

**ترجمه**: یا الله! ما له خپل ځان سره ډیر ظلم کړې دې او ګناهونو بغیر له تانه بل څوك نشی بښلې، نو بښنه وکړه ما ته له خپل طرف نه، او په ما رحم وکړه، بیشکه ته بښونکې او مهربان یې.

عَنْ عَائِشَةَ رضی الله عنها اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يَدْعُوْ فِي الصَّلٰوةِ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَاَعُوْذُبِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيْحِ الدَّجَّالِ وَاَعُوْذُبِكَ مِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَفِتْنَةِ الْمَمَاتِ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِكَ مِنَ الْمَاْثَمِ وَالْمَغْرَمِ.

فَقَالَ لَهٗ قَائِلٌ مَا اَكْثَرَ مَا تَسْتَعِيْذُ مِنَ الْمَغْرَمِ فَقَالَ اِنَّ الرَّجُلَ اِذَا غَرِمَ حَدَّثَ فَكَذَبَ وَاِذَا وَعَدَ اَخْلَفَ.

(بخاری ص۱۱۵ ج۱، مسلم ص۲۱۷ ج۱، موطا امام مالك ص۱۹۸، عن ابن عباس)

**ترجمه**: ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به په مونځ کښې

دا دعا کوله، «یا الله زه ستا په ذات باندې پناه غواړم د قبر له عذاب څخه، او پناه غواړم په تا سره د دجال له فتنې څخه او پناه غواړم په تا سره د ژوند او مرګ له فتنې څخه، یا الله! زه په تا سره پناه غواړم له ګناه او قرض څخه»

یو سړي وویل چه تاسو د قرض نه اکثر پناه غواړئ؟ نو هغوی ﷺ وفرمایل: بیشکه سړې چه کله قرضدار شي، نو دروغ خبره کوی او چه کله وعده وکړی نو خلاف ورزی کوی

عَنْ عَلِيٍّ (مرفوعا) ثُمَّ يَكُونُ مِنْ اٰخِرِ مَا يَقُولُ بَيْنَ التَّشَهُّدِ وَالتَّسْلِيْمِ: ((اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ مَا قَدَّمْتُ وَمَا اَخَّرْتُ وَمَا اَسْرَرْتُ وَمَا اَعْلَنْتُ وَمَا اَسْرَفْتُ وَمَا اَنْتَ اَعْلَمُ بِهٖ مِنِّيْ اَنْتَ الْمُقَدِّمُ وَاَنْتَ الْمُؤَخِّرُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ)). (مسلم ص۲۶۳ ج۱، بخاری ص۹۳۵ ج۲)

**ترجمه**: حضرت علی رضی الله عنه نه نقل دی چه رسول الله ﷺ به د تشهد او د سلام په مینځ کښې دا دعا غوښتله «یا الله! ما ته ښښنه وکړې دهغه څه چه ما مخکې کړی دی اودهغه څه چه وروسته یې کوم، اودهغه څه چه پټ دی اودهغه څه چه ښکاره دی، اودهغه څه چه ما اسراف کړې دې اودهغه څه چه ته په هغې باندې له ما څخه ډیر ښه پوهیږې، ته وړاندې کوونکې او ته وروستو کوونکې یې، نشته لائق د عبادت مګر صرفه ته یې»

**سلام**:- کله چه مونځ ختم شي نواول به ښي طرفته (السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته) ووایی او بیابه چپ طرفته سلام ووایی او مونځ نه به فارغ شي. (هدایه ص۱۰۲ ج۱، شرح نقایه ص۸۱ ج۱، کبیری ص۳۳۶).

عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ اَرٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يُسَلِّمُ عَنْ يَّمِيْنِهٖ وَعَنْ يَّسَارِهٖ حَتّٰى اَرٰى بَيَاضَ خَدِّهٖ. (مسلم ص۲۱۶ ج۱، ابن ابی شیبه ص۲۹۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت سعد رضی الله عنه فرمایي چه ما به لیدل چه رسول الله ﷺ ښی طرفته او چپ طرفته سلام ګرځولو تر دې چه ما به د رسول الله ﷺ د مخ مبارك سپینوالې ولیدلو.

عَنْ اِبْنِ مَسْعُوْدٍ رضی الله عنه اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يُسَلِّمُ عَنْ يَّمِيْنِهٖ وَعَنْ يَّسَارِهٖ اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ. اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ. (ترمذی ص۶۹)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به ښی او چپ طرفته (السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته) ویلو سره سلام ګرځولو.

**مسئله**:- که بغیر دلفظ د سلام ویلو نه یو سړې پاڅیدلو او لاړو نو مونځ به دوباره راګرځوی، او که دا سې نه وی نو ګنهګار به وی ځکه چه لفظ دسلام ویلو سره د مونځ نه وتل واجب دی او د واجبو په پرېښودلو سره مونځ راګرځول واجب دی.

**مسئله**:- امام دې دسلام په وخت د هغه مقتدیانو نیت کوی چه ښی او چپ طرفته وی او د

فرشتو او کرام کاتبین ، او حفظه فرشتو ته لو نیت به کوی، او مقتدی به هر طرفته د مونځ کوونکو او د فرشتو او کوم طرفته چه امام وی د هغه نیت به کوی ، او که په امام پسې بالکل مخامخ وی نو دوارو طرفونو ته دې د امام نیت کوی او که منفرد وی نو هغه به د کرام کاتبین او د حفظه فرشتو نیت کوی او بس. (هدایه ص۷۰ ج۱، شرح نقایه ص۸۱ ج۱، کبیری ص۳۳۷).

**مسئله** :- د امام سلام اړولو نه وروسته د مقتدیانو طرفته مخ کرځول مستحب دی.

عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ ﷺ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا صَلَّى صَلٰوةً أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ. (بخاری ص۱۱۷ ج۱)

**ترجمه** : حضرت سمره بن جندب ﷺ فرمایي چه رسول الله ﷺ به سلام کرځولو سره زمونږ طرفته م مبارك وکرځولو او متوجه کیدلو به.

**مسئله** :- د امام د پاره د مقتدیانو طرفته مخ کول ښی او چپ دوارو طرفونو ته درست دی یو طرفته لازم کول ګناه ده.

قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ لَا يَجْعَلُ أَحَدُكُمْ لِلشَّيْطَانِ شَيْئًا مِّنْ صَلَاتِهِ يَرَى أَنَّ حَقًّا عَلَيْهِ أَنْ لَا يَنْصَرِفَ إِلَّا عَنْ يَمِيْنِهِ لَقَدْ رَأَيْتُ النَّبِيَّ ﷺ كَثِيْرًا يَنْصَرِفُ عَنْ يَسَارِهِ. (بخاری ص۱۱۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمایي چه په تاسو کښې دې څوك په خپل مونځ کښې د شیطان دپاره حصه نه جوړوی، هغه به دا خیال وکړی چه په ده باندې ضروری ده چه مونځ ختم کړی نو ښی طرفته دې مخ کړی ، ځکه چه ما رسول الله ﷺ ډیر کرته لیدلې دې چه چپ طرفته یی هم مخ کرځولو

وَكَانَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ يَنْفَتِلُ عَنْ يَمِيْنِهِ وَعَنْ يَسَارِهِ وَيَعِيْبُ عَلٰى مَنْ يَتَوَخّٰى أَوْ مَنْ تَعَمَّدَ الْإِنْفِتَالَ عَنْ يَمِيْنِهِ.

(بخاری ص۱۱۸ ج۱)

**ترجمه** : او حضرت انس ﷺ به هم ښی او چپ طرفته کرځیدلو او په هغه چابه یی بد ویل چه چا به صرف ښی طرفته د کرځیدو قصد کولو.

**دمونځ نه وروسته دعا** :- دمونځ نه وروسته دعاء مسنون او مستحب ده او ډیره مقبوله ده.

عَنْ أَبِي أُمَامَةَ ﷺ قَالَ قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللهِ أَيُّ الدُّعَاءِ أَسْمَعُ قَالَ جَوْفُ اللَّيْلِ الْآخِرِ وَدُبُرَ الصَّلَوَاتِ الْمَكْتُوْبَاتِ.

(ترمذی ص۲۰۰ وقال هذا حدیث حسن)

**ترجمه** : حضرت ابو امامه ﷺ فرمایي چه رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړې شوه چه د الله ﷻ په دربار کښې کومه دعا زیاته قبلیږی؟ هغوی ﷺ وفرمایل : هغه دعا زیاته قبلیږی چه د شپې په آخری حصه کښې وغوښتلې شی، او هغه دعاء چه د فرض مونځ نه وروسته وغوښتلې شی

عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يَقُوْلُ إِذَا صَلَّى الصُّبْحَ حِيْنَ يُسَلِّمُ اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْئَلُكَ عِلْمًا نَافِعًا وَرِزْقًا

وَاسِعًا وَعَمَلًا مُتَقَبَّلًا. (مسند احمد ص ۳۰۵ ج ۶، ابن ماجه ص ۶۶، ونیل الاوطار ص ۳۲۰ ج ۲، وقال رجاله ثقات)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت ام سلمه رضی الله عنها نه روایت دې چه رسول الله به کله د سحر مونځ وکړو او سلام به یې وګرځولو نو (اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ عِلْمًا نَافِعًا وَرِزْقًا وَاسِعًا وَعَمَلًا مُتَقَبَّلًا) دعا به یې کوله.

اما بخاري رحمه الله هم باب قائم کړې دې چه : الدعاء بعد الصلوة. (بخاری ص ۹۳۷ ج ۲)

**په دعا کښې لاسونه پورته کول** :- په دعا کښې لاسونه پورته کول هم سنت او مستحب دی.

عَنْ سَلْمَانَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ اِنَّ اللهَ يَسْتَحْيِيْ مِنَ الْعَبْدِ اَنْ يَّرْفَعَ اِلَيْهِ يَدَيْهِ فَيَرُدَّهُمَا خَائِبَتَيْنِ. (مستدرك حاكم ص ۵۳۵ ج ۱، وقال صحيح واقره الذهبي.)

**ترجمه** : حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایي : بیشکه الله جل جلاله شرم کوی ددې خبرې نه چه بنده لاس پورته کړی د دعا دپاره اوهغه بیا خالی او ناکام واپس کړی.

عَنْ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ اِذَا مَدَّ يَدَيْهِ فِي الدُّعَاءِ لَمْ يَرُدَّهُمَا حَتّٰى يَمْسَحَ بِهِمَا وَجْهَهٗ. (مستدرك حاكم ص ۵۳۶ ج ۱)

**ترجمه** : امیر المؤمنین حضرت عمر رضی الله عنه فرمایي چه رسول الله ﷺ به کله د دعاء دپاره لاسونه پورته کړل نو هغه به یې نه واپس کول ترڅو چه به یې په مخ نه وو را ښکلی.

عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ (مرفوعا) اِذَا سَاَلْتُمُ اللهَ فَاسْئَلُوْهُ بِبُطُوْنِ اَكُفِّكُمْ وَلَا تَسْئَلُوْهُ بِظُهُوْرِهَا وَامْسَحُوْا بِهِمَا وُجُوْهَكُمْ. (مستدرك حاكم ص ۵۳۶ ج ۱، ابن ماجه ص ۲۷۵)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه روایت دې کله چه تاسو د الله جل جلاله نه سوال کوئ نو دلاسونو تلی مخامخ نیولو سره سوال کوئ. د لاسونو شاګانې مخې ته نیولو سره سوال مه کوئ او بیا د دعا نه وروستو لاسونه په مخ باندې راکاږئ.

عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى الْاَسْلَمِيِّ قَالَ رَاَيْتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ الزُّبَيْرِ وَرَاٰى رَجُلًا رَافِعًا يَدَيْهِ يَدْعُوْ قَبْلَ اَنْ يَّفْرُغَ مِنْ صَلَاتِهٖ فَلَمَّا فَرَغَ مِنْهَا قَالَ لَهٗ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ لَمْ يَكُنْ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَتّٰى يَفْرُغَ عَنْ صَلَاتِهٖ. (اعلاء السنن ص ۲۰۲ ج ۳، بحواله ابن شیبه قال رجاله ثقة)

**ترجمه** : محمد بن یحیی اسلمی فرمایي چه ما حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه ولیدلو او یو سړې مې هم ولیدلو له مونځ فارغیدلو نه وړاندې یې خپل لاسونه د دعاء لپاره پورته کړل کله چه هغه سړې د دعاء څخه فارغ شو نو حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه ورته وویل چه : رسول الله ﷺ به د دعا دپاره لاسونه ترهغې نه پورته کول ترڅو چه به مونځ نه فارغ شوې نه وو.

عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ اَنَّهٗ قَالَ مَا مِنْ عَبْدٍ بَسَطَ كَفَّيْهِ فِيْ دُبُرِ كُلِّ صَلٰوةٍ ثُمَّ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اِلٰهِيْ وَاِلٰهَ براهيم

واسحق ویعقوب واله جبرائیل ومیکائیل واسرافیل اسئلك ان تستجیب دعوتی فانی مضطر وتعصمنی فی دینی فانی مبتلی وتنالنی برحمتك فانی مذنب وتنفی عنی الفقر فانی متمسکن الا کان حقا علی الله الاَّ یرد یدیه خائبتین. (عمل الیوم ولیلة ص ۲۱ لابن سنی)

**ترجمه**: حضرت انس ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: چه کوم بنده خپل لاسونه د مونځ نه وروسته خوروی او بیا دا دعا ووایی: «اې زما پروردګاره! او اې د ابراهیم، اسحاق، یعقوب، جبرئیل، میکائیل او اسرافیل (علیهم السلام) پروردګاره! زه له تا نه دا سوال کوم چه زما دعاء قبوله کړه ځکه چه زه محتاج یم او زما په دین کښې حفاظت وکړه ځکه چه زه په امتحان کښې یم او ما ته خپل رحمت نصیب کړه ځکه چه زه ګنهګار یم، او زما نه فقر لرې کړه ځکه چه زه مسکین یم، نو څوك چه دغه شان دعاء وکړی نو الله پاك دهغه لاسونه خالی نه واپس کوی.

عَنِ الْأَسْوَدِ الْعَامِرِيِّ عَنْ أَبِيهِ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ ﷺ الْفَجْرَ فَلَمَّا سَلَّمَ انْصَرَفَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ وَدَعَا.

(اعلاء السنن ص ۲۰۷، ج ۳ بحواله ابن ابی شیبه)

ترجمه: حضرت اسود عامری د خپل پلار نه روایت کوی چه ما له رسول الله ﷺ سره د سحر مونځ وکړو کله چه هغوی سلام وګرځولو نو راوګرځیدلو او دواړه لاسونه یی پورته کړل او دعاء یی وکړه.

امام بخاری باب قائم کړې دې چه (رَفْعُ الْأَيْدِي فِي الدُّعَاءِ). (بخاری ص ۹۳۸ ج ۲).

**ترجمه**: یعنی په دعا کښې دواړه لاسونه پورته کول.

د حضرت انس ﷺ او حضرت اسود ﷺ روایت اګر چه په اعتبار د سند سره ضعیف دې. لیکن وړاندې څلور روایتونه ددې مؤید دی چه صحیح او حسن دی. هسې خو ضعیف روایت هم د استحباب کیدلو دپاره کافی دې.

**یادونه**:- د مونځ نه وروسته دعاء او په دعاء کښې لاسونه پورته کول سنت او مستحب دی که څوك داسې ونکړی نو په ده باندې څه ملامتیا نشته.

**د مونځ نه وروسته اذکار**:- په احادیثو کښې چه د مونځ نه وروسته کوم اذکار ثابت دی په هغې کښې مونږ یو څه لاندې ذکر کوو:

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ قَالَ كُنْتُ أَعْرِفُ انْقِضَاءَ صَلٰوةِ رَسُوْلِ اللهِ بِالتَّكْبِيْرِ. (بخاری ص ۱۱۶ ج ۱، مسلم ص ۲۱۷ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت ابن عباس ﷺ فرمایی چه ما به د رسول الله ﷺ د مونځ اختتام په الله اکبر سره پیژندلو.

عَنْ مُغِيْرَةَ بْنِ شُعْبَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يَقُوْلُ فِيْ دُبُرِ كُلِّ الصَّلٰوةِ مَكْتُوْبَةٍ. لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ لَهُ

الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ. اَللّٰهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا اَعْطَيْتَ وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ . (بخاری ص۱۱۷ ج۱، مسلم ص۲۱۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت مغیره ابن شعبه ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ به د هر فرض مونځ نه پس دا ویل چه : «له الله نه سیوا بل معبود نشته ، هغه یواځې دی او شریك نلری ، هغه لره بادشاهی ده او هغه لره ثناء ده او هغه په هرڅه باندې قادر دی . یا الله ! هغه څه چه ته یی ورکوی دهغې منع کوونکې نشته، اوهغه څه چه ته یی منع کوې دهغې ورکوونکې نشته، اونه څوك فائده ورکولې شی دکوم بخت خاوند ته ، دهغه بخت ستا په اختیار کښې دی» .

د هشام ابن عروه په روایت کښې دا راغلی دی چه حضرت ابن زبیر ﷺ به د هر مونځ نه وروسته چه کله را وګرځیدلو نو دا کلمات به یی ویل - او دا به یی هم ویل چه رسول الله ﷺ هم دې کلماتو سره د هر مونځ نه وروسته دعاء کوله :

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ، لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَلَا نَعْبُدُ اِلَّا اِيَّاهُ لَهُ النِّعْمَةُ وَلَهُ الْفَضْلُ وَلَهُ الثَّنَاءُ الْحَسَنُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُوْنَ. (مسلم ص۲۱۸ ج۱)

**ترجمه** : له الله نه سیوا بل معبود نشته ، هغه یواځې دی او شریك نلری ، هغه لره بادشاهی ده او هغه لره ثناء ده او هغه په هرڅه باندې قادر دی ، له بدو څخه د لرې کیدلو او نیکی کولو توفیق ورکوونکې صرف الله تعالی دی له هغه نه سیوا بل معبود نشته اومونږ صرف دهغه عبادت کوو ، له هغه سره نعمتونه دی او له هغه سره فضل دی اوهغه لره ښکلې اوښائسته ثناء ده ، له هغه نه سیوا بل معبود نشته، مونږ هغه لره خالص اطاعت کوونکی یو اګر که کافران هغه نه خوښوی .

د مسلم پدې روایت نقل کولو کښې صاحب د مشکوة نه غلطی شوې ده او هغوی ته اشتباه شوې ده، صاحب د مشکوة د مسلم په حوالې سره (بصوته الاعلی) (چه رسول الله ﷺ به په اوچت آواز سره دا دعا کوله) لفظ هم بیان کړې دی حال دا چه دا لفظ د مسلم نه دی .

البته د عبدالله بن عباس ﷺ په روایت کښې دا راغلی دی چه مونږ به د رسول الله ﷺ د مونځ اختتام د تکبیر نه پیژندلو ، او په بل روایت کښې راغلی دی چه (رَفْعُ الصَّوْتِ بِالذِّكْرِ حِيْنَ يَنْصَرِفُ مِنَ الْمَكْتُوْبَةِ كَانَ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ) یعنی په اوچت آواز سره ذکر (تکبیر یا استغفار) سره معلومیده، چه مونځ اوس ختم شو .

له ذکر نه همدغه تکبیر ، استغفار او تهلیل مراد دی، عام اذکار مراد نه دی ، امام نووی شارح د مسلم فرمایی چه محدث ابن بطال او نورو محدثین دا وایی چه ټول اصحاب مذاهب متبوعه او

نور علماء په دې متفق دی چه په اوچت آواز سره د تکبیر ذکر مستحب نه دې او امام شافعی دا په جهر احیانا د تعلیم په غرض باندې محمول کړې دې، دا نه چه همیشه به یی دمونځ دختمیدو نه وروسته ذکر بالجهر کولو، بلکه لږ وخت دپاره به یی د تعلیم په غرض سره کولو. دې دپاره چه خلق یی وپیژنی، اوهمدارنګه د بیان د تعلیم د پاره به کله حضرت عمر رضی الله عنه «سبحانك اللهم ـ الخ» هم په ښکاره لوستله. نووی مع مسلم ص۱۷۲ ج۱) لکه څنګه چه مسلم (ص۱۷۲ ج۱) کښې موجود دی، په دې کښې دوام نه وو، څکه چه دائمی طور باندې ثناء هم په پټ آواز باندې مسنون ده. او لکه څنګه چه رسول الله ﷺ په پټو مونځونو کښې احیاناً بعضې آیتونه ښکاره لوستل، دې دپاره چه خلقو ته معلومه شی، (ویسمعنا الآیة احیانا) په مسلم ۱۸۵ ج۱ کښې موجود دې)

د امام شافعی مطلب دادې چه د مونځ نه وروسته ښکاره تکبیر وغیره ویل لپاره د بیان د تعلیم وو، بالجهر ذکر دائمی سنت نه وو، نو پټ لوستل یی زیات بهتر دی.

عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ مُعَقِّبَاتٌ لَا يَخِيبُ قَائِلُهُنَّ أَوْ فَاعِلُهُنَّ دُبُرَ كُلِّ صَلوةٍ مَكْتُوبَةٍ ثَلَاثٌ وَثَلَاثُونَ تَسْبِيحَةً ثَلَاثٌ وَثَلَاثُونَ تَحْمِيدَةً وَأَرْبَعٌ وَثَلَاثُونَ تَكْبِيرَةً. (مسلم ص ص۲۱۹ ج۱)

**ترجمه**: حضرت کعب ابن عجره رضی الله عنه فرمایی چه رسول الله ﷺ به فرمایل چه: له فرض مونځونو نه وروسته چه دغه راتلونکې دعاګانې څوك وایی نو دهغې ویونکې به هیڅکله نامراد نشی، درې دیرش ځله (سبحان الله)، درې دیرش ځله (الحمدلله) او څلور د یرش ځله تکبیر (الله اکبر).

وَأَيْضًا عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ كُلُّهَا ثَلَاثٌ وَثَلَاثُونَ وَتَمَامُ الْمِائَةِ. لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، غُفِرَتْ خَطَايَاهُ وَإِنْ كَانَ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ، (مسلم ص۲۱۹ ج۱)

**ترجمه**: او لدینه علاوه د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه دا ټول تسبیحات (سبحان الله، الحمدلله، الله اکبر) در ې دیرش ځله» او یو ځل (لا اله الا الله وحده لا شریك له له الملك وله الحمد وهو علی کل شیء قدیر) چا چه دا وویل، نودده ګناه به وبخښلې شی، اګر چه د بحر د زګ په اندازه وی.

وَفِي رِوَايَةِ الْبُخَارِيِّ تُسَبِّحُونَ دُبُرَ كُلِّ صَلوةٍ عَشْرًا وَتَحْمَدُونَ عَشْرًا وَتُكَبِّرُونَ عَشْرًا. (بخاری ص۹۳۷ ج۲)

**ترجمه**: او دبخاری شریف په روایت کښې دی چه د هر مونځ نه وروسته لس ځله تسبیح او لس ځله تحمید او لس ځله تکبیر وایئ.

عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رضی الله عنه قَالَ أَمَرَنِي رَسُولُ اللهِ ﷺ أَنْ أَقْرَأَ بِالْمُعَوِّذَاتِ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلوةٍ. (مسند احمد ص۱۵۵ ج۴ ابوداود ص۲۱۳ ج النسائی ص۱۹۲ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه فرمایی چه رسول الله ﷺ ماته وفرمایل چه زه باید دفرض مونځ

نه وروسته معوذتین (قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس) او د استعاذې دعا، ووایم.

عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قُلْتُ لِاَبِي سَعِيْدٍ هَلْ حَفِظْتَ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ شَيْئًا يَقُوْلُهُ بَعْدَ مَا سَلَّمَ قَالَ نَعَمْ كَانَ يَقُوْلُ. سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ وَسَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ. (مصنف ابن ابی شیبه ص۳۰۲ ج۱ مجمع الزوائد ص۱۳۶ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره ﷺ فرمایی چه ما حضرت ابو سعید خدری ﷺ ته وویل: آیا تا د رسول الله ﷺ نه څه څیز یاد کړې دې چه هغه به رسول الله ﷺ له مونځ نه د سلام ګرځولو نه وروسته کولو، نو هغوی وفرمایل آو! رسول الله ﷺ به دا دعاء کوله: «د خپل پروردګار پاکی بیان کړه! چه د عزت خاوند دې له هغه څه نه چه دوئ یې وایي، او د الله په پیغمبرانو دې سلامتی وی، او تولو تعریفونه الله لره دی چه د تولو جهانونو پروردګار دې».

## دمونځ نه وروسته آیة الکرسی او دهغې فضیلت:-

عَنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ قَرَءَ اٰيَةَ الْكُرْسِيِّ فِي دُبُرِ الصَّلٰوةِ الْمَكْتُوْبَةِ كَانَ فِي ذِمَّةِ اللهِ اِلَى الصَّلٰوةِ الْاُخْرٰى. (مجمع الزوائد ص۱۴۸ ج۲ بحواله طبرانی فی الکبیر باسناد حسن)

**ترجمه**: حضرت حسن بن علی ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: چا چه د فرض مونځ نه وروسته آیة الکرسی ولوستله، هغه به تر بل مونځ پورې د الله ﷺ په پناه کښې وی.

عَنْ اَبِي اُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ قَرَءَ اٰيَةَ الْكُرْسِيِّ دُبُرَ كُلِّ صَلٰوةٍ مَكْتُوْبَةٍ لَمْ يَمْنَعْهُ مِنْ دُخُوْلِ الْجَنَّةِ اِلَّا الْمَوْتُ. (آثار السنن ص۱۲۶ ج۱ بحواله نسائی وصححه ابن حبان)

**ترجمه**: حضرت ابو امامه ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: چا چه آیة الکرسی د هر فرض مونځ نه وروسته ولوستله، نو د هغه د پاره د جنت د داخلیدو نه صرف مرګ مانع دې.

عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ قَرَءَ حٰمٓ الْمُؤْمِنَ اِلَى اِلَيْهِ الْمَصِيْرُ وَاٰيَةَ الْكُرْسِيِّ حِيْنَ يُصْبِحُ حُفِظَ بِهِمَا حَتّٰى يُمْسِيَ وَمَنْ قَرَءَ بِهِمَا حِيْنَ يُمْسِيْ حُفِظَ بِهِمَا حَتّٰى يُصْبِحَ. (ترمذی ص۴۰۸)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم سړې چه د سورة حم مؤمن، رومبنی دری آیتونه تر (الیه المصیر) پورې وویل، او آیة الکرسی یې ولوستله، نو ددې دواړو په برکت به ددې سړی حفاظت تر شپې پورې وشی، او چا چه دا دواړه د شپې په حصه کښې وویل، نو ددې په برکت به تر سحره پورې دده حفاظت وکړې شی.

عَنْ اُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَا اَبَا الْمُنْذِرِ اَتَدْرِيْ اَيُّ اٰيَةٍ مِّنْ كِتَابِ اللهِ تَعَالٰى مَعَكَ اَعْظَمُ قُلْتُ اَللهُ وَرَسُوْلُهُ اَعْلَمُ قَالَ يَا اَبَا الْمُنْذِرِ اَتَدْرِيْ اَيُّ اٰيَةٍ مِّنْ كِتَابِ اللهِ تَعَالٰى مَعَكَ اَعْظَمُ قُلْتُ. اَللهُ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ

قَالَ فَضَرَبَ فِي صَدْرِيْ قَالَ لِيَهْنِكَ الْعِلْمَ يَا أَبَا الْمُنْذِرِ. (مسلم ص ۲۷۱ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت ابی بن کعب ﷺ فرمایي چه رسول الله ﷺ ماته وفرمایل: اې ابو المنذر! آیا تاته معلومه نده چه کوم آیت په کتاب الله کښې (په اعتبار د درجې سره) تر ټولو لوئ دې، ما عرض وکړو الله ﷻ او دالله رسول ﷺ ښه پوهیږي. رسول الله ﷺ بیا فرمایل اې ابو المنذر! آیا تاته معلومه نده چه په کتاب الله کښې د ټولو نه لوئ آیت کوم یو دې؟ نو ما عرض وکړو چه (الله لا اله الا هو الحی القیوم) نو هغوی ﷺ زما په سینه باندې خپل لاس مبارک کیښودلو، او وې فرمایل: تاته دې مبارک وی دغه علم، اې ابو المنذر!

وَفِي رِوَايَةٍ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ اَنَّ لَهَا لِسَانًا وَشَفَتَيْنِ تُقَدِّسُ الْمَلِكَ عِنْدَ سَاقِ الْعَرْشِ. (مسند احمد ص ۱۴۱،۱۴۲ ج ۵)

**ترجمه**: او په یو روایت کښې راغلی دی چه په هغه ذات قسم چه د چا په قبضه کښې زما ساه ده، ددې آیة الکرسی به ژبه وی او شونډې به یې وی، او د مؤمن په حق کښې به د عرش سره دالله ﷻ تقدیس بیانوی.

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ وَكَّلَنِيْ بِحِفْظِ زَكٰوةِ رَمَضَانَ فَاَتَانِيْ اٰتٍ فَجَعَلَ يَحْثُوْ مِنَ الطَّعَامِ فَاَخَذْتُهٗ (الی ان قال) قَالَ دَعْنِيْ اُعَلِّمْكَ كَلِمَاتٍ يَنْفَعُكَ اللّٰهُ بِهَا اِذَا اَوَيْتَ اِلٰى فِرَاشِكَ فَاقْرَأْ اٰيَةَ الْكُرْسِيِّ حَتّٰى تَخْتِمَ الْاٰيَةَ فَاِنَّكَ لَنْ يَّزَالَ عَلَيْكَ مِنَ اللّٰهِ حَافِظٌ وَّلَا يَقْرَبُكَ شَيْطٰنٌ حَتّٰى تُصْبِحَ فَخَلَّيْتُ (الی ان قال) قَالَ اَمَا اِنَّهٗ صَدَقَكَ وَهُوَ كَذُوْبٌ وَتَعْلَمُ مَنْ تُخَاطِبُ مُنْذُ ثَلَاثِ لَيَالٍ وَقُلْتُ لَا قَالَ ذَاكَ الشَّيْطٰنُ. (بخاری ص ۳۱۰ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره ﷺ فرمایي چه زه رسول الله ﷺ په رمضان کښې د زکوة (صدقه فطر) د حفاظت د پاره مقرر کړم، د شپې په وخت یو راتلونکې ماته راغې او د غلې نه یې لاسونه ډکول او پورته کول یې، نو ما هغه ونیولو، او ورته مې وویل چه زه تا د رسول الله ﷺ په خدمت کښې پیش کوم، تردې چه هغه وویل ما پریږده! زه به تاته داسې کلمات وښایم چه په هغې سره به الله ﷻ تا ته ډیره فائده ورسوی، اوهغه دادی چه کله ته خپلې بسترې ته راشې نو آیت الکرسی ولوله. دالله ﷻ د طرفه به ستاد پاره یو نګران مقرر شي او شیطان به درته تر سحره نزدې نشي راتللې، (نو راوی وایي چه ما هغه پریښودلو) ....... رسول الله ﷺ وفرما ئیل: هغه (شیطان) تاته خبره رښتیا وکړه لیکن په خپله هغه دروغژن دې، او وې فرمایل چه: دا درې ورځې تا له چا سره خبرې کړې وې، هغه شیطان وو.

د حاکم په روایت کښې دا هم دی چه دې خبیث رښتیا ویلې دی.

وَفِي حَدِيْثِ اَبِيْ ذَرٍّ ﷺ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَيُّمَا اُنْزِلَ عَلَيْكَ اَعْظَمُ قَالَ اٰيَةُ الْكُرْسِيِّ اَللّٰهُ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ.

(مسند احمد ص ۱۷۸ ج ۵)

**ترجمه**: حضرت ابوذر ﷛ عرض وکړو چه یا رسول الله ﷺ په تاسو باندې دټولو نه لوئ آیت کوم یو نازل شوې دې، هغوی ﷺ وفرمایل: (الله لا اله الا هو الحی القیوم).

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷛ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ سُورَةُ الْبَقَرَةِ فِيهَا آيَةٌ سَيِّدَةُ آيِ الْقُرْآنِ لَا تُقْرَءُ فِي بَيْتٍ وَفِيهِ شَيْطَانٌ إِلَّا خَرَجَ مِنْهُ. آيَةُ الْكُرْسِيِّ. (مستدرك حاكم ص۵۶۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره ﷛ فرمایي چه رسول الله ﷺ وفرمایل: په سورة بقره کښې یو آیت دې چه د قرآن پاك د ټولو آیتونو سردار دې، په کوم کور کښې چه هغه ولوستلې شی، شیطان د هغه ځائ نه تښتی او هغه آیت آیة الکرسی دې.[1]

---

[1] - **د آیة الکرسی د فضیلت وجه**:- ذکر او علم همیشه د مذکور او معلوم تابع وی، معلوم او مذکور که اشرف وی نو ذکر او علم به یې هم اشرف وی، په معلو ماتو کښې د ټولو نه زیات اشرف د الله ﷻ ذات اقدس او د هغه صفات کمال او اسماء مبارکه دی، او هر هغه کلام اشرف دې چه په صفات جلال او کبریائی باندې مشتمل وی، (لکه څنګه چه د ټولو نه اشرف او اعلی درجه، د سعادت روحانیه او نفسانیه ده، او دټولونه ادنی او اخس درجه د سعادت جسمانیه بدنیه او د خارجیه ده).

په قرآن کریم کښې توحید، دتوحید دلائل، د شرك رد، د کفر او نفاق بدوالې، قصص او احکام، امثال او مواعظ، وعد او وعید، انذار او تبشیر ټولو څیزونو ذکر شته دې، په سورة بقره کښې د منافقینو او کفارو ذکر دې. د بنی اسرائیلو قباحتونه تفصیلی ذکر دی، د مؤمنانو کاملانو اعلی صفات، احکام د قبلې، د حج، مونځ، زکوة، روژه، د شرابو قباحت، د حیض او طلاقو مسائل، جهاد فی سبیل الله، د ایلاء او قسم وغیره ذکر شته دې. ددې ټولو خلاصه او مقصد د انسانی نفوسو تهذیب دې، او هغوی د رذائلو نه پاکول دی او دا خیره کله خو په مواعظو سره حاصلیږی او کله په صبر سره او کله په تکلیفونه او مشقتونه برداشت کولو سره، او کله په تعمیل د احکامو سره.

په اصل کښې د نفس تهذیب د علم مقدمه ده، علم کمال دې، د شرف لوړ مقام دې، او بیا په علومو کښې اشرف علوم الهیه دی، (چه په هغې کښې د ذات او صفات الهی، او د لاهوت او جبروت او ملکوت او عالم امثال وغیره ذکر وی)، او د قرآن ړومبې مقصود هم علم دې، او د علم اهم ترینه حصه د ذات الهی، صفات الهی او د افعال الهی علم دې، او دتوحید خداوندی معرفت دې، او په دې آیت الکرسی کښې د همدې خبرو ذکر دې.

**په آیت الکرسی کښې د کلماتو شمیر**:- په آیة الکرسی کښې کلمات (الفاظ) پنځوس او حروف یی یوسل او اتیا (۱۸۰) دی، او په دې کښې دالله ﷻ د توحید یوولس دلائل دی:

**اول دلیل**:- (لا اله الا هو) یعنی د الله ﷻ نه سیوا هیڅوك معبود نشته، نه وړوکې، نه لوئ، نه څوك خدا، او نه څوك خدا زاده، نه اوتار، نه نافع، نه ضار، نه خالق، نه معطی، نه مالك.

**دویم دلیل** :- (اَلْحَيُّ) :- قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رضي الله عنه أَعْظَمُ أَسْمَاءِ اللهِ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ، هُوَ الْحَيُّ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ يُحْيِيْ وَيُمِيْتُ.

ترجمه : حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چه د الله ﷻ په نومونو کښې د ټولو نه لوئ نومونه يعنی د ذاتی نوم نه وروسته (اَلْحَيُّ الْقَيُّوْمُ) دی.

د الله ﷻ ارشاد دې چه هغه (اَلْحَيُّ) ذات دې ، له هغه نه سيوا هيڅوك معبود نشته ، هغه ژوندی کول کوی، او مړه کول کوی .

په اصل کښې بنيادی صفات الهيه درې دی : (خالق،قيوم،مميت) هندوان ددې په مقابله کښې برهما (خالق منی) دشنو (قيوم منی) او شيو (مميت) منیء او نصاری پلار (الحی يا حيات) او زوئ (علم يا عليم) او روح القدس (اراده) منی، ليکن مؤمن دا ټول صفات الهيه د ذات د باری تعالی سره مختص کوی او دهغه لپاره يی تسليموی .

**دریم دلیل** :- (اَلْقَيُّوْمُ) : اَلَّذِيْ هُوَ قَائِمٌ بِنَفْسِهٖ وَمُقِيْمٌ لِغَيْرِهٖ وَالْقَائِمُ بِتَدْبِيْرِ خَلْقِهٖ بِالْإِيْجَادِ وَإِيْصَالِ الْأَرْزَاقِ إِلَيْهِ وَجَمِيْعِ الْحَوَائِجِ .

ترجمه : هغه په خپل ذات کښې خود بخود قائم دې او نورو څيزونو لره قائمونکې دې، او قائمونکې دې د خپل مخلوق تدبير لره په ايجاد کولو سره ،او بيا په رزق رسولو او د هغوی ټولو ضرورياتو لره په پوره کولوسره .

وَقَالَ الْإِمَامُ الرَّاغِبُ الْأَصْفَهَانِيُّ اَلْقَيُّوْمُ الْقَائِمُ الْحَافِظُ لِكُلِّ شَيْءٍ وَالْمُعْطِيْ لَهٗ مَا بِهٖ قِوَامُهٗ .

ترجمه : او امام راغب اصفهانی رحمه الله ويلی دی چه «قيوم» هغه دې چه قائم وی او حفاظت او نگرانی کونکې وی د هرڅيز او هر هغه څيز ورکونکې وی چه په هغې باندې د هغه قوام وی . (يعنی څه څيز سره چه د هغه بقاء ده)،او دڅه څيز وجود او قيام وجود ، او دوام وجود نشی متصور کيدې، بغير د قيوم نه .

**څلورم دلیل** :- (لَا تَأْخُذُهٗ سِنَةٌ وَّلَا نَوْمٌ) : وَالسِّنَةُ مُقَدِّمَةٌ لِلنَّوْمِ وَالنَّوْمُ غَشْيَةٌ ثَقِيْلَةٌ تَهْجُمُ عَلَى الْقَلْبِ تَنْقَطِعُ عَنْهُ مَعْرِفَةُ الْأَشْيَاءِ وَالسِّنَةُ تَكُوْنُ فِي الرَّأْسِ وَالنُّعَاسُ فِي الْعَيْنِ .

ترجمه : نه نيسی هغه پرکالی او نه خوب .(سنة)(پرکالی) د خوب مقدمه وی، او خوب يو درونډ قسم بې هوشی ده چه په زړه باندې وی،او د زړه رشته او تعلق چه د کومو څيزونو د معرفت سره وی هغه قطع کوی،او پرکالی په سر کښې وی او نعاس په سترګو کښې وی .

يعنی الله ﷻ هميشه بيدار ، دائمي طور باندې له ټولو نه خبردار،په ټولو پوهه، په هر څه قادر او دهرڅه ليدونکې دې؛ سستی، غفلت ، ستړی کيدل ، د کوتاهئ وغيره تصور ،هيڅ قسم د هغه ذات ته نه رسيږی، هغه د دغه ټولو څيزونو نه ماوراء دې، (لا كما قال اليهود) نه هغسې څنګه چه يهود تصور کوی؛ بلکه مخلوق لره د هغه تصور ناممکن دې .

**پنځم دلیل** :- (لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ) : او خاص د هغه دپاره دی څه چه په آسمانونو کښې دی او څه چه په زمکه کښې دی ، هر څيز د هغه ملکيت دې او هغه د هغې مالك او متصرف دې.

**شپږم دلیل** :- (مَنْ ذَا الَّذِيْ يَشْفَعُ عِنْدَهٗ إِلَّا بِإِذْنِهٖ) : او څوك دی چه د هغه دحکم نه بغير سفارش وکړی.

يعنی په سفارش کښې هم شرك وی، لکه څنګه چه جبريه مشرکين د شفاعت اعتقاد لری .

**اووم دليل** :- يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ :هغه پوهه دې په هغه خبرو چه د خلقو وړاندې دی او هغه چه د خلقود نظر نه شاته دی (يعنی علم محيط هم صرف د الله ﷻ خاصه ده).

**اتم دليل** :- (وَلَا يُحِيطُونَ بِشَيْءٍ مِنْ عِلْمِهِ إِلَّا بِمَا شَاءَ) :او هغوی د هغه معلوماتو په هيڅ څيز احاطه نشی کولې مگر په هغې چه الله ﷻ يې وغواړی.

يعنی الله ﷻ چه خپل مخلوق ته څومره حصه علم ورکول وغواړی هغه د هغوی حصه وی).

**نهم دليل** :- (وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ) اودهغه حکومت د زمکې او آسمانونو نه فراخه دې

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: (عِلْمُهُ) ،حضرت ابن عباس ؓ د کرسی تفسير په علم سره کړې دې.

**لسم دليل** :- (وَلَا يَئُودُهُ حِفْظُهُمَا) او ددې دواړو په ساتنه هغه هيڅ کله نه ستړې کيږی.

(څکه چه ستړې کيدل د ضعف علامت دې او الله ﷻ ددينه پاک دې)

**يوولسم دليل** :- (وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ) : اَلْعَلِيُّ بِذَاتِهِ وَالْعَظِيمُ بِصِفَاتِهِ

ترجمه : او هغه الله ﷻ اوچت او عظمت والا دې، اوچت دې د خپل ذات په اعتبار سره او عظيم دې د خپلو صفاتو په اعتبار سره.

الله ﷻ په صفات کمال سره متصف دې او هيڅ قسم نقصان هم د هغه په بارگاه کښې لار نشی موندلې.

(اَللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ) .(الرعد آيت ۱۶).

ترجمه : يعنی الله ﷻ د هر څيز خالق دې (باقی ټول کائنات مخلوق دی، او خالق صرف يو دې).

(وَاللّٰهُ خَلَقَكُمْ وَمَا تَعْمَلُونَ). (الصفت آيت ۹۶).

ترجمه : يعنی الله ﷻ تاسو پيدا کړی ياستئ او ستاسو د افعالو او اعمالو خالق هم هغه دې.

(د اعمالو کولو اسباب : قوت، طاقت او توفيق صرف الله ﷻ عطا ورکوی، بنده خو صرف کسب کونکې دې)

(هَلْ مِنْ خَالِقٍ غَيْرُ اللّٰهِ يَرْزُقُكُمْ مِنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ فَأَنّٰى تُؤْفَكُونَ) . (فاطر آيت ۳).

ترجمه : آيا د الله نه سيوا بل هم څوک خالق شته چه تاسو ته د آسمان او زمکې نه روزی مهيا کړی ؟ دهغه نه سيوا هيڅوک معبود: او اله نشته نو دا تاسو کوم خوا اړولې روان ياستئ.

**شرک فی الذات** :- شرک خو يا په ذات کښې وی لکه د شر او خير خالق، يزدان او اهرمن منل او د دوو صانعانو اعتقاد درلودل. لکه څنگه يې چه ثنويه او مجوسن وغيره منی، دوئ د نور او ظلمت (تيارې) خالق جدا جدا منی.

**شرک فی الافعال** :- يا شرک په افعالو کښې وی يا په عباداتو کښې شرک وی، لکه د غيرالله دتقرب دپاره رکوع، سجده، طواف او نياز وغيره، په حقيقت کښې غيرالله دپاره قربانی پيش کول، خود کشی، دختر کشی، اولاد کشی، دا فعلی شرک دې، پدې سلسله کښې د الله ﷻ ارشادات بالکل واضح دی.

وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ خَشْيَةَ إِمْلَاقٍ نَحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَإِيَّاكُمْ (الاسراء آيت ۳۱).

او خپل اولاد د فقر د ويرې نه مه قتلوئ. مونږ دوئ او تاسو ته رزق ورکولو.

دا د پيدايش کنترول کول، خاندانی منصوبه بندی وغيره ټول د شرک شاخونه دی، اروپا امريکا وغيره

تش په نوم مهذب ملکونه د مشکلاتونه د بچ کیدو دپاره بهترین تدبیر خودکشي ګڼي. حال دا چه د الله ﷻ ارشاد دي چه: ﴿وَلَا تَقْتُلُوا أَنفُسَكُمْ إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا﴾. (النساء آیت ۲۹).

ترجمه: او خپل ځانونه مه قتلوئ بیشکه الله ﷻ په تاسو باندي ډیر مهربان دي.

اکثر شرك په صفاتو کښې وی، علم محیط، قدرت تامه، مشیت، تصرف، تاثیر وغیره کښې یا شرك فی التسمیه (په نوم ایښودو) کښې وی لکه عبدالمسیح عبدالعزی وغیره.

یا شرك په حلف یعنی قسم کولو کښې وی

مَنْ أَقْسَمَ بِغَيْرِ اللَّهِ فَقَدْ أَشْرَكَ (ترمذی ص ۲۳۰).

ترجمه: چا چه د الله ﷻ د نوم نه سیوا د بل چا په نوم باندي قسم وکړو (په شرط ددي چه په هغې کښې دهغه تعظیم مراد وی کوم چه د الله ﷻ حق او خصوصیت دي) نو هغه شرك وکړو.

یا شرك په استعانت کښې وی یعنی د ما فوق الاسباب د غائبانه حاجتونو طلب کول. که د مړو نه وی او یا له غائب څخه وی. یا شرك په نداء کښې وی لکه یا غوث، یا علی، یا پیر، یا خواجه وغیره. یا د غیر الله دتقرب دپاره د ځناورو ذبح کولو کښې شرك وی، لکه د چا په قبر، نهر، ونه، مکان وغیره باندي ذبح کول. یا په تعویذ کښې شرك وی (چه غیرو ته پکښې نداء وی)

یا په اخبار (یعنی د غیبو خبرونو معلومولو کښې) لکه د کاهن. نجومی. دست شناس نه خبرونه معلومول.

**د «الله» د لفظ تشریح**:- الله (وحده لاشریك له) دا دعوی ده، او په خپله دلیل هم دي، ځکه چه د «الله ﷻ» لفظ علم دي، د ذات واجب الوجود دپاره چه د ټولو صفات کمال جامع دي. د نقص او زوال د ټولو عیوبو او نقائصونه مبراء او منزه دي.

وَلَا يُطْلَقُ إِلَّا عَلَيْهِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى. وَاشْتِقَاقُهُ مِنَ الْأُلُوهِيَّةِ وَهِيَ الْعِبَادَةُ وَالتَّأَلُّهُ التَّعَبُّدُ أَيِ الَّذِي يَحِقُّ لَهُ الْعِبَادَةُ أَوْ مِنَ الْوَلَهِ أَيِ التَّحَيُّرِ. الَّذِي تَتَحَيَّرُ الْعُقُولُ فِي كُنْهِ عَظَمَتِهِ أَوْ مِنْ قَوْلِهِمْ أَلِهْتُ إِلَى فُلَانٍ أَيْ فَزِعْتُ لِأَنَّ الْخَلْقَ يَأْلَهُونَ إِلَيْهِ فِي حَوَائِجِهِمْ أَوْ مِنْ أَلِهْتُ إِلَيْهِ أَيْ سَكَنْتُ إِلَيْهِ أَيِ الْخَلْقُ يَسْكُنُونَ إِلَى ذِكْرِهِ. أَلْقُلُوبُ تَطْمَئِنُّ بِذِكْرِهِ وَالْأَرْوَاحُ تَسْكُنُ إِلَى مَعْرِفَتِهِ.

أَوْ مِنْ لَاهَ أَيِ احْتَجَبَ أَيْ هُوَ الْمُحْتَجِبُ بِالْكَيْفِيَّةِ عَنِ الْأَوْهَامِ. اَلظَّاهِرُ بِالدَّلَائِلِ وَالْأَعْلَامِ.

(احْتَجَبَ ارْتَفَعَ لِأَنَّهُ مَحْجُوبٌ عَنْ إِدْرَاكِ الْأَبْصَارِ وَمُرْتَفِعٌ عَنْ كُلِّ شَيْءٍ)

ترجمه: او دغه پاك نوم (الله) بغیر د پاك ذات نه په بل هیچا یی اطلاق نه کیږی، ددي لفظ اشتقاق یا په حیله د الوهت له مادي څخه دي، چه معنی یی [illegible] او (تأله) تعبد یعنی عبادت کولو ته وایی. یعنی د هغه پاك ذات عبادت چه دعبادت مستحق دي، یا ددي لفظ اشتقاق [illegible] له، له ماي څخه دی معنی حیرانتیا چه ټول عقلونه دهغه نه دهغه دعظمت او لویی له حقیقت څخه عاجز او ناتوان دی

یا ددي اشتقاق د «أَلِهْتُ» نه دي او ددي معنی ده د ویریدلو سره رجوع کول، یا ددي اشتقاق د (أَلِهْتُ إِلَيْهِ) نه دي. یعنی د هغه طرف ته سکون نیول. ټولو مخلوقاتو ته دده له ذکر سره سکون حاصلیږی، زړونه د ده له ذکر سره اطمینان نیسی، او روحونه دده د معرفت طرفته سکون او راحت حاصلوی. یا ددي اشتقاق د (لَاهَ) نه دي، یعنی حجاب کښې کیدل، ځکه چه هغه د کیفیت سره له اوهامو نه په حجاب کښې دي. یعنی

پوشیده او پټ دي) او د دلائلو او اعلامو نه ظاهر دې. او د احتجب مطلب پورته کیدل هم دی ځکه چه هغه د سترګو او نظرونو نه په حجاب کښې دې او دهر څیز نه (په مرتبه کښې) اوچت او پورته دې.

حضرت شیخ عبدالکریم جیلی (دانسان کامل مصنف) فرمائي چه اسم هغه څیز دې چه په فهم کښې معین. په خیال کښې مصور، په وهم کښې حاضر، په فکر کښې مرتب، په حافظه کښې محفوظ، په عقل کښې موجود، او تر مسمی پورې بغیر ددې نه رسیدل نشي کیدې، ټول اسماء او صفات ذدې اسم د لاندې دی. الله ﷻ پورې ددې اسم نه علاوه د رسیدلو هیڅ لار نشته. دا اسم الله ﷻ د انسان د پاره آئینه (هنداره) جوړه کړې ده کله چه انسان په دې آئینه کښې وکتل نود (كَانَ اللهُ وَلَا شَيْءَ مَعَهُ) (یعنی الله ﷻ وو او د هغه سره بل هیڅ څیز نه وو).

حقیقت په ده فراخه شو.

دا پاک اسم خماسی (یعنی پنځه حرفي) دې. له الف نه مراد مرتبه د احدیت ده، چه کثرت کښې فنا ده، له هیڅ وجې نه هم په دې کښې د کثرت وجود نشته:

كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ. (القصص پاره ۲۰ آیت ۸۸)

ترجمه: هر څیز هلاکیدونکې دې یا بالفعل هلاک دې بغیر د هغه د ذات اقدس نه.

او له (اول لام) نه مراد جلال دې، لکه (تَبَارَكَ اسْمُ رَبِّكَ ذِي الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ). (الرحمن آیت ۷۸)

ترجمه: ستا د رب پاک نوم برکتی دې چه د عظمت او بزرګئ درلودونکې دې.

د دویم لام نه مراد مطلق جمال دې. (إِنَّ اللهَ جَمِيلٌ يُحِبُّ الْجَمَالَ) (مسلم ص۶۵ ج۱)

ترجمه: الله ﷻ جمیل (ښائسته دې او جمال (ښائست) خوښوی.

د (الف - لام) تعداد په ابجدوا کښې یو اویا (۷۱) دي

وَالْحُجُبُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْخَلْقِ قَرِيبٌ مِّن سَبْعِينَ

او پردې چه د هغه او د مخلوق په مینځ کښې حائلې دی هغه هم تقریباً اویاو ته نزدې دی.

دویم الف چه په کتابت (لیکلو) کښې ساقط دې، په هغې سره اشاره ده د هغه کمال طرف ته چه د هغې څه حد او نهایت نشته

طلب نهایتي آنکه نهایتی ندارد  بنگاه ناشکیبی به دل امیدواری **(اقبال)**

ترجمه: له بې صبره نظرسره او امیدوار زړه سره زه د هغه انتهاء طلب کوم چه د هغه انتهاء نشته الهی تجلیات هر وقت مصروف دی.

**(ها)** هویت (خاص تشخص) د حق طرفته اشاره ده.

(قل هو الله احد)

ترجمه: ته ووایه چه هغه الله ﷻ (دهویت خاصه مالك) هم یو دې

(ها) دائره نما (ه) د احاطه حق طرفته اشاره ده، جمال او جلال او کمال، معدن، نباتات، حیوان، انسان، عناصر، طبعیت، غبار، ذرات، سیندونه، ونې، غرونه، فکر او تخیل، عقل اونفس او قلب، اعضاء او جوارح، ملکیت او بهیمیت، منظر ابلیس، ملك او ملكوت، غیب لو جبروت.

**له مونځ نه وروسته دعاگانې** :- له مونځ نه وروسته چه کومې دعا گانې په احادیثو کښې ثابتې دی له هغې نه یو څو دعاگانې دلته لیکل کیږی :

عَنْ مَعَاذِ بْنِ جَبَلٍ ﷺ قَالَ اَخَذَ بِيَدِيْ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فَقَالَ اِنِّيْ لَاُحِبُّكَ يَا مَعَاذُ قُلْتُ وَاَنَا اُحِبُّكَ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ فَلَا تَدَعْ اَنْ تَقُوْلَ فِيْ دُبُرِ كُلِّ صَلٰوةٍ رَبِّ اَعِنِّيْ عَلٰى ذِكْرِكَ وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ . (مسند احمد ص ۲۴۰ ج ۱، ابوداود ص ۲۱۳ ج ۱، مستدرک حاکم ص ۲۷۳ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت معاذ بن جبل ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ زما لاس ونیولو. او وې فرمایل چه اې معاذ ! زه تا سره محبت کوم، حضرت معاذ ﷺ وفرمایل : یا رسول الله ! زه هم له تاسره محبت کوم، نورسول الله ﷺ وفرمایل دمونځ نه وروسته دا دعاء وایه : «یا الله ! ما ته ستا د ذکر او شکر او په ښه توگه د عبادت کولو توفیق راکړه» اوکله یې هم مه پریږده.

عَنْ ثَوْبَانَ ﷺ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا انْصَرَفَ مِنْ صَلٰوتِهٖ اسْتَغْفَرَ ثَلَاثًا وَقَالَ اَللّٰهُمَّ اَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ تَبَارَكْتَ يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْاِكْرَامِ . (مسلم ص ۲۱۸ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت ثوبان ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ به د مونځ نه وروسته درې خله استغفار کولو، او بیا به یې دا دعا ویله : «یا الله ته سلام یې او له تا څخه سلامتی ده اوته د برکت خاوند یې او د لویی او عزت مالکه ! »

كَانَ سَعْدٌ يُعَلِّمُ بَنِيْهِ هٰؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ كَمَا يُعَلِّمُ الْمُعَلِّمُ الْغِلْمَانَ الْكِتَابَةَ وَيَقُوْلُ اِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يَتَعَوَّذُ بِهِنَّ دُبُرَ الصَّلٰوةِ . اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِكَ مِنَ الْجُبْنِ وَاَعُوْذُبِكَ مِنَ الْبُخْلِ وَاَعُوْذُبِكَ مِنْ اَرْذَلِ الْعُمُرِ وَاَعُوْذُبِكَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا وَعَذَابِ الْقَبْرِ . (بخاری ص ۳۹۶ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت سعد ﷺ به خپلو زامنو ته دا کلمات ښودل چه رسول الله ﷺ به د مونځ نه وروسته پدې کلماتو سره استعاذه او پناه غوښتله : «یا الله ! زه په تا باندې پناه غواړم له بې زړه توب نه او په تا باندې پناه غواړم له بخل نه او په تا باندې پناه غواړم له آخری او کمزوری عمر څخه او په تا باندې پناه غواړم له فتنې د دنیا او له عذاب د قبر څخه ».

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ (مرفوعا) اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِكَ مِنَ الْكُفْرِ وَالْفَقْرِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ . (نسائی ص ۱۹۸ مستدرک حاکم ص ۲۷۳ ج ۱)

---

ع : بذکرش هر که بینی در خروش است.

بنده رجوع کونکې، د گناهونو قیدی، د خطاگانو اسیر، خاضع او حقیر، فقیر او ذلیل د الله غنی نه بغیر هیڅ لره خپل ملجا او ماوی نشی گنړلې (الله لا اله الا هو الحی القیوم) . (سواتی) .

**توجمه** حضرت ابو هريره ﷺ فرمايي چه رسول الله ﷺ به دا دعا هم كوله : (اَللّٰهُمَّ اِنِّي اَعُوْذُبِكَ مِنَ الْكُفْرِ وَالْفَقْرِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ).

**توجمه** اي الله ﷻ زه ستا په ذات سره د كفر ، فقيري او د عذاب قبر نه پناه غوارم.

## د قرائت مسائل :

د امام د پاره واجب دي چه هغه به د سحر په دوو ركعتونو كښې د ماښام او ماسخوتن په ړومبو دوو ركعتونو كښې په جهر سره قراءة كوي، همدغه رنګې د جمعې او د اخترونو په دوارو ركعتونو كښې به هم په جهر سره قرائت كوي. لكه چه د رسول الله ﷺ د عمل مبارك نه ثابت دي ، او درمضان د وترو په ټولو ركعتونو كښې په جهر سره قراءة كول ، او د ماسپښين او مازديګر په ټولو ركعتونو كښې او دماښام په دريم ركعت كښې ، او دماسخوتن په آخرى دوو ركعتونو كښې په پټه قراءة كول دي .**(هدايه ص۱۰۳ ج۱،شرح نقايه ص۸۴ ج۱)**.

په دې سلسله كښې تفصيلي بحث سره له حوالو نه په اركان صلوة كښې د قراءة په باب كښې تير شوې دې

**مسئله** - كه منفرد وي نو هغه ته اختيار دې چه هغه د ما ښام او ماسخوتن په ړومبو دوو ركعتونو كښې او دسحر په دوارو ركعتونو كښې په ښكاره قراءة كوي او كه په پټه. دواړه درست دي . البته افضل دا دي چه په ښكاره يې ووايي، دې دپاره چه د جماعت د طريقې سره مشابهت پيدا شي **(هدايه ص۱۰۲،ج۱،شرح نقايه ص۸۴ ج۱)**.

**مسئله** : كوم سړې چه د سحر ، ماښام او د ماسخوتن مونځ قضا كوي كه امام وي او د جماعت سره مونځ كوي نو په زوره به قرائت كوي **(هدايه ص۱۰۲ ج۱،شرح نقايه ص۸۴،ج۱)**

لكه څنګه چه رسول الله ﷺ د ليلة التعريس په واقعه كښې د سحر مونځ د نمر د راختلو نه وروسته په زوره ادا كړې وو .

لكه چه دا هم په باب د قراءة كښې تير شوى دى

**مسئله** - او كه خان ته مونځ كوي نو بيا به يې د قضاء په وخت په زوره نه وايي بلكه پټ دې قراءة وكړي څكه چه په زوره قرائت خو يا خو له جماعت سره او يا د وخت په داخل كښې وي . او دا وروسته د وخت نه قضاء دې، لهذا پدې كښې دې پټ قرائت ولولي **(شرح نقايه ص۸۴ ج۱،هدايه ص۱۰۲)**

**مسئله** - په صلوة كسوف كښې اختيار دې چه په زوره يې وايي اوكه په پټه دواړه روا دي

**مسئله** - كه يو سړي د ماسخوتن په مونځ كښې په ړومبي دوو ركعتونو كښې سورة وويلو او فاتحه يې ونه لوستله. نو بيا وروستي دوو ركعتونو كښې دې سورة فاتحه دوه خله نه وايي اوكه

په رومبی رکعت کښې یې سورة فاتحه ویلې وی او سورة یې نه وی ویلې نو وروستی رکعت کښې دې فاتحه او سورة دواړه ووایی او په تیزه دې قرائت وکړی. په رومبی شکل کښې فاتحه د سورة نه وروسته لوستل خلاف د موضوع دی او د فاتحې په پرېښودلو سره د سجده سهوې تلافی هم کیدلې شی، او په دویم صورت کښې څه خرابی نشته، رومبې فاتحه بیا سورة لهذا فاتحه او سورة دې په زوره ووایی او سجده سهوه به په هغه شکل کښې بیا هم کول لازم وی[1]. (هدایه ص۴۰ ج۱)

---

[1] - د سرې (پټ) او جهری (ښکاره) قرائت حکمت :- حضرت شیخ مدنی فرمایی چه:

(اَللَّیْلُ وَقْتُ ظُهُوْرِ الْجَمَالِ فَیُسْتَحْسَنُ فِیْهِ الْجَهْرُ وَالنَّهَارُ وَقْتُ ظُهُوْرِ الْجَلَالِ فَیُسْتَحْسَنُ فِیْهِ السِّرُّ وَالْخِفَاءُ).

ترجمه: شپه د الله ﷻ د جمال (ښائست) د ظهور وخت دې نو په دې کښې تیز ویل مستحسن دی او ورځ د الله ﷻ د جلال (لویی) د ظهور وخت دې نو په دې کښې اخفاء او پټوالې مناسب دې

حضرت مولانا محمد قاسم نانوتوی رحمه الله فرمایی چه: «په درې مونځونو کښې په زوره قراءة او په دوو کښې د پټ قراءة لوستلو د راز بیانولو نه وړاندې څو مقدمات ذکر کیږی»:

**اوله مقدمه**:- الله ﷻ د بنی آدم په زړونو کښې اراده، قدرت احساس او حمیت په شان صفات ایښی دی، په داسې طریقې سره چه د احساس او قدرت د ارادې دپاره یې څه مفعول متعین کړې نه دې. بلکه څه مفعول هم چه مخې ته راځی په هغې به د هغه صفاتو ظهور کیږی.

همد غه رنګې د محبت د پاره یې هم هیڅ متعلق نه دې مقرر کړې په هرمرغوب به د محبت وقوع کیږی، مګر ته پوهیږې چه د رغبت بنا په محاسنو باندې ده، که هغه محاسن جسمانی وی یا روحانی، ظاهری وی یا باطنی. په حاسه دبصر باندې مدرك وی اوکه دنورو حواسو په ذریعه سره معلوم وی. او دا خبره هم تاته معلومه ده چه ذات خداوندی جامع دې د جمیع کمالاتو دپاره چه اصل دې د محاسنو.

اوس ددې خبرې نه بحث کیدې شی چه د ذات خداوندی ټول کمالات یا یو څو دانو لره په هغې کښې حیوانات بالعموم او بنی آدم بالخصوص د خپل ابتدایی پیدائش نه خپلې مخې ته کیږدی، په همدې بناء تاته معلومیدل پکار دی چه د خالقِ عالَم محبت د انسان همزاد دې، چاته چه د حقیقت سترګې ورکړې شوی وی هغه د روښانه ورځ په شان پوهیږی چه د ممکن (مخلوق) د واجب (خالق باری تعالی) سره دائمی ارتباط او تعلق دې، که یو لحظه هم د ارتباط او تعلق نه ځان ته شی نو په هغه دم به د هلاکت کوهی ته غورځیدلې وی.

مقصد د خبرې دادې چه د انسان د حقیقت رُخ همیشه او مسلسل د هغه ذات واجب طرفته په هغه شان لګیدلې وی لکه څنګه چه د زمکې نورانی خطه او دهغې ګرمائش هر دم د آسما طرفته متوجه وی، که د نمر نه د هغې توجه لاړه شی، نو نوم او نشان به یې هم باقی پاتې نشی.

کله چه خبره دا ده نو ددینه لازمیږی، چه د خالق محبت به د مخلوق دپاره له فطری امورو څخه وی. غرض دا چه د خالق محبت د انسان په اصل فطرت کښې دې، د هر چا په زړه کښې وی، لیکن کله چه فطری خبرې د حقیقت خزانې او دماهیت په صحن کښې وی نو ډیر کرتې خارجی عوارض دا روپوش کړی. همدا

وجه ده چه د اغیارو محبت د خارج نه په زړونو باندې وار کوي چه د بنی آدم اکثر افراد دا اصلی محبت د لمنې لاندې کړی، او ددې اصلی محبت اثر نشی محسوسولې او دهغې وجود په مثل د عدم شی. لیکن ددې باوجود هر سړې که مومن وی که کافر په خپله ددې محبت په طلب کښې لګیا وی، نو چه دا ددې پټ محبت اثر نه دې نو نور څه دی؟

**دویمه مقدمه**:- ورځ، وجود. د کارګاه یا کار ګزارئ د پاره وی، شپه، عدم، د بې کارئ وخت وی. د ورځې د نیّر اعظم یعنی دنمر سرکردګئ کښې د ژوند د سرمایی نه د فائدې پورته کولو دپاره دبنی آدم د پښو لاندې یو نورانی فرش غوړولې شوې دې. او شپه د خوب د وجې نه چه د مرګ خور ده ټولو لره ویده کوی، یو قسم مرګ راولی. دخوب په تیاره باندې نورې تیارې زیاتې شی ګویا چه دا تیارې دقبر نمونه جوړه شی. غرض دا چه د ورځې د وجود سره نسبت خاص دې. او دشپې د عدم سره خصوصیت دې. لکه څنګه چه ښکاره ده، چه نمو د هر څیز د وجود نه کیږی. همدغه رنګې ظهور د هر شکل له نور نه کیږی.

ددینه علاوه د ورځې په وخت کښې د قسماقسم نعمتونو دسترخوان دحیواناتو د پاره او خصوصا د بنی آدم دپاره خامخا غوړولې شی، او دشپې په وخت کښې ته پو هیږې چه سرکاری پخلی والا او پخلی خانه یخیږی. غرض دا چه هر اړخ باندې وګورې نو د ورځې په وخت د نمروجود ښکاره دې، او دشپې ددې اخفاء (پټ والې).

مګر چیرته چه د محبوبیت مدار په وجود باندې وی لکه څنګه چه ښکاره ده نو محبوب هغه وی چه جمال او کمال لری. او جمال او کمال د وجود د خواصو نه دې، د نیشتوالی (عدم) قصه ددې سرمایی نه خالی ده. لیکن ددې سره دا لازمیږی چه د محبت منشاء په عدم باندې وی، آیا ته نه ګورې چه د طالبانو طلب او د آتش عشق سرګرمی دمطلوب د معدوم کیدو نه بغیر نشی کیدې کوم څیز چه موجود وی د هغې طلب محال دې او کوم کمال چه په داخل کښې پټ وی د هغې عشق د خیال او تصور نه لرې وی.

**دریمه مقدمه**:- دا ده چه ورځ د معیشت اوژوند په وقت کښې وی، د هغه ذات اقدس فرمان دې چه (وَجَعَلْنَا النَّهَارَ مَعَاشًا) یعنی چه ورځ مونږ د معیشت او ګزران دپاره جوړه کړې ده. او شپه مو د راحت دپاره جوړه کړې ده. اوبل ارشاد دې چه (وَجَعَلْنَا اللَّيْلَ لِبَاسًا). او مونږ شپه په منزله د لباس جوړه کړې ده، چه ددې په پرده کښې انسان راحت او آرام کوی.

**څلورمه مقدمه**:- دا ده چه دمعاش په حاصلولو کښې د سړی هر چا سره واسطه راځی. او ددینه بغیر چاره نشته، چه د بنی آدم ضروریات او حاجتونه ددینه بغیر نشی پوره کیدې او چی کله شپه راشی نو ټول معاملات بند کوی. له همدې کبله بنیادم هم د یو بل نه هغه وخت جدا کیږی.

**اصل مقصد**:- کله چه تاسو دا خبره واوریدله نو اوس د اصل مقصد خبره هم آوریدل پکار دی او هغه دا ده: چه د محبت یوشمیر تعلقات او معاملات د ټولو په وړاندې ښکاره دی چه هغه ټول پیژنی، هر سړی په دې خبره پوهیږی، چه د محبوب په حاضریدلو کښې کوم عجز اونیاز او د هغه په مهجوری او لرې والی کښې څه سوز او ګداز وی. او د ناز او انداز په وخت کښې شوق او طلب په جوش کښې راځی. او د بې نیازئ او عتاب په وخت کښې کوم غم او هیبت ښکاره کیږی. شوق کښې د فریاد او زارئ معامله واقع

**مسئله** :- د ټولو فرضو په اولو دوو رکعتونو کښې قرائت فرض دې ، او د ماښام په دریم رکعت کښې او دماز دیگر ، ماسپښین اوماسخوتن په آخری دوو رکعتونو کښې صرف سورۃ فاتحه ویل

---

کیږی، او په هیبت او غم کښې په خاموشی او بې اختیارئ کښې انسان فریشانه کیږی.

۱- کله چه د ورځې په وخت د محبوب تجلیات وجودی پریوزی او دهغه پوشمیر عنایات د انسان په کار کښې مصروف شی ، نو پدا سې صورت کښې څه ضرورت دې چه انسان فریاد بند کړی او چغه «اونعره» ووهی، دالله ﷻ د قرب قوت بالکل نژدې دې ، نو مناسبه ده چه مونږ څه هم وایو نو هغه پټ وو ایو

۲- یا مونږ داسې هم ویلې شو چه د ورځې په وخت د الله ﷻ د بې نیازه شان د ظهور وخت وی. آیا تاسو نه گورئ چه دټولو ستورو نور یو دم د هغوی نه واخیستې شی، گویا چه (لمن الملك الیوم لله الواحد القهار) د الله جل جلاله یو شان دې، دغه وخت د چا زهره ده او دم وهی او ژبه د آواز سره آشنا کولې شی «نو چپ والې ددې وخت دپاره ډیر موزون او مناسب دې» کله چه د شپې وخت راشی نو دا خبره ختمه شی، یا داسې هم ویلې شو چه زمانه د بې نیازئ او د جلال ختمه شی، اوس د شوندو خوزولو «او د خبرو کولو» گنجائش هم شته، که څوك آواز اوچت کړی نو مناسبه ده چه دغه وخت څه اندیښنه نه وی.

۳- او په یو بله طریقه هم ویلې شو چه د ورځې په وخت انسان د خوراك، څښکاك په محبت کښې مبتلاء وی او دهغې په طلب کښې سرگردان وی او هغه پټ محبت چه دده په اصل فطرت کښې وو هغه بنکته شی . د شوق او عشق اور هم لاندې شی، نو د فریاد او زارئ سامان هم د لاسه لاړ شی، پدې وخت کښې که څوك مشتاقانه خبره عرض کوی، بې باکئ سره او بې پرده خبره کوی، نو تکلف په تکلف کښې به وی، ځکه چه قال د حال تابع وی ، له همدې کبه ه تصنع او تکلف نه بندیږی، او فریاد او زاری چه د جهر سره مناسبه ده، پدې وخت کښې به هغه نامناسب وی. او که شپه بیا دوباره راشی نو بیا د دنیا د طلب نه لاس وویندځې او کینی ، نو دغه وخت به هغه پټ محبت هم سر را وباسی چه پدې وخت کښې د غیر د محبت تسلط د زړه نه پورته شوې دې. او ظاهره ده چه کله د دریاب اوبو ته بند وتړې . دینه پس هغه اوبه او سیلاب دومره په زور سره راشی، چه دومره اندازه کښې وړاندې نه وی. همدغه رنگې هغه پټ محبت د پټیدو نه پس ظاهر شو . که هوش او حواس چه د حفاظت د ادب سرمایه ده، د خپل ځان نه بهر شی، نو ممکنه ده. څه حیرانتیا ده چه پدې وخت کښې که د طبعی جوش په بناء باندې محبت مکنونه بهر راووځی او بې باکه فریاد او زارئ کښې آواز اوچت کړی، نو داسې حالت دمعذوری وی.

له دینه علاوه داسې هم ویلې شو چه د عشق او محبت خبره د اغیارو په وړاندې کول . نه خو د محبت او عشق د طبعی مقتضاء مطابق ده، اونه د معشوق او محبوب د مزاج موافق ده، او کله چه د ورځې وخت د هر چا د اجتماع مقام وی ، نومناسبه نه ده چه د زړه خبره د چا تر غوږ پورې ورسیږی ، چه کومه خبره کوې نو ښی او چپ طرف ته کتلو سره پټه یې وکړه. البته کله چه شپه راشی، نو د اغیار اندامونه بې کاره او معطل شی. او خلوت لاس ته راشی، که په اوچت آواز خبره کوې او که په پټ آواز نو د ټولو گنجائش شته . (فیوض قاسمی فارسی صه ۲۱۲).

پکار دی او که ددې په ځای تسبیح او تحمید ووایی نو هم درست دی، که بالکل چپ پاتې شې نو هم مونځ صحیح دې، لیکن افضل دا دی چه سورة فاتحه ولولې .(هدایه ص۹۶ ج۱، شرح نقایه ص۸۱ ج۱، کبیری ص۳۰۰).

**مسئله** :- د وترو، نفلو، سنتو وغیره په ټولو رکعتونو کښې قراءة فرض دې او سورة فاتحه ویل ضروری دی، (هدایه ص۹۶ ج۱، شرح نقایه ص۹۹ ج۱).

**مسئله** :- مقتدی به په امام پسې قرائت نه کوی برابره خبره ده که هغه مونځ ښکاره وی او که پټ د مقتدی فریضه استماع (آوریدل) او انصات (چپ اوسیدل) دی .

(دا بحث سره له حوالې نه د مونځ په طریقه کښې تیر شوې دې)

**مسئله** :- د جمعې وغیره د خطبې په دوران کښې هم په آوریدونکو باندې لازم دی چه خاموش واوسیږی، که خطیب آیت د (ان الله وملئکته یصلون علی النبی) ولولی، نو هم به په ژبه باندې څه نه وایی ، بلکه زړه سره به د درود تصور کوې . (هدایه ص۱۱۷ ج۱، شرح نقایه ص۱۲۶ ج۱).

**په ټولو مونځونو کښې د سنت قرائت مقدار** :- حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله فرمایی چه کم نه کم په مونځ کښې د یو اوږد آیت ویل یا د درې لنډو آیتونو ویل ضروری دی . ځکه چه په مونځ کښې مطلق قرائت فرض دې ، نو ددې ادنی مقدار یو آیت طویله یا درې واړه آیتونه کیدې شی (هدایه ص۱۰۰ ج۱، کبیری ص۲۶۳).

ددې بحث سره له حوالو نه د (په مونځ کښې مطلق قرائت فرض دې) تر مضمون او عنوان لاندې تیر شوې دې .

**مسئله** :- که د اقامت حالت وی نو د سحر د مونځ په دواړو رکعتونو کښې د سورة فاتحې نه علاوه څلویښتونه واخله تر سلو پورې آیتونه ویل . (هدایه ص۱۰۰ ج۱، شرح نقایه ص۸۳ ج۱)

د ماسپښین په مونځ کښې تقریباً د سحر د مونځ په اندازه قراءة کول، که وخت فراخه نه وو، یا خلق ددې متحمل نه وو نو بیا په دې کښې تخفیف کول پکار دی .

دمازدیگر او ماسخوتن په مونځ کښې د اوساط مفصّل د سورتونو نه یو سورة لوستل، (د سورة بروج نه تر سورة بینه پورې سورتونه اوساط مفصّل دی) . (هدایه ص۱۰۰ ج۱، شرح نقایه ص۸۳ ج۱).

د ماښام په مونځ کښې د قصار مفصل د سورتونو نه ویل د وخت د کمی له کبله په دې کښې تخفیف زیات مناسب دې ، (د سورة بینه نه واخله تر آخر د قرآن پورې قصار مفصل سورتونه دی)

(هدایه ص۱۰۰ ج۱، شرح نقایه ص۸۳ ج۱).

عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يَقْرَءُ فِي الْفَجْرِ بِقَافٍ وَالْقُرْاٰنِ الْمَجِيْدِ وَنَحْوِهَا. (مسلم ص۱۸۶ ج۱، مصنف ابن ابی شیبه ص۳۵۳ ج۱)

**ترجمه**. حضرت جابر بن سمره ﷺ نه روایت دې، چه رسول الله ﷺ به د سحر په مونځ کښې سورة قاف او دغه شان سورتونه تلاوت فرما یل.

عَنْ اَبِيْ بَرْزَةَ الْاَسْلَمِيِّ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يَقْرَءُ فِي صَلٰوةِ الْغَدَاةِ مِنَ السِّتِّيْنَ اِلَى الْمِائَةِ. (مسلم ص ۱۷۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو برزه اسلمی ﷺ نه روایت دې، چه رسول الله ﷺ به د سحر په مونځ کښې د شپیتو آیتونو نه تر سلو آیتونو پورې تلاوت فرمایلو.

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ مَا صَلَّيْتُ وَرَاءَ اَحَدٍ اَشْبَهَ صَلٰوةً بِرَسُوْلِ اللهِ ﷺ مِنْ فُلَانٍ قَالَ سُلَيْمَانُ كَانَ يُطِيْلُ الرَّكْعَتَيْنِ الْاُوْلَيَيْنِ مِنَ الظُّهْرِ وَيُخَفِّفُ الْاُخْرَيَيْنِ وَيُخَفِّفُ الْعَصْرَ وَيَقْرَءُ الْمَغْرِبَ بِقِصَارِ الْمُفَصَّلِ وَيَقْرَأُ فِي الْعِشَاءِ بِوَسْطِ الْمُفَصَّلِ وَيَقْرَأُ فِي الصُّبْحِ بِطِوَالِ الْمُفَصَّلِ. (نسائی ص۱۵۴ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دې هغوی فرمایی چه ما په هیچا پسې هم داسې مونځ نه دې کړې چه د رسول الله ﷺ د مونځ سره به یې زیات مناسبت وی بغیر د فلانی نه؛ راوی د حدیث سلیمان رحمه الله فرمایی چه هغه سړی به د ماسپښین مونځ کښې اول دوه رکعتونه اوږدول، د وروستو دوو رکعتونو په مقابله کښې او دمازدیگر مونځ کښې به یې تخفیف کولو، او دماښام په مونځ کښې به یې له قصار مفصل څخه تلاوت کولو، او دماسخوتن په مونځ کښې به یې د اوساط مفصل څخه تلاوت کولو، او دسحر مونځ کښې به یې له طوال مفصل څخه تلاوت کولو.

حضرت حسن بصری رحمه الله نه روایت دې چه حضرت عمر فاروق ﷺ حضرت ابو موسی اشعری ﷺ ته خط ولیکلو او په هغې کښې یې دا ولیکل چه د ماښام په مونځ کښې له قصار مفصل څخه تلاوت کوه، او د ماسخوتن پ مونځ کښې له اوساط مفصل څخه تلاوت کوه او د سحر په مونځ کښې له طوال مفصل څخه تلاوت کوه.

**مسئله**:- که د وخت تنګی وی نو بیا چه د سورة فاتحې نه پس هر سورة تلاوت کړی نو صحیح دې، رسول الله ﷺ د سحر په مونځ کښې معوذتین هم تلاوت کړی دی.

عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ اَنَّهُ سَاَلَ النَّبِيَّ ﷺ عَنِ الْمُعَوِّذَتَيْنِ قَالَ عُقْبَةُ فَاَمَّنَا بِهِمَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فِي الصَّلٰوةِ الْفَجْرِ. (نسائی ص۱۵۱ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عقبه بن عامر ﷺ نه روایت دې چه هغوی ﷺ د رسول الله ﷺ نه د معوذتینو په باره کښې پوښتنه وکړه نو عقبه بن عامر ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ مونږ ته د سحر مونځ په

معوذتینو (**قل اعوذ برب الفلق**، او **قل اعوذ برب الناس**) سره وکړو.

**مسئله** :- که په سفر کښې جلدی (عجله) نه وی نو بیا په سفر کښې هم د **سورة الفجر** . **سورة الانشقاق** ، **سورة الاعلیٰ** وغیره سورتونو نه چه کوم غواړې نو هغه دې ولولی.

**مسئله** :- د سحر په مونځ کښې ړومبې رکعت د دویم رکعت په مقابله کښې وږد کړه، او دماسپښین دواړه رکعتونه به برابر وی خو مناسب دادی چه د ماسپښین ړومبې رکعت د دویم رکعت په مقابله کښې څه قدرې اوږد کړې.

**مسئله** :- په هیڅ مونځ کښې څه خاص سورة مقرر نه دې ، یعنی دا خیال کول چه ددې سورة نه علاوه بل هیڅ سورة لوستل درست نه دی او باقی د تبرک او اسحباب د پاره که بعضې سورتونه په بعضې مونځونو کښې ولولې نو بهتر دی ، کوم چه د رسول الله ﷺ نه ثابت دی چه هغوی خاص سورتونه په خاصو مونځونو کښې لوستلی دی ، مثلاً د جمعې په ورځ د سحر په مونځ کښې سورة سجده، او سورة دهر به یې تلاوت کول، او د جمعې په مونځ کښې سورة قاف ، سورة جمعه. سورة منافقین ، سورة الاعلی سورة غاشیه (دا سورتونه کله یو سورة کله بل سورة ) به یې تلاوت کولو، او د سحر په سنتو کښې به یې اکثر (**قولوا آمنا بالله ـ الخ** ، **قل یا اهل الکتاب تعالوا ـ الخ** ، **قل یایها الکفرون** او **قل هو الله احد**) یا په وترو کښې په اول رکعت کښې (**سبح اسم ربك الاعلیٰ**) او دویم کښې (**قل یایها الکفرون**) او په دریم رکعت کښې (**قل هو الله احد**)، یا په اول رکعت کښې سورة القدر او دویم رکعت کښې سورة زلزال او په دریم رکعت کښې قل یایها الکفرون وغیره به یې تلاوت کول ، دا سورتونه په دې مونځونو کښې تلاوت کول مستحب دی.

**په مونځ کښې د صف صحیح والې** :- اسلام کښې په دوو ځایونو کښې صف بندی او دصف درستوالې ضروری دی په دې کښې څه قسمه بد نظمی ناقابل برداشت ده، یو په میدان دجنګ کښې او دویم په مونځ کښې ، د الله ﷻ ارشاد دې چه:

(**اِنَّ اللهَ يُحِبُّ الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِهٖ صَفًّا كَاَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَّرْصُوْصٌ**)، (صف پ۲۸)

**ترجمه** : دالله ﷻ هغه کسان خوښ وی چه د هغوئ د الله په لاره کښې داسې جنګیږی لکه د قلعی پوخ شوی دیوال په شان.

(**وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَقْدِمِيْنَ مِنْكُمْ وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَاْخِرِيْنَ، وَاِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَحْشُرُهُمْ اِنَّهٗ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ**)، (الحجرات پ۱۴)

**ترجمه** : او بیشکه مونږ ته علم دې د هغه چا چه کوم په تاسو کښې وړاندې کیدونکی ( یعنی په ړمبی صف کښې ودریدونکی)، دی اومونږ ته علم دې په وروستو پاتیکیدونکو ، بیشکه ستا

رب به دا ټول راجمع کړی هغه د حکمت خاوند دې او په هر څه پوه دې

عَنْ اَبِي سَعِيْدٍ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ ثَلٰثَةٌ يَضْحَكُ اللهُ اِلَيْهِمُ اَلرَّجُلُ يَقُوْمُ مِنَ اللَّيْلِ وَالْقَوْمُ اِذَا صَفُّوْا لِلصَّلٰوةِ وَالْقَوْمُ اِذَا صَفُّوْا لِلْقِتَالِ. (مشکوة بحواله مسند احمد ص ۸۰ ج ۳، ابن ماجه ص ۱۸ ) وفی حدیث کعب صفهم فی القتال مثل صفهم فی الصلوة

**ترجمه**: حضرت ابو سعید خدری ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه درې قسمه سړی داسې دی چه الله ﷻ په نظر د رحمت هغوی طرفته ګوری. یو هغه سړې چه د شپې د مونځ د پاره ودریږی. او دویم هغه سړې چه د مونځ د پاره صف بندی کوی. او دریم هغه سړې چه د جنګ د پاره صف بندی کوی. او د حضرت کعب ﷺ په روایت کښې دی چه د دوی صف به په جنګ کښې په مونځ کښې د صف په شان وو.

عَنْ نُعْمَانَ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُسَوِّيْ صُفُوْفَنَا حَتّٰى كَاَنَّمَا يُسَوِّيْ بِهَا الْقِدَاحَ حَتّٰى رَاٰى اَنَّا قَدْ عَقَلْنَا عَنْهُ ثُمَّ خَرَجَ يَوْمًا فَقَامَ حَتّٰى كَادَ اَنْ يُّكَبِّرَ فَرَاٰى رَجُلًا بَادِيًا صَدْرُهٗ مِنَ الصَّفِّ فَقَالَ عِبَادَ اللهِ لَتُسَوُّنَّ صُفُوْفَكُمْ اَوْ لَيُخَالِفَنَّ اللهُ بَيْنَ وُجُوْهِكُمْ. (مسلم ص ۱۸۲ ج ۱) اَلْمُرَادُ مِنْهُ الْمَسْخُ وَاِخْتِلَافُ الْاَهْوَاءِ وَالْاِرَادَاتِ.

**ترجمه**: حضرت نعمان بن بشیر ﷺ روایت کوی چه رسول الله ﷺ به زمونږ صفونه صحیح کول. په داسې شان چه ګویا ددې صفونو په ذریعه غشی نیغوی، تر دې چه رسول الله ﷺ به ولیدل. مونږ خلقو د صفونو د صحیح والی سلسله د هغوی نه زده کړې ده، بیا یو ورځ رسول الله ﷺ بهر تشریف راوړو او د مونځ د پاره ودریدول. نزدې وه چه تکبیر وکړی. هغوی ولیدل چه د یو سړی سینه د صف نه مخکښې وتلې وه، نو هغوی وفرمایل اې د الله ﷻ بندګانو! صفونه صحیح کړئ او که نه نو الله ﷻ به ستاسو مخونه مختلف کړی. (یعنی مسخ به یې کړی. او ستاسو خیالات او خواهشات به هم د یو بل نه خلاف کړی)

عَنْ اَنَسٍ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ سَوُّوْا صُفُوْفَكُمْ فَاِنَّ تَسْوِيَةَ الصُّفُوْفِ مِنْ اِقَامَةِ الصَّلٰوةِ. (بخاری ص ص ۱۰۱ ج ۱، مسلم ص ۱۸۲ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت انس ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل صفونه نیغوئ ځکه چه د صفونو نیغوالې د مونځ د اقامت څخه دې

وَعِنْدَ مُسْلِمٍ مِنْ تَمَامِ الصَّلٰوةِ وَاَيْضًا فِي الْبُخَارِيِّ مِنْ حُسْنِ الصَّلٰوةِ.

**ترجمه**: او دمسلم شریف په روایت کښې دی چه دا د مونځ د مکمل کیدو دپاره دی، او دبخاری شریف روایت دې چه دا د مونځ د حسن او خوبئ څخه دی

عَنْ اَبِي مَسْعُوْدِنِ الْاَنْصَارِيِّ اَنَّهٗ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَمْسَحُ مَنَاكِبَنَا فِي الصَّلٰوةِ وَيَقُوْلُ اِسْتَوُوْا وَلَا تَخْتَلِفُوْا

فَتَخْتَلِفَ قُلُوبُكُمْ.(مسلم ص۱۸۱ ج۱)

**ترجمه** حضرت ابو مسعود انصاری ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ به زمونږ اوګې په مونځ کښې (کله چه به مونږ مونځ ته ودریدلو) نو مسح کولې به یې او فرمایل به یې چه نیغ شئ او اختلاف مه کوئ. ځکه چه بیا به ستاسو زړونه په خپل مینځ کښې مختلف شی

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ ﷺ خِيَارُكُمْ أَلْيَنُكُمْ مَنَاكِبَ فِي الصَّلٰوةِ.(ابوداود ص۹۸ ج۱)

**ترجمه** حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمای چه رسول الله ﷺ وفرمایل په تاسو کښې د ټولو نه ښه خلق هغه دی چه د چا اوګې په مونځ کښې نرمې وی یعنی که صحیح کړې شی نو سمدستی هغه ددې دپاره آماده شی

## په صفونو کښې خلل راو ستل ندی پکار.

عَنْ أَنَسٍ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ رُصُّوا صُفُوفَكُمْ وَقَارِبُوا بَيْنَهَا وَحَاذُوا بِالْأَعْنَاقِ فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنِّي لَأَرَى الشَّيْطٰنَ يَدْخُلُ مِنْ خَلَلِ الصَّفِّ كَأَنَّهَا الْحَذَفُ (وَلَدُ الْغَنَمِ(ابوداود ص۹۷ ج۱)

**ترجمه** حضرت انس ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل صفونه یو ځای کړئ. او نږدې نږدې ودریږئ. اوخپل څټونه په خپل مینځ کښې برابر کړئ. په هغه ذات قسم دې چه د هغه په قدرت کښې زما ساه ده. زه وینم چه شیطان د صفونو د خلل په ځایونو کښې داخلیږی. ګویا چه هغه د بکرئ بچې دې (یعنی وړوکې کیږی او د بکرئ د بچی په شان داخلیږی چه مونځونو کښې خرابی واچوی)

عَنِ ابْنِ عُمَرَ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ أَقِيمُوا الصُّفُوفَ وَحَاذُوا بَيْنَ الْمَنَاكِبِ وَسُدُّوا الْخَلَلَ وَلِينُوا بِأَيْدِي إِخْوَانِكُمْ وَلَا تَذَرُوا فُرُجَاتِ الشَّيْطٰنِ وَمَنْ وَصَلَ صَفًّا وَصَلَهُ اللهُ وَمَنْ قَطَعَهُ قَطَعَهُ اللهُ. (ابوداود ص۹۷ ج۱ ونصفه فی النسائی ص۱۳۱ ج۱)

**ترجمه** حضرت عبدالله بن عمر ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل صفونه قائم کړئ او اوګې برابرې کړئ او دخپلو وروڼو په لاسونو کښې نرم شئ. او په صفونو کښې د شیطان د پاره ځای مه پریږدئ. چا چه صف یوځای کړو هغه به الله ﷻ یو ځای کړی او چا چه صف پرې کړو الله ﷻ به هغه پرې کړی

## په صف بندئ کښې د ښی طرف فضیلت.

عَنْ عَائِشَةَ ﷺ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ إِنَّ اللهَ وَمَلٰئِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلٰى مَيَامِنِ الصُّفُوفِ.(ابوداود ص۹۸ ج۱)

**ترجمه** ام المؤمنین حضرت عائشه ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل بیشکه الله ﷻ رحمت نازلوی او فرښتې دعا کوی. د ښی طرف په صفونو باندې

**د اول صف فضیلت** :- عَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ يَقُولُ إِنَّ اللهَ وَمَلٰئِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى الَّذِيْنَ يَلُوْنَ الصُّفُوْفَ الْأُوْلٰى وَمَا مِنْ خَطْوَةٍ أَحَبُّ إِلَى اللهِ مِنْ خَطْوَةٍ يَمْشِيْهَا يَصِلُ بِهَا صَفًّا. (مشکوة ص۹۸ مصابیح ص۵۷ ج۱)

**ترجمه** : حضرت براء بن عازب ﷛ فرمایي چه رسول الله ﷺ وفرمایل : بیشکه الله ﷻ رحمت نازلوی په هغه چا باندې چه د اول صف سره یو ځائ وی ، او فرشتې هم دعا کوی ، او د الله ﷻ په نزد باندې د هغه قدم نه بل قدم خوښ نشته کوم قدم چه ځی او د صف سره یو ځائ کیږی .

**د اول صف د مکمل کیدو نه وروسته دې دویم او بیا دریم صف دې هم دغه شان مکمل کړې شی** :-

عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ ﷺ فَرَاٰنَا حِلَقًا فَقَالَ مَالِيْ أَرَاكُمْ عِزِيْنَ ثُمَّ خَرَجَ عَلَيْنَا فَقَالَ أَلَا تَصُفُّوْنَ كَمَا تَصُفُّ الْمَلٰئِكَةُ عِنْدَ رَبِّهَا فَقُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللهِ وَكَيْفَ تَصُفُّ الْمَلٰئِكَةُ عِنْدَ رَبِّهَا قَالَ يُتِمُّوْنَ الصُّفُوْفَ الْأُوْلٰى وَيَتَرَاصُّوْنَ فِي الصَّفِّ. (مسلم ص۱۸۱ ج۱)

**ترجمه** : حضرت جابر بن سمره ﷛ فرمایي چه رسول الله ﷺ زمونږ خواته تشریف راوړو . نو مونږ یې ولیدلو چه مونږ حلقې جوړې کړی دی او ناست یو . هغوی وفرمایل : څه شوی دی چه تاسو ډلې ډلې ناست وینم ، بیا یی وفرمایل تاسو خلق داسې صف بندی نه کوئ لکه څنګه چه فرشتې د خپل رب په وړاندې صف بندی کوی ، مونږ عرض وکړو چه یا رسول الله ! فرښتې څنګه صف بندی کوی د خپل رب په وړاندې . وې فرمایل : ړومبی صفونه پوره او مکمل کړی او دیوبل سره په صف کښې نږدې نږدې ودریږی .

عَنْ أَنَسٍ ﷛ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ أَتِمُّوا الصَّفَّ الْمُقَدَّمَ ثُمَّ الَّذِيْ يَلِيْهِ فَمَا كَانَ مِنْ نَقْصٍ فَلْيَكُنْ فِي الصَّفِّ الْمُؤَخَّرِ . (ابوداود ص۹۸ ج۱)

**ترجمه** : حضرت انس ﷛ فرمایي چه رسول الله ﷺ وفرمایل : ړومبی صفونه مکمل کړئ ، بیا هغه صفونه مکمل کړئ کوم چه له دې سره نږدې وی ، چه کوم کمې وی نو هغه به اول صف کښې نه وی دویم صف کښې به وی .

**دصف بندئ طریقه** :- د امام نه ښی او چپ طرف ته صف جوړول پکار دی ، امام په مینځ کښې کیدل پکار دی .

عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَسِّطُوا الْإِمَامَ وَسُدُّوا الْخَلَلَ. (ابوداود ص۹۹ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابو هریره ﷛ فرمایي چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه امام به په مینځ کښې ودروئ

، او صفونو کښې خالي خايونه ډك كړئ.

**مسئله** :- له امام سره نزدې صف کښې د پوخ عمر او د پوهه خلقو كيدل ضروري دي

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لِيَلِيَنِي مِنْكُمْ أُولُوا الْأَحْلَامِ وَالنُّهٰى ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثَلٰثًا وَإِيَّاكُمْ وَهَيْشَاتِ الْأَسْوَاقِ. (مسلم ص۱۸۱ ج۱)

**ترجمه** حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمايي چه رسول الله ﷺ وفرمايل : زما سره په دې صف كښې هغه خلق دي چه عقل لرونكي او هوښيار دي ، درې خله يې دا وفرمايل، او بيا يې وفرمايل چه ځان وساتئ د بازاري آوازونو نه او شور اوشغب مه كوئ

عَنْ أَزْرَقِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ صَلّٰى بِنَا إِمَامٌ لَنَا يُكْنٰى أَبَا رِمْثَةَ قَالَ صَلَّيْتُ هٰذِهِ الصَّلٰوةَ أَوْ مِثْلَ هٰذِهِ الصَّلٰوةِ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ قَالَ وَكَانَ أَبُوْبَكْرٍ وَعُمَرُ يَقُوْمَانِ فِي الصَّفِّ الْمُقَدَّمِ عَنْ يَمِيْنِهٖ وَكَانَ رَجُلٌ قَدْ شَهِدَ التَّكْبِيْرَةَ الْأُوْلٰى مِنَ الصَّلٰوةِ فَصَلّٰى نَبِيُّ اللهِ ﷺ ثُمَّ سَلَّمَ عَنْ يَمِيْنِهٖ وَعَنْ يَسَارِهٖ حَتّٰى رَأَيْنَا بَيَاضَ خَدَّيْهِ ثُمَّ انْفَتَلَ كَانْفِتَالِ أَبِي رِمْثَةَ يَعْنِي نَفْسَهُ فَقَامَ الرَّجُلُ الَّذِي أَدْرَكَ مَعَهُ التَّكْبِيْرَةَ الْأُوْلٰى مِنَ الصَّلٰوةِ يَشْفَعُ فَوَثَبَ عُمَرُ فَأَخَذَ بِمَنْكِبَيْهِ فَهَزَّهُ ثُمَّ قَالَ اجْلِسْ فَإِنَّهُ لَنْ يَهْلِكَ أَهْلُ الْكِتٰبِ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ بَيْنَ صَلٰوتِهِمْ فَصْلٌ فَرَفَعَ النَّبِيُّ ﷺ بَصَرَهُ فَقَالَ أَصَابَ اللهُ بِكَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ. (ابوداود ص۱۴۳ ج۱)

**ترجمه** حضرت ازرق بن قيس رحمه الله فرمايي چه زمونږ يو امام چه د هغوی كنيت ابو رمثه وو، مونځ يې وكړو او وې فرمايل ما دا مونځ چه تاسو ته كړې دې او يا د دې په شان مونځ مې د حضور ﷺ سره كړې دې . او وې فرمايل ابو بكر رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه په رومبی صف كښې د رسول الله ﷺ نه ښي طرف ته ولاړ وو، يو سړې چه تكبير اولی سره حاضر شوې وو رسول الله ﷺ مونځ راكړو. او بيا ښي او چپ طرف ته يې سلام وګرځولو تردې چه مونږ د هغوی ﷺ رخسار مبارك وليدلو. بيا رسول الله ﷺ وروستو را وګرځيدلو لكه څنګه چه ابو رمثه را ګرځيدلو، نو په دې كښې يو سړې چه سمدستی ودريدلو چه دوه ركعته وكړي، حضرت عمر رضی الله عنه زر پاڅيدلو او د هغه سړي اوګې يې ونيولې، او وې خوزولو ،ورته وې ويل چه كينه ، ځكه چه پخواني اهل كتاب له همدې كبله هلاك شوي دي چه هغوی به خپلو مونځونو كښې فصل (جداوالی) نه راوستلو. (فرض او سنت به يې يوځاي كول) نو رسول الله ﷺ خپل نظر مبارك اوچت كړو او وې فرمايل اې عمر! الله ﷻ تاته صحيح خبره ښودلې ده.

**مسئله** :- رومبی صف كښې به صرف بالغ سړي وي ، ددينه پس به ماشومان وي (اوكه څوك خنثی وي نو هغه به ماشومانو پسې وي) ، او دهغوی نه وروستو به ښځې ودريږي.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ خَيْرُ صُفُوْفِ الرِّجَالِ أَوَّلُهَا وَشَرُّهَا اٰخِرُهَا وَخَيْرُ صُفُوْفِ النِّسَاءِ اٰخِرُهَا

وَشَرُّهَا أَوَّلُهَا. (مسلم ص۱۸۲ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هريره رضی الله عنه فرمايي چه رسول الله ﷺ وفرمايل: بهتر صفونه د سړو ړومبی صفونه دی، او بد صفونه آخری صفونه دی. او د ښځو د پاره بهتر صفونه آخری صفونه دی. او بد صفونه ړومبی صفونه دی.

أَبُو مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ أَلَا أُحَدِّثُكُمْ بِصَلٰوةِ رَسُولِ اللهِ ﷺ قَالَ أَقَامَ الصَّلٰوةَ فَصَفَّ الرِّجَالَ وَصَفَّ خَلْفَهُمُ الْغِلْمَانَ ثُمَّ صَلّٰى بِهِمْ. (ابوداود ص۹۹ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو مالك اشعري رضی الله عنه فرمايي: آيا زه تاسوته د رسول الله ﷺ مونځ بيان نه کړم؟ بيا يي وفرمايل: مونځ ودروئ، اول يي د سړو صفونه جوړ کړل، بيا هغې پسې يي د هلکانو صفونه جوړ کړل، بيا يي مونځ وکړو.

عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضی الله عنه فَقَامَ عَلَيْهِ رَسُولُ اللهِ ﷺ وَصَفَفْنَا وَالْيَتِيمُ وَرَاءَهُ وَالْعَجُوزُ مِنْ وَرَائِنَا فَصَلّٰى لَنَا رَسُولُ اللهِ ﷺ. (مسلم ص۲۳۴ ج۳، بخاری ص۱۱۹ ج۱)

**ترجمه**: حضرت انس بن مالك رضی الله عنه نه روايت دي چه د رسول الله ﷺ د پاره جاى نماز (مصلى) وغوړولي شوه. هغوی ﷺ په هغې باندې ودريدل، او ما او زما وروريتيم د هغوی پسې صف جوړ کړو. او بوډۍ (يعنی والده يا نيا) زمونږ پسې ودريده. نو رسول الله ﷺ مونږ ته مونځ راکړو.

وَعَنْهُ أَيْضًا أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ صَلّٰى بِهِ وَبِأُمِّهِ أَوْ خَالَتِهِ قَالَ فَأَقَامَنِي عَنْ يَمِينِهِ وَأَقَامَ الْمَرْأَةَ خَلْفَنَا. (مسلم ص ۲۳۴ ج۱)

**ترجمه**: حضرت انس رضی الله عنه نه روايت دي چه رسول الله ﷺ هغوی ته او د هغوی والدې يا ترور ته مونځ ورکړو. فرمايي چه زه خو هغوی ﷺ خپل ښی طرف ته ودرولم، او ښځه يې زمونږ نه وروستو ودروله.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنه قَالَ كَانَتْ إِمْرَأَةٌ تُصَلِّي خَلْفَ رَسُولِ اللهِ ﷺ حَسْنَاءُ مِنْ أَحْسَنِ النَّاسِ وَكَانَ بَعْضُ الْقَوْمِ يَتَقَدَّمُ حَتّٰى يَكُونَ فِي الصَّفِّ الْأَوَّلِ لِئَلَّا يَرَاهَا وَيَسْتَأْخِرُونَ بَعْضُهُمْ حَتّٰى يَكُونَ فِي الصَّفِّ الْمُؤَخَّرِ فَإِذَا رَكَعَ نَظَرَ مِنْ تَحْتِ إِبْطَيْهِ فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالٰى وَلَقَدْ عَلِمْنَا الخ (ترمذی ص۱۳۶ ج۱ وقال ابن کثیر رواه احمد وابن ابی حاتم والنسائی وابن ماجه وابن جرير وفيه نكارة) تفسير ابن كثير ص۵۲۹ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمايي چه يوې ښځې په رسول الله ﷺ پسې مونځ کولو. او هغه ډيره ښائسته وه. او بعضې خلقو به په ړومبی صف کښې د ودريدلو کوشش کولو. چه چرته په دې ښځه مو سترګې ونه لګی. او بعضې (منافق دولی) خلق به وروستو پاتې کيدل. کله چه به

رسول الله ﷺ رکوع کوله، نو دغه قسم خلقو به په تخرګونو کښې د کتلو کوشش کولو، نو الله ﷻ دا آیت نازل کړو. ((بیشکه مونږ ته علم دي د وړاندې کیدونکو، او وروستو کیدونکو))

**مسئله**:- د امام نه علاوه که دوه یا د دینه زیات سړي وي، نو امام به وړاندې وي او مقتدیان به وروستو صف جوړوي، او که د امام نه علاوه یو سړې وي، نو دامام نه به ښي طرفته د امام سره ودریږي.

**عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ ﷺ ذَاتَ لَيْلَةٍ فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ فَأَخَذَ رَسُولُ اللهِ ﷺ بِرَأْسِي مِنْ وَرَائِي فَجَعَلَنِي عَنْ يَمِينِهِ فَصَلَّى.** (بخاری ص۱۰۰ ج۱، مسلم ص۲۶۱ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عباس ؓ فرمایي چه ما د رسول الله ﷺ سره یوه شپه مونځ وکړو، نو زه د رسول الله نه چپ طرف ته ودریدم، رسول الله زما سر ونیولو د وروستونه یې زه خپل ښي طرف ته ودرولم.

**مسئله**:- امام او مقتدیان به ودریږي کله چه اقامت کوونکې (**حی علی الصلوة**) ووایي، او امام به شروع کوي کله چه اقامت کوونکې (**قد قامت الصلوة**) ووایي لکه چه د حضرت امام ابو حنیفه ؒ او د امام محمد ؒ همدا قول دي او دامام ابو یوسف په نزد به هغه وخت شروع کوي کله چه اقامت کوونکې اقامت ختم کړي، او دا کلام په استحباب کښې دې، په جواز کښې نه دې، او د جمهورو په نزد د امام ابو یوسف قول زیات راجح دې د دې په خاطر چه مؤذن هم د امام سره په ابتداء کښې شریك شي، د امام مالك او امام شافعي په نزد د اقامت د فراغت نه وروسته او د صفونو د صحیح والي نه وروسته شروع کول بهتر دي، لکه چه د حضرت نعمان بن بشیر په روایت کښې دي، چه رسول الله ﷺ به زمونږ صفونه صحیح کول، بیا به یې تکبیر کولو، (**ابوداؤد**)، (**شرح نقایه ص۶۳ ج۱**).

فتاوی عالمګیری دا جزئیه چه بیان کړې شوې ده، چه: (**اِذَا دَخَلَ الرَّجُلُ عِنْدَ الْاِقَامَةِ يُكْرَهُ لَهُ الْاِنْتِظَارُ قَائِمًا وَلٰكِنْ يَقْعُدُ ثُمَّ يَقُوْمُ اِذَا بَلَغَ الْمُؤَذِّنُ قَوْلَهُ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ كَذَا فِي الْمُضْمَرَاتِ**)، (**فتاوی عالمګیری ص۵۹ ج۱**)

**ترجمه**: کله چه څوك د اقامت په وخت په مونځ کښې داخل شي نو ده دپاره ودریدل او انتظار مکروه دي، (یعنی خلاف اولی دی) بلکه هغه به کیني او چه کله اقامت کوونکې (**حی علی الفلاح**) ووایي نو ودریګي به

ددې مطلب داکیدې شي چه کله امام مصلی ته نه وي راغلې، نو ودریدل او دهغه انتظار کول

مناسب نه دی ، بلکه کېنی به، او چه کله اقامت کوونکې (حی علی الفلاح) ووایی.هغه وخت به ودرېږی ، ددې دا مطلب نه دې چه مطلق ودرېدل مکروه یا خلاف اولی دی . ځکه چه په مونځ کښې دشرکت دپاره د اقامت په وخت څه خاص وخت مقرر نه دې چه ددې خلاف کول جائز نه دی بلکه دا دخلقو په سهولت باندې منحصر دې ، که د صفونو صحیح والې مقصود وی نو اقامت نه وړاندې هم ودرېدلې شی ، او په شروع د اقامت کښې هم او د اقامت په پوره کېدلو هم لیکن بهتر دا دی چه د (حی علی الفلاح) په وخت کښې ودرېږی او د (قد قامت الصلوة) په وخت کښې مونځ شروع کړی.

علامه بدرالدین عینی رحمه الله لیکلي دی چه:

وَقَدِ اخْتَلَفَ السَّلَفُ مَتٰى يَقُوْمُ النَّاسُ اِلَى الصَّلٰوةِ فَذَهَبَ مَالِكٌ وَّجُمْهُوْرُ الْعُلَمَاءِ اِلٰى اَنَّهٗ لَيْسَ لِلْقِيَامِهِمْ حَدٌّ وَّلٰكِنِ اسْتَحَبَّ عَامَّتُهُمُ الْقِيَامَ اِذَا اَخَذَ الْمُؤَذِّنُ فِى الْاِقَامَةِ. (عمدة القاری ص ۱۵۳ ج ۵)

**ترجمه**: د سلفو اختلاف دې په دې باره کښې چه خلق به د مونځ د پاره څه وخت ودرېږی ؟ امام مالك او جمهور علماء دې طرفته تللی دی چه د ودرېدلو دپاره څه وخت مقرر نه دې . البته عامو علماء کرامو ویلی دی چه مؤذن اقامت شروع کړی نو دې وخت کښې ودرېدل مستحب دی .

او همدارنګه امام مالك هم تصریح کړې ده .

وَاَمَّا قِيَامُ النَّاسِ حِيْنَ تُقَامُ الصَّلٰوةُ فَاِنِّىْ لَمْ اَسْمَعْ فِىْ ذٰلِكَ بِحَدٍّ يُّقَامُ لَهٗ اِلَّا اَنِّىْ اَرٰى ذٰلِكَ عَلٰى قَدْرِ طَاقَةِ النَّاسِ فَاِنَّ مِنْهُمُ الثَّقِيْلَ وَالْخَفِيْفَ وَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ اَنْ يَّكُوْنُوْا كَرَجُلٍ وَّاحِدٍ. (موطا امام مالك ص ۵٦)

**ترجمه** : د خلقو د مونځ د پاره ودرېدل په دې باره کښې څه خاص حد ما نه دې آورېدلې، چه پدې وخت کښې دې ودرېګی ، او زما خیال دې چه دا خبره د خلقو په طاقت او برداشت باندې مبنی ده. بعضې خلق درانده وی ، او بعضې خلق سپك لاسی وی ، عام خلق د یو سړی په شان نه شی کېدلې .

مصنف دعالمګیری لیکلې دی چه:

اِنْ كَانَ الْمُؤَذِّنُ غَيْرَ الْاِمَامِ وَكَانَ الْقَوْمُ مَعَ الْاِمَامِ فِى الْمَسْجِدِ فَاِنَّهٗ يَقُوْمُ الْاِمَامُ وَالْقَوْمُ اِذَا قَالَ الْمُؤَذِّنُ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ عِنْدَ عُلَمَائِنَا الثَّلَاثَةِ وَهُوَ الصَّحِيْحُ فَاَمَّا اِذَا كَانَ الْاِمَامُ خَارِجَ الْمَسْجِدِ فَاِنْ دَخَلَ الْمَسْجِدَ مِنْ قِبَلِ الصُّفُوْفِ كُلَّمَا جَاوَزَ صَفًّا قَامَ ذٰلِكَ الصَّفُّ وَاِلَيْهِ مَالَ شَمْسُ الْاَئِمَّةِ الْحَلْوَانِىُّ وَالسَّرَخْسِىُّ وَشَيْخُ الْاِسْلَامِ خَوَاهِرْ زَادَهٗ وَاِنْ كَانَ الْاِمَامُ دَخَلَ الْمَسْجِدَ مِنْ قُدَّامِهِمْ يَقُوْمُوْنَ كَمَا رَاَوُا الْاِمَامَ (الى ان قال) وَيُكَبِّرُ الْاِمَامُ قُبَيْلَ قَوْلِهٖ قَدْ قَامَتِ الصَّلٰوةُ وَقَالَ شَمْسُ الْاَئِمَّةِ الْحَلْوَانِىُّ وَهُوَ الصَّحِيْحُ هٰكَذَا فِى الْمُحِيْطِ. (فتاوی عالمګیری ص ۵۷ ج ۱)

**ترجمه**: که مؤذن مکبر د امام نه علاوه بل څوك وی، او خلق د امام سره په جومات کښې وی، نوچه کله مکبر **(حی علی الفلاح)** ووایی امام به هم او مقتدیان به هم ودریګی، زمونږ د درې وارو علماء (امام ابو حنیفه، امام محمد او امام ابو یوسف) همدا قول دې او دا صحیح ده.

او که امام د جومات نه بهر وی او هغه د صفونو په لار باندې داخلیږی، نو چه کله هغه په کوم صف راتیریږی نو هغه صف والا به ودریږی، او دې طرف ته میلان دې د شمس الائمه حلوانی، امام سرخسی، او شیخ الاسلام خواهرزاده، او که امام په جومات کښې داخلیږی د مقتدیانو د دمخې له طرف نه نو چه څنګه هغوی امام لره ووینی نو ټول به ودریږی، او امام به د **(قدقامت الصلوة)** نه وړاندې تکبیر وایی. شمس الائمه حلوانی دا صحیح ګرځولې ده.

او حضرت امام زهری نه نقل دی چه:

**عَنِ ابْنِ شِهَابٍ الزُّهْرِيِّ اَنَّ النَّاسَ كَانُوْا سَاعَةَ يَقُوْلُ الْمُؤَذِّنُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ يُقِيْمُ الصَّلٰوةَ يَقُوْمُوْا النَّاسُ اِلَى الصَّلٰوةِ فَلَا يَاْتِي النَّبِيُّ ﷺ مَقَامَهُ حَتّٰى يُعَدِّلَ الصُّفُوْفَ. (مصنف عبد الرزاق ص ۵۰۰ ج ۱)**

**ترجمه**: کله چه مؤذن (مکبر) د اقامت صلوة د پاره ((الله اکبر الله اکبر)) وویلو، نو خلق به ودریدل او رسول الله ﷺ به خپلې مصلی باندې تر هغه وخته پورې نه ودریدلو ترڅو چه به یې صفونه نه وو صحیح کړې.

## جماعت او د هغې فضیلت -

۱ - د اکثر علماء او فقهاء کرامو په نزد په فرض مونځونو کښې جماعت سنت مؤکده قریب الوجوب (واجبو ته نزدې) دې ،بغیر د عذر نه ددې پریښودل جائز نه دی ، دا داسې سنت دی ، چه په دې عمل کول باعث د هدایت دی ، او د دې پریښودل ګمراهی ده. **(شرح نقایه ص ۸۳ ج ۱)**.

او ددې په سنت مؤکده کیدلو باندې ډیر احادیث دلالت کوی

**عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ﷺ قَالَ مَنْ سَرَّهٗ اَنْ يَّلْقَى اللّٰهَ تَعَالٰى غَدًا مُسْلِمًا فَلْيُحَافِظْ عَلٰى هٰؤُلَاءِ الصَّلَوٰتِ حَيْثُ يُنَادٰى بِهِنَّ فَاِنَّ اللّٰهَ شَرَعَ لِنَبِيِّكُمْ سُنَنَ الْهُدٰى وَاِنَّهُنَّ مِنْ سُنَنِ الْهُدٰى وَلَوْ اَنَّكُمْ صَلَّيْتُمْ فِيْ بُيُوْتِكُمْ كَمَا يُصَلِّيْ هٰذَا الْمُتَخَلِّفُ فِيْ بَيْتِهٖ لَتَرَكْتُمْ سُنَّةَ نَبِيِّكُمْ لَضَلَلْتُمْ وَمَا مِنْ رَجُلٍ يَّتَطَهَّرُ فَيُحْسِنُ الطُّهُوْرَ ثُمَّ يَعْمِدُ اِلٰى مَسْجِدٍ مِّنْ هٰذِهِ الْمَسَاجِدِ اِلَّا كَتَبَ اللّٰهُ لَهٗ بِكُلِّ خَطْوَةٍ يَخْطُوْهَا حَسَنَةً وَّيَرْفَعُهٗ بِهَا دَرَجَةً وَّيَحُطُّ عَنْهُ بِهَا سَيِّئَةً وَّلَقَدْ رَاَيْتُنَا وَمَا يَتَخَلَّفُ عَنْهَا اِلَّا مُنَافِقٌ مَّعْلُوْمُ النِّفَاقِ وَلَقَدْ كَانَ الرَّجُلُ يُؤْتٰى بِهٖ يُهَادٰى بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ حَتّٰى يُقَامَ فِي الصَّفِّ. (مسلم ص ۲۳۲ ج ۱)**

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن مسعود ؓ فرمایی چاته چه دا خبره خوښه وی چه هغه سبا ته د الله ﷻ په دربار کښې د اطاعت په حالت کښې پیش شی، نو هغه ته پکار دی چه هغه ددې مونځونو

حفاظت وکړی په کوم ځای کښې چه ددې مونځونو دپاره اذان کیږی، ځکه چه الله ﷻ ستاسو دنبی ﷺ د پاره د هدایت سنت (دستور او طریقې) مقرر کړی دی . اوددې مونځونو د پاره د جماعت حاضری هم د هدایت د سنتو نه ده ، اوکه تاسو خلق داسې په کورونو کښې مونځونه کول شروع کړئ، لکه څنګه چه وروستو پاتې کیدونکې سړې ( د یوخاص سړی طرف ته یې اشاره وکړه چه منافق وو) نو تاسو به هم د خپل نبی ﷺ سنت پریږدئ ، او که تاسو د خپل نبی ﷺ سنت پریښودل نو تاسو به ګمراه شئ. څوك هم چه د خپل کورنه د پاکئ په حالت کښې راوځی ، یو جومات ته د مونځ ادا کولو د پاره ، نو الله ﷻ د هغه د پاره په هر قدم یوه یوه نیکی لیکی ، او یوه یوه درجه یې اوچتوی ، او یوه یوه بدی یې ختموی ، (حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمایی ) اومونږ خپل حال لیدلې دې ، د رسول الله ﷺ په زما نه کښې چه مونږ نه به هغه خلق د جومات نه پاتې کیدل چه د هغه منافقت به ښکاره وو ، اوکه نه نو څوك به هم د جومات څخه نه پاتې کیدل، تر دې چه کمزوری او بیماران خلق به هم د دوو کسانو په اوګو په زمکه پښې را ښکونکی هم راتلل او په صف کښې به شریکیدل

عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عُمَرَ ﷺ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ قَالَ صَلٰوةُ الْجَمَاعَةِ تَفْضُلُ صَلٰوةَ الْفَذِّ بِسَبْعٍ وَّعِشْرِيْنَ دَرَجَةً. (بخاری ص۸۹ ج۱مسلم ص۲۳۱ ج۱)

**توجمه** حضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی د جماعت سره مونځ کول د خان له مونځ ادا کولو نه اوه ویشت درجې زیات دې

وَفِیْ رِوَایَةِ اَبِیْ سَعِیْدِ الْاَنْصَارِیِّ بِخَمْسٍ وَّعِشْرِیْنَ دَرَجَةً. (بخاری ص۸۹ ج۱مسلم ۲۳۱ ج۱عن ابی هریرة)

**توجمه** د حضرت ابو سعید انصاری ﷺ په روایت کښې د پنځویشت درجو ذکر دی .یعنی ادنی درجه پنځویشت ده، او اعلی درجه یې اوه ویشت ده .

عَنْ اَبِیْ مُوْسٰی قَالَ قَالَ النَّبِیُّ ﷺ اَعْظَمُ النَّاسِ اَجْرًا فِی الصَّلٰوةِ اَبْعَدُهُمْ فَاَبْعَدُهُمْ مَمْشًی وَالَّذِیْ یَنْتَظِرُ الصَّلٰوةَ حَتّٰی یُصَلِّیَهَا مَعَ الْاِمَامِ اَعْظَمُ اَجْرًا مِّنَ الَّذِیْ یُصَلِّیْ ثُمَّ یَنَامُ. (بخاری ص۹۰ ج۱،مسلم ص۲۳۸ ج۱)

**توجمه** حضرت ابو موسی اشعری ﷺ نه روایت دې ، چه رسول الله ﷺ فرمایی چه د مونځ په سلسله کښې زیات اجر او ثواب والا هغه سړې دې چه ډیر ډ لرې نه راځی او جماعت کښې شاملیږی او هغه سړې چه د مونځ انتظار کوی تر دې چه هغه د امام سره هغه مونځ اداء کړی ، هغه د هغه نه زیات اجر لری چه مونځ وکړی بیا ویده شی .

مَنْ صَلّٰی لِلّٰهِ اَرْبَعِیْنَ یَوْمًا فِیْ جَمَاعَةٍ یُدْرِكُ التَّكْبِیْرَةَ الْاُوْلٰی كُتِبَتْ لَهٗ بَرَاءَتَانِ بَرَاءَةٌ مِّنَ النَّارِ وَبَرَاءَةٌ مِّنَ النِّفَاقِ . (مصابیح ص۸)

**ترجمه**: کوم سړی چه څلویښت ورځې له جماعت سره مونځ اداء کړو داسې چه له ده نه تکبیر اولی فوت نشی . نو د ده دپاره دوه برائتونه لیکلې کیږی، یو د دوزخ د اور نه دنجات برائت او دویم د نفاق نه برائت.

بعضې فقهاء کرام او مشائخو له جماعت سره مونځ کول واجب ګرځولی دی او دې دپاره هغوی ددې حدیث نه استدلال کړې دې چه په هغې کښې د رسول الله ﷺ ارشاد دې چه: زه اراده لرم چه مؤذن ته د اذان حکم وکړم او هغه اذان وکړی ، بیا زه چاته ووایم چه هغه خلقو ته مونځ ورکړی او زه د ځان سره څه سړی بوزم او لاړ شم چه د هغوی سره لرګی وی ، او د هغه خلقو کوروننو ته لاړ شم چه د جماعت سره مونځ نه کوی ،نو زه د هغوی کورونه په اور سره وسوزوم . (بخاری ص۹۰ ج۱،مسلم ص۲۳۲ ج۱).

بعضې فقهاء کرام په جماعت سره مونځ کولو ته فرض عین وایی لکه امام احمد ، داؤد ظاهری ، عطاء ابن ابی رباح . ابو ثور ، د هغوی استدلال ددې احادیثو نه دې:

**مَنْ سَمِعَ النِّدَآءَ فَلَمْ يَأْتِهِ فَلَا صَلٰوةَ لَهُ اِلَّا مِنْ عُذْرٍ**.(مستدرك حاكم ص۲۴۵ ج۱،ابن ماجه ص۵۷)

**ترجمه**: رسول الله ﷺ فرمایی چه کوم سړی د اذان آواز واوریدلو او بیا مونځ ته حاضر نه شو، نو دده مونځ نه کیږی مګر دا چه که د عذر له کبله په جماعت کښې حاضر نه شو نو ګنهګار به نه وی.

**لَا صَلٰوةَ لِجَارِ الْمَسْجِدِ اِلَّا فِي الْمَسْجِدِ**.(مستدرك حاكم ص۲۴۶ ج۱،دارقطنی ص۴۲۰ ج۱)

**ترجمه**: رسول الله ﷺ فرمایی چه د مسجد د ګاونډی تر هغې مونځ نه کیږی تر څو پورې چه جوماتته نه وی راغلې.

د بعضې فقهاء کرامو په نزد مونځ په جماعت سره فرض کفایه دې لکه امام کرخی ، امام طحاوی ، د امام شافعی اکثر پیروکار فرمایی ، او دا حضرات د پورته ذکر شوی احادیثو نه استدلال کوی . لیکن اکثر محدثین او فقهاء کرام (لاصلوة لجار المسجد الا فی المسجد) حدیث په کامل درجه باندې محمول کوی ،یعنی کامل مونځ نه کیږی د جومات د ګاونډی بغیر د جومات نه ، او دا هم داسې دی لکه څنګه چه په حدیث کښې راغلې دی چه دتښتیدلې غلام مونځ نه کیږی او د نافرمانه ښځې مونځ نه کیږی . یعنی ددوئ مونځ د کاملې درجې مونځ نه دې تر څو چه په دې معصیت کښې مبتلاء وی.

په دې ټولو مذاهبو کښې اول مذهب زیات راجح او صحیح دې .

**د امامت د پاره زیات بهتر او غوره څوک دې**:- د امام ابو حنیفه په نزد د امامت دپاره د ټولو نه بهتر هغه سړې دې چه د مونځ سره متعلق احکام شرعیه ، د مونځ شرطونه ،د مونځ ارکان

په سنتو او مستحباتو زیات پوه وی او هغه مقدار قراءة چه مونځ پرې جائز کیږی په ښه طریقې سره ادا کولې شی. (هدایه ص۱۰۰ ج۱، شرح نقایه ص۵۸ ج۱ ص۸۵، کبیری ص۵۱۲)

دغه رنګې امام بخاری هم باب قائم کړې دې چه: (اَهْلُ الْعِلْمِ وَالْفَضْلِ اَحَقُّ بِالْاِمَامَةِ) (بخاری ص۹۳ ج۱)

«یعنی اهل علم او فضل د امامت کولو زیات حقدار دی».

امام نووی لیکلی دی چه:

وَقَالَ مَالِكٌ وَالشَّافِعِيُّ وَاَصْحَابُهُمَا اَلْاَفْقَهُ مُقَدَّمٌ عَلَى الْاَقْرَءِ لِاَنَّ الَّذِيْ يَحْتَاجُ اِلَيْهِ مِنَ الْقِرَاءَةِ مَضْبُوْطٌ وَالَّذِيْ يَحْتَاجُ اِلَيْهِ مِنَ الْفِقْهِ غَيْرُ مَضْبُوْطٍ وَقَدْ يَعْرِضُ فِي الصَّلٰوةِ اَمْرٌ لَا يَقْدِرُ عَلٰى مُرَاعَاةِ الصَّوَابِ فِيْهِ اِلَّا كَامِلُ الْفِقْهِ.

(نووی مع مسلم ص۲۳۶ ج۱)

**توجمه**: امام مالك، امام شافعی او دهغوی اصحاب وایی چه زیات فقاهت والا ډیر حقدار دې له ښه تجوید کونکی نه ځکه چه کوم ځیز طرفته په قرائت کښې ضرورت راځی هغه د ضبط او قاعدې د لاندې دی، «هغه په آسانئ معلومیدې شی» او کوم ځیز چه هغې طرف ته ضرورت راځی، «فقه او علم» هغه د قاعدې او ضبط لاندې نه وی، او کله په مونځ کښې داسې خبره پیښیږی چه د هغې په حل کولو باندې سیوا د کامل الفقه او دعلم والا نه بل څوك قادر نه وی.

د امام ابو حنیفه په مسلك نقل کولو کښې د امام نووی نه سهوه شوې ده، د امام صاحب مسلك د احنافو په کتابونو کښې درج دې، البته د امام ابو یوسف مسلك دادې چه أقرءَ مقدم دې په افقه باندې. لکه څنګه چه په (شرح نقایه ص۸۵ ج۱) لیکل شوی دی.

عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ مَرِضَ النَّبِيُّ ﷺ فَاشْتَدَّ مَرَضُهُ فَقَالَ مُرُوْا اَبَابَكْرٍ فَلْيُصَلِّ بِالنَّاسِ. (بخاری ص۹۳ ج۱ مسلم ص۱۷۹ ج۱)

**توجمه**: حضرت ابو موسی اشعری ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ بیمار شو او د هغوی ﷺ بیماری زیاته شوه هغوی ﷺ وفرمایل چه ابوبکر ﷺ ته حکم ورکړه چه هغوی مونځ ورکړی.

اِذَا حَضَرَتِ الصَّلٰوةُ فَلْيُؤَذِّنْ لَكُمْ اَحَدُكُمْ وَلْيَؤُمَّكُمْ اَكْثَرُكُمْ قُرْاٰنًا. (مصابیح ص۴۶)

**توجمه**: رسول الله ﷺ فرمایی چه کله د مونځ وخت راشی نو په تاسو کښې دې یوسړې اذان وکړی او په تاسو کښې دې زیات قرآن لوستلو والا امامت وکړی.

لِيُؤَذِّنْ لَكُمْ خِيَارُكُمْ وَلْيَؤُمَّكُمْ قُرَّاءُكُمْ. (مصابیح ص۴۶)

**توجمه**: رسول الله ﷺ فرمایی چه په تاسو کښې دې ښه خلق اذان وکړی او ښه قرآن لوستونکې دې امامت وکړی.

عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ (مرفوعا) إِذَا كَانُوا ثَلَاثَةً فَلْيَؤُمَّهُمْ أَحَدُهُمْ وَأَحَقُّهُمْ بِالْإِمَامَةِ أَقْرَؤُهُمْ. (مسلم ص ۲۳۱ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو سعيد خدري ﷺ نه روايت دي چه رسول الله ﷺ فرمايي چه درې کسان وي نو په هغوی کښې دې يو سړې امامت وکړي او په هغوی کښې به زيات حقدار د امامت هغه وی چاته چه ښه قرآن ياد وی او ښه تلاوت کولې شي.

عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ (مرفوعا) يَؤُمُّ الْقَوْمَ أَقْرَؤُهُمْ لِكِتَابِ اللهِ فَإِنْ كَانُوا فِي الْقِرَاءَةِ سَوَاءً فَأَعْلَمُهُمْ بِالسُّنَّةِ فَإِنْ كَانُوا فِي السُّنَّةِ سَوَاءً فَأَقْدَمُهُمْ هِجْرَةً سَوَاءً فَأَقْدَمُهُمْ سِلْمًا. (اسلاما) وَلَا يَؤُمَّنَّ الرَّجُلُ الرَّجُلَ فِي سُلْطَانِهِ وَلَا يَقْعُدُ فِي بَيْتِهِ عَلَى تَكْرِمَتِهِ إِلَّا بِإِذْنِهِ وَفِي رِوَايَةٍ مَكَانَ سِلْمًا سِنًّا. (مسلم ص ۲۳۶ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو مسعود انصاري ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمايي امامت دې هغه سړې وکړي د چا چه تلاوت ښه وی نو که ټول په قراءة کښې برابر وی، (ټول يو شانته ښه لوستلو والاوی) نو بيا دې هغه سړې مونځ ورکړي چه د رسول الله ﷺ په سنتو د ټولو نه زيات عالم وی، (يعنی چه ځوك علم کښې زيات وی) که په علم کښې هم ټول برابر وی نو بيا دې هغه سړې مونځ ورکړي چا چه هجرت ړومبې کړې وی، که په هجرت کښې هم ټول برابر وی نو بيا دې هغه سړې مونځ ورکړي چا چه ړومبې ايمان راوړې وی، او په يو روايت کښې د اسلام په ځائ د عمر ذکر دې يعنی د چا چه عمر زيات وی هغه دې مونځ ورکړي.

او رسول الله ﷺ فرمايي يو سړې دې د بل سړي په مشرئ کښې مونځ نه ورکوی، د هغه د اجازت نه بغير او د هغه د اجازت نه بغير دې د هغه په (خاص) ځائ نه کينی.

د حضرت مالك بن حويرث ﷺ په ورايت کښې راغلی دی چه مونږ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او ترشلو ورځو پورې مونږ هلته حصار وو او بيا رسول الله ﷺ مونږ ته اجازت را کړو او وې فرمايل چه: (إِذَا حَضَرَتِ الصَّلٰوةُ فَلْيُؤَذِّنْ أَحَدُكُمْ ثُمَّ لِيَؤُمَّكُمْ أَكْبَرُكُمْ. (مسلم ص ۲۳۶ ج۱)

**ترجمه**: چه کله د مونځ وخت راشی نو په تاسو کښې دې يو سړې اذان وکړي او په تاسو کښې چه ځوك په عمر کښې زيات وی هغه دې مونځ ورکړي.

صاحب د هدايه ليکلې دی چه: (وَأَقْرَؤُهُمْ كَانَ أَعْلَمَهُمْ لِأَنَّهُمْ كَانُوا يَتَلَقَّوْنَهُ بِأَحْكَامِهِ فَقُدِّمَ فِي الْحَدِيثِ وَلَا كَذٰلِكَ فِي زَمَانِنَا فَقَدَّمْنَا الْأَعْلَمَ). (هدايه ص ۱۰۰ ج۱)

**ترجمه**: په صحابه کرامو ﷺ کښې به زيات آقرء هغه ځوك وو چه کوم به زيات عالم وو، ځکه چه هغوی قرآن د رسول الله ﷺ نه سره د احکامو زده کولو نو له همدې کبله په حديث کښې اقرء وړاندې کړې شو، خو زمونږ په وخت کښې داسې نه ده، اقرء اکثر بې علمه وی، لدې کبله مونږ عالم په

قاري باندې مقدم کړو.

د صاحب هدایه د دې قول تائید لاندې ذکر شوی احادیثو نه او د سلفو د اقولو نه هم ظاهریږي:

مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ ﷺ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ لَهُ اَوْ لِصَاحِبٍ لَّهُ اِذَا حَضَرَتِ الصَّلٰوةُ فَاَذِّنَا ثُمَّ اَقِيْمَا ثُمَّ لِيَؤُمَّكُمَا اَكْبَرُكُمَا سِنًّا وَفِي حَدِيْثِ مَسْلَمَةَ قَالَ وَكُنَّا يَوْمَئِذٍ مُتَقَارِبَيْنِ فِي الْعِلْمِ. (ابوداود ص۸۶ ج۱، سنن الکبری للبیهقی ص۱۲۰ ج۳)

**ترجمه**: حضرت مالك بن حويرث ﷺ وایی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی ته یا د هغوی ﷺ نورو ملګرو ته وفرمایل چه د مونځ وخت راشي نو تاسو اذان وکړئ بیا اقامت وکړئ اوبیا چه په تاسو کښې په عمر کښې څوك زیات وی هغه دې امامت وکړي ،او د حضرت مسلمه ﷺ په روایت کښې راغلي دی چه حضرت مالك بن حويرث ویلی دی چه مونږ خلق هغه وخت په علم کښې تقریبًا یو شان وو.

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنَّا اِذَا تَعَلَّمْنَا مِنَ النَّبِيِّ ﷺ عَشْرَ اٰيَاتٍ مِّنَ الْقُرْاٰنِ لَمْ نَتَعَلَّمْ مِنَ الْعَشْرِ الَّتِيْ نَزَلَتْ بَعْدَهَا حَتّٰى نَعْلَمَ مَا فِيْهِ (بیهقی ص۱۲۰ ج۳)

**ترجمه**: حضرت عبدالله ﷺ فرمایي چه مونږ به کله د نبی ﷺ نه لس آیتونه د قرآن لوستل او یاد به مو کړل نو مونږ به وړاندې نه تللوتر څو چه به مونږ د هغې په مطلب نه وو پوه شوی.

عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ يَقُوْلُ لَقَدْ عِشْنَا بُرْهَةً مِنْ دَهْرِنَا وَاَحَدُنَا يُؤْتَى الْاِيْمَانَ قَبْلَ الْقُرْاٰنِ وَتَنْزِلُ السُّوْرَةُ عَلٰى مُحَمَّدٍ ﷺ فَنَتَعَلَّمُ حَلَالَهَا وَحَرَامَهَا وَاٰمِرَهَا وَزَاجِرَهَا وَمَا يَنْبَغِيْ اَنْ يُّقِفَ عِنْدَهُ مِنْهَا كَمَا تَعَلَّمُوْنَ اَنْتُمُ الْيَوْمَ الْقُرْاٰنَ ثُمَّ لَقَدْ رَاَيْتُ الْيَوْمَ رِجَالًا يُؤْتٰى اَحَدُهُمُ الْقُرْاٰنَ قَبْلَ الْاِيْمَانِ فَيَقْرَاُ مَا بَيْنَ فَاتِحَتِهِ اِلٰى خَاتِمَتِهِ مَا يَدْرِيْ مَا اٰمِرُهُ وَزَاجِرُهُ وَلَا مَا يَنْبَغِيْ اَنْ يُّقِفَ عِنْدَهُ مِنْهُ فَيَنْثُرُهُ نَثْرَ الدَّقْلِ. (سنن الکبری للبیهقی ص۱۲۰ ج۳)

**ترجمه**: حضرت قاسم بن عوف ﷺ فرمایي چه ما دحضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه آوریدلی دی چه هغه به فرمایل چه مونږ به تر یوې زمانې پورې داسې زندګی تیروله چه په مونږ کښې به سړی ته رومبې ایمان حاصل شو او ددینه وروسته قرآن ، او رسول الله ﷺ باندې به چه کله سورة نازل شو نومونږ خلقو به د حلالو او حرامو ،امر او نهی او ټول هغه څیزونه چه په هغې باندې خبریدل ضروری دی هغه به مو زده کول ، داسې لکه څنګه چه تاسو خلق نن سبا قرآن لولئ ، ما نن داسې خلق لیدلی دی چه د ایمان نه وړاندې قرآن حاصل کړي ، هغوی قرآن د اول نه تر آخره پورې لولی ، او په دې پوه نه دی چه ددې امر او نهی څه دی ،او په ضروری امورو باندې خبردار نه دی ، او دقرآن الفاظ برباد کړی لکه څنګه چه بې کاره کهجورې وشیندلې شي.

په حدیث شریف کښې چه راغلي دی چه قاریان خپل امامان جوړ کړئ نو د قاری معنی صرف دا

نه ده چه هغه دې د قرآن حافظ وی او دهغه د قرآن ادا کول دې ښه وی ، قرآن ډیر کرته هغه سړې هم یادوی چه هغه پرې عمل نه کوی . او نه د دین طرف ته توجه کوی او نه د قرآن د احکامو او نه د خپلو فرضو پابندی کوی . (کتاب الصلوة للامام احمد رحمه الله ص۹)

**د امام صفات** :- رسول الله ﷺ فرمائی چه درې قسمه خلق داسې دی چه د هغوی مونځ مقبول نه وی چه په هغې کښې : (اِمَامُ قَوْمٍ وَهُمْ لَهُ كَارِهُوْنَ) (مصابيح ص۸۰ ج۱)

**ترجمه** : یو هغه امام دې چه هغه دیو قوم خلقو ته خوښ نه وی (دځه شرعی یا اخلاقی عیب له کبله)

اوپه دویم روایت کښې دا الفاظ راغلې دی چه : (لَا تُقْبَلُ صَلٰوةُ مَنْ تَقَدَّمَ قَوْمًا وَهُمْ لَهُ كَارِهُوْنَ). (ابوداود ص۸۸ ج۱، ابن ماجه ص۶۸ مصابیح ص۸۰)

**ترجمه** : د هغه سړی مونځ قبول نه وی چه هغه داسې خلقو ته مونځ ورکوی چه هغوی یی بد ګنې په امام باندې لازم دی چه مونځ اوږد نکړی بلکه مختصر مونځ به کوی . رسول الله ﷺ فرمایی چه په تاسو کښې کوم سړی مونځ ورکوی نو هغه دې تخفیف وکړی .

فَإِنَّ فِيْهِمُ السَّقِيْمَ وَالضَّعِيْفَ وَالْكَبِيْرَ وَذَا الْحَاجَةِ. (بخاری ص۹۷ ج۱ مسلم ص۱۸۸ ج۱)

**ترجمه** : ځکه چه په هغوئ کښې به بیماران ، بوډاګان ، کمزورې او حاجتمند خلق وی ، چه هغه زیات وخت ودریدلې نه شی .

حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی چه جهـــاد واجب دې د هر امیر د (حکم) لاندې که هغه نیك وی اوکه بد وی اگرکه هغه په غټو ګناهونو کښې مبتلاء وی ، اومونځ هم واجب (جائز) دې ستاسو د پاره په هر مسلمان پسې که هغه نیك وی اوکه بد وی ، یا په غټو ګناهونو کښې مبتلاء وی او دجنازې مونځ هم ستاسو د پاره واجب دې ، هر نیك او بد مسلمان باندې اگر چه هغه د کبیره ګناهونو ارتکاب کوی . (ابوداؤد ص۳۴۳ ج۱، مصابیح ص۴۶، بیهقی ص۱۲۱ ج۳)

عَنْ عُمَيْرِ بْنِ هَانِئٍ قَالَ رَأَيْتُ اِبْنَ عُمَرَ اِذَا حَضَرَتِ الصَّلٰوةُ مَعَ الْحَجَّاجِ صَلّٰى مَعَهٗ. (بخاری ص، بیهقی ص۱۲۲ ج۳ و کذا عن نافع عن ابن عمر)

**ترجمه** : حضرت عمیر بن هانی رضی الله عنه فرمایی چه ما عبدالله بن عمر رضی الله عنه ولیدلو چه کله به د مونځ وخت راتلو نو حجاج بن یوسف (ظالم) پسې به یی مونځ کولو .

عَنْ عَبْدِ الْكَرِيْمِ الْبَكَّاءِ قَالَ اَدْرَكْتُ عَشَرَةً مِّنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ ﷺ كُلُّهُمْ يُصَلِّيْ خَلْفَ اَئِمَّةِ الْجَوْرِ. (بیهقی ص۱۲۲ ج۳)

**ترجمه** : حضرت عبدالکریم بکار رحمه الله فرمایی چه ما د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو نه لس

صحابه ليدلې دي چه هغوی به په ظالمو حکمرانانو پسې مونځ کولو .

**مسئله** :- ولد زنا ، غلام ، او بالکل جاهل پسې مونځ کول مکروه دی ځکه چه اکثر داسې خلق جاهل وی د (ما یجوز به الصلوة) له مسئلو نه ناخبره وی . (هدایه ص۷۷ ج۱، شرح نقایه ص۸۶ ج۱، کبیری ص۵۱۳).

**عَنْ حَمَّادٍ قَالَ سَأَلْتُ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ وَلَدِ الزِّنَا وَالْاَعْرَابِيِّ وَالْعَبْدِ وَالْاَعْمٰى هَلْ يَؤُمُّوْنَ ؟ قَالَ نَعَمْ اِذَا اَقَامُوا الصَّلٰوةَ ، (مصنف عبد الرزاق ص۳۹۷ ج۲)**

**ترجمه** : حضرت حماد فرمایی چه ما د ابراهیم نخعی نه پوښتنه وکړه د ولد زنا او اعرابی (یعنی کوچی) او غلام او نابینا په باره کښې چه آیا دوی امامت کولې شی؟ نو هغوی جواب راکړو چه آو! په شرط ددې چه هغوی صحیح مونځ ورکړې شی .

**مسئله** :- په ړوند پسې مونځ کول هم مکروه دی ، چه هغه قبلې ته مخ کولې نشی . او د پلیتئ نه هم ځان نشی ساتلې . که پوه او متقی وی نو هغه پسې مونځ کول مکروه نه دی. (هدایه ص۷۷ ج۱، شرح نقایه ص۸۶ ج۱، کبیری ص۵۱۳).

**عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ سُئِلَ عَطَاءٌ عَنِ الْاَعْمٰى يَؤُمُّ الْقَوْمَ ؟ فَقَالَ مَا لَهُ اِذَا كَانَ اَفْقَهَهُمْ . (مصنف عبد الرزاق ص۳۹۵ ج۲)**

**ترجمه** : له ابن جریج نه روایت دې چه حضرت عطاء رحمه الله نه د ړوند په باره کښې پوښتنه وکړې شوه چه آیا ړوند خلقو ته امامت ورکولې شی؟ نو هغوی وفرمایل چه : پدې کښې څه حرج دې که هغه په دوی کښې زیات عالم وی .

**عَنْ حَمَّادٍ قَالَ سَأَلْتُ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَعْمٰى هَلْ يَؤُمُّ ؟ فَقَالَ نَعَمْ اِذَا اَقَامَ الصَّلٰوةَ . (مصنف عبد الرزاق ص۳۹۷ ج۲)**

**ترجمه** : حضرت حماد فرمایی چه ما د حضرت ابراهیم نخعی نه پوښتنه وکړه چه آیا ړوند امامت ورکولې شی نو هغوی وفرمایل چه آو ! کولې یی شی په شرط ددې چه هغه صحیح مونځ ادا کولې شی .

**مسئله** :- په فاسق پسې مونځ کول مکروه دی ځکه چه په امام جوړولو کښې د هغه تعظیم وی ، حال دا چه د داسې خلقو د توهین حکم شوې دې که داسې خلق مونځ ورکړی چه هغوی پسې مونځ مکروه وی نو مونځ یی اداء کیږی . درسول الله ﷺ ارشاد دې : **(صَلُّوْا خَلْفَ كُلِّ بَرٍّ وَفَاجِرٍ)**. (نصب الرایه ص۲۷ ج۲، بحواله دارقطنی ومعناه عن معاذ بن جبل مجمع الزوائد ص۶۷ ج۲)

**ترجمه** : هر نیك او بد پسې مونځ وکړئ .

**مسئله** :- په مبتدع یعنی بدعتی امام پسې د مونځ کولو حکم دادې چه که هغه په داسې بدعت کښې مبتلاء وی چه د هغې په وجه د هغه تکفیر نه کیږی نو هغه پسې مونځ کول مکروه دی او که هغه په داسې بدعت کښې مبتلاء وی چه د هغې په وجه د هغه تکفیر کیږی، (بدعت مکفره وی) نو هغه پسې مونځ کول بالکل جائز نه دی.

امام ابوالقاسم (د حنبلی مذهب لوئ امام دې) فرمایلی دی چه (وَمَنْ صَلّٰى خَلْفَ مَنْ يُّعْلِنُ بِبِدْعَةٍ أَوْ يُسْكِرُ أَعَادَ). (مختصر الخرقی ص۲۱)

**ترجمه** : کوم سړې چه داسې سړی پسې مونځ کوی چه ښکاره علی الاعلان د بدعت ارتکاب کوی، یا ښکاره نشه کوی نو هغه دپاره د خپل مونځ اعاده کول پکار دی او د هغه مونځ نه کیږی.

وَمَنْ صَلّٰى خَلْفَ مُشْرِكٍ أَوْ إِمْرَأَةٍ أَوْ خُنْثٰى مُشْكِلٍ أَعَادَ الصَّلٰوةَ (مختصر الخرقی ص۲۱ لابی القاسم عمر ابن الحسین الخرقی المتوفی ۳۳۴ھ مطبوعه دمشق)

**ترجمه** : او چا چه په مشرك پسې یا په ښځې پسې او یا خنثٰی مشکل پسې مونځ وکړو نو هغه دې مونځ را وګرځوی.

**مسئله** :- د سړیو اقتداء په ښځو او نابالغو پسې درسته نه ده.

**مسئله** :- نابالغه بچی پسې فرض، تراویح، نفل یو مونځ هم درست نه دې. (هدایه ص۸۰، ج۱، شرح ص۸۰ ج۱، کبیری ص۵۱۶)

عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَلْإِمَامُ ضَامِنٌ. (ابوداود ص۷۷، ج۱، ترمذی ص۵۰)

**ترجمه** : حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې هغوی فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل : امام ضامن دې، (یعنی د مقتدیانو د مونځ صحیح والې د امام د مونځ په صحیح والی پورې موقوف دې).

عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنِ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيْزِ أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ أَبِيْ سُوَيْدٍ أَقَامَهُ لِلنَّاسِ وَهُوَ غُلَامٌ بِالطَّائِفِ فِيْ شَهْرِ رَمَضَانَ يَؤُمُّهُمْ فَكَتَبَ بِذٰلِكَ إِلٰى عُمَرَ يُبَشِّرُهُ فَغَضِبَ عُمَرُ وَكَتَبَ إِلَيْهِ مَا كَانَ تَوْلُكَ أَنْ تُقَدِّمَ لِلنَّاسِ غُلَامًا لَمْ تَجِبْ عَلَيْهِ الْحُدُوْدُ. (مصنف عبد الرزاق ص۳۹۸ ج۲)

**ترجمه** : حضرت عبدالعزیز بن عمر بن عبدالعزیز رحمه الله نه روایت دې هغوی فرمایی چه محمد بن سوید زه خلقوته دمونځ کولو دپاره ودرولم، او دا وخت دې ماشوم وو، د طائف په مینځ کښې د رمضان په میاشت کښې به ئې خلقوته مونځ ورکولو، نو سوید حضرت عمر بن عبدالعزیز ته خط ولیکلو، او مبارکباد یې ورکړو، (چه ستا صاحبزاده خلقوته مونځ ورکوی) حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله پدې باندې خفه شو، او سوید رحمه الله ته یې خط ولیکلو چه ستا دپاره مناسب نه وو، چه تا یو ماشوم مونځ دپاره ودرولو، چه په هغه باندې حدود واجب نه دی، (یعنی چه هغه بالغ نه

دې چه هغه د فرضو د حدودو، او واجباتو پابند او مکلف وی.

عَنْ عَطَاءٍ قَالَ لَا يَؤُمَّ الْغُلَامُ الَّذِيْ لَمْ يَحْتَلِمْ. (مصنف عبدالرزاق ص۳۹۸ ج۲)

**ترجمه**: حضرت عطاء رحمه الله فرمایی چه ماشوم بالغ نه وی نو هغه دې امامت نه کوی.

عن ابراهیم انه کره ان یؤم الغلام حتی یحتلم. (مصنف عبدالرزاق ص۳۹۸ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابراهیم نخعی نه نقل دی چه هغه به د نابالغه هلکانو امامت مکروه ګڼلو.

همدغه رنګې امام شعبی رحمه الله او امام مجاهد رحمه الله نه هم نقل دی. (مصنف ابن ابی شیبه ص۳۴۹ ج۱)

**مسئله**:- چا چه یو امام پسې مونځ وکړو اوبیا ورته معلومه شوه چه دا بې اودسه وو، نو امام به هم او مقتدی به هم دوباره مونځ کوی.

عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ أَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِيْ طَالِبٍ قَالَ فِي الرَّجُلِ يُصَلِّيْ بِالْقَوْمِ جُنُبًا قَالَ يُعِيْدُ وَيُعِيْدُوْنَ وَكَذَا عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِيْ رَبَاحٍ. (کتاب الاثار للامام محمد ص۵۹)

**ترجمه**: حضرت عمرو بن دینار نه روایت دې، چه حضرت علی رضی الله عنه د هغه سړی په باره کښې ویلی دی چه هغه د جنابت په حالت کښې وی (او په لاعلمئ کښې) خلقوته مونځ ورکړی، حضرت علی رضی الله عنه فرمایی چه هغه دې خپل هم مونځ دوباره وکړی او هغه پسې چه چا مونځ کړې وی هغوی دې هم مونځ دوباره وکړی.

عَنْ إِبْرَاهِيْمَ قَالَ إِذَا فَسَدَتْ صَلٰوةُ الْإِمَامِ فَسَدَتْ صَلٰوةُ مَنْ خَلْفَهُ. (کتاب الاثار ص۵۹)

**ترجمه**: حضرت ابراهیم نخعی فرمایی چه کله د امام مونځ مات شی نو په هغه پسې چه څوک مونځ کوی د هغوی مونځ به هم مات شی.

همدغه شان د حضرت امام شعبی رحمه الله او حماد رحمه الله نه هم نقل دی. (مصنف عبدالرزاق ص۳۵۰ ج۲).

**مسئله**:- که امام د یو وخت فرض کوی، او مقتدی په ده پسې د بل وخت فرض کوی نو دده مونځ نه صحیح کیږی. (هدایه ص۸۱ ج۱، شرح نقایه ص۸۸ ج۱، کبیری ص۵۱۶).

ځکه چه دا د امام مخالفت دې و اومقتدیانو ته حکم کړې شوې دې چه هغوئ د امام موافقت وکړی نه مخالفت.

عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ إِنَّمَا جُعِلَ الْإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ فَلَا تَخْتَلِفُوْا عَلَيْهِ. (بخاری ص۱۰۰ ج۱ مسلم ص۱۷۷ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی: بیشکه امام دې د پاره مقرر شوې دې چه دده اقتداء وکړې شی، پس له هغه سره اختلاف مه کوئ.

**مسئله**:- په نفل کونکو پسې د فرض کونکو اقتداء درسته ده. (هدایه ص۸۱ ج۱ شرح نقایه ص۸۷ ج۱.

کېږي ص ۴۱۸). خکه چه نفل کونکو ته د اقتداء د پاره د اصل مونځ ضرورت دې او هغه موجود دې

عَنْ جَابِرِ بْنِ يَزِيْدَ بْنِ الْأَسْوَدِ عَنْ أَبِيْهِ أَنَّهُ صَلَّى مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ وَهُوَ غُلَامٌ شَابٌّ فَلَمَّا صَلَّى إِذَا رَجُلَانِ لَمْ يُصَلِّيَا فِيْ نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ فَدَعَا بِهِمَا فَجِيْءَ بِهِمَا تُرْعَدُ فَرَائِصُهُمَا فَقَالَ مَا مَنَعَكُمَا أَنْ تُصَلِّيَا مَعَنَا قَالَا قَدْ صَلَّيْنَا فِيْ رِحَالِنَا فَقَالَ لَا تَفْعَلُوْا إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فِيْ رَحْلِهٖ ثُمَّ أَدْرَكَ الْإِمَامَ وَلَمْ يُصَلِّ فَلْيُصَلِّ مَعَهُ فَإِنَّهَا لَهُ نَافِلَةٌ. (ابوداود ص ۸۶ ج ۱) وَفِيْ رِوَايَةِ كِتَابِ الْآثَارِ صَلَّيْنَا الظُّهْرَ فِيْ مَنَازِلِهِمَا (الی ان قال) وَاجْعَلُوا الْأُوْلٰى فَرِيْضَةً وَهٰذِهٖ نَافِلَةً. (کتاب الآثار للامام محمد ص ۴۰)

**ترجمه** حضرت جابر بن یزید بن الاسود نه روایت دې هغوی د خپل والد نه نقل کړې دی چه هغوی ﷺ د رسول الله ﷺ سره مونځ وکړو، او هغه پدې وخت کښې نوې ځوان وو کله چه رسول الله ﷺ د مونځ نه فارغ شو نو دوه سړی د جومات په غاړه ناست وو، هغوی مونځ نه وو کړې . رسول الله ﷺ هغوی را وغوښتل . هغوی راغلل او د ویرې نه یې د اوګو غوښه رپیدله، رسول الله ﷺ وفرمائیل تاسو زما سره ولې مونځ ونکړو؟ هغوی عرض وکړو چه مونږ په کور کښې مونځ کړې دې . له دې کبله مونږ دلته ونکړو. هغوی ﷺ وفرمایل داسې مه کوئ . کله چه په تاسو کښې څوک په کور کښې مونځ وکړی او راشی او امام بیا مومی چه مونځ یې نه وی کړې نو د هغه سره مونځ کوئ، دا به د هغه دپاره نفل شی. (که د ماسپښین او ماسخوتن وخت کښې راشی)

او په کتاب الاثار کښې دی چه هغوی دواړو د ماسپښین مونځ کړې وو او بیا راغلې وو . او بیا یې وفرمایل چه فرض به دهغوئ رومبې مونځ وی او دا به نفل وی

امام ترمذی لیکلې دی چه (وَالصَّلٰوةُ الْأُوْلٰى هِيَ الْمَكْتُوْبَةُ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ). (ترمذی ص ۵۲)

**ترجمه** رومبې مونځ د اکثر اهل علم په نزد فرض دې

قَالَ مُحَمَّدٌ وَبِهٖ نَأْخُذُ وَهُوَ قَوْلُ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ وَلَا يُعَادُ الْفَجْرُ وَالْعَصْرُ وَالْمَغْرِبُ.

**ترجمه** امام محمد فرمایی چه مونږ هم دا اخلو او د امام ابو حنیفه هم همدا قول دې ، د سحر . مازدیګر . او ماښام مونځ به دوباره نه کوي . (خکه چه ددې مونځونو نه وروسته نفل نشته)

عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ إِذَا صَلَّيْتَ الْفَجْرَ وَالْمَغْرِبَ ثُمَّ أَدْرَكْتَهُمَا فَلَا تُعِدْ لَهُمَا . (کتاب الآثار ص ۸۰ ومصنف عبدالرزاق ص ۴۲۲ ج ۲)

**ترجمه** حضرت عبد الله بن عمر ﷺ فرمایی چه کله ته د سحر او ماښام مونځ وکړې بیا جماعت را لاندې کړې نو دا مونځونه دوباره مه کوه.

**مسئله** - فرض مونځ کونکې په نفل مونځ کونکی پسې مونځ نشی کولې . (هدایه ص ۱۰۸ ج ۱ شرح

نقایه ص۸۰ ج۱، کبیری ص۵۱۶).
خکه چه أقوی (یعنی د قوی او مضبوط حالت والا کوم چه فرض کوی) هغه د أضعف (یعنی ضعیف حالت والا نفل کونکی) پسې مونځ نشی کولې.
۱- حضرت ابو هریره ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: امام ضامن دې. (ابوداؤد ص۷۷ ج۱، ترملی ص۵۰).
۲- رسول الله ﷺ فرمایی چه د امام سره اختلاف مه کوئ. (بخاری ص۱۰۰ ج۱، مسلم ص۱۷۷ ج۱)
صاحب د شرح نقایه لیکلی دی چه حضرت جابر ﷺ نه چه کوم روایت نقل دې چه حضرت معاذ بن جبل ﷺ به د رسول الله ﷺ سره مونځ کولو، بیا به یی قوم ته امامت کولو. (بخاری ص۹۸ ج۱، مسلم ص۱۸۷ ج۱). نو پدې باره کښې دا ویلې کیږی چه نیت یو باطنی امر دې، پدې باندې بل څوك نشی خبریدلې تر څوچه نیت کوونکې خپله ونه وایی. له دې کبله به دا خبره درسته وی چه حضرت معاذ ﷺ به د رسول الله ﷺ سره په نیت د نفلو مونځ کولو. دې دپاره چه هغوی د رسول الله ﷺ د مونځ طریقه وپیژنی. او د هغوی په مونځ کولو کښې برکت حاصل کړی، او بیا خپل قوم ته لاړشی او فرض مونځ وکړی، کله چه ددې خبرې احتمال شته، نو د نورو حضراتو استدلال درست نه دې
او دا خبره هم معلومه ده، چه د رسول الله ﷺ د یو صحابی فعل په داسې معنی محمولول چه متفق علیه ده، هغه به ډیره بهتره وی لدې نه چه په یوه داسې معنی محمول شی چه هغه مختلف فیه وی (لکه چه د نفل مونځ د نیت سره په هغه امام پسې مونځ کول چه فرض مونځ کوی، بالاتفاق د ټولو په نزد جائز دې لیکن نفل مونځ کونکی پسې دفرض مونځ کونکی په مونځ کښې د ائمه کرامو اختلاف دې، احناف، مالکیه، او حنابله ددې قائل نه دی.
لدینه علاوه د مسند احمد په روایت کښې راغلی دی چه:
عَنْ مَعَاذِ بْنِ رِفَاعَةَ عَنْ سُلَيْمٍ رَجُلٍ مِّنْ بَنِي سَلِمَةَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ يَا مَعَاذُ بْنَ جَبَلٍ لَا تَكُنْ فَتَّانًا إِمَّا أَنْ تُصَلِّيَ مَعِيَ وَإِمَّا أَنْ تُخَفِّفَ عَلَى قَوْمِكَ. (مسند احمد ص۷۴ ج۵)
ترجمه: رسول الله ﷺ حضرت معاذ ﷺ ته وفرمایل چه: اې معاذ بن جبل! یا خو ته زما سره مونځ وکړه، او یابیا خپل قوم ته مختصر مونځ وکړه.
ددې معنی دا ده چه یا خو ته فرض مونځ زما سره وکړه، اودخپل قوم خلقو ته فرض مونځ مه کوه، او یا زما سره فرض مونځ مه کوه دې دپاره چه هغوی ستا انتظار ونکړی.
چنانچه امام عبدالسلام ابن تیمیه کوم چه د حنابله له لویو عالمانو څخه دې (او دمنتقی کتاب مصنف هم دې)، فرمایی چه:

وَقَدِاحْتَجَّ بِهٖ بَعْضُ مَنْ مَنَعَ اِقْتِدَاءَ الْمُفْتَرِضِ بِالْمُتَنَفِّلِ قَالَ لِاَنَّهٗ يَدُلُّ عَلٰى اَنَّهٗ مَتٰى صَلّٰى مَعَهٗ اِمْتَنَعَتْ اِمَامَتُهٗ وَبِالْاِجْمَاعِ لَا تَمْتَنِعُ بِصَلَاةِ النَّفْلِ مَعَهٗ فَعَلِمَ اَنَّهٗ اَرَادَ بِهٰذَا الْقَوْلِ صَلَاةَ الْفَرْضِ وَاَنَّ الَّذِيْ كَانَ يُصَلِّيْ مَعَهٗ كَانَ يَنْوِيْهِ نَفْلًا (معتلی مترجم ص۵۰۸ ج۱)

**ترجمه** : ځوك چه نفل کونکو پسې د فرض کونکو مونځ صحیح نه ګڼي هغوئ له دې حدیث نه استدلال کوی، پدې حدیث کښې دلالت دې په دې خبره باندې چه د فرض کونکی اقتداء په نفل کونکی پسې نه کیږی ځکه چه کله هغوی په رسول الله ﷺ پسې مونځ وکړو نو بیا د هغوی امامت ممنوع شو، د حصر د تقسیم دغه مقتضٰی ده..او دا خبره بالاجماع ثابت ده که هغه په هغوی ﷺ پسې د نفلو په نیت سره مونځ کړې وی نو بیا دهغوی امامت ممنوع نه دې.

نو ددینه معلومه شوه چه حضرت معاذ ؓ په رسول الله ﷺ پسې هم نفل کول (شرح نقایه ص۸۸ ج۱).
لدینه علاوه دا خبره هم ده چه حضرت معاذ ؓ د رسول الله ﷺ له طرفه مامور وو چه هغه د خپل قوم امامت وکړی نو ظاهره ده چه هغوی به فرض مونځ د خپل قوم سره په جماعت سره ادا کولو.

**مسئله** :- په رکوع او سجده باندې قدرت لرونکې په اشاره باندې مونځ کونکی پسې مونځ نشی کولې. (هدایه ص۸۸ ج۱، شرح نقایه ص۸۷ ج۱، کبیری ص۵۱۶)

**مسئله** :- طهارت لرونکې په معذور سړی پسې مونځ نشی کولې (یعنی داسې معذور پسې چه په هغه باندې د یو فرض مونځ وخت هم داسې نه تیریږی چه هغه په کښې د عذر له کبله نه بې اودسه کیږی نه). (هدایه ص۸۸ ج۱، شرح نقایه ص۸۷ ج۱، کبیری ص۵۱۶)

**مسئله** :- بالکل جاهل (چه د جواز دمونځ په اندازه قرآن هم نشی لوستې) پسې لوستونکې سړې (چه قرآن لوستلې شی) مونځ نشی کولې. یعنی جائز نه دې.

**مسئله** :- لباس اغوستونکې په بربنډ پسې مونځ نشی کولې.

**مسئله** :- په ولاړه مونځ کونکې په ناست سړی پسې مونځ کولې شی. (هدایه ص۸۱، شرح نقایه ص۸۷ ج۱، کبیری ص۵۱۸).

ځکه چه رسول الله ﷺ په آخری عمر کښې چه کوم مونځ کړې وو هغه یې په ناسته کړې وو او صحابه کرامو په هغوی ﷺ پسې په ولاړه مونځ کړې وو. (بخاری ص۹۵ ج۱، مسلم ص۱۷۹ ج۱).

**مسئله** :- اشاره مونځ کوونکې د خپل ځان په شان سړی پسې مونځ کولې شی، لیکن رکوع او سجده کونکې په اشاره کونکی پسې مونځ نه شی کولې. (هدایه ص۸۱ ج۱، شرح نقایه ص۸۷ ج۱، کبیری ص۵۱۶)

**مسئله** :- په مسح کونکې پسې د اندامونو مینځونکی مونځ کولې شی. (هدایه ص۸۰ ج۱، شرح

نقایه ص۸۶ ج۱، کبیری ص۵۱۸)

**مسئله** :- کوم خلق چه په امام پسې مونځ کوی په هغوی لازم دی چه هغوی د رکوع او سجدې په وخت د امام نه وړاندې سر پورته نه کړی.

عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ مَنْ اَدْرَكَ رَكْعَةً مِنَ الصَّلٰوةِ فَقَدْ اَدْرَكَ الصَّلٰوةَ. (مصنف عبد الرزاق ص ۲۸۱ ج۲، مسلم ص۲۲۱ ج۱)

**توجمه** : حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی: آیا زه په تاسو کښې هغه سړې چه له امام نه وړاندې سر پورته کوی له دې نه ونه ویروم چه الله ﷺ به دده دسر نه د خر سر جوړ کړی یا به دده شکل د خر په شان جوړ کړی.

کوم سړې چه داسې حرکت کوی، هغه بې ادبی او ګستاخی کوی چه دې سره د الله ﷺ غضب په جوش کښې راځی، د دې خبرې خطره ده چه الله ﷺ دده ددې حماقت او خرتوب خوئ باندې له ده نه ناراض شی او دده ظاهری شکل هم خراب کړی.

**مسئله** :- امام چه په هر حالت کښې وی او مقتدی یې راګیر کړی، نو ورسره دې په جمع کښې شریك شی اګر که امام د سجدې په حالت کښې وی نو هم دې ورسره شریك شی اودغه رکعت به نه حسابیږی.

لکه څنګه چه حضرت علی ﷺ عبد الله بن عمر ﷺ زید بن ثابت ﷺ حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ ابراهیم نخعی، قتاده وغیرهم نه نقل دی. (مصنف عبد الرزاق ص۲۸۱ ج۲، ومصنف ابن ابی شیبه ص۲۴۳ ج۱).

**مسئله** :- که امام چا په رکوع کښې بیاموندلو نو هغه رکعت بیاموندلو. (هدایه ص۱۰۲ ج۱).

حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی: چا چه رکوع بیا وموندله هغه مونځ بیا موندلو

عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ اِذَا اَدْرَكْتَ الْاِمَامَ رَاكِعًا فَرَكَعْتَ قَبْلَ اَنْ يَرْفَعَ فَقَدْ اَدْرَكْتَ وَاِنْ رَفَعَ قَبْلَ اَنْ تَرْكَعَ فَقَدْ فَاتَتْكَ. (مصنف عبد الرزاق ص۲۷۹ ج۲، مصنف ابن ابی شیبه ص۲۴۳ ج۱)

**توجمه** : حضرت عبد الله بن عمر ﷺ فرمایی چه کله تاسو امام د رکوع په حالت کښې بیا ومومئ او تاسو له امام سره د امام د سر پورته کولو نه وړاندې په رکوع کښې شرکت وکړو نو تاسو هغه رکعت ګیر کړو او که امام سر پورته کړی ستاسو د رکوع نه وړاندې نوتاسو نه هغه رکعت فوت شو.

عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ قَالَ دَخَلْتُ اَنَا وَابْنُ مَسْعُوْدٍ الْمَسْجِدَ وَالْاِمَامُ رَاكِعٌ فَرَكَعْنَا ثُمَّ مَضَيْنَا حَتّٰى اسْتَوَيْنَا فِي الصَّفِّ فَلَمَّا فَرَغَ الْاِمَامُ قُمْتُ اُصَلِّيْ فَقَالَ قَدْ اَدْرَكْتَهُ. (مصنف عبد الرزاق ص۲۸۳ ج۲)

**توجمه** : حضرت زید بن وهب ﷺ فرمایی چه زه او حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ جومات ته

داخل شو او امام د رکوع په حالت کښې وو نو مونږ هم په جلدئ سره هلته رکوع وکړه، بیا لاړو او برابر په صف کښې ودریدلو، کله چه امام فارغ شو نو زه د هغه رکعت دکولو دپاره ودریدم، نو هغوی وفرمایل چه تا هغه رکعت ګیر کړې دې.

**مسئله:-** د حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد بودئ ښځه که امن وی او څه خطره نه وی نو د سحر، ماښام اودماسخوتن مونځونه په جومات کښې کولې شی **(هدایه ص۸۰ ج۱، شرح نقایه ص۸۶ ج۱)**
دځوانو ښځو د پاره او د ورځې په مونځونو کښې د خلط ملط له کبله خطره وی.

**مسئله:-** د جمعې او د اختر مونځ هم د ښځو د پاره په دې شرط روا دی چه هلته خطره نه وی، د فُسّاقو دفسق ویره نه وی. او ښځه بڼه هم سینګار او خوشبو لګولونه بغیر ځی.

**مسئله:-** د ښځو دپاره مونځ په کور کښې کول زیات افضل دی، او ددې اجر هم د جومات نه زیات دې.

**د ښځو امامت «یعنی د ښځو په مونځ کښې امام کیدل»:-** داخبره خو تقریبا د ټولو فقهاء کرامو، محدثینو، مجتهدینو، او د علماء کرامو په مینځ کښې متفق علیه ده، چه ښځه د سړی د پاره امام جوړیدل روا نه دی، البته بعضې نورو مسئلوکښې اختلاف موندلې شی، مثلاً:

د ښځو ځان ته جماعت کول، په دې باره کښې بعض فرمایی چه دا هم درست نه دی. بعضې وایی مکروه تحریمی دی، او بعض وایی مکروه تنزیهی دی، د بعضو په نزد د ښځو په اوچت آواز سره تکبیر کول یا قراءة کول داسې مکروه تحریمی دی لکه څنګه دهغوئ اذان کول مکروه تحریمی دی.

او دبعضو په نزد ښځه نورو ښځو ته مونځ ورکولې شی، لکه ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها او حضرت ام سلمه رضی الله عنها نه ثابت دی چه هغوی ښځو ته جماعت ورکړو **(بیهقی ص۱۳۱ ج۳)**.

البته که د ښځو جماعت وشی نو د هغوی امام «هغه ښځه» به وړاندې په مصلیٰ نه ودریږی، بلکه د ښځو په صف کښې به ولاړه وی اومونځ به ورکوی. **(هدایه ص۷۷ ج۱، شرح نقایه ص۸۶ ج۱)**.

لکه څنګه چه د ام المؤمنین نه ثابت دی. **(بیهقی ۱۳۱ ج۳)**.

د ښځو د پاره د ټولو نه بهتره خبره داده چه هغه خپل مونځ ځان ته په تنهایی کښې په کور کښې وکړی. جومات او جماعت سره که شریکه شی او مونځ کوی نو د هغې د پاره څه شرطونه دی د هغه شرطونو سره به هغې ته اجازت وی، لیکن بهتروالې په کښې بیا هم نشته.

**عَنْ عَبْدِاللهِ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ صَلٰوةُ الْمَرْاَةِ فِيْ بَيْتِهَا اَفْضَلُ مِنْ صَلٰوتِهَا فِيْ حُجْرَتِهَا وَصَلٰوتُهَا فِيْ مَخْدَعِهَا اَفْضَلُ مِنْ صَلٰوتِهَا فِيْ بَيْتِهَا.** (ابوداود ص۸۳ ج۱، مستدرک حاکم ص۲۰۹ ج۱ وقال صحیح علی شرط شیخین واقره الذهبی).

**ترجمه** حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی د ښځې مونځ د هغې په کمره کښې ډیر افضل دې ، د هغې په کور کښې د مونځ نه . او د ښځې مونځ په وړه کمره کښې (چه د غټې کمرې دننه وی) زیات افضل دې په غټې کمرې کښې د هغې د مونځ کولو نه.

عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ ﷺ خَيْرُ مَسَاجِدِ النِّسَاءِ قَعْرُ بُيُوتِهِنَّ. (مستدرك حاكم ص ۲۰۹ ج ۱)

**ترجمه** حضرت ام سلمه ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی د ښځو د پاره د هغوی د مونځ کولو په ځایونو کښې د ټولو نه بهتر ځائ د هغوی د کورونو دننه حصې دی

عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ لَا تَمْنَعُوا نِسَاءَكُمُ الْمَسَاجِدَ وَبُيُوتُهُنَّ خَيْرٌ لَّهُنَّ. (مستدرك حاكم ص ۲۰۹ ج ۱، ابوداود ص ۸۴ ج ۱)

**ترجمه** حضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی خپلې ښځې د جوماتونو له تللو نه منع کړئ او د هغوی کورونه د هغوی د مونځ د پاره ډیر بهتر دی

عَنْ عَائِشَةَ ﷺ قَالَ لَوْ أَدْرَكَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَا أَحْدَثَ النِّسَاءُ لَمَنَعَهُنَّ الْمَسْجِدَ. (بخاری ص ۱۲۰ ج ۱، مسلم ص ۱۸۳ ج ۱، مصنف عبد الرزاق ص ۱۴۹ ج ۳)

**ترجمه** ام المؤمنین حضرت عائشه ﷺ فرمایی که رسول الله ﷺ هغه څیز لره لیدلې وای کوم چه ښځو د هغوی ﷺ نه وروسته ظاهر کړې دې نو هغوی ﷺ به هغه ښځې ضرور د جوماتونو نه منع کړې وې.

**د ښځو د ځان له جماعت دپاره شرائط** :- اجازت به د هغه شرطونو سره وی چه د نارینو سره اختلاط نه وی، لاره د امن وی . زیب او زینت والا پرقیدونکې لباس وانه غوندی. خوشبو لګولو سره به هم نه ځی . چه داسې کول مکروه تحریمی دی . او بنیادی خبره دا ده چه ښځه باندې جماعت او جمعه او اخترونه واجب نه دی. لکه څنګه چه جهاد او جنګ وغیره چه پرې واجب ندی د جمعې اخترونو . او د جماعت سره که دا ښځه شریکه شی نو صرف د نارینو تابع به وی . او بیا به یې هم صرف جواز ثابت شی. افضلیت په هر حال کښې نشته.

د رسول الله ﷺ په زمانه مبارکه کښې د جماعت سره د مونځ کولو یوه خاص وجه داهم وه چه د رسول الله ﷺ په اقتداء کښې په مونځ ادا کولو کښې د هرې ښځې او نارینه شوق وو

لیکن عام طور باندې فقهاء کرامو د ښځو په جماعت کښې حاضرئ ته مکروهه ویلی دی، خصوصا ځوانانې ښځې د فتنې د ویرې نه . په دې بناء که چیرته فتنه کمه وی لکه عمر رسیده او مشرانې ښځې . نو امام ابو حنیفه ویلی دی چه د سحر ،ماښام او ماسخوتن مونځ په جماعت کښې شریك کیدلې شی.

عَنْ اِبْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ اِذَا اِسْتَأْذَنَكُمْ نِسَاءُ كُمْ بِاللَّيْلِ اِلَى الْمَسْجِدِ فَأْذَنُوْا لَهُنَّ. (بخاری ص۱۱۹ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبد الله بن عمر ﷺ نه روایت دې چه کله ښځې (مشرانې او عمر رسیده) د شپې په مونځونو کښې اجازت وغواړي نو اجازت ورکوئ.

قَالَ نَافِعٌ مَوْلَى ابْنِ عُمَرَ اِنَّمَا ذٰلِكَ بِاللَّيْلِ. (مصنف عبد الرزاق ص۱۵۱ ج۱)

**ترجمه** : حضرت نافع مولی ابن عمر ﷺ فرمايي چه دا حديث صرف د شپې له مونځونو سره خاص دې.

عَنْ اَبِيْ عَمْرٍو الشَّيْبَانِيِّ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ كَانَ يُقَالُ صَلَاةُ الْمَرْأَةِ فِيْ بَيْتِهَا خَيْرٌ مِنْ صَلَاتِهَا فِيْ دَارِهَا فَقَالَ لَهُ اَبُوْ عَمْرٍو وَلَمْ تَكُلْ سَمِعْتُ رَبَّ هٰذِهِ الدَّارِ يَعْنِيْ ابْنَ مَسْعُوْدٍ يَحْلِفُ فَيَبْلُغُ فِي الْيَمِيْنِ مَا مُصَلٍّ لِامْرَأَةٍ خَيْرٌ مِنْ بَيْتِهَا اِلَّا فِيْ حَجٍّ اَوْ عُمْرَةٍ اِلَّا اِمْرَأَةٌ قَدْ يَئِسَتْ مِنَ الْمَحُوْلَةِ فَهِيَ فِيْ مَنْقَلَيْهَا. قِيْلَ مَا مَنْقَلَيْهَا قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ اِمْرَأَةٌ عَجُوْزٌ قَدْ تَقَارَبَ خَطْوُهَا. (مصنف عبد الرزاق ص۱۵۰ ج۳)

**ترجمه** : حضرت عمرو الشيباني فرمايي چه يو سړې راغې اوهغه وويل چه اول خو به دا ويلې شو، چه د ښځې مونځ دهغې په خپله دننه وړه کمره کښې زيات بهتر دې، نسبت ددې د غټ کور ته، په دې باندې حضرت عمرو وفرمايل زياته زمانه نه ده تيره شوې چه ما ددې کور والا يعنی حضرت عبد الله بن عمر ﷺ نه آوريدلې دی، هغوی به پوخ قسم کولو سره فرمايل چه د ښځې د پاره دهغې د مونځ بهتر ځائ د هغې وړه کمره ده البته په حج او عمره کښې يې وتل جائز دی، مګر داسې ښځه چه بوډۍ شوې وی، هغې خپلې موزې اغوستې وی نو جومات ته تللې شی.

دا له دې کبله چه فساق د ماسپښين، مازديګر او د جمعې په وخت کښې منتشر وی او دماښام په وخت بالعموم په خوراك څښكاك كښې مصروف وی، او د ماسخوتن او سحر په وخت کښې ويده وی، او د اختر په موقع باندې هم چونکه د اختر مونځ بالعموم په فراخه ځايونو کښې ادا کيږی، له دې کبله د نارينو او ښځو د خان له والی امکان شته، نو فتنه کمه وی.

دښځې دامامت دپاره د وړاندې کولو ممانعت دحضرت عبد الله بن مسعود ﷺ له قول نه ثابت دې

عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ اَخِّرُوْهُنَّ حَيْثُ اَخَّرَهُنَّ اللّٰهُ. (مصنف عبد الرزاق ص۱۴۹ ج۳)

**ترجمه** : دا ښځه وروستو وساتئ، چرته چه الله ﷻ وروستو ساتلی دی.

دښځينه امام د صف په مينځ کښې د ودريدلو او د مونځ کولو استدلال د ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها د روايت نه شوې دې.

عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا كَانَتْ تَؤُمُّ النِّسَاءَ وَتَقُوْمُ وَسْطَهُنَّ. (مستدرك حاكم ص۲۰۳ ج۱، مصنف عبد الرزاق ص۱۳۰ ج۳، دار قطنی ص۴۰۳ ج۱، بيهقی فی السنن الكبری ص۱۳۱ ج۳)

**توجمه** : ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها به ښځو ته جماعت ورکولو نو د هغوی په مابين کښې به ودریدله.

او په کتاب الام کښې حضرت امام شافعی داسې روايات نقل کړی دی :

عَنْ عَطَاءٍ عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها أَنَّهَا صَلَّتْ بِنِسْوَةٍ الْعَصْرَ فَقَامَتْ فِي وَسْطِهِنَّ. (کتاب الام ص ۱۶۴ ج ۱)

**توجمه** : حضرت عطاء رحمة الله عليه فرمايي چه حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها ښځو ته د مازديگر مونځ ورکړو او دهغوی په مينځ کښې په صف کښې ودريدله.

عَنْ صَفْوَانَ قَالَ إِنَّ مِنَ السُّنَّةِ أَنْ تُصَلِّيَ الْمَرْأَةُ بِالنِّسَاءِ تَقُومُ وَسْطَهُنَّ. (کتاب الام ص ۱۶۴ ج ۱)

**توجمه** : حضرت صفوان فرمايي چه دا هم د سنتو څخه دی چه که يوه ښځه نورښځو ته مونځ ورکوی نوهغه به د هغوی په مينځ کښې ودريږی او وړاندې به نه ودريږی.

كَانَ عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ يَأْمُرُ جَارِيَةً لَهُ تَقُومُ بِأَهْلِهِ فِي شَهْرِ رَمَضَانَ. (کتاب الام ص ۱۶۴ ج ۱)

**توجمه** : حضرت على بن الحسين رضي الله عنه يعنی امام زين العابدين به خپلې وينځې ته حکم کولو چه هغه د هغوی کوروالا ته په رمضان کښې مونځ ورکړی.

وَكَانَتْ عَمْرَةُ تَأْمُرُ الْمَرْأَةَ أَنْ تَقُومَ لِلنِّسَاءِ فِي شَهْرِ رَمَضَانَ. (کتاب الام ص ۱۶۴ ج ۱)

**توجمه** : حضرت عمره رضي الله عنها به يوې ښځې ته حکم کولو چه هغه نورو ښځو ته په رمضان کښې مونځ ورکړی.

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ وَتَؤُمُّ الْمَرْأَةُ النِّسَاءَ فِي الْمَكْتُوبَةِ وَغَيْرِهَا وَآمُرُهَا أَنْ تَقُومَ فِي وَسْطِ الصَّفِّ. (کتاب الام ص ۱۶۴ ج ۱)

**توجمه** : حضرت امام شافعی فرمايي چه ښځه نورو ښځو ته مونځ ورکولې شی په فرضو کښې هم او نورو نفلو وغيره کښې هم، او زه وايم چه ښځه کله مونځ ورکوی نو د ښځو په صف کښې دې ودريږی او وړاندې دې نه ودريږی.

حضرت امام شافعی فرمايي چه ښځه که سړو ، ښځو اوماشومانو ته مونځ ورکړی نو د ښځو مونځ صحيح کيږی، د سړو او د هلکانو مونځ ونه شو. ځکه چه الله ﷻ سړی په ښځو باندې قوام «نگران ، سرپرست، اوامام جوړ کړی دی ) او د ښځو توليت او حاکميت په سړو باندې نه دې جوړ شوې.

وَلَا يَجُوزُ أَنْ تَكُونَ امْرَأَةٌ إِمَامَ رَجُلٍ فِي صَلَاةٍ بِحَالٍ أَبَدًا. (کتاب الام ص ۱۶۴ ج ۱)

**توجمه** : او دا جائز نه دی چه ښځه په يو حال کښې هم په مونځ کښې د سړيو لپاره امام جوړه شی او امام شافعی دا هم ليکلې دی چه

وَلَا تُجَمِّعُ امْرَأَةٌ بِالنِّسَاءِ لِأَنَّ الْجُمُعَةَ إِمَامَةُ جَمَاعَةٍ كَامِلَةٍ وَلَيْسَ لِلْمَرْأَةِ لِمَنْ لَهَا أَنْ تَكُونَ إِمَامَ جَمَاعَةٍ كَامِلَةٍ.

(کتاب الام ص ۱۹۲ ج ۱)

**ترجمه** او ښځه هم نورو ښځو ته د جمعې د مونځ امامت نشي کولې، لدې کبله چه د جمعې امامت د یو کامل جماعت امامت دې (یعنی دا د اجتماعیت کامل شکل دې، او دا صرف د سړو حصه ده) او ښځو ته دا حق حاصل نه دې چه کامل جماعت کښې امام جوړه کړې شي.

او فقهاء کرامو کومو چه د ښځو امامت مکروه ګڼلې دې نو پدې باره کښې کافی اختلاف موندلې شوې دې، بعضې دوی لره مکروه ګنی ځکه چه دا خبره د ښځو د وضع خلاف ده دا ددوی کار نه دې، ددوی کار صرف اتباع ده، که د سړیو سره موقع وموندل شی نو دهغوئ سره دې مونځ وکړی اوکه نه نو خپل مونځ دې ځان له وکړی

او بعضې وایی چه د ښځو آواز چونکه عورت دې او په امامت کښې د دې خلاف وی لکه څنګه چه محقق ابن نجیم ویلې دی (وَصَرَّحَ فِي النَّوَازِلِ بِأَنَّ نَغْمَةَ الْمَرْأَةِ عَوْرَةٌ وَبَنَى عَلَيْهِ أَنَّ تَعَلُّمَهَا الْقُرْآنَ مِنَ الْمَرْأَةِ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ تَعَلُّمِهَا مِنَ الْأَعْمَى). (بحر الرائق ص ۲۷۰ ج ۱)

او په (نوازل) کتاب کښې تصریح ده چه د ښځو نغمه (آواز او ترنم) ستر دې، او په دې باندې ددې مسئلې بناء ده چه د ښځو له نورو ښځو نه قرآن زده کول ډیر بهتر دی، په نسبت ددې چه هغه چیرته د نابینا سړی نه قرآن زده کړی.

اصح خبره داده چه د ستر کیدو نه علاوه هم د ښځو آواز د فتنې نه خالی نه دې، د ضرورت په وخت خو د ښځو او پردو سړیو په وړاندې خبرې کول روا نه دی.

وَفِي شَرْحِ الْمُنْيَةِ الْأَشْبَهُ أَنَّ صَوْتَهَا لَيْسَ بِعَوْرَةٍ وَإِنَّمَا يُؤَدِّي إِلَى الْفِتْنَةِ كَمَا عَلَّلَ بِهِ صَاحِبُ الْهِدَايَةِ وَغَيْرُهُ فِي مَسْئَلَةِ التَّلْبِيَةِ وَلَعَلَّهُنَّ إِنَّمَا مُنِعْنَ مِنْ رَفْعِ الصَّوْتِ بِالتَّسْبِيحِ فِي الصَّلٰوةِ لِهٰذَا الْمَعْنٰى وَلَا يَلْزَمُ مِنْ حُرْمَةِ رَفْعِ صَوْتِهَا بِحَضْرَةِ الْأَجَانِبِ أَنْ تَكُونَ عَوْرَةً. (بحر الرائق ص ۲۷۰ ج ۱)

**ترجمه** او د منیه په شرح کښې راغلی دی چه د حق سره زیاته مشابه دا خبره ده چه د ښځې آواز ستر نه دې لیکن دا خبره د فتنې طرفته راښکل کوی لکه چه صاحب د هدایه وغیره ددې علت د تلبیه په مسئله کښې بیان کړې دې، او شاید چه ښځه ددې وجې نه د آواز اوچتولو نه منع شوې وی چه هغه به د امام د هیرې په صورت کښې تسبیح نه وایی بلکه د لاس پرق سره به هغه خبروی او ددینه دا نه لازمیږی چه که ښځه د پردی سړی په مخ کښې د آواز اوچتولو نه منع کړې شوې ده نو ددې آواز دې هم ستر وی، بلکه ددې وجه دا ده چه لدینه د فتنې پیدا کیدو امکان دې، په دې وجه رسول الله ﷺ فرمایلی دی چه (إِنَّمَا التَّسْبِيحُ لِلرِّجَالِ وَالتَّصْفِيحُ لِلنِّسَاءِ). (مسلم ص ۱۸۰ ج ۱، بخاری

ص۱۶۵ ج۲)

**ترجمه**: بیشکه ( دامام په هیرې سره ) د سړیو لپاره تسبیح ده ( چه هغه دې تسبیح ووایی او امام دې خبردار کړی ) او دښځو دپاره په لاس باندې د لاس وهلو حکم دې.

صاحب د درمختار لیکلي دی چه:

**وَلِلْحُرَّةِ جَمِيعُ بَدَنِهَا حَتَّى شَعْرِهَا النَّازِلِ فِي الْأَصَحِّ خَلَا الْوَجْهِ وَالْكَفَّيْنِ فَظَهْرُ الْكَفِّ عَوْرَةٌ عَلَى الْمَذْهَبِ وَالْقَدَمَيْنِ عَلَى الْمُعْتَمَدِ وَصَوْتُهَا عَلَى الْأَصَحِّ.** (الدر المختار ص۶۲ ج۱)

**ترجمه**: د آزادې ښځې ټول بدن په ستر کښې داخل دې حتی چه د هغې د سر نه زوړند ویښته د اصح قول مطابق ستر دی. ماسوا د مخ او دلاسونو نه اولاس کښې هم تلې ستر نه دې، د لاسونو د پاسه حصه ستر دې، او پښې هم د معتمد قول مطابق ستر نه دې، او د ښځې آواز هم د اصح قول مطابق ستر نه دې.

حضرت ملا علی قاری هم مطلقاً د ښځو جماعت مکروه نه دې ګڼلې بلکه که هغه سړیو ته مخامخ وی او بهرته داسې ځای ته لاړې شی چه هلته د سړیو سترګې په هغوی ولګی نو هلته به د هغوی جماعت مکروه وی.

**اَلْقَوْلُ وَالْأَظْهَرُ أَنَّ الْكَرَاهَةَ مَحْمُولَةٌ عَلَى ظُهُورِهِنَّ وَخُرُوجِهِنَّ وَالْجَوَازُ عَلَى تَسَتُّرِهِنَّ فِي بُيُوتِهِنَّ** (شرح نقایه ص۸۲ ج۱)

**ترجمه**: زه دا وایم چه زیاته ظاهره خبره دا ده چه د ښځو د جماعت مکروه کیدل په دې باندې محمول دی چه هغه ښکاره وی او بهر ته لاړې شی او جواز دې په هغه صورت کښې چه کله هغه په ستر کښې وی او په کور کښې وی.

په هر حال ښځه که د جماعت سره مونځ کوی نو په جهری مونځونو کښې ښکاره قراءة او تکبیر به جائز وی، لهذا دامام ابن همام دا وینا مطلقاً چه د ښځو ښکاره تلاوت کول مفسد دصلوة ده، دا مسئله مرجوحه ده. په دې مسئله کښې د فقهاء کرامو دوه ډلې دی: یوه ډله د ښځو آواز ته مطلقا ستر وایی، امام ابن همام ددې ډلې نه متاثره معلومیږی. او دویمه ډله وایی چه د ښځې آواز ستر نه دې اودا راجح معلومیږی. چه په دې کښې د آثارو او روایاتو سلسله موندلې شی، هغه یا خو د سندرې په لهجه کښې او د نغمې (ترنم) په وجه، که هغه لچکدار آواز سره کلام وایی یا ترنم سره یې وایی نو یقینا دا به مکروه تحریمی وی په دې وجه جهر مفرط دې.

یا به ددې کراهیت صرف د فتنې له کبله وی ځکه چه د ښځو له غیرو سره کلام کول د ضرورت په وخت مباح دی په دې کښې د ستر هیڅ خبره نشته. د ښځې آواز یا تقریر او بیان حسب ضرورت مباح دې بغیر له کراهیت څخه

استاذ الاساتذه حضرت مولانا عبدالحی لکهنوی فرنګی محلی، د امام ابن همام په دې قول

باندې چه ښځه په تیزه قراءة کوی نو مونځ به یې فاسد وی تبصره کولو کښې لیکی چه او حق خبره په دې باب کښې دا ده چه مطلقا د ښځې آواز ستر نه دې البته آواز اوچتول وغیره ستر دی. (مجموعه فتاوی ص۲۱۶ مطبوعه کانپور)

او بیا لدینه وروسته د امامة النساء په سلسله کښې ګڼ شمیر روایات مصنف ابن ابی شیبه، مصنف عبدالرزاق، امام شافعی، او مستدرك حاکم نه نقل شوې دی او لدینه وروسته لدې روایاتونه معلومیږی چه کومه ښځه د نورو ښځو امام وی نو په مینځ کښې دې ودریږی. د سړیو د امام په شان دې وړاندې نه ودریږی. او دا هم معلومه شوه چه کله ښځه امام جوړیدلې شی نو دې دپاره قراءة او تکبیر بالجهر مشروع دی ځکه چه لدې نه بغیر اقتداء نه کیږی. او د ښځو آواز اګر چه د بعضو په نزد ستر دې خو هغه د سړیو په حق کښې دی او د ښځو په حق کښې ندې (مجموعه فتاوی ص۲۱۷)

**د سُترې حکم** :- که مونځ ګزار په داسې ځای کښې مونځ کوی چه صحرا وی او مخامخ د خلقو او د ساه لرونکو حیواناتو تلل او راتلل وی نو مخې ته ستره اېښودل سنت دی (هدایه ص۸۹ ج۱) او که ستره کیښږدی نو مونځ کښې به یې خلل راشی

حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی

يَقْطَعُ الصَّلٰوةَ الْمَرْاَةُ وَالْحِمَارُ وَالْكَلْبُ وَيَقِيْ ذٰلِكَ مِثْلُ مُؤْخِرَةِ الرَّحْلِ. (مسلم ص۱۹۷ ج۱)

**ترجمه** مونځ ماتوی ذښځې . خر او د سپی په مخه کښې تیریدل .او ساتی دې لره د کجاوې د وروستو حصې په اندازه ستره.

عَنْ اَبِيْ ذَرِّ الْغِفَارِيِّ (موقوعا) فَاِذَا لَمْ يَكُنْ بَيْنَ يَدَيْهِ مِثْلُ اٰخِرَةِ الرَّحْلِ فَاِنَّهٗ يَقْطَعُ صَلٰوتَهُ الْحِمَارُ وَالْمَرْاَةُ وَالْكَلْبُ الْاَسْوَدُ. (مسلم ص۱۹۷ ج۱)

**ترجمه** حضرت ابوذر غفاری ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی که د مونځ ګزار مخې ته د کجاوې د وروستونۍ حصې په مقدار څه څیز نه وی نو د هغه مونځ خرابوی ، خر، ښځه او تور سپې (تور سپې زیات ناکاره وی)

**یادونه** د مونځ ماتیدلو مطلب دادې چه د مونځ خشوع او خضوع د هغې په وړاندې تیریدلو سره ماتیږی . یعنی دا څیزونه د مونځ سکون له مینځه وړی . لکه څنګه چه روایت دې

عن عائشة ذکر عندها ما یقطع الصلوة الکلب والحمار والمراة فقالت شبهتمونا بالحمار والکلاب والله لقد رایت النبی ﷺ یصلی وانا علی السریر بینه وبین القبلة مضطجعة. (بخاری ص۷۳ ج۱ مسلم ص۱۹۸ ج۱)

**ترجمه** دحضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها په وړاندې ذکر وشو چه مونځ لره سپې خر او ښځه ماتوی، (یعنی که دغه څیزونه مخې ته تیر شی نو مونځ فاسدوی) نو حضرت عائشه رضی الله عنها وفرمایل چه تاسو خو مونږ (ښځې) له سپیو او خرو سره یوشان کړو. حال دا چه ما رسول الله ﷺ لیدلې دې چه هغوی به مونځ کولو اوزه به دهغوی په وړاندې په کټ کښې د هغوی او د قبلې په مینځ کښې ملاسته ووم

له دینه علاوه عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ لَا يَقْطَعُهَا شَيْءٌ. (بخاری ص۷۳، ج۱)

**ترجمه** امام زهری فرمایی چه مونځ لره یو څیز هم نه ماتوی ، (مطلب دا چه ددې څیزونو مخې ته له تیریدو سره نه مونځ ماتیدې شی او نه ختمیدې شی). البته د مونځ خشوع او خضوع نه پاتې کیږی ، د ښځې د تیریدو سره وسوسې راځی او سپې د شیطان سره مناسبت لری . او خه نه څه حرکت به کوی . او همدارنګه خر هم بدتمیزه خناور دې د هغه په تیریدو سره وسوسې او پریشانی راځی . او د مونځ خشوع او خضوع نه پاتې کیږی، اګر چه نفس مونځ نه فاسدیږی

عَنِ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أَتَانَا رَسُولُ اللهِ ﷺ وَنَحْنُ فِي بَادِيَةٍ لَنَا وَمَعَهُ عَبَّاسٌ فَصَلَّى فِي صَحْرَاءَ لَيْسَ بَيْنَ يَدَيْهِ سُتْرَةٌ وَحِمَارَةٌ لَنَا وَكَلْبَةٌ تَعْبَثَانِ بَيْنَ يَدَيْهِ فَمَا بَالَاهُ. (ابو داود ص۱۰۲ ج۱)

**ترجمه** حضرت فضل بن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ زمونږ خواته تشریف راوړو اومونږ دغه وخت په فراخه صحرا کښې وو. له رسول الله ﷺ سره حضرت عباس رضی الله عنه هم وو. هغوی په صحرا کښې مونځ وکړو او هلته د هغوی په وړاندې ستره هم نه وه . او زمونږ یو خره او سپې مخامخ لوبې کولې . حضور ﷺ ددې پرواه ونکړه . (او مونځ یې وکړو. نو معلومه شوه چه دې سره مونځ نه ماتیږی)

حضرت ابو جهیم نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی

لَوْ يَعْلَمُ الْمَارُّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّي مَاذَا عَلَيْهِ لَكَانَ أَنْ يَقِفَ أَرْبَعِينَ خَيْرًا لَهُ مِنْ أَنْ يَمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ. (مسلم ص ۱۹۵ ج۱، بخاری ص۷۳، ج۱)

**ترجمه** که د مونځ کونکی مخې ته تیریدو والا په دې پوه شی چه په دې وړاندې تیریدو څومره ګناه ده، نو که هغه ترڅلویښتو (کالو) پورې ودریږی . دا به د هغه د پاره ددینه بهتره وی چه هغه د مونځ ګزار مخې ته تیر شی

حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی چه

إِذَا كَانَ أَحَدُكُمْ يُصَلِّي فَلَا يَدَعْ أَحَدًا يَمُرُّ بَيْنَ يَدَيْهِ وَلْيَدْرَأْهُ مَا اسْتَطَاعَ فَإِنْ أَبَى فَلْيُقَاتِلْهُ فَإِنَّهُ شَيْطَانٌ.

(مسلم ص۱۹۶، ج۱) بخاری ص۷۳، ج۱)

**ترجمه**: کله چه په تاسو کښې څوك مونځ کوی نو خپلې مخې ته دې څوك تيريدو ته نه پريږدی او هغه دې لرې کړی ، ترکومه حده پورې چه ممکنه وی ، که هغه بيا هم پوهه نه شی نو ودې وهی، ‹يعنی پوره مخ نيوی سره دې هغه وروستو کړی ، جګړه کول مراد نه دې ځکه چه جګړې سره خو مونځ فاسديږی› ځکه چه هغه شيطان دې ، يعنی هغه سرې شيطانی کار کوی .

حضرت طلحه ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمايی :

إِذَا وَضَعَ أَحَدُكُمْ بَيْنَ يَدَيْهِ مِثْلَ مُؤَخَّرَةِ الرَّحْلِ فَلْيُصَلِّ وَلَا يُبَالِ مَنْ مَرَّ وَرَاءَ ذٰلِكَ. (مسلم ص۱۹۵، ج۱)

**ترجمه**: کله چه په تاسو کښې يو سړې مونځ کوی نو خپلې مخې ته د کجاوې وروستونۍ حصې په ندازه ‹اوچت› څه څيز کيږدی ، بيا دې هغه مونځ وکړی او پروا دينه کوی چه مخې ته يې څوك تيريږی ، يعنی هغه ته به هيڅ خطره نه وی ، او نه به يې په مونځ کښې څه قسم خلل راځی .

حضرت عبدالله بن عمر ﷺ بيان کوی چه رسول الله ﷺ د اختر په موقعه باندې ‹ او داسې به هغوی ﷺ د سفر په موقع هم کول› کله چه به هغوی د اختر مونځ کولو د پاره بهر تلل نو هغوی به حکم ورکولو چه وړوکې غشې دې خښ کړې شی، بيا به هغوی مونځ کولو، او مخې ته به خلق او ځناور تيريدل را تيريدل (مسلم ص۱۹۵ ج۱)

**مسئله**:- ستره به کم از کم د يو لاس په اندازه اوچته وی ، او ديو ګوتې په اندازه به غټه ‹پلنه› وی ‹دومره اوچته چه همسا ، نيزه ، لرګې وغيره څه څيز هم وی نو هغه وړاندې ودرولې شی›. (هدايه ص۸۹ ج۱، شرح نقايه ص۹۶ ج۱، کبيری ص۳۶۸).

عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ سُئِلَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ عَنْ سُتْرَةِ الْمُصَلِّيْ فَقَالَ مِثْلُ مُؤَخَّرَةِ الرَّحْلِ، (مسلم ص۱۹۵، ج۱)

**ترجمه**: ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه ﷺ نه روايت دې چه له رسول الله ﷺ څخه د مونځ ګزار د سترې په باره کښې پوښتنه وکړې شوه، نوهغه مبارك وفرمايل : چه بايد د کجاوې د وروستونۍ حصې برابر وی.

حديث شريف کښې چه (آخرة الرحل) راغلې دی . لدينه مراد د کجاوې وروستونۍ حصه ده، تقريباً چه د يو لاس ‹يو ذراع› برابر اوچت وی .

**مسئله**:- د سترې لرګې وغيره به بالکل د تندی په مينځ مخامخ نه وی ، بلکه چپ يا ښی طرف ته به وی . (هدايه ص۸۹ ج۱، شرح نقايه ص۹۶ ج۱، کبيری ص۳۶۸).

عَنْ مِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ مَا رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ يُصَلِّيْ إِلَى عُوْدٍ وَلَا عَمُوْدٍ وَلَا شَجَرَةٍ إِلَّا جَعَلَهُ عَلَى حَاجِبِهِ الْأَيْمَنِ أَوِ الْأَيْسَرِ وَلَا يَصْمُدُ لَهُ صَمْدًا. (ابوداود ص۱۰۰ ج۱، مسند احمد ص۴ ج۶)

**ترجمه**: حضرت مقداد بن اسود ﷺ ... يت دې ،چه ما رسول الله ﷺ کله هم ليدلې دې چه

ستره یا ستنې ، لرګی ، او ونې ته به یې مخامخ مونځ کولو نو هغوی به د هغه (لرګی وغیره) نه ښی یا چپ طرف ته وو ، بالکل مخامخ به ورته نه وو.

**مسئله :-** سترې ته به بالکل نزدې ولاړ وی (هدایه ص۸۹ ج۱، شرح نقایه ص۹۶ ج۱، کبیری ص۳۶۸).

عَنْ سَهْلِ بْنِ حَثْمَةَ (مرفوعا) إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ إِلَى سُتْرَةٍ فَلْيَدْنُ مِنْهَا. (ابوداود ص۱۰۱ ج۱)

**ترجمه:** حضرت سهل بن حثمه ﷺ روایت کوی چه د رسول الله ﷺ ارشاد دې چه په تاسو کښې کله څوك سترې ته مخامخ مونځ کوی نو هغې ته دې نزدې مونځ وکړی

**مسئله :-** که لرګې وغیره نه وی نو د سورلۍ اوښ وغیره په پناهئ کښې دې مونځ وکړی . یعنی ستره دې ترې جوړه کړی او مونځ دې ورته وکړی

لکه څنګه چه په حدیث مبارك کښې راغلې دی له حضرت عبد الله بن عمر ﷺ نه روایت دې چه رسو ل الله ﷺ به د خپلې سورلۍ (اوښ) په پناهئ کښې مونځ کولو ، یعنی اوښ به یې کینولو او مونځ به یې ورته کولو.

او په بل روایت کښې دا الفاظ راځی چه رسول الله ﷺ به د اوښ طرفته (مخ کولو سره ، مونځ وکړو مسلم ص۱۹۵ ج۱، ابوداؤد ص۱۰۰ ج۱)

**مسئله :-** د سترې لرګې ودرول پکار دی د لرګې خپلې مخې ته غورزولو سره مقصد نه حاصلیږی، لدینه علاوه که لرګې وغیره څه څیز پیدا نشی نو کرښې راښکلو سره دا مقصد نه حاصلیږی اګر چه امام احمد پدې باندې هم عمل کړې دې، لیکن اکثر فقهاء کرام ددې خلاف دی

خو بعض فقهاء کرام فرمایی چه خط راښکل اګر چه د تیریدونکی په نسبت څه مفید نه دی ، ځکه چه هغه ته په نظر نه راځی ، لیکن فی الجمله دې سره دلجمعی حاصلیږی . نو له دې کبله خط راښکل درست دی ، د ابن ماجه او ابوداؤد په روایت کښې دا الفاظ راغلی دی چه رسو ل الله ﷺ رمایی چه که چیرته همسا نه وی نو (فَلْيَخُطَّ خَطًّا ثُمَّ لَا يَضُرُّهُ مَا مَرَّ أَمَامَهُ). (ابوداود ص۱۰۰ ج۱، ابن ماجه ص۶۸)

**ترجمه:** خط (لیکه) دې اکاږی بیا د هغې مخې ته تیریدونکی څیزونه څه نقصان نشی رسولې اګر چه محدثین کرام وایی چه په دې حدیث کښې اضطراب دې . لدې کبله امام شافعی لدینه نکار کړې دې . لیکن که فی انجمله دلجمعی حاصلیږی نو د انکار ضرورت نشته

**مسئله :-** په مکه مکرمه کښې په مسجد حرام کښې د سترې ضرورت نشته

عَنْ طَاوُوسٍ قَالَ لَا يَقْطَعُ الصَّلَاةَ بِمَكَّةَ شَيْءٌ لَا يَضُرُّكَ أَنْ تَمُرَّ الْمَرْأَةُ بَيْنَ يَدَيْكَ. (مصنف عبد الرزاق ص۳۰ ج۲)

**ترجمه:** حضرت امام طاؤس رحمه الله نه روایت دې چه هغوی فرمایی: په مکه (یعنی د کعبې په خواو

شا کښې) مونځ لره هیڅ څیز نه ماتوی،تاسو دپاره مضره نه ده که ستاسو وړاندې ښځه تیره شی

**مسئله :-** که د امام مخې ته ستره وی نو د مقتدیانو مخې ته دسترې کیښودلو ضرورت نشته، د امام ستره دامام او مقتدی ټولو دپاره کافی ده **هدایه ص۸۹ ج۱،شرح نقایه ص۹۶ ج۱، کبیری ص۳۶۹)**

**عَنْ اَبِیْ جُحَیْفَةَ قَالَ رَاَیْتُ بِلَالًا خَرَجَ بِالْعَنَزَةِ فَغَرَزَهَا بَیْنَ یَدَیْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ بِالْبَطْحَاءِ فَصَلّٰی اِلَیْهَا الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ یَمُرُّ وَرَاءَهَا الْکَلْبُ وَالْحِمَارُ وَالْمَرْاَةُ.(مصنف عبد الرزاق ص۱۸، ج۲،مسلم ص۱۹۶، ج۱)**

**ترجمه** حضرت ابو جحیفه ؓ فرمایی چه ما حضرت بلال ؓ ولیدلو چه هغه نیزه. غشی واخستلو او ووتلو. او هغه یی د رسول الله ﷺ په وړاندې په بطحاء مقام کښې خښ کړو .(یعنی ستره یی ترې جوړه کړه) بیا رسو ل الله ﷺ هغه طرفته مخ کړو اود ماسپښین او مازدیګر مونځ یی وکړو. وړاندې به سپی خر او ښځه وغیره تیریدل

**عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سُتْرَةُ الْاِمَامِ سُتْرَةُ مَنْ وَرَاءِهٖ قَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ وَبِهٖ اٰخُذُ وَهُوَ الْاَمْرُ الَّذِیْ عَلَیْهِ النَّاسُ.**

**(مصنف عبد الرزاق ص۱۸، ج۲)**

**ترجمه** حضرت ابن عمر ؓ فرمایی چه د امام ستره د هغوی د مقتدیانو د پاره هم ستره ده، امام عبد الرزاق رحمه الله فرمایی مونږ هم په دې باندې عمل کولو، او په دې باندې د خلقو تعامل دې

**مسئله** - قبرستان کښې دامام او مقتدیانو د پاره جدا جدا هر یو ته ستره کیښودل ضروری دی، که چیرې قبرونه په نظر راځی نو صرف د امام ستره به کافی نه وی، ځکه چه د قبرونو مخې ته مخامخ کیدل .مشابه دی له شرك او قبر پرستی سره لهذا هر مونځ ګزار د پاره ستره (پرده) واجب ده. **(فتاوی رشیدیه ص۶۴)**.

# مفسدات الصلوة

## ((دمونځ فاسد))

په کومو خبرو چه مونځ فاسدیږی هغه په لاندې ډول دی

**په مونځ کښې خبرې کول** په خبرو کولو سره مونځ فاسدیږی . اګرکه هغه یوه کلمه هم وی، په دې شرط سره چه هغه د خلکو دخبرو په شان وی. یعنی داسې خبرې چه خلق یی په خپل مینځ کښې کوی . د کلام الهی د قسم او د اذکارو وغیره څخه نه وی . او برابره خبره ده که دا کلام قصداً وی او که په ناپوهۍ سره خطاء وی یا په هیره سره وی، کم وی او که زیات وی . په ویښه وی او که د خوب په حالت کښې وی په هر حالت کښې په دې سره مونځ ماتیږی **(شرح نقایه**

ص۹۱ ج۱،هدایه ص۸۶ ج۱، کبیری ص۴۳۳)

**په خطاء او هیره کښې فرق** - خطا داده چه مثلا مونځ گزار د قراءة قصد وکړو. یا د تسبیح لیکن دده د ژبې نه د خلقو دخبرو په شان خبرې جاری شوې

اونسیان دادې چه د خلقو د کلام په شان د کلام یې قصد وی لیکن دا یې هیر وی چه دغه په مونځ کښې دې

**د امامانو اختلاف** - امام مالك فرمایی چه کلام که قصدا وی او یا په هیره وی خو دمونځ د اصلاح د پاره وی (مثلا امام ددې کلام نه بغیر خبردار کیدې نشی) نو هغه غیر مفسد دی

امام شافعی فرمایی چه کلام په هیره وی اوکه په خطا نو مونځ پرې نه ماتیږی. هغه د هغه حدیث نه استدلال کوی چه په هغې کښې رسو ل الله ﷺ فرمایلي دی

إِنَّ اللّٰهَ وَضَعَ عَنْ أُمَّتِيَ الْخَطَأَ وَالنِّسْيَانَ وَمَا اسْتُكْرِهُوا عَلَيْهِ (ابن ماجه ص۱۴۷،مستدرك حاكم ص۱۹۸ ج۲ صحیح)

**ترجمه** الله ﷻ زما د امت د پاره خطا او هیره او اکراه رفع کړی دی د هغې په وجه په هغوی هیڅ خرابتیا نه شی راتلې

**د احنافو جواب** - احناف ددې جواب دا ورکوی چه د وضع یا د رفع نه مراد د گناه رفع کیدل دی. د ماتیدو (فساد) رفع کیدل مراد نه دی. مونځ پرې ماتیږی. لیکن گناه به پرې نه وی. البته د مونځ اعاده به ضروری وی کچیرې دا اشکال اوشبهه پیش کړې شی چه احناف په روژه کښې نسیان ولې معاف گرځوی. نو ددې جواب دادې، چه د رسو ل الله ﷺ ارشاد دې چه

(فَإِنَّمَا أَطْعَمَهُ اللّٰهُ وَسَقَاهُ). (بخاری ص۲۵۹ ج۱،ص۳۶۴ ج۱)

**ترجمه** الله ﷻ په دې حالت کښې په دوی خوراك وکړو. او څښکاك یې پرې وکړو

دویم جواب دادې چه د روژې وخت اوږد وی. هیریدل په کښې ممکن وی. او دمونځ حالت مذکره وی. او اوږد هم نه وی چه انسان دومره اندازه هیره کړی. لهذا دلته نسیان هم معاف نه دې

د احنافو استدلال یو خو لدې حدیث شریف نه دې چه

عَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ كُنَّا نَتَكَلَّمُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ فِي الصَّلٰوةِ فَنَزَلَتْ قُومُوا لِلّٰهِ قَانِتِينَ فَأَمَرَنَا بِالسُّكُوتِ وَنُهِينَا عَنِ الْكَلَامِ. (بخاری ص۱۶۰ ج۱،بخاری ص۱۶۰ ج۱،مسلم ص۲۰۴،ج۱،ترمذی ص۸۵)

**ترجمه** حضرت زید بن ارقم ؓ فرمایی چه خلقو به د رسو ل الله ﷺ په زمانه کښې به مونځ کښې خبرې کولې. نو کله چه دا آیت نازل شو. (**قوموالله قانتین**) یعنی د الله ﷻ په وړاندې په قنوت او عاجزی سره ودریږئ. نو مونږ ته د چپ اوسیدو حکم وشو. او دهر قسم کلام نه منع کړې شو

قَالَ أَبُو عِيسٰى حَدِيثُ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ حَدِيثٌ صَحِيحٌ وَالْعَمَلُ عَلَيْهِ عِنْدَ أَكْثَرِ أَهْلِ الْعِلْمِ قَالُوا إِذَا تَكَلَّمَ الرَّجُلُ

عَامِدًا فِي الصَّلٰوةِ أَوْنَاسِيًا أَعَادَ الصَّلٰوةَ وَهُوَ قَوْلُ الثَّوْرِيِّ وَابْنُ الْمُبَارَكِ.

**ترجمه** . امام ترمذی درمایی چه د حضرت زید بن ارقم ﷺ حدیث حسن صحیح دې . او په دې باندې د ډیرو عالمانو عمل دې ، هغوی ویلی دی چه کله سړې په مونځ کښې عمداً یا په هیره کلام وکړی نومونځ به دوباره کوی ، اودا قول دې د امام سفیان ثوری ، او ابن مبارک .

دویم دلیل دا دې چه : له حضرت معاویه بن الحکم سُلمی ﷺ نه روایت دې چه ما د رسول الله ﷺ سره مونځ کولو نو یو سړی پرنجې وکړو نوما وویل : **(یرحمك الله)** نو خلقو ماته ډیر په غور کتل شروع کړل ، نو ما ورته وویل ستاسو میندې دې بورې شی، تاسو ولې ماته په داسې نظر سره ګورئ، خلقو زما د چپ کولو دپاره خپل لاسونه په ورنونو وهل شروع کړل، نو چه ما و کتل نو ما وویل چه دا زما د چپ کولو دپاره داسې کوی (ماته غصه خو ډیره راغله) خو زه خاموش شوم، کله چه رسول الله ﷺ مونځ پوره کړو نو زما مور او پلار دې له هغوی نه قربان شی ، ما داسې معلم چه هغه په دې طریقه تعلیم ورکوی نه وړاندې چرته لیدلې وو او نه وروستو ، هغوی ﷺ نه ماته سپورې ستغې اویلې نه ووهلم ، نه یې قهر وکړو بلکه ماته یې وفرمایل چه : (إِنَّ هٰذِهِ الصَّلٰوةَ لَا يَصْلُحُ فِيهَا شَيْءٌ مِنْ كَلَامِ النَّاسِ إِنَّمَا هِيَ التَّسْبِيحُ وَالتَّكْبِيرُ وَقِرَاءَةُ الْقُرْآنِ). (مسلم ص۲۰۳، ج۱)

**ترجمه** : په مونځ کښې د خلقو د خبرو په شان خبرې صحیح نه دی دا خو تسبیح، تکبیر او د قرآن په قراءة باندې مشتمل دې.

د طبرانی په روایت کښې دا الفاظ راځی :

إِنَّ صَلَاتَنَا لَا يَحِلُّ فِيهَا شَيْءٌ مِنْ كَلَامِ النَّاسِ (ونصب الرایه ص۶۶ ج۲، بحواله طبرانی)

**ترجمه** : زمونږ په مونځ کښې حلال نه دی د خلقو د خبرو په شان هیڅ خبرې .

او د دارقطنی په روایت کښې د رسول الله ﷺ دا ارشاد هم دې :

أَلْكَلَامُ يَنْقُضُ الصَّلٰوةَ وَلَا يَنْقُضُ الْوَضُوْءَ . (دار قطنی ص۱۷۴ ج۱)

**ترجمه** : خبرې مونځ لره ماتوی او اودس لره نه ماتوی .

عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رِبَاحٍ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ صَلَّى بِأَصْحَابِهِ الظُّهْرَ أَوِ الْعَصْرَ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ فَقِيلَ لَهُ إِنَّكَ صَلَّيْتَ رَكْعَتَيْنِ قَالَ أَكَذٰلِكَ، قَالُوا نَعَمْ فَأَعَادَ بِهِمُ الصَّلَاةَ (کتاب الحجه ص۲۵۷ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عطاء بن ابی رباح ﷺ نه روایت دې ، چه حضرت امیرالمؤمنین عمر بن الخطاب ﷺ خپلو ملګرو ته د ماسپښین یا د مازدیګر مونځ دوه رکعته ورکړو او بیا ي سلام وګرځولو هغوی ته وویلی شول چه جناب تاسو خو دوه رکعته مونځ وکړو، نو حضرت عمر ﷺ خلقو نه پوښتنه وکړه چه آیا دا خبره درسته ده ؟ خلقو وویل : هو ! نو هغوی بیا دوباره مونځ وکړو .

عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ قُلْتُ لِعَطَاءٍ اَرَاَيْتَ لَوْ سَهَوْتَ فِي الْمَكْتُوْبَةِ فَتَكَلَّمْتُ ، قَالَ بِالْقَلْبِ ، قُلْتُ نَعَمْ قَالَ قَدِ انْقَطَعَتْ صَلٰوتُكَ فَصَلِّهَا جَدِيْدًا (مصنف عبد الرزاق ص۳۲۹ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابن جریج رحمه الله فرمایی ما حضرت عطاء ته وویل که چیرې زه په فرض مونځ کښې سهواً یعنی په هیره خبرې وکړم نو څه حکم د ې؟ هغوی وویل آیا خبرې د الفاظو ادا کولو سره دی؟ نو ما وویل چه آو، نو هغوی وفرمایل چه ستا مونځ مات شوې دې ته بیا دوباره د سر نه مونځ وکړه

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ اَنَّهُ سُئِلَ عَنْ رَجُلٍ صَلّٰى فَتَكَلَّمَ وَقَدْ بَقِيَتْ عَلَيْهِ رَكْعَةٌ قَالَ يَسْتَقْبِلُ صَلَاتَهٗ. (مصنف عبد الرزاق ص۳۳۰ ج۲، مصنف ابن ابی شیبه ص۴۴۲ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابراهیم نخعی نه پوښتنه وشو د هغه سړی په باره کښې چه په مونځ کښې خبرې وکړې او په هغې کښې یو رکعت باقی وی، نو ابراهیم نخعی وفرمایل چه بیا دې دسره مونځ وکړی

**مسئله** - صاحب د شرح نقایه په حواله د فتاوی محیط لیکلی دی کچیرې یو سړی په مونځ کښې پرنجې وکړو یا یې اسویلې وکړو، او لدینه څه کلام جوړ شو، (لغوی کلام) نو دې سره مونځ نه ختمیږی. ځکه چه لدینه ځان ساتل کیدل مشکل دی (شرح نقایه ص۹۲ ج۱).

**په مونځ کښې مصافحه کول** - په مونځ کښې چا ته لاس ورکول مونځ ماتوی (کبیری ص۴۴۲)

**په مونځ کښې سلام کول** - سلام کول عمداً مونځ ماتوی او په هیره مونځ نه ماتو (شرح نقایه ص۹۲ ج۱)

**د سلام وغیره جواب ورکول** - په مونځ کښې د سلام جواب ورکول په هر صورت مفسد دی که هغه عمداً وی یا سهواً ځکه چه دا کلام او خطاب دې شرح نقایه ص۹۲ ج۱)

حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې چه

كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ وَهُوَ فِي الصَّلٰوةِ فَيَرُدُّ عَلَيْنَا فَلَمَّا رَجَعْنَا مِنْ عِنْدِ النَّجَاشِيِّ سَلَّمْنَا عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْنَا فَقُلْنَا يَارَسُوْلَ اللهِ كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَيْكَ فِي الصَّلٰوةِ فَتَرُدُّ عَلَيْنَا قَالَ اِنَّ فِي الصَّلٰوةِ لَشُغْلًا (بخاری ص۱۶۰ ج۱، مسلم ص۲۰۴ ج۱)

**ترجمه** - مونږ به په مونځ کښې رسول الله ﷺ باندې سلام کولو نو هغوی به دسلام جواب راکولو کله چه مونږ د حبشې نه واپس راغلو، نو مونږ سلام وکړو، رسول الله ﷺ جواب رانه کړو. مونږ عرض وکړو چه یا رسول الله! تاسو خو به مخکښې د سلام جواب راکولو، اوس جواب نه راکوئ؟ دا څه وجه ده؟ هغوی ﷺ وفرمایل بیشکه مونځ کښې مشغولتیا ده (سلام او خبرې کول جائز ندی)

د ابو داؤد په روایت کښې دا الفاظ هم راغلی دی چه

حَتّٰى إِذَا قَضٰى صَلٰوتَهُ قَالَ إِنَّ اللهَ يُحْدِثُ مِنْ أَمْرِهِ مَا يَشَاءُ وَإِنَّ مِمَّا أَحْدَثَ أَنْ لَا تَتَكَلَّمُوا فِي الصَّلٰوةِ فَرَدَّ عَلَى السَّلَامِ وَقَالَ إِنَّ الصَّلٰوةَ لِقِرَاءَةِ الْقُرْاٰنِ وَذِكْرِ اللهِ فَإِذَا كُنْتَ فِيهَا فَلْيَكُنْ ذٰلِكَ شَأْنُكَ. (ابوداود ص ۱۳۳ ج ۱)

**ترجمه** کله چه هغوی ﷺ مونځ پوره کړو نو وې فرمایل بیشکه الله ﷻ چه په خپل حکم سره کومه خبره غواړی نو ظاهروی یې. او اوس چه الله ﷻ کومه خبره ظاهر فرمایلې ده هغه دا ده چه تاسو خلق کله په مونځ کښې مشغول یاستئ نو خبرې مه کوئ. بیا رسول الله ﷺ زما د سلام جواب راکړو. او وې فرمایل بیشکه په مونځ کښې د قرآن قرائت دې. او د الله ﷻ ذکر دې. کله چه تاسو مونځ کښې یاستئ نو ستاسو دغه شان (حالت) کیدل پکار دی

له دینه علاوه لاندینی مسائل هم ددې احادیثو نه ثابتیږی

**مسئله** :- په مونځ کښې پرنجی کوونکو ته (یرحمك الله) ویلو سره هم مونځ ماتیږی (هدایه ص ۸۶ ج ۱، شرح نقایه ص ۹۲ ج ۱، کبیری ص ۴۲۹)

**مسئله** :- د مونځ نه د بهر سړی په دعاء باندې آمین ویلو سره هم مونځ ماتیږی (کبیری ص ۴۳۹)

**مسئله** : د اذان جواب ورکولو سره هم مونځ ماتیږی (کبیری ص ۴۴۳)

**مسئله** :- بشارت (خوشخبری) آوریدلو سره هم په الحمدلله ویلوباندې مونځ ماتیږی. (شرح نقایه ص ۹۲ ج ۱، کبیری ص ۴۳۸)

**مسئله** :- د غم خبر آوریدلو سره (انالله وانا الیه رجعون) ویلو سره هم مونځ ماتیږی. (شرح نقایه ص ۹۲ ج ۱، کبیری ص ۴۳۹).

**مسئله** :- د حیرانتیا خبر آوریدو سره سبحان الله ویلو باندې هم مونځ ماتیږی. (شرح نقایه ص ۹۲ ج ۱، کبیری ص ۴۳۸)

**مسئله** - د څه څیز په پریوتلو باندې هم په مونځ کښې بسم الله ویلو سره مونځ ماتیږی

**مسئله** - څه نا خوښه خبره آوریدلو باندې لاحول ولا قوة الا بالله ویلو سره مونځ ماتیږی (شرح نقایه ص ۹۲ ج ۱، کبیری ص ۴۳۸).

**مسئله** - د درد او غم له کبله آه او اُف ویلو سره هم مونځ ماتیږی (جامع صغیر ص ۱۳، هدایه ص ۸۶ ج ۱، شرح نقایه ص ۹۲، کبیری ص ۴۳۷)

عَنِ الشَّعْبِيِّ فِي رَجُلٍ قَالَ هَاهْ فِي الصَّلٰوةِ قَالَ يُعِيدُ (مصنف ابن ابی شیبه ص ۵۳۲ ج ۲)

**ترجمه** حضرت امام شعبي فرمايي چه څوك په مونځ کښې هاى ووايى نو مونځ دې دوباره راوګرځوى.

**مسئله** - د څه دنيوى غم او مصيبت له کبله يا د دنيوى غرض د پاره د آواز ويستلو سره مونځ فاسديږى **(جامع صغير ص ۱۳، هدايه ص ۸۶ ج ۱، شرح نقايه ص ۹۲ ج ۱، کبيري ص ۴۳۴).**

**مسئله** - په مونځ کښې د الله ﷻ د ويرې، هيبت، يا د آخرت امر له کبله که زارى او ژړا راشى نو دا مونځ نه ماتوى، ځکه چه دا بې اختياره وى **(هدايه ص ۸۶ ج ۱، شرح نقايه ص ۹۲ ج ۱، کبيري ص ۴۳۶).**

بلکه داسې ژړل خو په کمال خشوع باندې دلالت کوى. لکه چه پدې روايت کښى دى:

**عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الشِّخِيْرِ ﷺ قَالَ اَتَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ وَهُوَ يُصَلِّيْ وَلِجَوْفِهِ اَزِيْزٌ كَاَزِيْزِ الْمِرْجَلِ مِنَ الْبُكَاءِ. (مسند احمد ص ۲۵ ج ۴، نسائي ص ۱۷۹ ج ۱، شمائل ترمذى ص ۵۹۳)**

**ترجمه** حضرت عبد الله بن شخير ﷺ نه روايت دې چه زه رسول الله ﷺ ته راغلم، هغه وخت هغوى ﷺ مونځ کولو، او د هغوى د سينې نه د ژړا داسې آواز راوتلو. لکه څنګه چه کټوئ جوش وهى

**وَفِيْ رِوَايَةٍ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يُصَلِّيْ وَفِيْ صَدْرِهٖ اَزِيْزٌ كَاَزِيْزِ الرَّحٰى مِنَ الْبُكَاءِ. (ابوداود ص ۱۳۰ ج ۱)**

**ترجمه** په يو روايت کښې راغلى دى چه ما رسول الله ﷺ وليدلو. هغوى مونځ کولو د هغوى ﷺ د سينې مبارکې نه د ژړا له کبله داسې آواز راوتلو. لکه د ميچنې آواز چه وى

**عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ شَدَّادٍ سَمِعْتُ نَشِيْجَ عُمَرَ وَاَنَا فِيْ اٰخِرِ الصُّفُوْفِ يَقْرَاُ اِنَّمَآ اَشْكُوْا بَثِّيْ وَحُزْنِيْٓ اِلَى اللهِ (بخاري ص ۹۹ ج ۱)**

**ترجمه** حضرت عبد الله بن شداد ﷺ فرمايي چه ما دحضرت عمر ﷺ د ژړا آواز واوريدلو. او زه په آخرى صف کښې ووم، هغه وخت هغوى ﷺ دا آيت لوستلو. **(انما اشكوا بثي وحزني الى الله)**

**مسئله** - بعضې خلق د رياء او تصنع له کبله داسې کوى، دا روا (جائز) نه دى، حضرت شاه ولى الله د حضرت عمر ﷺ د زمانې يوه واقعه ليکلې ده چه يو مونځ کونکى په مونځ کښې داسې ژړا او فرياد کولو. چه ګويا د دنيا درد او غم او خشوع او خضوع ده په حصه کښې راغلې ده، حضرت عمر ﷺ په فراست سره دمعلومولو له کبله هغه تهديد کړو. اوهغه ته يى وويل مکاره! ريا کاره! (يعنى ته د الله ﷻ د ويرې ښکاره کولو سره خپل عظمت او لويى په خلقو ښکاره کوې) نو هغه سرې منع شو. **(ازالة الخفاء ج ۲)**

**مسئله** :- حضرت امام ابو يوسف فرمايي چه مونځ ګزار که په خشوع او خضوع کښې د ضبط او تحمل طاقت لرى او بيا په آواز سره ژاړى نو مونځ يى ماتيږى، او که چيرې طاقت نه لرى نو بيا يى مونځ نه ماتيږى.

**په مونځ کښې توخې او غاړې تازه کول** :- تنحنح ( توخې او غاړه تازه کول) په داسې طریقه چه حروف ترې نه پیداشی که بغیر د عذر نه وی نو مونځ ماتوی، او که د تحسین د آواز دپاره وی نو مونځ پرې نه ماتیږی. (جامع صغیر ص۱۳، کبیری ص۴۳۹، هدایه ص۸۷ ج۱)

**د خپل امام نه علاوه بل چاته فتحه ورکول** :- د مونځ په حالت کښې د خپل امام نه علاوه بل چاته فتحه ورکولو سره مونځ ماتیږی. (جامع صغیر ص۱۳، هدایه ص۸۷ ج۱، شرح نقایه ص۹۲ ج۱، کبیری ص۴۴۰).

**مسئله** :- بغیر د ضرورت نه یا په رکوع کښې د تاخیر کولو نه بغیر خپل امام ته فتحه ورکول مکروه دی.

**مسئله** :- د ضرورت په وخت یا دامام له قرآءت نه د بندیدو په وخت که امام په رکوع کښې تاخیر وکړی، نو خپل امام ته فتحه ورکول جائز دی. (شرح نقایه ص۹۲ ج۱، هدایه ص۸۷ ج۱، کبیری ص۴۴۰).

**عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى صَلوٰةً فَقَرَأَ فِيْهَا فَلُبِسَ عَلَيْهِ فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ لِأُبَيٍّ أَصَلَّيْتَ مَعَنَا؟ قَالَ: نَعَمْ، قَالَ فَمَا مَنَعَكَ (ابوداؤد ج:۱، ص: ۱۳۱).**

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر ؓ نه روایت دې چه رسو ل الله ﷺ مونځ کولو او په هغې کښې یې قراءة وکړو او هغوی ﷺ باندې څه کډ ودی عارضه شوه، کله چه هغوی ﷺ د مونځ نه فارغ شول نو هغوی ﷺ حضرت ابی ؓ ته وفرمایل آیا تا مونږ سره مونځ کړې دې؟ هغوی ؓ عرض وکړو آو! هغوی ﷺ وفرمایل: تا ولې فتحه رانکړه؟

**عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: إِذَا اسْتَطْعَمَكَ الْإِمَامُ فَأَطْعِمْهُ.**

**ترجمه**: حضرت علی ؓ فرمایلی دی چه که امام ستاسو نه د فتحې اخستونکې وی نو هغه ته فتحه ورکړئ.

حضرت نافع ؓ فرمایی چه مونږ ته حضرت ابن عمر ؓ مونځ راکړو، هغوی یو آیت بار بار تلاوت کولو، نو ما هغه فتحه ورکړه نو هغوئ زما فتحه واخیستله. (مصنف ابن ابی شیبه ج:۲، ص:۶۳)

همدغه رنګې د حضرت حسن بصری ؓ، محمد ابن سیرین رحمة الله علیه، حضرت عطاء رحمة الله علیه نه هم نقل دی. (مصنف ابن ابی شیبه ص۶۲ ج۲).

**مسئله** :- کوم سړې چه مونځ نه کوی هغه که مونځ کونکو ته فتحه ورکړه، او مونځ کونکو دهغه فتحه واخیستله نو د هغوی مونځ به مات شی.

**مسئله** :- د مقتدی نه علاوه که چا امام ته فتحه ورکړه او امام دهغه فتحه واخیستله، نو دامام او دټولو مقتدیانو مونځ مات شو. (شرح وقایه ص۱۶۳ ج۱).

**په ناپاک ځای باندې سجده کول**:- په ناپاک ځائی باندې سجدې کولو سره مونځ ماتیږی (درمختار ص۰ ج۱، شرح نقایه ص۱۲ ج۱).

**په تکبیر «الله اکبر» کښې همزه یا «ب» لره اوږدول**:- د «الله اکبر» همزه یا د «الله اکبر» «با» اوږدولو او راښکلو سره مونځ ماتیږی (درمختار ص۶۳ ج۱، ص۹۰ ج۱).

**په قراءة کښې فاحشه «زیاته» غلطی**:- په قراءة کښې که فاحشه غلطی وشی چه په هغې سره مفهوم یا معنی بدله شی، نو مونځ ماتیږی. (درمختار ص۹۰ ج۱)

**قرآن کریم د موسیقی اوسندرې په طرز ویل**:- قرآن کریم د سندرې او موسیقۍ په طرز ویلو سره هم مونځ ماتیږی.

**د مونځ په دعا کښې دنیاوی حاجت غوښتل**:- د مونځ په دعا کښې داسې حاجت غوښتل کوم چه دخلقو نه غوښتلې شی لکه داسې ویل چه یا الله ﷻ فلانۍ ښځې سره زما نکاح وکړې، یا ماته دومره لکونه روپۍ راکړې، یا ماته فلانۍ قسم جامې راکړې، یا فلانې قسم خوراك په ما وخروې وغیره سره مونځ ماتیږی (هدایه ص۶۲ ج۱، شرح نقایه ص۳۹ ج۱، کبیری ص۴۲۴).

**مسئله**:- ددې په خلاف داسې قسم دعا غوښتل، (اَللّٰهُمَّ عَافِنِیْ وَاعْفُ عَنِّیْ وَارْزُقْنِیْ)، وغیره یعنی اې الله ﷻ ماته عافیت راکړې، ما معاف کړې، اوماته رزق راکړې ، وغیره دعا غوښتلو سره مونځ نه ماتیږی (شرح نقایه ص۸۱ ج۱)

**په مونځ کښې قهقهه کول «په زوره خندل»**:- د بالغ مونځ ګزار په مونځ کښې قهقهه کولو سره مونځ ماتیږی، او اودس یې هم ماتیږی (هدایه ص۸۸ ج۱، کبیری ص۱۳۱، شرح نقایه ص۱۲ ج۱).

په دې سلسله کښې بحث سره له حوالې نه په کتاب الطهارة د اودس د ماتوونکو په باب کښې تیر شوې دې

**مسئله**:- په مونځ کښې «ضحك» خندا سره صرف مونځ ماتیږی. او تبسّم «مسکا» سره نه مونځ ماتیږی، او نه اودس (شرح نقایه ص۱۲ ج۱، کبیری ص۱۳۲)

عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِیِّ ﷺ قَالَ لَا یَقْطَعُ الصَّلَاةَ الْکَشْرُ وَلٰکِنْ یَقْطَعُهَا الْقَهْقَهَةُ. (مجمع الزوائد ص۸۲ ج۲، بحواله طبرانی فی الصغیر)

**ترجمه**: حضرت جابر ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایي: نرمه خندا یا غاښونو ښکاره کولو سره مونځ نه ماتیږی، لیکن قهقهه سره مونځ ماتیږی.

عَنْ جَابِرٍ قَالَ اَلتَّبَسُّمُ لَا يَقْطَعُ وَلٰكِنْ تَقْطَعُ الْقَهْقَهَةُ .(مصنف ابن ابی شیبه ص ۳۸۷ ج ۱)
**ترجمه** حضرت جابر ﷺ نه روایت دې هغوی فرمايي چه تبسم مونځ لره نه ماتوی، لیکن په زوره خندل (قهقهه) مونځ لره ماتوی.

عَنِ الْعَطَاءِ وَالْحَسَنِ اَنَّهُمَا لَمْ يَرِيَا بِالتَّبَسُّمِ فِي الصَّلٰوةِ وَلَمْ يُعِدِ الْوُضُوْءَ. (مصنف ابن ابی شیبه ص ۳۸۷ ج ۱، وعبدالرزاق ص ۳۷۷ ج ۲)
**ترجمه** حضرت حسن بصری رحمة الله عليه او حضرت عطاء رحمة الله عليه به په مونځ کښې په تبسم سره هیڅ خلل نه محسوسولو.

عَنْ جَابِرٍ قَالَ : اَلتَّبَسُّمُ لَا يَقْطَعُ وَلٰكِنْ تَقْطَعُ الْقَهْقَهَةُ (مصنف ابن ابی شیبه، ج: ۱، ص: ۳۸۷).
**ترجمه** حضرت جابر بن عبد الله ﷺ فرمايي چه کله څوك مونځ ګزار په مونځ کښې وخاندی نو هغه دپاره مونځ دوباره کول پکار دی او اودس دې نه را ګرځوی.

عَنْ هِشَامٍ قَالَ ضَحِكَ اَخِيْ فِي الصَّلٰوةِ فَاَمَرَهُ عُرْوَةُ اَنْ يُّعِيْدَ الصَّلَاةَ وَلَمْ يَاْمُرْهُ اَنْ يُّعِيْدَ الْوُضُوْءَ. (مصنف ابن ابی شیبه ص ۳۸۷ ج ۱،
**ترجمه** حضرت هشام نه روایت دې چه زما ورور په مونځ کښې وخندل . نو حضرت عروه رحمة الله عليه حکم وکړو. چه مونځ دوباره وکړه او د اودس د دوباره کولو حکم یې ونکړو.

همدغه رنګې د امام زهری .مجاهد او نورو حضراتونه هم نقل دی (مصنف عبدالرزاق ص ۳۷۷ ج ۲، وابن ابی شیبه ص ۳۸۷ ج ۱).

**یادونه** - په قهقهه ،ضحك او تبسم کښې د فرق په سلسله کښې صاحب د شرح نقايه ليکلي دی
قَهْقَهَةٌ وَهِيَ مَا تَكُوْنُ مَسْمُوْعَةً لَّهُ وَلِجِيْرَانِهِ سَوَاءٌ ظَهَرَتْ اَسْنَانُهُ اَوْلَا وَالضِّحْكُ مَا يَكُوْنُ مَسْمُوْعًا لَّهُ دُوْنَ غَيْرِهٖ وَتَبْطُلُ بِهِ الصَّلٰوةُ دُوْنَ الْوُضُوْءِ وَالتَّبَسُّمُ مَا لَا يَسْمَعُ اَصْلًا وَلَيْسَ بِمُبْطِلٍ لِوَاحِدٍ مِّنْهُمَا. (شرح نقايه ص ۱۲ ج ۱، وهکذا کبیری ص ۱۴۳)
**ترجمه** د قهقهه تعریف دادې . چه خندا کونکې یې خپل خان ته او خواکښې ملګری ته واوروی. برابره خبره ده که غاښونه یې ښکاره شی او که نه او ضحك هغه وی . چه هغه یې خان ته واوروی. نورو ته یې وانه وروی. دې سره مونځ خو باطلیږی لیکن اودس نه باطلیږی تبسم هغه دې چه هیڅا ته یې وا نه وروی. او پدې سره نه مونځ باطلیږی او نه اودس

**په مونځ کښې لوڅیدل** - د یو رکن کولو په اندازه که لوڅ شې. نو مونځ یې ماتیږی (درمختار ص ۴۰۰ ج ۱).

**په مونځ کښې لیونې ، بیهوشه یا جنب کیدل** - په مونځ کښې که لیونتوب، بې هوشی، یا جنابت پیښ شو نو مونځ یې ماتیږي. **(هدایه ص ۸۳ ج ۱)**.

**د زخم نه د پټۍ وغیره غورزیدل** - په دوران دمونځ کښې که د زخم د جوړیدو سره پټۍ وغیره وغورزیږي، نو مونځ یې ماتیږي **(هدایه ص ۸۳ ج ۱)**.

**د سحر په مونځ کښې د نمر راختل** - که د سحر د مونځ په دوران کښې نمر را راوخیژي، نو مونځ ماتیږي **(هدایه ص ۸۳ ج ۱)**.

**په مونځ کښې نا اهل لره خلیفه جوړول** - که امام د مونځ په دوران کښې داسې سړې خلیفه جوړ کړو چه د خلیفه جوړولو اهل نه وو نو دې سره هم مونځ ماتیږي **(هدایه ص ۸۳ ج ۱)**.

**د بربنډ مونځ گزار د مونځ په دوران کښې په جامې باندې قدرت موندل** که بربنډ سړې چه مونځ کوی او په دوران د پرده پوشئې د پاره کپړه وغیره بیا مومی نو مونځ فاسدې ږی **(هدایه ص ۸۳ ج ۱)**.

**په اشارې سره د مونځ کونکی رکوع او سجده باندې قادریدل** - که بیمار سړې چه په اشاره مونځ کوی او په رکوع اوسجدې او ولاړه باندې قادر شونو مونځ یې مات شو **(هدایه ص ۸۳ ج ۱)**.

**د مونځ په دوران کښې د مسحې موده پوره کیدل** - په موزو باندې د مسح کونکی سړی که په دوران د مونځ کښې موده د مسح ختمه شوه نومونځ یې ماتیږي **(هدایه ص ۸۳ ج ۱)**.

**د تیمم کونکی د مونځ په دوران کښې په اوبو باندې قدرت موندل** - په تیمم باندې مونځ کونکې سړې که په دوران د مونځ کښې اوبه ووینی ، او د اوبو په استعمال باندې قادر هم شی، نو دده مونځ ماتیږي **(هدایه ص ۸۳ ج ۱)**.

**په مونځ کښې د څه خیز خوړل یا څښکل** - که په دوران د مونځ کښې د بهر نه څه ځیز وخوری یا یې وڅښی برابره خبره ده که هغه لږ ځیز وی اوکه ډیر او تیر یې کړې نو دې سره مونځ فاسدیږي **(شرح نقایه ص ۹۳ ج ۱)**

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ اِذَا اَكَلَ اَوْشَرِبَ فِي الصَّلٰوةِ اِسْتَقْبَلَ الصَّلٰوةَ. (مصنف ابن ابی شیبه ص ۴۶۰ ج ۲)

**ترجمه** حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله نه روایت دې چه کله څوك په مونځ کښې څه خوراك یا څښکاك وکړی نو هغه دې بیا دسره مونځ وکړی

عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ قُلْتُ لِعَطَاءٍ اٰكُلُ فِي التَّطَوُّعِ وَاَشْرَبُ وَلَوْ مَجَّةً ؟ قَالَ لَا لَعَمْرِيْ، وَلٰكِنِ انْصَرِفْ وَاشْرَبْ

(مصنف عبدالرزاق ص ۳۳۲ ج ۲)

**ترجمه**: حضرت ابن جریج ؒ نه روایت دې هغوی فرمایي چه ما حضرت عطاء ته وویل چه آیا زه نفل مونځ کښې خوراك او څښكاك کولې شم اګرکه هغه یو ګوټ وی؟ نو هغوی وفرمایل: نه! او که د مونځ نه فارغ شې نو بیا یې وڅښه.

**مسئله**:- د غاښونو د مینځ نه څه څیز که دمونځ په دوران کښې را وباسې او وې خوری، نو که د چنې د دانې برابر وی یا ددینه زیات وی نو مونځ یې فاسدیږی.

**په مونځ کښې د سینې د قبلې نه آوړیدل**:- په مونځ کښې که د مونځ ګزار سینه د قبلې نه واوړی نو مونځ یې ماتیږی. (درمختار ص ۹۰ ج ۱).

**عمل کثیر**:- د عمل کثیر سره مونځ ماتیږی. (درمختار ۹۰ ج ۱، شرح نقایه ص ۹۳ ج ۱)

**د عمل کثیر تعریف**:- فقهاء کرام فرمایي چه عمل کثیر هغه دې چه په هغې کښې د دواړو لاسونو د استعمالولو ضرورت وی، او حضرت امام ابو حنیفه نه نقل دی چه عمل کثیر او د عمل قلیل معلومولو دپاره به د مبتلابه رایې ته اعتبار وی. چه هغه هغې لره کثیر وګڼی نوهغه به کثیر وی، او بعضې فرمایي چه هغه لیدونکې (چه څوك دې مونځ ګزار ته ګوری هغه) یې عمل کثیر وګڼی، نو هغه عمل کثیر دې. (شرح نقایه ص ۹۳ ج ۱).

**مسئله**:-ماشوم یا ماشومې لره پورته کولو سره مونځ نه ماتیږی، (فتح الملهم شرح مسلم، ص ۱۴۰ ج ۲) ځکه چه دا عمل قلیل دې او عمل قلیل سره مونځ نه فاسدیږی.

**مسئله**:- که د دغه ماشوم په جامو یا په بدن ناپاکی لګیدلې وه نو مونځ به یې مات شی. (فتح الملهم شرح مسلم، ص ۱۴۰ ج ۲)

**مسئله**:- ښځې په مونځ کښې ماشوم اوچت کړو، او ماشوم د ښځې سینه ورودله، او پئ تریې را ووتلې، نو پداسې صورت کښې به ددې ښځې مونځ مات شی. (کبیری ص ۴۴۳) (فتح الملهم شرح مسلم، ص ۱۴۰ ج ۲)

**مسئله**:- فتاویٰ تا تارخانیه کښې دی چه که چا دمونځ په حالت کښې خپلې ښځې لره مسح کړه یا یې ښکُل کړه، نو ددې مونځ مات شو.

**د ښځې په مونځ کښې له نارینه سره برابر ودریدل**:- ښځه که سړی سره په مونځ کښې مخامخ برابره شی، او ښځه بالغه هم وی، محرم وی که نامحرم. او دواړه د یومونځ په تحریمه کښې شریك وی او په مینځ کښې یې څه حائل هم نه وی. او دیو رکن د ادا کولو په مقدار باندې دا

محاذات وی، او ښځه لیونۍ ، حیض ،نفاس والا هم نه وی، او دواړه د یو امام مقتدیان وی، او امام د ښځې د اقتداء نیت هم کړې وی، یا ښځه مقتدی وی، او سړی د ښځې د امامت نیت هم کړې وی. نو په داسې صورت کښې به د نارینه مونځ مات شی (هدایه ص۹۰ ج۱، شرح نقایه ص۸۸، شرح وقایه ص۱۷۳)

**مسئله** - که د بل مونځ گزار کپړه د مونځ په حالت کښې دده لاندې گیره شوه، او د هغه مونځ گزار په راښکلو اوکش کولو سره یې کپړه پریښودله، نو دده مونځ به فاسد شی. او که په خپله اراده یې پریښودله نو مونځ یې نه فاسدیږی.

وجه د فساد داده چه امتثال د امرِ غیر په مونځ کښې موجب د فساد د مونځ دې خکه چه د غیرالله امتثال په مونځ کښې جائز نه دې. (فتاوی رشیدیه ص۵۵)

# د مونځ مکروهات

دالله ﷻ ارشاد دې چه

حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى وَقُومُوا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ. فَاِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا اَوْ رُكْبَانًا فَاِذَآ اَمِنْتُمْ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَمَا عَلَّمَكُمْ مَّا لَمْ تَكُوْنُوْا تَعْلَمُوْنَ. (البقره پ۲)

**ترجمه** حفاظت کوئ د ټولو مونځونو او دمینځنی مونځ او الله ﷻ ته په ډیر ادب ودریږئ. بیا که چیرې تاسو ته د دښمن ویره وی نو مونځ وکړئ، پیاده وی او که په سورلئ. بیا چه هر کله تاسو ته امن حاصل شی. نو الله ﷻ یاد کړئ، څنګه چه تاسو ته یې چل ښودلې دې . په کوم څیز چه تاسو مخکښې نه پوهیدلئ

قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ. اَلَّذِيْنَ هُمْ فِيْ صَلَاتِهِمْ خٰشِعُوْنَ. (المومنون پ۱۸)

**ترجمه** یقیناً هغه مؤمنان کامیاب شول . چه په خپلو مونځونو کښې عاجزی کوی

امام احمد په خپل کتاب الصلوة کښې یو روایت نقل کړې دې. چه رسول الله ﷺ فرمایی

يَاْتِيْ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ يُصَلُّوْنَ وَلَا يُصَلُّوْنَ. (کتاب الصلوة ص۴)

**ترجمه** په خلقو به داسې زمانه راشی، چه هغوی به مونځ کوی لیکن حقیقت کښې به هغوی مونځ نوی کړې

**مسئله** - فقهاء کرام فرمایی چه (وَكُرِهَ كُلُّ هَيْئَةٍ فِيْهَا تَرْكُ خُشُوْعٍ). (شرح نقایه ص۹۳ ج۱)

**ترجمه** په مونځ کښې هرهغه هیئت چه په هغې کښې خشوع او خضوع نه وی هغه مکروه دې

۱ - **سدل** - په مونځ کښې سدل (یعنی سر باندې څادر، کپړه وغیره را زوړندول بغیر د را تاوولو نه، مکروه دې : (هدایه ص۱۱ ج۱، شرح نقایه ص۹۰ ج۱، کبیری ص۳۳۷)

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ اَنَّهٗ عَلَیْهِ السَّلَامُ نَهٰی عَنِ السَّدْلِ فِی الصَّلٰوةِ. (ابوداود ص۹۴ ج۱، ترمذی ص۸۱، مستدرک حاکم ص۲۵۳ ج۱)

**ترجمه** . له حضرت ابو هریره ﷛ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ په مونځ کښې د سدل (جامې را زوړندولو) نه منع فرمایلې ده.

**مسئله** - دستمال، ګلوبند د څټ نه راتاوول مکروه نه دې

۲ - **خوله پټول** - خوله پټول په مونځ کولو کښې هم مکروه دی. (شرح نقایه ص۹۴ ج۱، کبیری ص۳۳۵).

علامه شامی په حواله د زیلعی سره لیکلی دی

وَیُکْرَهُ التَّلَثُّمُ وَهُوَ تَغْطِیَةُ الْاَنْفِ وَالْفَمِ فِی الصَّلٰوةِ لِاَنَّهٗ یُشْبِهُ فِعْلَ الْمَجُوْسِ حَالَ عِبَادَتِهِمُ النِّیْرَانَ وَنَقَلَ عَنْ اَبِیْ سَعُوْدٍ اَنَّهٗ تَحْرِیْمِیَّةٌ. (شامی ص۶۱۱ ج۱، واوجز المسالک ص۳۲ ج۱)

**ترجمه** دمونځ په حالت کښې په خوله کپړه کیښودل مکروه دی، یعنی خوله او پوزه د مونځ په حالت کښې پټول. ځکه چه دا دمجوسو د فعل سره مشابهت لري کله چه به مجوسو د اور عبادت کولو. او طحاوی د ابوسعید نه نقل کړې دی، چه دا فعل مکروه تحریمی دې

حضرت ابو هریره ﷛ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ د مونځ په حالت کښې د خولې پټولو نه منع فرمایلې ده (ابوداؤد ص۹۴ ج۱، مستدرک حاکم ص۲۵۳ ج۱)

عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْمُجَبَّرِ اَنَّهٗ یَرٰی سَالِمَ بْنَ عَبْدِ اللهِ اِذَا رَاَی الْاِنْسَانَ یُغَطِّیْ فَاهُ وَهُوَ فِی الصَّلٰوةِ جبذ الثَّوْبِ جبذًا شَدِیْدًا حَتّٰی یَنْزِعَهٗ عَنْ فِیْهِ. (موطا امام مالک ص۱۲)

**ترجمه** حضرت سلمان بن مجبر نه روایت دې چه حضرت سالم بن عبدالله به کله څوک ولیدلو چه هغه په مونځ کښې خوله پټوی نو ده به هغه کپړه په زور باندې د هغه د خولې نه لرې کوله

**مسئله** - البته که چیرته د مونځ ګذار اسویلې راشی نو بیا خوله په لاس باندې پټول مستحب دی. (کبیری ص۳۳۵).

۳ - **تثاؤب یعنی اسویلې کول** - په مونځ کښې اسویلې کول مکروه دی

عَنْ اَبِیْ سَعِیْدِنِ الْخُدْرِیِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا تَثَاءَبَ اَحَدُکُمْ فِی الصَّلٰوةِ فَلْیَکْظِمْ مَا اسْتَطَاعَ فَاِنَّ الشَّیْطٰنَ یَدْخُلُ. (مسلم ص۴۱۳ ج۲)

**ترجمه** حضرت ابو سعید خدری ﷛ نه روایت دې چه رسو ل الله ﷺ فرمایی کله چه په تاسو کښې څوک په مونځ کښې اسویلې کوی. نو هغه ته پکار دی چه څومره طاقت یې وی چه هغه خوله بنده کړی. ځکه چه په دې حالت کښې شیطان په خوله کښې دننه داخلیږی

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ عَنِ النَّبِیِّ ﷺ قَالَ اَلتَّثَاءُبُ مِنَ الشَّیْطٰنِ فَاِذَا تَثَاءَبَ اَحَدُکُمْ فَلْیَرُدَّهٗ مَا اسْتَطَاعَ فَاِنَّ اَحَدَکُمْ اِذَا

قَالَ هَاضَحِكَ الشَّيْطٰنُ. (بخاری ص ۴۶۳، ج ۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هريره ؓ نه روايت دې چه اسويلې د شيطان نه وی (يعنی شيطان په دې خوشحاليږی) کله چه په تاسو کښې څوك په مونځ کښې اسويلې کوی، نو هغه ته پکاردی چه څومره طاقت يې وی نو بايد هغه بند کړی ځکه چه تاسو کښې کله څوك ها کوی نو شيطان خاندی.

وَفِي رِوَايَةِ ابْنِ مَاجَه فَلْيَضَعْ يَدَهُ عَلٰى فِيْهِ. (ابن ماجه ص ۶۸، وبمعناه مسلم ص ۴۱۳ ج ۲)

**ترجمه**: د ابن ماجه او مسلم په روايت کښې راغلی دی چه خپل لاس دې په خوله کيږدی.

عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ رَفَعَهُ قَالَ الْعُطَاسُ وَالنُّعَاسُ وَالتَّثَاءُبُ فِي الصَّلٰوةِ وَالْحَيْضُ وَالْقَيْءُ وَالرُّعَافُ مِنَ الشَّيْطٰنِ. (ترمذی ص ۳۹۲)

**ترجمه**: حضرت عدی بن ثابت عن ابيه عن جده نه روايت کوی، چه رسول الله ﷺ فرمايی په مونځ کښې پرنجې، خوب، اسويلې، حيض، قې، پوزه ماتيدل. د شيطان څخه دی (يعنی شيطانی کار دې - چه شيطان پرې خوشحاليږی، ځکه چه پدې باندې مونځ ماتيږی يا په دې کښې خلل واقع کيږی).

**مسئله** - فقهاء کرام فرمايی چه اسويلې د مونځ نه بهر هم مکروه دې، که لاندې شونډه په غاښونو ونيسې نو بند به شی.

علامه شامی او قدوری خپله تجربه بيان کړې ده اوهغه دا چه که په زړه کښې دا فکر وکړی چه انبياء عليهم السلام اسويلې نه دې کړې. نو فوراً به لرې شی. (فتاوی شامی ص ۴۲۶ ج ۱)

۴ - **تَمَطِّيْ يعنی ستومانی ويستل او ځان غزول** - ستومانی ويستل هم دمونځ په حالت کښې مکروه دی، دا دغفلت او د سستئ علامت دې. (شرح نقايه ص ۹۳ ج ۱)

۵ - **اعتجاز** - مونځ کښې اعتجاز مکروه دې. (کبيری ص ۳۴۵)

ددې دوه معناګانې راځی ۱- د پټکی څه حصه په سر راتاوول، او څه حصه په مخ او په څټ راتاوول. ۲ - دستمال وغيره د سر نه راتاوول، او په مينځ کښې سر لوڅ پريښودل.

لِكَوْنِهٖ فِعْلَ الْجُفَاةِ مِنَ الْاَعْرَابِ. (کبيری ص ۳۳۶)

**ترجمه**: ځکه چه دا د جاهلو کوچيانو له فعل سره مشابهت لری

۶ - **التفات** - په مونځ کښې التفات (اخوا ديخوا کتل) مکروه دی. (هدايه ص ۱۰۰ ج ۱، کبيری ص ۳۱۵).

عَنْ اَنَسٍ قَالَ النَّبِيُّ ﷺ يَا بُنَيَّ اِيَّاكَ وَالْاِلْتِفَاتَ فِي الصَّلٰوةِ فَاِنَّ الْاِلْتِفَاتَ فِي الصَّلٰوةِ هَلَكَةٌ فَاِنْ كَانَ لَابُدَّ فَفِي التَّطَوُّعِ. (ترمذی ص ۱۱۰)

**توجمه** حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ هغوی ته وفرمایل اې بچیه ' په مونځ کښې ځان د التفات نه وساته ځکه چه په مونځ کښې التفات (اخوا دیخوا کتل) د هلاکت باعث دی. نو که چیرې التفات ته ضرورت هم پیدا شی نو په فرض مونځونو کښې یې نه دی کول پکار، د مکروه کیدو نه باوجود په نفلو کښې به یو حده پورې قابل دبرداشت وی.

**عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَأَلْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ عَنِ الْاِلْتِفَاتِ فَقَالَ هُوَ اِخْتِلَاسٌ يَخْتَلِسُهُ الشَّيْطٰنُ مِنْ صَلَاةِ الْعَبْدِ.**

**(بخاری ص۱۰۳ ج۱، ترمذی ص۱۱۰، نسائی ص۱۷۷ ج۱)**

**توجمه** ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمایی چه ما د رسول الله ﷺ نه په مونځ کښې د التفات په باره کښې پوښتنه وکړه. نو رسو ل الله ﷺ وفرمایل دا التفات غلا ده ، چه د بنده د مونځ نه شیطان غلا کوی.

**عَنْ اَبِيْ ذَرٍّ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لَا يَزَالُ اللهُ عَزَّوَجَلَّ مُقْبِلًا عَلَى الْعَبْدِ وَهُوَ فِيْ صَلَاتِهِ مَالَمْ يَلْتَفِتْ فَاِذَا الْتَفَتَ اِنْصَرَفَ عَنْهُ.** **(مسند احمد ص۱۶۲ ج۵، ابوداود ص۱۳۱ ج۱، دارمی ص۲۷۱ ج۱)**

**توجمه** حضرت ابو ذر رضی الله عنه فرمایی چه رسو ل الله ﷺ وفرمایل چه الله جل جلاله بنده ته همیشه متوجه کیږی ترڅو چه هغه په مونځ کښې وی ،کله چه بنده یو خوا بل خوا التفات وکړی نو الله جل جلاله خپله توجه ترې لرې کړی

**عَنْ كَعْبٍ مَا مِنْ مُؤْمِنٍ يَقُوْمُ مُصَلِّيًا اِلَّا وَكَّلَ اللهُ مَلَكًا يُنَادِيْ يَا ابْنَ آدَمَ لَوْ تَعْلَمُ مَا فِيْ صَلٰوتِكَ وَمَنْ تُنَاجِيْ مَا الْتَفَتَّ.** **(بیهقی فی شعب الایمان، مستدرک حاکم صححه)**

**توجمه** حضرت کعب رضی الله عنه نه روایت دې چه کوم مؤمن بنده ودریږی او مونځ کوی. نو الله جل جلاله یوه فرښته دده دپاره مقرره کړی. هغه په اوچت آواز سره دا خبره کوی چه اې ابن آدم ! که ته پوه شې چه ستا په مونځ کښې څه دی او ته چاسره مناجات کوې نو ته به کله هم یوخوا بل خوا ونه ګورې.

د التفات درې درجې دی

۱- د سترګو په کونجونو کښې کتل بغیر د مخ د یو خوا بل خوا اړولو نه دا مکروه نه دی **(هدایه ص۹۰ ج۱، کبیری ص۳۵۱، شرح نقایه ص۹۳ ج۱)**

۲- مخ یو خوا اوبل خوا اړول بغیر د سینې د ګرځولو نه دا مکروه دی **(هدایه ص۹۰ ج۱، کبیری ص۳۵۱، شرح نقایه ص۹۳ ج۱)**

۳- د سینې اړول، لدې سره مونځ ماتیږی. **(هدایه ص۹۰ ج۱، کبیری ص۳۵۱، شرح نقایه ص۹۳ ج۱)**

۷- **د سترګو پټول**- په مونځ کښې دسترګو پټول هم مکروه دی . **(کبیری ص۳۵۰، شرح نقایه ص۹۳ ج۱)**

عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَا أَنَسُ اجْعَلْ بَصَرَكَ حَيْثُ تَسْجُدُ (سنن الكبرى للبيهقي ص ۲۸۳، ج ۲)

**ترجمه** حضرت انس ﷺ نه روایت دې چه رسو ل الله ﷺ وفرمایل اې انس! خپل نظر په هغه ځائ کښې ساته په کوم ځائ کښې چه سجده کوې.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ فِي الصَّلٰوةِ فَلَا يُغْمِضْ عَيْنَيْهِ. (مجمع الزوائد بحواله طبراني في الثلاثة).

**ترجمه** حضرت ابن عباس ﷺ نه مرفوعا روایت دې چه رسو ل الله ﷺ وفرمایل. کله چې په تاسو کښې څوك په مونځ کښې وی نو خپلې سترګې دې نه بندوی.

عَنْ مُجَاهِدٍ وَقَتَادَةَ أَنَّهُمَا كَانَا يَكْرَهَانِ تَغْمِيْضُ الْعَيْنَيْنِ فِي الصَّلٰوةِ. (سنن الكبرى للبيهقي ص ۲۸۴، ج ۲)

**ترجمه** حضرت مجاهد رحمه الله او قتاده رحمه الله نه روایت دې چه هغوی به په مونځ کښې سترګې پټول مکروه ګڼل.

۸ - **خُوله او خاوره له تندی نه پاکول**:- په مونځ کښې له تندی نه خاورې او خولې وغیره پاکول مکروه دی. (شرح نقایه ص ۹۳ ج ۱، کبیری ص ۳۵۷).

عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ رَأَى النَّبِيُّ ﷺ غُلَامًا لَنَا يُقَالُ لَهُ أَفْلَحُ إِذَا سَجَدَ نَفَخَ فَقَالَ يَا أَفْلَحُ تَرِّبْ وَجْهَكَ. (ترمذی ص ۸۱)

**ترجمه** ام المؤمنین حضرت ام سلمه رضی الله عنها نه روایت دې چه رسو ل الله ﷺ زمونږ یو غلام ولیدلو. چه د هغه نوم افلح وو. کله چه به هغه سجده کوله نو د تندی نه به یې خاوره پاکوله. رسو ل الله ﷺ وفرمایل اې افلح! خپل مخ په خاوره ککړ کړه.

عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ فَلَا يَمْسَحِ الْحَصٰى فَإِنَّ الرَّحْمَةَ تُوَاجِهُهُ (ترمذی ص ۸۱، ابوداود ص ۱۳۶، ج ۱، نسائی ص ۱۷۷ ج ۱، ابن ماجه ص ۷۲، مسند احمد ص ۱۵۰ ج ۵).

**ترجمه** حضرت ابو ذر ﷺ نه روایت دې چه رسو ل الله ﷺ فرمایی. کله چه په تاسو کښې مونځ ته څوك اودریږی، نو سنګریزی (واړه کانی) دې نه پاکوی، ځکه چه د الله ﷻ رحمت ده طرف ته متوجه وی.

**مسئله** - له مونځ نه د فارغیدلو نه وروسته د تندی نه خاوره پاکول مستحب دی. (شرح نقایه ص ۹۳ ج ۱، کبیری ص ۳۵۷).

عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا قَضٰى صَلَاتَهُ مَسَحَ جَبْهَتَهُ بِيَدِهِ الْيُمْنٰى (کبیری ص ۳۵۷، بحواله ابن سنی)

**ترجمه** حضرت انس ﷺ نه روایت دې چه رسو ل الله ﷺ به کله مونځ پوره کړو نو خپل ښی لاس سره به یې تندې مبارك صفا کولو

۹ - **اقعاء** :- په مونځ کښې اقعاء هم مکروه ده، (شرح نقایه ص۹۳ ج۱، کبیری ص۳۳۶)
امام کرخی فرمایی چه اقعاء دا ده چه کوناټی ودروې او لاسون په زمکه کیږدې او طحاوی د اقعاء تفسیر داسې کړې دې چه په کوناټو کیناستل ، او ورنونه ودرول، سینه د ګونډو سره لګول، لاسونه په زمکه کینبودل (طحطاوی ص۱۹۱، کبیری ص۳۴۶، شرح نقایه ص۹۳ ج۱).

عَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَا عَلِيُّ اِنِّيْ اُحِبُّ لَكَ مَا اُحِبُّ لِنَفْسِيْ وَاَكْرَهُ مَا اَكْرَهُ لِنَفْسِيْ لَا تُقْعِ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ. (ترمذی ص۶۷).

**ترجمه** حضرت علی ﷺ نه روایت دې چه رسو ل الله ﷺ وفرمایل : اې علی ! زه ستا دپاره هغه ځیز خوښوم کوم چه د ځان د پاره خوښوم، او ستا هغه ځیز ناخوښوم کوم چه مې ځان د پاره ناخوښ وی، د سجدو په مینځ کښې د اقعاء په شکل کښې ناسته مه کوه.

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ نَهَانِيْ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ عَنْ ثَلَاثٍ عَنْ نَقْرَةٍ كَنَقْرَةِ الدِّيْكِ وَاِقْعَاءٍ كَاِقْعَاءِ الْكَلْبِ وَالْتِفَاتٍ كَالْتِفَاتِ الثَّعْلَبِ (مسند احمد ص۳۱۱ ج۲، وفی روایة وافتراش کافتراش الثعلب).

**ترجمه** حضرت ابو هریره ﷺ فرمایی چه زه رسول الله ﷺ د درې ځیزونو نه منع کړم، (په مونځ کښې ) د چرګ په شان ټونګې وهلونه ( په سجده کښې له چالاکی کولو نه) او د سپی په طریقه د ناستې نه (په کوناټو باندې) او د ګیدړ په شان یو خوا بل خوا کتلو نه.او په یو روایت کښې دی چه د ګیدړ په شان د لاسونو ښوررولو نه

**لستونی نغښتل** (**راپورته کول**) - لستونی نغښتلو سره هم مونځ کول مکروه دې، (کبیری ص۳۵۷) ځکه چه دا بد وضعی ده، او د زینت خلاف دې.

**مخامخ ناست سړی ته مخ کولو سره مونځ کول** :- مخامخ ناست سړی ته مخ کولو سره مونځ کول مکروه دې (کبیری ص۳۵۸، شرح نقایه ص۹۶ ج۱).

وَكَرِهَ عُثْمَانُ اَنْ يَّسْتَقْبِلَ الرَّجُلَ وَهُوَ يُصَلِّيْ. (بخاری ص۷۳ ج۱)

**ترجمه** حضرت عثمان ﷺ به مکروه ګڼله دا خبره چه دچا طرف ته مخ کړې او مونځ وکړې

عَنْ عَلِيٍّ اَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ رَاٰى رَجُلًا يُّصَلِّيْ اِلٰى رَجُلٍ فَاَمَرَهُ اَنْ يُّعِيْدَ الصَّلَاةَ (کبیری ص۳۵۸، شرح نقایه ص۹۶ ج بحواله مسند بزار).

**ترجمه** حضرت علی ﷺ بیان کوی چه رسو ل الله ﷺ یو سړې ولیدلو، چه بل سړی ته یی مخ کړې وو او مونځ یی کولو. نو رسو ل الله ﷺ ورته وفرمایل دوباره مونځ وکړه.

امام حلبی لیکلې دی چه

وَيَكُوْنَ الْاَمْرُ بِالْاِعَادَةِ لِاِزَالَةِ الْكَرَاهَةِ. (کبیری ص ۳۵۸).
**ترجمه**: پدې حدیث کښې د مونځ د دوباره کولو حکم د کراهیت د لرې کولو دپاره دې.
**اختصار یعنی په ملا یا په تشو باندې لاسونه ایښودل**: - په ملا باندې یا په تشو باندې لاسونه ایښودل په مونځ کښې مکروه تحریمی دی. (کبیری ص ۳۵۰، هدایه ص ۹۰ ج ۱)
عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ ؓ نَهَی النَّبِیُّ ﷺ اَنْ یُّصَلِّیَ الرَّجُلُ مُخْتَصِرًا وَفِیْ رِوَایَةِ الْمُسْتَدْرَكِ عَنِ الْاِخْتِصَارِ فِی الصَّلٰوةِ (بخاری ص ۱۶۳، ج ۱، مسلم ص ۲۰۶ ج مستدرك حاکم ص ۲۶۴ ج ۱)
**ترجمه**: حضرت ابو هریره ؓ فرمایی چه رسول الله ﷺ په مونځ کښې په ملا باندې له لاسونه ایښودلو نه منع فرمایلې ده.
**اور ته مخامخ ودریدل او مونځ کول**: - تنور یا انګیټۍ، یا نغری ته چه مخامخ وی نو هغې ته مخامخ مونځ کول مکروه دی. (کبیری ۳۶۰، شرح نقایه ص ۹۶ ج ۱)
لکه چه فقهاء کرامو لیکلی دی.
وَيُكْرَهُ اَنْ يُّصَلِّيَ وَبَيْنَ يَدَيْهِ تَنُّوْرٌ اَوْ كَانُوْنٌ مُوْقِدٌ لِاَنَّهٗ تَشَبُّهٌ بِعِبَادَةِ النَّارِ بِخِلَافِ الشَّمْعِ وَالسِّرَاجِ وَالْقِنْدِيْلِ لِعَدَمِ التَّشَبُّهِ. (کبیری ص ۳۶۰)
**ترجمه**: او دا مکروه دی چه یو سړې مونځ کوی او دده مخامخ تنور، انګیټۍ یا نغرې وی، ځکه چه دا د اور له عبادت سره مشابه دی، البته که شمع، یا ډیوه، او لالټین مخامخ وی نو مکروه نه دی، ځکه چه پدې کښې تشبیه نشته.
**په مونځ کښې آسمان طرفته کتل**: - د مونځ په حالت کښې د آسمان طرف ته نظر اوچتول، او کتل مکروه دی. (شرح نقایه ص ۹۳ ج ۱، کبیری ص ۳۶۹).
عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ ؓ قَالَ قَالَ النَّبِیُّ ﷺ مَا بَالُ اَقْوَامٍ یَّرْفَعُوْنَ اَبْصَارَهُمْ اِلَی السَّمَاءِ فِیْ صَلَاتِهِمْ فَاشْتَدَّ قَوْلُهٗ فِیْ ذٰلِكَ حَتّٰی قَالَ لَیَنْتَهُنَّ عَنْ ذٰلِكَ اَوْ لَتُخْطَفَنَّ اَبْصَارُهُمْ. (بخاری ص ۱۰۴، ج ۱، مسلم ص ۱۸۱، ج ۱، عن ابی هریرة)
**ترجمه**: حضرت انس بن مالك ؓ نه روایت دې، چه رسول الله ﷺ فرمایی: په خلقو څه شوی دی چه نظر په مونځ کښې آسمان طرفته اوچتوی. پدې باره کښې هغوی ﷺ سخت کلام وفرمایلو تردې چه هغوی ﷺ وفرمایل: خلق دې د داسې کولو نه منع شی او که نه نو ددوی سترګې به وویستلې شی.
**د خوراك د حاضریدلو په وخت مونځ کول**: - چه خوراك حاضر وی او دخوراك کولو سخته تقاضا هم وی نو پدې وخت کښې مونځ کول مکروه دی. (شرح نقایه ص ۹۳ ج ۱، کبیری ص ۳۶۰)

عَنِ ابْنِ عُمَرَ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا وُضِعَ عَشَاءُ أَحَدِكُمْ وَأُقِيْمَتِ الصَّلٰوةُ فَابْدَءُوْا بِالْعَشَاءِ وَلَا يَعْجَلْ حَتّٰى يَفْرُغَ مِنْهُ (بخاری ص ۹۲، ج ۱، مسلم ص ۲۰۸ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه روایت دې، فرمايي چه کله په تاسو کښې چاته د شپې خوراك حاضر کړې شي، او مونځ ودريږي، نو رومبې دې خوراك وکړي او جلدي دې نه وي، تردې چه له هغې نه فارغ شي.

عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ لَا صَلٰوةَ بِحَضْرَةِ الطَّعَامِ وَلَا هُوَ يُدَافِعُهُ الْأَخْبَثَانِ، (مسلم ص ۲۰۸، ج ۱)

**ترجمه**: ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه ﷺ نه روایت دې چه ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلې دی هغوی ﷺ به فرمايل: مونځ نه کيږي، کله چه خوراك حاضر شي او نه په داسې حالت کښې مونځ صحیح کيږي، کله چه د دوو خبيثو څيزونو (واړه بول او غټ بول) ده ته تقاضا وي (يعنی کامله درجه مونځ يې نه کيږي، علماء کرامو دا په نفی دکمال باندې محمول کړې ده)

كَانَ ابْنُ عُمَرَ ﷺ يَبْدَأُ بِالْعَشَاءِ وَقَالَ أَبُو الدَّرْدَاءِ مِنْ فِقْهِ الْمَرْءِ إِقْبَالُهُ عَلٰى حَاجَتِهِ حَتّٰى يُقْبِلَ عَلٰى صَلَاتِهِ وَقَلْبُهُ فَارِغٌ، (بخاری ص ۹۲، ج ۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر ﷺ به د شپې اول خوراك کولو او حضرت ابو الدرداء ﷺ فرمايي چه د سړي د فقه او پوهې نه دا خبره ده چه خپل ضروري حاجت پوره کړي، بيا مونځ طرف ته متوجه شي په داسې حال کښې چه دده زړه فارغ وي.

**حاقن کيدل**:- دړو بولو او غټو بولو چه سخته تقاضا وي نو داسې وخت کښې هم مونځ کول مکروه دی (شرح نقايه ص ۳ ج، کبيری ص ۳۶۶).

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ لَا يَحِلُّ لِرَجُلٍ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يُصَلِّيَ وَهُوَ حَقِنٌ حَتّٰى يَتَخَفَّفَ (ابوداود ص ۱۲ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هريره ﷺ نه ورايت دې چه رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم سړي چه په الله ﷺ او په ورځ د آخرت ايمان لري هغه د پاره حلال نه دی چه هغه دغټو او وړو بولو د تقاضا په وخت مونځ وکړي، تردې چه د هغې نه سپك شي.

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا أَرَادَ أَحَدُكُمُ الْغَائِطَ فَلْيَبْدَأْ بِهِ، (ابن ماجه ص ۴۸)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن ارقم ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ وفرمايل: کله ... تاسو کښې چاته د غټو بولو تقاضا پيښه شي او هلته مونځ ودريږي. نوهغه دې مونځ نه کوي. بلکه اول

دي د قضاء حاجت نه فارغ شي.

**له امام نه وړاندې کيدل:-** په افعالو د مونځ کښې د امام نه وړاندې کيدل مکروه دی.

(شرح نقايه ص۹۳ ج۱، کبيری ص۳۴۰).

عَنْ اَنَسٍ (مرفوعا) اَيُّهَا النَّاسُ اِنِّیْ اِمَامُکُمْ فَلَا تَسْبِقُوْنِیْ بِالرُّکُوْعِ وَلَا بِالسُّجُوْدِ وَلَا بِالْقِيَامِ وَلَا بِالْاِنْصِرَافِ.

(مسلم ص۱۸۰، ج۱، وبمعناه ابوداود ص۹۱، ج۱، عن معاويه بن ابی سفيان)

**ترجمه**: حضرت انس ﷺ نه روايت دي چه رسول الله ﷺ وفرمايل: اې خلقو! زه ستاسو امام يم، نو تاسو زما نه وړاندې والې مه کوئ، په رکوع، سجده او قيام کښې او د مونځ نه په ګرځيدلو کښې، يعنی په فارغيدو کښې.

عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِیِّ ﷺ قَالَ اَمَا يَخْشٰی اَحَدُکُمْ اِذَا رَفَعَ رَاْسَهٗ قَبْلَ الْاِمَامِ اَنْ يَّجْعَلَ اللّٰهُ رَاْسَهٗ رَاْسَ الْحِمَارِ اَوْ يَجْعَلَ اللّٰهُ صُوْرَتَهٗ صُوْرَةَ حِمَارٍ. (بخاری ص۹۶، ج۱، مسلم ص۱۸۱ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هريره ﷺ نه وړايت دي چه رسول الله ﷺ فرمايي: د سجدې په حالت کښې چه کوم سړې د امام نه مخکې سر پورته کوی، آيا دې د الله ﷻ نه نه ويريږی، چه الله ﷻ به دده سر يا دده صورت د خر په شکل جوړ کړی.

**لستونړو خوزولو سره په مونځ کښې هوا حاصلول:-** لستونړو خوزولو سره په مونځ کښې هوا حاصلول مکروه دی، (شرح نقايه ص۹۳ ج۱، کبيری ص۳۵۷).

صاحب د شرح نقايه ليکلې دی چه: (وَيُکْرَهُ التَّرَوُّحُ بِالْکُمِّ وَتَقْسُدُ بِالْمِرْوَحَةِ) (شرح نقايه ص۹۳، ج۱)

**ترجمه**: لستونړو سره هوا حاصلول مکروه دي، او ببوزی «د لاس دپکی» خوزولو سره مونځ ماتيږی.

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ اَنَّهٗ کَانَ يَکْرَهُ اَنْ يَّتَرَوَّحَ فِی الصَّلٰوةِ يَعْنِیْ بِثَوْبِهٖ مِنَ الْحَرِّ. (مصنف عبد الرزاق ص۲۷۶ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابراهيم نخعی رحمة الله عليه نه روايت دې. چه هغوی به د مونځ په حالت کښې د جامې په ذريعه هوا حاصلول مکروه ګنړل.

عَنْ عَطَاءٍ کَرِهَهٗ (مصنف عبد الرزاق ص۲۷۷، ج۲)

**ترجمه**: حضرت عطاء به هم دا مکروه ګنړل.

عَنْ عُمَيْرِ بْنِ اَبِیْ اُمَيَّةَ قَالَ تَرَوَّحْتُ بَيْنَ اَبُو الْعَالِيَةِ وَمُسْلِمِ بْنِ يَسَارٍ فَنَهَيَانِیْ. (مصنف ابن ابی شيبه ص۲۶۶، ج۲)

**ترجمه**: حضرت عمير بن اميه نه روايت دې چه ما دحضرت ابو العاليه رحمة الله عليه او مسلم بن يسار رحمة الله عليه په وړاندې په مونځ کښې د هوا حاصلولو کوشش وکړو. نو هغوی زه ددينه منع کړم

**په مونځ کښې د ګوتو نه ټقونه ويستل** :- په مونځ کښې د ګوتونه ټقونه ويستل هم مکروه دی . (هدايه ص۹۰ ج۱، شرح نقايه ص۹۳ ج۱، کبيری ص۳۴۹).

**عَنْ عَلِيٍّ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ لَا تُفَقِّعْ اَصَابِعَكَ وَاَنْتَ فِي الصَّلٰوةِ (ابن ماجه ص۶۸، وهو معلول بالحارث الاعور (کبيری ص۳۴۹)**

**ترجمه** حضرت علی رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمايی د مونځ په حالت کښې د ګوتونه ټقونه مه وباسئ.

**عَنْ اَنَسٍ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ اَنَّهُ كَانَ يَقُوْلُ اِنَّ الضَّاحِكَ فِي الصَّلٰوةِ وَالْمُلْتَفِتَ وَالْمُفَقِّعَ اَصَابِعَهُ بِمَنْزِلَةٍ وَاحِدَةٍ (مجمع الزوائد ص۷۹ ج۲، بحواله طبرانی فی الکبير وفيه ابن لهيعه وزبان بن فائد وهما ضعيفان)**

**ترجمه** حضرت انس رضی الله عنه د نبی کريم ﷺ نه روايت کوی چه هغوی ﷺ فرمائيل . په مونځ کښې خندا کوونکې .او اخوا ديخوا التفات کوونکې، او دګوتو نه ټقونه وبستونکې دا ټول يو شان دی.

**عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنه اَنَّهُ كَرِهَ اَنْ يُنْقِضَ الرَّجُلُ اَصَابِعَهُ فِي الصَّلٰوةِ (مصنف عبد الرزاق ص۲۷۱، ج۲، وابن ابی شيبه ص۳۴۳، ج۲، و کذا عطاء)**

**ترجمه** حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه به په مونځ کښې د ګوتونه ټقونه ويستلو لره مکروه ګڼل. همدا رنګې د حضرت عطاء رحمه الله نه هم نقل دی

همدغه رنګه د حضرت ابراهيم نخعی رحمه الله ، سعيدبن جبير رحمه الله او مجاهد رحمه الله نه هم نقل دی. (مصنف ابن ابی شيبه ص۳۴۳ ج۲).

**تشبيک** - د يولاس ګوتې د بل لاس په ګوتو کښې اچول (تشبيک) په مونځ کښې مکروه دی (شرح نقايه ص۹۳ ج۱، کبيری ص۳۴۹ در مختار ص۹۱ ج۱).

**عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ اِذَا تَوَضَّاَ اَحَدُكُمْ فَاَحْسَنَ الْوُضُوْءَ ثُمَّ خَرَجَ عَامِدًا اِلَى الْمَسْجِدِ فَلَا يُشَبِّكَنَّ بَيْنَ اَصَابِعِهِ فَاِنَّهُ فِي صَلَاتِهِ (ترمذی ص۸۲، ابوداود ص۸۳ ج۱)**

**ترجمه** : حضرت کعب بن عجره رضی الله عنه نه روايت دې، چه رسول الله ﷺ وفرمايل کله چه تاسو کښې څوک ښې طريقې سره اودس وکړی ، بيا هغه د مونځ په اراده د جومات طرف ته لاړشی، نو دخپلو ګوتو په مينځ کښې دې تشبيک نه کوی ځکه چه هغه په مونځ کښې دې (لدينه معلوميږی، چه دمونځ نه بهر هم تشبيک مکروه دې).

**عَنْ كَعْبٍ قَالَ نُهِيْنَا اَنْ نُشَبِّكَ بَيْنَ اَصَابِعِنَا فِي الصَّلٰوةِ (مصنف ابن ابی شيبه ص۴۶ ج۲)**

**ترجمه** : حضرت کعب رضی الله عنه فرمايی چه مونږ منع کړې شوې يو (يعنی د رسول الله ﷺ د طرف نه چه

مونځ په مونځ کښې ګوتې په یو بل کښې داخلې نه کړو

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ اَنَّهُ كَرِهَ اَنْ يُّشَبِّكَ بَيْنَ اَصَابِعِهِ فِي الصَّلٰوةِ (مصنف ابن ابی شیبه ص ۶ ج ۲)

**ترجمه** حضرت ابراهیم رحمه الله به مکروه ګڼلې چه څوك په مونځ کښې د یو لاس ګوتې د بل لاس په ګوتو کښې داخلې کړی

**په سجده کښې څنګلې په زمکه لګول** :- د څنګلو لګول په سجده کښې په زمکه باندې مکروه تحریمی دی (هدایه ص ۹۰ ج ۱، شرح نقایه ص ۹۴ ج ۱، کبیری ص ۳۳۶).

عَنْ عَائِشَةَ (مرفوعا) يَنْهٰى اَنْ يَّفْتَرِشَ الرَّجُلُ ذِرَاعَيْهِ افْتِرَاشَ السَّبُعِ. (مسلم ص ۱۹۵ ج ۱)

**ترجمه** ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به منع فرمایله لدې نه چه څوك خپلې څنګلې په سجده کښې داسې خورې کړی لکه څنګه یې چه ځناور کوی

**دامام د قرائت په وخت کښې د مقتدی قرائت کول یا دعاء کول**:- کله چه امام قراءة کوی نو په دې وخت کښې د مقتدی دعاء کول یا قرآن لوستل اګرکه هغه سورة فاتحه، وی مکروه دی (هدایه ص ۶ ج ۱، شرح نقایه ص ۸۳ ج ۱).

وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْاٰنُ فَاسْتَمِعُوْا لَهٗ وَاَنْصِتُوْا (الاعراب ۲۰۴ پ ۹)

**ترجمه** کله چه قرآن لوستلې شی نو هغه واورئ او خاموش اوسیږئ

**لوڅ سر مونځ کول** :- په لوڅ سر مونځ کول مکروه دی (شرح نقایه ص ۹۵ ج ۱، کبیری ص ۳۴۸).

وَلَا بَأْسَ اِذَا فَعَلَهٗ تَذَلُّلًا وَّخُشُوْعًا (کبیری ص ۳۴۹ و کذا شرح نقایه ص ۹۵ ج ۱)

**ترجمه** که د عاجزئ یا د خشوع له کبله وی نو بیا مکروه نه دی

**څادر وغیره له ګیټو نه لاندې زوړندول** :- په مونځ کښې څادر وغیره د ګیټو نه لاندې زوړندول مکروه دی یعنی اسبال الازار فی الصلوة.

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ مَا اَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ مِنَ الْاِزَارِ فِي النَّارِ. (بخاری ص ۸۶۱ ج ۲، مسلم ص ۱۲۶ ج ۲)

**ترجمه** حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل د لنګ هغه حصه چه د ګیټو نه لاندې زوړنده وی هغه به په دوزخ کښې وی

**په غیر معتاده طریقه باندې جامه اغوستل** - په مونځ کښې غیر معتاد (دعام عادت خلاف) طریقه باندې جامې اغوستل مکروه دی

**د سجدې له ځای نه سنګریز (واړه کانی) لرې کول** :- دسجدې د ځای نه واړه واړه کانی لرې کول مکروه دی، مګر دا چه سجده نشی ادا کیدلې نو بیا یې یو ځل یا دوه ځل لرې کولې

شي. (هدایه ص۱۰۰ ج۱، شرح نقایه ص، کبیری ص۲۵۰).

عَنْ مُعَيْقِيبٍ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ فِي الرَّجُلِ يُسَوِّي التُّرَابَ حَيْثُ يَسْجُدُ قَالَ اِنْ كُنْتَ فَاعِلًا فَوَاحِدَةً (بخاری ص ۱۶۱ ج۱، مسلم ص۲۰۶ ج۱)

**ترجمه** حضرت معیقیب ﷺ نه روایت دي چه رسول الله ﷺ د هغه سړی په باره کښې وفرمایل چه د سجدې د ځائ نه یی خاوره پاکوله، که ته دا کار خامخا کوې، نو صرف یو ځل یی وکړه.

**په غصب کړې شوې زمکه باندې یا د بل چا په زمکه بغیردهغه له اجازت نه مونځ کول** -

غصب کړې شوې زمکه باندې یا د بل چا په زمکه بغیر د هغه د اجازت او رضا نه مونځ کول یا د بل چا په پټی کښې چه په هغې کښې فصلونه وی مونځ کول مکروه دی

**د لمر ختلو، استواء او د لمر پریوتلو په وخت مونځ کول** :- په درې وختونو کښې مونځ کول مکروه تحریمی دي، د نمر د راختلو په وخت، او چه کله نمر د آسمان په مینځ کښې ودریږی یعنی د استواء په وخت، او د نمر د پریوتلو په وخت کښې (اَلْعَصْرَ يَوْمِهٖ)، مګر د دغه موجوده ورځې د مازدیګر مونځ د نمر د پریوتلو په وخت باوجود د کراهیت نه ادا کیږی. (هدایه ص۵۲ ج۱، شرح نقایه ص۵۶ ج۱، کبیری ص۲۳۶)

په دې سلسله کښې بحث سره له حوالو نه د «مکروه وختونو» تر عوان لاندې لیکلې شوې دې.

**د ماسخوتن مونځ د نیمې شپې نه وروسته کول** :- د ماسخوتن مونځ د نیمې شپې نه وروسته کول، او دمابنام مونځ چه ستوری ښه روښانه شی تر هغه وخته پورې وروستو کول مکروه دی. (هدایه ص۱۵ ج۱، شرح نقایه ص۵۵)

د دې بحث سره له حوالو په «اوقات صلوة» کښې د «ماسخوتن د مونځ وخت» تر عنوان لاندې تیر شوې دې.

**د کفارو په عبادت خانو کښې مونځ کول** - د کفارو په عبادت خانو کښې مونځ کول مکروه دی

**له ګندګئ سره خوا کښې مونځ کول** - له ګندګئ اونجاست سره نزدې مونځ کول مکروه دی

**په اوه خایونو کښې مونځ کول** - په اوه (۷) ځایونو کښې مونځ کول مکروه دی. (کبیری ص۳۶۳)

عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ نَهٰى اَنْ يُّصَلّٰى فِيْ سَبْعَةِ مَوَاطِنَ فِي الْمَزْبَلَةِ وَالْمَجْزَرَةِ وَالْمَقْبَرَةِ وَقَارِعَةِ الطَّرِيْقِ وَفِي الْحَمَّامِ وَفِيْ مَعَاطِنِ الْاِبِلِ وَفَوْقَ ظَهْرِ بَيْتِ اللهِ (ترمذی ص۸۰، ابن ماجه ص۵۴)

**ترجمه** حضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ منع فرمایلې ده په اوه ځایونو

کښې د مونځ کولو نه. د نجاست او د کباړ په ځائ کښې، په قصاب خانه کښې، په مقبره کښې، د لارې په مینځ کښې، په غسلخانه کښې، د اوښانود ترلو په ځائ کښې، په غوجل کښې، په بیت الخلاء کښې، او ددې چهت هم په دې حکم کښې دې، او دبیت الله شریف په چهت باندې.

**مسئله** :- د امام احمد په نزد په مقبره او غسل خانه کښې مونځ کول حرام دی.

**مسئله** :- کوم ځائ کښې چه سوټې ،او خارشنه په زمکې پورې پیوست پترې شوی وی نوهلته بغیر د پاکې جامې یا د مصلې خورولو نه مونځ نه صحیح کیږی.

**په مونځ کښې د بدن ، جامې او ویښتو وغیره سره لوبې کول** :- په مونځ کښې د بدن، جامې او ویښتو وغیره سره لوبې کول مکروه دی. (هدایه ص۹۰ ج۱،شرح نقایه ص۹۳ ج۱)

**قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامِ اِنَّ اللهَ كَرِهَ لَكُمُ الْعَبَثَ فِي الصَّلٰوةِ وَالرَّفَثِ فِي الصِّيَامِ وَالضِّحْكَ فِي الْمَقَابِرِ (البیان والتبیین ص ج۲، للجاحظ)**

**ترجمه** : رسول الله ﷺ فرمایی چه الله ﷻ ستاسو د پاره ناخوښه کړی دی په مونځ کښې لوبې کول، او په روژه کښې شهوانی خبرې کول. او په مقبره کښې خندل.

**عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَارُّوْا الصَّلٰوةَ سَكِّنُوْا اِطْمَئِنُّوْا. (مجمع الزوائد ص۱۳۶، ج۲، بحواله طبرانی ص فی الکبیر)**

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې هغوی فرمایی چه په مونځ کښې سکون او قرار ونیسئ.

**عَنْ عَطَاءٍ اَنَّهُ كَانَ يَكْرَهُ كُلَّ شَيْءٍ مِنَ الْعَبَثِ فِي الصَّلَاةِ قَالَ الثَّوْرِيُّ جَاءَتِ الْأَحَادِيْثُ اَنَّهُ كَانَ يَكْرَهُ الْعَبَثَ فِي الصَّلٰوةِ (مصنف عبدالرزاق ص۲۶۷، ج۲)**

**ترجمه** : له حضرت عطاء رحمه الله نه روایت دې چه هغه به هر قسم عبث او لوبې په مونځ کښې مکروه ګڼلې . حضرت سفیان ثوری فرمایی چه احادیثو کښې راغلې دی، چه (رسول الله ﷺ به) په مونځ کښې عبث کار او لوبې مکروه ګڼلې.

همدغه رنګې د حسن بصری او امام ابراهیم نخعی نه هم نقل شوی دی. (مصنف ابن ابی شیبه ص ۴۱۴،۴۱۵ ج۲)

**په مونځ کښې پلترئ وهلوسره کیناستل** :- په مونځ کښې بغیر د عذر نه پلترئ وهلو سره کیناستل مکروه دی . (هدایه ص۹۱ ج۱، کبیری ص۳۵۰).

علامه حلبی لیکلې دی چه:

**(وَيُكْرَهُ اَنْ يَتَرَبَّعَ فِي جُلُوْسِهِ لِمُخَالَفَةِ سُنَّةِ الْجُلُوْسِ اِلَّا مِنْ عُذْرٍ)، (کبیری ص۳۵۰، وکذا هدایه ص۹۱، ج۱)**

**ترجمه** : په مونځ کښې پلترئ وهلو سره کیناستل مکروه دی، ځکه چه دا په مونځ کښې د سنت طریقې له ناستې نه خلاف دی، مګر دا چه د عذر له کبله وی نو بیا مکروه نه دی.

**د پټکی په ول باندې سجده کول** :- د پټکی په ول (کور عمامه) باندې بغیر د عذر (د یخنئ او ګرمئ نه) سجده کول مکروه دی (شرح نقایه ص۹۳ ج۱، کبیری ص۳۵۱).

**په مونځ کښې د ویښتو تړل** :- په مونځ کښې د ویښتو تړل (عقص شعر) مکروه دی. (هدایه ص۹۱ ج۱، شرح نقایه ص۹۳ ج۱، کبیری ص۳۴۶).

عَنْ اُمِّ سَلْمَةَ اَنَّ النَّبِیَّ ﷺ نَهٰی اَنْ يُّصَلِّيَ الرَّجُلُ وَرَاْسُهٗ مَعْقُوْصٌ. (مجموع الزوائد ص۸۶ ج۲، بحواله طبرانی فی الکبیر ورجاله رجال الصحیح)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت ام سلمه رضی الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ منع فرمایلې ده لدې نه چه څوك مونځ کوی په داسې حالت کښې چه د هغه د سر ویښته پورته تړلې شوې وی.

عن ابی رافع قال نهی النبی اَنْ يُّصَلِّيَ الرَّجُلُ وَرَاْسُهٗ مَعْقُوْصٌ. (مسند احمد ص۸ ج۶، ابن ماجه ص۷۲)

**ترجمه** : حضرت ابو رافع رضی الله عنه فرمایی چه رسول الله ﷺ منع فرمایلې ده لدې نه چه څوك مونځ کوی په داسې حالت کښې چه د هغه د سر ویښته تړلې شوې وی.

دا حکم صرف د سړو دپاره دې ښځه ددینه مستثنی دی.

**د مونځ ګزار په مخ کښې تیریدل** :- د مونځ ګزار په مخ کښې تیریدل مکروه دی. (هدایه ص۸۹ ج۱، شرح نقایه ص۹۶ ج۱، کبیری ص۳۶۶).

قَالَ اَبُوْجُهَيْمٍ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لَوْيَعْلَمُ الْمَارُّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّيْ مَاذَا عَلَيْهِ لَكَانَ اَنْ يَّقِفَ اَرْبَعِيْنَ خَيْرًا لَّهٗ مِنْ اَنْ يَّمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ. (بخاری ص۷۳، ج۱، مسلم ص۱۹۷ ج۱ وفی روایة نصب الرایه ۹۱ ج۲، بحواله بزار)

**ترجمه** : حضرت ابو جهیم فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل : که د مونځ ګزار په وړاندې تیریدونکی ته معلومه شی چه ددې څومره ګناه ده، نو ترڅلوېښت (کاله پورې) ولاړه به دده په نزد بهتره وه، په نسبت ددې چه هغه د مونځ ګزار په وړاندې تیر شی، د مسند بزار په روایت کښې د څلوېښتو کالو ذکر دې.

**په معمولی خیرنو جامو کښې مونځ کول** :- معمولی خیرنو جامو (ثیاب البذلة والمهنة) کښې مونځ کول مکروه دی.

خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ (الاعراف ص۳۱، پ۸)

**ترجمه** د هر مونځ په وخت خپل [illegible] ست اختیار کړئ. (نو دا ددې منافی دی په دغه

شان جامو کښې مونځ وش)

**په سجده کښې صرف په تندی کېښودلو اکتفاء کول** :- بغیر د عذر نه صرف په تندی باندې په سجده کښې اکتفاء کول، او پوزه نه لګول مکروه دی (درمختار ص۵۰، ج۱).

**په خوله کښې څه څيز ايښودل او مونځ کول** :- په خوله کښې څه څيز (مثلاً ژاوله، وغیره، یا پان ، تمباکو، ګولۍ لاچی وغیره) نیولو سره مونځ کول، مکروه تحریمی دی. اګر چه ددې سره په قراءة کښې څه فرق هم رانشی. اوکه قراءة ددې له کبله بندیدلو، نومونځ فاسدیږی (شرح نقایه ص۹۳ ج۱، کبیری ص۳۵۲، درمختار ص۹۱ ج۱).

**د خطبې دشروع کولو نه وروسته نفلونه او سنت وغیره کول** :- د خطبې شروع کولو نه وروسته سنت ، نفل، قرآن ، درور شریف وغیره لوستل مکروه دی (شرح نقایه ص۵۰ ج۱).

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ إِذَا قُلْتَ لِصَاحِبِكَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَنْصِتْ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ فَقَدْ لَغَوْتَ. (بخاری ص۱۲۷، ج۱، مسلم ص۲۸۱ ج۱)

**ترجمه** حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی کله چه تاسو د جمعې په ورځ (یعنی د خطبې په وخت کښې) بل سړی ته ووایئ چه خاموش شه ! نو بیشکه تا لغوه او بیهوده (عبث) کار وکړو

صاحب د شرح نقایه لیکلې دی

فَإِنْ كَانَ الْأَمْرُ بِالْمَعْرُوْفِ مَعَ كَوْنِهِ فَرْضًا صَارَ حَرَامًا فِي هٰذَا الْوَقْتِ فَمَا بَالُكَ بِالنَّفْلِ. (شرح نقایه ص۵۰ ج۱)

**ترجمه** نوچه امر بالمعروف سره له دینه چه هغه فرض دې هغه هم په دې حالت کښې حرام شی، نو دنفلو به څه وایی (یعنی هغه خو په طریق اولی سره په دې حالت کښې حرام دی).

**د امام د مقتدیانونه پورته یا ښکته ځای کښې ځان ته ودریدل** :- د امام ځان ته په چبوتره (اوچت ځای) باندې ودریدل مکروه دی (شرح نقایه ص۹۳ ج۱، کبیری ص۳۶۰).

عَنْ هَمَّامٍ أَنَّ حُذَيْفَةَ أَمَّ النَّاسَ بِالْمَدَائِنِ عَلَى دُكَّانٍ فَأَخَذَ أَبُوْ مَسْعُوْدٍ بِقَمِيْصِهِ فَجَبَذَهُ فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ صَلٰوتِهِ قَالَ أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّهُمْ كَانُوْا يَنْهَوْنَ عَنْ ذٰلِكَ أَوْ قَالَ أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّهُ كَانَ يُنْهٰى عَنْ ذٰلِكَ قَالَ بَلٰى قَدْ ذَكَرْتُ حِيْنَ مَدَدْتَنِيْ.

(مستدرک حاکم ص۲۱۰، ج۱، ابوداو [illegible])

**ترجمه** حضرت همام فرمایی چه حضرت حذیفه ﷺ په مدائن ښار کښې مونځ ورکولو. په یو دکان (اوچت ځای) باندې ، نو حضرت ابو مسعود دې د قمیص نه ونیولو. اورا ښکته یې کړو. کله چه مونځ نه فارغ شو، نو حضرت ابو مسعود ﷺ وفرمایل چه آیا تاسو نه پوهیږئ. چه رسول الله ﷺ

به لدینه منع فرمایله ، نو حضرت حذیفه ﷺ وفرمایل کله چه تا زه ونیولم او ښکته دې کړم نو هغه وخت ما ته رایاد شول

**عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ ﷺ قَالَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ نَهٰى اَنْ يَّقُوْمَ الْاِمَامُ فَوْقَ وَيَبْقَى النَّاسُ خَلْفَهُ.(مستدرك حاكم ص ۲۱۰ ج ۱، ابوداود ص ۸۸ ج ۱)**

**ترجمه** حضرت ابو مسعود ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ منع فرمایلې ده چه څوك امام په اوچت ځائ ولاړ وی او خلق د هغه نه لاندې او په ښکته ځائ کښې وی.

ددې بلندئ داندازې تشریح فقهاء کرامو د یولاس برابر کړې ده. او همدغه رنګې که مقتدی په اوچت ځائ باندې وی او امام ښکته وی نو دا هم مکروه تحریمی دی . **(شرح نقايه ص ۹۳ ج ۱، كبيرى ص ۳۶۱)**. لیکن دا ټول په هغه صورت کښې دی چه کله بې ضرورته وی. د ګڼې له کبله او دځائ نه پیدا کیدلو په صورت کښې مونځ بلا کراهیت درست دې **(كبيرى ص ۳۶۱)**.

**د صف نه وروسته د مقتدی ځان ته ودریدل** :- د صف نه وروسته ځان له مونځ کول مکروه دی. البته که وړاندې صف کښې ځائ کښې نه وو. نو بیا په وروستو صف کښې هم مونځ کول بلا کراهیته درست دی **(شرح نقايه ص ۹۵ ج ۱، كبيرى ص ۳۶۲)**.

**عَنْ اَنَسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ اَتِمُّوا الصَّفَّ الْاَوَّلَ ثُمَّ الَّذِيْ يَلِيْهِ فَاِنْ كَانَ نَقْصٌ فَلْيَكُنْ فِي الصَّفِّ الْمُؤَخَّرِ. (نسائی ص ۱۳۱ ابوداود ج ۱)**

**ترجمه** حضرت انس ﷺ نه نقل دی چه رسول الله ﷺ وفرمایل ړومبې صف مکمل کړئ . بیا هغه (صف مکمل کړئ) کوم چه لدې سره نزدې وی، پس کوم کمې چه وی هغه به وروستو صف کښې وی

**په أمي، ړوند او فاسق پسې مونځ کول** :- غلام ، اُمی ، ړوند چه پرهیزګار نه وی، همدارنه په فاسق او ولد زنا پسې مونځ کول مکروه دې **(هدايه ص ۱۰۰ ج ۱، كبيرى ص ۳۶۵)**

ددې بحث د امامت باب کښې تیر شوې دې

**ګیره خرونکی ، یا ګیره لنډونکی امام پسې مونځ کول** - امام که ګیره خروی. یا یې لنډوی . نو هغه پسې هم مونځ مکروه تحریمی دې **(شامی ص ۲۸۸ ج ۵، وص ۲۱۳ ج ۱)**

علامه شامی لیکلی دی چه یوه قبضه (یو موټی) نه کمه ګیره کټ کول چا هم مباح کړی نه دی.

**د ساه لرونکی تصویر والا جامه اغوستلو کښې مونځ کول** :- د ساه لرونکی تصویر والا جامه اغوستلو سره مونځ کول مکروه تحریمی دی. د مونځ ګزار په سر باندې ، یا چهت باندې ، وړاندې یا دسجدې په ځائ که تصویروو ... مکروه تحریمی دې. **(هدايه ص ۹۲ ج ۱، كبيرى ص ۳۵۹)**.

**مسئله** :- که تصویر دومره وړکې وو چه په نظر نه راتللو، یا د پښو دلاندې وی نو هیڅ حرج پکښې نشته (هدایه ص۹۲ ج۱، کبیری ص۳۵۹)

**مسئله** - که باتصویره جامو کښې مونځ وکړی نو د ښځې او نارینه دواړو دپاره مونځ مکروه تحریمی او واجب الاعاده دې «دوباره راګرځول یی واجب دی» (هدایه ص۹۲ ج۱، شرح نقایه ص۹۵ ج۱، کبیری ص۳۵۹)

عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِیَّ ﷺ صَلّٰی فِیْ خَمِیْصَةٍ لَّهَا اَعْلَامٌ وَقَالَ شَغَلَتْنِیْ اَعْلَامُ هٰذِهٖ فَاذْهَبُوْا بِهَا اِلٰی اَبِیْ جَهْمٍ وَّاْتُوْنِیْ بِاَنْبِجَانِیَّتِهٖ. (مسلم ص۲۰۸ ج۱)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها فرمایی چه رسول الله ﷺ په یو داسې کمبل کښې مونځ وکړو چه په هغې باندې نقش او نګار وو. او بیا یی وفرمایل : ددې نقش اونګار زه مشغول کړم، لهذا دا یوسه او ابو جهم ته یی ورکړه. او د ابو جهم ساده کمبل ماته راوړه.

**مسئله** :- د ساه لرونکی تصویر جوړول، وروکې،غټ ، دلاس جوړ. دکیمرې جوړ . ټول حرام دی.

عَنْ عَبْدِ اللهِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِیَّ ﷺ یَقُوْلُ اِنَّ اَشَدَّ النَّاسِ عَذَابًا عِنْدَ اللهِ الْمُصَوِّرُوْنَ. (بخاری ص۸۸۰ ج۲ مسلم ص۲۰۰ ج۲)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمایی چه ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی، هغوی ﷺ وفرمایل : دالله جل جلاله په نزد د ټولو نه زیات سخت عذاب به تصویر جوړونکو لره وی.

**مسئله** :- په نوټ باندې تصویر. یا پاسپورټ یا د شناختی کارډ وغیره تصویر د مجبورۍ او اضطراری حالت تصویرونه دی. فلهذا ددې ګناه به په هغه خلقو باندې وی چه د داسې قانون د جوړولو ذمه دار دی.

**د سړی لپاره په ریښمی جامه کښې مونځ کول** - سړی که ریښمی جامه کښې مونځ وکړو نو واجب الاعاده به وی.

**د سړی د سرو زرو ګوته اچولو سره مونځ کول** :- سړی که د سرو زرو ګوته وغیره اچولې وی او مونځ کوی، نو مکروه به وی.

**مسئله** :- مار او لړم وغیره اودغه شان د موذی ځناورو وژل د مونځ په حالت کښې جائز دی. (شرح نقایه ص۹۶ ج۱، کبیری ص۳۵۴).

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ اَمَرَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بِقَتْلِ الْاَسْوَدَیْنِ فِی الصَّلٰوةِ الْحَیَّةِ وَالْعَقْرَبِ. (ترمذی ص۸۳، نسائی ص۱۴۸ ج۱) مستدرک حاکم ص۲۵۶ ج۱، مسند احمد ص۲۴۸ ج۲)

**ترجمه** حضرت ابو هریره ﷛ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ دوه موذی ځناورو لره د مونځ په حالت کښې دقتل کولو حکم فرمایلې وو یو مار او بل لړم

**مسئله** - سهو د (هیرې) له کبله که په مونځ کښې څه داسې خرابی راشی. مثلاً رکن وړاندې کول، یا وروستو کول. رکوع د قراءة نه وړاندې کول، یا سجده د رکوع نه وړاندې کول. یا یو رکن مکرر کول. نو دوه سجده سهوې واجبیږی **(شرح نقایه ص۱۱۱ ج۱، کبیری ص۴۵۵).**

**مسئله** - ړمبی رکعت کښې یې یوه سجده وکړه. بیا دویم رکعت کښې یې هغه سجده بیا وکړه. (مکرر یې کړه) یا یې واجب پریښودلو. مثلا قعده اولی، یا تشهد پاتې شو. یا یې قنوت په وترو کښې پریښودلو. نو دوه سجده سهوې واجبیږی **(هدایه ص۱۰۵ ج۱، شرح نقایه ص۱۱۱ ج۱، کبیری ص۴۵۵).**

**عَنِ الْحَسَنِ قَالَ مَنْ نَسِيَ الْقُنُوْتَ فِي الْوِتْرِ سَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ قَالَ سُفْيَانُ وَبِهِ نَأْخُذُ.** (سنن الکبری بیهقی ص۴۰ ج۲)

**ترجمه** حضرت حسن بصری فرمایی کوم سړی چه په وترو کښې دعاء قنوت ویل هیر کړل. نو هغه دې دوه سجده سهوې وکړی. حضرت سفیان ثوری فرمایی چه مونږ په دې باندې عمل کولو

**مسئله** - امام که په پټ مونځ کښې جهر وکړی یا په ښکاره مونځ کښې پټ پټ قرائت ووایی نو ده دپاره دوه سجدې د سهوې واجبیږی. چه په آخر کښې به یې کوی **(هدایه ص۱۰۵، شرح نقایه ص۱۱۱ ج۱، کبیری ص۴۵۵).**

ددې بحث سره له حوالو نه په «واجبات صلوة» کښې تیر شوې دې

**مسئله** - که امام هیره وکړی. نو مقتدی باندې هم په دې اقتداء کښې سجده سهو واجبیږی **(هدایه ص۱۰۶ ج۱، شرح نقایه ص۱۱۲ ج۱. کبیری ص۴۶۳).**

**إِنَّمَا جُعِلَ الْإِمَامُ لِيُؤْتَمَّ بِهِ فَلَا تَخْتَلِفُوْا عَلَيْهِ.** **(مسلم ص۱۷۷ ج۱)**

**ترجمه** بیشکه امام دې دپاره جوړ کړې شوې دې چه تاسو دده اقتداء وکړئ. لهذا د امام سره اختلاف مه کوئ

حضرت عبد الله بن بحینه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ ته په مونځ کښې سهوه پیښه شوه، نو هغوی دوه سجدې د سهوې وکړې. خلقو هم د هغوی ﷺ سره سجدې وکړې **(بیهقی ص۳۵۲ ج۲).**

**مسئله** - که په مونځ کښې له مقتدی نه سهوه وشوه. نو نه به مقتدی باندې سجده سهو وی او نه په امام باندې **(هدایه ص۱۰۶ ج۱، شرح نقایه ص۱۱۲ و کبیری ص۴۶۴)**

**عَنْ إِبْرَاهِيْمَ أَنَّهُ قَالَ إِذَا سَهَوْتَ خَلْفَ الْإِمَامِ وَحَفِظَ الْإِمَامُ فَلَيْسَ عَلَيْكَ سَهْوٌ وَإِنْ لَّمْ يَسْجُدِ الْإِمَامُ فَلَا تَسْجُدُوْا كَذٰلِكَ إِذَا سَهَا جَمِيْعُ مَنْ مَعَ الْإِمَامِ أَوْ سَهَا الْإِمَامُ.** **(کتاب الآثار للامام ابی یوسف ص۳۷)**

**ترجمه**: حضرت ابراهیم نخعي فرمايي چه کله تاسو په امام پسې هیره وکړئ. او امام محفوظ وي، نو تاسو باندې هم سجده سهوه نشته، اوکه امام نه هیره وشي او تاسو محفوظ پاتې شئ. نو په تاسو به هم سجده سهوه وي.او که امام سجده ونکړي نو تاسو به هم سجده نه کوئ. او همدارنګې که ټول مقتديان هیره وکړي، نو هیڅ باندې هم سجد سهوه نشته ، او که امام هیره وکړي نو په ټولو به سجده سهوه وي.

**مسئله** : - که په رومبۍ قعده کښې د ناستې نه بغیر دریم رکعت دپاره ودریدلو. که بالکل نیغ ولاړ وي، نو واپس به نه راځي، او آخر کښې به سجده سهوه وکړي. او که بالکل نیغ نه وي ولاړ. نو واپس به کینې. په داسې صورت کښې سجده سهوه نه لازمیږي. (هدایه ص۱۰۶ ج۱، شرح نقایه ص۱۱۲ ج۱، کبیری ص۴۵۹).

عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا قَامَ الْإِمَامُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ فَإِنْ ذَكَرَ قَبْلَ أَنْ يَسْتَوِيَ قَائِمًا فَلْيَجْلِسْ فَإِنِ اسْتَوَى قَائِمًا فَلَا يَجْلِسْ وَيَسْجُدُ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ. (ابوداود ص۱۴۸ ج۱، ابن ماجه ص۸۴، مصابیح ص۷)

**ترجمه** حضرت مغیره بن شعبه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمايي چه کله امام د دوو رکعتو نه ودریږي. نو که بالکل له نیغ ودریدلو نه وړاندې ورته رایاد شي نو بیا دې کینې اوکه بالکل نیغ ودریږي نو بیا دې نه کینې بلکه آخر کښې دې سجده سهوه وکړي.

**مسئله** - که د تشهد نه وروسته یې په قعده اولی کښې اللهم صل علی محمد وعلی آل محمد ولوستلو نو سجده سهوه پرې واجبیږي. (کبیری ص۴۶۰).

عَنِ الشَّعْبِيِّ قَالَ مَنْ زَادَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ عَلَى التَّشَهُّدِ فَعَلَيْهِ سَجْدَتَا سَهْوٍ. (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۱ ج۲)

**ترجمه** حضرت امام شعبي فرمايي چه کوم سړی د رومبو دوو رکعتونو نه وروسته په تشهد باندې څه زیات وویل ، نو په ده باندې دوه سجدې د سهوې لازمیږي.

**مسئله** - که آخري قعده یې هیره کړه نو که د پنځم رکعت له سجدې نه وړاندې ورته رایاد شو. نو واپس دې قعدې ته راشي او سجده سهوه دې وکړي

که د پنځم رکعت سجده یې هم وکړه نو دده فرض باطل شول. ده دپاره به دا بهتره وي چه لدې سره بل رکعت هم یوځای کړي. دا ټول به نفل شي. او سجده هم پرې نه لازمیږي. اوکه استحساناً سجده سهوه وکړي نو بهتره ده. دې به فرض بیا کوي

که آخري قعده باندې کینی . بیا په هیره پاڅیږي . او پنځم رکعت وکړي نو سجده سهوې کولو سره یې مونځ صحیح کیږي

که په قعده آخیره کښې کیناستلو . او بیا پاڅیدلو او ده ته خبردارې وشو نو بیا به واپس شي.

اویو طرف ته به سلام وګرځوی، سجده سهوبه وکړی بیا به تشهد ووایي او سلام به وګرځوی (هدایه ص۱۰۶ ج۱، بحرالرائق ص۱۰۳ ج۲).

**مسئله** - که یو سړی نه هیره وشوه او ده ته معلومه نه وه چه ده درې رکعته کړې دی او که څلور. که دده نه دا هیره په ړومبی ځل شوې وی. نو ده دپاره د سر نه مونځ کول دوباره افضل دی. او که بار بار ترې هیره کیږی، نو بیا دې غالب ګمان ته وګوری. که غالب ګمان یی دا وو چه درې رکعته یی کړی دی نو درې . او که غالب ګمان یی داوو چه څلور رکعته یی کړې دی نو څلور شول. او آخر کښې دې سجده سهوه وکړی (هدایه ص۱۰۸ ج۱، شرح نقایه ص۱۱۳ ج۱).

**وَقَالَ اَبُوْ حَنِيْفَةَ فِي الرَّجُلِ يَشُكُّ فِيْ صَلَاتِهٖ فَلَا يَدْرِيْ اَثَلَاثًا صَلّٰى اَمْ اَرْبَعًا اِنْ كَانَ ذٰلِكَ اَوَّلُ مَا لَقِيَ اَحَبُّ اِلَيَّ اِنْ كَانَ يُعِيْدُ صَلَاتَهٗ وَاِنْ كَانَ يَلْقٰى كَثِيْرًا فَلْيَمْضِ عَلٰى اَكْثَرِ رَأْيِهٖ وَاِنْ كَانَ اَكْثَرُ رَأْيِهٖ اَنَّهٗ صَلّٰى ثَلَاثًا اَضَافَ اِلَيْهَا رَابِعَةً وَاِنْ كَانَ اَكْثَرُ رَأْيِهٖ اَنَّهٗ صَلّٰى اَرْبَعًا مَضٰى عَلٰى اَرْبَعٍ وَسَجَدَ فِي الْوَجْهَيْنِ جَمِيْعًا سَجْدَتَيِ السَّهْوِ بَعْدَ السَّلَامِ وَيَتَشَهَّدُ فِيْهَا وَيُسَلِّمُ.** (کتاب الحجه ۲۲۸ ج۱، کتاب الاثار للامام محمد ص۶۱)

**ترجمه** حضرت امام ابو حنیفه د هغه سړی باره کښې فرمایلی دی چاته چه د خپل مونځ په باره کښې شک وی او هغه ته دا معلومه نه وی چه هغه درې رکعته کړې دی اوکه څلور رکعته . که دا خبره ده ته په ړمبی ځل واقع شوې وی. نو ده دپاره بهتره دا ده چه هغه خپل مونځ را وګرځوی، او که اکثر ورته دا شك واقع کیږی. نوهغه ته پکار دی چه د هغه خپله اکثره رایه کوم طرف ته وی په هغې دې لاړ شی. که دده ډیره رایه دا وی چه درې رکعته یی کړې دی. نوڅلورم رکعت دې ورسره زیات کړی، او که اکثره رایه یی دا وی چه ده څلور رکعته کړی دی. نو هغه دې په دې قائم پاتې شی . او په دواړو صورتونو کښې دې د سلام نه وروسته دوه سجدې د سهوې وکړی اود تشهد نه وروسته دې سلام وګرځوی

**عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ اِذَا شَكَّ اَحَدُكُمْ فِيْ صَلَاتِهٖ فَلَمْ يَدْرِ اَثَلَاثًا صَلّٰى اَمْ اَرْبَعًا فَلْيَتَحَرَّ فَلْيَنْظُرْ اَفْضَلَ ظَنِّهٖ اَنَّهَا ثَلَاثٌ قَامَ فَاَضَافَ اِلَيْهَا الرَّابِعَةَ ثُمَّ تَشَهَّدَ فَسَلَّمَ وَسَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ وَاِنْ كَانَ اَفْضَلُ ظَنِّهٖ اَنَّهٗ صَلّٰى اَرْبَعًا تَشَهَّدَ ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ ثُمَّ تَشَهَّدَ.** (لم سلم) (کتاب الحجه ص۲۳۱، ج۱، کتاب الاثار للامام محمد ص۶۲)

**ترجمه** حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ نه روایت دې . هغوی فرمایی کله چه په تاسو کښې چاته د مونځ په باره کښې شك واقع شی. چه هغه درې رکعته کړې دی اوکه څلور. نو هغه ته فکر کول پکار دی . او کوم طرف ته چه د هغه غالب ګمان وی په هغې دې عمل وکړی. که غالب ګمان یی داوی چه درې رکعته یی کړی دی. نو څلورم رکعت دې لدې سره یوځاې کړی. بیا دې تشهد وکړی اودوه سجده سهوې دې وکړی. او که غالب ګمان یی دا وی چه څلور رکعته یی کړی دی نو د تشهد

نه وروسته دې سلام وګرځوی بیا دې دوه سجده سهوې ادا کړی. او بیا دې تشهد وکړی. او سلام دې وګرځوی.

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ النَّخْعِيِّ فِيْمَنْ نَسِيَ الْفَرِيْضَةَ فَلَمْ يَدْرِ اَرْبَعًا صَلّٰى اَمْ ثَلَاثًا قَالَ اِنْ كَانَ اَوَّلُ نِسْيَانِهٖ اَعَادَ الصَّلٰوةَ وَاِنْ كَانَ يُكْثِرُ النِّسْيَانَ تَحَرَّى الصَّوَابَ. الخ. (کتاب الحجه ص ۲۲۱ ج ۱)

**ترجمه** حضرت ابراهیم نخعی نه روایت دې هغوی فرمایی چا چه په مونځ کښې هیره وکړه. هغه ته معلومه نه وه چه درې رکعته یې کړې دی او که څلور، نو که دا په ړمبی ځل شوی وی نو مونځ دې را وګرځوی او که اکثر نسیان واقع کیږی. نو چه کومه خبره درسته وی هغه دې تلاش کړی. (یعنی تحری او فکر دې وکړی)

**مسئله** - که غالب ګمان هیڅ طرف ته نه وی. بلکه دواړه جهتونه برابر وی نو بیا دې کم حساب کړی. که شک یې په یو او دوو کښې وو. نو یو شو. او که په درې او څلورو کښې وو. نو درې رکعته شول. یو رکعت دې بل وکړی او سجده سهو، دې وکړی (شرح نقایه ص ۱۱۳ ج ۱).

عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ اَنَّهٗ قَالَ اِذَا شَكَّ اَحَدُكُمْ فِي الْوَاحِدَةِ وَالْاِثْنَتَيْنِ فَلْيَجْعَلْهَا وَاحِدَةً وَاِذَا شَكَّ فِي الْاِثْنَتَيْنِ وَالثَّلَاثِ فَلْيَجْعَلْهَا اِثْنَتَيْنِ وَيَسْجُدُ فِيْ ذٰلِكَ سَجْدَتَيْنِ. (ترمذی ص ۸۳)

**ترجمه** حضرت ابو سعید خدری ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی کله چه په تاسو کښې څوک شك وکړی. چه یو رکعت یې کړې دې او که دوه. نو هغه ته پکار دی چه هغه همدا یو رکعت وګرځوی. او کله چه ده ته په دوو او درې رکعتونو کښې شك وی نو هغه دې دا دوه وګرځوی او دې دپاره دې په آخر کښې سجده سهوه وکړی

**مسئله** - مسنون طریقه دا ده چه صرف ښی طرف ته یو سلام وګرځوی اوسجده دسهوې دې وکړی

**مسئله** - د سهوې دپاره دوه سجدې وی. او بیا تشهد. سلام، درود شریف اود دعاء نه وروسته دې سلام وګرځوی او مونځ دې ختم کړی (هدایه ص ۱۰۳ ج ۱، شرح نقایه ص ۱۱۰ ج ۱، کبیری ص ۴۶۱)

حضرت عمران بن حصین ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ مونځ ورکړو او هغوی نه هیره وشوه بیا هغوی د سهوې دپاره دوه سجدې وکړې. بیا یې تشهد وکړو او بیایې سلام وګرځولو. (مصابیح ص ۱۰۰)

**مسئله** مسبوق (چانه چه رکعت شوې وی) هغه به د امام د تابعداری نه کبله سجده سهوه کوی (شرح نقایه ص ۱۱۲ ج ۱، کبیری ص ۴۶۵).

**مسئله** - که ړومبی یا دویم رکعت کښې یې د فاتحې نه وړاندې سورة ولوستې وی نو سجده سهوه کول به ضرور وی. (کبیری ص ۴۶۱)

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ اَنَّهٗ قَالَ اِذَا سَبَقَكَ الْاِمَامُ بِشَيْءٍ وَقَدْ سَهَا فَاسْجُدْ مَعَهٗ ثُمَّ قُمْ فَاقْضِ مَا سَبَقَكَ بِهٖ. (كتاب الاثار ص۳۰ للامام ابو يوسف)

**ترجمه** حضرت ابراهیم نخعي فرمایي چه کله په تاسو کښې چانه امام وړاندې والې کړې وی، یعنی ستاسو د شریکیدو نه وړاندې یې څه رکعت کړې وی، او هغه امام نه هیره شوې وی، نو تاسو هم د هغه سره سجده سهوه ادا کړئ، او بیا ودریږئ او هغه رکعت ادا کړئ کوم چه ستاسو نه پاتې شوې وی

**مسئله** - د فرضو په شان په نفلو کښې هم (دهیرې له کبله) به سجده سهوه کوی

عَنْ عَطَاءٍ قَالَ اِنْ سَهَوْتَ فِي التَّطَوُّعِ فَاسْجُدْهُمَا فِيْ اٰخِرِ صَلَاتِكَ. (مصنف عبد الرزاق ص۳۲۶ ج۲)

**ترجمه** حضرت عطاء فرمایي که تاسو نه په نفلو کښې هیره وشی، نو هم هغسې په نفلو کښې دوه سجده سهوې ادا کړئ.

**په سجده سهوه کښې د امامانو اختلاف** :- په سجده سهوکښې د امامانو دا اختلاف دې چه آیا سجده سهوه د سلام نه وړاندې کول پکاردی اوکه وروستو

**امام شافعي** رحمه الله د سلام نه وړاندې د سجده سهوې قائل دې، او **امام مالک** رحمه الله ددې قائل دې چه که په مونځ کښې څه داسې کمې واقع شوې وی چه د هغې له کبله سجده سهوه لازمه شوې وی نو د سلام نه وړاندې، او که مونځ کښې څه زیاتې راغلې وی چه د هغې له کبله سجده سهوه لازمه شوې وی نو بیا د سلام د ګرځولو نه وروسته سجده سهوه کول پکار دی. د حضرت **امام ابوحنیفه** رحمه الله مسلک دا دې چه کمې وی او که زیاتې وئ په هر حال کښې به سجده سهوه د سلام ګرځولو نه وروسته کول پکار وی

د حضرت **امام احمد** رحمه الله قول دادې چه کوم ځائ کښې د رسول الله ﷺ نه سجده سهوه د سلام نه وړاندې نقل وی هلته د سلام نه وړاندې او چیرته چه وروسته د سلام نه نقل وی نو هلته د سلام نه وروسته سجده سهوه کول پکار دی

رسول الله ﷺ نه پنځه یا شپږ ځایونو کښې سجده سهوه کول نقل دی، او ددینه په بعضې ځایونو کښې د سلام نه وړاندې او په بعضې ځایونو کښې د سلام نه وروسته نقل دی

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رضی الله عنه اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ اِنَّ الشَّيْطٰنَ يَدْخُلُ بَيْنَ ابْنِ اٰدَمَ وَبَيْنَ نَفْسِهٖ فَلَا يَدْرِيْ كَمْ صَلّٰى فَاِذَا وَجَدَ ذٰلِكَ فَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ قَبْلَ اَنْ يُّسَلِّمَ. (ابن ماجه ص۸۶)

**ترجمه** حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایي کله چه په تاسو کښې څوک د مونځ د پاره ودریږي، نو شیطان راځي او دده په مونځ کښې خرابی راولي. تلبیس او وسوسې

اچوی، تردې چه مونځ کونکې نه پوهیږی چه ده څو رکعتونه وکړل. کله چه په تاسو کښې څوك داسې حالت بیامومی نوده ته د آخری ناستې د سلام نه وړاندې دوه سجدې د سهوې کول پکار دی.

**حقیقت** دا دې چه د **قبل السلام** او **بعد السلام** په باره کښې دواړه قسمه روایات راغی . او داټول روایات صحیح دی. د امامانو اختلاف په اصل کښې له مسئلې د ترجیح سره تعلق لری. چه زیاته راجح خبره کومه ده. نو امام ابو حنیفه رحمه الله بعد السلامْ والا روایاتو لره ترجیح ورکوی لکه چه دحضرت ذوالیدین رضی الله عنه په روایت کښې تصریح ده. **(ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ بَعْدَ التَّسْلِيمِ)**. **(مسلم ص۲۱۳، ج۱)** چه بیا رسول الله ﷺ په ناسته دوه سجده سهوې وکړې د سلام ګرځولو نه وروسته

**عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ صَلَّى الظُّهْرَ خَمْسًا فَقِيْلَ لَهُ اَزِيْدَ فِي الصَّلٰوةِ اَمْ نَسِيْتَ فَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ بَعْدَ مَا سَلَّمَ**

**(ترمذی ص۸۳)**

**ترجمه** حضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ د ماسپښین پنځه رکعته وکړل، هغوی ﷺ ته عرض وکړې شو چه یا رسول الله! آیا په مونځ کښې څه زیاتې یا اضافه شوې ده. اوکه تاسو نه هیره شوې ده. هغوی ﷺ وفرمایل دأسې (یوکار هم) نه دې شوې. بیا هغوی ﷺ دوه سجده سهوې وکړې د سلام نه وروسته.

په یو بل روایت کښې راغی چه رسول الله ﷺ وفرمایل زه هم انسان یم کله مانه هم هیرد کیږی. څنګه چه ستاسونه هیره کیږی. کله چه مانه هیره وشی. نو تاسو ماته یادوئ. او کله چه تاسو کښې چاته په خپل مونځ کښې شك شی. نو د هغې د یقینی خبرې لټون کول پکارد ی. ددې خبرې په بنیاد خپل مونځ پوره کول پکار دی. بیا سلام وګرځوئ او دوه سجدې د سهوې وکړئ

**اَنَّ ابْنَ مَسْعُوْدٍ سَجَدَ سَجْدَتَیِ السَّهْوِ بَعْدَ السَّلَامِ وَذَكَرَ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ فَعَلَ ذٰلِكَ.** **(ابن ماجه ص۸۶)**

**ترجمه** حضرت ابن مسعود رضی الله عنه دوه سجدې د سهوې وکړې د سلام ګرځولو نه وروسته. او هغوی بیان کوی چه رسول الله ﷺ همداسې کړی وو.

لهذا سجده په دواړو طریقو درسته ده. قبل السلا م یا بعد السلام . البته حضرت امام ابو حنیفه د سلام نه وروسته سجدې والا روایاتو ته زیات راجح ویلی دی. او امام شافعی قبل السلام والا روایات راجح ګرځولی دی. اصلاً دا مسئله د ترجیح له باب سره تعلق لری . امام ابو حنیفه خو بعد السلام سجده وروستو د سلام نه اختیاروی . او وړاندې د سلام روایتونه هغوی دسلام مقاطعه مراد اخلی . یعنی هغه سلام چه سجده سهوه کولو نه وروسته د مونځ نه دوتلو نه پس کیږی ددینه بهر حال سجده سهوه وړاندې وی

**په اخیره قعده کښې اختلاف** - په اخیره قعده کښې هم دامام ابو حنیفه او امام ثوری سره د

نور امامانو اختلاف دې، حضرت امام ابو حنیفه قعده اخیره فرض ګڼي . او نور امامان دا فرض نه ګڼي . بلکه سنت یې ګڼي. البته دا خبره د لحاظ قابله ده چه فرض یا رکن خو هغه کیدې شي چه د نص قطعي نه ثابت وي. لیکن د اخیرې قعدې په باره کښې لدې حدیث نه سیوا (اِذَا قُلْتَ هٰذَا اَوْ فَعَلْتَ هٰذَا) بل هیڅ واضح نص معلوم نه شو

نو دا ویلې کیږي چه دا فرض د نورو فرضو په شان نه دی چه قطعي وي . بلکه دې امامانو (ابو حنیفه او سفیان ثوري) د اجتهاد سره دې ته فرض ویلي دی. دا فرض د اجتهاد په درجه کښې دی په دې کښې هغه قطعیت نشته چه کوم په نورو فرضو کښې وي. په دې معنی سره دې ته فرض ویل هم درست دی

امام ترمذي لیکلي دی چه

قَالُوْا اِذَا صَلَّى الرَّجُلُ الظُّهْرَ خَمْسًا فَصَلَاتُهُ جَائِزَةٌ وَسَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ وَاِنْ لَّمْ يَجْلِسْ فِي الرَّابِعَةِ وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ وَاَحْمَدَ وَاِسْحٰقَ وَقَالَ بَعْضُهُمْ اِذَا صَلَّى الظُّهْرَ خَمْسًا وَلَمْ يَقْعُدْ فِي الرَّابِعَةِ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ فَسَدَتْ صَلٰوتُهُ وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ وَبَعْضِ اَهْلِ الْكُوْفَةِ (ترمذی ص ۸۳)

**ترجمه** بعضې عالمانو ویلي دي کچیرې څوك د څلورو رکعتو په ځائې پنځه رکعته وکړي ، نو د هغه دا مونځ جائز دې او ده ته سجده سهوه پکار ده ، اګرکه هغه په څلورم رکعت کښې نوی ناست .او دا د امام شافعي رحمه الله، احمد رحمه الله ، او د اسحاق رحمه الله مسلك دې. لیکن بعضو دا ویلی دی چه که یو سړی پنځه رکعته د ماسپښین وکړل. او په څلورم رکعت کښې هغه نه وي ناست نو د هغه مونځ به فاسد وي. (فرضیت به یې باطل شي او نفل به شي) او دا مسلك دې د امام سفیان ثوري رحمه الله او بعضې اهل کوفه (له بعضو نه امام ابوحنیفه رحمه الله مراد دې) .

علامه ابن عبدالبر رحمه الله لیکلی دی چه

وَاَجْمَعَ الْعُلَمَاءُ عَلٰى اَنَّ الرُّكُوْعَ وَالسُّجُوْدَ وَالْقِيَامَ وَالْجِلْسَةَ الْاَخِيْرَةَ فِي الصَّلٰوةِ فَرْضٌ كُلُّهُ. (تمهید ص ۱۸۹ ج ۱۰)

**ترجمه** او دعلماؤ اجماع ده په دې خبره باندې چه رکوع. سجده ، قیام. او قعده اخیره په مونځ کښې ټول فرض دی

داسې قسم بحث په ارکان صلوة کښې «د قعده آخیرې» په باب کښې تیر شوې دی

# دتلاوت سجده

د قرآن مجید په بعضې مقاماتو کښې داسې آیتونه مبارکه دی چه په هغې کښې د سجدې کولو حکم ورکړې شوې دې. دا دمونځ د سجدې نه علاوه بله سجده ده . په څه ځائې کښې د سجدې د

کولو حکم او امر دي ، په څه ځایٔ کښې د سجدې کولو ثواب او اجر بیان شوې دې، او په څه ځایٔ کښې د سجدې نه د اعراض کوونکو د پاره د عتاب او عقاب او سزا بیان دې په دې وجه شارع ﷺ په دې مقاماتو باندې د قرآن کریم د آیتو نو په تلاوت کولو باندې سجده تلاوت ضروری ګنړلې ده، چه انسان د الله ﷻ د کلام تعظیم کولو سره نیکۍ او خیر طرف ته وړاندې کیدونکې وی

د امام ابو حنیفه رحمه الله مسلك دادې چه سجدې د تلاوت واجب دی او د امام اعظم نه علاوه نور امامان سجدې د تلاوت سنت ګنړی ، واجب یې نه تسلیموی (هدایه ص۱۱۰ ج۱،شرح نقایه ص۱۱۳ ج۱)

فَمَالَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ .وَاِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْاٰنُ لَا يَسْجُدُوْنَ. (الانشقاق پ۳۰)

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اِذَا قَرَءَ ابْنُ اٰدَمَ السَّجْدَةَ فَسَجَدَ اعْتَزَلَ الشَّيْطَانُ يَبْكِيْ يَقُوْلُ يَاوَيْلَهُ اُمِرَ بْنِ اٰدَمَ بِالسُّجُوْدِ فَسَجَدَ فَلَهُ الْجَنَّةَ وَاُمِرْتُ بِالسُّجُوْدِ وَاَبَيْتُ فَلِيَ النَّارُ. (مسلم ص۶۱، ج۱)

**ترجمه** حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه کله بنیادم د سجدې آیت لولی او سجده کوی نو شیطان ځان له شی او ژاړی چه افسوس زما په حالت باندې. ابن آدم ته د سجدې حکم ورکړې شو نو ابن آدم سجده وکړه او ده ته جنت ورکړې شو اوماته د سجدې حکم راکړې شو نو ما انکار وکړو نو زما د پاره دوزخ دې، ( د ابلیس دا وینا د افسوس په بناء نده بلکه د بنیادم په ضد باندې ده که چیرې دهغه دغه کار د افسوس او د حسرت په بناء باندې وای نو هغه به توبه کړې وه خو هغه داسې نه کوی بلکه د ضد له کبله داسې وایی )

**مسئله** - د امام ابو حنیفه په نزد داسې مقامات په قرآن کښې څوارلس دی چه د هغې په تلاوت کولو د سجدې حکم دې. او هغه ځایونه په دغه لاندې سورتونو کښې دی

سورة اعراف ،سورة الرعد ، سورة النحل، سورة الاسراء، سورة مریم، دسورة حج رومبئ سجده، سورة الفرقان، سورة النمل، سورة السجدة، سورة (ص)، سورة (حم) السجدة، سورة النجم، سورة اذا السماء انشقت، سورة اقرء . (هدایه ص۱۱۰ ج۱،شرح نقایه ص۱۱۳ ج۱، کبیری ص۴۹۸)

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَابْنِ عُمَرَ يَعُدَّانِ كَمْ فِي الْقُرْاٰنِ مِنْ سَجْدَةٍ فَقَالَا الْاَعْرَافُ والرعد والنحل وبنی اسرائیل ومریم والحج اولها والفرقان وطس والم تنزیل وص وحم السجدة. (مصنف عبد الرزاق ص۳۳۵، ج۱)

**ترجمه** حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه دواړو د قرآن کریم سجدې په دې سورتونو کښې شمیر کړی دی .سورة اعراف .سورة الرعد سورة النحل،سورة الاسراء،سورة مریم،د سورة حج رومبئ سجده . سورة الفرقان،طس،الم تنزیل،ص،حم السجدة.

عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَرَءَ سُوْرَةَ النَّجْمِ فَسَجَدَ بِهَا فَمَا بَقِيَ اَحَدٌ مِنَ الْقَوْمِ اِلَّا سَجَدَ الخ . (بخاری ص۱۳۶،

مسلم ص۲۱۵ ج۱، طحاوی ص۲۰۷ ج۱)

**ترجمه** حضرت عبد الله بن مسعود ؓ نه روایت دي چه رسول الله ﷺ د سورة النجم په تلاوت کښې سجده اداء کړه او هغوی ﷺ سره نورو خلقو هم د غه سجده وکړه.

عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ سَجَدَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فِي اِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ وَاقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ. (مسلم ص۲۱۵ ج۱)

**ترجمه** حضرت ابو هریره ؓ فرمايي چه رسول الله ﷺ په سورة (اذا السماء انشقت) او سورة (اقرء) کښې هم سجده د تلاوت اداکړې وه

د **امام شافعي** رحمه الله په نزد هم په قرآن پاك کښې د سجدو ځایونه (۱۴) څوارلس دی. هغوی په سورة حج کښې دوه سجدې منی. او سورة (ص) کښې سجده نه منی . حضرت **امام ابو حنیفه** رحمه الله په سورة حج کښې یوه سجده منی .اود سورة حج په دویم مقام باندې سجده د صلوة منی. او سورة ص کښې سجده د تلاوت تسلیموی

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَدْ رَأَيْتُ النَّبِيَّ ﷺ يَسْجُدُ فِيْهَا (ص۲)

**ترجمه** حضرت ابن عباس ؓ فرمايي چه ما رسول الله ﷺ ولیدلو چه سورة ص کښې یې سجده د تلاوت اداء کوله

عَنْ اَبِي سَعِيْدِنِ الْخُدْرِيِّ قَالَ خَطَبَنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَوْمًا فَقَرَأَ ص، فَلَمَّا مَرَّ بِالسُّجُوْدِ نَزَلَ فَسَجَدَ وَسَجَدْنَا مَعَهُ،

(ابوداود ص۲۰۰ ج۱، مستدرك حاكم ۴۳۱ ج۲)

**ترجمه** حضرت ابو سعید خدری ؓ نه روایت دي چه رسول الله ﷺ یوه ورځ خطبه ارشاد وفرمایله. او په هغې کښې یې سورة ص ولوستلو. بیا د سجدې مقام ته ورسیدلو نو د ممبر نه راکوز شو. او سجده یې اداء کړه. او مونږ خلقو هم د هغوی ﷺ سره سجده اداء کړه.

عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَالْحَسَنِ قَالَا فِي الْحَجِّ سَجْدَةٌ وَاحِدَةٌ الْأُوْلٰى مِنْهَا. (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۲ ج۲)

**ترجمه** حضرت سعید بن المسیب رحمه الله او حسن بصری رحمه الله فرمايي چه سورة حج کښې یوه سجده ده او هغه رومبۍ سجده ده همدغه شان مصنف ابن ابی شیبه کښې حضرت عبد الله بن عباس ؓ ، سعید بن جبیر رحمه الله ، ابراهیم نخعی رحمه الله ، جابر بن یزید رحمه الله نه نقل دی (مصنف ۱۲ ج۲)

د حضرت **امام مالك** رحمه الله په نزد د تلاوت سجدې (۱۱) یوولس دی . لدینه علاوه نورې سجدې دده په نزد غیر مؤکدې دی

د حضرت امام مالك په نزد سورة النجم ، اذا السماء انشقت او اقرء کښې سجده نشته. د امام مالك استدلال د لاندې ذکر شوی احادیثو نه دې

حضرت عبد الله بن عباس ؓ نه روایت دې چه کله رسول الله ﷺ مدینې منورې ته تشریف راوړو ،

«د هجرت نه وروسته» نو هغه وخت پورې هغوی ﷺ د مفصل «د قرآن مجید آخری منزل چه د سورة حجرات نه تر آخره پورې دې» په یو آیت کښې هم سجده نه ده کړې (ابوداؤد ۱۹۹ ج۱)
محدث ابن عبدالبر رحمه الله دې حدیث ته منکر ویلی دی . او محدث عبدالحق رحمه الله ویلی دی چه دا حدیث قوی نه دې . ددې برعکس د صحیحینو وغیره روایتونه اقوی او صحیح دی.

حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه مونږ له رسول الله ﷺ سره (اذاالسماءانشقت) او (اقرءباسم ربك) کښې سجده وکړه (مسلم ص۲۱۵ ج۱).

حضرت ابو هریره رضی الله عنه «اذا السماء انشقت» تلاوت کړو، او سجده یې وکړه . او کله چه د هغوی نه پوښتنه وکړې شوه، نو هغوی رضی الله عنه وفرمایل که ما نبی کریم ﷺ په دې سورة کښې په سجده کولو لیدلې نه وای نو مابه هم سجده کړې نه وه، زه اوس همیشه په دې کښې سجده کوم، تردې چه زه د رسول الله ﷺ سره یوځای شم .(بخاری ص۱۴۷ ج۱،مسلم ص۲۱۵ ج۱)

حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ سورة «ص» تلاوت کړو،او هغوی ﷺ په ممبر تشریف فرماوو، د سجدې په آیت ته چه کله دې ورسیدلو، نو لاندې راکوز شو او سجده یې اداء کړه او د هغوی ﷺ سره خلقو هم سجده اداء وکړه (ابوداؤد ص۲۰۰ ج۱).

حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ سورة النجم تلاوت وفرمایلو، او دغه وخت د هغوی مجلس کښې چه څومره مسلمانان ، مشرکان ، جن، او انسانان موجود وو. ټولو د رسو ل الله ﷺ سره سجده وکړه ، صرف یو کافر «امیه بن خلف» داسې وو چه هغه سجده ونکړه، بلکه لږ شانته خاوره یې راواخیستله ،او په تندی یې ولګوله. او وې ویل زما دپاره دا کافی ده، هغه کافر وروستو د بدر په جنګ کښې د کفر په حالت کښې قتل کړې شو. (بخاری ص۱۴۶ ج۱،مسلم ص۲۱۵ ج۱).

حضرت شاه ولی الله محدث دهلوی په حجة الله البالغه کښې لیکلې دی چه د ټولو سجده کول دا اضطراری حالت وو، دغه وخت د الله ﷻ قهری تجلی نازله شوې وه. مسلمانانو خو د رسول الله ﷺ په اتباع کښې سجده اداء کړه، او مشرکان او کافران ددې تجلی د له کبله مجبور شول او هغوی هم سجده وکړه.. والله اعلم (حجة الله البالغه)

د ابن ماجه دا روایت ضعیف دې که دا روایت تر څه درجې پورې هم ومنلې شی نو دهغې دا مطلب نه جوړیږی، کوم چه هغوی بیان کړې دې، ځکه چه پدې حدیث کښې د «۱۱» یوولسو سجدو اثبات دې او دا یوولس هغه سجدې دی چه په مفصل سورتونو کښې نه دی لدینه په مطلق مفصل سورتونو کښې د سجدو نفی څه رنګه ثابت ه کیدې شی، ځکه چه یوولس سجدې په مفصل

سورتونو کښې نه دی ، بلکه په نورو حصو کښې دی ، حالانکه ابن ماجه او ابو داؤد کښې د پنځلسو سجدو والا روایت هم موجود دې

حضرت عمرو بن عاص ﷛ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ پنځلس آیتونه د سجدې تلاوت کړل. او سجدې د تلاوت یی اداء کړې چه په هغې کښې درې سجدې په مفصل کښې دی.او سورة حج کښې دوه سجدې دی (ابوداؤد ص۱۹۹ ج۱،ابن ماجه ۷۴).

احناف کرام فرمایی چه د حج دویمه سجده د مونځ سجده ده

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ فِي سُوْرَةِ الْحَجِّ الْأُوْلٰى عَزِيْمَةٌ وَالْاٰخِرَةُ تَعْلِيْمٌ. (طحاوی ص۲۱۴ ج۱،مصنف عبدالرزاق ص۳۴۰ ج۳)

**ترجمه** حضرت عبدالله ابن عباس ﷛ فرمایی چه په سورة حج کښې رومبئ سجده مؤکده ده ، او دویمه سجده د تعلیم ده ، یعنی په دې کښې د مونځ د سجدې تعلیم ورکړې شوې دې

په هرحال پدې سلسله کښې دامام ابوحنیفه مسلك زیات راجح دې.سجدې ټولې څوارلس (۱۴) دی او دا د تلاوت سجده واجب ده. لکه څنګه چه بره تیر شول

**مسئله** - د سجدې دآیت د تلاوت کولو په وخت بهتر خو دادی چه سمدستی سجده وکړې شی لیکن سمدستی نه واجبیږی، که پدې وخت کښې ونه کړې شی، نو وروسته هم ادا کیدې شی، او دا به دده په ذمه واجب وی

قَالَ الثَّوْرِيُّ تَقْضِي السَّجْدَةَ إِذَا سَمِعْتَهَا وَلَمْ تَسْجُدْهَا. (مصنف عبدالرزاق ص۳۵۰ ج۳)

**ترجمه** امام ثوری فرمایی چه ته د سجدې قضا وکړه کله چه (آیت د سجدې) واورې او سجده و نکړې

ممکنه ده چه سړې ددې دپاره هغه وخت تیار نه وی کله چه په پاکئ کښې شی. نو اداء دې کړی

**مسئله** - بغیر د آوریدلو د ارادې نه که دې آیت د سجدې واوریدلو . نو بیا هم سجده دړباندې واجبیږی (هدایه ص۱۱۰ ج۱،شرح نقایه ص۱۱۵ ج۱، کبیری ص۵۰۰).

قَالَ عُثْمَانُ إِنَّمَا السَّجْدَةُ عَلٰى مَنِ اسْتَمَعَهَا (بخاری ص۱۳۶ ج۱،مصنف عبدالرزاق ص۳۴۴ ج۳)

**ترجمه** حضرت عثمان بن عفان ﷛ فرمایی چه سجده د تلاوت په هغه سړی واجبه ده . چا چه هغه (آیت دسجدې) واوریدلو

عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ إِنَّمَا السَّجْدَةُ عَلٰى مَنِ اسْتَمَعَهَا (مصنف ابن ابی شیبه ص۶ ج۲)

**ترجمه** حضرت عبدالله بن عمر ﷛ نه روایت دې چه سجده په هغه چا (ضروری) ده چا چه آیت د سجدې آوریدلې وی

عَنْ إِبْرَاهِيْمَ وَنَافِعٍ وَسَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالُوْا مَنْ سَمِعَ السَّجْدَةَ فَعَلَيْهِ أَنْ يَسْجُدَ (مصنف ابن ابی شیبه ص۵ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله، حضرت نافع رحمه الله، حضرت سعید بن جبیر رحمه الله دا ټول حضرات وایي چه چا د سجدې آیت واوریدلو نو په هغه باندې سجده کول ضروري دي.

عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ قَالَ إِنَّمَا السَّجْدَةُ عَلٰى مَنِ اسْتَمَعَهَا. (سنن الکبری للبیهقی ص ۳۲۴ ج ۲)

**ترجمه**: حضرت سعید بن المسیب رحمه الله فرمایي چه سجده د تلاوت په هغه چا واجبه ده. چا چه د سجدې آیت آوریدلې وی.

**مسئله**: د سجدې آیت آوریدونکی باندې په هغه وخت کښې سجده د تلاوت واجبیږی. کله چه هغه د وجوب د صلوة اهل وی. له همدې کبله جنب باندې واجب کیږی. او په حیض او نفاس والا ښځو باندې نه واجب کیږی. (شرح نقایه ص ۱۱۴ ج ۱).

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ وَسَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ اَنَّهُمَا قَالَا اِذَا سَمِعَ الْجُنُبُ اِغْتَسِلْ ثُمَّ سَجَدَ. (مصنف ابن ابی شیبه ص ۱۳ ج ۲)

**ترجمه**: حضرت ابراهیم نخعی او سعید بن المسیب فرمایي چه کله سړې د سجدې آیت واوری نو د غسل کولو نه وروسته دې سجده وکړی.

عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ قُلْتُ لِعَطَاءٍ اَرَاَيْتَ اِنْ مَرَّتْ حَائِضٌ بِقَوْمٍ يَقْرَءُوْنَ فَيَسْجُدُوْنَ اَتَسْجُدُ مَعَهُمْ ؟ قَالَ لَا قَدْ مُنِعَتْ خَيْرًا مِنْ ذٰلِكَ (مصنف عبد الرزاق ص ۳۲۰ ج ۱، ومصنف ابن ابی شیبه ص ۱۳ ج ۲)

**ترجمه**: حضرت ابن جریج فرمایي چه ما حضرت عطاء ته وویل چه حیض والا ښځه داسې خلقو باندې تیره شی چه هغوئ د قرآن پاك تلاوت کوی او د سجدې آیت تلاوت کړی نو آیا حیض والا ښځه به سجده کوی. نو حضرت عطاء وفرمایل: نه! هغه په دې حالت کښې د سجده تلاوت نه زیات بهتر څیز (مونځ) نه هم منع کړې شوې ده.

همدغه رنګې د امام ابراهیم نخعی رحمه الله، سعید بن المسیب رحمه الله، حسن بصری رحمه الله، او ابو الضحی رحمه الله نه هم نقل دی (مصنف ابن ابی شیبه ص ۱۳، ۱۴)

**مسئله**: صاحب د شرح نقایه په حواله د بحر محیط نقل کړی دی چه که کوم سړې نا عاقل ماشوم د حیض او نفاس والا ښځې نه یا د جنب، یا بې اودسه سړی نه آیت د سجدې واوری نو سجده پرې واجبیږی. او که له لیونی یا ویده سړی نه یې واوری نو سجده نه واجبیږی. ځکه چه په دې صورت کښې تلاوت بغیر د معرفت او تمیز نه صادر شوې دې.

لیکن که په نشه کښې مست سړی نه آیت د سجدې واوری نو سجده واجبیږی. ځکه چه دده عقل خو شته. خو ګویا چه د نشې له کبله مستور دې (شرح نقایه ص ۱۱۵ ج ۱)

د امام مالك په نزد چه تلاوت کونکې سړې وی او آوریدونکې په سجدې کولو مکلف وی. نو په هغه صورت کښې سجده لازمیږی. او که نه نو نه واجبیږی (شرح نقایه ص ۱۱۵ ج ۱)

**مسئله** - د تلویزیون ، ټیپ ریکاډ ، لاسپیکر ، وغیره آلاتو په ذریعه که د سجدې د آیتونو په آوریدو اګر چه سجده نه واجبیږی، لیکن سجده ادا کول بهتر دی.
**مسئله** - سجده د تلاوت په لوستونکی ، آوریدونکی ، ټولو باندې واجبیږی. اګرکه د آوریدو قصد او اراده یې هم نه وی ، بیا هم په ده سجده واجبیږی (هدایه ص۱۱۰ ج۱، کبیری ص۵۰۰، شرح نقایه ص۱۱۵ ج۱).
**مسئله** - د تلاوت سجده په مونځ کښې او د مونځ نه بیرون هم واجبیږی.
**مسئله** - د سجده تلاوت ادا کولو د پاره ټول هغه شرائط ضروری دی کوم چه د مونځ د پاره ضروری دی د اودس او طهارت کیدل . قبلې ته مخ کول. د لباس پاکول . د ځائ پاکول ، وغیره (شرح نقایه ص۱۱۴).

عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهُ قَالَ لَا یَسْجُدُ الرَّجُلُ اِلَّا وَهُوَ طَاهِرٌ (بیهقی ص۳۲۵ ج۲)
**ترجمه** حضرت عبد الله بن عمر ؓ فرمایی چه هیڅوك دې هم تر هغه وخته سجده نه کوی ، تر څو چه دې پاك نه وی

قَالَ الزُّهْرِیُّ لَا تَسْجُدُ اِلَّا اَنْ تَکُوْنَ طَاهِرًا فَاِذَا سَجَدْتَ وَاَنْتَ فِیْ حَضَرٍ فَاسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ. (بخاری ص۱۳۶ ج۱، بیهقی ص۳۲۶ ج۲)
**ترجمه** امام زهری فرمایی چه بغیر د طهارت نه سجده مه کوئ . او کله چه تاسو سجده کوئ نو قبلې طرف ته مخ کوئ

عَنْ سُفْیَانَ بْنِ حُسَیْنٍ قَالَ سَمِعْتُ الْحَسَنَ وَقَرَءَ السَّجْدَةَ الَّتِیْ فِیْ ص، فَسَجَدَ عَلٰی حَرْفِ اِسْطُوَانَةٍ ثُمَّ قَالَ لِلْقَوْمِ تَوَجَّهُوْا (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۵ ج۲)
**ترجمه** حضرت سفیان بن حصین فرمایی چه ما دحضرت حسن بصری نه آوریدلی دی چه هغوی د سورة ص د سجدې والا آیت ولوستلو، او د ستنې یو طرف ته یی سجده وکړه. بیا یی خلقو ته وویل چه تاسو هم مخ په قبله شئ
حضرت عبد الرحمن نه نقل دی چه کله به هغوی آیت د سجدې تلاوت کولو . نومخ به یی قبلې ته وګرځولو . بیا به یی سجده کوله. (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۵ ج۲)
کومو خلقو چه دا ویلې دی چه سجده دتلاوت بغیر د طهارت نه هم ادا کیدې شی. نو دا خبره بالکل غلطه ده
**مسئله** - د حیض او نفاس والا ښځې نه . او جنابت والا . او وړوکی ماشوم نه چه شعور لری ، او کافر نه که آیت د سجدې واورې نو سجده واجبیږی (نور الایضاح ۱۲۳)
**مسئله** - په مونځ کښې دشریك مقتدی به ویلو سره په امام او (بل) مقتدی باندې سجده نه

واجبیږي. (جامع صغیر ص۱۶، هدایه ص۱۱۰ ج۱، شرح نقایه ص۱۱۶، کبیری ص۵۰۰)

**مسئله** - که د مونځ نه بهر چا نه د مونځ دننه مونځ ګزار آیت د سجدې واوریدلو، نو د مونځ نه وروسته به سجده کول په ده باندې ضروری وی (جامع صغیر ص۱۶، هدایه ص۱۱۰ ج۱، شرح نقایه ص۱۱۶، کبیری ص۵۰۰)

عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ قَالَ يَسْجُدُ إِذَا انْصَرَفَ. (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۲ ج۲)

**ترجمه**: امام محمد ابن سیرین فرمایی چه سجده دتلاوت به کوی چه کله د مونځ نه فارغ شی

عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ لَا تَدْخُلُ فِي صَلَاتِكَ مَا لَيْسَ فِيْهَا قَالَ سُفْيَانُ نَقُوْلُ اَقْضِهَا بَعْدُ. (مصنف عبدالرزاق ص۳۵۱ ج۳)

**ترجمه**: امام محمد ابن سیرین فرمایی چه کومه سجده صلاتیه نه وی. هغه په مونځ کښې نه ادا کیږی. امام سفیان ثوری ویلی دی چه مونږ وایو چه هغه به مونځ نه پس قضاء کوی

**مسئله** - دا مستحب دی چه لوستونکې آیت دسجدې پټ ووایی چه چرته چاته مشکل پیښ نه شی. (هدایه ص۱۱۱ ج۱، شرح نقایه ص۱۱۷ ج۱، کبیری ص۵۰۶).

**مسئله** - دا مکروه دی چه آیت د سجدې پریښودې شی، اونور آیتونه ولوستلې شی. لیکن که سجدې والا آیت ولولی اونور آیتونه پریږدی نو پدې کښې کراهیت نشته (هدایه ص۱۱۱ ج۱، شرح نقایه ص۱۱۷ ج۱، کبیری ص۵۰۶).

وَعَنِ الشَّعْبِيِّ قَالَ وَلَوْ كَانُوْا يَكْرَهُوْنَ إِذَا اَتَوْا عَلَى السَّجْدَةِ اَنْ يُّجَاوِزُوْهَا حَتّٰى يَسْجُدُوْا. (مصنف ابن ابی شیبه ص۲ ج۲)

**ترجمه**: حضرت امام شعبی بیان کوی چه سلف به کله د سجدې والا آیت باندې راتلل، نو دهغې نه تجاوز کول به یې مکروه ګڼل، تردې چه هغه ولولی او سجده وکړی

**مسئله** - د ونې له یو ښاخ نه که بل ښاخ ته لاړ شې نو په مجلس کښې تبدیلی راغله. او همدغه آیت (کوم چه دې په رومبی ښاخ) لوستلې وو، دلته (دې بل ښاخ باندې هم) ولوستلو نو دوباره سجده کول به درباندې لازم وی.

**مسئله** - د سجده تلاوت اداء کولو طریقه داده. چه «الله اکبر» به ووایی او سجده به وکړې. او سجده کښې به تسبیح وکړې او بیا به الله اکبر وکړې او پاسیږې به

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ وَالْحَسَنِ اَنَّهُمَا قَالَا اِذَا قَرَأَ الرَّجُلُ السَّجْدَةَ فَلْيُكَبِّرْ اِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ وَاِذَا سَجَدَ (مصنف ابن ابی شیبه ص۱ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابراهیم نخعی او حسن بصری نه روایت دې هغه فرمایی چه کله څوک سجده کوی. نو هغه به تکبیر ووایی او کله چه د سجدې نه سر پورته کړی نو بیا به تکبیر ووایی

همدغه رنګې د ابوقلابه ، ابن سیرین ، او مسلم بن یسار نه نقل دی چه د سجدې کولو په وخت به تکبیر وکړی او سجده به وکړي (مصنف ابن ابی شیبه ص۲ ج۲)

**مسئله** - په سجده دتلاوت کښې سلام نه وی بلکه صرف تکبیر به وکړی او سر به پورته کړي

عَنِ الْأَعْمَشِ قَالَ كَانَ اِبْرَاهِيْمُ وَاَبُوْصَالِحٍ وَيَحْيَى بْنِ وَثَّابٍ لَا يُسَلِّمُوْنَ فِي السَّجْدَةِ (مصنف ابن ابی شیبه ص۱ ج۲)

**ترجمه** حضرت اعمش فرمایی چه حضرت ابراهیم نخعی . ابو صالح . او یحیی بن وثاب سجده دتلاوت کښې سلام نه ګرځولو

همدغه رنګې حسن بصری . عطاء بن ابی رباح او سعید بن جبیر نه نقل دی، چه هغه به د قرآن په سجدو کښې د سجدې نه سر پورته کولو او سلام به یې نه ګرځولو (مصنف ابن ابی شیبه ص۱ ج۲).

**مسئله** :-که څوك مونځ کوی او آیت د سجدې تلاوت کړی ، نو د آیت په اختتام باندې دې سجده دتلاوت وکړی اوکه قرائت ختم کړی او رکوع کول وغواړی خو په رکوع کښې د سجدې نیت وکړی . نو سجده د تلاوت به یې اداء شی (شرح نقایه ص۱۱۶ ج۱، کبیری ص۵۰۵)

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ اِذَا كَانَ فِي اٰخِرِ السُّوْرَةِ سَجْدَةٌ اَجْزَاكَ اَنْ تَرْكَعَ بِهَا .(مصنف ابن ابی شیبه ص۱۹ ج۲)

**ترجمه** حضرت ابراهیم نخعی فرمایی چه کله د آیت په آخر کښې سجده وی ، نو ته رکوع وکړه پس سجده اداء کړې شوه ، (په شرط ددې چه نیت دې کړې وی)

همدغه رنګې حضرت علقمه، اسود ،مسروق، عمربن شرحبیل، امام شعبی، طاؤس،عبدالرحمن بن یزید نه هم نقل دی (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۸ ج۲)

**مسئله** - د جنابت په حالت کښې که چا آیت د سجدې واوریدلو ، نو دغسل کولو نه وروسته به سجده کول ضروری وی

**مسئله** - څوك چه قرآن لولی او قرآن په باندې سجده کوی هغه سجده نه ادا کیږی

**مسئله** - د حیض اونفاس والا ښځه که آیت د سجدې واوری نو په هغوی سجده نه واجبیږی

**مسئله** - دمونځ دننه چه کومه سجده واجبه شوې وی هغه دمونځ دننه کول پکار دی،دمونځ نه بهر هغه نه ادا کیږی. اوسړی ګنهګاریږی. (جامع صغیر ص۱۲،هدایه ص۱۱۱ ج۱،شرح نقایه ص۱۱۶ ج۱، کبیری ص۵۰۱)

**مسئله** - که په یو مجلس کښې بار بار د سجدې آیت تلاوت شو ، نو یوه سجده واجبیږی که یو آیت کښې ګڼ آیتونه د سجدې تلاوت شول، نو هر یو آیت باندې ځان له ځان له سجده کول ضروری دی (جامع صغیر ص۱۲،هدایه ص۱۱۱ ج۱،شرح نقایه ص۱۱۶ ج۱، کبیری ص۵۰۱)

عَنِ الْحَسَنِ وَاِبْرَاهِيْمَ فِي الرَّجُلِ يَقْرَاءُ السَّجْدَةَ ثُمَّ يُعِيْدُ قِرَاءَتَهَا قَالَا فَيَسْجُدُ ثُمَّ يُعِيْدُهَا فِي مَجْلِسِهٖ ذٰلِكَ مِرَارًا

لَايَسْجُدُ.(مصنف ابن ابي شيبه ص۲ ج۲)

**ترجمه** حضرت حسن بصري، امام ابراهيم نخعي نه نقل دی دهغه سړی باره کښې چه د سجدې والا آيت لولی او بيا هغه تکراروی . (په يو مجلس کښې) هغوی وفرمايل چه ده دپاره رمبئ سجده کافی ده .

عَنْ اَبِي عَبْدِالرَّحْمٰنِ اَنَّهُ كَانَ يَقْرَأُ السَّجْدَةَ فَيَسْجُدُ ثُمَّ يُعِيْدُهَا فِي مَجْلِسِهِ ذٰلِكَ مِرَارًا لَايَسْجُدُ.(مصنف ابن ابي شيبه ص۲ ج۲)

**ترجمه** حضرت ابو عبدالرحمن نه روايت دې چه هغوی د سجدې والا آيت لوستلو ، نو سجده يې وکړه او بيا يې هغه آيت بار بار په هغه مجلس کښې تلاوت کولو خو بيا يې سجده نه کوله

همدا رنګې د حضرت مجاهد نه هم نقل دی .(مصنف ابن ابي شيبه ص۲ ج۲)

**مسئله** :- اخترونو ، جمعه ، او د ماسپښين او مازديګر په مونځونو کښې امام لره د سجدې آيتونه لوستل پکار نه دی . ځکه چه لدې سره په مقتديانو کښې پريشانی پيدا کيږی

# ادراک الفريضه

**«له امام سره فرض مونځ موندل»**

(وَارْكَعُوا مَعَ الرَّاكِعِيْنَ)

**ترجمه** . او رکوع کوئ له رکوع کونکو سره

## په تکبير اولی کښې د شامليدو فضيلت .-

عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ صَلّٰى لِلّٰهِ اَرْبَعِيْنَ يَوْمًا فِي جَمَاعَةٍ يُدْرِكُ التَّكْبِيْرَةَ الْاُوْلٰى كُتِبَ لَهُ بَرَاءَتَانِ بَرَاءَةٌ مِّنَ النَّارِ وَبَرَاءَةٌ مِّنَ النِّفَاقِ.(ترمذی ص۶۲)

**ترجمه** حضرت انس ابن مالك ﷜ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ وفرمايل کوم سړی چه څلويښت ورځې د جماعت سره مونځ وکړو ، په داسې شان چه تکبير اولی ترينه فوت نه شو . نو دده دپاره دوه قسمه برائتونه ليکلې کيږی ، يو د دوزخ د اور نه برائت او دويم د نفاق (منافقت) نه برائت ورته ليکلې کيږی

**مسئله** :- که چا د ماسپښين د مونځ يو رکعت کړې وی او بيا اقامت وشو ، او جماعت ودريدلو نو دا سړې به يوبل رکعت د رومبی سره يوځای کړی ، دې د پاره چه دې رومبې رکعت باطل نه کړی ، او دجماعت سره به شريك شی او د جمعې د مونځ فضيلت به حاصل کړی

او که د رومبی رکعت سجده يې نه وی کړې . نو هغه وخت دې هغه ختم کړی ، او دامام سره دې

په جماعت کښې شريك شی ، او كه درې ركعته د ماسپښين د مونځ يې كړې وی نو هغه دې پوره كړی ، كله چه د مونځ اكثره حصه اداء شوی وی نو بيا د هغې په ماتولو كښې به هيڅ فائده نه وی ، په خلاف ددې كچيرې د دريم ركعت سجده يې نه وی كړې ، نو بيا دې هم هغه ختم كړی نو د جماعت ثواب به هغه ته وركړل شی او دا دوه ركعته به نفل شی (جامع الصغير ص ۱۲ هدايه ص ۱۰۰ ج ۱، شرح نقايه ص ۱۰۷)

**مسئله** :- كه چيرې يو سړی د سحر د مونځ يو ركعت ادا كړو او بيا جماعت شروع شو ، نو هغه دې قطع كړی او جماعت كښې دې شريك شی (جامع صغير ص ۱۲، هدايه ص ۱۰۰ ج ۱)

عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ صَلَاةُ الْجَمَاعَةِ تَفْضُلُ صَلَاةَ الْفَذِّ بِسَبْعٍ وَّعِشْرِيْنَ دَرَجَةً . (بخاری ص ۸۹ ج ۱، مسلم ص ۲۳۱ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت عبد الله بن عمر ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ وفرمايل چه جماعت سره مونځ كول د ځان له مونځ كولو نه اوه ويشت درجې زيات فضيلت لری .

**مسئله** :- كوم سړې چه په جومات كښې داخل شو ، چه په هغې كښې د مونځ د پاره اذان شوې وی نو بيا هغه سړی د پاره د مونځ اداء كولو نه بغير بهر وتل مكروه دی . (جامع صغير ص ۱۲ هدايه ص ۱۰۰ ج ۱، شرح نقايه ص ۱۰۷ ج ۱).

عَنْ اَبِي الشَّعْثَاءِ قَالَ خَرَجَ رَجُلٌ مِّنَ الْمَسْجِدِ بَعْدَ مَا اُذِّنَ فِيْهِ فَقَالَ اَبُوْهُرَيْرَةَ اَمَّا هٰذَا فَقَدْ عَصٰى اَبَا الْقَاسِمِ ﷺ . (مسلم ص ۲۳۲ ج ۱، ابن ماجه ص ۵۳)

**ترجمه** : حضرت ابو الشعثاء فرمائی چه د اذان كولو نه وروسته يو سړې د جومات نه بهر ووتلو نو حضرت ابو هريره ﷺ وفرمايل چه د غه سړی د حضرت ابو القاسم ﷺ نافرمانی وكړه .

عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ اَمَرَنَا رَسُوْلُ اللهِ اِذَا كُنْتُمْ فِي الْمَسْجِدِ فَنُوْدِيَ بِالصَّلٰوةِ فَلَا يَخْرُجْ اَحَدُكُمْ حَتّٰى يُصَلِّيَ . (مسند احمد ص ج ۲)

**ترجمه** حضرت ابو هريره ﷺ نه روايت دې هغوی وفرمايل چه مونږ ته رسول الله ﷺ حكم راكړې دې چه كله تاسو په جومات كښې موجود يئ او اذان وشو نو په تاسو كښې دې څوك هم بهر نه وځی ترڅو پورې چه تاسو مونځ نه وی كړې .

مگر دا چه ده ته بل ځائ كښې اذان كول ضروروی ، يا جماعت كول ورته ضرور وی ، يا د جماعت اهتمام كول ورته ضرور وی ، يا څه داسې بل كوم ضروری كار پيښ شی نو بيا په دغه حالت كښې د جومات نه بهر وتل مكروه نه دی (جامع صغير ص ۱۲ هدايه ص ۱۰۰ ج ۱، شرح نقايه ص ۱۰۸ ج ۱).

عَنْ عُثْمَانَ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ اَدْرَكَهُ الْاَذَانُ فِي الْمَسْجِدِ ثُمَّ خَرَجَ لَمْ يَخْرُجْ لِحَاجَةٍ وَهُوَ لَا يُرِيْدُ الرَّجْعَةَ فَهُوَ مُنَافِقٌ (ابن ماجه ص ۵۳)

**ترجمه**: حضرت عثمان رضي الله عنه نه روایت دي چه رسول الله ﷺ وفرمایل: په چا باندې چه په جومات کښې اذان وشي، یعنې د اذان په وخت هغه په جومات کښې وي، او بیا هغه د جومات نه بهر ووځي، او د هغه بهر وتل څه د ضروري کار د پاره هم نه وي، او د واپس راتلو څه اراده یې هم نه وي نو هغه سړې منافق دې.

**مسئله**:- د اذان نه وروسته بغیر د مونځ کولو نه د جومات نه بهر وتل په هغه حالت کښې مکروه دي چه هغه وړاندې مونځ نه وي کړې، کچیرې مونځ یې وړاندې کړې وي نو د مؤذن د اقامت له شروع کیدو نه وړاندې هغه تللې شي، لیکن که اقامت شروع شوې وي نو د ماسپښین او د ماسخوتن په وخت دې نه وځي، او جماعت سره دې شریك نفل وکړي، او دخلقو د بدګمانئ نه دې ځان بچ کړي او د نفلو ثوابونه دې هم حاصل کړي (جامع صغیر ص ۱۲ هدایه ص ۱۰۰ ج ۱، شرح نقایه ص ۱۰۸ ج ۱)

په دې سلسله کښې تفصیلي بحث سره له حوالو نه وړاندې تیر شوې دې.

**مسئله**:- او کچیرې د مازدیګر، ماښام، او د سحر وخت وي بیا دهغه جماعت نه وتل مکروه نه دي، ځکه چه ده فریضه ادا کړي، او په دې درې مونځونو کښې سحر او مازدیګر نه وروسته نفل نه کیږي، او د ماښام درې رکعته دي او درې رکعته نفل هم غیر مشروع دي (جامع صغیر ص ۱۲، هدایه ص ۱۰۰ ج ۱، شرح نقایه ص ۱۰۸ ج ۱)

**مسئله**:- کچیرې د سحر مونځ شروع شوې وي او دا سړې جومات ته راشي او دده دوه رکعته سنت نه وي اداء کړې او ورته د یو رکعت کولو یقین وي نو بیا دې د جومات دروازې سره نږدې د سحر سنت اداء کړي اوبیا دې په جماعت کښې شریك شي. (عندالبعض که قعده کښې یې د شریکیدو یقین وي بیا دې هم سنت وکړي) جامع صغیر ص ۱۲، هدایه ص ۱۰۱ ج ۱، شرح نقایه ص ۱۰۷ ج ۱)

پدې باره کښې د صحابه کرامو عمل مبارك موجود دې او د رسول الله ﷺ د مبارکو لرشاداتو نه هم اشاره معلومیږي.

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ جَاءَنَا ابْنُ مَسْعُوْدٍ وَالْاِمَامُ يُصَلِّي الصُّبْحَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ اِلٰى سَارِيَةٍ وَلَمْ يَكُنْ صَلّٰى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ وَفِيْ رِوَايَةٍ عَنْهُ ثُمَّ دَخَلَ يَعْنِيْ فِي الصَّلٰوةِ. (طحاوی ص ۲۲۰ ج ۱، مجمع الزوائد ص ۷۵ ج ۲، بحواله طبرانی فی الکبیر وقال رجاله ثقات)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن ابی موسی رحمه الله فرمایي چه مونږ سره حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه

راغي او هغه وخت امام د سحر مونځ ورکولو، حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ د ستنې سره دوه رکعته (د سحر سنت) اداء کړل او بیا جومات کښې شریك شو.

**عَنْ اَبِي الدَّرْدَاءِ اَنَّهُ كَانَ يَدْخُلُ الْمَسْجِدَ وَالنَّاسُ صُفُوْفٌ فِيْ صَلٰوةِ الْفَجْرِ فَيُصَلِّي الرَّكْعَتَيْنِ فِيْ نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ ثُمَّ يَدْخُلُ مَعَ الْقَوْمِ فِي الصَّلٰوةِ. (طحاوی ص۲۲۰ ج۱)**

**توجمه**: حضرت ابو الدرداء ﷺ نه روایت دې چه هغوی ﷺ به جومات ته داخلیدل او خلق به د سحر مونځ کښې صفونو جوړیدو سره ودریدل، (یعنی مونځ به یې کولو) دوی به د جومات په یو طرف کښې دوه رکعته سنت وکړل اوبیا به له خلقو سره مونځ کښې شریك شو.

**عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ اَنَّهُ جَاءَ اِلَى الْمَسْجِدِ وَالْاِمَامُ فِيْ صَلٰوةِ الْفَجْرِ فَصَلَّى الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ اَنْ يَّلِجَ الْمَسْجِدَ عِنْدَ بَابِ الْمَسْجِدِ. (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۵۱ ج۲)**

**توجمه**: حضرت سعید بن جبیر رحمہ اللہ جومات ته تشریف راوړو، امام مونځ کولو نو هغوی دوه رکعته (د سحر سنت) د جومات دروازې سره وکړل، په جومات کښې د داخلیدو نه وړاندې.

**مسئله :-** د سحر سنت عینِ د امام نه وروستو ادا کول سخت مکروه دی

**مسئله :-** که د سحر سنت پاتې شی، نو د امام محمد په نزد دې دا سنت د نمر راختلو نه وروسته د زوال نه مخکښې اداء کړی او دا خبره صحیح ده او په دې فتوی ده (جامع صغیر ص۱۳ هدایه ص۱۰۱ ج۱ شرح نقایه ص۱۰۸ ج۱)

**عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهُ جَاءَ اِلَى الْقَوْمِ وَهُمْ فِي الصَّلٰوةِ وَلَمْ يَكُنْ صَلَّى الرَّكْعَتَيْنِ فَدَخَلَ مَعَهُمْ ثُمَّ جَلَسَ فِيْ مُصَلَّاهُ فَلَمَّا اَضْحٰى قَامَ فَقَضَاهُمَا (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۵۵ ج۲)**

**توجمه**: حضرت عبدالله بن عمر ﷺ راغې او خلقومونځ کولو هغوی ﷺ د سحرسنت نه وو کړې، نو هغوی راتلو سره فوراً له خلقو سره په مونځ کښې شریك شول، بیا دمونځ نه وروسته هم هغه ځای باندیناست وو چه کله د څاښت وخت شو نو هغوی ﷺ سنت وکړل

**يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ الْقَاسِمَ يَقُوْلُ لَوْلَمْ اُصَلِّهِمَا حَتّٰى اُصَلِّيَ الْفَجْرَ صَلَّيْتُهُمَا بَعْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ. (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۵۵ ج۲)**

**توجمه**: حضرت یحیی بن سعید رحمہ اللہ فرمایی چه ما د حضرت قاسم رحمہ اللہ نه آوریدلی دی هغوی فرمایل کچیرې ما د سحر سنت نه وی کړې، تردې چه د سحر مونځ وکړم. نو زه د نمر راختلو نه پس دا سنت اداء کوم.

لیکن دسحر دسنتو نه علاوه د باقی سنتو قضاء پس د وخت نه نه ... ځکه چه د سحر سنت د

تولو نه زیات مؤکد دی په احادیثو کښې پدې سلسله کښې ډیر تاکید دې (شرح نقایه ص۱۰۸ ج۱)
**مسئله** :-که یو سړی د ماسپښین مونځ کښې یو رکعت د جماعت سره را وګرځولو نو هغه د ماسپښین مونځ د جماعت سره ادا نه کړو لیکن هغه ته به د جماعت فضیلت او اجر ورکولې شی.

(جامع صغیر ص۱۲، هدایه ص۱۰۱ ج۱)
**مسئله** - کوم سړې که په داسې حالت کښې راغې چه امام په رکوع کښې وی هغه سړی تکبیر وویلو او ودریدلو . تردې پورې که امام خپل سر د رکوع نه اوچت کړو نو داسې سړې به دې رکعت لره موندونکې نه وی او که یو سړې د امام نه وړاندې رکوع وکړی او امام هغه په رکوع کښې بیا مومی نو دده رکوع وشوه . اګر چه داسې کول سخت مکروه دی چه د امام نه وړاندې رکوع وکړی، یا د امام نه وړاندې پورته شی، په دې باندې په احادیثو کښې سخت وعید راغلې دې .

# قضاء الفوائت

## (د فوت شوی مونځونو د قضاء ذکر)

که فرض مونځ فوت شی، نو روغ سړی دپاره دهغې قضاء کول ضروری دی،او که د بیمارئ یا د مرګ خطره وی نو وصیت کول پرې ضروری دی . د دې په خاطر چه د هغه په میراث کښې د هغه وارثان فدیه ادا کړی، یا د خپل طرف نه تبرع (احسان) وکړی. بهر حال د فوت شوی مونځونو قضاء ضروری ده لکه څنګه چه رسول الله ﷺ فرمایی .

مَنْ نَامَ عَنْ صَلوٰةٍ اَوْ نَسِيَهَا فَلْيُصَلِّ اِذَا ذَكَرَهَا .(مسلم ص۲۳۸ ج۱، ترمذی ص۴۲)
**ترجمه** کوم سړې چه د مونځ نه ویده پاتې شو یاترې هیر شو . هغه ته هغه وخت کول پکار دی چه کله هغه ته یاد شی .
د فرض مونځونو سره امام ابو حنیفه رحمه الله وتر هم په دې حکم کښې شماری . ځکه چه وتر د امام صاحب په نزد واجب دی او وتر عملاً دفرضو په درجه کښې وی، که پاتې شی نو ددې قضاء به لازمه وی . او نور امامان فرمایی چه وتر د سنتو او نفلو په درجه کښې دی . که پاتې شی نو ددې قضاء نشته (ددې تفصیلی بحث به په وترو کښې راشی انشاء الله)
**مسئله** - که فوت شوی مونځونه د پینځو نه کم وی . نو بیا ددې او د وختی مونځونو په مینځ کښې ترتیب هم فرض دې ، یعنی اول به فوت شوی مونځونه کوی او بیا به وختی مونځونه کوی .

(هدایه ص۱۰۲ ج۱، شرح نقایه ص۱۰۹ ج۱).
عَنْ جَابِرٍ (فِی حَدِيثٍ) فَتَوَضَّأَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَتَوَضَّأْنَا فَصَلّٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ الْعَصْرَ بَعْدَ مَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ نَصَلَّيْنَا

بَعْدَهَا الْمَغْرِبَ (بخاری ص۵۹۰ ج۲، مسلم ص۲۲۷ ج۱، ترمذی ص۵۳)

**ترجمه**: د حضرت جابر ﷺ په روایت کښې دی چه بیا رسول الله ﷺ اودس وکړو، او د مازدیګر مونځ یی د نمر د پریوتلو نه وروسته وکړو، او مونږ ه هم «وکړو»، ددینه وروسته هغوی د ماښام مونځ وکړو، او مونږه هم «وکړو»

عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ ﷺ اِنَّ الْمُشْرِكِيْنَ شَغَلُوْا رَسُوْلَ اللهِ ﷺ عَنْ اَرْبَعِ صَلَوَاتٍ يَوْمَ الْخَنْدَقِ حَتّٰى ذَهَبَ مِنَ اللَّيْلِ مَاشَاءَ اللهُ فَاَمَرَ بِلَالًا فَاَذَّنَ ثُمَّ اَقَامَ فَصَلَّى الْعَصْرَ ثُمَّ اَقَامَ فَصَلَّى الْمَغْرِبَ ثُمَّ اَقَامَ فَصَلَّى الْعِشَاءَ. (ترمذی ص۵۳)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ فرمایی چه مشرکینو رسول الله ﷺ نه د خندق دغزا په ورځ له څلورو مونځونو نه مشغول کړو. تردې چه د شپې څه حصه تیره شوه، بیا رسول الله ﷺ حضرت بلال ﷺ ته حکم وکړو، هغوی اذان وکړو، بیا یی د ماسپښین مونځ وکړو، بیا یی اقامت وکړو نو د مازدیګر مونځ یی وکړو، بیا یی اقامت وکړو نو د ماښام مونځ یی وکړو، او ددینه وروسته یی بیا د ماسخوتن مونځ وکړو.

عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ اِذَا نَسِيَ اَحَدُكُمْ صَلَاتَهٗ فَلَمْ يَذْكُرْهَا اِلَّا وَهُوَ مَعَ الْاِمَامِ فَلْيُصَلِّ مَعَ الْاِمَامِ فَاِذَا فَرَغَ مِنْ صَلَاتِهٖ فَلْيُصَلِّ الصَّلَاةَ الَّتِيْ نَسِيَ ثُمَّ لِيُعِدْ صَلَاتَهُ الَّتِيْ صَلّٰى مَعَ الْاِمَامِ. (دار قطنی ص۴۲۱ ج۱، طحاوی ۲۷۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر ﷺ فرمایی چه کله په تاسو کښې یو سړې مونځ هیر کړی، او هغه ته یاد نشی، مګر په داسې حالت کښې چه هغه له امام سره مونځ کوی، هغه دې د امام سره مونځ وکړی او د هغې نه د فارغیدو نه وروسته دې خپل هیر شوې مونځ وکړی، او بیادې هغه مونځ دوباره را وګرځوی، کوم یی چه امام سره کړې دې.

همدغه رنګې د امام زهری او ابراهیم نخعی نه هم نقل دی چه که د مازدیګر مونځ کولو په وخت ورته رایاد شی چه د ماسپښین مونځ یی نه دې کړې، نو اول دې ماسپښین وکړی، بیا دې مازدیګر دوباره وکړی، په شرط ددې چه په وخت کښې وسعت او ګنجائش وی (طحاوی ص۲۷۰ ج۱، مصنف ابن ابی شیبه ص۶۷ ج۲)

**مسئله**: که فوت شوی مونځونه د پنځونه زیات وی نو بیا د ترتیب لحاظ ساتل ضروری نه دی که زیات مونځونه فوت شوی وو او بیا یی قضا راوړله تر دې چه پنځه یا دینه کم پاتې شول، نو بیا هم د ترتیب لحاظ ساتل لازم دی ځکه چه ترتیب بیا راواپس کیږی، که د وختی مونځ وخت تنګ شی او فوت شوی مونځونه ړومبې کول ممکن نه وی، نو بیا به وختی مونځونه اول وکړې، بیا به دینه وروسته دفوت شوی مونځونو قضائی وکړې، په ډیرو مونځونو فوت کیدو سره ترتیب ساقطیږی (جامع صغیر ص۱۷، هدایه ص۱۰۳ ج۱، شرح نقایه ص۱۱۰ ج۱، کبیری ص۵۳۰)

صاحب د شرح نقایه لیکلی دی چه:

لِاَنَّ الْاِشْتِغَالَ بِالْفَوَائِتِ الْكَثِيْرَةِ يُؤَدِّيْ اِلٰى تَفْوِيْتِ الْوَقْتِيَّةِ. (شرح نقایه ص ۱۱۰ ج ۱)

**ترجمه**: ځکه چه د ډیرو فوت شوی مونځونو په مشغولتیا کښې وختی مونځ فوت کیږی.

علامه حلبی لیکلی دی چه:

وَاَمَّا الْكَثْرَةُ فَلِاَنَّ الْحَرَجَ مَدْفُوْعٌ بِالْكِتَابِ وَعَلَيْهِ الْاِجْمَاعُ اَيْضًا (الی ان قال) وَرُبَّمَا اَفْضَى الْاِشْتِغَالُ بِالتَّرْتِيْبِ حِيْنَئِذٍ اِلٰى تَفْوِيْتِ الْوَقْتِيَّةِ وَهُوَ حَرَامٌ. (کبیری ۵۳۰)

**ترجمه**: مگر د فوت شوی مونځونو ډیروالی سره ځکه ترتیب ساقطیږی چه که دا د وختی مونځ نه وړاندې وکړې شی، نو په دې کښې حرج دې، او حرج په کتاب الله سره مدفوع دې. ددینه علاوه ددې په د ترتیب په ساقط کیدلو باندې اجماع هم ده. او کله داسې کیږی چه ډیر فوت شوی مونځونه که د ترتیب سره اداء کړې شی نو وختی مونځ به فوت شی، او دا حرام دی.

**مسئله**: د حضرت امام ابو حنیفه په نزد که چا دسحر مونځ وکړو. او ده ته یاد وو چه ده وتر نه دی کړی، نو دده مونځ به فاسد وی، اول به وتر کوی او بیا به د سحر مونځ کوی. (جامع صغیر ص ۱۸ هدایه ص ۱۰۳ ج ۱، در مختار ص ۱۰۰ ج ۱).

**مسئله**: فوت شوی مونځونه د پنځو نه د زیاتیدو په وخت، یا د وخت د تنګئ له کبله، یا د نسیان په صورت کښې ترتیب ساقطیږی (هدایه ص ۱۰۳ ج ۱، شرح نقایه ص ۱۰۹ ج ۱، کبیری ص ۵۳۰ در مختار ص ۱۰۰ ج ۱)

عَنِ الْمُسَيِّبِ فِيْ رَجُلٍ نَسِيَ صَلَاةً حَتّٰى دَخَلَ وَقْتُ الْاُخْرٰى فَخَشِيَ اِنْ صَلَّى الصَّلَاةَ الْاُوْلٰى تَفُوْتُهُ هٰذِهٖ قَالَ يُصَلِّيْ هٰذِهِ الصَّلَاةَ الَّتِيْ يَخْشٰى فَوْتَهَا وَلَمْ يُضِيْعْ مَرَّتَيْنِ (مصنف عبد الرزاق ص ۴ ج ۲).

**ترجمه**: حضرت سعید بن المسیب رحمه الله د هغه سړی په باره کښې فرمایی چه مونځ یی هیر کړو، تردې چه د بل مونځ وخت داخل شو، که هغه ړومبی مونځ کوی، نو دا مونځ به دده نه فوت شی، هغه به اول وختی مونځ کوی ځکه چه د هغې د فوت کیدو ویره ده، نو دوه ځله به مونځ نه ضائع کوی، یعنی اول خو یو قضاء شوې دې او س به بل قضاء نه کوی.

**مسئله**: که د هیرې یا د وخت د تنګئ له کبله ترتیب ساقط شوې وی، او د وختی مونځ نه وروسته یی رایاد شی او په وخت کښې فراخی هم وی نو ترتیب به راواپس کړی، اول به قضاء شوې مونځ کوی، بیا به وختی مونځ کوی

علامه حصکفی لیکلې دی (فِي النَّهْرِ وَالسِّرَاجِ عَنِ الدِّرَايَةِ لَوْ سَقَطَ لِلنِّسْيَانِ وَالضِّيْقِ ثُمَّ تَذَكَّرَ اَوِ اتَّسَعَ الْوَقْتُ يَعُوْدُ اِتِّفَاقًا). (در مختار ص ۱۰۱ ج ۱)

**ترجمه**: نهر او سراج په حواله د درایه نقل کړیی دی چه که ترتیب د نسیان یا د وخت د تنګئ په

سبب ساقط شوې وی او بیا رایاد شی او په وخت کښې فراخی هم وی چه هیر شوې مونځ او وختی مو ځ دواړه په کښې وکړی نو بالاتفاق به ترتیب راواپس کیږی.

**مسئله** -که فوت شوی مونځونه زیات وی نو د فوت شوی مونځونو نیت به داسې کوې چه د ټولو نه وړاندې دماسپښین یا مازدیګر وغیره کوم چه زما په ذمه دی هغه اداء کوم. یا آخری سحر یا ماسپښې وغیره چه زما په ذمه دی هغه اداء کوم.

**مسئله** - که کوم مونځ ګزار توبه وکړه نو څومره مونځونه چه ترې په ټول عمر کښې د بالغ کیدو نه وروسته قضاء شوی دی، د ټولو قضاء کول واجب دی ، له توبې سره نه معاف کیږی. البته نه کولو سره یی چه کومه ګناه شوې وه هغه په توبه معاف کیږی، اوس به د هغې قضاء کول ضرور وی

## حدث فی الصلوة

### «په مونځ کښې کښې بې اودسه کیدل»

**مسئله** - که مونځ کونکی ته په مونځ کښې بې اودسی پیښه شی، یعنی د مونځ په داخل کښې بې اودسه شی «اکثر دا غیر اختیاری خبره وی»، نو ددې سړی دپاره بغیر د درنګ تیرولو نه سمدستی اودس کول او په د غه خپل مونځ باندې نور مونځ بناء کول پکار دی، اګر که دا کار د تشهد نه وروسته پیښ شوې وی (هدایه ص۸۲ ج۱، شرح نقایه ص۹۰ ج۱، کبیری ص۴۵۲)

عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ اَصَابَهُ قَيْءٌ اَوْ رُعَافٌ اَوْ قَلَسٌ اَوْ مَذْيٌ فَلْيَنْصَرِفْ فَلْيَتَوَضَّأْ ثُمَّ لِيَبْنِ عَلٰى صَلٰوتِهٖ وَهُوَ فِيْ ذٰلِكَ لَا يَتَكَلَّمُ. (ابن ماجه ص۸۵، وعمدا مصنف عبد الرزاق ص۳۳۱ ج۲، عن ابن جریج عن ابیه مرسلا)

**ترجمه** - حضرت عائشه رضی الله عنها فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل که چاته قئ پیښ شی . یا یی پوزه ماته شی، یا ترې مذی خارجه شی، نو دداسی سړی دپاره واپس کیدل ،او خپل اودس دوباره کول پکار دی ،او بیا دې په خپل ړومبی مونځ بناء وکړی، که ده څه خبرې نه وی کړې

عَنْ عَلِيٍّ قَالَ اِذَا وَجَدَ اَحَدُكُمْ فِيْ بَطْنِهٖ رِزًّا اَوْ قَيْئًا اَوْ رُعَافًا فَلْيَنْصَرِفْ فَلْيَتَوَضَّأْ ثُمَّ لِيَبْنِ عَلٰى صَلَاتِهٖ مَالَمْ يَتَكَلَّمْ. (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۹۵ ج۲) ورجاله هذا السند علی شرط الصحیح الجوهر النقی مع البیهقی ص۲۵۶ ج۱)

**ترجمه** - حضرت علی رضی الله عنه فرمایی چه کله په تاسو کښې څوك په خپله ګیډه کښې خرابی بیا مومی، «یعنی باد یی خارج شی» یا ورته قئ ورشی، یا یی پوزه ماته شی، نو ده ته دوباره اودس کول پکار دی ، او په خپل وړاندینی مونځ دې بناء وکړی، که ده څه خبرې نه وی کړې

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّهٗ كَانَ يَقُوْلُ اِذَا رَعَفَ الرَّجُلُ فِي الصَّلٰوةِ اَوْ ذَرَعَهٗ قَيْءٌ اَوْ وَجَدَ مَذْيًا اَنْ يَنْصَرِفَ فَلْيَتَوَضَّأْ ثُمَّ يُتِمُّ مَا بَقِيَ مِنْ صَلَاتِهٖ مَالَمْ يَتَكَلَّمْ (مصنف عبد الرزاق ص۳۴۰ ج۲، ابن ابی شیبه ص۱۹۳ ج۲)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر ﷺ به فتوی ورکوله چه د چا په مونځ کښې پوزه ماته شوه . یا قئ ورته پیښن شو . یا تري مذی ووتله. نو واپس به شي اودس به وکړی او باقي مونځ به پوره کړی . ترڅو چه ده خبرې نه وی کړې

وَفِي الْاِسْتِذْكَارِ لِابْنِ عَبْدِالْبَرِّ بِنَاءُ الرَّاعِفِ عَلٰى مَا صَلّٰى مَالَمْ يَتَكَلَّمْ ثَبَتَ عَنْ عُمَرَ وَعَلِيٍّ وَابْنِ عُمَرَ وَرُوِيَ عَنْ اَبِي بَكْرٍ وَلَا مُخَالِفَ لَهُمْ مِنَ الصَّحَابَةِ اِلَّا مِسْوَرٌ ﷺ وَحْدَهٗ وَرُوِيَ الْبِنَاءُ اَيْضًا عَنْ جَمَاعَةِ النَّاسِ بِالْحِجَازِ وَالْعِرَاقِ وَالشَّامِ وَلَا اَعْلَمُ فِي ذٰلِكَ بَيْنَهُمْ اِخْتِلَافًا اِلَّا الْحَسَنَ (الجوهر النقی علی البیهقی ص۲۵۶ ج۲)

**ترجمه**: حضرت امام عبدال ... کتاب الاستذکار کښې لیکلی دی چه د پوزې ماتیدونکې سړې به په خپل مونځ بناء کوی تر څو چه هغه خبرې نه وی کړې دا دحضرت عمر . حضرت علی ﷺ حضرت عبد الله بن عمر ﷺ نه ثابت دی، او همدغه رنګې د حضرت ابو بکر صدیق ﷺ نه هم مروی دی، او په دې سلسله کښې صحابه په کرامو کښې څوك هم ددې مخالف نه دی، بغیر د حضرت مسور ﷺ نه ، او همدغه رنګې په دې مونځ باندې بناء د یو جماعت نه نقل دی، عراق ، حجاز او شام والا نه ، او په دوی کښې بغیر د حضرت حسن بصری نه څوك هم مخالف نه دی

همدغه رنګې حضرت سلمان فارسی ﷺ، امام طاؤس رحمة الله، سالم بن عبدالله رحمة الله ابراهیم نخعی رحمة الله، مکحول رحمة الله، سعید بن المسیب رحمة الله، او خلاس رحمة الله نه هم نقل دی . (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۹۵ ج۲، مصنف عبدالرزاق ص۳۴۰).

**مسئله**: فقهاء کرام فرمایی چه د سر نه مونځ کول افضل دی لیکن بناء کول جائز دی (هدایه ص۸۴ ج۱، شرح نقایه ص۹۰ ج۱، کبیری ص۴۵۲).

قَالَ اَبُوْحَنِيْفَةَ وَاَحَبُّ اَنْ يَّتَكَلَّمَ وَيُعِيْدُ الصَّلٰوةَ وَلَا يَبْنِي وَاِنْ بَنٰى اَجْزَاهُ. (کتاب الحجه ص۷۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت امام ابو حنیفه رحمة الله فرمایی چه زما په نزد زیاته ښه خبره داده چه هغه خبرې وکړی او مونځ د سر نه وکړی، بناء دې نه کوی، لیکن که هغه بناء وکړه . نو مونځ یی جائز دې

عَنْ عَلِيِّ بْنِ طَلْقٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا فَسَا اَحَدُكُمْ فِي الصَّلٰوةِ فَلْيَنْصَرِفْ فَلْيَتَوَضَّأْ وَلْيُعِدِ الصَّلٰوةَ .

(ابوداود ص۲۷، ۱۴۳ ج۱)

**ترجمه**: حضرت طلق بن علی ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل کله چه په تاسو کښې د چا نه د مونځ په حالت کښې باد خارج شي، نو هغه ته پکار دی چه واپس شي اودس وکړی او مونځ دوباره وکړی

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ تُجْزِيْهِ وَالْاِسْتِئْنَافُ اَحَبُّ اِلَيَّ (کتاب الحجه ص۷۰ ج۱)

**توجمه**: حضرت ابراهیم همدا فرمایی چه که بناء وکړی نو جائزه ده . البته بهتره داده چه مونځ دوباره وکړی.

**مسئله**:-که د مونځ په دوران کښې یې اودس مات شی نوپه پوزه لاس ایښودلو سره به بهر وځی

عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فَأَحْدَثَ فَلْيُمْسِكْ عَلَى أَنْفِهِ ثُمَّ لِيَنْصَرِفْ.(ابن ماجه ص۸۸)

**توجمه**: ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چه په تاسو کښې څوك په مونځ کښې بې اودسه شي، نو خپله پوزه نیولو سره دې د مونځ نه خارج شی (چه د خلقو له کبله شرم محسوس نه کړی)

**مسئله** - امام ته که داسې حالت کښې بې اودسی پیښه شوه . نو هغه به خپل نائب (خلیفه) مقرر کړی (هدایه ص۸۲ ج۱،شرح نقایه ص۹۰ ج۱، کبیری ص۴۵۳).

**توجمه**: حضرت عمر رضي الله عنه لره ابو لؤلؤ مجوسی په مونځ کښې زخمی کړو، نو هغوی رضي الله عنه حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه خلیفه (نائب) مقرر کړو او هغوی مونځ پوره کړو (بیهقی ص۱۱۳ ج۳)

عَنْ أَبِي رَزِينٍ قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ فَرَعَفَ فَالْتَفَتَ فَأَخَذَ بِيَدِ رَجُلٍ فَقَدَّمَهُ فَصَلَّى وَخَرَجَ عَلِيٌّ رضي الله عنه (سنن الکبری ص۱۱۳ ج۳)

**توجمه**: حضرت ابو رزین فرمایی چه ما په حضرت علی رضي الله عنه پسې مونځ وکړو. د هغوی پوزه ماته شوه ، نو هغوی د یو سړی لاس ونیولو اوهغه یې راوړاندې کړو. هغه مونځ ورکړو، او حضرت علی رضي الله عنه د صفونو نه ووتلو

**په مونځ کښې د خلیفه جوړولو طریقه**:- د خلیفه یا نائب جوړولو طریقه دا ده چه امام دې څوك راکاږی او په خپل ځائ دې ودروی په فقهی روایاتو کښې دا موجود دی. چه خلیفه امام نه شی جوړیدې ، تردې چه هغه نیت ونه کړی (شرح نقایه ص۹۰ ج۱،بحواله معراج الدرایه)

**مسئله**:- که په مونځ ګزار د مونځ په حالت کښې لیونتوب راغې ، یا ورته بې هوشی راغله ، یا ورته مونځ کښې احتلام اوشو، یا قصداً هغه د مونځ په مینځ کښې بې اودسه شو، یا ورته د بولو سخت حاجت وی، یا یې سر زخمی شی، اوددینه وینه را ووتله، یا ده ګمان وکړو، چه زه بې اودسه شوې یم، او دجوماټ نه بهر ووتلو، یایې د صفونو نه تجاوز وکړو، اوبیا ظاهره شوه چه دې په طهارت کښې وو، نو دده مونځ مات شو

که د صفونو څخه نه وی تیر شوې ، یا د جوماټ نه بهر نه وی وتلې ، نو بیا مونځ مات نه دې ، اوهغه بناء کولې شی، او که په قعده کښې کینی ، د تشهد نه وروسته امام عمداً څه فعل د مونځ منافی وکړو، نو دده مونځ به پوره شی، (لیکن په دې صورت کښې به مونځ مکروه تحریمی واجب

الاعاده وی، او د مسبوق مونځ به مات شی . (هدایه ص ۸۲ ج ۱، شرح نقایه ص ۹۰ ج ۱، کبیری ص ۲۵۳).

**مسئله** - که په یو سړی پسې نابالغه ماشوم یا ښځې اقتداء کړې وه، او دې سړی ته په مونځ کښې بې اودسی پیښه شوه، نو دده مونځ به مات شی، ځکه چه ماشوم یا ښځه د نائب کیدلو اهل نه دی . (شرح وقایه ص ۱۶۲ ج ۱).

**مسئله** - یو مقتدی او یو امام دی نو د امام د اودس د ماتیدو سره به مقتدی امام جوړ شی، د هغه خوښه ده که هغه نیت کړې وی او که نه، ځکه چه هغه معین دې او په دې کښې د مونځ حفاظت هم دې . (هدایه ص ۸۵ ج ۱، در مختار ص ۸۸ ج ۱).

**مسئله** - کوم سړې چه د رکوع په حالت کښې بې اودسه شو، نو اودس دې وکړی او بناء دې وکړی، لیکن هغه رکوع به په کښې نه شماری هغه به دوباره کوی.

**مسئله** - که امام د قرائت کولو نه بند شو، او قرائت یی نشو کولې ، او دومره قرائت نه وو شوې چه د هغې سره مونځ جائز کیدې شی، نو هغه ته خپل نائب جوړول جائز دی . (هدایه ص ۸۲ ج ۱، در مختار ص ۸۰ ج ۱، شرح نقایه ص ۱۶۱ ج ۱).

## سنتونه او نوافل

په احادیثو کښې له پنځه وخته مونځونو نه وړمبې یا وروسته د سنتو او نفلو ذکر راغلې دې، دا ډیر اهم دی، بعضې خلق په دې کښې سستی ، تکاسل او بې پرواهی کوی، داخبره صحیح نه ده، د قیامت په ورځ به الله ﷻ د فرضو کمې په نفلو سره پوره کوی.

**د سنتو او نوافلو اهمیت :-**

عَنْ حُرَيْثِ بْنِ قَبِيْصَةَ قَالَ قَدِمْتُ الْمَدِيْنَةَ فَقُلْتُ اللّٰهُمَّ يَسِّرْ لِيْ جَلِيْسًا صَالِحًا قَالَ فَجَلَسْتُ إِلَى أَبِيْ هُرَيْرَةَ فَقُلْتُ إِنِّيْ سَأَلْتُ اللهَ أَنْ يَّرْزُقَنِيْ جَلِيْسًا صَالِحًا فَحَدِّثْنِيْ بِحَدِيْثٍ سَمِعْتَهُ مِنْ رَّسُوْلِ اللهِ ﷺ لَعَلَّ اللهَ أَنْ يَّنْفَعَنِيْ بِهٖ فَقَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ إِنَّ أَوَّلَ مَا يُحَاسَبُ بِهِ الْعَبْدُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مِنْ عَمَلِهٖ صَلَاتُهٗ فَإِنْ صَلُحَتْ فَقَدْ أَفْلَحَ وَأَنْجَحَ وَإِنْ فَسَدَتْ فَقَدْ خَابَ وَخَسِرَ فَإِنِ انْتَقَصَ مِنْ فَرِيْضَتِهٖ شَيْئًا قَالَ الرَّبُّ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى أُنْظُرُوْا هَلْ لِعَبْدِيْ مِنْ تَطَوُّعٍ فَيُكَمَّلُ بِهَا مَا انْتَقَصَ مِنَ الْفَرِيْضَةِ ثُمَّ يَكُوْنُ سَائِرُ أَعْمَالِهٖ عَلٰى ذٰلِكَ (ترمذی ص ۸۰، نسائی ص ۸۱ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت ابن قبیصه بیان کوی چه زه مدینې طیبې ته راغلم، او ما دعا وکړه چه یا الله زما دپاره ښه همنشین (ملګرې) جوړ کړې، دې دپاره چه زه د هغه په مجلس کښې کینم څه فائده راته حاصله شی، نو الله ﷻ زما دپاره د حضرت ابو هریره ﷺ همنشینی او ملګرتیا نصیب کړه، ما

هغوی ته د خپلې دعا ذکر وکړو، او بیا مې ورېل چه تاسو ماته د رسول الله ﷺ څه حدیث بیان کړئ، کوم چه تاسو د رسول الله ﷺ نه آوریدلې وی، شاید الله ﷻ په هغې سره ماته فائده رانصیب کړی. نو هغوی وفرمایل چه ما درسول الله ﷺ د ژبې مبارکې نه دا خبره آوریدلې ده چه هغوی فرمایلی وو: د ټولو نه وړاندې به د قیامت په ورځ د بنده په اعمالو یعنی (عباداتو) کښې چه د څه څیز محاسبه کیږی، هغه مونځ دې، که مونځ درست شو، نو بیشکه هغه به کامیاب شی. او که مونځ خراب شو، نوهغه به ناکام او نامراد وی، بیا که دده په فرضو کښې څه نقص وی، نو رب تعالی به وفرمایی چه وګورئ آیا زما د بنده څه نفل وغیره شته، که چیرې وی نو له دې سره به د ده د فرضو تکمیل وشی، بیا به دده باقی اعمال همدغسې وی

روزمحشر که جان گداز بود اولین پرسش نماز بود

**سنن رواتب یعنی سنت مؤکده :-**

د سنت مؤکده شمیر دولس دې، چه د نورو نفلو نه زیات د اهتمام سره ادا کول یې پکار دی، ددې فضیلت او دشمیر ذکر په صحیح احادیثو کښې راغلې دې:

**عَنْ اُمِّ حَبِيْبَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ ﷺ اَنَّهَا سَمِعَتْ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ مَامِنْ عَبْدٍ مُسْلِمٍ يُصَلِّيْ لِلّٰهِ عَلٰى كُلِّ يَوْمٍ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً تَطَوُّعًا غَيْرَ فَرِيْضَةٍ اِلَّا بَنَى اللهُ لَهٗ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ .(مسلم ص-۲۵۰ ج۱ نسائی ص۲۵۶ ج۱، ترمذی ص۸۷)**

**ترجمه**: ام المؤمنین حضرت ام حبیبه رضی الله عنها نه روایت دې هغوی د رسول الله ﷺ نه دا ارشاد واوریدلو چه هغوی ﷺ وفرمایل: کوم بنده چه د الله ﷻ د رضا دپاره هره ورځ د فرضو نه زیات (سنن رواتب) کوی، نو الله ﷻ به دده دپاره په جنت کښې کور جوړ کړی.

**وَفِيْ رِوَايَةِ عَائِشَةَ رضی الله عنها مَنْ ثَابَرَ عَلٰى ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً (ترمذی ص۸۶ ج۱، نسائی ص۲۵۶ ج۱، ابوداود ص۱۷۸، ابن ماجه ص۸۰).**

**ترجمه**: د ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها په روایت کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم سړې چه هره ورځ دولس رکعته په دوام سره کوی نو ده دپاره به الله ﷻ په جنت کښې کور جوړ کړی

**وَفِيْ رِوَايَةِ اُمِّ حَبِيْبَةَ (موقوعا) اَرْبَعًا قَبْلَ الظُّهْرِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعِشَاءِ وَرَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْفَجْرِ صَلٰوةِ الْغَدَاةِ (ترمذی ص۹۰ وقال له حدیث حسن صحیح)**

**ترجمه**: د ام المؤمنین حضرت ام حبیبه رضی الله عنها په روایت کښې دی چه هغوی فرمایی: هغه دولس رکعته دادی: څلور رکعته د ماسپښین د فرض مونځ نه وړاندې، دوه رکعته د ماسپښین د فرض مونځ نه وروسته، دوه رکعته د ماښام د فرض مونځ نه وروسته، دوه رکعته د ماسخوتن د فرض

مونځ نه وروسته ، اودوه رکعته د سحر د فرض مونځ نه وړاندې .

**د سحر سنت** :- د سحر د مونځ نه وړاندې دوه رکعته مونځ سنت دې، او د ټولو سنتو نه زیات مؤکد دې ، په احادیثو کښې ددې ډیر زیات تاکید راغلې دې

**عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ لَمْ يَكُنْ عَلٰى شَيْءٍ مِّنَ النَّوَافِلِ اَشَدَّ مُعَاهَدَةً مِّنْهُ عَلٰى رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الصُّبْحِ (بخاری ص ۱۵۶ ج ۱، مسلم ص ۲۵۱ ج ۱)**

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی د سحر دوه رکعته سنت د دنیا وما فیها نه بهتر دی .

او په یو روایت کښې دی چه دا دوه رکعته ماته د ټولې دنیا نه زیات محبوب دی .

**عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ لَمْ يَكُنْ عَلٰى شَيْءٍ مِّنَ النَّوَافِلِ اَشَدَّ مُعَاهَدَةً مِّنْهُ عَلٰى رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الصُّبْحِ (بخاری ص ۱۵۶ ج ۱، مسلم ص ۲۵۱ ج ۱)**

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به په نفلوکښې دومره اهتمام دبل څه نه کولو څومره چه یې د سحر د دوو رکعتو د فرضو نه وړاندې کولو .

**عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ لَا تَدَعُوْهُمَا وَاِنْ طَرَدَتْكُمُ الْخَيْلُ. (ابوداود ص ۱۷۹ ج ۱)**

**ترجمه** : حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی : دا مه پریږدئ، اګر چه تاسو آسونه پایمال کړی .

**مسئله** :- چه د سحر سنت پاتې شی، نو هغه به د نمر د راختلو نه وروسته قضائی وکړی

**عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ لَمْ يُصَلِّ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ فَلْيُصَلِّهِمَا بَعْدَ مَا تَطْلُعُ الشَّمْسُ (ترمذی ص ۸۸، قال النیموی اسناده صحیح اثار السنن ص ۳۹ ج ۲)**

**ترجمه** : حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل : چا چه د سحر دوه رکعته سنت ونه کړل نو هغه دې د نمر د راختلو نه وروسته وکړی .

**د ماسپښین سنت** :- د ماسپښین د فرض مونځ نه وړاندې څلور رکعته سنت مؤکد دی ، او دوه رکعته د ماسپښین د فرض مونځ نه وروسته دی . **(هدایه ص ۹۵ ج ۱، شرح نقایه ص ۱۰۰ ج ۱، کبیری ص ۳۸۳)**

**عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ لَا يَدَعُ اَرْبَعًا قَبْلَ الظُّهْرِ وَرَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْغَدَاةِ. (بخاری ص ۱۵۷ ج ۱)**

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ د ماسپښین د فرض مونځ نه وړاندې څلور رکعته او دسحر د فرض مونځ نه وړاندې دوه رکعته کله هم نه وو پریښودلی .

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الشَّقِيْقِ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ عَنْ صَلوٰةِ رَسُوْلِ اللهِ عَنْ تَطَوُّعِهٖ فَقَالَتْ كَانَ يُصَلِّيْ فِيْ بَيْتِيْ قَبْلَ الظُّهْرِ اَرْبَعًا ثُمَّ يَخْرُجُ فَيُصَلِّيْ بِالنَّاسِ ثُمَّ يَدْخُلُ فَيُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ. (مسلم ص ۲۵۲ ج ۱)

**ترجمه** حضرت عبدالله بن شقيق فرمايي چه ما دام المؤمنين حضرت عائشه صديقه ﷺ نه د رسول الله ﷺ د نفل مونځ په باره کښې پوښتنه وکړه ، نو ام المؤمنين وفرمايل : رسول الله ﷺ زما په کور کښې د ماسپښين نه وړاندې څلور رکعته وکړل . بيا يې د کور نه تشريف يوړو ، او خلقوته يې مونځ وکړو ، بيايې کور ته تشريف راوړو ، او دوه رکعته مونځ يې وکړو.

**مسئله** - د ماسپښين په سنتو کښې د څلورو رکعتو په آخر کښې يو ځل سلام ګرځول دی.

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ مَا كَانُوْا يُسَلِّمُوْنَ فِي الْاَرْبَعِ قَبْلَ الظُّهْرِ. (طحاوی ص ۱۹۸ ج ۱)

**ترجمه** حضرت ابراهيم نخعی فرمايي چه سلفو (يعنی صحابه کرامو او تابعينو) به د ماسپښين د مونځ نه وړاندې څلور رکعته سنت په يو سلام سره ادا کول، په مينځ کښې به يې سلام نه ګرځولو

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ النَّخَعِيِّ قَالَ كَانُوْا لَا يَفْصِلُوْنَ بَيْنَ اَرْبَعٍ قَبْلَ الظُّهْرِ بِتَسْلِيْمٍ اِلَّا بِالتَّشَهُّدِ وَلَا اَرْبَعٍ قَبْلَ الْجُمُعَةِ وَلَا بَعْدَهَا (كتاب الحجة ص ۲۷۶ ج ۱، اسناده جيد)

**ترجمه** حضرت ابراهيم نخعی فرمايي چه سلفو به د ماسپښين مونځ نه وړاندې په څلور رکعتو کښې د سلام نه وړاندې فصل او جدايي نه کوله.

**مسئله** - د ماسپښين سنت که پاتې شي نو دفرضو نه وروسته به د هغې قضاء کوی.

عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ اِذَا لَمْ يُصَلِّ اَرْبَعًا قَبْلَ الظُّهْرِ صَلَّاهُنَّ بَعْدَهَا. (ترمذی ص ۱۰ واسناده صحيح)

**ترجمه** حضرت عائشه ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به که د ماسپښين نه وړاندې څلور رکعته ونه کړل، نوهغه به يې د ماسپښين د مونځ نه وروسته کولو (يعنی د څه وجې نه که به يې اول ادا نه کړې شول . نو وروستو به يې ادا کول)

**مسئله** - د ماسپښين نه وروسته دوه رکعته سنت مؤکده او بيا دوه رکعته سنت غير مؤکده دی.

اُمِّ حَبِيْبَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ يَقُوْلُ مَنْ حَافَظَ عَلٰى اَرْبَعِ رَكَعَاتٍ قَبْلَ الظُّهْرِ وَاَرْبَعًا بَعْدَهَا حَرَّمَهُ اللهُ عَلَى النَّارِ. (ابوداود ص ۱۸۰ ج ۱، ترمذی ۸۹) نسائی ۲۵۶ ج ۱۰

**ترجمه** ام المؤمنين حضرت ام حبيبه رضي الله عنها فرمايي چه ما د رسول الله ﷺ نه دا ارشاد آوريدلې دې چه چا د ماسپښين نه وړاندې د څلورو رکعتو حفاظت وکړو (يعنی هميشه يې کوی) او څلور رکعته د ماسپښين نه وروسته. نو الله ﷻ به په ده د دوزخ اور حرام کړی، (پدې کښې د ماسپښين نه وروسته دوه رکعته سنت مؤکده او دوه رکعته سنت غير مؤکده داخل دی)

عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهٗ كَانَ يُصَلِّيْ بَعْدَهَا اَرْبَعًا (مصنف ابن ابی شيبه ص ۲۰۱ ج ۲)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر ﷺ به د ماسپښین د مونځ نه وروسته څلور رکعته کول همدغه رنګ حضرت حسن بصری، سعید بن المسیب، سعید بن جبیر نه هم نقل دی چه هغوی به د ماسپښین نه وروسته څلور رکعته کول، (دوه رکعته مؤکد، او دوه رکعته غیر مؤکد) (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۰۱ ج۲)

**د مازدیګر سنت**: - د مازدیګر د مونځ نه وړاندې څلور رکعته سنت غیر مؤکد دی.

عَنْ عَلِيٍّ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يُصَلِّيْ قَبْلَ الْعَصْرِ اَرْبَعَ رَكَعَاتٍ يَفْصِلُ بَيْنَهُنَّ بِالتَّسْلِيْمِ عَلَى الْمَلٰئِكَةِ الْمُقَرَّبِيْنَ وَمَنْ تَبِعَهُمْ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُؤْمِنِيْنَ. (ترمذی ص۹۶، اسناده حسن)

**ترجمه**: حضرت علی ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ د مازدیګر د مونځ نه وړاندې څلور رکعته کول، او ددې په مینځ کښې به یې سلام کولو په مقربو فرشتو، او په تابعدارو مسلمانانو، او مؤمنانو بندګانو باندې.

امام ترمذی لیکلې دی.

وَاخْتَارَ اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ اَنْ لَّا يُفْصَلَ فِي الْاَرْبَعِ قَبْلَ الْعَصْرِ وَاحْتَجَّ بِهٰذَا الْحَدِيْثِ. (ترمذی ص۸۹)

**ترجمه**: امام ابن اسحاق دا خبره اختیار کړې ده چه د مازدیګر نه وړاندې دڅلورو رکعتو په مینځ کښې به د سلام سره فصل اوجدایی نه شی راتلې، او دلیل یې ددې حدیث نه نیولې دې.

عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ رَحِمَ اللّٰهُ اِمْرَأً صَلّٰى قَبْلَ الْعَصْرِ اَرْبَعًا. (ترمذی ص۸۹، ابوداود ص۱۸۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی الله ﷻ دې په هغه سړی رحم وکړی چا چه د مازدیګر د مونځ نه وړاندې څلور رکعته وکړل.

**مسئله**: - د مازدیګر دمونځ نه وروسته د نمر تر پریوتلو پورې د هر قسم نفلو او سنتو کول ممنوع دی.

عَنْ عَلِيٍّ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يُصَلِّيْ عَلٰى اَثَرِ كُلِّ صَلٰوةٍ رَكْعَتَيْنِ اِلَّا الْفَجْرَ وَالْعَصْرَ. (اثار السنن ۲۳ ج۲، بحواله سند اسحق بن راهویه وقال اسناده صحیح)

**ترجمه**: حضرت علی ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به د هر مونځ نه وروسته دوه رکعته کول، بغیر د سحر او د مازدیګر د مونځ نه.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ شَهِدَ عِنْدِيْ رِجَالٌ مَرْضِيُّوْنَ وَاَرْضَاهُمْ عِنْدِيْ عُمَرُ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَهٰى عَنِ الصَّلٰوةِ بَعْدَ الصُّبْحِ حَتّٰى تَشْرُقَ الشَّمْسُ وَبَعْدَ الْعَصْرِ حَتّٰى تَغْرُبَ الشَّمْسُ. (بخاری ص۸۲ ج۱، مسلم ص۲۷۵ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عباس ﷺ فرمایی چه ماته ښو خلقو شهادت تیر کړو او دې تولو کښې ماته زیات خوښ حضرت عمر ﷺ دې چه رسول الله ﷺ منع فرمایلې ده د سحر د مونځ نه پس د

څه نفلو کولو نه. تردې چه نمر را وخیژی ، او د مازدیګر د مونځ نه پس څه نفلو کولو نه تردې چه نمر پریوزی .

همدغه رنګې حضرت ابو سعید خدری ﷺ حضرت ابو هریره ﷺ حضرت معاویه ﷺ نه روایت دې چه هغوی د سحر نه پس تر نمر ختلو پورې او د مازدیګر نه پس تر نمر پریوتلو پورې د مونځ نه منع فرمایلې ده. (بخاری صه ۸۲ ج ۱، مسلم صه ۲۷۵ ج ۱).

**د ماښام سنت** :- د ماښام نه پس دوه رکعته سنت مؤکده دی .

**عَنْ عَائِشَةَ (مرفوعا) وَكَانَ يُصَلِّيْ بِالنَّاسِ الْمَغْرِبَ ثُمَّ يَدْخُلُ فَيُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ. (مسلم ص ۲۵۲ ج ۱)**

**ترجمه** ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به خلقو ته د ماښام مونځ ورکولو. بیا به یې کور ته تشریف راوړو او دوه رکعته به یې وکړل .

**عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ مَا أُحْصِيْ مَا سَمِعْتُ مِنْ رَّسُوْلِ اللهِ ﷺ يَقْرَأُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ وَفِي الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلٰوةِ الْفَجْرِ بِقُلْ يٰاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ وَقُلْ هُوَ اللهُ اَحَدٌ. (ترمذی ص ۸۹)**

**ترجمه** حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمایی چه ما ډیر ځله د رسول الله ﷺ نه د ماښام نه وروسته په سنتو کښې او د سحر په سنتو کښې **قل یاایها الکفرون** او **قل هوالله احد** ویل آوریدلې دی .

**مسئله** - د ماښام د مونځ نه وروسته دوه رکعته سنت مؤکده او بیا دوه رکعته سنت غیرمؤکده دی

**عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ مَنْ صَلّٰى أَرْبَعًا بَعْدَ الْمَغْرِبِ كَانَ كَالْمُعَقِّبِ غَزْوَةً بَعْدَ غَزْوَةٍ . (مصنف ابن ابی شیبه ص ۱۹۸ ج ۲)**

**ترجمه** حضرت عبدالله بن عمر ﷺ فرمایی چه کوم سړی د ماښام د مونځ نه پس څلور رکعته وکړل ، هغه داسې دی لکه چه یو مضبوطې کړی پسې بله مضبوطه کړی راولی (یعنی یو ښه کار کولو پسې بل ښه کار کونکې)

**وَفِيْ رِوَايَةٍ كَالْمُعَقِّبِ غَزْوَةً بَعْدَ غَزْوَةٍ (شرح السنة ص ۴۶۲ ج ۳، کنز العمال ص ۳۳ ج ۸)**

**ترجمه** په یو بل روایت کښې دی چه غزوې کولو نه پس بله غزا کوونکې .

**د ماښام (د مونځ) نه وړاندې دوه رکعته نفل** :- د ماښام د مونځ نه وړاندې د دوو رکعتو نفلو په باره کښې امام نووی شارح د مسلم لیکلی دی چه

**وَفِي الْمَسْئَلَةِ مَذْهَبَانِ لِلسَّلَفِ فَاسْتَحَبَّهُمَا جَمَاعَةٌ مِّنَ الصَّحَابَةِ وَالتَّابِعِيْنَ وَمِنَ الْمُتَأَخِّرِيْنَ أَحْمَدُ وَإِسْحٰقُ وَلَمْ يَسْتَحِبَّهُمَا أَبُوْبَكْرٍ وَعُمَرُ وَعُثْمَانُ وَعَلِيٌّ وَاٰخَرُوْنَ مِنَ الصَّحَابَةِ رضي الله عنهم وَمَالِكٌ وَأَكْثَرُ الْفُقَهَاءِ.. (نووی مع مسلم ص ۲۷۸ ج ۱)**

**ترجمه** پدې مسئله کښې د سلفو په دوو مذهبونو کښې یوه ډله دې ته مستحب وایی دوی صحابه او تابعین او فقهاء متاخرینو کښې امام احمد او اسحاق دی، دویمه ډله ددې کول مستحب

نه ګرځوی، په دې دله کښې حضرت ابو بکر ﷛، حضرت عمر ﷛، حضرت عثما ﷛ حضرت علی ﷛ «خلفاء راشدین» او نور صحابه ﷛، امام مالك، او نور فقهاء کرام دی. «او احناف کرام هم ددې قائل دی».

کوم خلق چه ددې کولو ته مستحب وایی هغه د لاندینی روایاتو نه استدلال کوی.

سَأَلْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ التَّطَوُّعِ بَعْدَ الْعَصْرِ فَقَالَ كَانَ عُمَرُ يَضْرِبُ الْاَيْدِيَ عَلٰى صَلٰوةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ وَكُنَّا نُصَلِّيْ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ غُرُوْبِ الشَّمْسِ قَبْلَ الصَّلٰوةِ الْمَغْرِبِ فَقُلْتُ لَهٗ اَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ صَلَّاهُمَا قَالَ كَانَ يَرَانَا نُصَلِّيْهِمَا فَلَمْ يَاْمُرْنَا وَيَنْهَنَا. (مسلم ص۲۷۸، ج۱)

**ترجمه**: «د حدیث راوی وایی چه» ما د حضرت انس ﷛ نه پوښتنه وکړه د مازدیګر نه پس د نفلو په باره کښې، نو هغوی ﷛ وفرمایل چه چا به د مازدیګر نه پس نفل کول حضرت عمر ﷛ به هغوئ په لاسونو وهل، انس ﷛ فرمایی چه مونږ به د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د نمر د پریوتلو نه پس د ماښام د مونځ نه وړاندې دوه رکعته کول، «راوی وایی» چه ما د حضرت انس ﷛ نه پوښتنه وکړه چه آیا رسول الله ﷺ به هم داسی کول؟ نو هغوی ﷛ وفرمایل چه رسول الله ﷺ به مونږ لیدلو چه مونږ به مونځ کولو، پس نه خو هغوی ﷺ مونږ ته ددې د کولو حکم راکړې وو، او نه یی ددینه منع کړې وو.

اَنَسٍ قَالَ كُنَّا بِالْمَدِيْنَةِ فَاِذَا اَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ لِصَلٰوةِ الْمَغْرِبِ اِبْتَدَرُوا السَّوَارِيَ فَرَكَعُوا الرَّكْعَتَيْنِ حَتّٰى اَنَّ الرَّجُلَ الْغَرِيْبَ لَيَدْخُلُ الْمَسْجِدَ فَيَحْسِبُ اَنَّ الصَّلٰوةَ قَدْ صُلِّيَتْ مِنْ كَثْرَةِ مَنْ يُّصَلِّيْهِمَا. (مسلم ص۲۷۸، ج۱، بخاری ص۸۷ ج۱)

**ترجمه**: حضرت انس ﷛ فرمایی چه مونږ په مدینه کښې وو، کله چه به مؤذن د ماښام د مونځ دپاره اذان کولو، نو خلقوبه په جلدئ سره د مسجد د ستنو طرف ته وړاندې والې کولو. او دوه رکعته به یی کول. تردې چه که پدې دوران کښې به څوك اجنبی سړې جومات ته داخل شو، نو دا خیال به یی کولو، چه شاید د ماښام مونځ شوې دې، ځکه چه ډیرو خلقو به دا دوه رکعته کول.

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ بَيْنَ كُلِّ اَذَانَيْنِ صَلٰوةٌ قَالَهَا ثَلَاثًا قَالَ فِي الثَّالِثَةِ لِمَنْ شَاءَ وَفِيْ رِوَايَةٍ وَفِي الرَّابِعَةِ لِمَنْ شَاءَ. (مسلم ص۲۷۸ ج۱، بخاری ص۸۷ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن مغفل ﷛ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی: د هرو دوو اذانونو یعنی د اذان او اقامت په مینځ کښې مونځ دې، درې ځله هغوی ﷺ دا وفرمایل، په دریم ځل یی وفرمایل چه که د چا خوښه وی نو هغه دې کوی «یعنی ضروری نه دی» او په یو روایت کښې دی چه هغوی ﷺ دا په څلورم ځل وفرمایل.

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ الْمُزَنِيِّ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ صَلُّوْا قَبْلَ صَلٰوةِ الْمَغْرِبِ قَالَ فِي الثَّالِثَةِ لِمَنْ شَاءَ كَرَاهِيَةَ اَنْ يَتَّخِذَهَا

29

النَّاسُ سُنَّةً. (بخاری ص۱۵۷ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله المزنی ﷛ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: د ماښام د مونځ نه وړاندې دوه رکعته کوئ، بیا یې په دریم ځل وفرمایل: چه څوك غواړی نو کوی دې، دا خبره هغوی د مکروه ګڼلو له کبله وفرمایله چه خلقه چیرته پدې باندې د سنتو خیال ونکړی.

وَقَدْ صَحَّ فِي ابْنِ حِبَّانَ حَدِيثُهُ أَيْضًا أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْمَغْرِبِ. (فتح الملهم ص۲۴۷ ج۲)

**ترجمه**: او په ابن حبان کښې یو حدیث چه صحت ته رسیدلې دې، په هغې کښې راغلی دی چه رسول الله ﷺ دماښام د مونځ نه وړاندې دوه رکعته مونځ وکړو (ظاهره داده چه چیرته یو ځل یا دوه ځل هغوی ﷺ دا دوه رکعته کړی دی).

کوم خلق چه ددې کول صرف مباح ګڼی، سنت یا مستحب یې نه ګڼی، هغوی ددې روایاتو نه استدلال کوی.

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ إِنَّ عِنْدَ كُلِّ أَذَانَيْنِ رَكْعَتَيْنِ مَا خَلَا الْمَغْرِبَ. (دار قطنی ص۲۶۴ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن بریده ﷛ د خپل پلار نه روایت کوی، چه رسول الله ﷺ فرمایی: بیشکه د هر دوو اذانونو په وخت کښې دوه رکعته دی، بغیر د مغرب نه.

حضرت عبدالله بن مغفل ﷛ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ ددې سنت کیدل مکروه ګڼل. (بخاری ص۱۵۷ ج۱).

عَنْ حَمَّادٍ قَالَ سَأَلْتُ إِبْرَاهِيمَ عَنِ الصَّلٰوةِ قَبْلَ الْمَغْرِبِ فَنَهَانِي عَنْهَا وَقَالَ إِنَّ النَّبِيَّ ﷺ وَأَبَابَكْرٍ وَعُمَرَ لَمْ يُصَلُّوهَا. (کتاب الآثار للامام محمد ص۱۲ ج۲)

**ترجمه**: حضرت حماد رحمه الله فرمایی چه ما د ابراهیم نخعی نه د ماښام د مونځ نه وړاندې د نفلو په باره کښې پوښتنه وکړه، هغوی زه منع کړم، او وې فرمایل: بیشکه رسول الله ﷺ، ابو بکر ﷛، او عمر ﷛ دا نه کول.

عَنْ إِبْرَاهِيمَ قَالَ لَمْ يُصَلِّ أَبُوبَكْرٍ وَلَا عُمَرُ وَلَا عُثْمَانُ الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْمَغْرِبِ. (مصنف عبدالرزاق ص۴۳۵ ج۲)

**ترجمه**: امام ابراهیم نخعی فرمایی چه د ماښام نه وړاندې دوه رکعته نفل حضرت ابو بکر صدیق ﷛، عمر فاروق ﷛ عثمان غنی ﷛ نه دی کړي.

عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ كَانَ الْمُهَاجِرُونَ وَلَا يَرْكَعُونَ الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْمَغْرِبِ وَكَانَتِ الْأَنْصَارُ تَرْكَعُ بِهِمَا. (مصنف عبدالرزاق ص۴۳۵ ج۲)

**ترجمه**: حضرت سعید بن المسیب ؓ فرمایي چه مهاجرینو حضراتو ؓ به د ماښام نه وروستو دوه رکعته نفل نه کول، او انصارو حضراتو به کول.

پدې روایاتو باندې نظر اچولو نه دا خبره ثابتیږي چه چونکه دماښام وخت مختصر وی، نو له دې کبله تاخیر پکښې مناسب نه دې.

د نمر پریوتلو نه پس اذان چه کله کیږي، نو دغه وخت دوه رکعته نفل مونځ کول جائز او مباح دی، البته سنت یا مستحب نه دی، له همدې کبله د جمهورو عمل په دې باندې نه دې، البته په کونکی به یې نکیر نه شی کولې، ځکه چه د امام ابو حنیفه او احنافو په نزد صرف غیر اولی دی.

البته دومره خیال به کولې شي، چه نمر پریوزی او اذان هم شوې وی بعضې حضرات چه کله نمر بهر وی نو هغوی مونځ شروع کړی، داسې کول یقینا مکروه دی. **والله اعلم بالصواب**

**د ماسخوتن سنت**:- د ماسخوتن نه وړاندې څلور رکعته نفل دی. (هدایه ص۱۰ ج۱، شرح نقایه ص۱۰۰ ج۱، کبیري ص۳۸۴)

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الْمُغَفَّلِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ ﷺ بَيْنَ كُلِّ اَذَانَيْنِ صَلٰوةٌ بَيْنَ كُلِّ اَذَانَيْنِ صَلٰوةٌ ثُمَّ قَالَ فِي الثَّالِثَةِ لِمَنْ شَاءَ. (بخاري ص۸۷ ج۱، مسلم ص۲۷۸ ج۱).

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن مغفل ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه د هر دوو اذانونو (یعنی اقامت اواذان) په مینځ کښې مونځ دې، د هر دوو اذانونو په مینځ کښې مونځ دې او دریم ځل یې وفرمایل چه څوک غواړی نو ودې کړی (یعنی ضروری نه دی).

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ ؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَا مِنْ صَلَاةٍ مَفْرُوْضَةٍ اِلَّا وَبَيْنَ يَدَيْهِ رَكْعَتَانِ. (نصب الرایه ص۱۴۳ ج۲، بحواله صحیح ابن حبان)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن زبیر ؓ فرمایي چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه داسې فرض مونځ نشته چه د هغې نه وړاندې دوه رکعته نفل مونځ نوی.

عَنْ سَعِيْدِ ابْنِ جُبَيْرٍ كَانُوْا يَسْتَحِبُّوْنَ اَرْبَعَ رَكَعَاتٍ قَبْلَ الْعِشَاءِ. (مختصر قیام اللیل ص۵۸ ج لمحمد بن نصر المروزی)

**ترجمه**: حضرت سعید بن جبیر ؓ نه روایت دې چه پخوانو بزرګانو یعنی صحابه او تابعینو به د ماسخوتن نه وړاندې څلور رکعته مونځ مستحب ګڼلو.

**مسئله**:- دماسخوتن نه وروسته دوه رکعته سنت مؤکده او دوه رکعته سنت غیر مؤکده دی.

عَنْ عَائِشَةَ (مرفوعا) وَيُصَلِّيْ بِالنَّاسِ الْعِشَاءَ وَيَدْخُلُ بَيْتِيْ فَيُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ، (مسلم ص ۲۵۲ ج۱، ومعناه

بخاری ص ۱۵۰ ج ۱، عن عبدالله بن عمر)

**ترجمه**: ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمایی چه رسو ل الله ﷺ به خلقو ته ماسخوتن مونځ ورکړو، او زما کور ته به یی تشریف راوړو، او دوه رکعته مونځ به یی کولو.

عَنْ عَائِشَةَ مَا صَلَّى النَّبِيُّ ﷺ الْعِشَاءَ قَطُّ فَدَخَلَ عَلَيَّ إِلَّا صَلَّى أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ أَوْ سِتَّ رَكَعَاتٍ. (ابوداود ص ۱۸۰ ج ۱، مسند احمد ص ج ۱، اسناده صحیح)

**ترجمه**: ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمایی چه رسو ل الله ﷺ به کله د ماسخوتن مونځ وکړو، او ماکره به یی تشریف راوړو، نو څلور رکعته یا شپږ رکعته مونځ به یی ادا کړو.

**د وترو نه پس نفل**: - د وترو نه پس هم دوه رکعته نفل له صحیح احادیثو نه ثابت دی.

## تحية الوضوء

د اودس نه وروسته د دوه رکعته نفل کولو په احادیثو کښې ډیر فضیلت راغلې دې، او په دې سلسله کښې ډیر احادیث موجود دی.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ لِبِلَالٍ عِنْدَ صَلَاةِ الْفَجْرِ يَا بِلَالُ حَدِّثْنِي بِأَرْجَى عَمَلٍ عَمِلْتَهُ فِي الْإِسْلَامِ فَإِنِّي سَمِعْتُ دُفَّ نَعْلَيْكَ بَيْنَ يَدَيَّ فِي الْجَنَّةِ قَالَ مَا عَمِلْتُ عَمَلًا أَرْجَى عِنْدِي أَنِّي لَمْ أَتَطَهَّرْ طُهُورًا فِي سَاعَةِ لَيْلٍ أَوْ نَهَارٍ إِلَّا صَلَّيْتُ بِذَلِكَ الطُّهُورِ مَا كُتِبَ لِي أَنْ أُصَلِّيَ (بخاری ص ۱۵۴ ج ۱، مسلم ص ۲۹۳ ج ۲).

**ترجمه**: حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ حضرت بلال رضي الله عنه ته د سحر د مونځ په وخت وفرمایل: اې بلال! هغه ستا کوم یو داسې عمل دې په اسلام کښې چه د هغې د قبولیت زیات امید دې. چه ما ستا د پیزار آواز په آسمان کښې د ځان نه وړاندې آوریدلې دې. (هغوی ﷺ په خوب کښې جنت لیدلو سره دغه آواز آوریدلې وو او یا د معراج په واقعه کښې د بیداریٔ په حالت کښې). بلال رضي الله عنه عرض وکړو چه یا رسول الله! نور خو څه عمل داسې نشته. البته داخبره ده چه ما کله هم اودس کړې دې، دشپې یا د ورځې څه وخت هم، نو ددې اودس سره ما ضرور مونځ کړې دې، څومره چه ما دپاره مقدر وو.

عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ (مرفوعا) مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَتَوَضَّأُ فَيُحْسِنُ الْوُضُوءَ ثُمَّ يَقُومُ فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ مُقْبِلٌ عَلَيْهِمَا بِقَلْبِهِ وَوَجْهِهِ إِلَّا وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ. (مسلم. ج: ۱، ص: ۱۲۲، ابوداؤد ج: ۱، ص: ۲۳).

**ترجمه**: حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی کوم مسلمان چه په ښې طریقې سره اودس وکړی، بیا ودریږی اودوه رکعته مونځ وکړی، پداسې طریقې سره چه دده د ظاهر او د زړه توجه په دې دوو رکعتونو وی نوخوك هم چه داسې کوی، د هغه دپاره جنت واجبیږی.

# تحیة المسجد

دا مستحب دی چه کله یو مسلمان جومات ته داخل شی او وخت هم مکروه نه وی، نو دوه رکعته مونځ دې دناستې نه وړاندې اداء کړی، دا مونځ د جومات د تعظیم دپاره دې چه په حقیقت کښې د الله ﷻ تعظیم دې. درمختار ص۹۵ ج۱، کبیری ص۳۸۰ شرح نقایه ص۱۰۰)

عَنْ اَبِیْ قَتَادَةَ السَّلَمِیِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اِذَا دَخَلَ اَحَدُکُمُ الْمَسْجِدَ فَلْیَرْکَعْ رَکْعَتَیْنِ. (بخاری ص۶۳، ج۱، مسلم ص۲۴۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو قتاده ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه کله په تاسو کښې څوک جومات ته داخل شی، نو هغه دې دوه رکعته (د تحیة المسجد مونځ) دناستې نه وړاندې اداء کړی.

**مسئله**:- که اول کینی نو بیا به د هغې مونځ هغه اجر نه وی کوم چه د ناستې نه وړاندې وو.

**مسئله**:- که په وخت کښې تنګی وی او څه سنت یا فرض مونځ اداء کول وی نو د هغه فرض یا سنتو په ضمن کښې به تحیة المسجد اداء شی، د فرضو یا سنتو سره به د تحیة المسجد ثواب هم حاصل شی، ګویا ده د تحیة المسجد نیت نه وی کړې.

**مسئله**:- د ناستې نه پس هم فقهاء کرام فرمایی چه تحیة المسجد نه ساقطیږی، لیکن کیدې شی چه ثواب کښې یې کمې راشی. (درمختار ص۹۵ ج۱)

عَنْ اَبِیْ ذَرٍّ ﷺ قَالَ دَخَلْتُ الْمَسْجِدَ وَاِذَا رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ جَالِسٌ وَحْدَهٗ فَجَلَسْتُ اِلَیْهِ. فَقَالَ یَا اَبَا ذَرٍّ اِنَّ لِلْمَسْجِدِ تَحِیَّةً وَاِنَّ تَحِیَّتَهٗ رَکْعَتَانِ فَقُمْ فَارْکَعْهُمَا قَالَ فَقُمْتُ فَرَکَعْتُهُمَا. (حلیة الاولیاء ص۱۶۶ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو ذر غفاری ﷺ نه روایت دې هغوی فرمایی چه زه جومات ته راغلم، نو ما ولیدل چه رسول الله ﷺ یواځې ناست دې، زه د هغوی ﷺ سره کیناستم، هغوی ﷺ وفرمایل: اې ابوذر! بیشکه د نفلو دپاره هم تحیه یعنی نفل وی. او هغه دوه رکعته وی. پاځه او هغه وکړه، زه پاځیدم او دوه رکعته مې اداء کړل.

**مسئله**:- که باربار جومات ته د تللو ضرورت وی، نو یو ځل تحیة المسجد کول کافی دی.

# صلوة الاشراق

### «د اشراق مونځ»

د اشراق مونځ: د نمر د ختلو نه پس چه کوم نفل مونځ کولې شی. د سحر د مونځ د ادا کولو نه پس که په هغه ځائ ناست پاتې شې، او ذکر، درود شریف، یا استغفار، تلاوت، تسبیح وغیره کښې مشغول وی او دنیاوی خبرې نه کوې. کله چه نمر را وخیژی، او ښې طریقې سره اوچت شی،

(تقریباً لس دولس دقیقې تیرې شی) نو دوه رکعته یا څلور رکعته مونځ دې وکړی . د یو حج او یو عمرې ثواب پدې سره ورکول کیږی .

عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ صَلَّى الصُّبْحَ فِيْ جَمَاعَةٍ ثُمَّ قَعَدَ يَذْكُرُ اللهَ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ كَانَتْ لَهُ كَأَجْرِ حَجَّةٍ وَعُمْرَةٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ تَامَّةٍ تَامَّةٍ تَامَّةٍ . (ترمذی ص ۱۰۹ الترغیب والترهیب ص ۱۶۴ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت انس ؓ فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل : چا چه د سحر مونځ له جماعت سره اداء کړو، بیا کیناستلو او د الله ﷻ ذکر یی وکړو تردې چه نمر را وختلو. بیا هغه دوه رکعته مونځ (د اشراق) اداء کړو، نو هغه ته به د حج او د عمرې پوره پوره ثواب ورکول کیږی .

عَنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ ؓ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ مَنْ صَلَّى الْغَدَاةَ ثُمَّ ذَكَرَ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ أَوْ أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ لَمْ تَمَسَّ جِلْدَهُ النَّارُ . (بیهقی، الترغیب والترهیب ص ۱۶۵ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت حسن بن علی ؓ فرمایی چه ما درسول الله ﷺ نه آوریدلی دی، هغوی ﷺ وفرمایل : کوم سړی چه د سحر مونځ وکړو، بیا یی د الله ﷻ ذکر وکړو دنمر تر ختلو پورې ، بیا هغه دوه رکعته یا څلور رکعته مونځ وکړو، نو د هغه څرمن (بدن) به د دوزخ اور نه مسح کوی .

**مسئله** : که د سحر د مونځ نه وروسته څوك دنیاوی کار کښې مشغول شو، بیا یی د نمر د راختلو نه پس مونځ وکړو نو دا هم صحیح دی، البته دومره ثواب به ورته نه ورکول کیږی کوم چه په وړاندې صورت کښې بیان شوې دې .

**مسئله** :- دنمر د راختلونه پس مونځ د نمر د یوې نیزې د راختلو پورې وروستو کړه .

عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ إِذَا صَلَّى الْفَجْرَ جَلَسَ فِيْ مُصَلَّاهُ حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ حَسَنًا . (مسلم ص ۲۳۳ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت جابربن سمره ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به کله د سحر مونځ کولو، نو د مونځ په ځای باندې به کیناستلو، تردې چه نمر ښه را اوچت شی (بیا به یې مونځ کولو) .

فَإِنَّ الصَّلٰوةَ مَحْضُوْرَةٌ مَشْهُوْدَةٌ إِلٰى طُلُوْعِ الشَّمْسِ فَإِنَّهَا تَطْلُعُ بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّيْطَانِ وَهِيَ سَاعَةُ صَلٰوةِ الْكُفَّارِ فَدَعِ الصَّلٰوةَ حَتّٰى تَرْتَفِعَ قِيْدَ رُمْحٍ وَيَذْهَبَ شُعَاعُهَا ثُمَّ الصَّلٰوةُ مَحْضُوْرَةٌ مَشْهُوْدَةٌ (نسائی ص ۹۷ ج ۱)

**ترجمه** : د حضرت عمرو بن عنبسه ؓ په روایت کښې راځی چه رسول الله ﷺ د مونځ وختونه بیانول او وې وفرمایل : ) چه بیا مونځ د فرشتو د حاضرئ وخت وی ، د نمر ترختلو پورې ، کله چه نمر خیژی، نو هغه د شیطان د ښکرونو په مینځ کښې خیژی. او پدې وخت کښې کافر خلق مونځ او سجده کوی، تاسو پدې وخت کښې مونځ کول پریږدئ، تردې چه نمر د یوې نیزې برابر اوچت شی، او د سرې شعاع ګانې لاړې شی، بیا مونځ کوئ، داوخت د فرشتو دحاضرئ وخت وی .

# صلوة الضحیٰ

**«د څاښت مونځ چه صلوة اوابین هم دي»**

دا تقریباً نه ۹ یا لس ۱۰ بجې کولې شی ، ددې شمیر کم نه کم دوه رکعته او زیات نه زیات دولس رکعته دی .

**عَنْ اَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ صَلَّى الضُّحٰى رَكْعَتَيْنِ لَمْ يُكْتَبْ مِنَ الْغَافِلِيْنَ وَمَنْ صَلّٰى اَرْبَعًا كُتِبَ مِنَ الْعَابِدِيْنَ وَمَنْ صَلّٰى سِتًّا كُفِيَ ذٰلِكَ الْيَوْمَ وَمَنْ صَلّٰى ثَمَانِيًا كَتَبَهُ اللهُ مِنَ الْقَانِتِيْنَ وَمَنْ صَلّٰى ثِنْتَيْ عَشْرَةَ بَنَى اللهُ لَهٗ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ . (مجمع الزوائد ص۲۳۸ ج۲، بحواله طبرانی)**

**ترجمه** : حضرت ابو الدرداء ﷺ نه روایت دې چه رسو ل الله ﷺ فرمایی : چا چه د څاښت دوه رکعته مونځ وکړو ، هغه به غافلینو کښې نه شی لیکلې، او چا چه څلور رکعته وکړل، هغه به عابدینو کښې ولیکلې شی، او چا چه شپږ رکعته وکړل ، هغه به په دغه ورځ دده دپاره (په نفلی عبادت کښې) کفایت وکړی، او چاچه اته رکعته وکړل، هغه به دالله ﷻ په اطاعت ګزارو کښې ولیکلې شی، او چا چه دولس رکعته وکړل، الله ﷻ به د هغه دپاره په جنت کښې کور جوړ کړی .

رسول الله ﷺ به بالعموم څلور رکعته اداء کول، کله به یی زیات هم کول، لکه څنګه چه د ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها د روایت نه معلومیږی . **(مسلم ص۲۴۹ ج۱)**

د نوافلو په سلسله کښې ددې مونځ لوې فضیلت دې .

**عَنْ اَبِي ذَرٍّ ﷺ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ اَنَّهٗ قَالَ يُصْبِحُ عَلٰى كُلِّ سُلَامٰى مِنْ اَحَدِكُمْ صَدَقَةٌ فَكُلُّ تَسْبِيْحَةٍ صَدَقَةٌ وَكُلُّ تَحْمِيْدَةٍ صَدَقَةٌ وَكُلُّ تَهْلِيْلَةٍ صَدَقَةٌ وَكُلُّ تَكْبِيْرَةٍ صَدَقَةٌ وَاَمْرٌ بِالْمَعْرُوْفِ صَدَقَةٌ وَنَهْيٌ عَنِ الْمُنْكَرِ صَدَقَةٌ وَيُجْزِئُ مِنْ ذٰلِكَ رَكْعَتَانِ يَرْكَعُهُمَا مِنَ الضُّحٰى .(مسلم ص۲۵۰ ج۱)**

**ترجمه** : حضرت ابو ذر ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل : په تاسو کښې په هر سړی باندې دهغه د هر اندام او بند په مقابل کښې صدقه ده، کله چه هغه سبا کوی ( یعنی د شپې نه وروسته سلامتیا سره چه کله سبا کوی نو په هر اندام او بند باندې صدقه پرې لازمیږی) نو هره تسبیح صدقه ده او هر تحمید صدقه ده، او هر تهلیل صدقه ده ، (یعنی **سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله** ویل) او هر تکبیر صدقه ده ، امر بالمعروف اونهی عن المنکر صدقه ده، او ددې ټولو په ځای دوه رکعته مونځ د څاښت کفایت کوی .

**عَنْ اَبِي بُرَيْدَةَ يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ فِي الْاِنْسَانِ سِتُّوْنَ وَثَلَاثُمِائَةِ مُفْصَلٍ فَعَلَيْهِ اَنْ يَتَصَدَّقَ عَنْ كُلِّ مُفْصِلٍ مِنْهَا صَدَقَةٌ قَالُوْا فَمَنِ الَّذِيْ يُطِيْقُ ذٰلِكَ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ النُّخَاعَةُ فِي الْمَسْجِدِ تَدْفِنُهَا اَوِ الشَّيْءُ تُنَحِّيْهِ عَنْ**

الْقُرْبِيُّ فَإِنْ لَمْ تَقْدِرْ فَرَكْعَتَانِ الضُّحٰى تُجْزِئُ عَنْكَ (مسند احمد ص ۳۵۳ ج ۵)

**ترجمه**: حضرت ابو بریده ﷺ نه روایت دي چه ما د رسول الله ﷺ نه دا ارشاد واوریدلو چه په انسان کښې درې شپیته بندونه (مفاصل) دي، او دهر بند په بدله کښې په ده باندې صدقه کول ضروری دی، خلقو عرض وکړو، اې د الله ﷺ نبی! ددې څوك طاقت لری، هغوی وفرمایل: که ته په جومات کښې غورځیدلې لاړې دفن (یعنی صفا) کړې او یه لاړه کښې غورځیدلې څیز ازغې وغیره له لارې نه لرې کړې نو دا تولې صدقې دی، او که هیڅ بیا نه مومې نو بیا د څاښت دوه رکعته اداء کړه د ا به ستا دپاره کفایت وکړی.

عَنْ اَبِیْ اُمَامَةَ وَعُتْبَةَ بْنِ عَبْدٍ (مرفوعا) مَنْ صَلَّی الصُّبْحَ فِیْ مَسْجِدِ جَمَاعَةٍ ثُمَّ مَكَثَ حَتّٰی یُسَبِّحَ سُبْحَةَ الضُّحٰی كَانَ لَهٗ كَاَجْرِ حَاجٍّ وَمُعْتَمِرٍ تَامٍّ لَهٗ حَجَّتُهٗ وَعُمْرَتُهٗ. (كنز العمال ص ۹۵، ج ۴، جمع الفوائد، ص ۲۰۸، ج ۱، مطبوعه مدینه منوره بحواله طبرانی كمبير بلدين)

**ترجمه**: دحضرت ابو امامه او عتبه بن عبد روایت دي، چه رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم سړی چه د سحر مونځ د جماعت سره وکړو، بیا هغه کیناستلو، تردې چه ده د څاښت مونځ اداء کړو، نو ده ته به د یو حج او عمرې پوره ثواب ورکول کیږی.

عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا كَانَتْ تُصَلِّی الضُّحٰی ثَمَانَ رَكَعَاتٍ ثُمَّ تَقُوْلُ لَوْ نُشِرَ لِیْ اَبَوَایَ مَا تَرَكْتُهَا (موطا امام مالك ص ۱۳۶)

**ترجمه**: ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه ﷺ به اته رکعته د څاښت مونځ کولو، او بیا به یې فرمایل: که زما مور پلار هم ما دپاره ژوندی کړې شی نو زه به دا نه پریږدم.

**صلوة الاوابین**:- په صحیح احادیثو کښې صلوة ضحی ته صلوة اوابین هم ویلې شوې دې

عَنْ زَيْدِ بْنِ اَرْقَمَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ تِلْكَ صَلٰوةُ الْاَوَّابِیْنَ حِیْنَ تَرْمَضُ الْفِصَالُ. (مسلم ص ۲۵۷، ج ۱)

**ترجمه**: حضرت زید بن ارقم ﷺ نه روایت دي چه رسول الله ﷺ وفرمایل: دا دالله ﷺ طرف ته د رجوع کونکو مونځ دې، ددې وخت هغه دې کله چه د جونګیانو (د اوښانو د بچو) پښې په شګه کښې ګرمیږی، (دا وخت بالعموم د ورځې نه ۹ یا لس ۱۰ بجې وی)

حضرت امام ولی الله لیکلی دی چه:

فَاَوَّلُ النَّهَارِ وَقْتُ ابْتِغَاءِ الرِّزْقِ وَالسَّعْيِ فِي الْمَعِيْشَةِ فَسُنَّ فِيْ ذٰلِكَ الْوَقْتِ صَلٰوةٌ لِيَكُوْنَ تِرْيَاقًا لِسَمِّ الْغَفْلَةِ الطَّارِئَةِ فِيْهِ بِمَنْزِلَةِ مَاسَنَّ النَّبِيُّ ﷺ لِدَاخِلِ السُّوْقِ مِنْ ذِكْرِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ يُحْيِيْ وَيُمِيْتُ وَهُوَ حَيٌّ لَا يَمُوْتُ بِيَدِهِ الْخَيْرُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ. (حجة الله البالغة ص ۱۸ ج ۲)

**ترجمه**: اول وخت د ورځې د رزق د لټولو وخت وی، نوپدې وخت کښې دڅاښت مونځ مقرر

کول دا د غفلت د زهرو تریاق دی، او دا هم دغه شان ده څنګه چه رسول اللهﷺ په بازار کښې د دا خلیدونکو د پاره دا ذکر مقرر کړې دې ، دې دپاره چه هغوی د غفلت ښکار نه شی. ﴿لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ يُحْيِيْ وَيُمِيْتُ وَهُوَ حَيٌّ لَّا يَمُوْتُ بِيَدِهِ الْخَيْرُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ﴾

**ترجمه** : د الله ﷻ نه سیوا بل هیڅوك د عبادت لائق نشته ، هغه یو دې او شریك نلری. د هغه بادشاهی ده، او دهغه د پاره تعریف دې ، هغه ژوندی کول کوی، هغه مړه کول کوی، هغه همیشه دپاره ژوندې دې ، کله پناه په هغه باندې راتلې نه شی، د هغه په قدرت کښې خیر دې، او هغه په هر څیز قادر دې .

**د زوال نه وروسته څلور رکعته نفل** :- د زوال نه وروسته د څلور رکعته نفل کولو هم احادیثو کښې لوئ فضیلت راغلې دې .

عَنْ اَبِيْ اَيُّوْبَ الْاَنْصَارِيِّ ﷺ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يُدْمِنُ اَرْبَعَ رَكْعَاتٍ عِنْدَ زَوَالِ الشَّمْسِ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ ﷺ اِنَّكَ تُدْمِنُ هٰذِهِ الْاَرْبَعَ الرَّكْعَاتِ عِنْدَ زَوَالِ الشَّمْسِ فَقَالَ اِنَّ اَبْوَابَ السَّمَاءِ تُفْتَحُ عِنْدَ زَوَالِ الشَّمْسِ فَلَا تُرْتَجُ حَتّٰى تُصَلِّيَ الظُّهْرُ فَاُحِبُّ اَنْ يَّصْعَدَلِيْ فِيْ تِلْكَ السَّاعَةِ خَيْرٌ قُلْتُ اَفِيْ كُلِّهِنَّ قِرَاءَةٌ قَالَ نَعَمْ قُلْتُ فِيْهِنَّ تَسْلِيْمٌ فَاصِلٌ قَالَ لَا. (ترمذی ص۹۵، وشمائل مع ترمذی ص۵۱۱)

**ترجمه** : حضرت ابو ایوب انصاری ﷺ نه روایت دې چه کله به د زوال په وخت نمر واوړیدلو، نو رسول الله ﷺ به همیشه څلور رکعته نفل ادا کول، حضرت ابو ایوب ﷺ عرض وکړو. چه یا رسول الله ! د نمر د اوړیدلو نه وروسته تاسو څلور رکعته په پابندئ سره ادا کوئ، ددې څه وجه ده ؟ نو رسول الله ﷺ وفرمائیل : د نمر د وزال په وخت د آسمان (د رحمت) دروازې پرانیستې کیږی ، هغه نه بندیږی، تر څو چه د ماسپښین مونځ ونه شی، نو زه دا خوښوم چه پدې وخت کښې زما نیك عملونه پورته وخیژی ، حضرت ابوایوب ﷺ عرض وکړو چه یا رسول الله ! دا راته وفرمایئ چه آیا دې ټولو رکعتونو کښې قرائت دې ؟ هغوی ﷺ وفرمائیل : آو ! په ټولو رکعتونو کښې قرائت دې ، ابو ایوب ﷺ عرض وکړو، آیا په دې کښې په دوو رکعتونو کښې سلام (تسلیم فاصل) شته ؟ هغوی ﷺ وفرمایل چه: نه !

تسلیم فاصل خو هماغه د تشهد سلام دې لیکن دا هغه سلام نه دې چه په هغې سره د مونځ نه انسان خارجیږی ، دا څلور رکعته به په یو سلام سره حضور ﷺ ادا کول، دا پس دزوال نه دی ، د ماسپښین د مونځ نه وړاندې څلور رکعته سنت مؤکده هغه ځان ته دی ، د هغې ذکر په نورو روایاتو کښې دې .

**دماښام نه وروسته شپږ رکعته نفل** :- دماښام د مونځ نه وروسته د شپږ رکعته نفلو هم په

احاديثو کښې ډير فضيلت راغلې دې

عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ صَلّٰى بَعْدَ الْمَغْرِبِ سِتَّ رَكَعَاتٍ لَمْ يَتَكَلَّمْ فِيْمَا بَيْنَهُنَّ بِسُوْءٍ عُدِلْنَ لَهُ بِعِبَادَةِ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ سَنَةً. (ترمذی ص۹۸، ابن ماجه ص۹۸)

**ترجمه**: حضرت ابو هريره ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چه د ماښام نه پس شپږ رکعته مونځ وکړو، او ددې په مينځ کښې هغه څه خرابه خبره د خولې نه ونه ويستله، نو هغه ته به تر دولسو کالو پوره ثواب ورکول کيږي

بعضې خلق دې ته هم صلوة اوابين وايي په دې سلسله کښې هم دصحابه کرامونه آثار موندل کيږي

عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ صَلٰوةُ الْاَوَّابِيْنَ مَا بَيْنَ اَنْ يَلْتَفِتَ اَهْلُ الْمَغْرِبِ اِلٰى اَنْ يَثُوْبَ اِلَى الْعِشَاءِ. (مصنف ابن ابي شيبه ص۱۹۷، ج۲)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن عمر ﷺ نه روايت دې چه هغوی وفرمايل: صلوة اوابين کله چه مونځ گزار دماښام د مونځ نه فارغ شی، نو ددې وخت نه واخله تر هغه وخته پورې دی تر کومه پورې چه د ماسخوتن وخت داخل شوې نوی.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ إِنَّ الْمَلَائِكَةَ لَتَحُفُّ بِالَّذِيْنَ يُصَلُّوْنَ بَيْنَ الْمَغْرِبِ اِلَى الْعِشَاءِ وَهِيَ صَلَاةُ الْاَوَّابِيْنَ. (شرح السنة ص۴۷۴ ج۳، کنز العمال ص۲۵ ج۸ بحواله طبرانی ابن زنجويه)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن عباس ﷺ نه روايت دې چه بيشکه فرشتې هغه خلقو لره په خپله گيره کښې راولی، څوك چه د ماښام او دماسخوتن په مينځ کښې مونځ کوی، اودا هم صلاة اوابين دې.

په لغوی اعتبار سره دې ته هم صلوة اوابين يعنی د الله ﷻ طرف ته رجوع کونکې مونځ ويلې شی، ليکن حقيقی صلوة اوابين هغه د څاښت مونځ دې

**سفر ته د تللو يا دسفر نه د واپس کيدلو مونځ**:- سفر ته دتللو په وخت او دسفرنه دواپسئ په وخت مونځ کول مستحب دی.

عَنِ الْمُطْعِمِ بْنِ مِقْدَامٍ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَا خَلَفَ عَبْدٌ عَلٰى اَهْلِهِ اَفْضَلَ مِنْ رَكْعَتَيْنِ يَرْكَعُهُمَا عِنْدَهُمْ حِيْنَ يُرِيْدُ السَّفَرَ. (مصنف ابن ابي شيبه ص۸۱ ج۲)

ترجمه. حضرت مطعم بن مقدام نه روايت دې چه رسول الله ﷺ وفرمايل: څوك د خپل کور والا سره د دوو رکعتونه زيات افضل هيڅ څيز نه شی پريښودې، کله چه هغه د سفر اراده کوی

عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهُ كَانَ اِذَا اَرَادَ اَنْ يَخْرُجَ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَصَلّٰى. (مصنف ابن ابي شيبه ص۸۱ ج۲)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن عمر ﷺ نه روايت دې چه کله به هغه په سفر تللو، نو جومات ته به

تللو او مونځ به یې کولو. «دوه رکعته، جومات ته تلل ضروري نه دي کور کښې یې هم کولې شي».

عَنْ أَنَسٍ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا نَزَلَ مَنْزِلًا لَمْ يَرْتَحِلْ حَتّٰى يُوَدِّعَهُ بِرَكْعَتَيْنِ. (مجمع الزوائد ص ۲۸۳ ج ۲، جمع الفوائد ص ۳۱۱ ج ۱، بحواله موصلي بزاز طبراني في الاوسط وللكبير نحوه عن فضالة بن عبيد وزاده ودخل بيته (جمع الفوائد ص ۳۱۱ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت انس ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به کله په یو منزل کوز شو، نو د هغه ځائ نه به یې ترهغه وخته کوچ نه کولو ترڅو چه به یې هغه ځائ ته په دوه رکعته مونځ سره وداع نه وه کړې. د طبراني په روایت کښې دمنزل سره د کور هم ذکر دې، یعنی کله چه به هغوی د سفر نه کور کښې داخل شو، نو بیا به یې هم دوه رکعته کول.

عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ ﷺ فَقَالَ يَارَسُوْلَ اللهِ إِنِّي أُرِيْدُ أَنْ أَخْرُجَ إِلَى الْبَحْرَيْنِ فِي تِجَارَةٍ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ صَلِّ رَكْعَتَيْنِ. (مجمع الزوائد ص ۲۸۳ ج ۲، بحواله طبراني في الكبير ورجاله ثقات.)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ نه روایت دې، چه یو سړې رسول الله ﷺ ته راغې، او عرض یې وکړو چه یا رسولالله! زه اراده لرم چه د تجارت د پاره د بحرین سفر وکړم، نو رسول الله ﷺ وفرمایل: د سفر نه وړاندې دوه رکعته مونځ وکړه.

عَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ لَا يَقْدِمُ مِنْ سَفَرٍ إِلَّا نَهَارًا فِي الضُّحٰى فَإِذَا قَدِمَ بَدَأَ بِالْمَسْجِدِ فَصَلّٰى فِيْهِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ جَلَسَ فِيْهِ. (مسلم ص ۲۴۸ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت کعب بن مالك ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به د سفر نه راتللو د ورځې څاښتې وخت ته نزدې راتللو، چه کله به د سفر نه راغې، نو ړومبې به یې جومات ته تشریف وړلو، او دوه رکعته مونځ به یې کولو، بیا به هلته په جومات کښې کیناستلو.

عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ (مرفوعا) إِذَا دَخَلْتَ مَنْزِلَكَ فَصَلِّ رَكْعَتَيْنِ تَمْنَعَانِكَ مَدْخَلَ السُّوْءِ وَإِذَا خَرَجْتَ مِنْ مَنْزِلِكَ فَصَلِّ رَكْعَتَيْنِ تَمْنَعَانِكَ مَخْرَجَ السُّوْءِ. (مجمع الزوائد ص ۲۸۳ ج ۲، جمع الفوائد ص ۳۱۱ ج ۱، بحواله مسند بزار)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چه تاسو د سفر نه واپس راشئ، او خپل کور ته داخل شئ، نو اول دوه رکعته مونځ وکړئ، دا به تاسو د بدو داخلیدونه بند کړي، او کله چه په سفر د تللو اراده کوئ، نو دوه رکعته مونځ کوئ، دا به تاسو د بهر تللو د بدئ نه بند اومحفوظ کړي.

# صلوة الحاجـة

**«د څه حاجت په وخت مونځ کول»**

د څه ضرورت پیښیدلو په وخت مونځ کول، رسول الله ﷺ ددې ترغیب هم ورکړې دې.

**عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ اَبِي اَوْفٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ كَانَ لَهُ اِلَى اللهِ حَاجَةٌ اَوْ اِلٰى اَحَدٍ مِّنْ بَنِيْ اٰدَمَ فَلْيَتَوَضَّأْ وَلْيُحْسِنِ الْوُضُوْءَ ثُمَّ لِيُصَلِّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ لِيُثْنِ عَلَى اللهِ وَلِيُصَلِّ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ ثُمَّ لِيَقُلْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ الْحَلِيْمُ الْكَرِيْمُ سُبْحَانَ اللهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ اَسْاَلُكَ مُوْجِبَاتِ رَحْمَتِكَ وَعَزَائِمَ مَغْفِرَتِكَ وَالْغَنِيْمَةَ مِنْ كُلِّ بِرٍّ وَالسَّلَامَةَ مِنْ كُلِّ اِثْمٍ لَا تَدَعْ لِيْ ذَنْبًا اِلَّا غَفَرْتَهُ وَلَا هَمًّا اِلَّا فَرَّجْتَهُ وَلَا حَاجَةً هِيَ لَكَ رِضًا اِلَّا قَضَيْتَهَا يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ. (ترمذی ص۹۵، ابن ماجه ص۹۸).**

**ترجمه:** حضرت عبد الله بن ابی اوفی ﷺ فرمایي چه رسول الله ﷺ وفرمایل: چاته چه څه ضرورت وی، برابره خبره ده که هغه ضرورت اوحاجت الله ﷻ ته وی یا په مخلوق کښې چاته وی. نو هغه دې اودس وکړی، او ښه اودس دې وکړی، بیا دې د الله ﷻ ثناء وکړی، نبی کریم ﷺ باندې دې درود ووایی. او بیا دې په دغه کلماتو سره دعاء وکړی: **((لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ الْحَلِيْمُ الْكَرِيْمُ سُبْحَانَ اللهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ اَسْاَلُكَ مُوْجِبَاتِ رَحْمَتِكَ وَعَزَائِمَ مَغْفِرَتِكَ وَالْغَنِيْمَةَ مِنْ كُلِّ بِرٍّ وَالسَّلَامَةَ مِنْ كُلِّ اِثْمٍ لَا تَدَعْ لِيْ ذَنْبًا اِلَّا غَفَرْتَهُ وَلَا هَمًّا اِلَّا فَرَّجْتَهُ وَلَا حَاجَةً هِيَ لَكَ رِضًا اِلَّا قَضَيْتَهَا يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ)).**

**ترجمه:** له الله پاك نه سیوا بل معبود نشته هغه الله حلیم «بردبار» او کریم «مهربان» ذات دې، پاکی ده هغه الله لره چه هغه د لوئ عرش رب دې، ثناء او صفت دې الله لره چه هغه پالونکې د مخلوقاتو دې. یا الله زه له تا نه ستا د رحمت واجب کوونکې خبرې غواړم، او ستا د بخشش مضبوطې خبرې طلب کوم، اوغنیمت له هرې نیکی نه او سلامتی له هرې ګناه نه. مه پریږده زما هیڅ ګنا مګر هغه وبښه اونه هیڅ اندیښنه مګر هغه لرې کړه، اونه داسې حاجت چه په هغې کښې ستا رضاء وی مګر هغه راته پوره کړه! اې د رحم کوونکو رحم کوونکیه!

حضرت عثمان بن حنیف ﷺ نه روایت دې چه د نابینا سړی په واقعه کښې نبی کریم ﷺ وفرمایل:

**اِئْتِ الْمِيْضَاةَ فَتَوَضَّأْ ثُمَّ صَلِّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ ادْعُ بِهٰذِهِ الدَّعَوَاتِ: اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ وَاَتَوَسَّلُ اِلَيْكَ بِنَبِيِّنَا مُحَمَّدٍ ﷺ نَبِيِّ الرَّحْمَةِ يَا مُحَمَّدُ اِنِّيْ اَتَوَجَّهُ بِكَ اِلٰى رَبِّيْ فَيَقْضِيْ لِيْ حَاجَتِيْ. (مجمع الفوائد ص۳۰۹ ج۱، بحواله طبرانی کبیر مجمع الزوائد ص۲۷۹ ج۲، ابن ماجه ص۹۹، ترمذی ص۵۱۵)**

**ترجمه**: بیا ته د اودس ځائ ته لاړ شه اودس وکړه . بیا دوه رکعته مونځ وکړه بیا پدې الفاظو سره دعا وکړه : «اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُكَ وَاَتَوَسَّلُ اِلَیْكَ بِنَبِیِّنَا مُحَمَّدٍ ﷺ نَبِیِّ الرَّحْمَةِ یَا مُحَمَّدُ اِنِّیْ اَتَوَجَّهُ بِكَ اِلٰی رَبِّیْ فَیَقْضِیْ لِیْ حَاجَتِیْ».

**ترجمه**: یا الله ﷻ ! زه ستانه سوال کوم او ستا طرف ته وسیله نیسم د خپل نبی محمد ﷺ چه د رحمت نبی دې، اې محمده ! زه تا خپل رب طرف ته متوجه کوم ،یعنی سفارشی دې جوړوم ، دې دپاره چه الله ﷻ زما حاجت پوره کړی.

عَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِیَّ ﷺ قَالَ یَا عَلِیُّ اَلَا اُعَلِّمُكَ دُعَاءً اِذَا اَصَابَكَ غَمٌّ اَوْ هَمٌّ تَدْعُوْ بِهٖ رَبَّكَ فَیُسْتَجَابُ لَكَ بِاِذْنِ اللهِ وَیُفَرِّجُ عَنْكَ تَوَضَّأْ وَصَلِّ رَكْعَتَیْنِ وَاحْمِدِ اللهَ وَاَثْنِ عَلَیْهِ وَصَلِّ عَلٰی نَبِیِّكَ وَاسْتَغْفِرْ لِنَفْسِكَ وَلِلْمُؤْمِنِیْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ ثُمَّ قُلِ اللّٰهُمَّ اَنْتَ تَحْكُمُ بَیْنَ عِبَادِكَ فِیْمَا كَانُوْا فِیْهِ یَخْتَلِفُوْنَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ الْعَلِیُّ الْعَظِیْمُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ الْحَلِیْمُ الْكَرِیْمُ سُبْحَانَ اللهِ رَبِّ السَّمٰوٰتِ السَّبْعِ وَرَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِیْمِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ اَللّٰهُمَّ كَاشِفَ الْغَمِّ مُفَرِّجَ الْهَمِّ مُجِیْبَ دَعْوَةِ الْمُضْطَرِّیْنَ اِذَا دَعَوْكَ رَحْمٰنَ الدُّنْیَا وَالْاٰخِرَةِ وَرَحِیْمَهُمَا فَارْحَمْنِیْ فِیْ حَاجَتِیْ هٰذِهٖ بِقَضَائِهَا وَنَجَاحِهَا رَحْمَةً تُغْنِیْنِیْ بِهَا عَنْ رَحْمَةِ مَنْ سِوَاكَ. (الترغیب والترهیب ص ۲۲۳، ج ۱، بحواله صبهانی)

**ترجمه**: حضرت انس ﷺ نه روایت دی چه رسول الله ﷺ حضرت علی ﷺ ته وفرمایل : اې علی ! آیا زه تاته هغه دعا ونه ښایم ، کله چه تاته څه غم پیښ شی. نود خپل پروردګار په وړاندې دا دعاء کوه . د الله ﷻ په حکم به هغه دعا مستجابه وی ، او ستانه به الله ﷻ هغه پریشانی لرې کړی ، ته اودس وکړه ، او بیا دوه رکعته مونځ وکړه ، او دالله ﷻ حمد اوثناء وکړه. او په نبی کریم ﷺ باندې درود ووایه ،او خپل ځان دپاره او ټولو مؤمنانو سړیو او ښځو د پاره مغفرت وغواړه، او بیا ته دا دعاء ووایه: «اَللّٰهُمَّ اَنْتَ تَحْكُمُ بَیْنَ عِبَادِكَ فِیْمَا كَانُوْا فِیْهِ یَخْتَلِفُوْنَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ الْعَلِیُّ الْعَظِیْمُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ الْحَلِیْمُ الْكَرِیْمُ سُبْحَانَ اللهِ رَبِّ السَّمٰوٰتِ السَّبْعِ وَرَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِیْمِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ اَللّٰهُمَّ كَاشِفَ الْغَمِّ مُفَرِّجَ الْهَمِّ مُجِیْبَ دَعْوَةِ الْمُضْطَرِّیْنَ اِذَا دَعَوْكَ رَحْمٰنَ الدُّنْیَا وَالْاٰخِرَةِ وَرَحِیْمَهُمَا فَارْحَمْنِیْ فِیْ حَاجَتِیْ هٰذِهٖ بِقَضَائِهَا وَنَجَاحِهَا رَحْمَةً تُغْنِیْنِیْ بِهَا عَنْ رَحْمَةِ مَنْ سِوَاكَ».

**ترجمه**: یا الله ! ته د خپل بندګانو په مینځ کښې فیصله کوې په هغه خبرو کښې چه هغوئ اختلاف پکښې کوی . له الله پاك څخه پرته بل معبود نشته. هغه اوچت او د لویی خاوند دې له الله پاك نه پرته بل څوك د عبادت لائق نشته، هغه بردبار او کریم ذات دې ، الله پاك دې او د اوه آسمانونو او د لوئ عرش پالونکې دې ، ثناء اوصفت خاص الله لره دی چه دمخلوقاتو پالونکې دې، یا الله ته دغم او اندیښنو لرې کوونکې یې، دمجبورو او فریشانو خلقو د اندیښنو لرې

کوونکې یې کله چه هغوئ تا ته آواز وکړي او له تا نه وغواړي ، د د دنیا او آخرت رحمان او رحیم یې، په ما باندې رحم وکړه ؛ زما دغه حاجت پوره کړه ! او په ما باندې داسې رحمت نازل کړه چه له تاخخه پرته بل چا ته محتاج نشم او له ټولو څخه بې پروا شم.

## د هر مشکل د پاره مونځ

چه څه ویریدونکې حادثه ، مصیبت ، زلزله ، سخته تیاره وغیره راشي یا تندر پریوځي یا طوفان راشي یا بارانونه ډیر شي یا د هیضې وباء ، د طاعون وغیره د څه قسم وباء عامه خوره شي، نو په داسې موقع باندې مونځ کول پکار دي ، او دالله ﷻ په وړاندې مناجات کول پکار دي، د الله ﷻ ارشاد دې چه: ﴿وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ﴾. (البقره ۴۵پ۱)

**ترجمه**: مدد وغواړئ (له الله نه) په مونځ او په صبر سره.

او د رسول الله ﷺ عمل مبارك هم مونږ ته همدا خبره ښایي:

عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا حَزَبَهُ أَمْرٌ صَلّٰى. (ابوداود ص۱۸۷ ج۱، مسند احمد ص۳۸۸ ج۵)

**ترجمه**: حضرت حذیفه ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ ته به کله څه غم یا ناکاره واقعه پیښه شوه نو هغوی ﷺ به مونځ طرف ته رجوع فرمایله.

عَنْ جَابِرٍ (مرفوعا) إِذَا وَقَعَتْ كَبِيرَةٌ أَوْ هَاجَتْ رِيحٌ مُظْلِمَةٌ فَعَلَيْكُمْ بِالتَّكْبِيرِ فَإِنَّهُ يُجَلِّي الْعَجَاجَ الْأَسْوَدَ.

(كنز العمال ص۵۹۳ ج۷، بحواله ابن سني).

**ترجمه**: حضرت جابر ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چه څه لویه واقعه پیښه شي، یا سخته تیاره راشي، نوتاسو په خپل ځان باندې تکبیر (یعنی مونځ) لازم کړئ، بیشکه هغه الله ﷻ به دغه تورتم او ګرد اوغبار لرې کړي.

قَالَ مُحَمَّدٌ فَيَنْبَغِي إِذَا جَاءَ فَزَعٌ مِنْ هٰذِهِ الْأَفْزَاعِ مِنْ زَلْزَلَةٍ أَوْ غَيْرِهِمَا أَنْ يَفْزَعَ (الناس) إِلَى الصَّلَاةِ وَالدُّعَاءِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَجْمَعُوا بِإِمَامٍ. (كتاب الحجة ص۳۲۴ ج۱)

**ترجمه**: حضرت امام محمد فرمایي چه کله د څه قسم ویروونکې څیز راشي، لکه زلزله وغیره نوتاسو ته پکار دي ، چه تاسې سمدستي مونځ طرف ته رجوع وکړئ، او دعا طرف ته، بغیر ددې نه چه امام سره یوځای شئ (یعنی خلق دې په انفرادي طور په مونځ او دعاء کښې مشغول شي).

## د شکر مونځ یا د شکر سجده

د مونځ د سجدې ، سجده تلاوت، او د سجده سهوې نه علاوه یوه سجده دشکر هم ده. پدې باره کښې د فقهاء کرامو اخ امام احمد رحمه الله ، امام شافعي رحمه الله، او د امام

محمد رحمه الله په نزد دا سنت ده، د امام مالك رحمه الله او امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد دا سنت نه ده، دوی فرمايي چه د سجدې نه مراد مونځ دې ، د شکرانې په طور دوه رکعته مونځ کول، مجازاً دې ته سجده شکر وايي ، لکه څنګه چه د خمر (شرابو) اطلاق په انګورو کيږي، همدغه رنګه د سجدې نه مراد مونځ دې .

لکه چه د حضرت عبدالله بن ابی اوفی رضي الله عنه نه روايت دې چه :

أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ صَلَّى يَوْمَ بُشِّرَ بِرَأْسِ أَبِي جَهْلٍ رَكْعَتَيْنِ. (ابن ماجه ص۹۹، دارمی ص۲۸۱ ج۱)

**ترجمه** : رسول الله ﷺ ته چه په کومه ورځ د ابو جهل لعين د سر د پريکيدو خوشخبری راغله ، نو هغوی ﷺ دوه رکعته شکرانه مونځ اداء کړو.

اوکوم خلق چه سجده شکر ته سنت وايي هغوی ددې لاندې رواياتو نه استدلال کوی :

عَنْ أَبِي بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ أَنَّهُ كَانَ إِذَا جَاءَهُ أَمْرُ السُّرُوْرِ أَوْ بُشِّرَ بِهِ خَرَّ سَاجِدًا شَاكِرًا لِلّٰهِ. (ابوداود ص۲۷ ج۲، ابن ماجه ص۱۰۰، دارقطنی ص۴۱۰ ج۱، مستدرك حاكم ۲۷۶ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابو بکر رضي الله عنه فرمايي چه رسول الله ﷺ ته به کله څه د خوشحالئ خبره پيښه شوه، نو هغوی ﷺ به د الله جل جلاله په وړاندې په سجده پريوتل، د الله جل جلاله د شکر ادا کولو دپاره.

عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ أَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ رَأَى رَجُلًا مِنَ النُّغَاشِيِّيْنَ فَخَرَّ سَاجِدًا . دارقطنی ص۴۱۰ ج۱، مستدرك حاكم ۲۷۶ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابو جعفر رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ يو لړزيدونکې (فالج والا) سړې وليدلو ، نو په سجده باندې پريوتلو.

حضرت ابو بکر صديق رضي الله عنه ته چه کله د مسيلمه کذاب د قتل خبر را ورسيدلو، نو هغوی رضي الله عنه سجده دشکر اداء کړه.

حضرت کعب بن مالك رضي الله عنه ته چه کله دخپلې توبې دقبلولو ذکر وشو ، نو سجده دشکر يې ادا کړه

عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ مِنْ مَكَّةَ نُرِيْدُ الْمَدِيْنَةَ فَلَمَّا كُنَّا قَرِيْبًا مِنْ عَزْوَرَاءَ نَزَلَ ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ فَدَعَا اللهَ سَاعَةً ثُمَّ خَرَّ سَاجِدًا فَمَكَثَ طَوِيْلًا ثُمَّ قَامَ فَرَفَعَ يَدَهُ فَدَعَا اللهَ سَاعَةً ثُمَّ خَرَّ سَاجِدًا فَمَكَثَ طَوِيْلًا ثُمَّ قَامَ فَرَفَعَ يَدَيْهِ سَاعَةً ثُمَّ خَرَّ سَاجِدًا ذَكَرَهُ أَحْمَدُ ثَلَاثًا قَالَ إِنِّي سَأَلْتُ رَبِّي وَشَفَعْتُ لِأُمَّتِي فَأَعْطَانِي ثُلُثَ أُمَّتِي فَخَرَرْتُ سَاجِدًا لِرَبِّي شُكْرًا ثُمَّ رَفَعْتُ رَأْسِي فَسَأَلْتُ رَبِّي لِأُمَّتِي فَأَعْطَانِي الثُّلُثَ الْآخِرَ فَخَرَرْتُ سَاجِدًا لِرَبِّي. (ابوداود ص۲۷ ج۱)

**ترجمه** : حضرت سعد رضي الله عنه نه روايت دې هغه فرمايي چه مونږ له رسول الله ﷺ سره د مکې نه ووتلو، او مدينې ته د تللو اراده مو وه ، کله چه مونږ عزوراء مقام ته ورسيدلو ، نو رسول الله ﷺ د

سپرلئ نه راکوز شو، اولاسونه یې پورته کړل، او الله ﷻ نه یې یو ساعت دعاء وغوښتله، بیا هغوی ﷺ په سجده پریوتل تردیره وخته پورې په سجده کښې وو، بیا ودریدلو، اولاسونه یې پورته کړي وو او یو ساعت یې دعاء وغوښتله، بیا په سجده کښې پریوتلو، اوډیر وخته پورې په سجده کښې وو، بیا هغوی ﷺ وفرمایل : ما دخپل رب نه سوال وکړو، او د خپل امت دپاره مې سفارش وکړو، نوماته دریمه حصه راکړې شوه ، (مغفرت یې وفرمایلو) ، نو زه په سجده کښې پریوتلم ، د خپل رب د شکر د اداء کولو د پاره ، بیا ما سر پورته کړو، او دخپل رب نه مې سوال وکړو، نو دریمه حصه امت نور راکړې شو، نو ما سجده د شکر اداء کړه، بیا ما دریم ځل دعا وکړه نو الله ﷻ نوره دریمه حصه هم راکړه، نو زه په سجده کښې پریوتلم د شکر د اداء کولو دپاره.

## د توبې مونځ

حضرت ابو بکر صدیق ﷛ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایي چانه چه څه ګناه وشی، هغه اودس وکړي ، اودوه رکعته مونځ اداء کړي ، او دالله ﷻ نه ښښنه وغواړي ، نو الله ﷻ به هغه معاف کړي. بیا حضور ﷺ دا آیت تلاوت کړو :

(وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً أَوْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللهَ فَاسْتَغْفَرُوا لِذُنُوبِهِمْ وَمَنْ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا اللهُ وَلَمْ يُصِرُّوا عَلَى مَا فَعَلُوا وَهُمْ يَعْلَمُونَ). (ال عمران پ۴، ترمذی ص۳۲، ابوداود ص۲۱۳ ج۱)

**ترجمه** : او هغه خلق چه څه خراب کار وکړي، یا په خپل ځان څه زیاتې وکړي، نو سمدستی الله ﷻ یادوی . بیا د هغه نه د خپلو ګناهونو معافی غواړي ،او څوك ښښلې شی ګناهونه بغیر د الله ﷻ نه . او کوم ګناهونه یې چه کړې وی په هغې ضد نه کوی (یعنی په هغې ټینګ نوی ولاړ) ، او هغوی پوهه وی.

عَنِ الْحَسَنِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَا أَذْنَبَ عَبْدٌ ذَنْبًا ثُمَّ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوْءَ ثُمَّ خَرَجَ إِلَى بَرَازٍ مِنَ الْأَرْضِ فَصَلَّى فِيْهِ رَكْعَتَيْنِ وَاسْتَغْفَرَ اللهَ مِنْ ذٰلِكَ الذَّنْبِ إِلَّا غَفَرَهُ اللهُ. (الترغيب والترهيب ص۲۳۱ ج۱ بحواله بیهقی مرسلا)

**ترجمه** : حضرت حسن بصری ﷫ روایت کوی ، چه رسول الله ﷺ وفرمایل چه د کوم بنده نه ګناه وشی، او بیا هغه په ښې طریقې سره اودس وکړي ، او بهر په څه فراخه ځائ (ځنګل یا صحرا) کښې دوه رکعته مونځ وکړي، او د الله ﷻ نه ددې ښښنه وغواړي . نو الله ﷻ به دې معاف کړي.

حضرت امام ولی الله لیکلی دی چه

وَالْأَصْلُ فِيْهَا أَنَّ الرُّجُوْعَ إِلَى اللهِ لَا سِيَّمَا عَقِيْبَ الذَّنْبِ قَبْلَ أَنْ يَتَرَسَّخَ فِيْ قَلْبِهِ رَيْنُ الذَّنْبِ مُكَفِّرٌ مُزِيْلٌ عَنْهُ السُّوْءَ. (حجة الله البالغة ص۱۹ ج۲)

او اصل په توبه کښې د الله ﷻ طرف ته رجوع ده، د ګناه د کولو نه وروسته ، وړاندې ددینه چه

ددې ګنهګار په زړه کښې دا د ګناه زنګ راسخ او پوخ شی، نو دا توبه دې ګناه لره رژوونکې ده، او ده نه بدی زائله کوونکې ده.

# الصلوة عند القتل

## «د قتل کیدلو په وخت مونځ»

کله چه یو مسلمان وژلې شی، نو دې مقتول د پاره دوه رکعته مونځ کول مستحب دی، لکه چه فقهاء کرامو لیکلی دی:

فَاِذَا ابْتُلِیَ بِهٖ مُسْلِمٌ لِیَسْتَحِبُ اَنْ یُّصَلِّیَ رَکْعَتَیْنِ یَسْتَغْفِرُ بَعْدَهُمَا مِنْ ذُنُوْبِهٖ لِیَکُوْنَ الصَّلٰوةِ وَالْاِسْتِغْفَارُ اٰخِرَ اَعْمَالِهٖ. (طحاوی ص ۲۱۹)

ترجمه: پس کله چه مسلمان پدې (قتل) سره مبتلاء شو، نو ده دپاره مستحب دی چه دوه رکعته مونځ وکړی، اولدې نه وروسته استغفار وکړی، ځکه چه دا د ده آخری عملونه دی.

او د حضرت خبیب ﷺ واقعه په بخاری شریف کښې موجود ده:

فَلَمَّا خَرَجُوْا مِنَ الْحَرَامِ لِیَقْتُلُوْهُ فِی الْحِلِّ قَالَ لَهُمْ خُبَیْبٌ ذَرُوْنِیْ اَرْکَعُ رَکْعَتَیْنِ فَتَرَکُوْهُ فَرَکَعَ رَکْعَتَیْنِ ثُمَّ قَالَ لَوْلَا اَنْ تَظُنُّوْا اَنَّ مَابِیْ جَزَعٌ لِطَوَّلْتُهَا (الی ان قال) فَکَانَ خُبَیْبٌ هُوَ سَنَّ الرَّکْعَتَیْنِ لِکُلِّ امْرِءٍ مُسْلِمٍ قُتِلَ صَبْرًا

(بخاری ص ۴۲۸ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت خبیب ﷺ مشرکینو د حرم نه بهر وویستلو، چه د حِل په ځمکه کښې یې شهید کړی، نو حضرت خبیب ﷺ دوی ته وویل، ما لږ پریږدئ چه زه دوه رکعته مونځ وکړم، نو هغوی پرېښودلو، حضرت خبیب ﷺ دوه رکعته مونځ وکړو، او مشرکینو ته یې وفرمایل: که چیرې تاسو دا خیال نه کولې، چه زما سره د مرګ ویره ده، نو مابه دا مونځ اوږد کړې وو، نو د ټولو نه وړاندې د قتل په وخت دوه رکعته مونځ حضرت خبیب ﷺ طریقه جاری کړه.

د حضرت حجر بن عدی ﷺ واقعه هم د اسماء الرجال په کتابونو کښې موجود ده.

فَلَمَّا قُدِّمَ لِلْقَتْلِ قَالَ دَعُوْنِیْ اُصَلِّیْ رَکْعَتَیْنِ فَصَلَّاهُمَا خَفِیْفَتَیْنِ ثُمَّ قَالَ لَوْلَا اَنْ تَظُنُّوْا بِیْ غَیْرَ الَّذِیْ بِیْ لَاَطَلْتُهُمَا وَاللّٰهِ لَئِنْ کَانَتْ صَلٰوتِیْ لَمْ تَنْفَعْنِیْ فِیْمَا مَضٰی مَا هُمَا بِنَافِعَتِیْ (الاستیعاب مع الاصابه ص ۳۵۶ ج ۱)

**ترجمه**: کله چه هغوی د قتل کولو د پاره بوتللې شو، نو هغوی وفرمایل: ما پریږدئ چه دوه رکعته مونځ وکړم، بیا هغوی ﷺ په مختصره توګه دوه رکعته مونځ وکړو، بیا یې وفرمایل: که دا خبره نه وې چه تاسو به زما په باره کښې د هغه خبرې ګمان وکړئ کوم چه په ما کښې نشته، (یعنی د مرګ نه ویره) نو مابه دا مونځ اوږد کړې وو، په الله قسم! که ماته وړاندینو مونځونو څه فائده نه وی راکړې نو دا هم ماته څه فائده نشې راکولې.

او په اصابه کښې دا هم راغلی دی چه:

عَنْ مُحَمَّدِبْنِ سِيْرِيْنَ اَنَّهُ كَانَ اِذَا سُئِلَ عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ عِنْدَ الْقَتْلِ قَالَ صَلَّاهُمَا خُبَيْبٌ وَحُجْرٌ وَهُمَا فَاضِلَانِ.

(الاصابه ص۳۵۶ ج۱)

**ترجمه**: کله چه له امام محمد بن سيرين نه پوښتنه وکړې شوه چه د مرګ په وخت کوم دوه رکعته مونځ کيږي د هغې په باره کښې مو څه خيال دې؟ نو امام ابن سيرين وفرمايل دا دوه رکعته حضرت خبيب ﷺ او حضرت حجر بن عدی ﷺ کړي دی، او دا دواړه د لوې فضيلت درلودونکی خلق دی

# صلوة الاستخاره

**«د استخارې مونځ»**

امام ولی الله فرمايي چه د جاهليت په وخت کښې به چاته څه حاجت پيښ شو، د سفر يا اخستلو خرڅولو، يا د نکاح وغيره په هکله، نو د غشو سره به يې قسمت معلومولو، دا محض په الله ﷻ باندې دروغ وو، يو غيشي به يې را وه ويستلو په هغې به يې ليکلې وو چه (اَمَرَنِيْ رَبِّيْ) يعنی زما رب ماته حکم کړې دې، او په بل غيشی به دا ليکلی وو چه (نَهَانِيْ رَبِّيْ) يعنی زما رب زه منع کړې يم (له دې کار نه).

نو رسول الله ﷺ د داسې مشرکانه خبرو نه منع وفرمايله، او ددې په بدل کښې يې د استخارې طريقه وښودله. ځکه چه کله چاته څه حاجت پيښ شی او هغه غواړی چه د الله ﷻ د طرف نه ماته علم حاصل شی، او الله ﷻ راته خپله مرضی وښايي او په ما باندې هغه فراخه کړی، او بيا د الله ﷻ دروازه لازمه او کلکه ونيسی، نو په دې کښې هيڅ وخت نه مصرف کيږی چه د الله ﷻ د طرف نه ددې راز د فيضان سلسله شروع شی، او ډيره عظيمه فائده حاصله شی چه انسان د خپل د نفس د مراد نه خالی شی، او دده بهيميت، د ملکيت په وړاندې فنا شی، او ټول په ټوله خپل رُخ او توجه د الله ﷻ طرف ته وګرځی. او داسې شی لکه څنګه چه فرشتې د خپل رب د الهام منتظرې وی، شاه ولی الله فرمايي چه زما په نزد په امورو کښې استخاره مجرب ترياق دې، د مطلوب د تحصيل دپاره، او له فرشتو مشابهت دې، له همدې کبله رسول الله ﷺ ددې دوه رکعته مقرر فرمايلی دی، او دعا يې هم ښودلې ده. (حجة الله البالغة ص۱۹ ج۲).

**د استخارې دعاء**:- ړومبې دوه رکعته نفل کول، بيا ښه يواځې والی سره دا دعا کول.

اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْتَخِيْرُكَ بِعِلْمِكَ وَاَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ وَاَسْئَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيْمِ فَاِنَّكَ تَقْدِرُ وَلَا اَقْدِرُ وَتَعْلَمُ

وَلَا اَعْلَمُ وَاَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ اَللّٰهُمَّ اِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنَّ هٰذَا الْاَمْرَ ...... خَيْرٌ لِّيْ فِيْ دِيْنِيْ وَمَعَاشِيْ وَعَاقِبَةِ اَمْرِيْ اَوْ قَالَ عَاجِلِ اَمْرِيْ وَاٰجِلِهٖ فَاقْدِرْهُ لِيْ وَيَسِّرْهُ لِيْ ثُمَّ بَارِكْ لِيْ فِيْهِ وَاِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنَّ هٰذَا الْاَمْرَ ...... شَرٌّ لِّيْ فِيْ دِيْنِيْ وَمَعَاشِيْ وَعَاقِبَةِ اَمْرِيْ اَوْ قَالَ فِيْ عَاجِلِ اَمْرِيْ وَاٰجِلِهٖ فَاصْرِفْهُ عَنِّيْ وَاقْدِرْ لِيَ الْخَيْرَ حَيْثُ كَانَ ثُمَّ اَرْضِنِيْ بِهٖ قَالَ وَيُسَمِّيْ حَاجَتَهٗ. (بخاری ص۱۵۵ ج۱، ترمذی ص۹۵)

**ترجمه** : یا الله ! ستا د علم او قدرت سره استخاره کوم او له تا نه ستا لوئ فضل غوارم ، بیشکه ته قدرت لرې اوزه قدرت نه لرم، ته پوهیږې اوزه نه پوهیږم، اوته علام الغیوب یې. یا الله ! که ستا په علم کښې دغه خبره زما لپاره ، زما د دین اوژوند لپاره اوزما د آینده اوانجام په لحاظ غوره اوشه وی نو هغه زما دپاره مقدره کړه اوهغه زما دپاره آسانه کړه اوبیا په هغې کښې ما ته برکت واچوه اوکه ستا په علم کښې دغه خبره زما دپاره شر وی اوزما د دین ، ژوند او انجام په لحاظ نو هغه له ما نه وګرځوه اوما هم له هغې نه وګرځوه اوزما لپاره خیر مقدر کړه هرچیرته چه وی اوبیا ما له هغې په هغې باندې راضی کړه . او د «هذا الامر» له لفظ سره به دخپل حاجت ذکر کوی .

**مسئله** :- واده ، کوژده ، سفر او د کاروبار وغیره د پاره استخاره کول پکار دی ، لیکن که د حج د پاره تلل وی نو استخاره به نه کوې ، چه زه لاړ شم اوکه لاړ نشم، بلکه داسې استخاره به کوی چه په فلانئ ورځ لاړ شم اوکه لاړ نشم .

**مسئله** :- که یوه ورځ کښې څه معلوم نشی، او د زړه تردد او شك یې ختم نه شو نو دویمه ورځ بیا دریمه ورځ همدغه رنګې تر اوه ورځو پورې کول پکار دی . انشاء الله د هغه کار بدی یا ښه والې به درته ضرور معلوم شی .

## صلوة التسبيح

په نفلی مونځونو کښې له ټولو نه زیات د صلوة تسبیح لوئ فضیلت دې ، او په حدیث شریف کښې ددې لوئ ثواب او اجر راغلې دې .

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ لِلْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ يَا عَبَّاسُ يَا عَمَّاهُ اَلَا اُعْطِيْكَ اَلَا اَمْنَحُكَ اَلَا اُخْبِرُكَ اَلَا اَفْعَلُ بِكَ عَشْرَ خِصَالٍ اِذَا اَنْتَ فَعَلْتَ غَفَرَ اللّٰهُ لَكَ ذَنْبَكَ اَوَّلَهٗ وَاٰخِرَهٗ قَدِيْمَهٗ وَحَدِيْثَهٗ خَطَاءَهٗ وَعَمْدَهٗ صَغِيْرَهٗ وَكَبِيْرَهٗ سِرَّهٗ وَعَلَانِيَتَهٗ اَنْ تُصَلِّيَ اَرْبَعَ رَكَعَاتٍ تَقْرَءُ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَسُوْرَةً فَاِذَا فَرَغْتَ مِنَ الْقُرْاٰنِ فِيْ اَوَّلِ رَكْعَةٍ وَاَنْتَ قَائِمٌ قُلْتَ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ.

خَمْسَ عَشْرَةَ مَرَّةً ثُمَّ تَرْكَعُ فَتَقُوْلُهَا وَاَنْتَ رَاكِعٌ عَشْرًا ثُمَّ تَرْفَعُ رَاْسَكَ مِنَ الرُّكُوْعِ فَتَقُوْلُهَا عَشْرًا ثُمَّ تَهْوِيْ سَاجِدًا فَتَقُوْلُهَا وَاَنْتَ سَاجِدٌ عَشْرًا ثُمَّ تَرْفَعُ رَاْسَكَ فَتَقُوْلُهَا عَشْرًا فَذٰلِكَ خَمْسٌ وَسَبْعُوْنَ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ تَفْعَلُ ذٰلِكَ

فِيْ أَرْبَعِ رَكْعَاتٍ إِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ تُصَلِّيَهَا فِيْ كُلِّ يَوْمٍ مَرَّةً فَافْعَلْ فَإِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَفِيْ كُلِّ جُمُعَةٍ مَرَّةً فَإِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَفِيْ كُلِّ سَنَةٍ مَرَّةً فَإِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَفِيْ عُمُرِكَ مَرَّةً. (ابوداود ص ۱۸۳، ج ۱، ابن ماجه ص ۹۹، سنن الکبری للبیهقی ص ۵۱، ج ۳، ترمذی ص ۱۰۹ وعن ابی رافع نحوه)

**ترجمه** : حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمایي چه رسول الله ﷺ حضرت عباس رضی الله عنه ته وفرمایل: اې عباس ! اې تره ! آیا زه تاته عطیه اوهدیه درنکړم، آیا زه تاته خبر درنکړم، آیا زه تاته لس خبرې ونکړم، کله چه ته دا کوې نو الله ﷻ به ستا ، اندینی ، وروستنی، پخوانی او نوی ګناهونه او قصداً واړه او لوئ ، پټ او ښکاره ټول ګناهونه معاف کړی ، هغه دا چه څلور رکعته مونځ کوه ، او په هر رکعت کښې سورة فاتحه او یوبل سورة لوله، کله چه د ړومبی رکعت د قراءة نه فارغ شې، نو په ولاړه پنځلس څله (سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر) ووایه . بیا رکوع وکړه په رکوع کښې لس څله دا ووایه بیا د رکوع نه سر پورته کړه ، او لس څله یی ووایه . بیا سجده وکړه او په سجده کښې یی لس څله ووایه ، بیا د سجدې نه پورته شه او لس څله یی ووایه بیا په دویمه سجده کښې یی هم لس څله ووایه، او بیا د سجدې نه سر پورته کړه او لس څله یی ووایه ، دا پنځه اویا څله شول په هر رکعت کښې ، که ته دا مونځ که هره ورځ کولې شې نو کوه یی، او که داسې نه وی نو هره جمعه کښې یی یوځل کوه ، که داسې هم نه شې کولې نو بیا یی په کال کښې یو ځل کوه ، او که دا هم نه شې کولې نو ټول عمر کښې خو یی یو ځل ضرور وکړه .

حضرت عبدالله بن مبارک رحمه الله (شاګرد د امام ابو حنیفه رحمه الله او استاد الاستاد د امام بخاری رحمه الله ) فرمایي چه د (سبحانك اللهم) نه وروستو، او (دالحمد) نه وړاندې پنځلس څله، او د سورة نه پس لس څله ویل پکار دی . (ترمذی ص ۹۶).

حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه به د هرې جمعې په ورځ دا مونځ کولو ، او ابوالجوزاء (تابعی) به هره ورځ د ماسپښین د اذان نه وړاندې دا مونځ کولو ،او ابو عثمان الحیری فرمایي چه څه څیز هم د غمونو او مصیبتونو د دفع کولو د پاره د صلوة تسبیح نه افضل نشته.

**مسئله** :- اکثر ښځې جمع کیږی د جمعې په ورځ صلوة تسبیح له جماعت سره کوی ، دا بدعت دې ، د جماعت سره دا مونځ کول صحیح نه دی ، ځان ، ځان له انفرادی صورت کښې کول یی پکار دی ، د ښځو په شان سړیو ته هم دا مونځ له جماعت سره کول درست نه دی .

**مسئله** :- که په کوم رکن کښې په هیره سره تسبیحات کم وویلې شی ، یا بالکل پاتې شی، نو په بل رکن کښې هغه پاتې شوی تسبیحات هم ووایه ، مثلاً رکوع کښې لس څله تسبیح ویل هیر شو، او په سجده کښې یاد شو، نو په سجده کښې هغه هیر شوی لس تسبیحات هم ولوله. په دې

صورت کښې به په سجده کښې شل تسبیحات لوستل ضرور وی ، گویا یو رکعت کښې پنځه اویا ځله تسبیحات ویل ضروری دی ، او څلور رکعته کښې درې سوه ځله پوره کول پکار دی .
که په څلورو رکعتونو کښې درې سوه ځله تسبیحات وویلې شو نو انشاء الله د صلوة تسبیح ثواب به ورکول کیږی، او که نه نو دا مونځ به نفل شی، صلوة تسبیح به نه وی . (بهشتی زیور)
**مسئله** :- که صلوة تسبیح کښې د څه وجې نه سجده سهوه واجبه شوه نو د سهوې په دواړو سجدو کښې او ددینه پس په قعده کښې تسبیحات نه لوستلې کیږی .

**عَنِ ابْنِ اَبِیْ رِزْمَةَ قَالَ قُلْتُ لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْمُبَارَكِ اِنْ سَهَا فِيْهَا اَيُسَبِّحُ فِيْ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ عَشْرًا عَشْرًا قَالَ لَا اِنَّمَا هِيَ ثَلٰثُ مِائَةِ تَسْبِيْحَةٍ. (ترمذی ص۹۶)**

**ترجمه** : عبدالعزیز ابن ابی رزمه فرمایی چه ما د حضرت عبدالله بن مبارك نه پوښتنه وکړه چه که په صلوة تسبیح کښې سهوه وشی، نو آیا د سهوې په سجدو کښې به لس ځله تسبیح ویلې شی؟ نو هغوی وفرمایل چه سجده سهوه کښې دا تسبیحات نشته، په دې مونځ کښې ټول درې سوه تسبیحات دی .
**مسئله** :- د تسبیحاتو په پاتې کیدو، هیریدو ، او کمیدو باندې سجده سهوه نه واجبیږی.

## صلوة الاستسقاء

### «د باران د غوښتلو د پاره مونځ کول»

عموماً د بارانونو کمې د انسانانو د گناهونو د ډیر والی له کبله کیږی .

**عَنِ ابْنِ عُمَرَ (مرفوعا) لَمْ يَمْنَعُوْا زَكٰوةَ اَمْوَالِهِمْ اِلَّا مَنَعُوا الْقَطْرَ مِنَ السَّمَاءِ وَلَوْلَا الْبَهَائِمُ لَمْ يُمْطَرُوْا. (ابن ماجه ص۲۹۰ باب المعقوبات)**

**ترجمه** : حضرت ابن عمر ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ وفرمایل : کله چه خلق د خپلو مالونو زکوة بند کړی، نو الله ﷻ د آسمان نه د باران څاڅکی بند کړی، او که دا (بې زبانه) څناور نه وای نو د هغوی نه به بالکل باران بند شوې وو .
قحط او خشك سالئ کښې د باران دپاره د خپلو گناهونو نه توبه او استغفار ضروری دې ، لکه څنگه چه د نوح ﷺ په واقعه کښې ذکر دی چه نوح ﷺ وفرمایل :

**(اِسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ اِنَّهٗ كَانَ غَفَّارًا ، يُّرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِّدْرَارًا) . (نوح پ۲۹)**

**ترجمه** : اې خلقو ! د خپل رب نه د خپلو گناهونو ښښنه وغواړئ. هغه به په تاسو د آسمان نه باران وورَوی .
د استسقاء یوخو صورتونه دی : مثلاً د فرض مونځ نه وروسته دعاء او استغفار وکړې شی،

اویا دجمې په خطبه او اجتماعاتو کښې دعاء او استغفار وکړې شی، دا هم د رسول الله ﷺ د عمل مبارك نه ثابت دی، یا دوه رکعته نفل مونځ اداء کړې شی او بیا دعاء وکړې شی، دا هم ثابت دی، امام ابو حنیفه دا دوه رکعتونه سنت نه د ی ګرځولی، البته دا جائز ګنی.

امام نووی شارح د مسلم لیکلی دی: زمونږ اصحاب «شوافع» دا فرمایی چه استسقاء په درې طریقو باندې ده.

۱ - صرف د دعاء سره بغیر د مونځ نه.

۲ - د جمعې په خطبه کښې، یا د فرض مونځ د اداء کولو نه پس د باران د طلب د پاره دعاء وکړې شی، دا د رومبی قسم نه زیات افضل دې چه په دې کښې صرف دعاء وی.

۳ - دا قسم زیات کامل دې په دې کښې دوه رکعته مونځ اول اداء کولې شی، او دمونځ د اداء کولو نه وړاندې په پوره طریقې سره تیاری کیږی، صدقه او خیرات سره، او روژې نیولو سره، او توبې کولو سره، او پوره طور باندې نیکئ ته متوجه کیدو سره، او دلجمعئ سره د الله ﷻ اطاعت طرف ته رغبت کولو سره، او بدئ نه لرې والی اختیارولو سره مضبوط قصد کولې شی، **(نووی مع مسلم ص۲۹۲ ج۱)**.

په صحیح مسلم کښې د رسول الله ﷺ په باره کښې داسې موجود دی چه

**خَرَجَ النَّبِيُّ ﷺ إِلَى الْمُصَلَّى فَاسْتَسْقَى وَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَقَلَبَ رِدَاءَهُ وَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ. (مسلم ص۲۹۲ ج۱)**

**ترجمه**: رسول الله ﷺ د عیدګاه طرف ته ووتلو، او د باران د پاره یی دعا وکړه، او مخ په قبله شو، او هغوی ﷺ خپل څادر مبارك واړولو، او دوه رکعته مونځ «صلوة استسقاء» یی وکړو.

په بل روایت کښې هم دغه شان راغلی دی چه رسول الله ﷺ مخ په قبله شو او خلقو ته یی شا مبارکه وګرځوله، او دعاء یی وکړه، او بیا یی څادر واړولو، او بیا یی دوه رکعته مونځ اداء کړو. **(مسلم ص۲۹۳ ج۱)**.

په دریم روایت کښې داسې راغلی دی چه: «رسول الله ﷺ په دعا کښې خپل لاسونه مبارك ډیر زیات پورته کړل، یعنی د معمول خلاف تردې چه د ترخونو مبارکو سپینوالې یی په نظر راغلو. **(مسلم ص۲۹۳ ج۱)**.

او په څلورم روایت کښې داسې راځی چه رسول الله ﷺ په دعاء کښې لاسونه مبارك سرچپه کړل، یعنی د لاسونو شا یی د آسمان طرفته کړه. **(مسلم ص۲۹۳ ج۱)**.

د لاسونو سرچپه کول، د څادر اړول، د لاسونو ډیر زیات پورته کول، دا ټول د تفاول د پاره دی چه الله ﷻ دغه شان دا حالات بدل کړی.

حضرت امام ابوحنیفه فرمایی چه دا ټولې خبرې ضروری نه دی بلکه د حالاتو دانقلاب او بدلون طرف ته اشاره ده ، په استسقاء کښې اصل دعاء او استغفار دی، که صرف مونځ وکړی نو مستحب دی او د سنتو درجه نه ده . (هدایه ص۱۲۱ ج۱، شرح نقایه ص۱۰۶ ج۱، کبیری ص۴۲۷)

حضرت انس ؓ نه روایت دې چه یو سړې د جمعې په ورځ د باب دار قضاء د طرفنه جومات ته را داخل شو ، رسول الله ﷺ دغه وخت ولاړ وو او خطبه یی لوستله، هغه سړې راغې مخامخ ودریدلو او عرض یی وکړو چه یا رسول الله ! د قحط له کبله مو څاروی هلاك شول، زمکې تباه شوې ، لارې بندې شوې، تاسو دعا وکړئ چه الله ﷻ باران وکړی ، رسول الله ﷺ دغه وخت لاسونه پورته کړل او وې فرمایل چه : «اللهم اغثنا» یاالله ﷻ مونږ په باران سیرابه کړې، دغه شان دعا یی وکړه، حضرت انس ؓ فرمایی چه د غه وخت په آسمان کښې وریځ بالکل نه وه ، مونږ ولیدل چه یو د ډال (سپر) په شان د وریځې ټکړه را ښکاره شوه، کله چه د آسمان مینځ ته راغله نو خوره شوه ، او باران شروع شو، داسې باران وو چه تر اوه ورځو پورې مونږ آسمان و نه لیدلو ، په بله جمعه په همدغه دروازه هغه سړې راغې (په بعض روایاتو کښې دی چه بل سړې راغې ) او عرض یی وکړو چه یا رسول الله ! د باران له کبله زمکې تباه شوې ، لارې بندې شوې ، تاسو دعاء وغواړئ چه الله ﷻ باران بند کړی . حضور ﷺ لاسونه مبارك پورته کړل او او دعاء یی وکړه چه : «ائ الله ! په خوا اوشا اطرافو کښې باران وکړې، په (غټو غټو غونډو باندې) او وړو وړو غونډو او خوړونو کښې ا و د ونو د راټوکیدو په ځائ کښې» نو زمونږ د کتلو سره باران بند شو، او آسمان صفا شو، او نمر په نظر راغې . (بخاری ۱۳۸ ج۱، مسلم ص۲۹۳ ج۱)

له دې حدیث نه امام ابو حنیفه دا استدلال کوی، چه دوه رکعته مونځ کول د استسقاء دپاره ضروری نه دی .

د حضرت عبدالله بن عباس ؓ په روایت کښې راغلی دی چه یو کوچې سړې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو ، او عرض یی وکړو چه یا رسول الله ! زه د داسې خلقو د طرف نه راغلې یم، چه د هغې خلقو د څاروو پئ د قحط سالئ کبله ه وچې شوی دی، او څاروی یی تپ شوی دی، رسول الله ﷺ په ممبر تشریف فرما شو، د الله ﷻ حمد اوثنا یی بیان کړه او داسې دعاء یی وکړه :

(اَللّٰهُمَّ اسْقِنَا غَيْثًا مُغِيْثًا مَرِيْئًا طَبَقًا مَرِيْعًا غَدَقًا عَاجِلًا غَيْرَ رَائِثٍ وَفِيْ رِوَايَةٍ نَافِعًا غَيْرَ ضَارٍّ) . (ابن ماجه ص ۹۰، طحاوی ص۱۹۱ ج۱، بیهقی ص۳۵۵ ج۳، مستدرك حاکم ص۳۲۸ ج۱، وقال علی شرطهما واقره الذهبی)

**ترجمه** : یا الله ! په مونږ باندې داسې باران وکړه چه زمونږ ضرورتونه پوره کړی، داسې باران چه هغه مبارك اوښکلې وی اوهغه سیراب کوونکې وی اوهغه ټوله فضاء نیوونکې وی اوهغه ډیرو اوبو والا وی اوهغه زر وریدونکې وی او دهغې په وریدلو کښې تاخیر نوی، اوهغه باران فائده

مند وی او ضررناك وی.
د صحابه کرامو د عمل نه هم ثابت دی چه هغوی د استسقاء د پاره صرف په دعاء او استغفار باندې اکتفاء وکړه، لکه:
عَنْ عَطَاءِ ابْنِ أَبِي مَرْوَانَ الْأَسْلَمِيِّ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ نَسْتَسْقِيْ فَمَا زَادَ عَلَى الْاِسْتِغْفَارِ.
(مصنف ابن ابی شیبه ص ۴۷۴ ج ۲)
**ترجمه**: حضرت عطاء بن ابی مروان د خپل پلار نه روایت کوی چه مونږ د حضرت عمرفاروق ﷛ سره د استسقاء د پاره ووتلو، نو هغوی بغیر د استغفار نه نور هیڅ هم و نه کړل، (نه یی مونځ وکړو او نه یی خطبه وویله).
حضرت انس ﷛ نه روایت دې چه امیر المؤمنین حضرت عمر فاروق ﷛ د رسول الله ﷺ تره حضرت عباس ﷛ وړاندې ودرولو، د هغه په توسل سره یی باران طلب کړې وو، او دعا کښې یی داسې ویلی وو چه: یا الله! مونږ به ستا په وړاندې ستا دنبی ﷺ وسیله پیش کوله، اوتابه مونږ سیرابولو، اوس مونږ ستا د نبی ﷺ د تره توسل تاته پیش کوو، ته مونږ سیراب کړه! نو الله ﷻ هغوی په باران سره سیراب کړل. (بخاری ص ۱۳۸ ج ۱).
**یادونه**:- په دې کښې د توسل مسئله هم واضحه کیږی، بعې حضرات دا وایی چه وسیله نیول که د مرګ نه وروسته جائز وای، نو عمر فاروق ﷛ به په رسول الله ﷺ باندې وسیله نیولې وه، حالانکه هغوی ﷛ په حضرت عباس ﷛ سره توسل وکړو، نو معلومه شوه چه د مرګ نه پس وسیله نیول صحیح نه دی، لیکن دا شبهه بې بنیاده ده، ځکه چه د توسل بالذات او بالاشخاص د پاره خو دا حدیث نص دې، او د وفات نه پس وسیله نیولو دپاره د حضرت عثمان بن حُنَیف ﷛ صحیح حدیث چه په ترمذی صنحه ۵۱۵ کښې او ابن ماجه صـ ۹۹، او جمع الفوائد صـ ۳۰۹ ج ۱، او مجمع الزوائد صـ ۲۷۹ ج ۲، په حواله د طبرانی کبیر کښې موجود دې، ددې رد کول محض مکابره ده او حق پرستی نه ده.
په دې مقام کښې د حضرت عمر ﷛ چه کوم توسل دې او په حضرت عباس ﷛ سره یی کړې دې، ددې مطلب دادې چه په استسقاء کښې محض توسل هم مراد نه وی، بلکه د یو نیك انسان وړاندې ودرول، او د هغه په لاس خلقو ته دعاء کول هم ضروری دی. نو د رسول الله ﷺ تره حضرت عباس ﷛ چه د غه وخت کښې د ټولو نه عمر رسیده او د ټولو په نزد محترم وو، ځکه چه رسول الله ﷺ به هم د هغوی احترام کولو، حضرت عمر ﷛ هغه ودرولو او دعاء یی پرې وکړه.
حضرت امام شعبی نه روایت دې چه حضرت عمر ﷛ بهر ووتلو، او په ممبر تشریف فرماشو او وې فرمایل: اې خلقو! د خپل رب نه د خپلو ګناهونو ښښنه وغواړئ، بیشکه هغه ډیر ښښونکې

دې هغه به د آسمان نه ستاسو دپاره باران وکړي، او هغه به ستاسو د مال او اولاد سره امداد هم وکړي، او ستاسو د پاره به باغونه هم جوړ کړي، او ستاسو د پاره به نهرونه هم جاري کړي، نو يو سړي عرض وکړو چه اې عمره ! که تاسو مونځ د پاره اوبه غوښتلې وې نو څومره به ښه وه، نو حضرت عمر ﷺ وفرمايل : (لَقَدْ طَلَبْتُهُ بِمَجَادِيحِ السَّمَاءِ الَّتِي يُسْتَنْزَلُ بِهَا الْمَطَرُ).(مصنف ابن ابی شیبه ۴۷۳ ج ۲، بیهقی ص ۳۵۲، ج ۳)

**ترجمه** : ما ستاسو دپاره د آسمان اوبه طلب کړې له کوم ځائ نه چه باران کيږي، (يعنی ما داسې وکړل چه لدې سره به سيرابی راشی)

که صلوة استسقاء داسې ضروری وې اوسنت لازمه وې، نو حضرت عمر ﷺ به دا ولې پريښودلو باوجود ددينه چه هغوی د سنتو په اتباع کولو کښې ډير زيات سخت وو.

حضرت علی ﷺ فرمايی چه د استسقاء حقيقت استغفار دې، (مصنف عبدالرزاق ص ۸۸ ج ۳)

امام ابراهيم نخعی نه نقل دی چه هغوی په استسقاء کښې هم په دعاء باندې اکتفاء وکړه او مونځ يی ونکړو. (ابن ابی شیبه ص ۴۷۳ ج ۲، کتاب الحجة ص ۳۳۳ ج ۱).

نو داخبره امام ابو حنيفه هم کړې ده ، چه په استسقاء کښې مونځ لازم سنت نه دې . لکه چه مشهور فقيه محدث امام ابراهيم حلبی شارح د منية المصلی ليکلې دی :

فَالْحَاصِلُ اَنَّ الْاَحَادِيثَ لَمَّا اِخْتَلَفَ فِي الصَّلٰوةِ بِالْجَمَاعَةِ وَعَدَمِهَا عَلٰى وَجْهٍ لَا يَصْلُحُ بِهٖ اِثْبَاتُ السُّنِّيَّةِ لَمْ يَقُلْ اَبُوْ حَنِيْفَةَ بِسُنِّيَّتِهَا وَلَا يَلْزَمُ مِنْ عَدَمِ قَوْلِهٖ بِسُنِّيَّتِهَا قَوْلُهٗ بِاَنَّهَا بِدْعَةٌ كَمَا نَقَلَهٗ عَنْهُ بَعْضُ الْمُشَنِّعِيْنَ بِالتَّعَصُّبِ بَلْ هُوَ قَائِلٌ بِالْجَوَازِ). (کبیری ص ۴۲۹)

**ترجمه** : پس حاصل دا دې چه کله د استسقاء په سلسله کښې د باجماعته مونځ کولو او نه کولو په حقله په احاديثو کښې اختلاف راغلې دې، او دا دومره اندازه اختلاف دې چه له هغې نه د دې مونځ سنتيت ثابتول درست نه دی، نو امام ابو حنيفه ددې د سنت کيدلو قائل نه شو. ليکن ددې سنت نه کيدونه ددې بدعت کيدل نه لازميږی . لکه څنګه چه بعضې شناعت کونکی د تعصب له کبله د امام ابوحنيفه د متهم کولو ناکام کوشش کړې دې، بلکه امام ابو حنيفه د صلوة استسقاء د جواز قائل دې چه دا مستحب دې، البته د سنت په درجه کښې نشی کيدلې.

ليکن صاحبين (قاضی ابو يوسف او امام محمد ) او نور ائمه کرام فرمايی چه دوه رکعته مونځ هم مسنون دې ، دا بحث صرف د مسنون او غير مسنون دې ، په نفسِ جواز کښې يی هيڅ کلام نشته، د حضرت امام ابو حنيفه دوه شاګردان او نور ائمه کرام ددې د مسنون کيدلو قائل دی ، او دا هم وايی چه درې ورځې به مسلسل داسې کولې شی، که ممکن وی نو پياده به لاړ شې، په

معمولی جامو کښې او په انتهایی عاجزئ سره به سر ټیټ کړې او د استسقاء دپاره به ووځې.
(در مختار صه ۱۱۸ ج ۱)

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ خَرَجَ مُتَبَذِّلًا مُتَوَاضِعًا مُتَضَرِّعًا. (ترمذی ص ۱۰۶، ج ۱، ابوداود ص ۱۶۵ ج ۱، نسائی ص ۲۲۶ ج ۱، ابن ماجه ص ۹۰)

**ترجمه** : حضرت ابن عباس ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ بهر ووتلو، په نهایت معمولی لباس کښې له عاجزئ او خشوع سره او خپل رب ته فریاد کونکې.

**مسئله** :- فقهاء کرام فرمایی چه کافر به له ځان سره نه بیایی، ځکه چه صلوة استسقاء د جلب رحمت د پاره وی ، او کافر د کفر له کبله مورد د لعنت وی ، په داسې موقع باندې د کافر موجود کیدل درحمت په جلب کولو کښې مانع جوړیدې شی، البته د ځاروو له خپل ځان سره بوتلل باعث د جلب د رحمت دې. (هدایه صه ۱۲۲ ج ۱، شرح نقایه صه ۱۰۷ ج ۱، در مختار صه ۱۱۸ ج ۱)

**د استسقاء دعا** :- د قحط او خشك سالئ په موقع چه کومې دعا ګانې د رسول الله ﷺ نه ثابتې دی، هغه په لاندې ډول دی :

اَللّٰهُمَّ اسْقِنَا، اَللّٰهُمَّ اسْقِنَا، اَللّٰهُمَّ اسْقِنَا (بخاری ۱۳۷ ج ۱)

**ترجمه** : یا الله ! مونږ سیراب کړې، یا الله ! مونږ سیراب کړې، یا الله ! مونږ سیراب کړې.

اَللّٰهُمَّ اَغِثْنَا، اَللّٰهُمَّ اَغِثْنَا، اَللّٰهُمَّ اَغِثْنَا. (بخاری ص ۱۳۸ ج ۱، مسلم ص ۲۹۳، ج ۱)

**ترجمه** : یا الله په مونږ باندې باران واوروې ، یا الله په مونږ باندې باران واوروې ، یا الله په مونږ باندې باران واوروې.

اَللّٰهُمَّ اسْقِ عِبَادَكَ وَبَهَائِمَكَ وَانْشُرْ رَحْمَتَكَ وَاَحْيِ بَلَدَكَ الْمَيِّتَ. (ابوداود ص ۱۶۶ ج ۱، موطا امام مالك ص ۱۶۹)

**ترجمه** : یا الله ! ته خپل بندګان اوځاروی سیراب او په اوبو ماړه کړې، او خپل رحمت خور کړې او خپله وچه او مړه ځمکه راژوندئ او شنه کړې.

اَللّٰهُمَّ اَنْزِلْ عَلٰى اَرْضِنَا زِيْنَتَهَا وَسَكَنَهَا. (حصن حصین ص ۳۳۲ بحواله ابوعوانه)

**ترجمه** : یا الله ! زمونږ په ځمکه باندې دهغې ښائیست او سکون نازل کړې.

اَللّٰهُمَّ اسْقِنَا غَيْثًا مُغِيْثًا الخ.

**ترجمه** : یا الله ! مونږ په سیراب کوونکې وریځ باندې سیراب کړې ....

د حضرت عمر ﷺ دعا :-

اَللّٰهُمَّ اِنَّا تَوَجَّهْنَا اِلَيْكَ بِعَمِّ نَبِيِّكَ وَصِنْوِ اَبِيْهِ فَاسْقِنَا الْغَيْثَ وَلَا تَجْعَلْنَا مِنَ الْقَانِطِيْنَ.

د حضرت عباس رضی الله عنه دعا :- اَللّٰهُمَّ لَمْ يَنْزِلْ بَلَاءٌ اِلَّا بِذَنْبٍ وَلَمْ يُكْشَفْ اِلَّا بِتَوْبَةٍ وَقَدْ تَوَجَّهَ الْقَوْمُ بِيْ اِلَيْكَ لِمَكَانِيْ مِنْ نَبِيِّكَ وَهٰذِهٖ اَيْدِيْنَا بِالذُّنُوْبِ وَنَوَاصِيْنَا بِالتَّوْبَةِ فَاسْقِنَا الْغَيْثَ. (فتح الباری ص۱۵۰، ج۲).

**مسئله** :- په بعضې ځايونو کښې خلق د استسقاء په وخت په يو بل باندې رنګونه وراچوی او په پچکاريو کښې اچولې شوې اوبه ديو بل په جامو وراچوی، او پدې سره يو قسم تفاول او نيك فالی نيسی چه باران وشي، دا ټول د غير مسلمو خلقو نقل ده ، اومکروه کار دې.

# صلوة الكسوف و الخسوف

### «د نمر توريدلو او سپوږمۍ توريدلو په وخت مونځ»

د نمر توريدلو او سپوږمۍ توريدلو په وخت دغه مونځونه کول مستحب دی ، د نمر توريدل که داسې وخت کښې وی چه مونځ مکروه نه وی ، نو په جماعت سره دې مونځ ادا کړې شی. له اوږد قرائت او اوږدې رکوع او سجدې سره او اوږدې دعا سره تردې چه د نمر توروالې ختم شی.

اِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ اٰيَتَانِ مِنْ اٰيَاتِ اللهِ لَا يَنْخَسِفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهٖ فَاِذَا رَاَيْتُمْ ذٰلِكَ فَادْعُوا اللهَ وَكَبِّرُوْا وَصَلُّوْا وَتَصَدَّقُوْا (بخاری ص۱۴۲ ج۱، مسلم ص۲۹۵ ج۱)

**ترجمه** : رسول الله ﷺ فرمايی چه نمر او سپوږمۍ د الله ﷻ د قدرت د نښو څخه دی ، دا د چا په پيدايش يا په مرګ سره نه توريږي، بلکه الله ﷻ خپلو بندګانو ته دا نښې ښايی چه خبردارې ورته وشی، او د ګناه نه بچ شی، کله چه تاسو داسې قسم نښې ووينئ، نو د الله ﷻ په وړاندې دعا وکړئ تکبير ووايئ ، مونځ وکړئ او صدقه ورکړئ.

فَاِذَا رَاَيْتُمْ شَيْئًا مِنْ ذٰلِكَ فَافْزَعُوْا اِلٰى ذِكْرِ اللهِ وَدُعَائِهٖ وَاسْتِغْفَارِهٖ. (بخاری ص۱۴۵ ج۱، مسلم ص۲۹۹ ج۱)

**ترجمه** : رسول الله ﷺ فرمايی کله چه داسې نښې ووينئ نو په جلدۍ سره د الله ﷻ ذکر طرف ته او دعا او استغفار طرف ته رجوع کوئ.

حضور ﷺ دوه اوږده رکعتونه وکړل ، او دا دوه رکعتونه مسنون دی ، د امام شافعی په نزد په هر رکعت کښې دوه رکوع دی او د امام ابوحنيفه په نزد په هر رکعت کښې يوه رکوع ده.

**د صلوة خسوف او صلوة کسوف تحقيق :-**

عَنْ عَائِشَةَ (مرفوعا) اَنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ اٰيَتَانِ مِنْ اٰيَاتِ اللهِ لَا يَنْخَسِفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهٖ فَاِذَا رَاَيْتُمُوْهُمَا فَكَبِّرُوْا وَادْعُوا اللهَ وَصَلُّوْا وَتَصَدَّقُوْا. (بخاری ص۱۴۲ ج۱، مسلم ص۲۹۶ ج۱).

**ترجمه** : ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضی الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ وفرمايل چه نمر او سپوږمۍ د الله ﷻ د آياتو څخه د ی ، دا دچا په پيدايش او مرګ نه توريږی، نو کله چه تاسو دا

په داسې حالت کښې ولیدل نو تکبیر وایئ او دعا کوئ او مونځ کوئ، اوصدقه او خیرات کوئ.

**عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ جَهَرَ فِيْ صَلٰوةِ الْخُسُوْفِ بِقِرَاءَتِهٖ فَصَلّٰى اَرْبَعَ رَكَعَاتٍ وَّاَرْبَعَ سَجَدَاتٍ. (مسلم ص۲۹۶ ج۱).**

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ په صلوة خسوف کښې جهر وکړو، په خپل قرائت کولو کښې ، او هغوی څلور رکوع او څلور سجدې وکړې.

**عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ وَالنَّاسُ مَعَهٗ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا قَدْرَ نَحْوِ سُوْرَةِ الْبَقَرَةِ. (مسلم ص۲۹۸ ج۱).**

**ترجمه** : حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ د کسوف په موقع باندې مونځ وکړو، او خلق هم ورسره وو، هغوی اوږد قیام وکړو، دومره لکه څومره چه د سورة بقرة اندازه ده.

**آیا صلوة کسوف کښې قرائت په جهر سره افضل دې او که په پټه** :- د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد پټ قرائت زیات افضل دې، امام شافعي رحمه الله وغیره حضرات جهر ته افضل وایي.

د حضرت عائشه رضی الله عنها د روایت نه استدلال تام نه د ې، ځکه چه د حضرت عائشه رضی الله عنها نه دواړه قسمه روایتونه نقل دی ، یو قسم روایتونه هغه دی چه په هغې کښې د قرآن دجهر لوستلو ذکر پکښې دې ، او بل قسم روایات هغه دی چه په هغې کښې د اندازې لګولو ذکر دې ، ظاهره ده چه د اندازې لګولو په صورت کښې به قرائت بالجهر نه وی ، البته دا توجیه که تاسو د نظر لاندې وساتئ، لکه څنګه چه به مونږ په آینده کښې ذکر کوو ،چه که څه حصه د قرائت بالجهر هم شوې وی نو څه بعیده نه ده او باقی حصه پټه وه.

او بیا دحضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه او د حضرت سمره بن جندب رضی الله عنه په روایت کښې هم د اخفاء ذکر دې ، نو که پدې بناء باندې امام اعظم ابو حنیفه قرائت بالاخفاء لره ترجیح ورکړې ده نو عین ثواب د ې، او دا قول د احادیثو مطابق دې.

د حضرت سمره بن جندب رضی الله عنه په روایت کښې راغلی دی چه :

**فَقَامَ بِنَا كَاَطْوَلِ مَا قَامَ بِنَا فِيْ صَلٰوةٍ قَطُّ لَا نَسْمَعُ لَهٗ صَوْتًا. (ابوداود ص۱۶۷ ج۱، نسائی ص۱۶۷ ج۱، ترمذی ص۱۰۶)**

**ترجمه** : رسول الله ﷺ داسې اوږد قیام وکړو چه داسې اوږد قیام یی چیرته هم په څه مونځ کښې نه وو کړې، کوم چه هغو ی مونږ ته کړې وو، او مونږ د هغوی ﷺ آواز نه آوریدلو ، (یعنی پټ قرائت یی کولو).

او حضرت عائشه رضی الله عنها فرمایی چه :

**فَصَلّٰى بِالنَّاسِ فَقَامَ فَحَزَرْتُ قِرَاءَتَهٗ فَرَاَيْتُ اَنَّهٗ قَرَاَ سُوْرَةَ الْبَقَرَةِ وَفِيْ رِوَايَةٍ فَحَزَرْتُ قِرَاءَتَهٗ فَرَاَيْتُهٗ اَنَّهٗ قَرَاَ بِسُوْرَةِ اٰلِ عِمْرَانَ. (ابوداود ص۱۶۸ ج۱).**

**ترجمه**: رسول الله ﷺ خلقو ته مونځ ورکړو، نو ما د هغوی ﷺ د قراءة اندازه ولګوله، هغه دومره اوږد وو څومره چه سورة بقره دې. په يو بل روايت کښې داسې راغلی دی چه حضرت عائشه ؓ فرمايی چه ما د هغوی ﷺ د قراءة اندازه ولګوله نو د سورة آل عمران برابر راته معلوم شو.

**قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ الْكُسُوْفَ فَلَمْ اَسْمَعْ مِنْهُ حَرْفًا مِنَ الْقُرْاٰنِ.** (مسند احمد ص ۲۹۳ ج ۱، طحاوی ص ۱۹۰ ج ۱)

**ترجمه**: د حضرت عبدالله بن عباس ؓ په روايت کښې راغلی دی چه: ما له رسول الله ﷺ سره د کسوف (دنمر توريدلو) په موقع مونځ وکړو، او ما د هغوی ﷺ نه په دې مونځ کښې يو حرف د قرآن هم وا نه وريدلو (يعنی هغوی ﷺ پټ قرايت کولو).

**قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ النَّبِيِّ ﷺ صَلٰوةَ الْخُسُوْفِ فَلَمْ اَسْمَعْ مِنْهُ فِيْهَا حَرْفًا وَّاحِدًا.** (مسند احمد ص ۲۹۳ ج ۱)

**ترجمه**: ما په رسول الله ﷺ پسې مونځ وکړو نو يو حرف هم ما د رسول الله ﷺ نه په دې مونځ کښې وانه وريدلو.

بعضې خلق دا خيال کوی چه حضرت عبدالله بن عباس ؓ دغه وخت ماشوم وو، او هغه د ماشومانو په صف کښې وو، او ماشومان خو عادةً وروستو وی، نو د لرې والی له کبله يې قرائت وانه وريدلو. ليکن دا توجيهه صحيح نه ده، ځکه چه د ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه ؓ په روايت کښې راغلی دی چه هغوی ﷺ جهراً قرائت وکړو نو دوی د هغوی ﷺ نه واوريدلو، حالانکه د ښځو صف خو د ماشومانو نه هم وروستو و لرې وی.

نو صحيح خبره داده چه زيات تره قرائت هغوی ﷺ پټ کړې وو، او څه حصه به يې په زوره هم ويلې وی، ځکه چه د حضرت عبدالله بن عباس ؓ دويم روايت چه په مسلم کښې دې هغه ددې قرينه ده چه هغوی ﷺ اوږد قيام وکړو، لکه چه د سورة بقرې د ويلو په اندازه اوږد قرائت چه وی دومره قيام يې وکړو، که چيرې قراءة ټول په جهر سره وای، نو د داسې ويلو څه ضرورت وو؟ صفا صفا به يې ويلې وو چه فلانې فلانې سورة هغوی ﷺ ويلې وو.

او دا قراءة بالجهر او بالاخفاء دواړه قسمه روا دې، صرف په افضليت کښې يې اختلاف دې، چه آيا زياته افضله طريقه جهر دې لکه څنګه چه امام شافعی رحمه الله او نور حضرات يې وايی او که پټ قراءة زيات افضل دې لکه څنګه چه امام ابو حنيفه رحمه الله يې فرمايی.

**يوه رکوع به وی اوکه دوه**: - حضرت امام شافعی د دوو رکوع ګانو قائل دې او حضرت امام ابو حنيفه په هر رکعت کښې صرف د يوې رکوع قائل دې. د تعجب خبره داده، چه په صحيح رواياتو کښې په يو رکعت کښې د درې، او څلورو رکوعاتو ذکر هم شته، او په بعضې رواياتو کښې د پنځو رکوع ګانو ذکر هم راغلې دې، او په شاذو رواياتو کښې د شپږو رکوع ګانو هم ذکر راغلې دې، شاذ روايت خو پريږده باقی په صحيح رواياتو کښې امام شافعی د دوو رکوع ګانې

والا روایتو باندې څنګه اکتفاء کړې ده، په داسې حال کښې چه روایات یوشان دی، نو که امام ابو حنیفه او دهغوی رفقاء صرف په یو رکوع باندې انحصار وکړی او هغه هم له دلائلو سره ، نو هغه د محدیثینوله جملې څخه نه خارجولې شی نو دا ډیر عجیبه انصاف دې.

حقیقت داد ې چه رسو ل الله ﷺ په دې موقع متعددې رکوع ګانې کړ ې دی ، هغه د یو خاص کیفیت د په نظر کښې نیولو په خاطر، یو خاص کیفیت او حالت په هغوی ﷺ باندې طاری وو، هغوی ﷺ به بار بار رکوع کوله، لیکن امت دپاره یې په طور د قانون دا وفرمایل لکه چه د حضرت قبیصه الهلالی رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی :

فَإِذَا رَأَيْتُمُوْهَا فَصَلُّوْا كَأَحْدَثِ صَلٰوةٍ صَلَّيْتُمُوْهَا مِنَ الْمَكْتُوْبَةِ.(ابوداود ص۱۶۸ ج۱، نسائی ص۱۶۷ ج۱).

**ترجمه** : کله چه تاسو د نمر توروالې ووینئ نو تاسو داسې مونځ کوئ لکه څنګه چه مو اوس مونځ وکړو د فرض مونځونو نه ، (دا د سحر یا دماسپښین مونځ کیدې شی) .

**مسئله** :- ښځې د نمر توریدو په وخت خوراك څښکاك ګناه ګنی، او کار روزګار وغیره هم پریږدی، دا غلطه خبره ده .

**مسئله** :- د سپوږمئ دتوریدلو په وخت هم دوه رکعته سنت دی ، لیکن جماعت مسنون نه دې، بلکه ځان له ځان له په کورو نو کښې کول پکار دی.

**مسئله** :- صدقه کول د ګناهونو د معافئ دپاره ده، دا صدقه د دې د پاره نه وی لکه څنګه چه مشرکان او هندوان خلق وایی چه په سپوږمئ اونمر بائدې قرض دې (دهغې د خلاصولو دپاره پیسې تقسیم کړئ) .

**مسئله** :- د نمر د توریدلو په وخت بالعموم لیدلې کیږی چه بعضې خلق په کیمرو سره په تصویرانو ویستلو کښې مشغول وی دا د غفلت او سنګدلئ علامت د ې، د الله ﷻ د نیولو او ګرفت نه د بچ کیدلو د پاره همدغه وخت توبه او استغفار کول پکار دی .

# صلوٰةُ اللّیل

## ((د تهجدو مونځ))

د تهجدو مونځ په ټولو نوافلوکښې زیات فضیلت لری .

عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ (مرفوعا)، وَأَفْضَلُ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْفَرِيْضَةِ صَلَاةُ اللَّيْلِ.(ترمذی ص۹۰)

**ترجمه** : حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسو ل الله ﷺ فرمایی د فرضونه پس د ټولو نه افضل مونځ د تهجدو مونځ د ې .

د تهجدو مونځ د زړه د صفایی ، د دلجمعئ او د سکون باعث دې . لدینه علاوه دا د سمعې او

ریا نه هم لرې وی.

د الله ﷻ ارشاد دې: ﴿إِنَّ نَاشِئَةَ اللَّيْلِ هِيَ أَشَدُّ وَطْأً وَأَقْوَمُ قِيلًا﴾. (مزمل پ۲۹)

عَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ غُرَفًا تُرَى ظُهُورُهَا مِنْ بُطُونِهَا وَبُطُونُهَا مِنْ ظُهُورِهَا فَقَامَ أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ لِمَنْ هِيَ يَا رَسُولَ اللهِ فَقَالَ لِمَنْ أَطَابَ الْكَلَامَ وَأَطْعَمَ الطَّعَامَ وَأَدَامَ الصِّيَامَ وَصَلَّى بِاللَّيْلِ وَالنَّاسُ نِيَامٌ. (ترمذی ص۲۹۲)

**توجمه**: له حضرت علی ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی چه بیشکه په جنت کښې داسې عمده بالاخانې دی، چه د هغې بهرنۍ حصه د دننه نه، او دننه حصه د بهر نه، په نظر راځی، (دهغې دیوالونه شفاف دی) یو اعرابی (کوچې) سړې ودریدلو، او عرض یې وکړو چه یا رسول الله! دا دچا د پاره دی؟ هغوی ﷺ وفرمایل چه څوك ښې خبرې کوی، او محتاجو ته خوراك ورکوی، اوهمیشه نفلی روژې نیسی، او دشپې مونځ (تهجد) کوی. کله چه نور خلق ویده وی.

لدینه علاوه دا د الله ﷻ د رحمت د نزول وخت وی.

يَنْزِلُ رَبُّنَا تَبَارَكَ وَتَعَالَى كُلَّ لَيْلَةٍ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا حِينَ يَبْقَى ثُلُثُ اللَّيْلِ الْآخِرُ يَقُولُ مَنْ يَدْعُونِي فَأَسْتَجِيبَ لَهُ مَنْ يَسْأَلُنِي فَأُعْطِيَهُ مَنْ يَسْتَغْفِرُنِي فَأَغْفِرَ لَهُ (بخاری ص۱۵۳ ج۱)

**توجمه**: زمونږ پروردګار هره شپه د دنیا آسمان ته نزول فرمایی، یعنی د هغوی خاص تجلی د دنیا د آسمان طرف ته متوجه وی، کله چه د شپې دریمه حصه پاتې شی، الله ﷻ فرمایی څوك دې له مانه غوښتونکې چه د هغه دعا قبوله کړم، څوك دې له مانه حاجتونه غوښتونکې چه زه هغه ته ورکړم، څوك دې له مانه ښښنه غوښتونکی چه زه هغه وبخښم.

د شپې پاځیدل بهیمیت لره د کمزوری کولو دپاره د تریاق حکم لری

عَنْ ثَوْبَانَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ إِنَّ هَذَا السَّهَرَ جُهْدٌ وَثِقْلٌ فَإِذَا أَوْتَرَ أَحَدُكُمْ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ فَإِنْ قَامَ مِنَ اللَّيْلِ وَإِلَّا كَانَتَا لَهُ. (دارمی ص۲۱۲ ج۱، طحاوی ص۲۰۲ ج۱، دارقطنی ص۳۶ ج۱)

**توجمه**: له حضرت ثوبان ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: دا بیداری مشقت او دروند پیټې دې، کله چه په تاسو کښې څوك وتر کوی نو هغه له د هغې نه پس دوه رکعته کول پکار دی، که د شپې بیدار شی، (نو تهجد به وکړی) اوکه نه نو هغه به ددې قائمقام شی.

عَنْ بِلَالٍ وَأَبِي أُمَامَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ عَلَيْكُمْ بِقِيَامِ اللَّيْلِ فَإِنَّهُ دَأْبُ الصَّالِحِينَ قَبْلَكُمْ وَإِنَّ قِيَامَ اللَّيْلِ قُرْبَةٌ إِلَى اللهِ وَمَنْهَاةٌ عَنِ الْإِثْمِ وَتَكْفِيرٌ لِلسَّيِّئَاتِ وَمَطْرَدَةٌ لِلدَّاءِ عَنِ الْجَسَدِ (ترمذی ص۵۱۰)

**توجمه**: حضرت بلال ﷺ او ابو امامه ﷺ روایت کوی، چه رسو ل الله ﷺ وفرمایل: چه اې خلقو! د شپې قیام لازم ونیسئ، ځکه چه دا ستاسونه د وړاندې نیکانو خلقو عادت او طریقه ده، او بیشکه د شپې قیام د الله ﷻ د قرب حاصلونکې، او دګناهونو رژونکې، او د خطاګانو کفاره، او

د بیمارسو د بدن نه لرې کونکې دې.

عَنْ اُمِّ سَلَمَةَ (مرفوعا) مَنْ يُّوْقِظُ صَوَاحِبَ الْحُجُرَاتِ يَارُبَّ كَاسِيَةٍ فِي الدُّنْيَا عَارِيَةٌ فِي الْاٰخِرَةِ. (بخاری ص ۱۵۲ ج ۱، وص ۲۳، ترمذی ص ۳۲۰)

**ترجمه**: ام المؤمنین حضرت ام سلمه رضی الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک دې چه پدې کوټو کښې ویده خلق (لدې نه ازواج مطهرات مراد دی) راویښ کړی، ډیرې په دنیا کښې رنګارنګ فیشن لباس اغوستونکې به په آخرت کښې بربنډې وی (ځکه چه د هغوی نفس به د فضائلو نه عاری او خالی وی)

عَنْ جَابِرٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ اِنَّ مِنَ اللَّيْلِ سَاعَةً لَا يُوَافِقُهَا عِنْدَ مُسْلِمٍ يَسْاَلُ اللهَ فِيْهَا خَيْرًا اِلَّا اَعْطَاهُ. (مسلم ص ۲۵۸ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: بیشکه په شپه کښې یو ساعت دې چه کوم مسلمان بنده په هغې کښې د الله ﷻ نه بهتری غواړی الله ﷻ به یې هغه ته ورکړی.

د حضرت جنید بغدادی رحمه الله په باره کښې منقول دی چه هغه چا د مرګ نه پس په خوب کښې ولیدلو او د هغه نه یې د هغه حال وپښتلو، نو هغوی ورته وفرمایل:

(طَارَتِ الْعِبَارَاتُ وَفَنِيَتِ الْاِشَارَاتُ وَمَا نَفَعَنَا اِلَّا رُكَيْعَاتٌ رَكَعْنَاهَا جَوْفَ اللَّيْلِ). (تفسیر عزیزی فارسی ص ۱۸۵ پاره ۲۹)

**ترجمه**: عبارات والوتل، اشارات ټول فنا شول اومونږ ته فائده را نکړه مګر هغه یوڅو رکعتونو چه د شپې په مینځ کښې مو ادا کړی وو.

# صلوة تراویح

## «د تراویح مونځ»

**دتراویحو فضائل**:- د تراویح د مونځ په احادیثو کښې ډیر فضائل راغلی دی، دا مونځ صرف په رمضان شریف کښې د ماسخوتن نه وروسته کولې شی.

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُرَغِّبُ فِيْ قِيَامِ رَمَضَانَ مِنْ غَيْرِ اَنْ يَّاْمُرَهُمْ فِيْهِ بِعَزِيْمَةٍ فَيَقُوْلُ مَنْ قَامَ رَمَضَانَ اِيْمَانًا وَّاحْتِسَابًا غُفِرَ لَهٗ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ فَتُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَالْاَمْرُ عَلٰى ذٰلِكَ فِيْ خِلَافَةِ اَبِيْ بَكْرٍ وَصَدْرٍ مِّنْ خِلَافَةِ عُمَرَ عَلٰى ذٰلِكَ. (مسلم ص ۲۵۹ ج ۱).

**ترجمه** - حضرت ابو هریره رضی الله عنه روایت کوی چه رسول الله ﷺ به ترغیب ورکولو، د رمضان د قیام

په باره کښې بغیر ددینه چه پوخ حکم وکړی، پس هغوی ﷺ به فرمایل : چا چه په رمضان کښې قیام وکړو په داسې حال کښې چه په الله ﷻ ایمان لرونکې او ددې د ثواب د طلب کونکې وی ، نو دده به وړاندې ګناهونه معاف کړې شی، رسول الله ﷺ ددنیا نه رخصت شو ، او معامله همدغه شان وه، بیا د حضرت ابوبکر صدیق ؓ په خلافت کښې هم معامله همدغه شان وه، بیا د حضرت عمر ؓ په ابتدائی دور کښې هم معامله همدغه شان وه، (یعنی تراویح خان له خان له به کیدلې، بیا حضرت عمر ؓ په شلو رکعتونو باندې خلق راجمع کړل)

عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ ذَكَرَ شَهْرَ رَمَضَانَ فَقَالَ شَهْرٌ كَتَبَ اللهُ عَلَيْكُمْ صِيَامَهُ وَسَنَنْتُ لَكُمْ قِيَامَهُ فَمَنْ صَامَهُ وَقَامَهُ إِيْمَانًا وَاحْتِسَابًا خَرَجَ مِنْ ذُنُوبِهِ كَيَوْمِ وَلَدَتْهُ أُمُّهُ. (ابن ماجه ص ۹۳، نسائی ص ۳۰۸ ج ۱، مسند احمد ص ۱۹۱ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت ابو سلمه ؓ د خپل والد عبد الرحمٰن نه روایت کوی، چه رسول الله ﷺ د رمضان د میاشتې ذکر وکړو، او وې فرمائیل چه دا هغه میاشت ده چه الله ﷻ په تاسو ددې روژې نیول فرض کړی دی، او ما ددې قیام (تراویح) ستاسو د پاره سنت ګرځولی دی ، نو چا چه ددې روژې ونیولې، او قیام یې وکړو، په ایمان سره او د نیکئ د طلب کولو دپاره ، نو هغه به د خپلو ګناهونو نه داسې وځی لکه په کومه ورځ چه دده مور دې زیږولې وو .

**د تراویح مونځ سنت مؤکده دې** :- د تراویح مونځ سنت مؤکده دی .(هدایه ص ۱۹ ج ۱ شرح نقایه ص ۱۰۴ ج ۱، کبیری ص ۴۰۰)

د تراویح د سنت کیدو نه انکار بغیر د رافضیانو نه څخه بل هیڅ اسلامی فرقې نه دې کړې، ددې د سنت مؤکد کیدلو په باره کښې د ډیرو عالمانو اقوال موجود دی .

وَسَنَنْتُ لَكُمْ قِيَامَهُ (نسائی ص ۳۰۸ ج ۱، ابن ماجه ص ۹۳، مسند احمد ص ۱۹۱ ج ۱)

**ترجمه** : رسول الله ﷺ فرمایی چه ما ستاسو لپاره ددې قیام (تراویح) سنت ګرځولی دی.

عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّ التَّرَاوِيحَ سُنَّةٌ لَا يَجُوزُ تَرْكُهَا (ای لا ینبغی) (کبیری ص ۴۰۰، شرح نقایه ص ۱۰۴ ج ۱)

**ترجمه** : له امام ابو حنیفه رحمه الله نه روایت دې چه تراویح سنت دی او ددې پریښودل جائز نه دی.

امام نووی شارح د مسلم شریف لیکلې دی :

إِعْلَمْ أَنَّ صَلٰوةَ التَّرَاوِيحِ سُنَّةٌ بِاتِّفَاقِ الْعُلَمَاءِ وَهِيَ عِشْرُونَ رَكْعَةً. (کتاب الاذکار ص ۸۳).

**ترجمه** : ښه پوه شه ! چه په صلوة تراویح باندې د علماء کرامو اتفاق دې او هغه شل رکعته دی.

امام غزالی په خپل مشهور او بې مثله کتاب احیاء العلوم کښې لیکلې دی :

اَلتَّرَاوِيحُ هِيَ عِشْرُونَ رَكْعَةً وَكَيْفِيَّتُهَا مَشْهُورَةٌ وَهِيَ سُنَّةٌ مُؤَكَّدَةٌ وَإِنْ كَانَتْ دُونَ الْعِيدَيْنِ. (احیاء العلوم ص ۱۸۰ ج ۱)

**ترجمه**: تراویح سنت مؤکد دی او هغه شل رکعته دی، او دهغې کیفیت او طریقه مشهوره ده، اګر چه د هغې مؤکد کیدل د اخترونو نه په درجه کښې کم دی.

امام ابن قدامه چه د مغنی مصنف دې لیکلی دی:

**وَهِيَ سُنَّةٌ مُؤَكَّدَةٌ وَ اَوَّلُ مَنْ سَنَّهُ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ** (مغنی ابن قدامه ص ۱۶۶ ج ۲)

**ترجمه**: تراویح سنت مؤکد دی، د ټولو نه رومبې رسول الله ﷺ دا سنت مقرر کړی دی.

امام حاکم په مستدرك کښې د یو حدیث بیانولو نه وروسته لیکلی دی:

**وَفِيْهِ الدَّلِيْلُ الْوَاضِحُ اَنَّ صَلٰوةَ التَّرَاوِيْحِ فِيْ مَسَاجِدِ الْمُسْلِمِيْنَ سُنَّةٌ مَسْنُوْنَةٌ وَقَدْ كَانَ عَلِيُّ بْنُ اَبِيْ طَالِبٍ يَحُثُّ عُمَرَ ﷺ عَلٰى اِقَامَةِ هٰذِهِ السُّنَّةِ اِلٰى اَنْ اَقَامَهَا** (مستدرك حاکم ص ۴۴۰ ج ۱)

**ترجمه**: او په دې کښې واضح دلیل دې چه دا صلوة تراویح د مسلمانانو په جوماتونو کښې ادا کول سنت مسنونه (مؤکده) دی، او حضرت علی ﷺ حضرت عمر ﷺ لره راپورته کړو په جوماتونو کښې په دې سنت قائمولو باندې، تردې چه حضرت عمر ﷺ دا قائم کړل.

**د تراویحو رکعتونه**:- شل رکعته تراویح سنت دی. (هدایه ص ۹۹ ج ۱، در مختار ص ۹۸ ج ۱، شرح نقایه ص ۱۰۳)

تراویح د (تراویحة) جمع ده او د (تراویحة) معنی ده آرام کول، یعنی د هرو څلورو رکعتونه وروسته آرام کول پکښې وی.

**رسول الله ﷺ تراویح څنګه وکړې**:- رسول الله ﷺ چه تراویح څنګه طریقې سره ادا کړې وې هغه په صحیح احادیثو کښې داسې ذکر دی.

**عَنْ اَبِيْ ذَرٍّ ﷺ قَالَ صُمْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَلَمْ يُصَلِّ بِنَا حَتّٰى بَقِيَ سَبْعٌ مِّنَ الشَّهْرِ فَقَامَ بِنَا حَتّٰى ذَهَبَ ثُلُثُ اللَّيْلِ ثُمَّ لَمْ يَقُمْ بِنَا فِي السَّادِسَةِ وَقَامَ بِنَا فِي الْخَامِسَةِ حَتّٰى ذَهَبَ شَطْرُ اللَّيْلِ فَقُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللهِ لَوْ نَفَّلْتَنَا بَقِيَّةَ لَيْلَتِنَا هٰذِهِ فَقَالَ اِنَّهُ مَنْ قَامَ مَعَ الْاِمَامِ حَتّٰى يَنْصَرِفَ كُتِبَ لَهُ قِيَامُ لَيْلَةٍ ثُمَّ لَمْ يُصَلِّ بِنَا حَتّٰى بَقِيَ ثَلٰثٌ مِّنَ الشَّهْرِ وَصَلّٰى بِنَا فِي الثَّالِثَةِ وَدَعَا اَهْلَهُ وَنِسَاءَهُ فَقَامَ بِنَا حَتّٰى تَخَوَّفْنَا الْفَلَاحَ قُلْتُ لَهُ وَمَا الْفَلَاحُ قَالَ السُّحُوْرُ قَالَ اَبُوْ عِيْسٰى هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ وَاخْتَلَفَ اَهْلُ الْعِلْمِ فِيْ قِيَامِ رَمَضَانَ فَرَاٰى بَعْضُهُمْ اَنْ يُّصَلِّيَ اِحْدٰى وَاَرْبَعِيْنَ رَكْعَةً مَعَ الْوِتْرِ وَهُوَ قَوْلُ اَهْلِ الْمَدِيْنَةِ وَالْعَمَلُ عَلٰى هٰذَا عِنْدَهُمْ بِالْمَدِيْنَةِ وَاَكْثَرُ اَهْلِ الْعِلْمِ عَلٰى مَا رُوِيَ عَنْ عَلِيٍّ وَعُمَرَ وَغَيْرِهِمَا مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ ﷺ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ وَابْنِ الْمُبَارَكِ وَالشَّافِعِيِّ وَهٰكَذَا اَدْرَكْتُ بِبَلَدِنَا بِمَكَّةَ يُصَلُّوْنَ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً وَقَالَ اَحْمَدُ رُوِيَ فِيْ هٰذَا اَلْوَانٌ لَمْ يَقْضِ فِيْهِ شَيْءٌ وَقَالَ اِسْحٰقُ بَلْ نَخْتَارُ اِحْدٰى وَاَرْبَعِيْنَ رَكْعَةً عَلٰى مَا رُوِيَ عَنْ اُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ وَاخْتَارَ ابْنُ الْمُبَارَكِ وَاَحْمَدُ وَاِسْحٰقُ الصَّلٰوةَ مَعَ الْاِمَامِ فِيْ شَهْرِ**

رَمَضَانَ وَاخْتَارَ الشَّافِعِيُّ أَنْ يُصَلِّيَ الرَّجُلُ وَحْدَهُ إِذَا كَانَ قَارِيًا. (ترمذی ص۱۳۹ ج۱)

**ترجمه** : له حضرت ابو ذر غفاری ﷺ نه روایت دې چه مونږ له رسول الله ﷺ سره په «رمضان کښې» روژې ونیولې، رسول الله ﷺ مونږ ته مونځ رانکړو یعنی په رمضان کښې تر ټوله میاشت تردې چه اوه ورځې باقی پاتې شوې، نو رسول الله ﷺ د شپې تر دریمې حصې پورې مونځ راکړو. بیا یې د دینه پس یوه شپه ونکړو، بیا یی یوه شپه نیمې شپې پورې مونځ راکړو، مونږ رسول الله ﷺ ته عرض وکړو، که تاسو دا باقی شپه مونږ ته هم مونځ راکړې وای نو ښه به وه، نورسول الله ﷺ وفرمایل چه کوم سړې د امام سره «د ماسخوتن او بیا دسحر» مونځ کوی، تردې چه امام فارغ شی نو ګویا ده ټوله شپه عبادت وکړو «یعنی د نیت مطابق به ده ته ثواب ورکول کیږی» بیا چه کله درې شپې په میاشت کښې باقی پاتې شوې، نورسول الله ﷺ په دریم ځل مونږ ته مونځ راکړو. او خپل کور والا او بیبیانې یی هم مونځ ته را وبللې، هغوی ﷺ دومره اوږد مونځ راکړو چه مونږ ته د فلاح د فوت کیدو خطره شوه «راوی د حدیث فرمایی چه» ما د حضرت ابو ذر ﷺ نه پوښتنه وکړه چه فلاح نه ستا څه مراد دی؟ نو ابوذر ﷺ وفرمایل: د فلاح نه مراد پیشمنې «سحور» دې، امام ترمذی فرمایی چه دا حدیث حسن او صحیح دې.

او بیا فرمایی چه داهل علمو په دقیام رمضان په باره کښې اختلاف دې، بعض وایی چه یو څلویښت رکعتونه سره له وترو کول پکاردی، او دا قول د اهل مدینه دې، او دهغوی عمل په دې باندې دې، او اکثر اهل علم لکه حضرت علی ﷺ او حضرت عمر ﷺ اونورو صحابو نه مروی دی چه شل رکعته کول پکار دی، او دا قول دامام سفیان ثوری، ابن مبارك، او د امام شافعی دې، امام شافعی فرمایی چه ما په خپل ښار مکه کښې خلقو لره داسې موندلی دی چه هغوی شل رکعته کوی، امام احمد فرمایی پدې باره کښې مختلف اقوال دی اوصحیح فیصله نه ده کړې شوې، امام اسحاق فرمایی مونږ خو یو څلویښت رکعتونه اختیاروو، لکه څنګه چه د حضرت ابی بن کعب ﷺ نه نقل دی، اودویمه خبره دا چه ابن مبارك، امام احمد، او اسحاق په رمضان کښې له امام سره په جماعت کښې تراویح کول زیاتې خوښوی. او امام شافعی فرمایی چه که څوك قاری وی او هغه یی ځان له کوی نو دا ډیره بهتره ده.

## په عهد فاروقی او عهد عثمانی کښې تراویح :-

عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدٍ الْقَارِيِّ أَنَّهُ قَالَ خَرَجْتُ مَعَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ لَيْلَةً فِي رَمَضَانَ إِلَى الْمَسْجِدِ فَإِذَا النَّاسُ أَوْزَاعٌ مُتَفَرِّقُونَ يُصَلِّي الرَّجُلُ لِنَفْسِهِ وَيُصَلِّي الرَّجُلُ فَيُصَلِّي بِصَلَاتِهِ الرَّهْطُ فَقَالَ عُمَرُ إِنِّي أَرٰى لَوْ جَمَعْتُ هٰؤُلَاءِ عَلٰى قَارِئٍ وَاحِدٍ لَكَانَ أَمْثَلَ ثُمَّ عَزَمَ فَجَمَعَهُمْ عَلٰى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ (بخاری ص۲۶۹، مسلم ص۲۵۹ ج۱).

**ترجمه** : حضرت عبد الرحمن بن عبد القاری نه روایت دې هغوی فرمایی چه د رمضان په شپه

کښې د حضرت عمرؓ سره د جومات طرف ته ووتلم، نو ومې ليدل چه خلق په مختلفو ډلوکښې متفرق دی، چا ځان له مونځ کولو او څوك داسې وو چه يوې ډلې به په هغه پسې مونځ کولو، حضرت عمر ؓ وفرمايل: زما گومان دې چه که زه دوی په يو قاری پسې را جمع کړم نو دا به ډيره بهتره وی، بيا هغوی دوی لره د حضرت ابی بن کعب ؓ په امامت کښې راجمع کړل.

امام بيهقی روايت نقل کړې دې چه:

وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ بِإِسْنَادٍ صَحِيحٍ عَنْ سَائِبِ بْنِ يَزِيدَ قَالَ كَانُوا يَقُومُونَ عَلَى عَهْدِ عُمَرَ ؓ فِي شَهْرِ رَمَضَانَ بِعِشْرِينَ رَكْعَةً. (بيهقی ص۴۹۶ ج۲)

**ترجمه**: امام بيهقی په صحيح سند سره رانقل کړی دی (له سائب بن يزيد ؓ نه) هغوی فرمايی چه خلقو به د حضرت عمر ؓ په دور کښې شل رکعته تراويح کولې.

وَرُوِيَ مَالِكٌ عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ عِشْرِينَ رَكْعَةً. (فتح الباری ص۱۵۷ ج۵، و كذا فی مختصر قيام الليل وقيام رمضان ص۱۵۷ ج مطبوعه مكتبه اثريه سانگله هل).

**ترجمه**: او امام مالك د حضرت سائب بن يزيد نه شل رکعته نقل کړې دی.

عَنْ حَسَنِ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رَفِيعٍ قَالَ كَانَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ يُصَلِّي بِالنَّاسِ فِي رَمَضَانَ بِالْمَدِينَةِ عِشْرِينَ رَكْعَةً وَيُوتِرُ بِثَلَاثٍ (مصنف ابی شيبه ص۳۹۳ ج۲).

**ترجمه**: حسن بن عبدالعزيز بن رفيع فرمايی چه حضرت ابی بن کعب ؓ به مدينه منوره کښې په رمضان شريف کښې شل رکعته کول، او درې رکعته به يې وتر کول.

عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ أَمَرَ رَجُلًا يُصَلِّي بِهِمْ عِشْرِينَ رَكْعَةً (مصنف ابن ابی شيبه ص۳۹۳ ج۲).

**ترجمه**: يحيی بن سعيد فرمايی چه حضرت عمر ؓ يو سړی ته حکم وکړو چه هغه خلقو ته شل رکعته تراويح مونځ ورکړی.

امام ابن تيميه ليکی:

فَلَمَّا جَمَعَهُمْ عُمَرُ عَلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ كَانَ يُصَلِّي بِهِمْ عِشْرِينَ رَكْعَةً. (فتاوی ص ابن تيميه ص۲۷۲ ج۲۲)

**ترجمه**: پس کله چه حضرت عمر ؓ خلق په ابی بن کعب ؓ باندې جمع کړل نو هغوی به خلقوته شل رکعته تراويح مونځ ورکولو.

امام ابن تيميه وړاندې ليکلی دی چه:

قَامَ بِهِمْ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ فِي زَمَنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ عِشْرِينَ رَكْعَةً (الی ان قال) وَيُوتِرُ بَعْدَهَا بِثَلَاثٍ. (فتاوی ابن تيميه کبری ص۱۲۰ ج۲۳).

**ترجمه**: حضرت ابی بن کعب ؓ د حضرت عمر ؓ په زمانه کښې خلقوته شل رکعته تراويح

کولې او دهغې نه وروسته يې درې رکعته وتر وکړل.

عَنْ يَزِيْدَ بْنِ رُوْمَانَ قَالَ كَانَ النَّاسُ يَقُوْمُوْنَ فِيْ زَمَانِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ ﷺ فِيْ رَمَضَانَ بِثَلَاثٍ وَعِشْرِيْنَ رَكْعَةً.
(سنن الكبرى للبيهقي ص۴۹۶ ج۲)

**ترجمه**: يزيد بن رومان رحمه الله نه روايت دې هغوی فرمايي چه خلقو به د حضرت عمر ﷺ په زمانه کښې په رمضان کښې درويشت (۲۳) رکعته کول.

**حضرت عمر ﷺ اوحضرت علی ﷺ به له خلقو سره په جماعت تراويح ادا کولې:-**

وَقَدْ جَاءَ عَنْ عُمَرَ اَنَّهُ كَانَ يُصَلِّيْ فِي الْجَمَاعَةِ وَبِهٰذَا قَالَ الْمُزَنِيُّ وَابْنُ عَبْدِ الْحَكَمِ وَجَمَاعَةٌ مِّنْ اَصْحَابِ اَبِيْ حَنِيْفَةَ قَالَ اَحْمَدُ كَانَ جَابِرٌ وَّعَلِيٌّ وَّعَبْدُ اللّٰهِ يُصَلُّوْنَ فِيْ جَمَاعَةٍ (مغنی ابن قدامه ص۱۶۸ ج۲).

**ترجمه**: له حضرت عمر ﷺ نه روايت دې چه هغوی ﷺ تراويح د جماعت سره ادا کولې، او همدغه رنګې ويلی دی مزنی، ابن عبدالحکم، او د امام ابو حنيفه د اصحابو يو جماعت، امام احمد ويلې دی چه حضرت جابر ﷺ حضرت علی ﷺ اوعبدالله ﷺ به (تراويح) د جماعت سره ادا کولې

عَنْ سَائِبِ بْنِ يَزِيْدَ قَالَ اَمَرَ عُمَرُ اُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ وَّتَمِيْمًا الدَّارِيَّ اَنْ يَّقُوْمَا لِلنَّاسِ فِيْ رَمَضَانَ بِاِحْدٰى عَشَرَ رَكْعَةً فَكَانَ الْقَارِئُ يَقْرَءُ بِالْمِئِيْنَ حَتّٰى كُنَّا نَعْتَمِدُ عَلَى الْعَصَاءِ مِنْ طُوْلِ الْقِيَامِ فَمَا كُنَّا نَنْصَرِفُ اِلَّا فِيْ فُرُوْعِ الْفَجْرِ. (موطا امام مالك ص۹۸).

**ترجمه**: حضرت سائب بن يزيد ﷺ نه روايت دې چه حضرت عمر ﷺ حضرت ابی بن کعب ﷺ او تميم داری ته حکم وکړو چه هغوی خلقو ته يوولس (۱۱) رکعته په رمضان کښې وکړی، نو قاری به هغه سورتونه لوستل، چه د هغې آيتونه د سلو نه زيات دی، نو مونږ خلقو به د زياتې ولاړې له کبله په همسا تکيه لګولې وه، تردې چه مونږ به کله د مونځ نه فارغيدلو نو سحر به نزدې وو.

دا حالت په ابتداء کښې وو کله چه رکعتونه کم وواو قرائت زيات وو.

اَلْاَعْرَجِ قَالَ مَا اَدْرَكْنَا النَّاسَ اِلَّا وَهُمْ يَلْعَنُوْنَ الْكَفَرَةَ فِيْ رَمَضَانَ قَالَ وَكَانَ الْقَارِئُ يَقْرَءُ سُوْرَةَ الْبَقَرَةِ فِيْ ثَمَانِ رَكَعَاتٍ وَاِذَا قَامَ بِهَا فِي اثْنَتَيْ عَشَرَ رَكْعَةً رَاَى النَّاسُ اَنَّهُ خَفَّفَ. (موطا امام مالك ص۹۹).

**ترجمه**: اعرج رحمه الله نه روايت دې، هغوی فرمايي چه هغوی به په رمضان کښې په کافرو لعنت ويلو، (په دعا کښې) او قاری به سورة بقره په اتو رکعتو کښې لوستله، اوکله چه به هغوی سورة بقره په دولسو رکعتونو کښې لوستله نو خلقو به دا خيال کولو چه هغه تخفيف وکړو.

امام بيهقی فرمايي چه د حضرت عمر ﷺ نه دوه روايتونه نقل دی، يوولسو والا او دويم شلو والا، او دواړو روايتونو کښې تطبيق ممکن دې، ځکه چه: (وَيُمْكِنُ الْجَمْعُ بَيْنَ الرِّوَايَتَيْنِ فَاِنَّهُمْ كَانُوْا

يَقُوْمُوْنَ بِإِحْدَىٰ عَشَرَةَ ثُمَّ كَانُوْا يَقُوْمُوْنَ بِعِشْرِيْنَ وَيُوْتِرُوْنَ بِثَلَاثٍ. (سنن الکبری ص۴۹۶ ج۲).

**ترجمه** : اول به هغوی یوولس رکعتونه کول، بیا په آخر کښې شل رکعته تراویح ، اودرې رکعته به یې وتر کول.

د آثار السنن مصنف علامه قسطلانی د شارح د بخاری په حوالې سره لیکلې دی.

بِأَنَّهُمْ يَقُوْمُوْنَ بِإِحْدَىٰ عَشَرَةَ ثُمَّ قَامُوْا بِعِشْرِيْنَ وَأَوْتَرُوْا بِثَلَاثٍ وَقَدْ عَدُّوْا مَا وَقَعَ زَمَنَ عُمَرَ ﷺ كَالْإِجْمَاعِ.

(التعلیق الحسن مع اثار السنن ص۵۳ ج۲)

**ترجمه** : چه اول به هغوی یوولس رکعتونه کول، بیا یی شل رکعتونه او درې وتر کول، اوکوم عمل چه د حضرت عمر﷛ په زمانه کښې واقع شو، خلقو هغه د اجماع په شان ګڼلې دې.

امام شعرانی په خپل کتاب «کشف الغمه» کښې لیکلی دی چه :

وَكَانُوْا يُصَلُّوْنَ فِيْ أَوَّلِ زَمَانِ عُمَرَ ﷺ بِثَلَاثِ عَشَرَ رَكْعَةً وَكَانَ الْقَارِئُ يَقْرَأُ بِالْمِئِيْنَ بَيْنَ الْآيَاتِ حَتّٰى كَانَ النَّاسُ يَعْتَمِدُوْنَ عَلَى الْعِصِيِّ مِنْ طُوْلِ الْقِيَامِ وَكَانَ إِمَامُهُمْ أُبَيَّ بْنِ كَعْبٍ وَتَمِيْمِ الدَّارِيِّ ﷺ ثُمَّ إِنَّ عُمَرَ ﷺ أَمَرَ بِفِعْلِهَا ثَلَاثًا وَعِشْرِيْنَ رَكْعَةً ... وَتْرًا وَاسْتَقَرَّ الْأَمْرُ عَلٰى ذٰلِكَ فِي الْأَمْصَارِ (کشف الغمه ص۱۱۶ ج۱).

**ترجمه** : چه د حضرت عمر﷛ د خلافت ابتدايي دور کښې تراویح دیارلس رکعته کیدلې، او قاری به اوږده سورتونه لوستل، تردې چه د ډیرې ولاړې له کبله به خلکو په همسا تکیه لګوله، او په هغه ورځو کښې به امام ابی بن کعب﷛ او حضرت تمیم داری وو ، بیا حضرت عمر﷛ د درویشت رکعتونو کولو حکم وکړو، شل رکعته تراویح ، او درې رکعته وتر ، او بیا په دې معامله پاتې شوه په مختلف ښارونو کښې.

علامه ابن حجر عسقلانی ﷫ لیکلې دی:

وَالْجَمْعُ بَيْنَ هٰذِهِ الرِّوَايَاتِ مُمْكِنٌ بِاخْتِلَافِ الْأَحْوَالِ. (فتح الباری ص۲۰۰ ج۵).

**ترجمه** : پدې روایاتو کښې تطبیق دا ممکن دی چه دا په مختلف حالاتو باندې مبنی وی.

له ذکر شوو حوالونه دا خبره ښکاره کیږی، چه د حضرت عمر﷛ په ابتدايي دور کښې معامله مختلف فیه پاتې شوې ده، کله دیارلس رکعته، کله یوولس رکعته، کله ددینه هم زیات ، بیا په آخرکښې په شلو باندې معامله پاتې شوه او د ټولو مهاجرینو او انصارو په دې باندې اجماع وشوه

**تراویح په عهد مرتضوی کښې** :- عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِيِّ عَنْ عَلِيٍّ ﷺ قَالَ دَعَا الْقُرَّاءَ فِيْ رَمَضَانَ فَأَمَرَ مِنْهُمْ رَجُلًا يُصَلِّيْ بِالنَّاسِ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً وَكَانَ عَلِيٌّ يُوْتِرُ بِهِمْ. (سنن الکبری للبیهقی ص۴۹۶ ج۲).

**ترجمه** : حضرت عبدالرحمن سلمی ﷫ نه روایت دې چه حضرت علی ﷛ په رمضان کښې قاریان را وغوښتل ، بیا یی یو سړی ته حکم وکړو چه خلقو ته شل رکعته وکړی، او حضرت علی﷛

به په خپله وتر ورکول

عَنْ أَبِي الْحَسْنَاءِ أَنَّ عَلِيًّا أَمَرَ رَجُلًا يُصَلِّي بِهِمْ فِي رَمَضَانَ عِشْرِينَ رَكْعَةً. (مصنف ابن أبي شيبه ص ۳۹۳ ج ۲).

**ترجمه**: ابو الحسناء نه روایت دي چه حضرت علی ﷜ یو سړی ته حکم وکړو چه خلقو ته په رمضان کښې شل رکعته تراویح وکړي

عَنْ شُتَيْرِ بْنِ شَكَلٍ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ عَلِيٍّ أَنَّهُ كَانَ يَؤُمُّهُمْ فِي شَهْرِ رَمَضَانَ بِعِشْرِينَ رَكْعَةً وَيُوتِرُ بِثَلَاثٍ وَفِي ذٰلِكَ قُوَّةٌ. (سنن الكبرى ص ۴۹۶ ج ۲، مصنف ابن ابی شيبه ص ۳۹۳ ج ۲).

**ترجمه**: شتير بن شكل ﷫ د حضرت علی ﷜ د اصحابو نه دي، هغوی به خلقو ته په رمضان کښې شل رکعته تراویح کولې، او درې رکعته وتر، امام بیهقی فرمایی چه دا قوی روایت دي.

او د رسول الله ﷺ ارشاد مبارك دي چه

عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِي وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِينَ الْمَهْدِيِّينَ تَمَسَّكُوا بِهَا وَعَضُّوا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ. (ابوداود ص ۲۷۹ ج ۲، ترمذی ص ۳۹۳ ج)

ترجمه: اي خلقو! زما سنت لازم ونیسئ، او زما د خلفاء راشدینو سنت هم لازم ونیسئ، چه هدایت یافته او هدایت کونکی دی. او په غاښونو سره دا مضبوط ونیسئ.

**د تراویح رکعتونو شمیر له نورو صحابه کرامو اوتابعینو او امامانو نه**:- مشهور تابعی حضرت عطاء بن ابی رباح ﷫ (چه د امام اعظم ابو حنیفه ﷫ د احادیثو استاد وو، او په مکه مکرمه کښې اوسیدلو) له هغه نه روایت دي چه:

عَنْ عَطَاءٍ قَالَ أَدْرَكْتُ النَّاسَ وَهُمْ يُصَلُّونَ ثَلَاثَةً وَعِشْرِينَ رَكْعَةً بِالْوِتْرِ. (مصنف ابن ابی شيبه ص ۳۹۳ ج ۲، نیل الاوطار ص ۵۰ ج ۳)

**ترجمه**: له حضرت عطاء ﷫ نه روایت دي چه خلق به مې داسې موندل ، چه هغوی به درویشت (۲۳) رکعته تراویح کولې، سره د وترونه.

عَنْ أَبِي الْخَصِيبِ قَالَ كَانَ يَؤُمُّنَا سُوَيْدُ بْنُ غَفَلَةَ فِي رَمَضَانَ فَيُصَلِّي خَمْسَ تَرْوِيحَاتٍ عِشْرِينَ رَكْعَةً. (بیهقی ص ۴۹۶ ج ۲)

**ترجمه**: ابو الخطیب فرمایی چه سوید بن غفله مونږ ته په رمضان کښې امامت کولو، نو هغوی به پنځه ترویحات کول (یعنی شل رکعته).

عَنْ سَعِيدِ بْنِ عُبَيْدٍ أَنَّ عَلِيَّ بْنَ رَبِيعَةَ كَانَ يُصَلِّي بِهِمْ فِي رَمَضَانَ خَمْسَ تَرْوِيحَاتٍ وَيُوتِرُ بِثَلَاثٍ (مصنف ابن ابی شيبه ص ۳۹۳ ج ۲)

**ترجمه**: سعید بن عبید ﷫ بیان کوی، چه علی بن ربیعه ﷫ خلقو ته په رمضان کښې پنځه

تراویحات کول، اودرې رکعته وتر به یې اداء کول.

عَنْ نَافِعِ بْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ ابْنُ مُلَيْكَةَ يُصَلِّي بِنَا فِي رَمَضَانَ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً (مصنف ابن ابی شیبه ص ۳۹۳ ج ۲)

**توجمه**: حضرت نافع بن عمر رحمه الله فرمایی چه حضرت ابن ابی ملیکه مونږ ته په رمضان کښې شل رکعته تراویح مونځ کولو.

امام نووی شارح د مسلم لیکلی دی چه:

مَذْهَبُنَا أَنَّهَا عِشْرُوْنَ رَكْعَةً بِعَشْرِ تَسْلِيْمَاتٍ غَيْرَ الْوِتْرِ فَذَلِكَ خَمْسُ تَرْوِيْحَاتٍ وَالتَّرْوِيْحَةُ أَرْبَعُ رَكَعَاتٍ بِتَسْلِيْمَتَيْنِ هٰذَا مَذْهَبُنَا وَبِهِ قَالَ أَبُوْ حَنِيْفَةَ وَأَصْحَابُهُ وَأَحْمَدُ وَدَاوُدُ وَغَيْرُهُمْ وَنَقَلَهُ الْقَاضِيْ عِيَاضُ عَنْ جُمْهُوْرِ الْعُلَمَاءِ، (مهذب ص ۳۲ ج ۲).

**توجمه**: زمونږ دا مسلك دې چه دا تراویح شل رکعته دی، له لس سلامونو سره د وترونه علاوه پس دا به پنځه ترویحې وی، یوه ترویحه د څلورو رکعتونو وی، د دوو سلامونو سره، دا زمونږ مذهب دې، او دا مذهب د امام ابوحنیفه او دهغه د اصحابو دې، او د امام احمد او داود ظاهری هم همدا مذهب دې، او لدینه علاوه د نورو هم دا مذهب دې، قاضی عیاض د جمهورو علماء نه دا نقل کړې دی.

ابن قدامه (متوفی ۶۲۰ هـ) لیکلی دی چه:

وَقِيَامُ شَهْرِ رَمَضَانَ عِشْرُوْنَ رَكْعَةً يَعْنِيْ صَلَاةَ التَّرَاوِيْحِ وَهِيَ سُنَّةٌ مُؤَكَّدَةٌ وَأَوَّلُ مَنْ سَنَّهَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ (الی ان قال) وَنِسْبَةُ التَّرَاوِيْحِ إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رضي الله عنه لِأَنَّهُ جَمَعَ النَّاسَ عَلَى أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، (مغنی ابن قدامه ص ۱۶۶ ج ۲).

**توجمه**: په قیام رمضان کښې تراویح شل رکعته دی، او دا سنت مؤکده دی، د ټولو نه وړاندې رسول الله ﷺ دا سنت ګرځولی دی (الی ان قال) ددې سنتیت چه د حضرت عمر رضي الله عنه طرف ته منسوب کیږی دهغې وجه داده چه حضرت عمر رضي الله عنه خلق په حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه راجمع کړې وو.

وَالْمُخْتَارُ عِنْدَ أَبِيْ عَبْدِ اللهِ (أَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ فِيْهَا عِشْرُوْنَ رَكْعَةً وَبِهِ قَالَ الثَّوْرِيُّ وَأَبُوْ حَنِيْفَةَ وَالشَّافِعِيُّ وَقَالَ مَالِكٌ سِتَّةٌ وَثَلَاثُوْنَ (الی ان قال) أَنَّ عُمَرَ لَمَّا جَمَعَ النَّاسَ عَلَى أُبَيِّ ابْنِ كَعْبٍ فَكَانَ يُصَلِّيْ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً (الی ان قال) رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ وَرَوَاهُ السَّائِبُ بْنُ يَزِيْدَ وَرُوِيَ عَنْهُ مِنْ طُرُقٍ وَرَوَى مَالِكٌ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ رُوْمَانَ قَالَ كَانَ النَّاسُ يَقُوْمُوْنَ فِيْ زَمَنِ عُمَرَ فِيْ رَمَضَانَ بِثَلَاثٍ وَعِشْرِيْنَ رَكْعَةً وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّهُ أَمَرَ رَجُلًا يُصَلِّيْ بِهِمْ فِيْ رَمَضَانَ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً وَهٰذَا كَالْإِجْمَاعِ. (مغنی ابن قدامه ص ۱۶۷ ج ۲)

**توجمه**: او د حضرت ابو عبدالله امام احمد بن حنبل په نزد مختار شل رکعته دی، اودا خبره حضرت سفیان ثوری، امام ابو حنیفه، او امام شافعی هم کړې ده، او امام مالك فرمایی چه شپږ

دیرش رکعته دی. حضرت عمرؓ چه خلق کله حضرت ابی بن کعب ؓ باندې جمع کړل، نو هغوی‌ؓ خلقو ته شل رکعته کول. ابو داؤد هم دا روایت کړې دې، او سائب بن یزید هم او حضرت عمرؓ نه په مختلفو سندونو سره مروی دې، او امام مالك د یزید بن رومان نه روایت کړې دې چه خلقو دحضرت عمرؓ په عهد کښې په رمضان المبارك کښې درویشت رکعته کول، او حضرت علیؓ یو سړی ته حکم وکړو چه هغه خلقو ته په رمضان کښې شل رکعته وکړی او په شل رکعتو ګویا اجماع ده.

ابو ابراهیم، اسماعیل بن یحیی المزنی دامام شافعی نه نقل کړی دی چه:

**قَالَ فَاَمَّا قِيَامُ شَهْرِ رَمَضَانَ (الی ان قال) اَحَبُّ اِلَيَّ عِشْرُوْنَ لِاَنَّهُ رُوِيَ عَنْ عُمَرَؓ كَذٰلِكَ يَقُوْمُوْنَ بِمَكَّةَ وَيُوْتِرُوْنَ بِثَلَاثٍ.(المختصر المزنی ص۲۱).**

**ترجمه**: د تراویح مونځ ماته شل رکعته زیات محبوب دی، لدې کبله چه حضرت عمرؓ نه دا مروی دی، همدغه رنګې په مکه مکرمه کښې هم خلقو شل رکعته تراویح اودرې رکعته وتر کول.

**د امام ولی الله محدث دهلوی رحمه الله تحقیق**:- حضرت شاه ولی الله محدث دهلوی لیکلې دی

**قوله ﷺ مَنْ قَامَ رَمَضَانَ اِيْمَانًا وَّاحْتِسَابًا غُفِرَلَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ وَذٰلِكَ لِاَنَّهُ بِالْاَخِرِ بِهٰذِهِ الدَّرَجَةِ اَمْكَنَ مِنْ نَفْسِهٖ لِنَفَحَاتِ رَبِّهِ الْمُقْتَضِيَةِ لِظُهُوْرِ الْمَلَكِيَّةِ وَتَكْفِيْرِ سَيِّئَاتٍ وَزَادَهُ الصَّحَابَةُ وَمَنْ بَعْدَهُمْ فِيْ قِيَامِ رَمَضَانَ ثَلَاثَةَ اَشْيَاءٍ.**

**ترجمه**: د رسول الله ﷺ ارشاد دې چه چا د ایمان اونیکئ طلب کولو سره په رمضان کښې قیام وکړو، ده ته به وړاندینی ګناهونه معاف کړې شی، اودا لدې کبله چه دې قیام کونکی دا درجه اختیار کړې ده، نوخپل نفس یې اماده کړې دې چه هغه دخپل رب د مهربانئ لهرونو ته متوجه کړی، هغه لهرونه داسې دی چه د مَلکیت د ظهور تقاضا کوی،او د ګناهونو د ختمولو باعث دی، صحابه کرامو او وروستو راتلونکو د درې څیزونو اضافه کړې ده، د قیام رمضان په سلسله کښې:

۱ - **اَلْاِجْتِمَاعُ لَهٗ فِيْ مَسَاجِدِهِمْ وَذٰلِكَ لِاَنَّهٗ يُفِيْدُ التَّيْسِيْرَ عَلٰى خَاصَّتِهِمْ وَعَامَّتِهِمْ.**

۱ - یو دا چه تراویح په اجتماعی شکل کښې په جوماتونو کښې ادا کول، او دا ددې دپاره چه دا عام اوخاص ټولو د پاره د آسانئ باعث دی.

۲ - **وَاَدَاءُهٗ فِيْ اَوَّلِ اللَّيْلِ مَعَ الْقَوْلِ بِاَنَّ صَلٰوةَ اٰخِرِ اللَّيْلِ مَشْهُوْدَةٌ وَهِيَ اَفْضَلُ كَمَا نَبَّهَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لِهٰذَا التَّيْسِيْرِ الَّذِيْ اَشَرْنَا اِلَيْهِ.**

۲ - او دویمه خبره دا چه دا دشپې په اوله حصه کښې ادا کول باوجود ددې قول نه چه د آخری شپې مونځ د الله ﷻ د رحمت او دفرشتو د نزول باعث دې، اودا افضل هم دې، لکه څنګه چه

حضرت عمرؓ دا خبره ظاهره کړې ده، لیکن دا محض د آسانئ له کبله چه د هغې طرف ته مونږ اشاره کړې ده، چه اوله شپه کښې دا مونځ ادا کیږي.

۳ - وَعَدَدُهَا عِشْرُوْنَ رَكْعَةً. وَذٰلِكَ اَنَّهُمْ رَاَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَرَّعَ لِلْمُحْسِنِيْنَ اِحْدٰى عَشَرَةَ رَكْعَةً فِيْ جَمِيْعِ السَّنَةِ فَحَكَمُوْا اَنَّهُ لَا يَنْبَغِيْ اَنْ يَّكُوْنَ حَظُّ الْمُسْلِمِ فِيْ رَمَضَانَ عِنْدَ قَصْدِهِ الْاِقْتِحَامَ فِي لُجَّةِ التَّشَبُّهِ بِالْمَلَكُوْتِ اَقَلَّ مِنْ ضِعْفِهَا. (حجة الله البالغة، ج: ۲، ص: ۱۸).

۳ - دریمه خبره داده چه شلو رکعتونو باندې اتفاق شوې دې، او دا له دې کبله چه محسنینو دپاره یوولس رکعته په ټول کال کښې مقرر کړې شوی دی، (ځکه چه تهجد بالعموم اته رکعته او درې وتر ټول کال ادا کیږي) نو هغوی دا فیصله وکړه، چه مناسب نه دی چه د یو مسلمان حصه په رمضان مبارك کښې د ټول کال د حصې نه دوچنده نه وی، چه کله هغه د ملکوت سره د تشبیه په موجونو کښې د غوپه کیدو اراده لری.

لدینه علاوه د الله ﷻ ارشاد پدې سلسله کښې واضح دې او هغه دا دې چه:

(فَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَّهٗ). (البقرة ایت ۱۸۴ پ ۲)

**ترجمه**: اوکوم سړی چه په خوشحالئ سره زیاته نیکی وکړه، هغه دده دپاره بهتره ده.

(وَلِتُكَبِّرُوا اللهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ). (البقره پ ۲)

**ترجمه**: او دې دپاره چه تاسو د الله ﷻ لويی بيان کړئ، ځکه چه هغه تاسو ته هدايت وکړو، او دې دپاره چه تاسو د هغه د نعمتونو شکر اداکړئ.

لدینه علاوه طبرانی له حضرت ابو هریره ؓ نه مرفوعا روایت نقل کړې دې:

رسول الله ﷺ فرمايي چه مونځ يو بهترين مقرر شوې عمل دې ،نو څوك چه طاقت لری، چه د هغه نه زياته حصه واخلی نو هغه ته پكار دی چه هغه زياته حصه واخلی ، (يعنی زيات مونځ دې وكړی)

**مسئله**:- په تراويحو كښې يوځل قرآن كريم د ترتيب سره ويل سنت مؤكده دی، د خلقو د سستئ او د بې پرواهئ له كبله به دا نه شی پريښودلې. (هدایه ص ۱۰۰ ج ۱، شرح نقایه ص ۱۰۴ ج ۱)

زمونږ د امام ابو حنيفه په باره كښې ذكر دی چه:

عَنْ يَحْيَى بْنِ نَصْرٍ قَالَ كَانَ اَبُوْ حَنِيْفَةَ رُبَّمَا خَتَمَ الْقُرْاٰنَ فِيْ شَهْرِ رَمَضَانَ سِتِّيْنَ خَتْمَةً (تاريخ بغداد ص ۳۵۷ ج ۱۳)

**ترجمه**: يحيی بن نصر فرمايي چه امام ابو حنيفه به په رمضان كښې شپيته د قرآن مجيد ختمونه كول.

شرح نقايه او مراقی الفلاح كښې راغلی دی چه:

عَنْ اَبِيْ حَنِيْفَةَ اَنَّهٗ كَانَ يَخْتِمُ اِحْدٰى وَّسِتِّيْنَ خَتْمَةً فِيْ كُلِّ يَوْمٍ خَتْمَةٌ وَّفِيْ كُلِّ لَيْلَةٍ خَتْمَةٌ وَّفِيْ كُلِّ التَّرَاوِيْحِ خَتْمَةٌ

(شرح نقایه ص۱۰۳ ج۱، مراقی الفلاح ص۲۲۶)

**ترجمه** : له امام ابوحنیفه نه روایت دی چه هغوی به په رمضان المبارک کښې یو شپیته کرته قرآن ختمولو، یو قرآن د ورځې په وخت، او یو د شپې په وخت، او یو په تراویح کښې.

**مسئله** :-که قرآن کریم په پنځلسم، شلم، یویشتم، پینځویشتم، وغیره تاریخونو کښې ختم شو، نو تراویح به نشی پریښودلې، د رمضان تر آخره پورې تراویح کول پکار دی.

**مسئله** :- وتر د تراویح نه وروسته کول افضل دی، لیکن که وتر د تراویح نه وړاندې وکړې شول نو دا هم جائز دی. (کبیری ص۴۰۳)

**مسئله** :- د څلور رکعته تراویح نه وروسته همدومره اندازه (څومره چه د څلورو رکعتو دی) کیناستل افضل دی. (هدایه ص۹۹ ج۱، شرح نقایه ص۱۰۳)

عَنْ زَيْدِبْنِ وَهْبٍ قَالَ كَانَ عُمَرُبْنُ الْخَطَّابِ ﷺ يُرَوِّحُنَا بَيْنَ التَّرْوِيْحَتَيْنِ قَدْرَمَا يَذْهَبُ الرَّجُلُ مِنَ الْمَسْجِدِ إِلَى سَلْعٍ (بیهقی ص۴۹۷ ج۲).

**ترجمه** : زید بن وهب فرمایی چه حضرت عمر ﷺ به مونږ ته څلورو رکعته ترویحه کښې استراحت (دمه) راکوله، یعنی دومره وخت به یی وقفه کوله چه په څومره وخت کښې سړې د مسجد نبوی نه سلع غر ته تللې شی.

عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُصَلِّي أَرْبَعَ رَكَعَاتٍ فِي اللَّيْلِ ثُمَّ يَتَرَوَّحُ فَأَطَالَ. (بیهقی ص۴۹۷ ج۲)

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه ﷺ فرمایی چه رسول الله ﷺ به څلور رکعته د شپې په وخت کښې کول، بیا به هغوی ﷺ ډیر وخته پورې استراحت او وقفه کوله.

امام بیهقی لیکلی دی چه دا روایت ضعیف دې.

قَوْلُهُ ثُمَّ يَتَرَوَّحُ إِنْ ثَبَتَ فَهُوَ أَصْلٌ فِي تَرَوُّحِ الْإِمَامِ فِي صَلَوٰةِ التَّرَاوِيْحِ (بیهقی ص۴۹۷ ج۲).

**ترجمه** : ددې (تروح) له لفظ نه د تراویحو په داخل کښې په استراحت باندې استدلال شوې دې، په شرط ددې چه دا لفظ د حدیث نه ثابت وی.

**مسئله** :- که دومره اندازه ناسته مشکله وی، او خلق دومره وخت ناسته برداشت نه کړې شی، نو کمه اندازه هم کیناستې شی، پدې مینځ وقفه کښې نفل کولې شی، یا تسبیح، درود شریف، استغفار دې کوی، یا دې له تسبیحاتو نه یوه تسبیح وایی لیکن څه خاص ذکر په حدیث شریف کښې ددې موقع د پاره مقرر شوې نه دې.

سُبْحَانَ ذِي الْعِزَّةِ وَالْجَبَرُوْتِ سُبْحَانَ الْحَيِّ الَّذِيْ لَا يَمُوْتُ. (کنز العمال ص۲۳۳ ج۱، بحواله دیلمی عن معاذ)

**ترجمه** : الله جل جلاله پاك دې چه د ملك او پادشاهی مالك دې او د غلبې او تسلط مالك دې،

او هغه الله پاك دي چه هغه همیشه ژوندي دي او په هغه هیڅکله مرګ نشی راتللي.

سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوْسِ رَبِّ الْمَلَائِكَةِ وَالرُّوْحِ جُلِّلَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْأَرْضُ بِالْعِزَّةِ وَالْجَبَرُوْتِ. (کنز العمال ج: ۱، ص: ۲۱۲).

**ترجمه**: پاك دي هغه الله چه هغه د پادشاهی اوپاکوالی مالك دي اوهغه د فرشتو او جبرئیل رب دي ودرول یی دی آسمانونه اوځمکي له عزت اوتسلط او غلبي سره.

فقهاء کرامو لیکلي دی، چه د ناستي په حالت کښي دي دا تسبیح وایی:

سُبْحَانَ ذِی الْمُلْكِ وَالْمَلَكُوْتِ سُبْحَانَ ذِی الْعِزَّةِ وَالْعَظَمَةِ وَالْقُدْرَةِ وَالْكِبْرِیَاءِ وَالْجَبَرُوْتِ سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْحَیِّ الَّذِیْ لَا یَمُوْتُ سُبُّوْحٌ قُدُّوْسٌ رَبُّنَا وَرَبُّ الْمَلٰئِكَةِ وَالرُّوْحِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ نَسْتَغْفِرُ اللهَ وَنَسْئَلُكَ الْجَنَّةَ وَنَعُوْذُبِكَ مِنَ النَّارِ

(شامی ص ۵۲۲ ج۱، مطبوعه مکتبه ماجدیه کوئته).

**ترجمه**: پاك دي د بادشاهی مالك، پاك دي د عزت او عظمت او قدرت اولویی او د تسلط مالك. پاك دي بادشاه چه ژوندي دي اوهیڅکله پرې پرې مرګ نه راځی، پاك دي زمونږ پروردګار او د فرشتو او جبریل پروردګار، دالله نه بغیر هیڅوك معبود نشته، مونږ د الله ﷻ نه ښښنه غواړو، اې الله ﷻ! مونږ له تانه د جنت سوال کوو او د دوزخ له اور نه پناه غواړو.

**مسئله**:- د تراویحو وخت د ماسخوتن نه وروسته دي. (کبیری ص۴۰۳)

**مسئله**:- که د تراویحو نه وروسته معلومه شي چه په فرضو کښې څه کوتاهی وه، نو د فرضو سره به د تراویح هم دوباره کول پکار وی. (کبیری ص۴۰۳)

**د تراویح نیت**:- د تراویح د شلو رکعتو کیدل د صحابو د اجماع نه ثابت دی، له همدي کبله علماء کرام فرمایی چه د تراویح نیت داسي کول پکار دی چه: (نَوَیْتُ اَنْ اُصَلِّیَ رَکْعَتَیْ صَلٰوةِ التَّرَاوِیْحِ سُنَّةَ النَّبِیِّ ﷺ وَاَصْحَابِهٖ). (علم الفقه مولانا عبد الشکور لکهنوی ص۲۰۱ ج۲)

**ترجمه**: نیت مي وکړو د دوه رکعته مونځ د تراویحو چه د رسول الله ﷺ اود صحابو سنت دی.

**په تراویحو کښي په قرآن آوریدو یا آورولو باندي اُجرت اخستل یا ورکول**:- حضرت مولانا قاسم نانوتوی په خپل مکاتیب کښي لیکلي دی چه عبادت اصلاً د الله ﷻ حق دي. الله ﷻ بعضي عبادات فرض او ضروری ګرځولی دی او بعضي یی سنت اومستحب ګرځولی دی، د انسانانو د سهولت په خاطر، لیکن د عبادت معاوضه اخستل بالکل درست نه دی، ځکه چه دچا حق خرڅول جائز نه دی.

**مسئله**:- د قرآن د اورولو اجرت په تراویحو کښي اخستل درست نه دی، ځکه چه د قرآن ویل

عبادت دې او عبادت باندې اجرت اخستل حرام دی.

**قَالَ فِيْ رَدِّ الْمُحْتَارِ الْآخِذُ وَالْمُعْطِيْ آثِمَانِ.**

**ترجمه**: يعنى اجرت اخستلو والا او وركولو والا دواړه ګنهګار دی. **(والله اعلم)**

**مسئله**:- حافظانو د پاره په اجرت باندې قرآن اورول حرام دې، او اجرت هم ناجائز دې. اذان و امامت او تعليم و وعظ دا متاخرينو په وجه د ضرورت «مجبورئې» استثناء كړې ده. قرآن اورولو كښې څه ضرورت «مجبورى» نشته. چا چه قرآن اورول په اذان باندې قياس كړې دی هغه غلط دی. **والله اعلم.**

**مسئله**:- په تراويحو كښې چه څوك كلام الله لولى او يا يې آورى نو په دې باندې اجرت وركول حرام دی، كله چه اجرت وركول حرام شو نو له **(اَلَمْ تَرَ كَيْفَ)** نه يې لوستل پكار دی **فقط والله اعلم.**

**مسئله**:- كچيرې د حافظ په زړه كښې د اخستلو خيال نه وو ، اوبيا ورته چا پيسې وركړې، نو صحيح دی. اوكومې پيسې چه خلق يې د رواج او عرف مطابق وركوى او حافظ صاحب يې هم په دې خيال باندې لولى ، اګر چه په ژبه باندې اظهار نه كوى، نو كار صحيح ندې . **فقط والله اعلم.**

«دا څلورواړه مسئلې د فتاوى رشيدې ه ص ۱۰۲ ،۱۰۱ ، نه اخستل شوى دى»

**آيا تهجد او تراويح يو مونځ دې؟**:- د جمهورو علماء كرامو او فقهاء عظامو او محدثينو حضرات په نزد باندې قيام الليل او د تهجد مونځ يو دې، او قيام رمضان او د تراويح مونځ يو دې، له همدې كبله محدثين ددې جدا جدا بابونه قائموى.

لكه چه امام نووى شارح د مسلم ليكى دى چه:

**اَلْمُرَادُ بِقِيَامِ رَمَضَانَ صَلٰوةُ التَّرَاوِيْحِ وَاتَّفَقَ الْعُلَمَاءُ عَلٰى اِسْتِحْبَابِهَا وَاخْتَلَفُوْا فِيْ اَنَّ الْاَفْضَلَ صَلٰوتُهَا مُنْفَرِدًا فِيْ بَيْتِهٖ اَمْ فِيْ جَمَاعَةٍ فِي الْمَسْجِدِ فَقَالَ الشَّافِعِيُّ وَجُمْهُوْرُ اَصْحَابِهٖ وَاَبُوْحَنِيْفَةَ وَاَحْمَدُ وَبَعْضُ الْمَالِكِيَّةِ وَغَيْرِهِمْ اَلْاَفْضَلُ صَلٰوتُهَا جَمَاعَةً كَمَا فَعَلَهٗ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ وَالصَّحَابَةُ ﷺ وَاسْتَمَرَّ عَمَلُ الْمُسْلِمِيْنَ عَلَيْهِ لِاَنَّهٗ مِنَ الشَّعَائِرِ الظَّاهِرَةِ فَاَشْبَهَ صَلٰوةَ الْعِيْدِ وَقَالَ مَالِكٌ وَاَبُوْيُوْسُفَ وَبَعْضُ الشَّافِعِيَّةِ وَغَيْرُهُمْ اَلْاَفْضَلُ فُرَادٰى فِي الْبَيْتِ لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ السَّلَامُ اَفْضَلُ الصَّلٰوةِ صَلٰوةُ الْمَرْءِ فِيْ بَيْتِهٖ اِلَّا الْمَكْتُوْبَةَ** (شرح نووى مع مسلم ص ۲۵۹ ج ۱).

**ترجمه**: له قيام رمضان نه مراد مونځ د تراويحو دې ، او د ټولو عالمانو ددې په استحباب باندې اتفاق دې . اختلاف په دې كښې دې چه آيا افضل په دې كښې په جماعت سره لوستل دی اوكه ځان ته په كور كښې ، امام شافعى او د هغه جمهور ملګرى او امام ابو حنيفه او امام احمد او بعض مالكيه وغيره دا فرمايى چه د جماعت سره ددې مونځ كول افضل دی، لكه څنګه چه حضرت

عمر ﷛ اونورو صحابه کرامو کړی دی ، او په همدې باندې د مسلمانانو عمل مسلسل را روان دې ځکه چه دا د ښکاره نښو نه ده نو دا داختر سره مشابه شوې، امام مالك ،امام ابو يوسف او بعضې شوافع وغيره دا فرمايي چه ددې په کور کښې ځان ته کول افضل دی ځکه چه د نبی ﷺ ارشاد دې چه دسړی افضل مونځ هغه دې کوم چه په کور کښې وکړی ، بغير د فرضو نه .

علامه کرمانی شارح د بخاری ليکی چه :

بَابُ فَضْلِ مَنْ قَامَ رَمَضَانَ اِتَّفَقُوْا عَلٰی اَنَّ الْمُرَادَ بِقِيَامِهٖ صَلَاةُ التَّرَاوِيْحِ (کرمانی علی البخاری ص ۱۵۲ ج ۹)

**ترجمه** : د تراويحو د فضيلت په باب کښې د محدثينو په دې باندې اتفاق دې چه د قيام رمضان نه مراد مونځ د تراويحو دې .

بعضې خلق په دې خبره باندې اصرار کوی چه تراويح اته رکعته دی او لدينه زياتې نشته، دوئ تهجد او تراويح ته يو مونځ وايی چه دروژو نه علاوه په نورو شپو کښې کوم تهجد مونځ دې هماغه په روژه کښې تراويح دی، په دې باندې زياد تر د ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه ﵂ لدې روايت نه استدلال کوی کوم چه په بخاری شريف او مسلم شريف وغيره کښې راغلې دې !

مَا كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَزِيْدُ فِيْ رَمَضَانَ وَلَا فِيْ غَيْرِهٖ عَلٰی اِحْدٰی عَشَرَةَ رَكْعَةً. (بخاری ص ۵۴، مسلم ص ۲۵۴ ج ۱)

**ترجمه** : نبی ﷺ به زيات مونځ نه کولو په رمضان او غير رمضان کښې بغير د يوولس رکعتو نه .

**جوابونه** : ۱- پدې روايت سره په تراويح دليل نيول غلط دی، ځکه چه امام بخاری او نورو محدثينو حضراتو دا د تهجدو په باب کښې ذکر کړې دې په حقيقت کښې لدينه د تهجدو مونځ مراد دې ، ځکه چه په غير رمضان کښې تراويح نشته ، بلکه د تهجدو مونځ وی ، د غير رمضان لفظ په تهجدو قرينه ده.

۲ - محدثين او فقهاء کرام د قيام الليل باب جدا او د قيام رمضان با ب جدا قائموی .

۳ - د تهجدو د مونځ په باره کښې د هغوی ﷺ نه مختلف رکعتونه ثابت دی .

عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ سَاَلْتُ عَائِشَةَ عَنْ صَلٰوةِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ بِاللَّيْلِ فَقَالَتْ سَبْعٌ وَتِسْعٌ وَاِحْدٰی عَشَرَةَ سِوٰی رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ . (بخاری ص ۱۵۳ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت مسروق ﵀ فرمايی چه ما د حضرت عائشه ﵂ نه د رسول الله ﷺ د تهجدو په باره کښې پوښتنه وکړه، نو ام المؤمنين ﵂ وفرمايل : کله به اوه رکعتونه کله نهه ۹ رکعتونه کله يوولس رکعتونه وو ، او دسحر دوه رکعته سنت به لدينه علاوه وو .

۴ - حافظ ابن حجر شارح د بخاری د دې روايت : (ما کان رسول الله ﷺ يزيد فی رمضان. (الی آخره) متعلق ليکلی دی چه :

(فَأَمَّا مَا أَجَابَتْ بِهِ مَسْرُوْقًا فَمُرَادُهَا إِنَّ ذٰلِكَ وَقَعَ مِنْهُ فِي أَوْقَاتٍ مُخْتَلِفَةٍ فَتَارَةً كَانَ يُصَلِّيْ سَبْعًا وَتَارَةً تِسْعًا وَتَارَةً إِحْدٰى عَشْرَةَ وَسَيَأْتِيْ بَعْدَ خَمْسَةِ أَبْوَابٍ مِنْ رِوَايَةِ أَبِيْ سَلَمَةَ عَنْهَا أَنَّ ذٰلِكَ كَانَ أَكْثَرَ مَا يُصَلِّيْهِ فِي اللَّيْلِ وَلَفْظُهُ مَا كَانَ يَزِيْدُ فِيْ رَمَضَانَ) . (فتح الباری ص۲۶۳ ج۳).

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها چه کوم جواب حضرت مسروق ته ورکړې دې دد ې مطلب دادې چه د رسول الله ﷺ نه په مختلفو اوقاتو کښې دا ثابت دی، کله به هغوی ﷺ اوه رکعته کول، کله نهه ۹ رکعته، اوکله به یوولس یی رکعته کول، ددې پنځه بابونو نه پس د حضرت ابو سلمه رضي الله عنه روایت دې، د ام المؤمنین نه، چه دا یوولس رکعتونه به رسول الله ﷺ اکثر وختونه کول،او دا خبره به په رمضان او غیر مضان دواړو کښې وه .

د تهجدو په باره کښې د رسول الله ﷺ واضح ارشاد موجود دې :

عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ (مرفوعا) فَصَلُّوْا أَيُّهَا النَّاسُ فِيْ بُيُوْتِكُمْ فَإِنَّ أَفْضَلَ الصَّلٰوةِ صَلٰوةُ الْمَرْءِ فِيْ بَيْتِهِ إِلَّا الْمَكْتُوْبَةَ (بخاری ص۱۰۱ ج۱،ص۱۰۸۳ ج۲).

**ترجمه** : اې خلقو! په خپلو کورونو کښې مونځ کوئ ځکه چه د سړی افضل مونځ هغه دې چه په کور کښې یی وکړی ، بغیر د فرض مونځ نه.

فَعَلَيْكُمْ بِالصَّلٰوةِ فِيْ بُيُوْتِكُمْ فَإِنَّ خَيْرَ صَلٰوةِ الْمَرْءِ فِيْ بَيْتِهِ إِلَّا الصَّلٰوةَ الْمَكْتُوْبَةَ (بخاری ص۱۰۸۲ ج۲،مسلم ص۲۶۶ ج۱).

**ترجمه** : تاسو اې خلقو! په خپلو کورونو کښې مونځ کوئ ځکه چه د سړی افضل او بهتر مونځ هغه دې چه هغه یی په کورکښې وکړی بغیر د فرض مونځ نه چه هغه په جومات کښې کول پکار دی

عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُصَلِّيْ مِنَ اللَّيْلِ فِيْ حُجْرَتِهِ. (بخاری ص۱۰۱ ج۱).

**ترجمه** : ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمایی چه رسول الله ﷺ د شپې په وخت په خپله حجره (کوټه) مبارکه کښې مونځ کولو .

عَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ صَلٰوةُ الْمَرْءِ فِيْ بَيْتِهِ أَفْضَلُ مِنْ صَلٰوتِهِ فِيْ مَسْجِدِيْ هٰذَا إِلَّا الْمَكْتُوْبَةَ. (ابوداود ص۱۴۹ ج۱،ترمذی ص۹۱،نسائی ص۲۳۷ ج۱).

**ترجمه** : حضرت زید بن ثابت رضي الله عنه نه روایت دې چه رسو ل الله ﷺ فرمایی چه د سړی مونځ په خپل کور کښې کول زیات افضل دی په نسبت زما ددې جومات (مسجدنبوی) کښې له کولو نه بغیر د فرض مونځ نه ، ددې خلاف دا خلق تراویح په جوماتونو کښې ولې کوی هرکله چه په کور کښې دهغې د کولو حکم دې ؟

د ام المؤمنین په دې روایت کښې راغلی دی چه :

يُصَلِّيْ أَرْبَعًا فَلَا تَسْئَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُوْلِهِنَّ. (بخاری ص۱۵۴ ج۱،مسلم ص۲۵۴ ج۱).

**ترجمه**: رسول الله ﷺ به دا څلور رکعتونه کول، بیا پوښتنه مه کوه د هغې د حسن او د هغې د اوږدوالی په باره کښې. ‹یعنی ډیر په عمده طریقه او اوږده رکعتونه به یې کول›.

نو دا حضرات دوه دوه ولې کوی؟ او بیا مختصر یې ولې کوی اوږدوی یې ولې نه؟

په (ماكان رسول الله ﷺ يزيد فى رمضان). (الخ) کښې د ام المؤمنین نفی کول داسې دی لکه څنګه چه هغوی په دې روایت کښې د صلوة ضحٰی نفی کړې ده.

مَاسَبَّحَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ سُبْحَةَ الضُّحٰى قَطُّ. (بخاری ص۱۵۳ ج۱).

**ترجمه**: رسو ل الله ﷺ صلوة ضحی کله هم نه دې کړې.

دام المؤمنین په دې روایت کښې راغلی دی چه: (ثُمَّ يُصَلِّيْ ثَلَاثًا). (بخاری ص۱۵۲ ج۱، مسلم ص۲۵۴ ج۲)

**ترجمه**: بیا هغوی ﷺ درې رکعته وتر کول.

رسول الله ﷺ د تراویح مونځ د جماعت سره صرف درې شپې ۲۳، ۲۵، ۲۷ پورې کړې وو، نو دا خلق یې ولې تول میاشت په جماعت سره کوی؟

په دې سلسله کښې د حضرت عمر ﷺ دجماعت والاسنت اخلی، اودشلو رکعتو والا یې پریږدی.

بیا رسول الله ﷺ په رومبۍ شپه د دریمې حصې تر شپې پورې په دویمه شپه د نیمې شپې پورې، په دریمه شپه د سحری تر وخت پورې تردې چه د پیشمنی د فوت کیدو خطره پیښه شوه، دغه مونځ کړې وو، نو بیا دا حضرات ددې مخالفت ولې کوی؟

په بعضې روایاتو کښې راځی چه هغوی ﷺ به د څلورو رکعتو نه پس ویده کیدل، بیا به پاڅیدل او څلور رکعته به یې کول.

نو تاسو نیمه پاره په فرضو کښې اونیمه په تراویحو کښې ویل پیش کړئ؟ په کوم صحیح حدیث کښې که واردشوی وی نو هغه پیش کړئ؟

مؤطا امام مالك او په نورو صحاحو کښې دا روایات موجود دی چه د هغې نه معلومیږی چه اته، یوولس، یا دیارلس، دا ټول د تهجدو سره تعلق لری اومختلفو وختونو کښې کمی، زیاتې هم کیږی لکه چه پدې روایت کښې دی:

عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يُصَلِّيْ مِنَ اللَّيْلِ اِحْدٰى عَشَرَةَ رَكْعَةً يُوْتِرُ مِنْهَا بِوَاحِدَةٍ فَاِذَا فَرَغَ اضْطَجَعَ عَلٰى شِقِّهِ الْاَيْمَنِ. (بخاری ص۱۵۱ ج۱، مسلم ص۲۵۳ ج۱، واللفظ له).

**ترجمه**: رسول الله ﷺ به د شپې یوولس رکعته ادا کول، او یو رکعت به یې د دوو سره یوځائ کولو او وتر کول به یې، کله چه به هغوی ﷺ فارغ شول نو په ښی اړخ باندې به څملاستل.

هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُصَلِّيْ بِاللَّيْلِ ثَلٰثَ عَشَرَةَ رَكْعَةً ثُمَّ

يُصَلِّي إِذَا سَمِعَ النِّدَاءَ بِالصُّبْحِ رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ (بخاری ص ۱۵۶ ج ۱).

**ترجمه** : ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي چه رسول الله ﷺ به د شپې ديارلس ركعته كول، بيا چه به يې كله د سبا اذان واوريدلو نودوه ركعته به يې مختصر د سبا سنت اداكړل.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّهُ بَاتَ لَيْلَةً عِنْدَ مَيْمُونَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ وَهِيَ خَالَتُهُ قَالَ فَاضْطَجَعْتُ فِي عَرْضِ الْوِسَادَةِ وَاضْطَجَعَ رَسُولُ اللهِ ﷺ وَأَهْلُهُ فِي طُولِهَا فَنَامَ رَسُولُ اللهِ ﷺ حَتَّى انْتَصَفَ اللَّيْلُ أَوْ قَبْلَهُ بِقَلِيلٍ أَوْ بَعْدَهُ بِقَلِيلٍ اِسْتَيْقَظَ رَسُولُ اللهِ ﷺ فَجَعَلَ يَمْسَحُ النَّوْمَ عَنْ وَجْهِهِ بِيَدِهِ ثُمَّ قَرَأَ الْعَشْرَ الْآيَاتِ الْخَوَاتِمَ مِنْ سُورَةِ آلِ عِمْرَانَ ثُمَّ قَامَ إِلَى شَنٍّ مُعَلَّقَةٍ فَتَوَضَّأَ مِنْهَا فَأَحْسَنَ اودس ءَهُ ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَقُمْتُ فَصَنَعْتُ مِثْلَ مَا صَنَعَ رَسُولُ اللهِ ﷺ ثُمَّ ذَهَبْتُ فَقُمْتُ إِلَى جَنْبِهِ فَوَضَعَ رَسُولُ اللهِ ﷺ يَدَهُ الْيُمْنَى عَلَى رَأْسِي وَأَخَذَ بِأُذُنِي الْيُمْنَى يَفْتِلُهَا فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ أَوْتَرَ ثُمَّ اضْطَجَعَ حَتَّى جَاءَهُ الْمُؤَذِّنُ فَقَامَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ خَفِيفَتَيْنِ ثُمَّ خَرَجَ فَصَلَّى الصُّبْحَ. (مسلم ص ۲۶۰ ج ۱، شمائل مع ترمذی ص ۵۸۸).

**ترجمه** : حضرت ابن عباس رضي الله عنه د خپلې ترور ام المؤمنين حضرت ميمونه رضي الله عنها په كور كښې شپه تيره كړه، فرمايي چه زه د وسادې (بسترې) په پلنوالى سملاستم ، او رسول الله ﷺ او دهغوى ﷺ اهل (د وسادې) په اوږدو سملاستل، بيا رسول الله ﷺ ويده شو، كله چه نيمه شپه شوه، د نيمې شپې نه څه وړاندې يا د نيمې شپې نه څه وروسته، رسول الله ﷺ بيدار شو، كيناستلو او د خپلو سترګومباركو نه يې اثر د خوب په خپلو لاسونو مږلو، د سورة آل عمران آخرى لس آيتونه يې تلاوت كړل، زړه مشكيزه زوړنده وه، د هغې نه يې اوبه راواخيستلې، او اودس يې وكړو، په ښې طريقه سره يې اودس وكړو، بيا هغوى د مونځ دپاره ودريدل، ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چه زه هم هغه شان پاخيدم اوهغه شان عمل مې وكړو څنګه چه رسول الله ﷺ كړې وو، بيا زه د هغوى چپ طرف ته دمونځ دپاره ودريدم، رسول الله ﷺ خپل ښى لاس سره زما غوږ ونيولو او زه يې ښى طرف ته ودرولم، بيا هغوى ﷺ دوه دوه ركعته كولو سره دولس ركعته برابر كړل، بيا يې وتر ادا كړل، بيا هغوى ﷺ څملاستل، بيا چه كله مؤذن هغوى ته راغې نوهغوى دوه ركعته مختصر شان ادا كړل، او بيا د سبا د مونځ د پاره ووتل.

عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ أَنَّهُ قَالَ لَأَرْمُقَنَّ اللَّيْلَةَ صَلوٰةَ رَسُولِ اللهِ ﷺ قَالَ فَتَوَسَّدْتُ عَتَبَتَهُ أَوْ فُسْطَاطَهُ فَقَامَ رَسُولُ اللهِ ﷺ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ طَوِيلَتَيْنِ طَوِيلَتَيْنِ طَوِيلَتَيْنِ ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَهُمَا دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَهُمَا دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ وَهُمَا دُونَ اللَّتَيْنِ قَبْلَهُمَا ثُمَّ أَوْتَرَ فَذٰلِكَ ثَلٰثَ عَشْرَةَ رَكْعَةً.

(موطا امام مالك ص ۱۰۵، شمائل مع ترمذی ص ۵۸۹).

**ترجمه**: حضرت زید بن خالد جهني ﷛ فرمايي، چه رسول الله ﷺ به مونځ کولو او مابه د شپې ضرورکتلو، پس ما به خپل سر د هغوی ﷺ په درشل، يا د خيمې په دروازه باندې کيښودلو، رسول الله ﷺ به د شپې ولاړ وو، او دوه رکعته مونځ به يې کولو، چه ډير اوږد به وو، بيا هغوی ﷺ دوه رکعته وکړل، چه د ړومبو رکعتونو نه کم وو، بيا هغوی ﷺ دوه رکعته وکړل، چه د هغې نه کم وو، همدغه رنګې هغوی ﷺ سره د وترو ديارلس رکعته وکړل.

عَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يُصَلِّيْ فِيْ رَمَضَانَ فَجِئْتُ فَقُمْتُ اِلٰى جَنْبِهٖ وَجَاءَ رَجُلٌ فَقَامَ اَيْضًا حَتّٰى كُنَّا رَهْطًا. فَلَمَّا حَسَّ النَّبِيُّ ﷺ اَنَّا خَلْفَهٗ جَعَلَ يَتَجَوَّزُ فِي الصَّلٰوةِ ثُمَّ دَخَلَ رَحْلَهٗ فَصَلّٰى صَلٰوةً لَا يُصَلِّيْهَا عِنْدَنَا. قَالَ قُلْنَا لَهٗ حِيْنَ اَصْبَحْنَا اَفَطِنْتَ لَنَا اللَّيْلَةَ قَالَ فَقَالَ نَعَمْ ذٰلِكَ الَّذِيْ حَمَلَنِيْ عَلَى الَّذِيْ صَنَعْتُ. (مسلم نووی ص ۳۵۲ ج۱، کتاب الصوم).

**ترجمه**: له حضرت انس ﷛ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ په رمضان المبارک کښې مونځ کولو، (دشپې په وخت) نو زه راغلم، او ورسره په خوا کښې ودريدم، همدغه شان يو بل سړې راغې هغه هم خواکښې ودريدلو تردې چه زمونږ نه يوه ډله جوړه شو (يعنی ډير خلق راغلل او رسول الله ﷺ سره په مونځ کښې شريک شول) چه کله رسول الله ﷺ دا محسوسه کړه، چه مونږ د هغه شاته ولاړ يو، نو رسول الله ﷺ په مونځ کښې تيزی وکړه، او زر يې مونځ ختم کړو او خپلې کوټې ته داخل شو، (لدينه د اعتکاف کوټه مراد ده) بيا رسول الله ﷺ د اعتکاف په کوټه کښې داسې مونځ کولو چه مونږ سره يې هغسې مونځ نه کولو (يعنی ښه اوږد مونځ يې کولو) حضرت انس ﷛ فرمايي چه کله سبا شو نو مونږ د رسول الله ﷺ په وړاندې عرض وکړو چه يا رسول الله! آيا تاسو زمونږ په کيفيت او حالت باندې پوهه شوئ د شپې په وخت؟ نو هغوی ﷺ وفرمايل: آو! همدغه څيز زه په دې خبره مجبور کړم چه کوم کار ما وکړو (يعنی د خلقو سره يوځائ مونځ مې مناسب نه ګڼلو نو بيا مې يواځې مونځ وکړو).

رسول الله ﷺ چه کوم مونځ صحابو ته کولو نو هغه جدا وو، او هغه مونځ چه هغوی ځان ته کولو هغه جدا مونځ وو، چه صحابه کرامو ته يې د جماعت سره کولو هغه د تراويح مونځ وو، او کوم يې چه ځان ته کولو هغه د تهجدو مونځ وو، بعضې خلق اصرار کوی چه په رمضان کښې رسول الله ﷺ يومونځ کولو هغې ته تهجد هم ويلې شی او همدا تراويح دی، جدا مونځ د هغوی ﷺ نه ثابت نه دې، ليکن د هغوی دا خيال غلط دې، دا صحيح حديث مونږ ته صفا دا خبره راښکاره کوی چه دا د رمضان واقعه ده، او د اعتکاف حالت هم دې په دې کښې رسول الله ﷺ د جماعت سره مختصر او ځان له اوږد مونځ کړې دې.

پدې سلسله کښې په يو روايت کښې دا هم دی:

عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيْ ذَاتَ لَيْلَةٍ فِيْ حُجْرَتِهٖ فَجَاءَ نَاسٌ فَصَلَّوْا بِصَلَاتِهٖ فَخَفَّفَ فَدَخَلَ الْبَيْتَ ثُمَّ خَرَجَ فَعَادَ مِرَارًا كُلُّ ذٰلِكَ يُصَلِّيْ فَلَمَّا اَصْبَحَ قَالُوْا : يَارَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّيْتَ وَنَحْنُ نُحِبُّ اَنْ تَمُدَّ فِيْ صَلٰوتِكَ قَالَ: قَدْ عَلِمْتُ بِمَكَانِكُمْ وَعَمَدًا فَعَلْتُ ذٰلِكَ. (مسند احمد ج:۳، ص: ۱۰۳).

**ترجمه** : حضرت انس ﷛ نه روايت دي چه رسول الله ﷺ يوه شپه په خپله کوټه کښې مونځ کولو، څه خلق راغلل او دهغوی سره په مونځ کښې شريك شول نورسول الله ﷺ په مونځ کښې تخفيف (مختصر والې) وکړو، او مختصرکولو سره خپل کور ته ننوتلو، (حجرې نه مراد دلته د جومات کوټه ده، او د بيت نه د اعتکاف هغه کوټه مراد ده چه د اعتکاف دپاره د څه کپړې وغيره نه جوړه شوې وی) د جومات د کوټې نه فارغيدلو سره د اعتکاف په کوټه کښې داخل شو، ، او بيا دوباره هغوی ﷺ تشريف راوړو ، او بهر ی مونځ کول شروع کړل، بيا څه خلق ورسره شريك شول هغوی ﷺ بيا هغه مختصر کړو او د اعتکاف کوټې ته داخل شو، (په دې کښې هغوی بيا هلته د اعتکاف کوټه کښې هم مونځ کولو هغه يې بنه اوږد کولو څنګه چه د مسلم په روايت کښې دی) هغوی بار بار داسې کول تر دې چه سحر شو،نو صحابه کرامو عرض وکړوچه يا رسول الله ! مونږ خو دا خوښوله چه تاسو مونځ اوږد کړئ، هغوی ﷺ وفرمايل : ماته دشپې په وخت ستاسو د موجودګئ او د کيفيت معلومات وشو او ما قصداً داسې کړی دی.

لدې رواياتو نه ثابتيږی چه په رمضان کښې د تراويحو نه علاوه هم هغوی مونځ کړې دې ، کوم حضرات چه دا خبره کوی، کيدې شی چه د هغوی توجه دې رواياتو طرف ته نوی شوې . لدينه وروسته به هم ددې دواړو مونځونو په يو کيدلو باندې اصرار کول بې ځايه وی. کله چه بخاری، مسلم او نور محدثين کرام هم جدا جدا بابونو تړلو سره صلوة تراويح يا قيام رمضان جدا بيا نوی، او صلوة تهجد او قيام الليل خان ته بيانوی.

دبيجوری رحمه الله شارح ليکلې دی.

وَكَيْفَ كَانَتْ صَلٰوةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ فِيْ رَمَضَانَ اَيْ فِيْ لَيَالِيْهِ وَقْتَ التَّهَجُّدِ، زِيَادَةً عَلٰى مَا صَلَّاهُ بَعْدَ الْعِشَاءِ مِنَ التَّرَاوِيْحِ. (بيجوری شرح شمائل ترمذی ص ۱۳۲)

**ترجمه** : دبيجوری شارح ددې حديث په شرح کښې فرمايی چه د رسول الله ﷺ مونځ د رمضان په شپو کښې د تهجدو په وخت نورڅه کيدې شی ددې نه علاوه چه هغوی د ماسخوتن نه پس ((په نور مونځ باندې زيادت وو)). چه هغه تراويح دی.

# صلوة وتر

## «د وترو مونځ»

صلوة وتر، صلوة الليل، «د تهجدومونځ» صلوة تراويح دا ټول ځان له ځان له مونځونه دی، محدثينو ددې مونځونو جدا جدا بابونه قائم کړی دی، د صلوة الليل ځان ته باب او د صلوة وتر ځان ته باب دې، د صلوة وتر په سلسله کښې يوڅو خبرې د بحث لاندې راځی، مثلاً د صلوة وتر حيثيت څه دې، ؟ دا فرض دې اوکه واجب دې اوکه سنت مؤکد دې، او دويم بحث دا چه د وترو څو رکعتونه دی، او دا که وتر درې رکعته دی نو بيا په دوو رکعتونو باندې سلام اړولو سره دريم رکعت کول پکار دی اوکه د يو سلام سره درې واړه رکعتونه کول پکار دی.

**د وترو مونځ واجب دې** :- د وترو مونځ واجب دې. (هدايه ص۱۳ ج۱، شرح نقايه ص۹۸ ج۱، کبيری ص۴۱۱)

رسول الله ﷺ د وترو په باره کښې حق او واجب مؤکد الفاظ استعمال کړې دی، په خلاف د صلوة الليل، قيام الليل او تهجدو، پدې هکله يې صرف ترغيب ورکړې دې او فضيلت يې بيان کړې دې.

صلوة وتر لپاره رسول الله ﷺ د راحلې (يعنی سورلۍ) نه لاندې کوز شوې دې او کړی يې دی، په خلاف د نفلو چه دا يې په سورلۍ هم ادا کړې دی، ليکن وتر د فرائضو په شان په زمکه راکوزيدو سره ادا کول ثابت دی، اګر چه د وترو په سورلۍ باندې د ادا کولو ثبوت هم په صحيح احاديثو کښې موندل کيږی خو دا د مؤکد کيدو نه په مخکې وقت باندې حمل دی او يا د عذر په حالت کښې وو، د وترو مونځ رسول الله ﷺ د قضاء (ادا کولو) حکم کړې دې، په خلاف د صلوة الليل (تهجد وغيره) چه دهغې متعلق د قضاء حکم نه دې کړې شوې.

ائمه ثلاثه امام مالك رحمه الله، امام احمد رحمه الله، امام شافعی رحمه الله اود صاحبينو امام ابو يوسف رحمه الله اوامام محمد رحمه الله په نزد دوترو مونځ واجب نه دې.

د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد واجب دې لکه څنګه چه وړاندې تيره شول، محدث نيموی رحمه الله ليکلې دی چه حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه، حضرت حذيفه بن اليمان رضی الله عنه حضرت ابراهيم نخعی رحمه الله او دامام شافعی استاد رحمه الله، يوسف بن خالد سمتی رحمه الله، سعيد بن المسيب رحمه الله. او ابی عبيده بن عبدالله بن مسعود رضی الله عنه او امام ضحاك مجاهد رحمه الله، سحنون رحمه الله، اصبغ بن الفرج رحمه الله، وغيره د ټولو همدا مسلك دې.

حضرت امام اعظم په وجوب د وترو باندې لاندينی احاديث په دليل کښې پيش کړی دی:

عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ مَنْ نَامَ عَنْ وِتْرِهٖ اَوْ نَسِيَهٗ فَلْيُصَلِّهٖ اِذَا اَصْبَحَ اَوْ ذَكَرَهٗ. (مستدرك حاكم ۳۰۲ ج۱، وقال على شرط شيخين واقره الذهبی).

**ترجمه** : حضرت ابو سعید خدری ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل کوم سړی چه د وترو نه ویده شو ، یا ترې هیر شول نو چه کله سحر شي یا ورته رایاد شي نو هغه دې اداء کړي.

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ يَقُولُ الْوِتْرُ حَقٌّ فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا الْوِتْرُ حَقٌّ فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا.(ابوداود ص۲۰۱ ج۱، مستدرك حاكم ص۳۰۵ ج۱).

**ترجمه** : حضرت بریده ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل : وتر حق (واجب) دی ، چا چه وتر ونه کړل، نو هغه زمونږ نه نه دې، دا خبره هغوی ﷺ درې ځله ارشاد وفرمایله.

عَنْ أَبِي أَيُّوبَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ الْوِتْرُ حَقٌّ وَاجِبٌ (دار قطنی ص۲۲ ج۲). [۱]

**ترجمه** : حضرت ابو ایوب ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: وتر حق (ثابت) اوواجب دی.

عَنْ خَارِجَةَ بْنِ حُذَافَةَ الْعَدَوِيِّ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ ﷺ فَقَالَ إِنَّ اللهَ قَدْ أَمَدَّكُمْ بِصَلٰوةٍ هِيَ خَيْرٌ لَّكُمْ مِنْ حُمُرِ النَّعَمِ وَهِيَ الْوِتْرُ.(ابوداود ص۲۰۱ ج۱، مستدرك حاكم ص۳۰۶ ج۱ وقال صحيح الاسناد ترمذی ص۹۱).

**ترجمه** : حضرت خارجه ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ مونږ ته تشریف راوړو، او وې فرمایل: بیشکه الله ﷻ تاسو ته امداد رسولې دې، او تاسو ته یې یو مونځ زیات کړې دې چه ستاسو د پاره د سرو اوښانو نه زیات بهتر دې ، او هغه د وترو مونځ دې.

عَنْ أَبِي تَمِيمٍ الْجَيْشَانِيِّ قَالَ سَمِعْتُ عَمْرَو بْنَ الْعَاصِ يَقُولُ أَخْبَرَنِي رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ زَادَكُمْ بَسْطَةً صَلٰوةً فَصَلُّوهَا فِيمَا بَيْنَ الْعِشَاءِ إِلَى الصُّبْحِ الْوِتْرَ أَلَا وَإِنَّهُ أَبُو بَصْرَةَ الْغِفَارِيُّ قَالَ أَبُو تَمِيمٍ فَكُنْتُ أَنَا وَأَبُو ذَرٍّ قَاعِدَانِ قَالَ فَأَخَذَ بِيَدِي أَبُو ذَرٍّ فَانْطَلَقْنَا إِلَى أَبِي بَصْرَةَ ﷺ فَوَجَدْنَاهُ عَلَى الْبَابِ الَّذِي يَلِي بَابَ عَمْرٍو فَقَالَ أَبُو ذَرٍّ يَا أَبَا بَصْرَةَ أَنْتَ سَمِعْتَ رَسُولَ اللهِ ﷺ يَقُولُ إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ زَادَكُمْ صَلٰوةً فَصَلُّوهَا فِيمَا بَيْنَ الْعِشَاءِ إِلَى صَلٰوةِ الصُّبْحِ الْوِتْرَ الْوِتْرَ قَالَ نَعَمْ قَالَ أَنْتَ سَمِعْتَهُ قَالَ نَعَمْ. (رواه احمد والطبرانی ص فی الكبير وله اسنادان عند

---

[۱] - امام دارقطني ویلې دی چه پدې روایت کښې د واجب لفظ غیر محفوظ دې ځکه چه پدې لفظ نقل کولو کښې محمد بن حسان الازرق منفرد دې، دده څوك متابع نشته. د دار قطنی سند دادې (محمد بن حسان الازرق عن سفيان بن عيينة عن الزهری) د دارقطنی دا وینا صحیح نه ده، ځکه چه د ابوداود الطیالسی په روایت کښې (يزيد بن هارون عن سفيان بن حسين عن الزهری) دده متابع دې، لیکن هغه یی د (حق) او (واجب) سره نقل کوی، لدینه علاوه د نورو سندونو سره طبرانی اومسند بزار کښې حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ او ابن عباس ﷺ او ابو ایوب انصاری ﷺ نه هم دا لفظ نقل دې، اگر چه دا سندونه قوی نه دی، لیکن دمتابعت او تائید دپاره کافي دی. (سوانح)

احمد احد هما رجاله رجال الصحیح. مجمع الزوائد ص ۲۳۹ ج ۲. مستدرک حاکم ص ۵۹۳ ج ۲. مسند احمد ص ۷ ج ۶).

**ترجمه** : ابو تمیم جیشانی له حضرت عمروبن عاص ﷺ نه نقل کوی، هغوی فرمایی چه ما ته د رسول الله ﷺ د صحابو نه یو سړی وویل چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی چه بیشکه الله ﷻ یو مونځ ستاسو دپاره زیات کړې دې (یعنی فرضو سره یی هغه زیات کړې دې) پس تاسو هغه د ماسخوتن او سحر ترمینځه کوئ، او هغه وتر مونځ دې، راوی وایی چه هغه صحابی حضرت ابو بصره غفاری ﷺ دې، ابو تمیم وایی چه زه او ابو ذر غفاری ﷺ ناست وو، حضرت ابو ذر ﷺ زما لاس ونیولو، او مونږ ابو بصره ته لاړو، حضرت ابو ذر ﷺ د ابو بصره ﷺ نه پوښتنه وکړه چه آیا تا دا خبره د رسول الله ﷺ نه آوریدلې ده چه هغوی ﷺ فرمایی چه بیشکه الله ﷻ ستاسو د پاره یو مونځ زیات کړې دې او تاسو هغه د ماسخوتن او سحر تر مینځه کوئ او هغه مونځ وتر دې؟ نو ابو بصره ﷺ وفرمایل چه آو! ما دا خبره د رسول الله ﷺ نه آوریدلې ده (په مسند احمد کښې د صحیح سند سره دا خبره ذکر ده چه حضرت عمروبن عاص ﷺ د جمعې په خطبه کښې دا خبره ذکر کړې وه)

عَنْ طَاوُوْسٍ اَلْوِتْرُ وَاجِبٌ يُعَادُ اِلَيْهِ. (مصنف عبد الرزاق ص ۸ ص ۲)

**ترجمه** : حضرت طاؤس فرمایی چه وتر واجب دی، کله چه چانه هیر شی نو قضاء دې وکړی.

عَنْ حَمَّادٍ قَالَ اَوْتِرْ وَاِنْ طَلَعَتِ الشَّمْسُ (مصنف عبد الرزاق ص ۱۰ ج ۳).

**ترجمه** : حضرت حماد رحمه الله فرمایی چه وتر کوئ اگر چه نمر را وخیژی (یعنی قضاء کول یی هم واجب دی)

عَنْ وَبْرَةَ قَالَ سَاَلْتُ اِبْنِ عُمَرَ عَنْ رَجُلٍ اَصْبَحَ وَلَمْ يُوْتِرْ قَالَ اَرَاَيْتَ لَوْ نِمْتَ عَنِ الْفَجْرِ حَتّٰى تَطْلَعَ الشَّمْسُ اَلَيْسَ كُنْتَ تُصَلِّيْ كَاَنَّهٗ يَقُوْلُ يُوْتِرُ (مصنف ابن ابی شیبه ص ۲۹۰ ج ۲).

**ترجمه** : حضرت وبره فرمایی چه ما د حضرت ابن عمر ﷺ نه پوښتنه وکړه چه که څوک په خوب کښې سبا کړی، او هغه وتر نه وی کړی نو هغه به څه کوی؟ نو ابن عمر ﷺ وفرمایل چه که د سبا د مونځ نه ویده شی تر دې چه نمر را وخیژی نو آیا د سبا مونځ به نه کوی؟ گویا چه هغوی وفرمایل چه څنگه د سبا د مونځ قضاء راوړې دغه رنگ به وتر هم قضاء راوړی.

عَنِ الشَّعْبِيِّ وَعَطَاءٍ وَالْحَسَنِ وَطَاوُوْسٍ وَمُجَاهِدٍ قَالُوْا لَا تَدَعِ الْوِتْرَ وَاِنْ طَلَعَتِ الشَّمْسُ. (مصنف ابن ابی شیبه ص ۲۹۰ ج ۲).

**ترجمه** : حضرت امام شعبی، عطاء ابن ابی رباح، حسن بصری طاؤس اومجاهد فرمایلی دی چه وتر مه پریږدئ، اگر چه نمر را وخیژی، یعنی که قضاء شوی وی نو قضاء یی کوئ.

عَنِ الشَّعْبِيِّ قَالَ لَا تَدَعِ الْوِتْرَ وَلَوْ تَنْصَفَ النَّهَارُ (مصنف ابن ابی شیبه ص ۲۹۰ ج ۲).

**ترجمه**: حضرت امام شعبي فرمايي چه وتر مه پريږدئ اګر چه غرمه شي .
حضرت سعيد بن جبير ﷜ بيان کوی ، چه حضرت عبدالله بن مسعود ﷜ به په خپلې سورلۍ باندې نفل ادا کول، او چه کله به يې وتر کول نو د سورلۍ نه به راکوز شو او په زمکه به يې ادا کړل . (مسند احمد ص۴ ج۲).
هشام د خپل والد حضرت عروه ﷜ په باره کښې بيان کوی چه هغوی به په سورلۍ باندې نفل کول ، هر خوا چه به د سورلۍ مخ وو، تنديې به يې لاندې نه کيښودلو بلکه د سر په اشاره سره به يې رکوع او سجده کوله، او کله چه به د سورلۍ نه راکوزيدلو، نو وتر به يې ادا کول (مؤطا امام محمد ص ۱۲۴، مصنف ابن ابي شيبه ص۳۰۳ ج۲، کتاب الحجة ص۱۸۹ ج۱)
حضرت امام ابراهيم نخعي بيان کوی چه حضرت عبد الله بن مسعود ﷜ به په سورلۍ باندې نفل کول، کوم خوا چه به د سورلۍ مخ وو ، اشارې سره به يې رکوع او سجده کوله، او که به يې د سجدې آيت ولوستلو نو هم به يې په اشارې سره سجده کوله، ليکن فرض مونځ او وترو د پاره به لاندې راکوزيدلو . (مؤطا امام محمد ص۱۳۲، کتاب الحجة ص۱۸۹ ج۱)
نافع د حضرت عبد الله بن عمر﷜ په باره کښې بيان کوی چه هغه به نفل په سورلۍ باندې کول، هر خوا چه به د سورلۍ مخ وو او کله چه به هغوی د وترو کولو اراده کوله نو هغه به يې لاندې کوزيدو سره کول .
حصين بيان کوی چه حضرت عبد الله بن عمر﷜ نفل مونځ په سورلۍ باندې کولو ، هر خوا چه به د سورلۍ مخ وو، او کله چه به د فرض مونځ يا د وترو موقع وه نو د سورلۍ نه به راکوزيدلو او په زمکه به يې کول . (مؤطا امام مالك ص۱۳۳ کتاب الحجة ص۱۹۰ ج۱)
مجاهد فرمايي چه حضرت عبد الله بن عمر ﷜ به نفل مونځ په سورلۍ باندې کولو ، او د سبا د ختلو نه څه وړاندې به د سورلۍ نه راکوز شو ، او وتر به يې وکړل . (مؤطا امام محمد ص۱۳۲)
مجاهد فرمايي چه زه د حضرت عبد الله بن عمر﷜ په رفاقت کښې د مکې نه د مدينې په سفر کښې ووم، حضرت عبد الله بن عمر﷜ به ټول نفلونه په سورلۍ باندې کول، مګر د فرض مونځ او وترو د پاره به په زمکه راکوزيدلو ، ما حضرت عبد الله بن عمر﷜ نه پدې هکله پوښتنه وکړه، نو هغوی وفرمايل چه رسول الله ﷺ به همداسې کول، نفلونه خو په سورلۍ باندې چه کوم خوا ته مخ وو اشارې سره به يې کول، او سجده به يې لږ د رکوع نه زياته ټيټوله . (مؤطا امام محمد ص۱۳۲ کتاب الحجة ص۱۸۸ ج۱) .
ابن عون رحمه الله فرمايي چه ما حضرت امام قاسم رحمه الله نه پوښتنه وکړه چه که څوك وتر په سورلۍ

باندې کوی نو ددې شخص په باره کښې څه حکم دې ؟ نو امام قاسم وفرمایل : خلقو ویلی دی چه حضرت عمر رضی الله عنه به کله وتر ادا کول نو په زمکه به راکوز شواو اداء به یی کړل .(مصنف ابن ابی شیبه صه ۳۰۳ ج ۲، کتاب الحجة صه ۱۸۸ ج ۱)

حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله فرمایی چه اسلافو کرامو به په خپلو سورلو او څناورو باندې نفل مونځ کولو ، لیکن فرض او وترو ته مونځ به په زمکه راکوز شول اوبیا به یی کولو . (مصنف ابن ابی شیبه صه ۳۰۳ ج ۲)

هارون ابن ابراهیم رحمه الله فرمایی چه ما د حضرت حسن بصری نه پوښتنه وکړه چه آیا زه د سورلئ په څناور باندې مونځ کولې شم؟ نو هغوی وفرمایل : آو ! کولې شې، ما وویل چه آیا وتر هم په سورلئ کولې شم؟ نو هغوی وفرمایل نه ! او همدغه رنګې امام ابن سیرین هم فرمایلې دی چه وتر په زمکه راکوزیدو سره کوئ . (مصنف ابن ابی شیبه صه ۳۰۳ ج ۲)

حضرت امام محمد رحمه الله فرمایی چه پدې کښې هیڅ حرج نشته چه مسافر نفل مونځ په سورلئ باندې په اشارې سره کوی کوم طرف ته هم چه دده مخ وی او سجده دې د رکوع نه لږ ټیټه کوی، لیکن وتر او فرض دا دواړه به په زمکه اداء کیږی، عام آثار دغه شان راغلی دی. (مؤطا امام محمد ۱۳۲)

همدغه رنګې د امام ابوحنیفه رحمه الله نه هم روایت دی . (کتاب الحجة صه ۱۸۲ ج ۱)

داټول روایات اودغه رنګې نورروایات دوترو په مؤکد کیدو او واجب کیدو باندې دلالت کوی نور ائمه کرام د وترو په سنت کیدلو باندې د دې لاندې روایاتو نه استدلال کوی :

یو خو د اعرابی والا حدیث نه چه په هغې کښې راغلی دی چه اعرابی (کوچی) د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه چه په ما باندې ددې پینځه مونځونو نه علاوه نور هم څه مونځ فرض شته اوکه نه ؟ نو هغوی وفرمایل : نه ! لدینه علاوه نور هیڅ مونځ فرض نه دې، مګر دا که ته د نفل په طور څه کوې.

امام ابوحنیفه رحمه الله او احناف کرام دا جواب کوی چه دا خبره د وتر د مؤکد کیدو نه وړاندې وه. رسول الله ﷺ فرض مونځ په راحله (سورلئ) نه کوزیدو سره کولو ، او وتر به یی په سورلئ کول، لدینه معلومه شوه چه وتر واجب نه دی .

امام طحاوی ددې جواب دا کړې دې چه حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه نقل دی چه رسول الله ﷺ د وترو مونځ په سورلئ باندې ادا کولو ،دا خبره یی د وترو د مؤکد کیدو نه وړاندې کړې ده، ددینه پس د وترو مؤکد کیدل او واجب کیدل واقع شول . (طحاوی صه ۲۴۹ ج ۱)

(ان الله امدکم بصلوة هی خیر لکم من حمر النعم) له دې الفاظو نه همدا خبره په پوهه کښې راځی.

دویم جواب امام طحاوی داسې کړې دې چه حضرت ابن عمر رضی الله عنه به په سورلئ باندې نفل مونځ

کولاو وتر به یې په زمکه کوزیدلو سره کول، او دا به یې فرمایل چه رسول الله ﷺ به همداسې کول
حضرت ابن عمر رضی الله عنه به په سورلۍ باندې نفل کول، او وترو ته به په زمکه راکوزیدلو او کول به یې او دا به یې فرمایل چه رسول الله ﷺ همداسې کړي وو.
د حضرت ابن عمر رضی الله عنه واقعه د رسول الله ﷺ د وفات نه پس ده چه له هغې نه معلومیږي چه رسول الله ﷺ په آخري عمر کښې د وترو دپاره راکوز شوې دې او کړي یې دي.
حضرت سعید بن یسار رضی الله عنه فرمایي چه د حضرت ابن عمر رضی الله عنه سره د مکې په لاره تللم، ماته چه کله د سبا کیدو خطره شوه، نو زه د سورلۍ نه راکوز شوم وتر مې ادا کړل، بیا زه حضرت ابن عمر رضی الله عنه سره یوځای شوم، هغوی ﷺ ماته وویل چیرته تللې وې؟ ما عرض وکړو چه ماته د سبا خطره وه نو زه راکوز شوم او وتر مې وکړل، حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه وفرمایل: آیا ستا د پاره د نبي کریم ﷺ په عمل کښې نمونه نه وه هغوی ﷺ به په اوښ باندې هم وتر کول. **(مؤطا امام مالك ص۱۰۸)**.
اګر چه په صحیح روایاتو کښې د وترو په سورلۍ باندې کول هم د هغوی نه ثابت دي لیکن احناف کرام دا فرمایي چه که چیرې دا د وترو د مؤکد کیدو نه وروسته وي نو بیا هم د عذر له کبله، مثلاً باران ختې وغیره، چه سفر وو او په زمکه د کوزیدلو او د کولو موقع هم نه وه. نو بیا په اوښ باندې هم هغوی ﷺ بعضې وختونه وتر ادا فرمایلي دي.
**د وترو رکعتونه**:- وتر د امام اعظم ابو حنیفه په نزد او د احناف کرامو په نزد درې رکعته دي.
**(هدایه ص۹۳ ج۱، شرح نقایه ص۹۷ ج۱، کبیری ص۴۱۱)**.
لکه څنګه چه د ماښام مونځ چه هغې ته وتر النهار وایي او د هغې په مینځ کښې په دوو رکعتو کښې سلام ګرځول جائز نه دي، همدغه رنګې وتر اللیل هم په یو سلام سره درې رکعته دي. امام شافعي او امام احمد فرمایي چه صرف دیو رکعت سره هم وتر کول جائز دي. **(میزان الکبری ص۱۸۳ ج۱)**.
د امام مالك په نزد هم وتر درې رکعته دي لدینه کم نه دي، البته د دوو رکعتو نه پس سلام ګرځول جائز دي، اوبیا دریم رکعت ځان ته کول جائز دي.
حضرت امام مالك د حضرت سعد بن ابی وقاص په روایت باندې بحث کولو سره دا خبره کړې ده چه رسول الله ﷺ به د ماسخوتن نه پس د یو رکعت سره وتر کول او بیا یې لیکلي دي چه
**وَلَيْسَ عَلَى هٰذَا الْعَمَلُ عِنْدَنَا وَلٰكِنْ أَدْنَى الْوِتْرِ ثَلَاثٌ (موطا امام مالك ص۱۱۰)**.
ترجمه: زمونږ په نزد باندې په دې باندې عمل نشته، یعنی یو رکعت وترو باندې اکتفاء کول درست نه دي بلکه ادنی وتر زمونږ په نزد درې رکعته دي.
امام ابوحنیفه او احناف د لاندې ذکر شوو روایاتو نه استدلال کوي.
حضرت زید بن خالد جهني رضی الله عنه فرمایي چه ما تیارې وکړو چه زه به ضرور د شپې د رسول الله ﷺ

مونځ وينم، څنګه چه هغوی ﷺ وړومبې دوه رکعته (تحية الوضوء) خفيف او مختصر شان ادا کړل، بيا دهغې نه پس يې دوه رکعته ډير اوږده ادا کړل، بيا د هغې نه پس يې دوه رکعته چه د هغې نه کم وو ادا کړل، بيا هغوی ﷺ وتر ادا کړل، نو دا ديارلس رکعته شول. (مسلم ص۲۶۲ ج۱).

لدې روايت نه واضح معلوميږي چه رسول الله ﷺ لس رکعته نفل (تهجد) ادا کړل. او درې رکعته وتر ، نو دا سره له وترو ديارلس رکعته شول.

د وترو نه پس چه هغوی په ناسته دوه رکعته کړی وو، ددې ذکر په دې روايت کښې نشته. شايد هغه به هغوی دعام دستور مطابق ادا کړی وی، نو ټول رکعتونه پنځلس شول.

حضرت عبدالله بن عباس ؓ نه نقل دی چه هغوی د رسول الله ﷺ په کور کښې شپه تيره کړه يعنی د خپلې ترور ام المؤمنين حضرت ميمونه ؓ په کور کښې، حضرت عبد الله بن عباس ؓ فرمايي چه رسول الله ﷺ د شپې بيدار شو، مسواک يې ووهلو او اودس يې وکړو، او د سورة آل عمران آخری رکوع يې تلاوت کړه، بيا هغوی ودريدل، او دوه رکعته مونځ يې وکړو او اوږد قيام يې وکړو، همدغه رنګې رکوع او سجده يې هم وکړل، بيا هغوی واپس شول او ويده شول، تردې چه دخوب آواز ترې واوريدل شو، بيا هغوی ﷺ دا عمل درې ځله وکړو، او ويده شو او بيا پاڅيدلو او بيا يې مسواک وکړو او اودس يې وکړو او دوه رکعته مونځ يې وکړو، او هرځل يې د سورة آل عمران آخری آيتونه تلاوت کول، دا شپږ رکعته شول (وړومبی دوه رکعته هم چه ددې سره يوځای شی، نو دا ټول اته رکعته شول) (الی اوتر بثلاث مسلم ص۲۶۱ ج۱)، بيا هغوی درې رکعته وتر ادا کړل.

د وترو نه پس د دوو رکعتو ذکر په دې روايت کښې هم نشته. ليکن هغه د رسول الله ﷺ د عام دستور مطابق لدې سره شامل دی نو ټول ديارلس رکعته شول ، په بل روايت کښې حضرت عبدالله بن عباس ؓ داسې بيان کوی ، چه : (كَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ يُصَلِّي مِنَ اللَّيْلِ ثَلَاثَ عَشَرَةَ رَكْعَةً). (مسلم ص۲۶۱ ج۱، بخاری ص۱۵۳ ج۱).

**ترجمه**: يعنی رسول الله ﷺ د شپې ديارلس رکعته کول.

د حضرت عبدالله بن عباس ؓ يو بل روايت دې هغه بيان کوی (دا دبلې موقعې خبره ده) چه ما د خپلې ترور ام المؤمنين حضرت ميمونه ؓ په کور کښې شپه تيره کړه، رسول الله ﷺ د شپې بيدارشو ، هغوی د مشکيزې نه اوبه راواخيستلې، او بيا يې په ښې طريقې سره اودس وکړو، اوبيا دمونځ لپاره ودريدلو اوما هم دغه شان اودس وکړو او د هغوی مبارک چپ طرف ته ودريدم، هغوی زه ونيولم اوخپل ښی طرف ته يې ودرولم.

فَتَكَامَلَتْ صَلوٰةُ رَسُولِ اللهِ ﷺ ثَلَاثَ عَشَرَةَ رَكْعَةً . (مسلم ص۲۶۱ ج۱).

**ترجمه**: پس مکمل شو ، د رسول الله ﷺ ديارلس رکعته مونځ.

اوپه یو روایت کښې داسې راغلی دی چه حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه فرمایی.
فَصَلّٰى فِيْ تِلْكَ اللَّيْلَةِ ثَلَاثَ عَشَرَ رَكْعَةً (مسلم ص۲۶۰ ج۱).
**توجمه**: رسول الله ﷺ په دې شپه کښې دیارلس رکعته مونځ وکړو.
د ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه په روایت کښې هم د دیارلس رکعتوذکر دې، ابو سلمه رضی الله عنه فرمایی چه ما د ام المؤمنین نه د رسول الله ﷺ د مونځ متعلق پوښتنه وکړه نو ام المؤمنین وفرمایل.
كَانَ يُصَلِّيْ ثَلَاثَ عَشَرَ رَكْعَةً يُصَلِّيْ ثَمَانَ رَكَعَاتٍ ثُمَّ يُوْتِرُ ثُمَّ يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ وَهُوَ جَالِسٌ (مسلم ص۲۵۴ ج۱)
**توجمه**: رسول الله ﷺ به دیارلس رکعته کول، اول به یی اته رکعته کول، بیا به یی وتر «درې رکعته» کول، بیا به یی دوه رکعته په ناسته کول.
دا هغه اته رکعته دی چه د هغې ذکر په دویم روایت کښې راځی کوم چه امام بخاری په (کتاب التهجد، باب قیام النبی ﷺ فی رمضان وغیره)، کښې او په (باب فضل من قام رمضان) دواړو بابونو کښې ذکر کړې دیځ چه هغې سره ځینې حضراتو ته اشتباه شوې ده، چه قیام اللیل او صلوۃ تراویح یو مونځ دې، حالانکه داسې نه ده، قیام اللیل خو ټول کال وی، او تراویح صرف د رمضان سره خاص دی، عام طور باندې اته رکعته نفل او درې رکعته وتر به ټول کال هغوی ادا کول، لیکن ځینې وختونه په دې کښې کمې یا زیاتې هم واقع شوې دې، د ام المؤمنین په روایت کښې بیان دې چه رسول الله ﷺ دیارلس رکعته سره د وترو او د سحر د سنتو وکړل، (بخاری ص۱۵۴ ج۱)
او یو بل روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ به د ماسخوتن د مونځ نه د فارغیدلو نه پس د سحر تر مونځ پورې په دې مینځ کښې عام طور باندې یوولس رکعته مونځ کولو، هر دویم رکعت نه پس به یی سلام گرځولو او یو رکعت سره به یې ټول مونځونه وتر جوړول. (مسلم ص۲۵۴ ج۱)
د ام المؤمنین رضی الله عنها نه یو بل روایت دې اوهغه دا چه ام المؤمنین فرمایی چه رسول الله ﷺ به د شپې په وخت دیارلس رکعته کول چه هغې کښې پینځو سره به یی وتر کول او هغه پنځو کښې به نه کیناستلو مگر په آخر کښې، (مسلم ص۲۵۴ ج۱).
د ام المؤمنین وراره چه کله د هغوی نه پوښتنه وکړه چه د رسول الله ﷺ مونځ به په رمضان کښې څنگه وو نو ام المؤمنین جواب ورکړو چه رسول الله ﷺ به په رمضان او غیر رمضان کښې د یوولسو رکعتو نه زیات نه کول، هغوی به څلور رکعته کول، چه د هغې د حسن او اوږدوالی پوښتنه مه کوه، یعنی ډیر ښائسته او اوږده رکعتونه به یی کول، بیا به هغوی څلور رکعته کول، چه د هغې د حسن او اوږدوالی پوښتنه مه کوه یعنی ډیر ښائسته او اوږده رکعتونه به یی کول، او بیا درې رکعته به یی «وتر» کول «داټول یوولس ۱۱ رکعته شول». (مسلم ص۲۵۴ ج۱).

د رسول الله ﷺ دا حالت، عام حالت پاتې شوې دې لیکن د هغې خلاف هم ثابته ده، مثلاً د ام المؤمنین په بل روایت کښې دا الفاظ هم دی چه (په بعضې حالاتوکښې به) هغوی ﷺ نهه رکعته کول د ودریدلو سره، او وتر هم په هغه نهه رکعتو کښې داخل وو (مسلم ص۲۵۵ ج۱).

له دې روایت نه دا معلومیږی چه رسول الله ﷺ ځینې وختونه شپږ رکعته نفل کول او درې رکعته وتر نو ټول به یې نهه رکعته کولو ځینې روایاتو کښې اته رکعته نفل درې وتر او دوه رکعته د سحر سنت هم شمار کړې شوی دی چه ټول دیارلس رکعته جوړیږی، (مسلم ص۲۵۵ ج۱)

مسروق رحمه الله فرمایی چه ما د ام المؤمنین نه د رسول الله ﷺ د تهجدو د مونځ په باره کښې پوښتنه وکړه نو هغوی وفرمایل

د سحر د سنتو نه علاوه کله اوه ۷، کله نهه ۹، اوکله به یې دیارلس ۱۳ رکعته کول.

لدینه علاوه د ام المؤمنین هغه روایت چه رسول الله ﷺ به د شپې یوولس رکعته کول، او یو رکعت سره به یې وتر جوړول، بیا په ښی اړخ به سملاستلو، تردې چه مؤذن به راغې بیا به هغوی دوه رکعته مختصر شان (د سحر سنت) کول .(مسلم ص۲۵۴ ج۱).

او په کومو روایاتو کښې چه د وترو ذکر نشته د هغې مطابق د وترو نه علاوه ټول دولس رکعته جوړیږی

ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها فرمایی چه رسول الله ﷺ به اته رکعته (تهجد) کول، او دوه رکعته به یې په ناسته، او دوه رکعته (دسحر) به یې د اذان او اقامت په مینځ کښې کول

په کوم روایت کښې چه تحیة الوضوء وتر او د وترو نه پس دوه رکعته او د سحر سنت هم شامل شوی دی په دې کښې د ټولو اوولسو رکعتو ذکر دې لکه څنګه له طاؤس نه په صحیح سند سره په یو روایت کښې راغلی دی

**عَنْ طَاوُوسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يُصَلِّي سَبْعَةَ عَشَرَ رَكْعَةً مِنَ اللَّيْلِ (مصنف عبد الرزاق ص۳۸ ج۳).**

**ترجمه** حضرت طاؤس نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به د شپې اوولس رکعته کول.

سعد بن هشام چه کله د ام المؤمنین نه د رسول الله ﷺ د شپې د مونځ او د وترو په باره کښې پوښتنه وکړه، نو ام المؤمنین وفرمایل چه مونږ به د رسول الله ﷺ د پاره د اودس اوبه او مسواک کیښودل. الله ﷻ به چه کله دې په څه حصه کښې بیدار کړو، هغوی به مسواك وهلو سره اودس کولو، او نهه رکعته مونځ به یې کولو. هغوی به په دې کښې نه کیناستل، مګر په اتم رکعت باندې پس د الله ﷻ ذکر به یې کولو، او د هغه حمد به یې کولو، او دعا به یې کوله، بیا به پاځیدلو او

سلام به یې نه ګرځولو [1] بیا به نهم رکعت باندې کیناستلو، د الله ﷻ ذکر او حمد به یې کولو، او بیا به یې سلام ګرځولو په داسې آواز سره چه مونږ ته به یې آورولو، بیا به لدینه پس په دوو رکعتو باندې کیناستلو، او اداء کول به یې، پس دا ټول یوولس رکعته شول، اې زویه! بیا چه کله د هغوی ﷺ عمر زیات شو، او بدن مبارک یې دروند شو نو هغوی ﷺ اوه رکعتو سره وتر وکړل، (یعنی د وترو سره یې اوه رکعته وکړل) بیا یې دوه رکعته وکړل، نو دا نهه رکعته شو ل، اې زویه! او رسول الله ﷺ چه به کله مونځ کولو نو په هغې به یې همیشه والې خوښولو او چه کله به په هغوی باندې خوب غلبه وکړه، او یا به ورته څه تکلیف وو او د شپې به هغوی ﷺ قیام نه شو کولې، نو د ورځې به یې دولس رکعته کول، او ماته معلومه نده چه هغوی ﷺ په یوه شپه کښې ټول قرآن ویلې وی، او نه یې ټوله شپه ترسحره پورې مونځ کړې وی، او نه هغوی ﷺ په ټوله میاشت کښې روژې نیولې وی بغیر د رمضان نه، (مسلم ص۲۵۶ ج۱)

حضرت عبدالله بن عمر ؓ نه روایت دې چه یو سړی د رسول الله ﷺ نه د شپې د مونځ په باره کښې پوښتنه وکړه نو رسول الله ﷺ وفرمایل د شپې دوه دوه رکعته مونځ دې، کله چه په تاسو کښې کوم سړی ته څه خطره وی چه سحر به شی نو یو رکعت دې وکړی، نو دا به ټول شوی مونځونه وتر (طاق) جوړ کړی (مسلم ص۲۵۶ ج۱)

حضرت عبدالله بن عمر ؓ نه یو دویم روایت کښې دا نقل دی چه یو سړی د رسول الله ﷺ نه د

---

[1] ـ د حضرت سعد بن هشام رحمه الله دا روایت کوم چه د ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها نه نقل دې لدینه دا خبره معلومیږی چه هغوی به په اتم رکعت باندې کیناستل، او ذکر او دعا کولو نه پس به ودریدل. سلام به یې نه ګرځولو، نهم رکعت مکمل کولو نه پس به یې سلام ګرځولو

پدې حدیث کښې یقیناً نهه رکعته یو سلام ګرځولو سره مراد نه دی، په دې وجه هر دویم رکعت نه پس سلام ګرځول د اولې درجې صحیح احادیثو نه ثابت دی، ټول روایات مخې ته کیښودلو سره ددې حدیث معنی متعین کول پکار دی، ځکه چه دوو رکعتو نه پس یا د ام المؤمنین رضی الله عنها د دویم روایت مطابق له څلورو رکعتو نه پس د سلام ګرځولو ذکر دې، او د حدیث «صلوة اللیل مثنی مثنی» نه هم قطعی ثبوت لاسته راځی.

خامخا ددې روایت معنی متعین کول ضرور دی، خینو ددې معنی دا سې کړې ده چه په اتم رکعت باندې صرف د تشهد د پاره ناست وو او سلام به یې نه ګرځولو، تر کومې چه به یې اوه نهه ۹ رکعته پوره کړې نه وو، په خلاف د ړومبی رکعتونو چه په هغې کښې هر دوو رکعتو باندې (د خینې روایاتو مطابق څلورو رکعتو باندې) سلام به یې ګرځوو، په دې کښې د وترو درې رکعته کول د یو سلام سره واضحه طور باندې ثابتیږی، ځکه چه آخری درې رکعته وتر دی لدینه پس دوه رکعته په ناسته کول، په طور د نفلو دی.

(عبدالحمید سواتی)

شپې د مونځ په باره کښې سوال وکړو، نو رسول الله ﷺ وفرمايل چه د شپې مونځ دوه دوه رکعته دي. کله چه تاسو ته د سحر د داخليدلو خطره وی نو يو رکعت سره وتر وکړئ. (مسلم ص۲۵۷ ج۱، موطا امام مالك ص۴۳).

حضرت عبدالله بن عمر ﷺ فرمايي کوم سړي چه د شپې مونځ کوی هغه ته پکار دی چه خپل آخری مونځ وتر جوړ کړی ځکه چه رسول الله ﷺ ددې خبرې حکم کړې دې. (مسلم ص۲۵۷ ج۱).

حضرت عبدالله بن عمر ﷺ د رسول الله ﷺ دا فرمان نقل کړې دې:

اِجْعَلُوْا اٰخِرَ صَلٰوتِكُمْ بِاللَّيْلِ وِتْرًا. (مسلم ص۲۵۷ ج۱).

**توجمه** خپل اخری مونځ د شپې په وخت وتر جوړ کړئ.

حضرت عبدالله بن عمر ﷺ د رسول الله ﷺ دا ارشاد هم نقل کړې دې

مَنْ صَلّٰى فَلْيُصَلِّ مَثْنٰى مَثْنٰى فَاِنْ اَحَسَّ اَنْ يُّصْبِحَ سَجَدَ سَجْدَةً فَاَوْتَرَتْ لَهٗ مَا صَلّٰى (مسلم ص۲۵۷ ج۱).

**توجمه** کوم سړې چه د شپې په وخت مونځ کوی نو دوه دوه رکعته دې کوی. پس که هغه محسوسه کړی چه سحر کيدو والا دې نو يو رکعت دې وکړی، دا به ټول شوی مونځ وتر کړی.

حضرت عبدالله ﷺ نه د مثنی مثنی په باره کښې پوښتنه وکړې شوه:

قِيْلَ لِابْنِ عُمَرَ مَا مَثْنٰى مَثْنٰى قَالَ اَنْ تُسَلِّمَ فِيْ كُلِّ رَكْعَتَيْنِ (مسلم ص۲۵۷ ج۱).

**توجمه** حضرت عبدالله بن عمر ﷺ ته ووېلې شول چه مثنی مثنی نه څه مراد دی؟ نو هغوی وفرمايل لدينه مراد دادې چه تاسو هر دويم رکعت نه پس سلام وګرځوئ.

امام ابن دقيق العيد فرمايي چه

دا وترو والا حديث غواړی چه ددې يو رکعت نه وړاندې دې شفع يعنی دوه رکعته وی، د رسول الله ﷺ فرمان د (صَلٰوةُ اللَّيْلِ مَثْنٰى مَثْنٰى) او (اَوْتِرْ مَا صَلّٰى) الفاظ دی. پس که څوك د ماسخوتن د مونځ نه پس بغير د شفع نه وتر وکړی نو هغه به د رسول الله ﷺ د سنتو ادا کولو والا نه وی"[1] (احکام الاحکام ص۳۳۰ ج۱).

کوم حضرات چه د يو رکعت وترو قائل دی د هغوی په خدمت کښې عرض دې چه:

۱ - حافظ ابن حجر فرمايي چه حافظ ابن صلاح ويلی دی «مونږ نه پوهيږو د وترو په رواياتو

[1] - لاتوترو بثلاث والا روايت نه هم دا خبره په پوهه کښې راځی چه صرف په دريو رکعتو وترو باندې دې اکتفاء نه کول کيږی، بلکه لدينه وړاندې دوه رکعته، يا څلور رکعته ياته رکعته يا لس رکعته نفل دې وشی او د هغې نه پس دې دری رکعته وتر ورسره وشی. (سواتی دامت برکاتهم)

کښې سره له کثرة نه چه رسول الله ﷺ دې صرف يو رکعت کړې وی» . (تلخيص الحبير ص۱۵ ج۲).
۲- امام احمد فرمايلی دی : «مونږ هم دا وايو چه وتر يو رکعت دی ، ليکن ځان ته نه ، بلکه لدينه وړاندې لس رکعته دی ، بيا لدينه وروسته وتر وکړه او بيا سلام وګرځوه. (مغنی ابن قدامه ص۱۶۰ ج۲)
۳ - حافظ ابن حجر فرمايی : «کومو خلقو چه دا استدلال کړې دې چه د وترو يو رکعت ځان ته دې نو هغوئ په اشتباه کښې پريوتی دی، ځکه چه دا روايت صريح نه دې په يو رکعت ځان ته کولو کښې ځکه چه احتمال شته چه د (صلی رکعة واحدة) مطلب دا وی چه يو رکعت يې له دويم رکعت سره يو ځای کړې وی ، (فتح الباری ص۳۳۲ ج۳).
د يو رکعت د وترو په باره کښې په مجوزينو صحابه کرامو کښې (چه جائز يې ګڼی) صرف د دوو صحابو ذکر موندل کيږی، يو دحضرت معاويه ﷺ او دويم د حضرت سعد ﷺ .
ترکومې چه د حضرت سعد ﷺ تعلق دې ، نو امام طحاوی هم د هغه خلاف حضرت سعد ﷺ نه نقل کړې دې اوامام طحاوی د حضرت ابن عباس ﷺ نه حضرت معاويه ﷺ باندې سخت تنقيد هم نقل کړې دې چه هغوی دا خبره کوم ځای نه نقل کړې ده .
او رسول الله ﷺ نه هم په څه صحيح روايت کښې صرف د يو رکعت کولو صحيح ثبوت نشته . د رسول الله ﷺ د فعل مبارك نه د درې رکعته وترو ذکر لاسته راغلې دې ، البته بعضې رواياتو نه اشتباه ضرور کيږی، چه په هغې کښې هغوی فرمايلې دی چه ديارلس رکعتو سره وتر . يوولس رکعتو سره وتر ، نهه رکعتو سره وتر، اوو رکعتو سره وتر ، پنځو رکعتو سره وتر يو رکعت سره وتر کوئ.
په يو رکعت سره وتر کول مؤل دی ، يعنی يو رکعت چه د دوو رکعتو سره پيوست شی. کله په اطلاق کښې صرف يو رکعت ذکر کيږی ، ديارلس رکعتو سره مراد مطلقاً وتر نه دې، البته د شپې په ټولو مونځونو د وترو اطلاق شوې دې ، شرعی وتر حقيقةً هماغه درې رکعته دی، او هغه په صحيح او صريح رواياتو کښې موجود دی، يو رکعت والا روايات يقينا په ظاهر باندې محمول نه دې، اګر چه ځينې امامانو صاحبانو ددې قول هم کړې دې لکه څنګه چه امام شافعی او امام احمد نه يوروايت نقل دې ، هغوی هم د يو رکعت قائل دی، ليکن مونږ ددينه وړاندې له حوالې سره ليکلی دی چه هغوی فرمايی لدينه وړاندې لس رکعته کوئ ځان له يو رکعت مه کوئ، او امام احمد نه يو روايات د امام ابوحنيفه په شان نقل دې ، امام مالك هم د درې رکعتو قائل دې .
له يو رکعت سره د وتر کولو هغه مطلب هم کيدې شی، څنګه چه بعضې حضراتو اخيستې دې ، چه صرف يو رکعت دې وکړې شی، ليکن زياته صحيح خبره داده ، يو رکعت چه کله له ړومبو دوو رکعتو سره يو ځائ شی نو له يو سلام سره درې رکعته وکړې شی .

حضرت الاستاد شیخ المعقول والمنقول محمد ابراهیم بلیاوی رحمه الله سابق صدرالمدرسین دارالعلوم دیوبند به فرمایل چه وتر په درې قسمه دی:

۱- اول وتر حقیقی یعنی واقعی او نفس الامر کښې وتر صرف یو رکعت دې.

۲- دویم وتر حقیقی شرعی، یعنی په شریعت کښې درې رکعته وتر دی.

۳- دریم وتر مجازی شرعی، یعنی شریعت کښې مجازی وتر او هغه ټول تهجد یا صلوة اللیل دی، سره له وترونه، په ټولو باندې د وترو اطلاق کیږی مجازاً.

دامام ابوحنیفه په مسند کښې په روایت د اسود عن عائشه رضی الله عنها موجود دې چه رسول الله ﷺ به درې رکعته وتر کول، په ړومبی رکعت کښې به یی سورة (سبح اسم ربك الاعلى)، په دویم کښې (قل یاایها الکفرون) او په دریم رکعت کښې به یی (قل هوالله احد) لوستل .(مسند امام اعظم ص۹۱)

عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يُوتِرُ بِثَلَاثٍ يَقْرَاُ فِي اَوَّلِ رَكْعَةٍ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلٰى وَالثَّانِيَةِ قُلْ يَاۤاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ وَفِي الثَّالِثَةِ قُلْ هُوَاللهُ اَحَدٌ وَالْمُعَوَّذَتَيْنِ. (طحاوی ص۱۶۸ ج۱، ترمذی ۹۳ مستدرك حاکم ص۳۰۵ ج۱ وقال صحیح علی شرط الشیخین واقره الذهبی، ابن ماجه ص۸۳)

**ترجمه**: ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به درې رکعته وتر کول، ړومبی رکعت کښې به یی سورة (سبح اسم ربك الاعلى) په دویم رکعت کښې به یی (قل یاایها الکفرون) او په دریم رکعت کښې به (قل هوالله احد) لوستل او معوذتین به یی ویل.

حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به د وترو په ړومبی رکعت کښې سورة (سبح اسم ربك الاعلى)، اوپه دویم کښې (قل یاایها الکفرون) او په دریم رکعت کښې (قل هوالله احد) لوستل. او هغوی ﷺ به د وترو په مینځ کښې سلام نه ګرځولو او سلام به یی په آخر کښې ګرځولو او د سلام نه وروستو به یی درې ځله (سبحان الملك القدوس) ویل (عمل الیوم واللیلة لابن سنی ص۲۵۹، نسائی ص۲۴۹ ج۱)

هم دغه شان حضرت عبدالرحمن ابن ابزی نه هم روایت نقل دې چه رسول الله ﷺ به ړومبی رکعت کښې سورة (سبح اسم ربك الاعلى)، او په دویم رکعت کښې (قل یاایها الکفرون) او په دریم رکعت کښې (قل هوالله احد) لوستل (مسند امام اعظم ص۹۱ مسند احمد ص۴۰۶ ج۳، نسائی ص۲۵۱ ج۱ وقال النیموی اسناده صحیح)

دا روایت عبدالرحمن ابن ابزی عن ابیه او عبدالرحمن بن ابزی عن ابی بن کعب او عبدالرحمن بن ابزی نه مرفوعاً هم نقل دې

عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ مَا أَجْزَأَتْ رَكْعَةٌ وَاحِدَةٌ قَطُّ. (موطا امام محمد ص۱۵۰ کتاب الحجه ص۱۹۶ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمايي چه يو ركعت كله هم كفايت نه كوي.

عَنْ عَلِيٍّ أَنَّهُ كَانَ يُوْتِرُ بِإِنَّا أَنْزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ وَإِذَا زُلْزِلَتْ وَقُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ. (مصنف عبدالرزاق ص۳۳ ج۳)

**ترجمه**: حضرت علي ﷺ نه روايت دي چه رسول كريم صلى الله عليه وسلم به د وترو په رومبی ركعت كښې (إِنَّا أَنْزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ) او په دويم ركعت كښې (إِذَا زُلْزِلَتْ)، او په دريم كښې (قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ)، لوستل.

مصنف ابن ابی شيبه كښې حضرت عمرﷺ، علي ﷺ، انسﷺ، ابوامامه ﷺ، جابر بن زيد ﷺ، سعيد بن جبير رحمه الله، مكحول رحمه الله، علقمه رحمه الله، نه منقول دي چه هغوی به درې ركعته وتر كول.

(مصنف ابن ابی شيبه ص۲۹۳، ۲۹۴ ج۲)

**په وترو كښې يو سلام دې اوكه دوه ؟** :- دوترو د درې ركعتو په آخر كښې صرف يو سلام دې

(هدايه ص۹۳ ج۱، شرح نقايه ص۹۷ ج۱، كبيري ص۴۱۱)

د حضرت امام مالك په نزد وترهم درې ركعته دي خو دوو ركعتو نه پس سلام ګرځول جائز دي او دريم ركعت ځان ته كول جائز دي.

امام مالك بيان كوي چه حضرت عبدالله بن عمرﷺ به د وترو د دوو ركعتونو نه پس سلام ګرځولو. او په مينځ كښې د بعضې ضروري خبرو په باره كښې به يې حكم وركولو، او بيا به يې دريم ركعت كولو. (موطا امام مالك ص)

شارحين كرامو فرمايلي دي چه له دې حديث نه دا معلوميږي چه حضرت عبدالله بن عمرﷺ به اكثر هم درې ركعته يوځائ كول خو كه څه ضروري خبره به پيښه شوه نو په مينځ كښې به يې سلام ګرځولو سره د خبرې پوره كولو نه پس په هغه سابقه وترو باندې بناء كوله.

بهر حال دامسئله د بنا سره تعلق لري، لدينه مطلقاً د وترو يو ركعت كول ثابتول ګران دي.

د احناف كرامو استدلال د لاندينې احاديثونه دي.

عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ لَا يُسَلِّمُ فِي رَكْعَتَيِ الْوِتْرِ. (نسائی ص۲۴۸ ج۱، مصنف ابن ابی شيبه ص۲۹۵ ج۲)

**ترجمه**: ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به د وترو د دوو ركعتونه پس سلام نه ګرځولو.

عَنْ عَائِشَةَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لَا يُسَلِّمُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُوْلَيَيْنِ مِنَ الْوِتْرِ. (مستدرك حاكم ص۳۰۴ ج۱)

**ترجمه**: ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ به د وترو په رومبو دوو ركعتو كښې سلام نه ګرځولو.

عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُوْتِرُ بِثَلَاثٍ لَا يُسَلِّمُ اِلَّا فِيْ اٰخِرِهِنَّ. وَهٰذَا وِتْرُ اَمِيْرِ الْمُؤْمِنِيْنَ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رضي الله عنه (مستدرك حاكم ص۳۰۴ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عائشه صدیقه رضي الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به درې رکعته وتر کول او سلام به یې په آخر کښې ګرځولو.

وهذا وتر امير المؤمنين عمر بن الخطاب رضي الله عنه.(مستدرك حاكم ص۳۰۴ ج۱).

**ترجمه**: او همدغه د وترو طریقه وه د امیرالمؤمنین حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه.

په مستدرك کښې امام حاکم لیکلی دی چه حضرت حسن بصری ته وویلې شول چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه به د وترو دوو رکعتو نه پس سلام ګرځولو؟ نو حسن وفرمایل چه حضرت عمر رضي الله عنه د هغوی نه زیات فقیهه وو، او هغوی به دویم تکبیر ویلو سره (بغیر د سلام ګرځولو) ودریدل (مستدرك حاكم ص۳۰۴ ج۱).

عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ اَنَّهُ اَوْتَرَ بِثَلَاثٍ لَمْ يَفْصِلْ بَيْنَهُنَّ بِسَلَامٍ.(مصنف ابن ابي شيبه ص۲۹۳ ج۲)

**ترجمه**: امیر المؤمنین حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه چه به درې رکعته وتر کول نو په مینځ کښې به یې سلام نه ګرځولو.

عَنْ اَنَسٍ اَنَّهُ اَوْتَرَ بِثَلَاثٍ لَمْ يُسَلِّمْ اِلَّا فِيْ اٰخِرِهِنَّ.(مصنف ابن ابي شيبه ص۲۹۳ ج۲)

**ترجمه**: حضرت انس رضي الله عنه به درې رکعته وتر ادا کول او سلام به یې په آخر کښې ګرځولو.

عَنِ الْحَسَنِ قَالَ اَجْمَعَ الْمُسْلِمُوْنَ عَلٰى اَنَّ الْوِتْرَ ثَلَاثٌ لَا يُسَلِّمُ اِلَّا فِيْ اٰخِرِهِنَّ.(مصنف ابن ابي شيبه ص۲۹۴ ج۲)

**ترجمه**: حضرت حسن بصری رحمه الله فرمایي د مسلمانانو په دې اتفاق دې چه وتر درې رکعته دی او سلام په آخر کښې ګرځول دی.

عَنْ حَمَّادٍ قَالَ نَهَانِيْ اِبْرَاهِيْمُ اَنْ اُسَلِّمَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ مِنَ الْوِتْرِ.(مصنف ابن ابي شيبه ص۲۹۴ ج۲)

**ترجمه**: حضرت حماد رحمه الله فرمایي چه زه حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله دو ترو په دوو رکعتو کښې له سلام ګرځولو نه منع کړې یم

ثُمَّ يُصَلِّيْ ثَلَاثًا ـ الخ وَظَاهِرُ اللَّفْظِ يَقْتَضِيْ اَنَّهُ صَلَّى الثَّلَاثَ بِسَلَامٍ وَاحِدٍ، وَهُوَ جَائِزٌ بَلْ وَاجِبٌ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَلٰكِنْ صَلَاتُهَا بِسَلَامَيْنِ اَفْضَلُ عِنْدَنَا مَعْشَرِ الشَّافِعِيَّةِ وَمُتَعَيِّنٌ عِنْدَ الْمَالِكِيَّةِ.(هیجوری شرح الشمائل ص۱۳۳)

**ترجمه**: (دتهجدو د مونځ نه پس) بیا هغوی ﷺ درې رکعته (وتر) کول، ددې حدیث ظاهری الفاظ دا تقاضا کوی چه رسول الله ﷺ به درې رکعته هم په یو سلام سره کول. او دا جائز دی، بلکه دامام ابوحنیفه په نزد دا واجب دی او د شوافعو په نزد دوه سلامونو سره کول افضل دی او مالکیه (د امام مالك دتابعدارانو) په نزد دا متعین دی.

**دعاء قنوت د رکوع نه مخکې ده اوکه وروسته :-** په وترو کښې قنوت په ټول کال کښې رکوع نه وړاندې لوستل پکار دی ، (هدایه ص۱۰۳، شرح نقایه ص۹۸ ج۱، کبیری ص۴۱۵).

عَنْ عَاصِمٍ قَالَ سَأَلْتُ أَنَسًا عَنِ الْقُنُوْتِ قَالَ قَبْلَ الرُّكُوْعِ فَقُلْتُ إِنَّ فُلَانًا يَزْعَمُ أَنَّكَ قُلْتَ إِنَّ فُلَانًا يَزْعَمُ أَنَّكَ قُلْتَ بَعْدَ الرُّكُوْعِ فَقَالَ كَذَبَ ثُمَّ حَدَّثَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ أَنَّهُ قَنَتَ شَهْرًا بَعْدَ الرُّكُوْعِ . (بخاری ص۳۳۹ ج۱، ص۱۳۶ ج۱، مسلم ص۲۳۷ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عاصم رحمه الله فرمایی ما د حضرت انس ﷺ نه د قنوت په هکله پوښتنه وکړه نو حضرت انس ﷺ وفرمایل چه د رکوع نه وړاندې ویل پکار دی نو ما وویل چه څه خلق داسې وایی چه تاسو ویلی دی چه رسول الله ﷺ به د رکوع نه وروسته لوستل، نو هغوی وفرمایل هغوی غلط ویلی دی بیا حضرت انس ﷺ د رسول الله ﷺ حدیث بیان کړو، چه هغوی ﷺ صرف یوه میاشت د رکوع نه پس قنوت لوستلی دی.

رسول الله ﷺ تر یوې میاشتې پورې څکه له رکوع نه پس قنوت لوستلی دی چه هغوی د هغه خلقو خلاف دعا کوله چه هغوی د رسول الله ﷺ هغه صحابه کرام ﷺ قتل کړې وو چه هغوی ته به یې قاریان ویل ، یعنی پس د رکوع نه قنوت لوستل په قنوت نازله کښې وی . او رسول الله ﷺ هم داسې کړی وو او ددې حکم اوس هم همدادې چه کله څه حادثه اومصیبت په مسلمانانو باندې راشی اوبالخصوص جهری مونځونو کښې قنوت نازله ویلې کیږی خو دا قنوت د وترو والا قنوت نه دې، په وترو کښې قنوت د رکوع نه وړاندې دې ،چه هغه د ټول کال معمول دې.

قَالَ عَنْ عَبْدُ الْعَزِيْزِ وَسَأَلَ رَجُلٌ أَنَسًا ﷺ عَنِ الْقُنُوْتِ بَعْدَ الرُّكُوْعِ أَوْ عِنْدَ فَرَاغٍ مِنَ الْقِرَاءَةِ قَالَ لَا بَلْ عِنْدَ فَرَاغٍ مِنَ الْقِرَاءَةِ. (بخاری ص۵۸۶ ج۲)

**ترجمه** : حضرت عبد العزیز فرمایی یو سړی د حضرت انس ﷺ نه پوښتنه وکړه چه آیا قنوت د رکوع نه وروسته دی اوکه د قرائت له فارغیدلو نه وروسته ، نوهغوی وفرمایل چه د قرائت له فارغیدلو نه وروسته دی.

عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يُوْتِرُ فَيَقْنُتُ قَبْلَ الرُّكُوْعِ . (ابن ماجه ص۸۳، نسائی ص۲۴۸ ج۱، بیهقی ص۳۹ ج۳)

**ترجمه** : حضرت ابی بن کعب ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به وتر کول او د رکوع نه وړاندې به یې قنوت لوستلو.

عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يُوْتِرُ بِثَلَاثِ رَكَعَاتٍ وَيَجْعَلُ الْقُنُوْتَ قَبْلَ الرُّكُوْعِ . (کبیری ص۴۱۵ بحواله طبرانی

فی الاوسط)
**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به درې رکعته وتر کول او قنوت به یې د رکوع نه وړاندې لوستل
**عَنْ عَلْقَمَةَ اَنَّ ابْنَ مَسْعُوْدٍ ؓ وَاَصْحَابَ النَّبِيِّ ﷺ كَانُوْا يَقْنُتُوْنَ فِي الْوِتْرِ قَبْلَ الرُّكُوْعِ. (مصنف ابن ابی شیبه ص ۳۰۲ ج ۲) وقال ماردینی وهذا سند صحیح علی شرط مسلم الجوهر النقی مع البیهقی ص ۴۱ ج ۳)**
**ترجمه**: له حضرت علقمه نه روایت دې چه حضرت عبدالله بن مسعود ؓ او د رسول الله ﷺ نورو صحابو ؓ به په وترو کښې قنوت د رکوع نه وړاندې لوستلو.
حضرت علامه ماردینی د اشراف لابن منذر رحمه الله په حوالې سره نقل کړی دی چه حضرت عمر ؓ حضرت علی ؓ، عبدالله بن مسعود ؓ، ابو موسی اشعری ؓ، انس ؓ، براء ابن عازب ؓ، ابن عباس ؓ، عمربن عبد العزیز رحمه الله، عبیده رحمه الله، حمید الطویل رحمه الله، ابن ابی لیلی رحمه الله وغیرهم ؓ د قنوت د رکوع نه وړاندې د کولو قائل وو. (الجوهر النقی مع بیهقی ص ۴۱ ج ۳، عمدة القاری ص ۲۰ ج ۷)
همدا مسلك دې د اهل کوفه ( امام ابو حنیفه رحمه الله، سفیان ثوری رحمه الله، عبد الله بن مبارك رحمه الله، اسحاق بن راهویه ؓ. (ترمذی ص ۹۳).
**عَنْ اِبْرَاهِيْمَ النَّخْعِيِّ اَنَّ الْقُنُوْتَ وَاجِبٌ فِي الْوِتْرِ فِيْ رَمَضَانَ وَغَيْرِهٖ قَبْلَ الرُّكُوْعِ وَاِذَا اَرَدْتَّ اَنْ تَقْنُتَ فَكَبِّرْ وَاِذَا اَرَدْتَّ اَنْ تَرْكَعَ فَكَبِّرْ اَيْضًا. (کتاب الحجه ص ۲۰۰ ج ۱)**
**ترجمه**: له حضرت ابراهیم نخعی نه روایت دې چه په وترو کښې د رکوع نه وړاندې قنوت ویل یا لوستل واجب دی که هغه رمضان وی یا غیر رمضان. هغوی فرمایی چه کله تاسو قنوت لوستل شروع کوئ، نو تکبیر ووایئ او چه کله رکوع وکړئ نو بیا هم تکبیر ووایئ.
حضرت عبدالله بن عباس ؓ نه روایت دې هغوی فرمایی چه رسول الله ﷺ درې رکعته وتر وکړل او په هغې کښې یې د رکوع نه وړاندې قنوت ولو ستل.
**د وترو په قنوت کښې لاسونه پورته کول** :- د وترو په قنوت کښې د قنوت نه وړاندې لاسونه پورته کول ثابت دی.
**قَالَ اَبُوْ حَنِيْفَةَ رحمه الله فِي الْوِتْرِ قَبْلَ الرَّكْعَةِ الثَّالِثَةِ اِذَا فَرَغَ مِنَ السُّوْرَةِ كَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ ثُمَّ خَفَضَهُمَا ثُمَّ دَعَا ثُمَّ كَبَّرَ فَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ ثُمَّ رَكَعَ. (کتاب الحجه ص ۱۹۹ ج ۱)**
**ترجمه**: حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله فرمایی چه په وترو کښې قنوت د دریم رکعت د رکوع نه وړاندې دی، چه کله د سورة د قرائت نه فارغ شي نو تکبیر ووایه او لاسونه هم پورته کړه او بیا

هغه ښکته کړه او بیا دعاء وکړه اوبیا تکبیر وکړه او بیا لاسونه مه پورته کوه او رکوع وکړه.

د لاس اېښودلو په باره کښې په درمختار کښې راغلي دي:

وَهُوَ سُنَّةُ قِيَامٍ لَهُ قَرَارٌ فِيْهِ ذِكْرٌ مَسْنُوْنٌ فَيَضَعُ حَالَةَ الثَّنَاءِ وَفِي الْقُنُوْتِ وَتَكْبِيْرَاتِ الْجَنَازَةِ لَا يُسَنُّ فِي قِيَامٍ مُتَخَلِّلٍ بَيْنَ الرُّكُوْعِ وَسُجُوْدٍ لِعَدَمِ الْقَرَارِ وَلَا بَيْنَ تَكْبِيْرَاتِ الْعِيْدَيْنِ لِعَدَمِ الذِّكْرِ. (درمختار ص۴۰۴ ج۱)

**ترجمه**: او داخبره سنت ده. په هغه قیام کښې چه په هغې کښې قرار وي. (یعنی څه ساعت ودریدل وي) او په دې کښې (اورد) ذکر مسنون دې. خو په دې کښې به داسې لاسونه وتړي او قیام به وکړي لکه څنګه چه په ثناء او قنوت او دجنازې په تکبیرونو کښې دي، لیکن په داسې قیام کښې مسنون نه دي چه هغه د رکوع او سجدې په مینځ کښې وي ځکه چه په دې کښې قرار نه وي. داخترونو په تکبیراتو کښې هم مسنون نه دي، ځکه چه دهغې په مینځ کښې هم څه سنت ذکر نشته

د وترو په قنوت کښې د لاسونو د اوچتولو په سلسله کښې امام بخاری خپله رساله جزء رفع الیدین کښې د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ نه د سند صحیح سره نقل کړې دي:

اَنَّهُ كَانَ يَقْرَاءُ فِي اٰخِرِ رَكْعَةٍ مِنَ الْوِتْرِ قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ثُمَّ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فَيَقْنُتُ قَبْلَ الرُّكُوْعِ. (جزرفع یدین ص ۲۸واسناده صحیح بدائع لابن قیم ص۱۱۲ ج۴، مصنف ابن ابی شیبه ۳۰۷ ج۲)

**ترجمه**: چه هغوی به د وترو په آخری رکعت کښې «قل هوالله احد» ولوستلو، اوبیا به یې لاسونه اوچت کړل او د رکوع نه وړاندې به یې دعاء قنوت لوستله.

د عمر فاروق ﷺنه هم نقل دي چه: (رَفَعَ يَدَيْهِ فِي الْقُنُوْتِ). (ازالة الخفاء ص۹۳ ج۲)

ترجمه: چه د قنوت کولو په وخت به یې لاسونه پورته کول.

حضرت انس ﷺ نه هم داسې نقل دي.

حضرت ابو هریره ﷺ نه هم نقل دي چه هغوی به همداسې کول.

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ ارْفَعْ يَدَيْكَ لِلْقُنُوْتِ. (مصنف ابن ابی شیبه ص۳۰۷ ج۳)

**ترجمه**: حضرت ابراهیم نخعی فرمایي چه د قنوت ویلو په وخت لاسونه اوچتوئ.

امام طحاوی لیکلي دي چه:

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ النَّخَعِيِّ قَالَ تُرْفَعُ الْاَيْدِيْ فِي سَبْعَةِ مَوَاطِنَ فِي اِفْتِتَاحِ الصَّلٰوةِ وَفِي تَكْبِيْرَةِ الْقُنُوْتِ. (طحاوی ص ۳۹۱ ج۱، قال النیموی اسناده صحیح اثار السنن ص۱۸ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابراهیم نخعی نه روایت دې چه هغوی به په اوه ځایونو کښې د لاسونو پورته کولو حکم کولو. په هغې کښې یو د تکبیر افتتاح په وخت. او یو د تکبیر قنوت په وخت هم دی.

علامه زیلعی لیکلي دي چه: «د قنوت په وخت د لاسونو اوچتولو په سلسله کښې احادیث د

تواتر سره ثابت دی». (نصب الرایه ص۱۲۱ ج۲)

**دعاء قنوت**:- په وترو کښې قنوت لوستلې کیږي، ددې مختلف الفاظ د احادیثونه ثابت دی.

اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْتَعِيْنُكَ وَنَسْتَهْدِيْكَ وَنَسْتَغْفِرُكَ وَنَتُوْبُ اِلَيْكَ وَنُؤْمِنُ بِكَ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيْكَ وَنُثْنِيْ عَلَيْكَ الْخَيْرَ وَنَشْكُرُكَ وَلَا نَكْفُرُكَ وَنَخْلَعُ وَنَتْرُكُ مَنْ يَّفْجُرُكَ اَللّٰهُمَّ اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَلَكَ نُصَلِّيْ وَنَسْجُدُ وَاِلَيْكَ نَسْعٰى وَنَحْفِدُ وَنَرْجُوْا رَحْمَتَكَ وَنَخْشٰى عَذَابَكَ اِنَّ عَذَابَكَ بِالْكُفَّارِ مُلْحِقٌ. ((کبیری ص۴۱۸، دا دعاء په مراسیلو د ابوداود ص۸ کښې او په بیهقی کښې مرسلا مرفوعا اوپه نورو کتابونو کښې د ګڼو صحابوکرامو او تابعینو نه د الفاظو په معمولی تبدیلی سره نقل ده)).

طحاوی ص۱۳۷ ج۱، مصنف ابن ابی شیبه ص۳۰۱ ج۲، مصنف عبد الرزاق ص۱۱۰، ۱۲۱، ج۳، سنن الکبری للبیهقی ص۲۱۰، ۲۱۱، تفسیر اتقان ص۱۶۹ ج۱ تلخیص الحبیر ص۱۲۰، کنز العمال ص۷۸۰ ۱۳ ج۸، مدونه کبری ص۱۰۰ ج۱)

**ترجمه**:- اې الله! مونږ ستانه مدد غواړو، او ستانه هدایت غواړو، او ستانه بښنه غواړو، او ستا په وړاندې توبه کوو، او په تا باندې ایمان راوړو، او په تاباندې توکل کوزو، او ستا بهتره ثناء وایو، او ستا شکر ادا کوو، او مونږ ستا ناشکری نه کوو، او مونږ ځان ته کیږو او پریږدو هغه څوك چه ستا نا فرمانی کوی، اې الله ﷻ! مونږ خاص ستا عبادت کوو، او ستا دپاره مونځ کوو، او سجده کوو، او ستا طرف ته درځو، مونږ ستا دبندګئ دپاره حاضر یو، او مونږ ستا د رحمت امیدوار یو او ستا د عذاب نه ویریږو بیشکه ستا عذاب کفارو ته رسیدونکې دې.

د نورو روایاتو نور الفاظ په لاندې ډول دی:

اَللّٰهُمَّ اهْدِنِيْ فِيْمَنْ هَدَيْتَ وَعَافِنِيْ فِيْمَنْ عَافَيْتَ وَتَوَلَّنِيْ فِيْمَنْ تَوَلَّيْتَ وَبَارِكْ لِيْ فِيْمَا اَعْطَيْتَ وَقِنِيْ شَرَّ مَا قَضَيْتَ فَاِنَّكَ تَقْضِيْ وَلَا يُقْضٰى عَلَيْكَ وَاِنَّهٗ لَا يَذِلُّ مَنْ وَّالَيْتَ وَلَا يَعِزُّ مَنْ عَادَيْتَ تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَيْتَ وَصَلَّى اللّٰهُ عَلَى النَّبِيِّ. (بخاری ص۲۵۲ ج۱، ترملی ص۹۳، ابن ماجه ص۸۳ ابوداود ص۲۰۱ ج۱، بیهقی ص۲۰۹ ج۲)

**ترجمه**: یا الله! مونږ ته هدایت وکړې په هغه خلکو کښې کوموته چه تا هدایت کړې دې، اومونږ ته عافیت او صحت راکړې په هغه خلکو کښې چه تا ورته عافیت ورکړې دې او زمونږ کارسازی وکړه په هغه خلکو کښې چه دهغوئ کارسازی تا کړې ده اومونږ ته برکت راکړه په هغه څیزونو کښې چه تا مونږ ته راکړی دی اومونږ دهغه څیز له شر نه وساته چه تا دهغې فیصله کړې ده، بیشکه ته فیصله کولې شې او په تا باندې څوك فیصله نشی کولې اوبیشکه هیڅوك هغه چا لره نشی ذلیل کولې چه له چا سره ته دوستی وکړې اوهغه چا ته څوك عزت نشی ورکولې له چا سره چه ته دشمنی کوې، اې زمونږ ربه! ته د برکت مالك یې او ته اوچت ذات یې او د الله رحمت دې وی په نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندې.

او نور الفاظ یی دادی:

اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُ بِرِضَاكَ مِنْ سَخَطِكَ وَاَعُوْذُ بِمُعَافَاتِكَ مِنْ عُقُوْبَتِكَ وَاَعُوْذُبِكَ مِنْكَ لَا اُحْصِیْ ثَنَاءً عَلَیْكَ اَنْتَ كَمَا اَثْنَیْتَ عَلٰی نَفْسِكَ. (ابن ماجه ص ۸۲)

**ترجمه**: یا الله الله زه ستا په رضاء سره ستا له ناراضی کیدلو نه او ستا په معافی سره ستا له سزا نه پناه غوارم او زه ستا په ذات سره ستا له نیولو نه پناه غوارم، زه ستا ثناء او صفت نشم شمارلې، ته دهغه ذات یی چه تا په خپله دهغې تعریف کړې دې.

**د وترو مسائل**:- رسول الله ﷺ د وترو مونځ په ابتدائی شپه کښې، په مینځ شپه کښې، اود شپې په آخر کښې ادا کړې دې، (بخاری ص ۱۳۶ ج ۱، مسلم ص ۲۵۵ ج ۱، مسند احمد ص ۴۳ ج ۶)

**مسئله**:- کچیرې وتر د شپې په ابتداء کښې ادا کړې شی، نو بیا دوباره د کولو اجازت یی نشته د حضور ﷺ فرمان دې چه :- (لَا وِتْرَانِ فِیْ لَیْلَةٍ). (ترمذی ص ۹۳)

**ترجمه**: دوه (ځله) وتر مونځ په یوه شپه کښې ادا کول درست نه دی.

**مسئله**:- حضرت امام سفیان ثوری رحمة الله علیه، امام اوزاعی رحمة الله علیه، او دحضرت امام ابوحنیفه په نزد کچیرې وتر مونځ پاتې شی نو د هغې قضاء کول پکار دی مطلقاً.

د حضرت امام مالك په نزد د طلوع فجر نه پس د سحر د مونځ ادا کولو نه وړاندې د وترو د مونځ د قضاء کولو وخت دې ،لیکن د سبا مونځ چه کله وشی، نو بیا د هغې د قضا وخت ختمیږی، امام مالك فرمایی چه د سبا د مونځ نه پس وتر هغه سړې کولې شی، کوم چه ویده شوې وی

قَالَ مَالِكٌ وَاِنَّمَا یُوْتِرُ بَعْدَ الْفَجْرِ مَنْ نَامَ عَنِ الْوِتْرِ وَلَا یَنْبَغِیْ لِاَحَدٍ اَنْ یَّتَعَمَّدَ ذٰلِكَ حَتّٰی یَضَعَ وِتْرَهٗ بَعْدَ الْفَجْرِ، (موطا امام مالك ص ۱۱۱)

**ترجمه**: امام مالك فرمایی: چا د پاره مناسب نه دی چه عمداً هغه داسې وکړی، تردې چه هغه وترو لره تر سحر مونځ پورې پریږدی.

او د امام احمد او شافعی په نزد بالکل قضاء نشته، ځکه چه دا واجب نه دی، بلکه د نفلو په درجه کښې دی.

د حضرت امام اعظم رحمة الله علیه په مسلك کښې وتر ابتداء کښې سنت وو، او وروستو ددې په باره کښې تاکید راغې نو واجب (یعنی فرض عملی جوړ شول، او (ان الله امدکم) والا روایت ددې تائید کوی، په دې وجه له دې وترو نه په واجب سره تعبیر کوی، او همداسې تولو روایاتو کښې تطبیق کیږی، او تضاد او تعارض رفع کیږی.

**مسئله**:- په وترو کښې قنوت ویل چونکه مؤکد او واجب دی په دې وجه کچیرې قنوت ویل هیر

شی نو وروستو دې سجده سهوه وکړی.
**مسئله** :- چاته چه قنوت یاد نه وی او ترکومې چه هغه ته یاد نه وی نو تر هغه وخته پورې دې **(اللهم اغفرلی)** درې خله وایی (کبیری ص۴۱۸) او یادې **(ربنا آتنا فی الدنیا حسنة وفی الآخرة حسنة وقنا عذاب النار)** وایی، اویا دې بیا **(یارب یارب یارب)** ووایی. **(کبیری ص۴۱۸)**
**مسئله** :- مقتدی دې هم قنوت په داسې طریقې سره ووایی لکه څنګه یی چه امام وایی **(نور الایضاح ص۱۰)**
**مسئله** :- د وترو جماعت صرف په رمضان کښې مستحب دې ، صاحب هدایه وایی چه دمسلمانانو د تعامل او اجماع نه همداسې ثابتیږی **(هدایه ص۱۰۰ ج۱، شرح نقایه ص۱۰۵ ج۱)**
**مسئله** :- وتر په رمضان کښې له جماعت سره ادا کول زیات افضل دی نسبت د شپې په آخری حصه کښې له ځان ته کولو نه. ځکه چه په رمضان کښې د تراویحو جماعت هم کیږی، په دې وجه وتر هم په جماعت سره اداء کول بهتر دی ، خو په عامو شپو کښې د شپې په آخری حصه کښې وتر بغیر د جماعت نه کول افضل دی، ځکه چه رسول الله ﷺ همدغسې فرمایلی دی . لدینه علاوه د هغوی ﷺ دا ارشاد هم دې چه **(اجْعَلُوا آخِرَ صَلوتِكُمْ بِاللَّيْلِ وِتْرًا)**، **(مسلم ص۲۵۷ ج۱)**
**ترجمه** : د شپې نه وخت کښې خپل آخری مونځ وتر جوړ وګرځوئ.
**مسئله** :- په رمضان کښې که یو سړی فرض د جماعت سره ونکړل بلکه ځان ته یی وکړل او تراویح یی هم د جماعت سره ادا نه کړل نو هغه ته اجازت دې چه هغه دې وتر د جماعت سره وکړی، صحیح خبره همداده لکه څنګه چه علامه طحطاوی رحمه الله لیکلې دی **(حاشیه مراقی الفلاح ص۲۲۶)**
**قنوت نازله** :- د سحر په مونځ کښې له صحیحو روایاتو نه په قنوت نازله باندې هیشه والې نه ثابتیږی، بغیر د نوزالو نه.
حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې (چه د هغې مطابق حضرت امام مالك او شافعی د سحر په مونځ کښې قنوت کوی)
**(اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ لَمْ يَزَلْ يَقْنُتُ فِي الصُّبْحِ حَتّٰى فَارَقَ الدُّنْيَا)**، **(دار قطنی ص۳۹ ج۲، طحاوی ص۱۴۳ ج۱)**
**ترجمه** : رسول الله ﷺ همیشه د سحر په مونځ کښې قنوت لوستلو تردې چه هغوی ﷺ د دنیا نه رخصت شول.
لدینه که قنوت نازله مراد واخستلې شی نو بیا به ددې تعارض له راروانو روایتو سره نه کیږی.
**عَنْ اَبِيْ مَالِكٍ قَالَ قُلْتُ لِاَبِيْ يَا اَبَتِ اِنَّكَ صَلَّيْتَ خَلْفَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ وَاَبِيْ بَكْرٍ وَعُمَرَ وَعُثْمَانَ وَعَلِيٍّ بِالْكُوْفَةِ نَحْوَ خَمْسِ سِنِيْنَ كَانُوْا يَقْنُتُوْنَ فِي الْفَجْرِ قَالَ اَيْ بُنَيَّ مُحْدَثٌ (ابن ماجه ص۸۸، نسائی ص۱۶۴ ج۱، ترمذی ص۸۵)**

**ترجمه**: حضرت ابو مالك نه روایت دي هغوی فرمایي چه ما خپل والد صاحب ته وویلې چه تاسو د رسول الله ﷺ په اقتداء کښې مونځ کړې دې او همدغه شان حضرت ابو بکر ؓ او حضرت عمر ؓ او حضرت عثمان ؓ پسې هم تاسې مونځ کړې دې او حضرت علی ؓ پسې په کوفه کښې تقریبا پنځو کالو پورې هم تاسې مونځ کړې دې، آیا دې ټولو حضراتو به د سحر په مونځ کښې قنوت لوستلو، نو والد صاحب راته وویل چه ای بچیه! دا نوې خبره ده (د سحر په مونځ کښې قنوت لوستل زاړه سنت نه دی دا نوې خبره ده).

د احنافو جمهور فقهاء فرمایي چه د سحر په مونځ کښې قنوت نازله ویل درست دی اګرکه له التزام سره وی او څومره احادیث چه پدې باره کښې راغلې دی د هغې صحیح محمل همدا دې

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ کَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ لَا یَقْنُتُ فِی الصَّلٰوةِ الصُّبْحِ اِلَّا اَنْ یَدْعُوَ لِقَوْمٍ اَوْ عَلٰی قَوْمٍ. (آثار السنن ص ۲ بحواله ابن حبان وقال اسناده صحیح)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره ؓ فرمایي چه رسول الله ﷺ به د سحر په مونځ کښې قنوت نه لوستلو مګر دا چه که د یو قوم په باره کښې به یې دعاء کوله، یا به یې د یو قوم خلاف دعاء کوله، نو بیا به یې د سحر په مونځ کښې قنوت لوستلو

عَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِیَّ ﷺ لَمْ یَقْنُتْ اِلَّا اِذَا دَعَا لِقَوْمٍ اَوْ عَلٰی وَقَالَ صَاحِبُ التَّنْقِیْحِ وَسَنَدُ هٰذَا الْحَدِیْثِ صَحِیْحٌ. (شرح نقایه ص ۹۹ ج ۱ بحواله خطیب فی کتاب القنوت)

**ترجمه**: حضرت انس ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به قنوت نه لوستل. مګر کله چه به د یو قوم په حق کښې یا به یې د یو قوم خلاف دعاء کوله، نو بیا به یې قنوت لوستلو

عَنْ اَبِیْ حَنِیْفَةَ عَنْ حَمَّادٍ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ النَّبِیَّ ﷺ لَمْ یَقْنُتْ فِی الْفَجْرِ قَطُّ اِلَّا شَهْرًا وَاحِدًا لَمْ یُرَ قَبْلَ ذٰلِكَ وَلَا بَعْدَهٗ وَاِنَّمَا قَنَتَ فِیْ ذٰلِكَ الشَّهْرِ یَدْعُوْا ذٰلِكَ الشَّهْرِ یَدْعُوْا عَلٰی نَاسٍ مِنَ الْمُشْرِکِیْنَ وَلِهٰذَا لَمْ یَقْنُتْ اَنَسٌ فِی الصُّبْحِ کَمَا رَوَاهُ الطَّبْرَانِیْ بِسَنَدِهٖ الخ. (شرح نقایه ص ۹۹ ج ۱).

**ترجمه**: حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله له خپل سند سره نقل کړی دی چه حضرت عبد الله بن مسعود ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ کله هم د سحر په مونځ کښې قنوت ندی لوستلی، مګر تر یوې میاشت پورې، نه د دینه وړاندې کله هغوی په قنوت لوستلو لیدلی شوی دی او نه وروستو په دې یوه میاشت کښې هغوی ﷺ د هغه مشرکانو خلاف بد دعاء کوله (چا چه په فریب سره د رسول الله ﷺ اویا تنه (۷۰) صحابه کرام کوم چه حافظان او قاریان وو، شهیدان کړی وو) له همدې کبله حضرت انس ؓ د سحر په مونځ کښې قنوت نه لوستلو.

**مسئله**:- د سحر په مونځ کښې چه کله امام قنوت بالجهر لولی، نو مقتدی ته اختیار دې چه هغه

هم قنوت ووایی یا آمین ووایی یا خاموش پاتې شی، (کبیری ص۴۳۳) د قنوت نازله د لوستلو په وخت پرانیستې اوخلاص لاسونه اولی (بهتر دی)۔

**مسئله** - امام ابو یوسف رحمه الله فرمایی چه که امام د سحر په مونځ کښې قنوت لولی نو مقتدی دې هم ورپسې ولولی، ځکه چه هغه د امام د اقتداء التزام کړې دې او د قنوت معامله اجتهادی ده، لکه څنګه چه د اخترونو د تکبیرونو معامله له صحابه کرامو نه مختلفو طریقو باندې ثابته ده.

**د قنوت نازله الفاظ** :- د قنوت نازله مختلف الفاظ په روایاتو کښې راغلی دی:

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُسْلِمَاتِ وَاَلِّفْ بَيْنَ قُلُوْبِهِمْ وَاَصْلِحْ ذَاتَ بَيْنِهِمْ وَانْصُرْهُمْ عَلٰى عَدُوِّكَ وَعَدُوِّهِمْ اَللّٰهُمَّ الْعَنِ الْكَفَرَةَ الَّذِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِكَ وَيُكَذِّبُوْنَ رُسُلَكَ وَيُقَاتِلُوْنَ اَوْلِيَاءَكَ اَللّٰهُمَّ خَالِفْ بَيْنَ كَلِمَتِهِمْ وَزَلْزِلْ اَقْدَامَهُمْ وَاَنْزِلْ بِهِمْ بَأْسَكَ الَّذِيْ لَا تَرُدُّهٗ عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِيْنَ.

(حزب اعظم ص۱۰۲)

هغه دعاء قنوت چه اکثر دسحر په مانځه کښې زما استاد شیخ او مرشد حضرت **مولانا حسین احمد مدنی** رحمه الله به ویله:-

اَللّٰهُمَّ اهْدِنَا فِيْمَنْ هَدَيْتَ وَعَافِنَا فِيْمَنْ عَافَيْتَ وَتَوَلَّنَا فِيْمَنْ تَوَلَّيْتَ وَبَارِكْ لَنَا فِيْمَنْ اَعْطَيْتَ وَقِنَا شَرَّ مَا قَضَيْتَ فَاِنَّكَ تَقْضِيْ وَلَا يُقْضٰى عَلَيْكَ وَاِنَّهٗ لَا يَعِزُّ مَنْ عَادَيْتَ وَلَا يَذِلُّ مَنْ وَّالَيْتَ فَلَكَ الْحَمْدُ عَلٰى مَا قَضَيْتَ نَسْتَغْفِرُكَ وَنَتُوْبُ اِلَيْكَ،

اَللّٰهُمَّ انْصُرِ الْاِسْلَامَ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَاَنْجِزْ وَعْدَكَ وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ. اَللّٰهُمَّ انْصُرْ مُسْلِمِيْ وَزِيْرِسْتَانَ وَفَلَسْطِيْنَ وَاخْذُلْ اَعْدَاءَهُمُ الْاِنْكِلِيْزَ وَمَنْ وَّالَاهُمْ اَعْدَاءَنَا اَعْدَاءَكَ اَعْدَاءَ الدِّيْنِ،

اَللّٰهُمَّ زَلْزِلْ اَقْدَامَهُمْ اَللّٰهُمَّ شَتِّتْ شَمْلَهُمْ اَللّٰهُمَّ فَرِّقْ جَمْعَهُمْ اَللّٰهُمَّ دَمِّرْ دِيَارَهُمْ. اَللّٰهُمَّ اَهْلِكْ اَمْوَالَهُمْ، اَللّٰهُمَّ فُلَّ حَدَّهُمْ اَللّٰهُمَّ اهْزِمْ جُنْدَهُمْ. اَللّٰهُمَّ خُذْهُمْ اَخْذَ عَزِيْزٍ مُّقْتَدِرٍ وَصَلَّى اللهُ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ وَّاٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَبَارِكْ وَسَلِّمْ.

**له وترو نه وروسته دوه رکعته نفل** :- له وترو نه وروسته دوه رکعته نفل رسول الله ﷺ په ناسته ادا کړی دی لکه څنګه چه په بخاری ص۱۵۵ ج۱، او ابن ماجه ص۸۴، طحاوی ص۲۰۲ کښې ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها نه مرفوعاً په صحیح سند سره روایت دی. او حضرت ابو امامه رضی الله عنه نه مرفوعاً په طحاوی ص ۲۰۲ ج۱، مسند احمد ص ۲۲۰ ج۵، کښې په سندِ حسن نقل دی. خو علماء کرام دا فرمایی دا ټول د هغوی ﷺ په خصوصیاتو کښې شامل دی چه هغوی ته په ناسته کښې هم د

ودریدلو په اندازه ثواب ورکول کیدلو ، او دنورو خلقو دپاره دا حکم نه دې. هغوی ته به په ناسته نیم ثواب ورکول کیږی .

حضرت مولانا شیخ الهند نه نقل دی چه هغوی به فرمایل چه ثواب دې نیم ورکړل شی لیکن مونږ به بیا هم درسول الله ﷺ په اتباع کښې په ناسته مونځ کوو (والله اعلم بالصواب).

**یو اشکال** :- د رسول الله ﷺ ارشاد دې چه : (بَادِرُوا الصُّبْحَ بِالْوِتْرِ) . (مسلم ص۲۵۷ ج۱)

ترجمه : د سحر د مونځ نه وړاندې سبقت وکړئ د وترو په ادا کولو کښې .

(اجْعَلُوا اٰخِرَ صَلٰوتِكُمْ بِاللَّيْلِ وِتْرًا) .(مسلم ص)

**ترجمه** : د شپې په آخری وخت کښې مونځ وتر جوړ کړئ .

لدې روایاتو نه ثابتیږی چه د شپې په آخری وخت کښې مونځ همدا وتر کول پکار دی ، نود رسول الله ﷺ د وترو نه پس دوه رکعته مونځ کول ددې روایاتو خلاف ولې دی .

**جواب** : ۱ - نو د دې حدیث مطلب دا دې چه واجب مونځ آخر کښې وتر کول پکار دی .

۲ - یا کوم مونځ چه ته په ولاړه باندې کوې نو هغه وتر کول پکار دی .

**یوبل اشکال** :- ام المؤمنین حضرت عائشه ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به د یو رکعت سره وتر جوړول ، او بیا به یې دوه رکعته کول په ناسته باندې کله چه به هغوی د رکوع اراده وکړه نو ودریدلو سره به یې رکوع کوله ، (ابن ماجه ص۸۴).

**جواب** :- ددې روایت مطلب دا کیدې شی چه کله کله یې داسې هم کړې دی، د نفلو او تهجدو متعلق د رسول الله ﷺ داعمل په دې طریقه نقل دې ، په عامو حالاتو کښې ودریدل او کله په ناسته به یې هم کول، او کله به یې قرائت په ناسته کولو ، تقریباً تر دیرشو یا څلویښتو آیتونو په اندازه تلاوت به چه کله پاتې شو نو په ولاړه به یې کولو او بیا به یې رکوع کوله، (مسلم ص۲۵۲ ج۱).

په نوافلو کښې دا ټولې طریقې درستې دی اوکه نه نو په ټولو صحیح احادیثو کښې دا ذکر دی چه هغوی به دوه رکعته په ناسته کول ، په هغې کښې د ودریدلو څه ذکر نشته ، په دې وجه فقهاء کرامو په دې باندې بحث کړ ې دې ، چه هغوی ته به په ناسته مونځ کولو باندې هم پوره ثواب ورکول کیدلو دا د هغوی په خصوصیاتو کښې شامل دی په خلاف د امت د افرادو ، چه هغوی ته به په ناسته مونځ کولو سره نیم ثواب ورکول کیږی .

# صلوة الجمعة

## «د جمعې مونځ»

**د جمعې د ورځې فضائل** :- د جمعې د ورځې په احادیثو کښې ډیر لوی فضیلت راغلې دې لکه د مثال په توګه:

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ (مرفوعا) خَیْرُ یَوْمٍ طَلَعَتْ فِیْهِ الشَّمْسُ یَوْمُ الْجُمُعَةِ فِیْهِ خُلِقَ اٰدَمُ فِیْهِ اُدْخِلَ الْجَنَّةَ وَفِیْهِ اُخْرِجَ مِنْهَا وَلَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ اِلَّا فِیْ یَوْمِ الْجُمُعَةِ. (مسلم ص ۲۸۲ ج ۱، ترمذی ص ۹۶)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره ﷛ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: بهتره ورځ هغه چه په هغې کښې نمر راخیژی هغه د جمعې ورځ ده، په دې ورځ د آدم ؑ پیدا ایش شوې دې. او په همدې ورځ هغه په جنت کښې داخل کړې شو. او په همدې ورځ هغه د جنت نه بهر شو. او قیامت به هم په همدې ورځ باندې راځی

عَنْ اَبِیْ لُبَابَةَ (مرفوعا) اِنَّ یَوْمَ الْجُمُعَةِ سَیِّدُ الْاَیَّامِ وَاَعْظَمُهَا عِنْدَ اللّٰهِ وَهُوَ اَعْظَمُ عِنْدَ اللّٰهِ مِنْ یَوْمِ الْاَضْحٰی وَیَوْمِ الْفِطْرِ فِیْهِ خَمْسُ خِلَالٍ خَلَقَ اللّٰهُ فِیْهِ اٰدَمَ وَاَهْبَطَ اللّٰهُ فِیْهِ اٰدَمَ اِلَی الْاَرْضِ وَفِیْهِ تَوَفَّی اللّٰهُ اٰدَمَ وَفِیْهِ سَاعَةٌ لَا یَسْاَلُ الْعَبْدُ فِیْهَا شَیْئًا اِلَّا اَعْطَاهُ اللّٰهُ مَا لَمْ یَسْاَلْ حَرَامًا وَفِیْهِ تَقُوْمُ السَّاعَةُ مَا مِنْ مَلَكٍ مُقَرَّبٍ وَلَا سَمَاءٍ وَلَا اَرْضٍ وَلَا رِیَاحٍ وَلَا جِبَالٍ وَلَا بَحْرٍ اِلَّا هُوَ مُشْفِقٌ مِنْ یَوْمِ الْجُمُعَةِ. (ابن ماجه ص ۷۶، ابن ابی شیبه ص ۱۵۰ ج ۲)

**ترجمه**: حضرت ابو لبابه ﷛ روایت کوی چه رسول الله ﷺ وفرمایل: بیشکه د جمعې ورځ د ورځو سرداره ده، او د الله ﷻ په نزد لویه ده، او له لوئ اختر او وړوکی اختر نه هم لویه ده، د الله ﷻ په نزد. په دې کښې پنځه خبرې دی الله ﷻ آدم ؑ په دې ورځ پیدا کړو. او بیا یې پدې ورځ باندې زمکې ته را ولیږلو. او په دې ورځ هغوی وفات شول. او په دې ورځ کښې یو مبارك ساعت دې چه په هغې کښې څوك څه د الله ﷻ نه غواړې الله ﷻ یې ورکوی. په شرط ددې چه هغه څه حرام خبره نه وی او په همدې ورځ به قیامت هم راځی مقرب فرشتې ،آسمان، زمکه،هوا ، غرونه، بحر، ټول د جمعې د ورځې نه ویریږی.

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ (مرفوعا) نَحْنُ الْاٰخِرُوْنَ السَّابِقُوْنَ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ بَیْدَ اَنَّهُمْ اُوْتُوا الْکِتَابَ مِنْ قَبْلِنَا وَاُوْتِیْنَاهُ مِنْ بَعْدِهِمْ ثُمَّ هٰذَا یَوْمُهُمُ الَّذِیْ فُرِضَ عَلَیْهِمْ فَاخْتَلَفُوْا فِیْهِ فَهَدَانَا اللّٰهُ لَهُ وَالنَّاسُ لَنَا فِیْهِ تَبَعٌ اَلْیَهُوْدُ غَدًا وَالنَّصَارٰی بَعْدَ غَدٍ. (بخاری ص ۱۲۰ ج ۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره ﷛ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی چه مونږ په دنیا کښې د ټولو نه وروستو راغلی یو او د قیامت په ورځ به د ټولو نه اول یو ، البته اهل کتابو ته زمونږ نه وړاندې

کتاب ورکړې شوې دې او مونږ ته د هغوی نه وروستو. بیا دا هغه ورځ ده چه الله ﷻ په هغوی دا فرض کړې وه هغوی په دې کښې اختلاف وکړو، بیا الله ﷻ ددې ورځې مونږ ته هدایت راکړو او نور خلق په دې کښې زمونږ ددې ورځې تابع دی یهود د دویمې ورځې (یعنی هفتې) او نصاری د دریمې ورځې (یعنی یك شنبې)

**وَفِيْ رِوَايَةِ مُسْلِمٍ قَالَ نَحْنُ الْاٰخِرُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَنَحْنُ اَوَّلُ مَنْ يَّدْخُلُ الْجَنَّةَ. (مسلم ص ۲۸۲ ج ۱)**

او د مسلم په روایت کښې راغلی دی چه مونږ په آخر کښې یو او د قیامت په ورځ به اول یو. او مونږ به د ټولو نه اول په جنت کښې داخلیږو

**عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ وَعَنْ حُذَيْفَةَ (مرفوعا) نَحْنُ الْاٰخِرُوْنَ مِنْ اَهْلِ الدُّنْيَا وَالْاَوَّلُوْنَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ الْمَقْضِيُّ لَهُمْ قَبْلَ الْخَلَائِقِ. (مسلم ص ۲۸۲ ج ۱)**

**توجمه**: حضرت ابو هریره ﷺ او حضرت حذیفه ﷺ نه روایت دې چه د رسول الله ﷺ فرمان دې چه مونږ په دنیا والو کښې د ټولو نه په آخر کښې راغلې یو او ټولو نه به وړاندې کیږو او د قیامت په ورځ به د خلقو نه وړاندې زمونږ فیصله کیږی

**عَنْ اَنَسٍ ﷺ (مرفوعا) لَيْلَةُ الْجُمُعَةِ لَيْلَةٌ اَغَرُّ وَيَوْمُ الْجُمُعَةِ يَوْمٌ اَزْهَرُ. (مشکوۃ ص ۱۲۱ بحواله البیهقی فی الدعوات الکبیر)**

**توجمه**: حضرت انس ﷺ نه روایت دې چه د رسول الله ﷺ فرمان دې چه د جمعې شپه یوه روښانه شپه ده. او د جمعې ورځ ډیره سپینه او ښکاره ورځ ده

**عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو (مرفوعا) مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَمُوْتُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اَوْ لَيْلَةَ الْجُمُعَةِ اِلَّا وَقَاهُ اللهُ فِتْنَةَ الْقَبْرِ. (مسند احمد ص ۱۶۹ ج ۲) ترمذی ص ۱۶۴)**

**توجمه**: حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ نه روایت دې، چه د رسول الله ﷺ فرمان دې چه کوم سړې د جمعې په ورځ یا د جمعې په شپه باندې وفات شی نو الله ﷻ به هغه د قبر د فتنې نه بچ کوی

**عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ (مرفوعا) اَلْيَوْمُ الْمَوْعُوْدُ يَوْمُ الْقِيٰمَةِ وَالْيَوْمُ الْمَشْهُوْدُ يَوْمُ عَرَفَةَ وَالشَّاهِدُ يَوْمُ الْجُمُعَةِ. (ترمذی ص ۴۸۱)**

**توجمه**: حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی **(سورة البروج پاره ۳۰)** **(الیوم الموعود)** نه مراد د قیامت ورځ ده او **(الیوم المشهود)** نه د عرفې ورځ مراد ده او د **(شاهد)** نه مراد د جمعې ورځ ده چه هغه په هر ښار کښې په خلقو باندې راځی

**(بهترین روز هفته جمعه و بهتر روز های سال عرفه است).**

**توجمه**: هفته کښې بهترینه ورځ د جمعې او په کال کښې بهترینه ورځ د عرفې ده.

كَانَ يُسَمَّى الْجُمُعَةَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ بِالْعَرُوبَةِ وَمَعْنَاهُ الْيَوْمُ الْمُبِيْنُ الْمُعَظَّمُ وَمِنْ اَعْرَبَ اِذَا بَيَّنَ.

**ترجمه**: جمعې ته به د جاهلیت په زمانه کښې عروبه ویل کیده ، ددې معنی واضحه او معظمه ورځ ده ، د «اعرب» معنی بیانول او واضح کول دي.

دجمعې مونځ فرض عین دې، او ددې منکر کافر دې ، اودا مستقل فرض او (آکد من الظهر) یعنی دماسپښین نه زیات موکد دې

جمعه د اُمّت د تنظیم بهترینه ذریعه ده،او د اخروی او روحانی نعمتونو د حصول سبب دې.

**په جمعه کښې مبارک ساعت**:-

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ ذَكَرَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَقَالَ فِيْهِ سَاعَةٌ لَا يُوَافِقُهَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ وَهُوَ قَائِمٌ يُصَلِّيْ يَسْأَلُ اللّٰهَ شَيْئًا اِلَّا اَعْطَاهُ اِيَّاهُ. (بخاری ص۱۲۸، ج۱، مسلم ص۲۸۱ ج۱).

**ترجمه**: حضرت ابوهریره رضی الله عنه روایت کوی چه رسول الله ﷺ د جمعې ذکر وکړو او وې فرمایل چه په جمعه کښې یو مبارك ساعت وی ، مسلمان بنده چه پدې کښې څه هم د الله ﷻ نه غواړی، الله ﷻ یی ورکوی. وزاد مسلم: وَهِيَ سَاعَةٌ خَفِيْفَةٌ. (مسلم ص۲۸۱ ج۱).

**ترجمه**: او د مسلم په روایت کښې دا هم دی چه هغه ساعت ډیر خفیف «یعنی لږ» وی.

وَفِيْ رِوَايَةِ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ فِيْ شَانِ سَاعَةِ الْجُمُعَةِ هِيَ مَا بَيْنَ اَنْ يَّجْلِسَ الْاِمَامُ اِلٰى اَنْ تُقْضَى الصَّلٰوةُ. (مسلم ص۲۸۱ ج۱)

**ترجمه**: او د حضرت ابو موسی رضی الله عنه په روایت کښې دی چه ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل چه هغوی ﷺ به فرمایل د جمعې د ساعت په باره کښې چه هغه ساعت د امام په ممبرباندې د ودریدلو نه تر د مونځ د ختمیدلو پورې دې.

اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ (مرفوعا) عُرِضَتْ عَلَيَّ الْاَيَّامُ فَعُرِضَ عَلَيَّ يَوْمُ الْجُمُعَةِ فَاِذَا هِيَ كَمِرْآةٍ بَيْضَاءَ فَاِذَا فِيْ وَسْطِهَا نُكْتَةٌ سَوْدَاءُ فَقُلْتُ مَا هٰذِهِ قِيْلَ السَّاعَةُ. (مجمع الزوائد ص۱۶۳ ج۲، بحواله طبرانی فی الاوسط سنده صحیح)

**ترجمه**: حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی چه ما ته ورځې پیش کړې شوې او د جمعې ورځ هم پیش کړې شوه نو هغه د سپینې شیشې په شان وه او د هغې په مینځ کښې یو توره نقطه وه نو ما وویل چه دا څه دی؟ نو ما ته وویل شول چه دا هغه مبارك ساعت دې.

عَنْ اَنَسٍ (مرفوعا) اِنَّ اللّٰهَ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى لَيْسَ بِتَارِكٍ اَحَدًا مِّنَ الْمُسْلِمِيْنَ اِلَّا غَفَرَ لَهُ. (مجمع الزوائد ص۱۶۴ ج۲، بحواله طبرانی فی الاوسط ورجاله رجال الصحیح)

**ترجمه**: حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی چه الله ﷻ هر یو مسلمان د جمعې

په ورځ ښني.

**د جمعې په ورځ د سورة کهف تلاوت** :- د جمعې په ورځ د سورة کهف د تلاوت په حديث شريف کښې ډير لوئ فضيلت راغلې دې:

عَنْ اَبِي سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ مَنْ قَرَءَ سُوْرَةَ الْكَهْفِ فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ اَضَاءَ لَهُ مِنَ النُّوْرِ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجُمُعَتَيْنِ. (مستدرك حاکم ص۳۶۸ ج۲ صحيح)

**ترجمه**: حضرت ابو سعيد ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمايلي دی: چا چه د سورة کهف تلاوت د جمعې په ورځ وکړو نو د هغه دپاره به د يوې جمعې نه تر بلې جمعې پورې نور وی.

عَنْ عَلِيٍّ (مرفوعا) مَنْ قَرَءَ سُوْرَةَ الْكَهْفِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَهُوَ مَعْصُوْمٌ اِلَى ثَمَانِيَةِ اَيَّامٍ مِنْ كُلِّ فِتْنَةٍ وَاِنْ خَرَجَ الدَّجَّالُ عُصِمَ مِنْهُ (ضياء مقدسی)

**ترجمه**: حضرت علی ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمايي چا چه سورة کهف د جمعې په ورځ تلاوت کړو نو هغه به تر اته ورځو پورې د هرې فتنې نه محفوظ وی، او که دجال را ووتلو، نو د هغه نه به هم هغه محفوظ ساتلې کيږی.

عَنْ اَبِي الدَّرْدَاءِ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ مَنْ قَرَءَ ثَلٰثَ اٰيَاتٍ مِنْ اَوَّلِ الْكَهْفِ عُصِمَ مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ. (ترمذی ص ۳۰۹ حسن صحيح)

**ترجمه**: حضرت ابو الدرداء ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمايلي دی چا چه (د جمعې په ورځ د سورة کهف د شروع درې آيتونه وويل هغه به د دجال د فتنې نه محفوظ شی.

عَنْ اَبِي الدَّرْدَاءِ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ مَنْ حَفِظَ عَشْرَ اٰيَاتٍ مِنْ اَوَّلِ الْكَهْفِ عُصِمَ مِنَ الدَّجَّالِ. (مسلم ص۲۷۱ ج۱، مستدرك حاکم ص۳۶۸ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابو الدرداء ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمايلي دی: چا چه د سورة کهف ابتدائی لس آيتونه ياد کړل هغه به د دجال د فتنې نه محفوظ شی.

وَاَيْضًا عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ مَنْ قَرَءَ عَشْرَ اٰيَاتٍ مِنْ اٰخِرِ الْكَهْفِ عُصِمَ مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ. (مسند احمد ص۴۴۶ ج۶، مسلم ص۲۷۱ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو درداء ﷺ ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمايلي دی: چاچه د سورة کهف آخری لس آيتونه تلاوت کړل نو هغه به د دجال نه محفوظ شی.

**دجمعې په ورځ د سورة کهف د تلاوت درې درجې**: ۱- رومبئ (ادنی درجه) درجه يې داده چه صرف رومبی آيتونه د شروع او آخری آيتونه ياد کړې شی، او تلاوت کړې شی.

۲ - دویمه مینځنۍ درجه یې داده چه لس آیتونه د شروع نه او لس آیتونه د آخر نه (یاد او تلاوت کړې شی) .

۳ - دریمه اوکامله درجه یې دا ده چه پوره سورة د جمعې په ورځ تلاوت کړې شی . **(والله سبحانه وتعالی اعلم بالصواب).**

**د جمعې په ورځ د درود شریف ویلو فضیلت** :- د جمعې په ورځ د درود شریف ویلو په سلسله کښې هم په احادیثو کښې ډیر فضیلت راغلې دې

**عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ (مرفوعا) أَكْثِرُوا الصَّلٰوةَ عَلَيَّ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَإِنَّهُ مَشْهُودٌ تَشْهَدُهُ الْمَلٰئِكَةُ وَإِنَّ أَحَدًا لَمْ يُصَلِّ عَلَيَّ إِلَّا عُرِضَتْ عَلَيَّ صَلٰوتُهُ حَتّٰى يَفْرُغَ. (ابن ماجه ص۱۱۸)**

**ترجمه** حضرت ابودرداء ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی چه د جمعې په ورځ په ما باندې ډیر درود لولئ ځکه چه په دې ورځ باندې فرشتې حاضریږی او څوك چه په تاسو کښې په ما باندې درود وایئ هغه ما ته پیش کوی ، تردې چه دې فارغ شی

**عَنْ أَوْسِ بْنِ أَوْسٍ (مرفوعا) وَفِيهِ فَأَكْثِرُوا عَلَيَّ مِنَ الصَّلٰوةِ فِيهِ فَإِنَّ صَلٰوتَكُمْ مَعْرُوضَةٌ عَلَيَّ قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ كَيْفَ تُعْرَضُ صَلٰوتُنَا عَلَيْكَ وَقَدْ أَرِمْتَ وَقَالَ يَقُولُونَ بَلِيتَ قَالَ إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ حَرَّمَ عَلَى الْأَرْضِ أَجْسَادَ الْأَنْبِيَاءِ.**

**(ابوداود ص۱۵۰ ج۱، نسائی ص۲۰۳ ج۱، ابن ماجه ص۱۱۸، دارمی ص۳۰۸ ج۱، مستدرك حاكم ص۲۷۸ ج۱، وقال صحیح علی شرط البخاری واقره الذهبی ومسند احمد ص۸ ج۴، الترغیب والترهیب ص۲۸۱،۸۲، ج۲)**

**ترجمه** حضرت اوس بن اوس ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی چه د جمعې په ورځ په ما باندې ډیر درود را ولیږئ ځکه چه ستاسو درود په ماباندې پیش کیږی، خلقو عرض وکړو، چه زمونږ درود ویل به هغه وخت تاسو باندې څنګه پیش کیږی په داسې حال کښې چه تاسو به ریزه ریزه شوې یاستئ. نو هغوی ﷺ وفرمایل بیشکه الله ﷻ په زمکه باندې حرام کړې دی چه هغه د نبیانو بدنونه وخوری

**عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ (مرفوعا) أَكْثِرُوا الصَّلٰوةَ عَلَيَّ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَإِنَّهُ مَشْهُودٌ تَشْهَدُهُ الْمَلَائِكَةُ وَإِنَّ أَحَدًا لَمْ يُصَلِّ عَلَيَّ إِلَّا عُرِضَتْ عَلَيَّ صَلٰوتُهُ حَتّٰى يَفْرُغَ مِنْهَا قَالَ قُلْتُ وَبَعْدَ الْمَوْتِ قَالَ إِنَّ اللهَ حَرَّمَ عَلَى الْأَرْضِ أَنْ تَأْكُلَ أَجْسَادَ الْأَنْبِيَاءِ فَنَبِيُّ اللهِ حَيٌّ يُرْزَقُ. (ابن ماجه ص۱۱۸) الْعَرْضُ عَلَى مَجْمُوعِ الرُّوحِ وَالْجَسَدِ الْمُبَارَكِ)**

**ترجمه** حضرت ابوالدرداء ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی چه د جمعې په ورځ په ماباندې درود را ولیږئ. ځکه چه په دې ورځ باندې فرشتې حاضریږی. او څوك چه په ما باندې درود وایی هغه په ما باندې پیش کیږی. تردې پورې چه هغه فارغ شی، حضرت ابودرداء ﷺ عرض

وکړو چه یا رسول الله ! د مرګ نه پس به هم پیش کیږی ؟ نو رسول الله ﷺ وفرمایل : چه الله ﷻ په زمکه حرام کړېی دی چه هغه د نبیانو بدنونه وخوری . پس د الله ﷻ نبی ژوندي دي هغه ته روزی ورکول کیږی. ( د درود پیش کیدل په روح او بدن مبارك دواړو باندې کیږی)

عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ مَنْ صَلَّى عَلَيَّ يَوْمَ الْجُمُعَةِ مِائَةَ مَرَّةٍ جَاءَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَمَعَهُ نُوْرٌ قُسِمَ ذٰلِكَ النُّوْرُ بَيْنَ الْخَلْقِ كُلِّهِمْ لَوَسِعَهُمْ. (حلیة الاولیاء ص۴۷ ج۸)

**ترجمه** : حضرت علی ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی څوك چه د جمعې په ورځ په ماباندې سل ځله درود ووایی نو هغه به د قیامت په ورځ په داسې طریقه راځی چه هغه سره به دومره نور وی که هغه د ټول مخلوق په مینځ کښې تقسیم کړې شی نو دټولو د پاره به کافی شی.

## د جمعې د فرضیت تاکید :-

عَنِ ابْنِ عُمَرَ وَأَبِي هُرَيْرَةَ قَالَا سَمِعْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ عَلٰى أَعْوَادِ مِنْبَرِهِ لَيَنْتَهِيَنَّ أَقْوَامٌ عَنْ وَدْعِهِمُ الْجُمُعَاتِ أَوْ لَيَخْتِمَنَّ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ ثُمَّ لَيَكُوْنُنَّ مِنَ الْغَافِلِيْنَ. (مسلم ص۲۸۴ ج۱، نسائی ص۲۰۲ ج۱، عن ابن عباس وابن عمر)

**ترجمه** : حضرت ابن عمر ؓ او ابو هریره ؓ نه روایت دې ، هغوی ؓ فرمایی چه مونږ د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی په داسې حال کښې چه هغوی په ممبر تشریف فرما وو: منع دې شی خلق د جمعې د پریښودلو نه، او که داسې نه وی نو الله ﷻ به ددوی په زړونو باندې پردې واچوی . بیا به هغوی د غافلینو له جملې څخه شی.

أَبِي الْجَعْدِ الضَّمْرِيِّ (مرفوعا) مَنْ تَرَكَ ثَلَاثَ جُمَعٍ تَهَاوُنًا بِهَا طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قَلْبِهِ. (ابوداؤد ص۱۵۱ ج۱، ترمذی ص۹۸، نسائی ص۲۰۲ ج۱، ابن ماجه ص۷۸، دارمی ص۳۰۷ ج۱، مسند احمد ص۴۲۴).

**ترجمه** : حضرت ابو الجعد ضمری ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی کوم سړې چه درې جمعې محض د سستیا له کبله پریږدی ، نو الله ﷻ به دده په زړه ټاپه (مهر) ولګوی.

عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ ؓ (مرفوعا) لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ اٰمُرَ رَجُلًا يُصَلِّيْ بِالنَّاسِ ثُمَّ اُحَرِّقَ عَلٰى رِجَالٍ يَتَخَلَّفُوْنَ عَنِ الْجُمُعَةِ بُيُوْتَهُمْ. (مسلم ص۲۳۲ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن مسعود ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل : زه اراده لرم چه یو سړی ته د مونځ ورکولو حکم وکړم چه هغه خلقو ته مونځ وکړی، بیا زه دهغه خلکو کورونو ته ور واچوم او هغه وسوزوم چه څوك د جمعې دمونځ نه پاتې کیږی.

اِبْنُ عَبَّاسٍ (مرفوعا) مَنْ تَرَكَ الْجُمُعَةَ مِنْ غَيْرِ ضَرُوْرَةٍ كُتِبَ مُنَافِقًا فِيْ كِتَابٍ لَا يُمْحٰى وَلَا يُبَدَّلُ. (کتاب الام ص۲۰۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابن عباس ﷠ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایي: چا چه بغیر د ضرورت نه جمعه پریښودله، هغه به منافق ولیکلې شي په داسې کتاب کښې چه په هغې کښې به تغیر او تبدیل نه وي.

جَابِرٍ (مرفوعا) مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَعَلَيْهِ الْجُمُعَةَ إِلَّا عَلَى مَرِيْضٍ أَوْ مُسَافِرٍ أَوْ إِمْرَأَةٍ أَوْ صَبِيٍّ أَوْ مَمْلُوْكٍ فَمَنِ اسْتَغْنَى بِلَهْوٍ أَوْ تِجَارَةٍ إِسْتَغْنَى اللهُ عَنْهُ وَاللهُ غَنِيٌّ حَمِيْدٌ. (دار قطنی ص۳ ج۲)

**ترجمه**: حضرت جابر ﷠ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم سړي چه په الله ﷻ باندې او په ورځ د قیامت باندې ایمان لري په هغه جمعه ضروري ده، مګر په بیمار، مسافر، ښځه، ماشوم، او غلام باندې (ضروري نده)، کوم سړي چه په لوبو او تجارت کښې مشغولیدلو سره مستغنی شو (یعني د جمعې له مونځ نه بې پروا شو) الله ﷻ به له هغه نه مستغنی (بې پروا) شي او الله ﷻ غني او حمید ذات دې.

**د جمعې مونځ ته دمخکې راتلونکی دپاره اجراو ثواب**:- د جمعې په ورځ جومات ته وړاندې راتلونکو ته ډیر ثواب ورکول کیږي لکه چه په صحیح حدیث کښې راځي:

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا كَانَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ وَقَفَتِ الْمَلٰئِكَةُ عَلَى بَابِ الْمَسْجِدِ يَكْتُبُوْنَ الْأَوَّلَ فَالْأَوَّلَ مِثْلُ الْمُهَجِّرِ كَمَثَلِ الَّذِيْ يُهْدِيْ بَدَنَةً ثُمَّ كَالَّذِيْ يُهْدِيْ بَقَرَةً ثُمَّ كَبْشًا ثُمَّ دَجَاجَةً ثُمَّ بَيْضَةً فَإِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ طَوَوْا صُحُفَهُمْ وَيَسْتَمِعُوْنَ الذِّكْرَ. (بخاری ص۱۲۷ ج۱ مسلم ص۲۸۲ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره ﷠ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چه د جمعې ورځ شي نو فرشتې د جومات په دروازو باندې ودریږي، څوک چه رومبې راځي د هغه نوم لیکي، د رومبی راتلونکي مثال رسول الله ﷺ بیان وفرمایلو لکه چه د اوښ قرباني ورکونکې وي، دویم لکه چه د غوا قرباني کونکې یعني غوا لره د الله ﷻ په لار کښې صدقه کونکې وي. بیا دریم لکه د ګډ صدقه کونکې، بیا څلورم لکه دچرګ د الله ﷻ په لار کښې صدقه کونکې، او بیا لکه چه د هګۍ صدقه کونکی وي، پس کله چه امام د خطبې د پاره ووځي نو فرشتې هم خپل دفترونه (کاغذونه اوعمل نامې) را غونډې کړي او ذکر آوري.

امام غزالی لیکلې دي چه:

په اوله پیړۍ کښې به د سحر د مونځ نه پس لارې او کوڅې ډکې وې او د جمعې په ورځ به د اختر په شان ډیره ګڼه وه، او بیا یې لیکلي دي چه مسلمانانو ته په دې خبره شرم ولې نه ورځي چه یهود او نصاریٰ دخپل عبادت په ورځ خپلو عبادت خانو ته څنګه په وخت ځي او د دنیا طلب کونکي بازارونو ته څنګه په وخت ځي، پس د حق طلب کونکي که د وړاندې والي نه کار نه اخلي

نو دا د دوئ د پاره د شرم خبره ده . (احیاء العلوم صه۸۲ ج۱).

## د جمعې شرائط

**د جمعې د وجوب دپاره شرطونه** :- د جمعې د وجوب دپاره لاندینی شرطونه دی :

۱ - حریت یعنی آزاد کیدل . په غلام جمعه فرض نه ده.
۲ - ذکورة ، نارینه کیدل. په ښځه جمعه فرض نه ده.
۳ - اقامت په مسافر جمعه فرض نه ده.
۴ - صحت په مریض جمعه فرض نه ده.
۵ - د پښو روغ والې. په ګډ او شل باندې جمعه فرض نه ده.
۶ - د سترګو روغ والې هم شرط دې. په ړوند باندې جمعه فرض نه ده.
۷ - بالغ کیدل . په نابالغه باندې جمعه فرض نه ده.

(هدایه صه۱۱۶ ج۱،شرح نقایه صه۱۲۲ ج۱، کبیری صه۵۴۸)

عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ اَلْجُمُعَةُ حَقٌّ وَاجِبٌ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ فِيْ جَمَاعَةٍ اِلَّا اَرْبَعَةٍ عَبْدٍ مَمْلُوْكٍ اَوِامْرَاَةٍ اَوْصَبِيٍّ اَوْمَرِيْضٍ ،(مستدرک حاکم ص۲۸۸ ج۱وقال هذا حدیث صحیح علی شرط الشیخین،واقره الذهبی)

**ترجمه** : حضرت ابو موسی اشعری ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی : په هر مسلمان باندې جمعه په جماعت سره ثابته او واجبه (فرض) ده مګر په څلورو کسانو باندې واجبه نه ده، یو غلام، دویم ښځه، دریم نابالغه ماشوم، څلورم مریض .

دا روایت په ابو داؤد صه ۱۵۳ کښې (عن طارق بن شهاب عن النبی ﷺ) نه نقل دې .ابو داؤد وایی چه طارق ﷺ رسول الله ﷺ لیدلې دې ، لیکن څه یې ترې آوریدلی نه دی، او مستدرک حاکم کښې ((عن طارق بن شهاب عن ابی موسی ان النبی ﷺ)) راغلی دی ، نو په دې کښې د حضرت ابوموسی ﷺ واسطه په مینځ کښې راغلی ده .

امام حلبی لیکلی دی چه : (وَعَلَيْهِ اِجْمَاعُ الْاَئِمَّةِ الْاَرْبَعَةِ وَجُمْهُوْرِ الْعُلَمَاءِ) ( کبیری ۵۴۸ ج)

او په دې باندې د ائمه اربعه او جمهور علماؤ اجماع ده .

عَنِ الْحَسَنِ قَالَ لَيْسَ عَلَى النِّسَاءِ جُمُعَةٌ وَفِيْ رِوَايَةٍ عَنْهُ لَيْسَ عَلَى الْعَبْدِ جُمُعَةٌ ، (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۰۹ ج۲)

**ترجمه** : حضرت حسن بصری ﷺ فرمایی چه په ښځو باندې جمعه فرض نه ده او همدغه رنګې په غلام باندې هم فرض نه ده .

عَنْ عَطَاءٍ قَالَ لَيْسَ عَلَى النِّسَاءِ وَالْعَبِيْدِ جُمُعَةٌ ،(مصنف عبد الرزاق ص۱۷۲ ج۲)

**ترجمه**: حضرت عطاء فرمايي چه په ښځو او غلامانو باندې جمعه فرض نه ده.

عَنِ الْحَسَنِ قَالَ يَجِبُ الْجُمُعَةَ عَلَى الْأَعْمٰى إِذَا وَجَدَ قَائِدًا. (مصنف ابن ابی شيبه ص ۱۵۴)

**ترجمه**: حضرت حسن بصری فرمايي چه د ړوند که چرې بوتلونکې «رهنما» وی نو په هغه هم جمعه فرض ده.

**مسئله**:- شيخ فاني هم د بيمار په حکم کښې دې.

**مسئله**:- د بيمار تيماردار «خدمت کونکې» هم د بيمار په حکم کښې دې. ځکه کله که هغه لاړ شي، نو د بيمار خبر اخستونکې به څوك نه وی.

**مسئله**:- په نابالغ، مجنون، ښځه او ړوند باندې جمعه فرض نه ده، او په يوې سترګې والا باندې فرض ده.

**مسئله**:- جمعه د ټولو معذورو په حق کښې د ماسپښين دمونځ نه افضله ده، بغير د ښځې نه، چه د هغې په حق کښې د ماسپښين «مونځ کول په کور کښې» افضل دی، ځکه چه د هغې کور کښې مونځ کول زيات افضل دی د جومات نه. (درمختار ص ۱۱۲ ج ۱).

**مسئله**:- يو پښې والا که د تللو طاقت لری، نو جمعه پرې فرض ده او که مفلوج يا مقطوع وی نو ساقطه ده.

**مسئله**:- که د پوليس د نيولو ويره وی يا د غل ويره وی نو جمعه ساقطيږی.

حضرت حسن بصری نه نقل دی چه هغه به ويرې والا سړی ته د جمعې د پريښودلو اجازت ورکولو. (مصنف ابن ابی شيبه ص ۱۵۴ ج ۲).

**مسئله**:- که د باران له کبله ختې وی يا واوره وغيره وی نو جمعه ساقطيږی.

**مسئله**:- مفقود الشرائط که په عزيمت باندې د عمل کولو په خاطر جمعه وکړی نو د ماسپښين فرضيت ترې ساقطيږی.

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ ﷺ قَالَ إِذَا صَلَّيْتُنَّ يَوْمَ الْجُمُعَةِ مَعَ الْإِمَامِ فَصَلِّيْنَ صَلَاتَهُ إِذَا صَلَّيْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ فَصَلِّيْنَ أَرْبَعًا. (مصنف ابن ابی شيبه ص ۱۰۹ ج ۲)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ د ښځو په باره کښې ويلې دی چه کله تاسو د جمعې په ورځ د امام سره د جمعې مونځ کوئ، نو د هغوی سره د جمعې مونځ وکړئ، او چه کله په خپلو کورونو کښې کوئ نو څلور رکعته «د ماسپښين مونځ» وکړئ.

عَنِ الْحَسَنِ قَالَ إِنْ جَمَّعْنَ مَعَ الْإِمَامِ أَجْزَاهُنَّ. (مصنف ابن ابی شيبه ص ۱۱۰ ج ۲)

**ترجمه**: حضرت حسن بصری فرمايي چه که ښځه د جمعې مونځ د امام سره کوی، نو هماغه يې

کافي دي (یعنی د ماسپښین مونځ ترې ساقطیږي).

**مسئله**:- په مزدور باندې جمعه واجبه ده که جامع مسجد لرې وی نود دوی د اجرت نه په حساب سره مزدوری کمیدې شی. که جامع مسجد نژدې وی نو مزدوری به نه کمیږی ، د لرې والی اندازه یو حصه (یعنی درې ساعته) ده . او څلورمه حصه اجرت به یې کمیږی . **(شامی ص۶۰۲ ج۱)**.

**د جمعې د انعقاد شرطونه**:- د جمعې د منعقد کیدلو د پاره لاندینی شرطونه دی. لدینه بغیر جمعه نه صحیح کیږی بلکه د ماسپښین مونځ به کوی

۱ - ښار یا فناء د ښار یعنی شاملیدونکی د ښار صحیح دی . بادیه (وړو کلو کښې) او په باندو کښې بالاتفاق جمعه جائز نه ده .

۲ - د سلطان یا د هغه نائب یا د خطیب موجودیدل.

۳ - د جماعت کیدل، د امام ابوحنیفه په نزد د امام نه بغیر درې سړی او د صاحبینو په نزد د امام نه بغیر دوه سړی هم کیدې شی.

۴ - د ماسپښین وخت کیدل.

۵ - اظهار ، اذن عام کیدل. چنانچه په قید خانه . جیل خانه. او په بند او قلعه ګانو کښې هم جمعه جائزه نه ده.

۶ - خطبه هم د انعقاد دجمعې د پاره شرط ده. په خطبه کښې حمد او صلوة او وصیت د تقوی . قرائت د قرآن . او دعاء د مسلمانانو سړو. ښځو او مړو لپاره . **(هدایه ص۱۱۲،۱۱۳ ج۱،شرح نقایه ص۱۲۳تا ۱۲۵ ج۱، کبیری ص۵۴۹تا۵۵۱)**

لدینه علاوه د جمعې دپاره هغه شرائط دی کوم چه د ټولو مونځونو د پاره دی .

**مسئله**:- که والی (سلطان یا د هغه نائب) نه وی نو بیا دې مسلمانان په خپل اتفاق یو والی جوړ کړی. بیا به هغه قاضی مقرر کړی. که کافر حکمران کوم مسلمان لره قاضی مقرر کړی. او مسلمانان په دې راضی وی نو بیا هم صحیح ده . **(درمختار ص۱۱۰ ج۱)**.

**مسئله**:- د جمعې امامت هر هغه سړې کولې شی چه د نورو مونځونو امامت کولې شی. **(درمختار ص۱۱۲ ج۱)**.

**په کلو اوباندو کښې جمعه**:- جمعه د اجتماعیت (راجمع کیدلو) ذریعه ده ، اجتماع یا د جهاد دپاره یا د عبادت او مونځ د پاره . یا د کتاب الله د تعلیم ، علم دپاره وی. او په قرآن کریم او احادیثو کښې دې طرف ته اشارې موجودې دی.

**وَارْكَعُوا مَعَ الرَّاكِعِينَ. (البقره پ۱)**

**ترجمه**: او رکوع کوئ د رکوع کونکو سره.

يَدُ اللهِ عَلَى الْجَمَاعَةِ. (ترمذی ص۲۱۶)

**ترجمه**: د الله ﷻ رحمت او شفقت په جماعت باندې وی.

مَا مِنْ ثَلَاثَةٍ فِي قَرْيَةٍ أَوْ بَدْوٍ لَا تُقَامُ فِيهِمُ الصَّلٰوةُ إِلَّا قَدِ اسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطٰنُ. (نسائی ص۱۳۵ ج۱، ابوداود ص۸۱ ج۱، مسند احمد ص۴۴۶ ج۶)

**ترجمه**: چه درې سړی هم په يوه بانده او «وړوکی» کلی کښې وی او بيا هغوی په جماعت سره مونځ قائموی نو هغوی به په شيطان باندې غلبه بيا مومی.

قَالَ سَلْمَانُ مَا كَانَ مِنْ رَجُلٍ فِي أَرْضٍ قِيٍّ فَأَذَّنَ وَأَقَامَ إِلَّا صَلّٰى خَلْفَهُ مِنْ خَلْقِ اللهِ مَا لَا يُرٰى طَرْفَاهُ. (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۱۹ ج۱)

**ترجمه**: حضرت سلمان فارسی ﷺ فرمايی چه څوك په يوه فراخه زمکه کښې وی او اذان او اقامت وکړی او مونځ کوی نو په هغوی پسې د الله ﷻ دومره لوئ مخلوق مونځ کوی چه د هغې دواړه طرفونه په نظر نه شی راتلې.

وَقَالَ الْعُلَمَاءُ الْجِهَادُ لَا يَقُوْمُ إِلَّا بِالْعِلْمِ لِأَنَّ الضَّالَّ لَا يَهْدِي الضَّالَّ فَوَجَبَ أَنْ يَكُوْنَ الْمُجَاهِدُ عَالِمًا عَامِلًا.

**ترجمه**: محققين علماء فرمايی چه جهاد بغير د علم څخه نه قائميږی، ځکه چه په خپله گمراه انسان بل گمراه انسان ته لاره نه شی ښودلې، پس ضروری ده چه مجاهد به با عمله عالم وی.

**د احناف کرامو او حضرت سفيان ثوری په نزد په کليو کښې د جمعې حکم**:- د احناف کرامو اوحضرت سفيان ثوری په نزد جمعه په بوادی «وړوکو کلوکښې» اومناهل «د اوبو په گودرونو» کښې درسته او صحيح نه ده، په قری کبيره «په لويو کلوکښې» او قصبو يا ښارونو او امصارو کښې جائزه ده. (هدايه ص۱۱۴ ج۱، شرح نقايه ص۱۲۳ ج۱، کبيری ص۵۲۹).

علامه حلبی ليکلی دی چه: دا مذهب دې د حضرت علی ﷺ، او حذيفه ﷺ، عطاء ابن ابی رباح ﷺ، حسن بن ابی الحسن ﷺ، ابراهيم نخعی ﷺ، مجاهد رحمة الله عليه، ابن سيرين رحمة الله عليه، سفيان ثوری رحمة الله عليه، او د سخنون رحمة الله عليه. (کبيری ص۵۲۹).

**د امام مالک رحمة الله عليه په نزد**:- د امام مالك په نزد هر يو دا سې کلې چه په هغې کښې کورونه متصل «پيوست» وی او بازار وی، په هغې کښې جمعه جائزه ده.

**دامام شافعی په نزد**:- د امام شافعی په نزد په داسې کلی کښې جمعه جائزه ده، چيرته چه کورونه يو ځائ وی، او مختلف کورونه آباد وی، او د هغه ځائ خلق بغير د ضروروت نه د هغه

ځائ نه بلا ضرورته کوچ نه کوی ، او څلویښت سړی آزاد ، بالغ ، عاقل وی ، نو هلته جمعه جائز ده
احناف کرام ددې لاندینی آیتونو او احادیثو نه استدلال کوی :

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَوةِ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَى ذِكْرِ اللهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِنْ كُنتُمْ تَعْلَمُونَ . (الجمعه پ۲۸)

**ترجمه** : اې مؤمنانو ! کله چه د جمعې په ورځ دمونځ د پاره راوغوښتلې شئ (اذان وشی) نو د الله ﷻ د یادولو د پاره روان شئ او اخیستل او خرڅول پرېږدئ ، دا تاسو د پاره ډېره غوره ده ، که تاسو پوهیږئ .

عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السَّلَمِيِّ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ لَا جُمُعَةَ وَلَا تَشْرِيقَ إِلَّا فِي مِصْرٍ جَامِعٍ وَكَانَ يَعُدُّ الْأَمْصَارَ الْبَصْرَةَ وَالْكُوفَةَ وَالْمَدِينَةَ وَالْبَحْرَيْنِ وَمِصْرَ وَالشَّامَ وَالْجَزِيرَةَ وَرُبَّمَا قَالَ الْيَمَنُ وَالْيَمَامَةُ. (مصنف عبد الرزاق ص۱۶۸ ج۳، مصنف ابن ابی شیبه ص۱۰۱ ج۲ السنن الکبری للبیهقی وقال النیموی وهو اثر صحیح آثار السنن ص۸۷ ج۲)

**ترجمه** : حضرت عبد الرحمن السلمی رحمه الله نه روایت دې چه حضرت علی رضی الله عنه فرمایی چه جمعه او تشریق (اختر) نه دی (جائز) مګر په مصر جامع (جامع ښار) کښې او هغه به بصره ، کوفه ، مدینه ، بحرین ، مصر ، شام جزیره دیمن او یمامه، وغیره ښار شمارلو .

امام نیموی ویلې دی چه ددې اثر سند صحیح دې .

حضرت مولانا محمد انور شاه کشمیری فرمایی :

وَقَدْ ثَبَتَ عَنْ عَلِيٍّ رضی الله عنه بِإِسْنَادٍ عَلَى شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ عِنْدَ عَبْدِ الرَّزَّاقِ أَنَّهُ لَا جُمُعَةَ وَلَا تَشْرِيقَ إِلَّا فِي مِصْرٍ جَامِعٍ وَالنَّوَوِيُّ أَخْرَجَهُ بِإِسْنَادٍ ضَعِيفٍ وَحَكَمَ عَلَيْهِ الضُّعْفَ مَعَ أَنَّهُ لَهُ إِسْنَادًا يَشْرِقُ كَشُرُوقِ الشَّمْسِ الضُّحَى. (فیض الباری ص۳۳۱ ج۲)

**ترجمه** : حضرت علی رضی الله عنه نه په یو صحیح روایت کښې راغلی دی چه هغوی فرمایی : جمعه او عیدین نشته بغیر د جامع ښار نه .

او امام نووی دا روایت له ضعیف سند سره ذکر کړې دې اوپه دې یې د ضعف حکم لګولې دې حال دا چه ددې دویم سند د نصف النهار په شان واضح او صحیح دی .

عن الحسن و محمد انهما قالا الجمعة فی الامصار (مصنف ابن ابی شیبه ص۱۰۱ ج۲).

**ترجمه** : حضرت حسن بصری رحمه الله او امام محمدبن سیرین رحمه الله فرمایی چه جمعه په ښارونو کښې وی .

عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ لَيْسَ عَلَى أَهْلِ الْقُرَى جُمُعَةٌ إِنَّمَا الْجُمَعُ عَلَى أَهْلِ الْأَمْصَارِ مِثْلِ الْمَدَائِنِ، (مصنف ابن ابی شیبه

ص۱۰۱ ج۲)

**ترجمه** : حضرت حذیفه ﷺ فرمایي چه په وړو کلو کښې او سیدونکو باندې جمعه نشته. جمعه په ښارونو کښې په اوسیدونکو باندې فرض ده ، لکه مدائن .

عَنِ ابْرَاهِيمَ قَالَ لَاجُمُعَةَ وَلَاتَشْرِيقَ اِلَّا فِي مِصْرٍ جَامِعٍ (مصنف ابن ابي شيبه ص۱۰۱ ج۲).

**ترجمه** : حضرت ابراهیم نخعي فرمایي چه جمعه او اختر په مصر جامع کښې کیدلې شي.

**امام شاه ولي الله محدث دهلوی لیکلی دی چه** :-

وَقَدْ تَلَقَّتِ الْاُمَّةُ تَلَقِّيًا مَعْنَوِيًّا مِنْ غَيْرِ تَلَقِّيْ لَفْظٍ اَنَّهُ شَرْطٌ فِي الْجُمُعَةِ الْجَمَاعَةُ وَنَوْعٌ مِنَ التَّمَدُّنِ وَكَانَ النَّبِيُّ ﷺ وَخُلَفَاءُهُ وَالْاَئِمَّةُ الْمُجْتَهِدُوْنَ يَجْمَعُوْنَ فِي الْبُلْدَانِ وَلَا يُوَاخِذُوْنَ اَهْلَ الْبَدْوِ بَلْ وَلَا يُقَامُ فِي عَهْدِهِمْ فِي الْبَدْوِ فَفَهِمُوْا مِنْ ذٰلِكَ قَرْنًا بَعْدَ قَرْنٍ وَعَصْرًا بَعْدَ عَصْرٍ اَنَّهُ يُشْتَرَطُ لَهَا الْجَمَاعَةُ وَالتَّمَدُّنُ. (حجة الله البالغه ص۲۲۵ طبع قديم ص ۳۰ ج۲ مطبع رشيديه دهلي)

**ترجمه** : امت په معنوی طور باندې ددې خبرې تلقی کړې ده ، یعنی دا خبره یې بغیر د الفاظو زده کړې ده چه په جمعه کښې جماعت شرط دې او یو دنوعَ تمدن هم د جمعې دپاره ضروري دې ، او رسول الله ﷺ او خلفاء راشدینو ، او ائمه مجتهدینو به په ښارونو کښې جمعه قائموله. او د اهل بادیه به یې په دې مواخذه نه کوله، بلکه د هغوی په عهد کښې باد یه کښې کله هم جمعه نه وه قائمه شوې، نو لدې سره هغوی دا خبره پیژندلې ده ، قرناً بعد قرنٍ او عصراً بعد عصرٍ چه د جمعې د پاره جماعت شرط دې او د تمدن کیدل هم شرط دی.

**مسئله** :- په یو ښار کښې په څو ځایونو کښې جمعه د ضرورت له کبله جائزه ده، لیکن په هر جومات کښې جمعه کول، لکه څنګه چه زمونږ په زمانه کښې رواج دی، دا ضرار کیدل دی او د اجتماعیت د اسلام د پاره مضر دی.

## دجمعې آداب

**غسل** :- د جمعې د مونځ د پاره غسل کول سنت دی.

عَنْ عَبْدِ اللهِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ اِذَا اَرَادَ اَحَدُكُمْ اَنْ يَّاْتِيَ الْجُمُعَةَ فَلْيَغْتَسِلْ . (مسلم ص۲۷۹ ج۱، بخاري ص۱۲۲ ج۱)

**ترجمه** حضرت عبد الله ﷺ فرمایي چه رسول الله ﷺ وفرمایل : په تاسو کښې چه څوک د جمعې د پاره تلل غواړي نو هغه دې غسل وکړي.

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ (مرفوعا) حَقٌّ لِلّٰهِ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ اَنْ يَّغْتَسِلَ فِيْ كُلِّ سَبْعَةِ اَيَّامٍ يَغْسِلُ رَاْسَهُ وَجَسَدَهُ. (مسلم ص

۲۸۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره ﷺ فرمایي چه رسول الله ﷺ وفرمایل: هر مسلمان باندې په اوه ورځو کښې د الله ﷻ حق دې چه سر او بدن وه مینځي.

عَنْ جَابِرٍ (مرفوعا) عَلٰى كُلِّ رَجُلٍ مُسْلِمٍ فِيْ كُلِّ سَبْعَةِ اَيَّامٍ غُسْلُ يَوْمٍ وَهُوَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ. (نسائي ص۲۰۲ ج۱)

**ترجمه**: حضرت جابر ﷺ د رسول الله ﷺ نه نقل کړي دی چه هر یو مسلمان باندې په هفته کښې یوه ورځ غسل کول ضروري دی، او هغه د جمعې ورځ ده.

**لباس**: ښائسته جامې، نوې جامې یا وینځلې شوې صفا جامې اغوستل.

عَنْ اَبِيْ اَيُّوْبَ الْاَنْصَارِيِّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ مَنِ اغْتَسَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَمَسَّ مِنْ طِيْبٍ اِنْ كَانَ عِنْدَهٗ وَلَبِسَ مِنْ اَحْسَنِ ثِيَابِهٖ ثُمَّ خَرَجَ حَتّٰى يَاْتِيَ الْمَسْجِدَ فَيَرْكَعَ اِنْ بَدَا لَهٗ وَلَمْ يُؤْذِ اَحَدًا ثُمَّ اَنْصَتَ اِذَا خَرَجَ اِمَامُهٗ حَتّٰى يُصَلِّيَ كَانَتْ كَفَّارَةً لِمَا بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْجُمُعَةِ الْاُخْرٰى وَزَادَ فِيْ رِوَايَةٍ وَعَلَيْهِ السَّكِيْنَةُ حَتّٰى يَاْتِيَ الْمَسْجِدَ. (مسند احمد ص۴۲۱ ج۵، مجمع الزوائد ص۱۷۱ ج۲، بحواله طبراني في الكبير ورجاله ثقات)

**ترجمه**: حضرت ابو ایوب انصاری ﷺ نه روایت دې هغوی فرمایي چه ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی چه هغوی به فرمایل چا چه د جمعې په ورځ غسل وکړو او خوشبوئي یې استعمال کړه که هغه ته میسره وی او ښه لباس یې واغستلو او بیا هغه جومات ته لاړو او (په یو روایت کښې دی چه د اطمینان سره) یې مونځ وکړو، او چاته یې څه ضرر ونه رسولو، او بیا چه کله امام د خطبې د پاره را ووتلو نو دې خاموش شو، تردې چه د مونځ نه فارغ شو، نو د یوې جمعې نه به تر بلې جمعې پورې د ده د گناهونو دا کفاره وی.

**خوشبو**: طیب یعنی خوشبو استعمالول.

**مسواک**: مسواك زیات په اهتمام سره وهل.

عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ غُسْلُ يَوْمِ الْجُمُعَةِ عَلٰى كُلِّ مُحْتَلِمٍ وَسِوَاكٌ وَيَمَسُّ طِيْبًا. (مسلم ص۲۸۰ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابوسعید خدری ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: د جمعې په ورځ غسل کول مسواك کول، او خوشبو استعمالول، هر بالغ مسلمان د پاره مؤکد دی.

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فِيْ جُمُعَةٍ مِّنَ الْجُمَعِ مَعَاشِرَ الْمُسْلِمِيْنَ اِنَّ هٰذَا يَوْمٌ جَعَلَهُ اللهُ لَكُمْ عِيْدًا فَاغْتَسِلُوْا وَعَلَيْكُمْ بِالسِّوَاكِ. (رواه الطبراني في الاوسط والصغير واسناده صحيح آثار السنن ص۸۹ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابوهریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ په یوه جمعه کښې وفرمایل: اې د مسلمانانو ټولیه! دا ورځ الله ﷻ ستاسو د پاره د اختر ورځ جوړه کړې ده، په دې کښې غسل

کوئ او مسواك ضرور استعمالوئ.

**نوکونه پرې کول**:- یعنی نوکونه اخیستل ، او ویښته وغیره صفا کول ، افضله اوغوره خبره داده چه د جمعې د مونځ نه وړاندې ویښته صفا کړې شی او نوکونه پرې کړې شی.

**عَنْ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ يُنَقِّى الرَّجُلُ اَظْفَارَهٗ فِىْ كُلِّ جُمُعَةٍ.(مصنف ابن ابی شیبه ص۱۵۹ ج۲)**

**ترجمه**: حضرت ابراهیم نخعی نه روایت دې چه هغوی فرمایل چه د هرې جمعې په ورځ نوکونه پرې کوئ او صفا کوئ یې.

**عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ تَيْمِيْ قَالَ مَنْ قَلَّمَ اَظْفَارَهٗ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَقَصَّ شَارِبَهٗ وَاسْتَنَّ فَقَدِ اسْتَكْمَلَ الْجُمُعَةَ. (مصنف عبدالرزاق ص۱۹۷ ج۳)**

**ترجمه**: حضرت محمد ابن ابراهیم تیمی فرمایی چا چه د جمعې په ورځ خپل نوکونه پرې کړل ، او بریتونه یې هم پرې کړل او مسواك یې ووهلو نو هغه جمعه مکمله کړه.

**مسئله**:- د جمعې په ورځ سفر کول جائز دی.

**عَنْ اَسْوَدَ بْنِ قَيْسٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ اَبْصَرَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَجُلًا عَلَيْهِ اُهْبَةُ السَّفَرِ فَقَالَ الرَّجُلُ اِنَّ الْيَوْمَ يَوْمُ جُمُعَةٍ وَلَوْلَا ذٰلِكَ لَخَرَجْتُ فَقَالَ عُمَرُ اِنَّ الْجُمُعَةَ لَا تَحْبِسُ مُسَافِرًا.(مصنف عبدالرزاق ص۲۵۰ ج۱)**

**ترجمه**: حضرت اسود بن قیس د خپل والد نه روایت کوی چه هغوی وفرمایل: حضرت عمر ﷺ یو سړې ولیدلو چه په هغه د سفر آثار وو، نو هغه سړی وویل نن د جمعې ورځ ده، که دا نه وای نو زه به په سفر وتلې ووم، نو حضرت عمرﷺ وفرمایل خه لاړشه! جمعه د سفر نه بندول نه کوی.

**مسئله**:- د زوال نه وړاندې سفر کول پکار دی ، د زوال نه پس سفر کول ښه نه دی.

**مسئله**:- که چا اذان واوریدلو په داسې حال کښې چه خوراك یې کولو نو که د جمعې د فوت کیدلو خطره وه نو خوراك کول دې هم پریږدی.

**مسئله**:- که یو سحرایی (کوچې) سړې د جمعې په اراده دجمعې مونځ ته لاړو، نو دده به د جمعې ثواب وشی اګر چه نور ضروریات یې هم حاصل کړل. لیکن که غالب قصد یې د ضروری څیزونو حصول وی ، نو بیا د جمعې ثواب یې نه کیږی . **کذا الحج والتجارة(شامی).**

**قضاء عمری**:-

په جمعة الوداع (د رمضان المبارك آخری جمعه) کښې څلور رکعته نفل په نیت د قضاء عمری کول اختراع او احداث (بدعت) دې ، دا خیال کول چه دا به د ټول عمرد قضاء شوی مونځونو قائمقام وی نو دا د شریعت له قواعدو څخه خلاف دی.

**مسئله**:- جمعة الوداع کښې څه داسې خصوصیات ګڼل چه هغه نورو جمعو کښې نه وی . دا هم

بدعت دي.

**مسئله**:- د جمعې په ورځ د جمعې د مونځ نه وړاندې حلقې جوړونکی کیناستل منع دی.

**اَنَّهٗ عَلَيْهِ السَّلَامُ نَهٰى عَنِ التَّحَلُّقِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ قَبْلَ الصَّلٰوةِ (ابوداؤد ص۱۵۳ ج۱).**

**ترجمه**: بیشکه رسول اللهﷺ د جمعې په ورځ د جمعې د مونځ نه وړاندې حلقې جوړولو سره له کیناستلو نه منع فرمایلې ده.

**مسئله**:- دجمعې وخت هغه دې کوم چه د ماسپښین وخت دې ، په یخنۍ کښې تعجیل کول، او په ګرمۍ کښې تاخیر کولو سره ادا کول پکار دی.

**عَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا اشْتَدَّ الْبَرْدُ بَكَّرَ بِالصَّلٰوةِ وَاِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ اَبْرَدَ بِالصَّلٰوةِ يَعْنِي الْجُمُعَةَ. (بخاری ص۱۲۴ ج۱)**

**ترجمه**: حضرت انس ﷺ فرمایی چه کله به ګرمی زیاته شوه نو رسول الله ﷺ به مونځ په جلتۍ سره (وختی) اداء کولو ، او ګرمۍ کښې به یی یخوالې (تاخیر) کولو (یعنی د جمعې د مونځ وخت هم داسې دې لکه څنګه چه د ماسپښین د مونځ وخت دې.

## دجمعې اذان

**اِذَا نُوْدِيَ (الی) فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللهِ .**

**ترجمه**: حضرت شاه عبدالقادر محدث دهلوی فرمایی چه:

د هر اذان داحکم نه دې، څکه چه جماعت بیا هم مونډل کیږی او جمعه په یوځائ وی ، بیا چیرته په لاس نه راځی (موضح القرآن ) او لدینه علاوه د جمعې قضاء هم نشته، له همدې کبله صحابه کرامو به د دې ډیر اهتمام کولو.

**عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ مَا كُنَّا نَقِيْلُ وَنَتَغَدّٰى اِلَّا بَعْدَ الْجُمُعَةِ . (بخاری ص۱۲۸ ج۱،مسلم ص۲۸۳ ج۱)**

**ترجمه**: حضرت سهل بن سعد ﷺ فرمایی چه مونږ به د غرمې خوب او خوراك د جمعې د مونځ نه وروسته کولو.

**عَنْ سَائِبِ بْنِ يَزِيْدَ اَنَّ الْاَذَانَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ كَانَ اَوَّلُهٗ حِيْنَ يَجْلِسُ الْاِمَامُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ عَلَى الْمِنْبَرِ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ وَاَبِيْ بَكْرٍ وَعُمَرَ فَلَمَّا كَانَ فِيْ خِلَافَةِ عُثْمَانَ ﷺ وَكَثُرُوْا اَمَرَ عُثْمَانُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ بِالْاَذَانِ الثَّالِثِ فَاُذِّنَ بِهٖ عَلَى الزَّوْرَاءِ فَثَبَتَ الْاَمْرُ عَلٰى ذٰلِكَ. (بخاری ص۱۲۸ ج۱،نسائی ص۲۰۷ ج۱،ابوداود ص۱۵۵ ج۱)**

**ترجمه**: حضرت سائب بن یزید فرمائی چه د جمعې په ورځ به ړومبې اذان هغه زو ، کله چه به امام په ممبر کیناستلو. د رسول الله ﷺ په زمانه کښې، او ابوبکر صدیق ﷺ په زمانه کښې او د

حضرت عمرؓ زمانه کښې، اوکله چه د حضرت عثمانؓ د خلافت دور راغې او خلق زیات شول، نو حضرت عثمانؓ د جمعې په ورځ د دریم اذان حکم وکړو ، پس هغه اذان د زوراء په مقام وکړې شو . او بیا لدینه پس دامعامله (د دریم اذان) هم په دې برقراره پاتې شوه.

د دریم اذان مشروعیت د حضرت عثمانؓ په اجتهاد سره شوې وو اوټولو صحابه کرامو ؓ په دې سکوت (خاموشی) اختیارولو سره ددې موافقت کړې وو ،او چا هم انکار نه دې کړې. که دا دګناه کار وای نو صحابه کرامو ؓ به انکار کړې وو. لیکن داسې ونه شول نو له همدې کبله دا مسنون وګرځیدلو ، ځکه چه د رسول اللهﷺ ارشاد دې چه :

عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِيْ وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِيْنَ الْمَهْدِيِّيْنَ.(ابوداود ج۱،ترمذی ص۳۸۳ ج)

**ترجمه** : زما سنت په خپل ځان لازم کړئ اوهغه لازم ونیسئ او زما د خلفاؤ سنت (هم لازم ونیسئ) چه هدایت موندونکی او هدایت کونکی دی.

**مسئله** :- حضرت مولانا انورشاه کشمیری رحمه الله فرمایی چه زما په نزد زیاته راجحه خبره دا ده : چه چا د ړومبی اذان په وخت اجابت نه وی کړې ، نو د خطبې والا اذان په وخت د ې اجابت وکړی.

(فیض الباری ص۳۲۷ ج۲).

**مسئله** :- کله چه امام د خطبې د پاره په منبر کینی ، نو دویم اذان دې دده په وړاندې وکړې شی.

(هدایه ص۱۱۸ ج۱،شرح نقایه ص۱۲۶ ج۱).

عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدَ قَالَ كَانَ يُؤَذَّنُ بَيْنَ يَدَيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اِذَا جَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ عَلٰى بَابِ الْمَسْجِدِ وَاَبِيْ بَكْرٍ وَّعُمَرَ.(ابوداود ص۱۵۵ ج۱).

**ترجمه** : حضرت سائب بن یزیدؓ فرمایی چه مؤذن به د رسول اللهﷺ په وړاندې اذان کولو، کله چه به هغوی په منبر تشریف فرماوو، د دروازې په وړاندې او حضرت ابو بکرؓ او عمرؓ به هم داسې کول.

د مسجد نبویﷺ یوه دروازه منبر ته مخامخ وه او دا اذان به منبر ته نزدې وو او د مسجد نه بهر به نه وو لکه چه صاحب دعنایه او صاحب دکفایه لیکلی دی :

وَكَانَ الطَّحَاوِيُّ يَقُوْلُ هُوَ الْاَذَانُ عِنْدَ الْمِنْبَرِ بَعْدَ خُرُوْجِ الْاِمَامِ فَاِنَّهُ هُوَ الْاَصْلُ الَّذِيْ كَانَ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ وَكَذٰلِكَ فِيْ عَهْدِ اَبِيْ بَكْرٍ وَّعُمَرَ ؓ (کفایه ص۱۰۳ ج۱،عنایه برحاشیه فتح القدیر ص۴۲۱ ج۱)

**ترجمه** : او حضرت امام طحاوی به فرمایل چه ددینه مراد هغه اذان دې کوم چه به د منبر سره په خوا کښې وو، کله چه به امام بهر را ووتلو، ځکه چه دا اصل دې ، چه په دې باندې د رسول اللهﷺ او د حضرات شیخینو په زمانه کښې عمل وو .

عِنْدَ الْمَسْرُوْقِ وَالضَّحَاكَ وَمُسْلِمِ بْنِ يَسَارَ يَحْرُمُ الْبَيْعَ بِالزَّوَالِ وَعِنْدَ مُجَاهِدٍ وَالزُّهْرِيِّ بِالنِّدَاءِ وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ وَزُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ يَقَعُ الْبَيْعُ مَعَ النَّهْيِ وَعِنْدَ مَالِكٍ الْبَيْعُ بَاطِلٌ.

**ترجمه**: د حضرت امام مسروق، ضحاك، او د مسلم بن يسار په نزد، اخستل خرڅول د زوال په وخت حراميږي، اود مجاهد او زهري په نزد د اذان د وخت نه حراميږي، او د امام ابو حنيفه، ابويوسف، اوامام محمد، او امام زفر او د امام شافعي په نزد د نهي باوجود بيع منعقد او صحيح كيږي، ليكن نه حراميږي، البته مكروه كيږي. او د امام مالك په نزد بيعه باطليږي.

## السنن قبل الجمعة وبعدها

### «د جمعې نه وړاندې او وروستو سنت»

د جمعې د مونځ نه وړاندې څلور ركعته سنت دي او د جمعې د مونځ نه وورست ړومبې دوه ركعته سنت او بيا څلور ركعته سنت دي.

عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ كَانَ يُصَلِّي قَبْلَ الْجُمُعَةِ أَرْبَعًا لَا يَفْصِلُ بَيْنَهُنَّ بِسَلَامٍ ثُمَّ بَعْدَ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ أَرْبَعًا.

(طحاوی ص۱۹۸ ج۱، اسناده صحیح)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن عمر ﷺ به د جمعې مونځ نه وړاندې څلور ركعته سنت كول، او په مينځ كښې به يې په سلام سره فصل نه كولو (يعنى په مينځ كښې به يې سلام نه ګرځولو، بيا به يې د جمعې نه پس ړومبى دوه ركعته او بيا به يې څلور ركعته كول.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ مُصَلِّيًا بَعْدَ الْجُمُعَةِ فَلْيُصَلِّ أَرْبَعًا (عبد الرزاق ص۲۴۸ ج۳، مسلم ص۲۸۸ ج۱).

**ترجمه**: حضرت ابو هريره ﷺ فرمايي چه رسو الله ﷺ وفرمايل: څوك چه د جمعې نه پس سنت كوي نو هغوى له څلور ركعته سنت كول پكار دي.

قَالَ أَبُوْعِيْسٰى عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ أَنَّهُ كَانَ يُصَلِّي قَبْلَ الْجُمُعَةِ أَرْبَعًا وَبَعْدَهَا أَرْبَعًا وَرُوِيَ عَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ أَنَّهُ أَمَرَ أَنْ يُصَلِّيَ بَعْدَ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ أَرْبَعًا. (ترمذی ص۱۰۱، مصنف عبد الرزاق ص۲۴۸ ج۳)

**ترجمه**: ابو عيسى (امام ترمذي) فرمايي چه عبد الله بن مسعود ﷺ به د جمعې نه وړاندې څلور او وروستو به يې هم څلور ركعته كول. او د حضرت علي ﷺ نه روايت دې چه هغوى د جمعې نه پس اول د دوو ركعتو او بيا د څلورو ركعتو كولو حكم وركړې دې

عَنْ خَرَشَةَ بْنِ الْحُرِّ أَنَّ عُمَرَ كَانَ يَكْرَهُ أَنْ يُصَلِّيَ بَعْدَ صَلٰوةِ الْجُمُعَةِ مِثْلَهَا. (طحاوی ص۱۹۹ ج۱، اسناده صحیح)

**ترجمه**: خرشة بن حر رحمه الله فرمايي چه حضرت عمر ﷺ به مكروه ګڼله دا خبره چه د جمعې په ورځ

دې د جمعې په شان رکعتونه وکړې شي، يعنی صرف دوه رکعته باندې اکتفاء کول به مکروه ګڼل.

عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِيِّ قَالَ كَانَ عَبْدُ اللهِ يَأْمُرُنَا أَنْ نُصَلِّيَ قَبْلَ الْجُمُعَةِ أَرْبَعًا وَبَعْدَهَا أَرْبَعًا حَتّٰى جَاءَنَا عَلِيٌّ فَأَمَرَنَا أَنْ نُصَلِّيَ بَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ أَرْبَعًا. (عبد الرزاق ص ۲۴۷ ج ۳) اسناده صحيح.

**ترجمه**: حضرت ابو عبد الرحمن السلمی رحمه الله فرمايی چه حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه به مونږ ته حکم راکولو، چه مونږ د جمعې په ورځ اول څلور رکعته وکړو او د جمعې نه وروسته هم څلور رکعته وکړو تردې چه حضرت علی رضی الله عنه تشريف راوړو نو هغوی مونږ ته حکم راکړو چه د جمعې نه پس اول دوه رکعته کوئ بيا څلور رکعته کوئ.

وَعَنْهُ قَالَ عَلَّمَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ النَّاسَ أَنْ يُصَلُّوْا بَعْدَ الْجُمُعَةِ أَرْبَعًا فَلَمَّا جَاءَ عَلِيٌّ عَلَّمَهُمْ أَنْ يُصَلُّوْا سِتًّا. (طحاوی ص ۱۹۹ ج ۱، اسناده صحيح)

**ترجمه**: د حضرت ابو عبد الرحمن السلمی رحمه الله نه روايت دې هغوی فرمايی چه حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه به خلقو ته تعليم ورکولو چه د جمعې نه پس څلور رکعته وکړی، پس هر کله چه علی رضی الله عنه راغې نو خلقو ته يی تعليم ورکړو چه هغوی شپږ رکعته مونځ وکړی.

عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ (مرفوعا) مَنْ كَانَ مُصَلِّيًا (يوم الجمعة) فَلْيُصَلِّ قَبْلَهَا أَرْبَعًا وَبَعْدَهَا أَرْبَعًا. (كنز العمال ص ۵۳۲ ج ۷، بحواله ابن النجار)

**ترجمه**: حضرت ابو هريره رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ فرمايی چه د جمعې نه مخکې هم څلور رکعته کوئ، او وروستو هم څلور رکعته کوئ، څوک يی چه هم کوی.

عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يُطِيْلُ الصَّلٰوةَ قَبْلَ الْجُمُعَةِ يُصَلِّيْ بَعْدَهَا رَكْعَتَيْنِ فِيْ بَيْتِهٖ وَيُحَدِّثُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يَفْعَلُ ذٰلِكَ. (موارد الظمآن ص ۱۵۰)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روايت دې چه هغوی به د جمعې نه مخکې مونځ اوږد کولو، او د جمعې نه پس به يی دوه رکعته مونځ خپل کور کښې ادا کول، او فرمايل به يی چه رسول الله ﷺ به همداسې کول.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَرْكَعُ قَبْلَ الْجُمُعَةِ أَرْبَعًا وَبَعْدَهَا أَرْبَعًا. (جمع الفوائد ص ۲۶۸ ج ۱، بحواله طبرانی کبير)

**ترجمه**: حضرت ابن عباس رضی الله عنه فرمايی چه رسو ل الله ﷺ به د جمعې نه وړاندې څلور رکعته کول او د هغې نه پس به يی څلور رکعته کول.

**د جمعې خطبه او د هغې احکام** :- ((فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ)).

**ترجمه** : کوشش وکړئ د الله ﷻ د ذکر په طرف. (الجمعة پ۲۸)

حضرت امام شاه ولی الله محدث دهلوی رحمه الله فرمایی :

مراد از ذکر خطبه است و عمل مستمر آنحضرت ﷺ و اصحاب رضی الله عنهم **وهلم جراً** دلالت می کند بر ضروری بودن آن . (مصفی شرح مؤطا ص۱۵۴).

**ترجمه** : مراد د ذکر نه خطبه ده، د رسول الله ﷺ او د صحابو عمل مستمر یعنی هغه وخت نه واخله تر ننه پورې مسلسل عمل د خطبې په ضروری کیدلو باندې دلالت کوی.

**په خطبه کښې ضروری څیزونه** :- حضرت امام شاه ولی الله محدث دهلوی له دې نه وروسته بیا لیکلی دی چه په خطبه کښې څو څیزونه کول ضروری دی.

د الله ﷻ **حمد او ثناء** : لکه څنګه چه په روایت کښې راغلې دی چه رسول الله ﷺ په خطبه کښې د الله ﷻ حمد او ثناء بیان کړې ده.

**شهادتین** : یعنی د توحید او رسالت شهادت ورکول، لکه څنګه چه په حدیث کښې راغلی دی «ثم تشهد» او د ترمذی په روایت کښې راغلې دی، هغوی فرمائی چه :

كُلُّ خُطْبَةٍ لَيْسَ فِيهَا تَشَهُّدٌ فَهِيَ كَالْيَدِ الْجَذْمَاءِ.

**ترجمه** : هره خطبه چه په هغې کښې تشهد نه وی، هغه د شل لاس په شان ده.

**صلوة** : یعنی درود شریف لکه څنګه چه ذکر شوی دی د رسول الله ﷺ د زمانې نه واخله تر نن زمانې پورې د مسلمانانو له دوامدار عمل نه ثابت دی.

**اَمر بِتَقوَی الله** : یعنی د الله ﷻ د تقوی حکم، ځکه چه د قرآن نه دا معلومیږی چه خطبه د پند او نصیحت د پاره ده.

کم نه کم د یو آیت تلاوت کول، لکه څنګه چه په خطبة الحاجة کښې راغلی دی چه بیا رسول الله ﷺ درې آیتونه تلاوت کړل او همدغه رنګې د هغوی په خطبه مبارك کښې د (يَا مَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ) د تلاوت بیان موجود دې.

**د مؤمنانو سړیو او ښځو د پاره دعاء** : په خطبه کښې د مؤمنانو ښځو او سړیو د پاره هم دعاء کول پکار دی.

## د خطبې په عربۍ ژبه کښې ویل ضروري دي:

و عربی بودن بجهت عمل مستمر در مشارق و مغارب ، باوجود آنکه در بسیاری از اقالیم مخاطبان عجمی بودند . (مصفی شرح مؤطا ص ۱۵۴).

**ترجمه** : او د خطبې په عربۍ کښې کیدل، د عمل مستمر نه ثابت دی په مشرق او مغرب ټولو ځایونو کښې باوجود ددینه چه د ډیرو اقالیمو مخاطبین خلق عجمیان وو، لیکن بیا هم خطبه په هر ځائ کښې په عربۍ ژبه کښې وه.

امام شاه ولی الله په حجة الله البالغه کښې لیکی چه :-

وَسُنَّةُ الْخُطْبَةِ اَنْ يَّحْمَدَ اللهَ وَيُصَلِّيَ عَلٰى نَبِيِّهٖ وَيَتَشَهَّدَ وَيَاْتِيَ بِكَلِمَةِ الْفَصْلِ وَهِيَ اَمَّا بَعْدُ وَيُذَكِّرَ وَيَاْمُرَ بِالتَّقْوٰى وَيُحَذِّرَ عَذَابَ اللهِ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ وَيَقْرَءَ شَيْئًا مِّنَ الْقُرْاٰنِ وَيَدْعُوَ لِلْمُسْلِمِيْنَ وَسَبَبُ ذٰلِكَ اَنَّهٗ ضَمَّ مَعَ التَّذْكِيْرِ التَّنْوِيْهَ بِذِكْرِ اللهِ وَنَبِيِّهٖ وَبِكِتَابِ اللهِ لِاَنَّ الْخُطْبَةَ مِنْ شَعَائِرِ الدِّيْنِ فَلَا يَنْبَغِيْ اَنْ تَخْلُوَ مِنْهَا كَالْاَذَانِ وَفِي الْحَدِيْثِ كُلُّ خُطْبَةٍ لَيْسَ فِيْهَا تَشَهُّدٌ فَهِيَ كَالْيَدِ الْجَذْمَاءِ . (حجة الله البالغه ص۲۲۵ طبع قدیم وص۳۰ ج۲، طبع رشیدیه دهلی)

**ترجمه** : په خطبه کښې سنت خبره داده چه د الله ﷻ حمد او ثناء ووایی او په رسول الله ﷺ باندې درود ووایی او شهادة ووایی، او د فاصلې لفظ (اَمَّا بَعْدُ!) ووایی او نصیحت وکړی، او د تقوی اختیارولو حکم وکړی، او دنیا او آخرت کښې د الله ﷻ د عذاب نه ویروول وکړی. او څه حصه د قرآن مجید تلاوت کړی، او بیا د ټولو مسلمانانو د پاره دعا وکړی، او دا او دا له دې کبله چه له نصیحت سره د الله ﷻ د ذکر تعظیم او د رسول الله ﷺ ذکر.او د کتاب الله د عظمت ذکر یو ځای کول پکار دی ځکه چه خطبه د شعائرو د دین نه ده. نو ددې خبرو نه بی خالی کول نه دی پکار. لکه څنګه چه اذان دې ، او په حدیث کښې دی چه هره داسې خطبه چه د تشهد نه خالی وی، هغه د شل لاس په شان وی.

## حضور ﷺ به خطبه څنګه ارشاد فرمایله :-

عَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا خَطَبَ اِحْمَرَّتْ عَيْنَاهُ وَعَلَا صَوْتُهٗ وَاشْتَدَّ غَضَبُهٗ حَتّٰى كَاَنَّهٗ مُنْذِرُ جَيْشٍ يَقُوْلُ صَبَّحَكُمْ وَمَسَّاكُمْ وَيَقُوْلُ بُعِثْتُ اَنَا وَالسَّاعَةُ كَهَاتَيْنِ وَيَقْرِنُ بَيْنَ اِصْبَعَيْهِ السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطٰى . (مسلم ۲۸۴ ج۱)

**ترجمه** : حضرت جابر ؓ فرمایی چه رسول الله ﷺ به کله خطبه فرمایله ، نو د هغوی ﷺ سترګې به سرې شوې. او آواز به یې اوچت شو. او غصه به یې زیاتیدله. ګویا چه هغه د (یو راتلونکی) لښکر نه ویرونکې دې ،او فرمایل به یې چه د سحر په وخت او د ماښام په وخت دشمن حملې کولو والا

دي، او فرمايل به يې چه زه او قيامت دا سې يو، سبابه (مسواکه ګوته) اومينځنۍ ګوته به يې سره يو ځای کړې.

عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ بَلَغَنَا أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يَبْدَأُ فَيَجْلِسُ عَلَى الْمِنْبَرِ فَإِذَا سَكَتَ الْمُؤَذِّنُ قَامَ فَخَطَبَ الْخُطْبَةَ الْأُوْلَى ثُمَّ جَلَسَ شَيْئًا يَسِيْرًا ثُمَّ قَامَ فَخَطَبَ الْخُطْبَةَ الثَّانِيَةَ حَتَّى إِذَا قَضَاهَا اِسْتَغْفَرَ اللهَ ثُمَّ نَزَلَ فَصَلَّى قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَكَانَ إِذَا قَامَ أَخَذَ عَصًا وَتَوَكَّأَ عَلَيْهِ وَهُوَ قَائِمٌ عَلَى الْمِنْبَرِ ثُمَّ قَامَ أَبُوْبَكْرِنِ الصِّدِّيْقُ وَعُمَرُ وَعُثْمَانُ يَفْعَلُوْنَ ذَالِكَ. (رواه ابوداود فی مراسیله ص۸ ومرسله جيد)

**ترجمه**: ابن شهاب (امام زهری رحمه الله) فرمايي چه مونږ ته دا خبره رارسيدلې ده چه رسول الله ﷺ به اول په منبر تشريف فرما شو، کله چه به مؤذن خاموش شو، نو ودريدلو به او خطبه به يې لوستله، بيا به په مينځ کښې لږ شان کيناستلو . او دويمه خطبه به يې ولوستله، کله چه به خطبه ختمه شوه نو استغفار به يې وکړو بيا به د منبر نه لاندې راکوز شو، او مونځ به يې وکړو، ابن شهاب فرمايي کله چه به رسول الله ﷺ په منبر تشريف فرماشو، نو همسا باندې به يې تکيه کوله ، او په دې حال به په منبر ولاړ وو بيا به حضرت ابو بکر صديق رضی الله عنه د هغوی ﷺ نه پس ودريدلو، بيا حضرت عمر رضی الله عنه او بيا به حضرت عثمان رضی الله عنه داسې کول.

**د خطبې آداب** :- خطبه په خاموشۍ سره آوريدل ضروري دی ، او ددې په حديث شريف کښې ډير فضيلت راغلي دې ، او د خطبې په دوران کښې د خبرو کولو لوئ وعيد راغلې دې.

عَنْ سَلْمَانَ الْفَارِسِيِّ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ ﷺ لَا يَغْتَسِلُ رَجُلٌ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَيَتَطَهَّرُ مَا اسْتَطَاعَ مِنَ الطُّهْرِ وَيَدَّهِنُ مِنْ دُهْنِهِ أَوْيَمَسُّ مِنْ طِيْبِ بَيْتِهِ ثُمَّ يَخْرُجُ فَلَا يُفَرِّقُ بَيْنَ اثْنَيْنِ ثُمَّ يُصَلِّيْ مَا كُتِبَ لَهُ ثُمَّ يُنْصِتُ إِذَا تَكَلَّمَ الْإِمَامُ إِلَّا غُفِرَلَهُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجُمُعَةِ الْأُخْرٰى. (بخاری ص۱۲۱ ج۱، آثار السنن ص۲۳ ج۱).

ترجمه: حضرت سلمان فارسی رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم سړې چه د جمعې په ورځ غسل کوی ، او د خپل طاقت مطابق پاکی کوی، او بيا تيل ولګوی ، يا د خپل کور څه خوشبو استعمال کړی، بيا د کور نه ووځی او هغه د دوو کسانو په مينځ کښې جدا والې نه راولی، بيا چه څه مقدر وی هغه مونځ وکړی، بيا چه کله امام کلام کوی نو دې خاموش اوسيږی، نو دهٔ ته تر بلې جمعې پورې بښنه نصيب کيږی.

عَنْ أَوْسِ بْنِ أَوْسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مَنْ غَسَّلَ وَاغْتَسَلَ وَبَكَّرَ (ادرك اول خطبة) وَابْتَكَرَ وَمَشٰى وَلَمْ يَرْكَبْ وَدَنَا مِنَ الْإِمَامِ وَاسْتَمَعَ وَلَمْ يَلْغُ كَانَ لَهُ بِكُلِّ خَطْوَةٍ عَمَلُ سَنَةٍ أَجْرُ صِيَامِهَا وَقِيَامِهَا. (ترمذی ص ۱۷ نسائی ص۲۰۵ ج۱، ابن ماجه ص۷۶)

**ترجمه** : حضرت اوس بن اوس ﷺ فرمایي چه رسول الله ﷺ فرمایلي دي : چاچه خپلې جامې ووينځلې ( یا یې په خپلې ښځې باندې غسل لازم کړو) او په خپل یې هم غسل وکړو، او په جلتۍ سره وختی د جمعې دپاره لاړو (د امام د خطبې ابتدائي حصه یې وموندله) او پیاده لاړو، په سورلۍ نه تللو، او د امام سره نزدې وو، او په غور یې خطبه واوریدله، اوڅه لغوه خبره یې ونکړه، نو دده د هر قدم په بدله کښې به د یو کال د روژې او د قیام ثواب ورکړل شي.

عَنْ جَابِرٍ دَخَلَ عَبْدَاللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ الْمَسْجِدَ وَالنَّبِيُّ ﷺ يَخْطُبُ فَجَلَسَ عَلَى جَنْبَيْهِ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ فَسَأَلَهُ عَنْ شَيءٍ أَوْ كَلَّمَهُ بِشَيءٍ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ أُبَيٌّ فَظَنَّ بْنَ مَسْعُوْدٍ أَنَّهَا مَوْجِدَةٌ فَلَمَّا انْفَتَلَ النَّبِيُّ ﷺ مِنْ صَلوٰتِهِ قَالَ بْنَ مَسْعُوْدٍ يَا أُبَيُّ مَا مَنَعَكَ أَنْ تَرُدَّ عَلَيَّ قَالَ إِنَّكَ لَمْ تَحْضُرْ مَعَنَا الْجُمُعَةَ قَالَ وَلِمَ، قَالَ تَكَلَّمْتَ وَالنَّبِيُّ ﷺ يَخْطُبُ فَقَامَ بْنِ مَسْعُوْدٍ فَدَخَلَ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لَهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ صَدَقَ أُبَيٌّ أَطِعْ أُبَيًّا. (مجمع الزوائد ص ۱۸۵ ج ۲، بحواله طبرانی او بعلی اسناده صحیح)

**ترجمه** : حضرت جابر ﷺ فرمایي چه حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ جومات ته راغې ، په داسې حال کښې چه نبی ﷺ خطبه ورکوله، او ابن مسعود ﷺ د ابی بن کعب ﷺ سره ناست وو، د هغه یې نه د څه څیز پوښتنه وکړه، هغوی جواب ورنکړو، کله چه نبی ﷺ د مونځ نه فارغ شو او وروستو را وګرځیدلو، نوابن مسعود ﷺ ابی بن کعب ﷺ ته عرض وکړو چه تا زما د خبرې جواب ولې رانکړو؟ ابی ﷺ وفرمایل : ته زمونږ سره په مونځ کښې شریك هم نه شوې (یعنی د خبرو کولو په وجه دې د جمعې ثواب باطل کړو، ګویاچه ته زمونږ سره په جمعه کښې حاضر نه شوې) حضرت ابن مسعود ﷺ وفرمایل هغه څنګه ؟ نو حضرت ابی ﷺ وفرمایل : تا خبرې وکړې په داسې حال کښې چه رسول الله ﷺ خطبه کوله ، نو حضرت ابن مسعود ﷺ د هغه ځائ نه پاڅیدلو ، حضور ﷺ ته حاضر شو، او ددې خبرې ذکر یې وکړو، نو رسول الله ﷺ وفرمایل ابی ﷺ رښتیا ویلی دی ، د ابی ﷺ خبره ومنه.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ (مرفوعا) مَنْ تَكَلَّمَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ فَهُوَ كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًا وَالَّذِيْ يَقُوْلُ لَهُ أَنْصِتْ لَيْسَ لَهُ جُمُعَةٌ. (مسند احمد ص ۲۳۰ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت ابن عباس ﷺ فرمایي چه رسول الله ﷺ وفرمایل : چا چه د جمعې په ورځ د امام د خطبې په وخت کلام وکړو، نو د هغه مثال د خر په شان دې چه په هغه کتابونه بار وی . او هغه سړې چه بل چاته وایي خاموش شه ! نو د هغه جمعه هم نه کیږي. یعنی هغه ته به د جمعې خاص اجر نه ورکول کیږي.

عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ (مرفوعا) إِذَا قُلْتَ لِصَاحِبِكَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَنْصِتْ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ فَقَدْ لَغَوْتَ. (بخاری ص ۱۲۸ ج ۱، مسلم ص ۲۸۱ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت ابوهریره ﷺ فرمایي چه رسول الله ﷺ وفرمایل : کله چه ته بل ملګری ته دا ووایې چه خاموش شه ! په داسې وقت کښې چه امام خطبه وایي ، نو تا لغوه خبره وکړه، چه هغې سره د جمعې اجر باطلیږي.

**مسئله** :- هرهغه څیز چه په مونځ کښې حرام دې هغه په خطبه کښې هم حرام دې ، خوړل، څښکل ، خبرې ، تسبیح ، د سلام جواب ورکول، امر باالمعروف، بلکه په ده واجب دی چه خطبه واوری ، او خاموش پاتې شی، دلرې او نزدې هیڅ فرق نشته ، د رسول الله ﷺ نوم مبارک چه واورې نو زړه کښې به درود ووایي، په ژبه به یې نه وایي او د چا د پرنجې په جواب کښې به دعا هم نه وایي.

**مسئله** :- خطبه په عربې ژبه کښې کول د رسول الله ﷺ او د صحابه کرامو ﷺ عمل مستمر دې، نو ددې خلاف کول به بدعت وی..

حضرت مولانا عبدالحی لکهنوی لیکلی دی : خطبه په عربئ کښې کول سنت مؤکده دی ، دا په غیر عربی کښې ویل ، فارسئ، اردو وغیره سره ګډوډ کول نظم یا نثر کښې مکروه تحریمی دی، او د عوامو د پوهې د پاره وعظ مقرر دې. (عمادالدین ص۲۶۳)

حضرت مولانا مفتی عزیزالرحمن سابق صدر مفتی دارالعلوم دیوبند ویلی دی چه د جمعې خطبه په اردو، فارسی، نظم اونثر کښې ویل مکروه او بدعت دې. (عمادالدین ص۲۶۴)

**د جمعې د خطبې په وخت کښې د صحابه کرامو لغزش او په قرآن کښې په هغې باندې تنبیه** :

وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً أَوْ لَهْوًا انفَضُّوا إِلَيْهَا وَتَرَكُوكَ قَائِمًا ۚ قُلْ مَا عِندَ اللَّهِ خَيْرٌ مِّنَ اللَّهْوِ وَمِنَ التِّجَارَةِ ۚ وَاللَّهُ خَيْرُ الرَّازِقِينَ، (الجمعه پ۲۸)

**ترجمه** : او(ځینې کسانو چه د سودا یا د تماشې څیز ولیدو ،نو په هغې پسې په منډه خواره واره شول، او ته یې ولاړ پریښودلې. ورته ووایه چه د الله ﷻ کوم ثواب دې هغه د تماشو او د سوداګانو نه ډیر غوره دې ،او الله ﷻ ډیر ښه روزی رسان دې.

په حدیث شریف کښې راځی چه رسول الله ﷺ خطبه ورکوله ، نوخلق ووتل صرف دولس سړی باقی پاتې شول. (بخاری ص۱۲۰،ج۲).

په تفسیر مظهری کښې د عقیلی رحمه الله په حوالې سره نقل شوی دی چه باقی پاتې کیدونکو کښې خلفاء راشدین ،عشره مبشره ، بلال ﷺ ابن مسعود ﷺ او جابر ﷺ وو. (تفسیرمظهری ص۲۹۸،ج۹)

عَنْ جَابِرٍ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لَوْ تَتَابَعْتُمْ حَتَّى لَمْ يَبْقَ مِنْكُمْ أَحَدٌ سَالَ بِكُمُ الْوَادِيُّ نَارًا. (تفسیر ابن کثیر ص۳۶۸ ج۴بحواله ابویعلی)

**ترجمه** : حضرت جابر ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل : په هغه پاک ذات قسم چه د هغه

په قبضه کښې زما روح دې که تاسو ټول په اخستلو اوخرڅولو کښې مصروف شو وای اوپه تاسو کښې څوك هم زما سره پاتې شوې نه وای، نو دا ټوله وادی به په تاسو باندې د اور نه ډکه شوې وه.

# صلوة الجمعة

## «د جمعې مونځ»

يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ. فَاِذَا قُضِيَتِ الصَّلٰوةُ فَانْتَشِرُوْا فِي الْاَرْضِ وَابْتَغُوْا مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ. (سورة جمعة پ۲۸)

**ترجمه**: اې مؤمنانو! هر کله چه د جمعې په ورځ د مونځ د پاره اذان وکړې شی، نو د الله ﷻ د يادولو دپاره روان شئ، او اخيستل او خرڅول پريږدئ، دا ستاسو د پاره غوره دی، که تاسو پوهيږئ. بيا چه مونځ پوره شی، نو په زمکه خواره شئ، او د الله ﷻ (مقرره کړې) روزی ولټوئ. او الله ﷻ ډير ډير يادوئ چه کامياب شئ.

قَالَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ ﷺ وَاُبَيٌّ وَابْنُ الزُّبَيْرِ فَامْضُوْا اِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ وَقَالَ الْحَسَنُ لَيْسَ يُرِيْدُ بِهِ الْعَدْوَ وَاِنَّمَا السَّعْيُ بِقَلْبِكَ وَنِيَّتِكَ قَالَ عَطَاءٌ اَلسَّعْيُ اَلذِّهَابُ وَقَالَ اَبُوْ عُبَيْدَةَ فَاسْعَوْا اَجِيْبُوْا وَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍ الْجَصَّاصُ اَلسَّعْيُ هٰهُنَا اِخْلَاصُ النِّيَّةِ وَالْعَمَلُ وَقَدْ ذَكَرَ اللّٰهُ السَّعْيَ وَمَنْ اَرَادَ الْاٰخِرَةَ وَسَعٰى لَهَا سَعْيَهَا وَاِذَا تَوَلّٰى سَعٰى فِي الْاَرْضِ وَاَنْ لَّيْسَ لِلْاِنْسَانِ اِلَّا مَا سَعٰى وَاِنَّمَا اَرَادَ الْعَمَلَ وَاتَّفَقَ الْفُقَهَاءُ عَلٰى اَنَّهُ يَمْشِيْ اِلَى الْجُمُعَةِ عَلٰى هَيْئَتِهٖ. (احكام القران ص ۴۴۵ ج ۳)

**ترجمه**: حضرت ابن مسعود ﷺ او أبی بن کعب ﷺ او ابن زبير ﷺ، فرمايی چه د **(فاسعوا)** معنی داده چه لاړشئ د الله ﷻ د ذکر په طرف، (او لدې نه منډې مراد نه دی) او حسن بصری فرمايی چه منډې ددينه مراد نه د ې، او له (سعی) نه مراد په زړه او نيت سره سعی کول دی.

حضرت عطاء فرمايی چه د **(السعی)** مطلب تلل دی، ابو عبيده فرمايی چه د **(فاسعوا)** معنی د الله ﷻ خبره قبلول دی، ابو بکر جصاص فرمايی چه د سعی نه دلته اخلاص دنيت او عمل مراد دې. او د سعی ذکر الله ﷻ په قرآن کښې څو ځايه کړ ې دې. لکه (په سورة بنی اسرائيل آيت ۱۹ کښې دې ته اشاره ده)، «او چا چه د آخرت اراده وکړه او د هغې دپاره يې سعی وکړه». (يعنی عمل يې وکړو)، (اوپه سورة بقره آيت ۲۰۵ کښې)، «او کله چه هغه مخ واړوی نو وکړی په زمکه کښې سعی». (يعنی کوشش کوی په زمکه کښې د فساد) (له دې نه عمل مراد دې) او (د سورة النجم آيت ۳۹ کښې راغلی دی چه)، «او نشته د انسان د پاره مگر هغه چه هغه سعی کړې ده» (يعنی عمل يې کړې دې).

**د جمعې رکعتونه** :- د جمعې دوه رکعته مونځ فرض دي.

قَالَ عُمَرُ صَلٰوةُ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَانِ وَصَلٰوةُ الْفِطْرِ رَكْعَتَانِ وَصَلٰوةُ الْاَضْحٰى رَكْعَتَانِ وَصَلٰوةُ السَّفَرِ رَكْعَتَانِ تَمَامٌ غَيْرُ قَصْرٍ عَلٰى لِسَانِ مُحَمَّدٍ ﷺ. (طحاوی ص ۲۴۵ ج ۱، نسائی ص ۲۰۹ ج ۱، ابن ماجه ص ۵۰، ابن حبان، اثار السنن ص ۶۱ ج ۲، قال اسناده صحیح).

**ترجمه** : حضرت عمر ﷺ فرمایي چه د جمعې مونځ دوه رکعته دي، او د وړوکي اختر مونځ دوه رکعته دي، او د غټ اختر مونځ دوه رکعته دي، د سفر مونځ دوه رکعته دي، دا مونځ پوره دي په دې کښې کمې نشته، د رسول الله ﷺ په ژبه مبارکه باندې.

**ادراک الجمعة** ((**دجمعې دمونځ موندل**)) :-

**مسئله** :- حضرت ابن عمر ﷺ، انس ﷺ، حسن رحمة الله، سعید بن المسیب رحمة الله، نخعي رحمة الله شعبی رحمة الله فرمایي چه که یو رکعت دې د امام سره بیا موندلو نو دویم رکعت ورسره یوځای کړه، اوجمعه وکړه، او په دې کښې هغوی د حضرت ابوهریره ﷺ د روایت نه استدلال کوي.

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ (مرفوعا) مَنْ اَدْرَكَ رَكْعَةً مِنَ الْجُمُعَةِ فَلْيُصَلِّ اِلَيْهَا اُخْرٰى وَمَنْ فَاتَتْهُ رَكْعَتَانِ يُصَلِّيْ اَرْبَعًا.

(احکام القران ص ۴۴۶ ج ۳)

**ترجمه** : حضرت ابو هریره ﷺ روایت کوي، چه رسول الله ﷺ وفرمایل : چاچه د جمعې یو رکعت د امام سره بیاموندلو، هغه دې دویم رکعت وکړي او که دواړه رکعتونه ترې فوت شي نو بیا دې څلور رکعته مونځ د ماسپښین وکړي.

حضرت عبد الله بن مسعود نه نقل دي :-

مَنْ اَدْرَكَ التَّشَهُّدَ فَقَدْ اَدْرَكَ الصَّلٰوةَ. (مصنف ابن ابي شیبه ص ۱۳۱ ج ۲، احکام القران ص ۴۴۶ ج ۳)

**ترجمه** : چا چه تشهد بیا موندلوهغه مونځ وموندلو.

حضرت معاذ بن جبل نه منقول دي :-

اِذَا دَخَلَ فِيْ صَلٰوةِ الْجُمُعَةِ قَبْلَ التَّسْلِيْمِ وَهُوَ جَالِسٌ فَقَدْ اَدْرَكَ الْجُمُعَةَ. (احکام القران ص ۴۴۶ ج ۳)

**ترجمه** : چه کله څوك د جمعې په مونځ کښې د سلام نه وړاندې داخل شو، په داسې حال کښې چه هغه ناست وو، نو هغه جمعه بیا موندله.

حضرت امام ابوحنیفه او امام ابو یوسف فرمایي چه که تشهد بیا مومي نو دوه رکعته دې وکړي، او امام محمد فرمایي چه څلور رکعته دې وکړي.

# صلوة العیدین

## «د اخترونو مونځ»

د عیدالفطر مونځ د هجرت په اول کال باندې شروع شوې وو، له حضرت انس ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ مدینې منورې ته تشریف راوړو، نود هجرت نه وړاندې ددې ځائ د خلقو په کال کښې دوه ورځې وې چه په هغې کښې به هغوی په لهو اولعب کښې مشغولیدل، هغوی ﷺ وفرمایل دا څنګه ورځ ده؟ نو خلقو عرض وکړو چه په دې ورځو کښې به مونږ خلقو د جاهلیت په زمانه کښې لوبې کولې، نو رسول الله ﷺ وفرمایل: الله ﷻ ستاسو د پاره د هغې دوو ورځو په ځائ دوه نورې بهترې ورځې مقرر کړې دی چه هغه یوم اضحی، او یوم فطر دی.

**وجه د تسمیه**: - د عید معنی ده واپس راتلونکې څیز، یعنی د خوشحالئ، فرحت او سرور ورځ بار بار راځی، یا د خوشحالئ د بار بار راتللو خواهش وی، یا د الله ﷻ احسانات په بند ګانو باندې اعاده کوی (یعنی دوباره راځی). یا ددې وجه داده چه جمعې ته هره هفته کښې عود (راګرځیدل) کیږی او د اختر طرف ته په کال کښې یوځل عود (راګرځیدل) کیږی.

عِيدٌ بِأَيَّةِ حَالٍ عُدتَ يَا عِيدُ ... بِمَا مَضَى أَمْ بِأَمْرٍ فِيكَ تَجْدِيدُ (متنبی)

**ترجمه**: اې اختره! په کوم حال باندې ستا راتلل شوی دی، د تیرې شوې (فکرمندئ) په حالت باندې یا ستا دننه څه د خوشحالئ نوی کیدل هم شته.

يَا عِيدُ مَا لَكَ مِن شَوْقٍ وَإِيرَاقٍ ... وَمَرِّ طَيْفٍ عَلَى الْأَهْوَالِ طَرَّاقٍ (مفضلیات)

**ترجمه**: اې اختره! ستا د راتلو لکه کبله څه قدر شوق او بیداری ده، او د محبوب خیال هم د هولناکو خطرونو په شا باندې سپور راځی.

بهر حال الله ﷻ خپلو بندګانو باندې د مغفرت او د مهربانو سره عود (توجه) کوی.

**د اختر د مونځ حکم**: - آیا د اختر مونځ واجب دې اوکه سنت؟ پدې باره کښې د امامانو اختلاف دې، د حضرت امام ابوحنیفه په نزد د وړوکی اختر او غټ اختر مونځ واجب دې. (هدایه ص ۱۱۸ ج۱، شرح نقایه ص ۱۲۷ ج۱، کبیری ص ۲۶۵ در مختار ص ۱۱۲ ج۱) د حضرت امام مالك او امام شافعی په نزد سنت مؤکد دې، د امام احمد په نزد فرض کفائی دې. (شرح نقایه ص ۱۲۷ ج۱)

د حضرت امام محمد د جامع صغیر د دې د عبارت نه اشتباه کیږی چه د اختر مونځ سنت دې:

عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ عِيدَانِ اجْتَمَعَا فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ فَالْأَوَّلُ سُنَّةٌ وَالْآخَرُ فَرِيضَةٌ وَلَا يُتْرَكُ وَاحِدٌ مِنْهُمَا. (الجامع الصغیر ص ۲۰)

**ترجمه** : دوه اخترونه (جمعه او اختر) که په یوه ورځ کښې یوځائ شی نو په هغې کښې اول سنت دي او دویم فرض ، او یو هم د هغې نه پرېښودل نه دی پکار.

لیکن دا استدلال درست نه دي ځکه چه فقهاء کرام فرمایي چه د امام صاحب مراد دادي چه د اختر د مونځ د وجوب له سنت نه ثابته شوې ده په دې وجه په هغې د سنت اطلاق کړې شوې دې .

نو ر علماء کرام ددې روایتونو نه استدلال کوی چه د پنځو مونځونو د فرضیت چه کوم سړی پوښتنه کړې وه (هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهَا قَالَ لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ). (بخاری ص۱۲ ج۱، مسلم ص۳۰ ج۱)

**ترجمه** : آیا په ما باندې ددې پنځو مونځونو نه سوا نورهم څه مونځ فرض شته ؟ نو هغوی ﷺ وفرمایل : نه ؛ مگر دا چه ته نفل وکړې.

فقهاء کرام فرمایي چه د اختر مونځ په هر هغه سړی واجب دې چه په چا باندې جمعه واجب وی.

(هدایه ص۱۱۸ ج۱، شرح نقایه ص۱۲۸ ج۱. کبیری ص۵۶۵).

عَنْ عَلِيٍّ قَالَ لَا جُمُعَةَ وَلَا تَشْرِيْقَ إِلَّا فِي مِصْرٍ جَامِعٍ. (مصنف عبد الرزاق ص۱۶۷ ج۳)

**ترجمه** : حضرت علی رضی الله عنه نه روایت دې چه هغوی فرمایي : دجمعې او اختر مونځ نه فرض کیږی مگر په جامع ښار کښې .

**د عید الفطر آداب** :- د عید الفطر د مونځ نه وړاندې څه خوړل ښکل مستحب دې . (هدایه ص۱۱۸ ج۸، شرح نقایه ص۱۲۷ ج۱، کبیری ص۵۶۶).

عن بریدة قال كَانَ النَّبِيُّ ﷺ لَا يَخْرُجُ يَوْمَ الْفِطْرِ حَتّٰى يَطْعَمَ وَلَا يَطْعَمُ يَوْمَ الْأَضْحٰى حَتّٰى يُصَلِّيَ. (ترمذی ص۱۰۳، ابن ماجه ۱۲۵ ج مسند احمد ص۳۵۲ ج۵، دار قطنی ص۴۵ ج۲، مستدرک حاکم ص۲۹۴ ج۱).

**ترجمه** : حضرت بریده رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به د وړوکی اختر د مونځ د پاره تر هغې نه وتلو تر څو چه به یې څه خوړلی یا ښکلې نه وو ، او د غټ اختر په ورځ به یې څه نه خوړل اونه به یې ښکل ، تر کومې چه به یې مونځ نه وو کړې .

عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ لَا يَغْدُوْ يَوْمَ الْفِطْرِ حَتّٰى يَأْكُلَ تَمَرَاتٍ وَفِي رِوَايَةٍ وَيَأْكُلُهُنَّ وِتْرًا. (بخاری ص۱۳۰ ج۱، ترمذی ۱۰۳، مستدرک حاکم ص۲۹۴ ج۱).

**ترجمه** حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ سحر د وړوکی اختر د مونځ دپاره تر هغه وخته نه تللو ، تر څوچه به یې کهجورې نه وې خوړلې . او طاق عدد کهجورې به یې خوړلې .

**مسئله** :- دا مستحب ده چه د اختر د پاره غسل وکړې شی، او په ښه طرز مسواک استعمال شی.

(هدایه ص۱۱۸ ج، شرح نقایه ص۱۲۷ ج۱، کبیری ص۵۶۶).

أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يَغْتَسِلُ يَوْمَ الْفِطْرِ وَيَوْمَ النَّحْرِ وَيَوْمَ عَرَفَةَ. (ابن ماجه ص۹۳)

**ترجمه**: رسول الله ﷺ به د وړوکی اختر او د غټ اختر او د عرفې په ورځ غسل کولو.

**مسئله**:- نوې یا ښې صفا وینځلې شوې جامې اغوستل. (هدایه ص۱۱۸ ج۱، شرح نقایه ص۱۲۷ ج۱، کبیری ص۵۲۶).

حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دې چه:

أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يَلْبَسُ بُرْدَةَ الْأَحْمَرِ فِي الْعِيْدَيْنِ وَالْجُمُعَةِ. (آثار السنن ص۹۹ ج۲، بحواله ابن خزیمه باسناد صحیح السنن الکبری للبیهقی ص۲۸۰ ج۳)

**ترجمه**: رسول الله ﷺ به په اخترونو او جمعه کښې خپل سور څادر اغوستلو.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَلْبَسُ يَوْمَ الْعِيْدِ بُرْدَةً حَمْرَاءَ. (آثار السنن ص۹۹ ج۲، بحواله طبرانی فی الاوسط واسناده صحیح ومجمع الزوائد ص۱۹۸ ج۲، بحواله ابویعلی وهیثم)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به د اختر په ورځ خپل سور څادر اغوستلو.

أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يَلْبَسُ أَحْسَنَ ثِيَابِهِ. السنن الکبری ص۲۸۱ ج۳، فتح الباری ص۹۲ ج۳، بحواله ابن ابی الدنیا وبیهقی وقال باسناد صحیح.

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه به په اخترونو کښې عمده (بهترین) لباس اغوستلو.

**مسئله**:- کومه خوشبو چه میسره وی نو هغه دې استعمال کړی. (هدایه ص۱۱۸ ج۱، شرح نقایه ص۱۲۷ ج۱، کبیری ص۵۶۶)

**صدقة الفطر** (**سرسایه**):- د وړوکی اختر نه وړاندې دې صدقه الفطر (سرسایه) اداء کړی. (هدایه ص۱۱۸ ج۱، شرح نقایه ص۱۲۷ ج۱، کبیری ص۵۶۶).

عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ أَمَرَ بِزَكٰوةِ الْفِطْرِ قَبْلَ خُرُوْجِ النَّاسِ إِلَى الْعِيْدِ. (بخاری ص۲۰۴ ج۱، مسلم ص۳۱۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ حکم وکړو د صدقة الفطر د اداء کولو د اختر مونځ ته له وتلو نه وړاندې.

**مسئله**:- په صدقه الفطر کښې که غنم یا د غنمو ستوان ورکوی نو اتیا تولې سیر یعنی د انګریزی تول سره نیم چټانک د پاسه پاوکم دوه سیره بلکه د احتیاط د پاره پوره دوه سیره څه زیات ورکول پکار دی، ځکه چه زیاتو ورکولو کښې څه حرج نشته، بلکه بهتره ده، که یا جوار او یا د

جوارو ووړه ورکوی نو د هغې دوچند ورکول پکار دی. (بهشتی زیور باب صدقه فطر ص۲۸ ج۳)

عَنْ اَبِیْ سَعِیْدِنِ الْخُدْرِیِّ قَالَ کُنَّا نُخْرِجُ فِیْ عَهْدِ النَّبِیِّ ﷺ یَوْمَ الْفِطْرِ صَاعًا مِّنْ طَعَامٍ قَالَ اَبُوْ سَعِیْدٍ وَّکَانَ طَعَامُنَا الشَّعِیْرَ وَالزَّبِیْبَ وَالْاَقِطَ وَالتَّمْرَ. (بخاری ص۲۰۵ ج۱)

**ترجمه**: حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه بیان کوی، چه مونږ «یعنی صحابه رضی الله عنهم» به د رسول الله ﷺ په زمانه کښې صدقه فطر د وړوکی اختر په ورځ ورکوله، د عامې غلې یو یو صاع، او حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه فرمایی چه په هغه دور کښې به زمونږ غله اوربشې، مویز، د غنمو پنیر، او کهجورې وې.

عَنْ اِبْنِ عُمَرَ قَالَ فَرَضَ النَّبِیُّ ﷺ صَدَقَةَ الْفِطْرِ اَوْ قَالَ رَمَضَانَ عَلَی الذَّکَرِ وَالْاُنْثٰی وَالْحُرِّ وَالْمَمْلُوْکِ صَاعًا مِّنْ تَمْرٍ اَوْ صَاعًا مِّنْ شَعِیْرٍ فَعَدَلَ النَّاسُ بِهٖ نِصْفَ صَاعٍ مِّنْ بُرٍّ. (بخاری ص۲۰۵ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمایی چه رسول الله ﷺ صدقه فطر مقرر کړې ده، د ښځې، آزاد، غلام، ټولو نه یو صاع د کهجورو یا یو صاع د اوربشو، نو خلقو هغه د نیم صاع د غنمو برابر کړو، (یعنی د غنمو نه علاوه ټوله غله یو صاع د غنم دنیم صاع برابره وه).

قَالَ عَبْدُ اللهِ فَجَعَلَ النَّاسُ عِدْلَهٗ مُدَّیْنِ مِنْ حِنْطَةٍ. بخاری ص۲۰۴ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمایی چه خلقو (صحابه کرمو رضی الله عنهم) د عامې غلې برابر دوه مُده (نیم صاع) غنم وګرځول.

د صحابه کرامو د کهجورو او د جوارو یو صاع د غنمو د نیم صاع (دوه مده) برابر کول د رسول الله ﷺ د ارشاد مطابق وو، نه د خپل اجتهاد څخه، چنانچه ابن سعد رحمه الله په طبقات الکبری کښې لیکلې دی.

عَنْ اِبْنِ عُمَرَ قَالَ وَاَمَرَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فِیْ هٰذِهِ السَّنَةِ بِزَکٰوةِ الْفِطْرِ (الی ان قال) صَاعٌ مِّنْ تَمْرٍ اَوْ صَاعٌ مِّنْ شَعِیْرٍ اَوْ صَاعٌ مِّنْ زَبِیْبٍ اَوْ مُدَّانِ مِنْ بُرٍّ. (طبقات الکبری لابن سعد، ص۲۴۸ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمایی چه رسول الله ﷺ حکم وکړو په همدې کال (دویم هجری) کښې د صدقة الفطر د ورکولو، یو صاع کهجوره یا یو صاع اوربشې، یا یو صاع د وسکو «مویزو» یا دو مده (نصف صاع) د غنمو.

**د اختر د مونځ نه وړاندې نفل**: - بیا عیدګاه طرف ته روانیدل، په لاره تکبیر لوستل خو په پټه لوستل ځکه چه امام ابو حنیفه رحمه الله فرمایی، د اختر د مونځ نه وړاندې هیڅ نفل نه کول، او په عیدګاه کښې د مونځ نه پس نفل کول هم مکروه دی، (هدایه ص۱۱۸ ج۱، شرح نقایه ص۱۲۸ ج۱، کبیری ص۵۶۵).

ځکه چه د رسول الله ﷺ نه ثابت نه دی.

عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ خَرَجَ يَوْمَ الْفِطْرِ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ لَمْ يُصَلِّ قَبْلَهَا وَلَا بَعْدَهَا. (بخاری ص۱۳۵ ج۱، مسلم ص۲۹۱ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن عباس ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ د وړوکی اخترپه ورځ (عیدګاه) طرف ته روان شو، او دوه رکعته یې وکړل، او وړاندې یا وروستو یې هیڅ مونځ (نفل یا اشراق وغیره) ونکړو.

عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ كَرِهَ الصَّلٰوةَ قَبْلَ الْعِيْدِ. (بخاری ص۱۳۵ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن عباس ﷺ به د اختر د مونځ نه وړاندې نفل مونځ مکروه ګڼلو.

**مسئله**:- د اختر د مونځ نه پس که څوک د عیدګاه نه علاوه بل ځائ کښې نفل وکړی دهغې ممانعت نشته بلکه د کولو اجازت یې شته.

عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِنِ الْخُدْرِيِّ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لَا يُصَلِّيْ قَبْلَ الْعِيْدِ شَيْئًا فَاِذَا رَجَعَ اِلٰى مَنْزِلِهٖ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ. (ابن ماجه ص۹۲)

**ترجمه**: حضرت ابو سعید خدری ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به د اختر د مونځ نه وړاندې مونځ نه کولو. کله چه به کورته واپس شو نو دوه رکعته به یې وکړل.

**د اختر د مونځ وخت**:- کله چه نمر دومره اوچت شی لکه څنګه چه د اشراق په وخت یوه نیزه یا لدینه زیات اوچت شی، نو د هغه وخت نه واخله تر زوال نه وړاندې وخته پورې یې ادا کولې شی. (هدایه ص۱۱۹ ج۱، شرح نقایه ص۱۲۸ ج۱، کبیری ص۵٦٧)

په ابن ماجه کښې دیوې یا دوه نیزو په مقدار برابر نمر اوچتیدلو باندې د رسول الله ﷺ د مونځ ادا کیدو ذکر دې. (ابن ماجه ص۹۳، ابوداؤد ص۱٦۱ ج۱)

**مسئله**:- کچیرې د شوال د میاشتې شهادت د زوال نه پس معلوم شی نو په دویمه ورځ دې د اختر مونځ وکړې شی. (هدایه ص۱۱۹ ج۱، شرح نقایه ص۱۲۸ ج۱، کبیری ص۵٦۱)

په حدیث کښې دی چه کله د میاشت د لیدلو شهادت د زوال نه پس ورکړل شو نو رسول الله ﷺ په سبا د مونځ کولو حکم ورکړې دې د زوال نه پس یې د مونځ کولو حکم نه دې ورکړې (ابوداؤد ص۱٦۴ ج۱، نسائی ص۲۳۱ ج۱، ابن ماجه ص۱۱۹ دار قطنی ص۱۷۰ ج۲)

**د اختر د مونځ ترکیب**:- امام به خلقو ته دوه رکعته مونځ د اختر ورکړی، (در مختار ص۱۱۵ کبیری ص۵٦٧)

لکه څنګه چه په حدیث شریف کښې راغلی دی:

عَنْ عُمَرَ قَالَ صَلٰوةُ الْاَضْحٰى رَكْعَتَانِ وَالْفِطْرِ رَكْعَتَانِ (الى ان قال) عَلٰى لِسَانِ نَبِيِّكُمْ ﷺ. (طحاوی ص ۲۲۵ ج۱، ابن ماجه ص ۷۳) نسائی ۲۳۲ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمر﵁ نه روایت دې چه هغوی وفرمایل : د غټې اختر او د وړوکی اختر مونځ دوه رکعته دې، د رسول الله ﷺ په ژبه مبارکه باندې.

د تکبیر تحریمه نه پس دې ثناء ووایی اوبیا دې درې زیاتی تکبیرات ووایی ځکه چه دحضرت عبدالله بن مسعود﵁ ، حضرت حذیفه﵁ ، حضرت ابوموسی اشعری﵁، وغیرهم په روایت کښې زائد تکبیرونه همدادی او هر تکبیر سره دې لاس هم پورته کړی. (هدایه ص۱۱۹ ج۱ شرح نقایه ص۱۲۸ ج۱، کبیری ص۵۶۷)

عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قُلْتُ لِعَطَاءٍ يَرْفَعُ الْاِمَامُ يَدَيْهِ كُلَّمَا كَبَّرَ هٰذِهِ التَّكْبِيْرَةَ الزِّيَادَةَ فِيْ صَلٰوةِ الْفِطْرِ. قَالَ نَعَمْ يَرْفَعُ النَّاسُ اَيْضًا. (مصنف عبدالرزاق ص۲۹۷ ج۳)

**ترجمه** : حضرت ابن جریج فرمایی چه ما حضرت عطاء ته وویل چه آیا امام ته پکار دی چه د اختر د مونځ زائد تکبیرونو ویلو په وخت لاسونه پورته کړی؟ هغوی وویل چه امام دې هم لاسونه پورته کړی او خلق دې هم لاسونه پورته کړی.

عَنْ اِبْرَاهِيْمَ اَنَّهٗ قَالَ تُرْفَعُ الْاَيْدِيْ فِيْ سَبْعِ مَوَاطِنَ فَذَكَرَ فِيْ ذٰلِكَ الْعِيْدَيْنِ. (کتاب الحجه ص۳۰۰ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابراهیم نخعی نه روایت دې چه په اوه ځایونو کښې لاسونه پورته کول ضرور دی، بیا هغوی ددې په ضمن کښې د اخترونو ذکر وکړو، په هغې کښې په یو ځائ کښې د اخترونو په مونځ کښې د تکبیراتو په وخت کښې لاسونه پورته کول هم دی.

بیا له تعوذ اوتسمیه نه وروسته سورۃ فاتحه او د هغې سره یوبل سورۃ دې ولولی او بهتره ده چه په ړمبی رکعت کښې (سورۃ ق) او په دویم کښې (اقتربت الساعة) ولولی، ځکه چه رسول الله ﷺ به دا سورتونه لوستل. (مسلم ص۲۹۱ ج۱، ترمذی ص۱۰۲، موطا امام محمد ص۱۴۰)

او په دویم روایت کښې دا راځی چه ړومبی رکعت کښې دې (سورۃ الاعلی) او په دویم کښې (سورۃ الغاشیه) ولولی. (ترمذی ص۱۰۲).

او بیا دې رکوع او سجده وکړی ، او دویم رکعت دې د تسمیې او فاتحې سره شروع کړی او دقرائت له ختمیدلو نه پس د رکوع نه وړاندې دې درې زائد تکبیرات ووایی او څلورم تکبیر دې د رکوع ووایی ، بیا د مونځ نه پس دې امام دوه خطبې ورکړی په هغې کښې دې صدقه دفطر او نور ضروری احکام بیا ن کړی.

**مسئله** :- کوم سړی نه چه د امام سره د اختر مونځ فوت شی نو د هغې قضاء نشته . (هدایه ص۱۱۹ ج۱، در مختار ص۱۱۶ ج۱، کبیری ص۵۸۱)

**مسئله** :- دوړوکی اختر مونځ که په ړومبئ ورځ د څه عذر له کبله پاتې شی، نو په دویمه ورځ د زوال نه وړاندې يې کولې شی . (هدایه ص۱۱۹ ج۱، شرح نقایه ص۱۲۱ ج۱، کبیری ص۵۸۱)

**عید الاضحی** ((**لوئ اختر**)) :- او مستحب دی چه د غټ اختر په ورځ غسل وکړې شی او د اهتمام سره مسواك ښه استعمال کړې شی، نوې یا صفا جامې واغوستلې شی او که میسر وی نو خوشبو دې استعمال کړې شی او خوراك څښکاك دې د مونځ نه وروستو کړی. او د عیدګاه طرف ته د روانیدو سره دې په لاره تکبیر دتشریق په ښکاره ووایی. او دوړوکی اختر په شان دوه رکعته مونځ واجب دې د غټ اختر ادا کړی، او بیا دې امام دوه خطبې ورکړی . او په هغې کښې دې د قربانئ اوتکبیرات تشریق وغیره ضروری احکام خلقوته وښایی .

**مسئله** - عید الاضحی که د عذر له کبله په ړومبئ او دویمې ورځ هم ادا نشی نو په دریمه ورځ هم کیږی. لدینه پس بیا نه کیږی . (هدایه ص۱۲۰ ج۱، شرح نقایه ص۱۳۰ ج۱، کبیری ۵۸۱).

**مسئله** :- د اخترونو مونځونه بغیر د اذان او اقامت نه کول پکار دی . (کبیری ص۵۶۷).

څکه چې رسول الله ﷺ همداسې طریقې سره ادا کړی دی :

عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِاللهِ قَالَ شَهِدْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ اَلصَّلٰوةَ يَوْمِ الْعِيْدِ فَبَدَاَ بِالصَّلٰوةِ قَبْلَ الْخُطْبَةِ بِغَيْرِ اَذَانٍ وَّلَا اِقَامَةٍ . (مسلم ص۲۸۹ ج۱)

**ترجمه** : حضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه فرمایی چه زه د اختر په ورځ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم ، هغوی اول مونځ ورکړو ، او بیا یې خطبه ارشاد وفرمایله . او د اختر مونځ هغوی ﷺ بغیر د اذان او اقامت نه اداء کړو .

عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ اَلْعِيْدَيْنِ غَيْرَ مَرَّةٍ بِغَيْرِ اَذَانٍ وَّلَا اِقَامَةٍ (ترمذی ص۱۰۲).

**ترجمه** : حضرت جابر بن سمره رضی الله عنه فرمایی چه ما په رسول الله ﷺ پسې د اختر مونځ ډیر خله ادا کړې دې. بغیر د اذان او اقامت نه .

**مسئله** :- مستحب دی چه د اختر د مونځ د پاره په کومه لار لاړ شې نو واپسی کښې که ممکن وی نو بله لار دې اختیار کړی . رسول الله ﷺ همداسې کړی دی .

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا خَرَجَ يَوْمَ الْعِيْدِ فِيْ طَرِيْقٍ رَجَعَ فِيْ غَيْرِهٖ . (ترمذی ص۱۰۳)

**ترجمه** : حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به د اختر په ورځ کله د کور نه وتلو، نو په کومه لار چه به تللو نو واپس به په بله لار راتللو .

**تکبیرات العیدین «داخترونو تکبیرونه»** :- د اخترونو په مونځ کښې د حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله ، امام سفیان ثوری رحمه الله ، امام ابو یوسف رحمه الله ، او د امام محمد رحمه الله په نزد شپږ تکبیرونه زائد دی : درې تکبیرونه په رومبی رکعت کښې د قرائت نه وړاندې . او درې تکبیرونه په بل رکعت کښې د قرائت نه وروسته او د رکوع نه وړاندې. **(هدایه ص۱۱۹ ج۱، شرح نقایه ص۱۲۸ ج۱، کبیری ص۵۶۷)**

د حضرت امام مالك ، امام شافعی ، او د امام احمد په نزد دولس تکبیرونه دی اوه تکبیرونه په رومبی رکعت کښې د تحریمې نه پس، او دویم رکعت کښې هم د قرائت نه وړاندې به پنځه تکبیرونه ووایی **(ترمذی ص۱۰۳)**. لیکن پدې سلسله کښې څه صحیح مرفوع روایت موجود نه دې.

علامه ابن رشد رحمه الله لیکلې دی چه :

**وَصَارَ الْجَمِيعُ إِلَى الْأَخْذِ بِأَقَاوِيلِ الصَّحَابَةِ فِي هٰذِهِ الْمَسْئَلَةِ لِأَنَّهُ لَمْ يَثْبُتْ فِيهَا عَنِ النَّبِيِّ ﷺ شَيْءٌ. (بدایة المجتهد ص۲۱۸ ج۱)**

**ترجمه** : ټولو (صحابه رضی الله عنهم او تابعین وغیره) په دې مسئله کښې د صحابه کرامو رضی الله عنهم د اقوالو طرف ته رجوع کړې ده، ځکه چه له رسول الله ﷺ څخه په دې باره کښې له کوم صحیح حدیث نه څه څیز ثابت نه دې.

امیر یمانی لیکلې دی :

**قُلْتُ رَوَى الْعُقَيْلِيُّ عَنْ أَحْمَدَ بْنِ حَنْبَلٍ أَنَّهُ قَالَ لَيْسَ يُرْوٰى فِي التَّكْبِيرِ فِي الْعِيدَيْنِ حَدِيثٌ صَحِيحٌ. (سبل السلام ص۶۸ ج۲، طبع مصر)**

**ترجمه** : عقیلی د حضرت امام احمد بن حنبل نه نقل کړې دی ، هغوی فرمایی چه د تکبیرات عیدین په باره کښې څه صحیح حدیث نه دې روایت کړې شوې.

صاحب د شرح نقایه لیکلې دی :

**وَقَالَ الْإِمَامُ أَحْمَدُ لَيْسَ فِي تَكْبِيرَةِ الْعِيدَيْنِ حَدِيثٌ صَحِيحٌ وَإِنَّمَا أَخَذَ فِيهَا بِفِعْلِ أَبِي هُرَيْرَةَ. (شرح نقایه ص۱۲۰ ج۱)**

**ترجمه** : امام احمد فرمایی چه د تکبیرات عیدین په باره کښې څه صحیح حدیث نقل نه دې، پدې سلسله کښې د حضرت ابوهریره رضی الله عنه د قول نه استناد کړې شوې دې.

حضرت ابو هریره رضی الله عنه به دولس تکبیرونه کول.

حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه فرمایی چه په رومبی رکعت کښې د تکبیر تحریمه نه پس د پنځو زائدو تکبیراتو کولو نه پس قرائت کوئ او دویم رکعت کښې دقرائت نه وړاندې پنځه ځایه تکبیرات ووایئ . حضرت امام ابویوسف نه هم نقل دی چه هغوی د اختر مونځ ورکړو، هغوی پسې خلینه

هارون رشید هم ولاړ وو. امام ابو یوسف د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ والا تکبیرات ولوستل، که په ړومبی رکعت کښې اوه زائد تکبیرات وی، او په دویم کښې شپږ زائد وی نو تکبیر تحریمه او رکوع والا تکبیرات هم ورسره یوځائ کړې نو ټول به ۱۲ شپاړس تکبیرونه شی. څنګه چه د امام شافعی نه هم نقل دی. (هدایه ص۱۱۹ ج۱)

حضرت نافع رحمة الله فرمایی چه زه د غټ اختر او وړوکی اختر په مونځ کښې د حضرت ابو هریره ﷺ سره حاضر شوم، هغوی ړومبی رکعت کښې اووه تکبیرات د قرائت نه وړاندې ولوستل او پنځه تکبیرات یی دویم رکعت کښې د قرائت نه وړاندې ولوستل، (مؤطا امام محمد ص۱۴۱).

حضرت امام محمد فرمایی چه د اخترونو د تکبیراتو متعلق په خلقو کښې اختلاف وموندلې شو. (فَمَا اَخَذْتَ بِهٖ فَهُوَ حَسَنٌ) په دې کښې چه تاسو کوم باندې هم عمل کوئ هغه بهتر دې (مؤطا امام محمد ص۱۴۲).

او زمونږ په نزد زیات افضل هغه دی کوم چه د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ نه نقل شوی دی چه هغوی به د هر اختر په مونځ کښې نه ۹ تکبیرات کول، پینځه ړومبی رکعت کښې او څلور په دویم رکعت کښې او په هغې کښې د تکبیرتحریمه او رکوع والا تکبیرات هم شامل دی او قرائت به یی مسلسل کولو. ړومبی رکعت کښې د تکبیراتو نه پس او دویم رکعت کښې د تکبیراتو نه وړاندې او همدا د حضرت امام ابو حنیفه رحمة الله قول دې. (مؤطا امام محمد ص۱۳۸، کتاب الحجة ص۳۰۳ ج۱)

امام ترمذی فرمایی چه:

بعضې اهل علم د رسول الله ﷺ په صحابو کښې او د هغوی نه علاوه نورو نه هم په دې عمل کوی، اوه ۷ تکبیرات په ړومبی رکعت کښې د قرائت نه وړاندې او دویم رکعت کښې پنځه تکبیرات د قرائت نه وړاندې کوی. او همدغه شان د ابو هریره ﷺ نه نقل دی چه هغوی په مدینه کښې هم دغه شان مونځ ورکړو، د اهل مدینه هم همدا قول دې او امام مالك، امام شافعی، امام احمد. امام اسحاق هم همدا وایی لیکن حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ نه نقل دی چه هغوی په اخترونو کښې نهه ۹ تکبیرات ویل، په ړومبی رکعت کښې یی پنځه تکبیرات ویل، یو تکبیر تحریمه، درې تکبیرات زائد د قرائت نه وړاندې او پنځم د رکوع والا. او دویم رکعت کښې یی درې زائد تکبیرات د قرائت نه پس د رکوع نه وړاندې او څلورم رکوع والا، او د رسول الله ﷺ متعدد صحابه کرامو ﷺ نه هم همدا نقل دی، د اهل کوفه هم همدا قول دې او امام سفیان ثوری هم همدا وایی. (ترمذی ص۱۰۳)

اَنَّ سَعِيْدَ بْنَ الْعَاصِ سَاَلَ اَبَامُوْسَى الْاَشْعَرِيَّ وَحُذَيْفَةَ بْنَ الْيَمَانِ كَيْفَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُكَبِّرُ فِي الْاَضْحٰى

اَوِالْفِطْرِ فَقَالَ اَبُوْمُوْسٰى كَانَ يُكَبِّرُ اَرْبَعًا تَكْبِيْرَةً عَلَى الْجَنَائِزِ فَقَالَ حُذَيْفَةُ صَدَقَ فَقَالَ اَبُوْمُوْسٰى كَذٰلِكَ كُنْتُ اُكَبِّرُ فِي الْبَصْرَةِ حِيْنَ كُنْتُ عَلَيْهِمْ وَالِيًا. (شرح نقایه ص ۱۲۹ ج ۱، ابو داود ص ۱۶۳ ج ۱، مسند احمد ص ۴۱۶ ج ۴، سنن الکبری للبیهقی ص ۲۸۹ ج ۳)

**ترجمه** : حضرت سعیدبن العاص ﷺ د ابوموسی اشعری ﷺ او حذیفه بن الیمان ﷺ نه پوښتنه وکړه چه رسول الله ﷺ به په غټ اختر او وړوکی کښې څنګه تکبیر ویلو ، حضرت ابو موسی ﷺ جواب ورکړو چه هغوی ﷺ به څلور تکبیرات ویل لکه څنګه چه په جنازه کښې څلور تکبیرات وی حضرت حذیفه ﷺ ددې خبرې تصدیق وکړو ، نو حضرت ابو موسی ﷺ وفرمایل : ما به هم دغه شان څلور تکبیرات کول ، کله چه زه په بصره کښې په هغوی حاکم ووم .

عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ وَالْاَسْوَدَ ابْنِ يَزِيْدَ كَانَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ جَالِسًا وَعِنْدَهُ حُذَيْفَةُ وَاَبُوْمُوْسَى الْاَشْعَرِيُّ فَسَئَلَ الْعَاصِ عَنِ التَّكْبِيْرِ فِي الصَّلٰوةِ يَوْمَ الْفِطْرِ وَالْاَضْحٰى فَجَعَلَ هٰذَا يَقُوْلُ سَلْ هٰذَا، وَهٰذَا يَقُوْلُ سَلْ هٰذَا فَقَالَ حُذَيْفَةُ سَلْ هٰذَا لِعَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ فَسَاَلَهُ فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ يُكَبِّرُ اَرْبَعًا ثُمَّ يَقْرَأُ ثُمَّ يُكَبِّرُ فَيَرْكَعُ ثُمَّ يَقُوْمُ فِي الثَّانِيَةِ فَيَقْرَأُ ثُمَّ يُكَبِّرُ اَرْبَعًا بَعْدَ الْقِرَاءَةِ. [1] (مصنف عبد الرزاق ص ۲۹۳ ج ۳، ومحلی ص ۸۸ ج ۴، بتغیر یسیر اثار السنن ص ۱۰۶ ج ۲، نصب الرایه ص ۲۱۳ ج ۲،

**ترجمه** : حضرت علقمه رحمه الله او حضرت اسود بن یزید رحمه الله فرمایی چه حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ ناست وو ، او هغوی سره حضرت حذیفه ﷺ او حضرت ابو موسی اشعری ﷺ هم ناست وو ، حضرت سعیدبن العاص ﷺ ددوی دواړو نه پوښتنه وکړه چه وړوکی اختر او غټ اختر کښې

---

[1] - په آثارالسنن او نصب الرایه کښې دا روایت دعبدالرزاق په حوالې سره ذکر دې او دا الفاظ هم دی چه : (فقال الاشعری سل عبدالله فانه اعلمنا واقدمنا) حضرت ابو موسی اشعری ﷺ وفرمایل چه حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ نه پوښتنه وکړه ځکه چه هغه زمونږ نه زیات مقدم او زیات علم والا دې . لیکن زمونږ د نظر وراندې چه د حضرت عبدالرزاق کومه نسخه ده په هغې کښې دا الفاظ نشته ، د هغې عبارت مونږ بره لیکلې دي ممکنه ده چه چیرته په بله کومه نسخه کښې دا الفاظ موجود وی لدینه علاوه د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ نه هم په صحیح روایاتو کښې همدومره تکبیرات روایت شوی دی

عن عبدالله بن الحارث قال کبر ابن عباس یوم العید فی الرکعة الاولی اربع تکبیرات ثم قرء ثم رکع ثم قام فقرء ثم کبر ثلث تکبیرات سوی تکبیرة الرکوع (محلی ابن حزم ص ۸۸ ج ۳، وقال ابن حزم وهذا اسناد فی غایة الصحة)

ترجمه : عبدالله بن حارث وایی چه حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه د اختر په ورځ په ول رکعت کښې څلور تکبیرونه ووي ، بیایی قرائت وکړو او بیا یی رکوع وکړه ، بیا ودریدلو اوقرائت یی وکړو او بیا یی دري تکبیرونه وویل بغیر د رکوع له تکبیر نه . ((سواتی)) .

څو تکبیرات دی؟ نو هغوی دواړو په یوبل باندې (خبره) ور اچوله، نو حضرت حذیفه ﷺ وفرمایل حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ نه پوښتنه وکړه، هغوی د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ نه پوښتنه وکړه نو هغوی وفرمایل چه امام دې څلور تکبیرا ت وکړی بیا دې قراءة وکړی او بیا دې تکبیر ووایی او رکوع دې وکړی بیا دې دویم رکعت کښې ودریږی، او قرائت دې وکړی بیا دې څلور تکبیرات ووایی د قرائت نه وروسته.

صاحب د آثارالسنن او حافظ ابن حجر په درایه کښې ددې حدیث سند صحیح ګرځولې دې.

ابن حجر لیکلي دی چه: (وَهٰذَا اِسْنَادٌ فِي غَايَةِ الصِّحَّةِ).

وَعَنْ عَبْدِ اللهِ قَالَ التَّكْبِيْرُ فِي الْعِيْدِ اَرْبَعًا كَالصَّلٰوةِ عَلَى الْمَيِّتِ. (مجمع الزوائد ص ۲۰۵ ج ۲، بحواله طبرانی فی الکبیر ورجاله ثقات)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائیی چه د اختر په مونځ کښې (په یو رکعت کښې) څلور تکبیرونه دی لکه څنګه چه د جنازې مونځ کښې څلور تکبیرونه دی.

**که اختر او جمعه په یوه ورځ وی ((نو بیا به څنګه کوی؟))**:- ائمه ثلاثه حضرت امام ابو حنیفه، امام مالك، امام شافعی، امام ابویوسف، وغیره ویلی دی که اختر او جمعه دواړه په یوه ورځ یوځای شی نو دواړه به اداء کیږی، د اختر مونځ په خپل وخت او د جمعې مونځ په خپل وخت، البته امام احمد فرمایی که چیرې اختر او جمعه په یوه ورځ یوځای شی نو د اختر مونځ په خپل وخت ادا کړئ او د جمعې مونځ پریږدئ، د امام احمد قول مرجوح او شاذ دې څکه چه:

۱ - د جمعې مونځ په نص قرآنی سره په قطعی طور ثابت دې او د جمعې د پریښودلو د پاره څه قطعی دلیل موجود نه دې.

۲ - د احادیث صحیحه نه او د امت د متواتر او متوارث عمل نه د جمعې د مونځ فرضیت ثابت دې. او ددې د ساقط کولو د پاره د قطعی دلیل ضرورت دې او هغه دلته موجود نه دې.

۳ - امام ترمذی او امام نسائی حدیث بیان کړې دې چه:

(رُبَّمَا اجْتَمَعَا فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ فَيَقْرَأُ بِهِمَا). (ترمذی ص ۱۰۲، نسائی ص ۲۳۵ ج ۱)

**ترجمه**: ډیر کرته به د اختر او د جمعې ورځ په یوه ورځ یو ځای کیدله، نو رسول الله ﷺ همدا دوه سورتونه (سورة الاعلی او سورة الغاشیه) د اختر او د جمعې دواړو په مونځونو کښې لوستل.

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ اجْتَمَعَ عِيْدَانِ فِي يَوْمٍ وَّاحِدٍ يَوْمُ فِطْرٍ وَّجُمُعَةٍ فَصَلّٰى بِهِمْ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ الْعِيْدَ ثُمَّ اَقْبَلَ عَلَيْهِمْ بِوَجْهِهٖ فَقَالَ يَاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّكُمْ قَدْ اَصَبْتُمْ خَيْرًا وَّاَجْرًا وَاِنَّا مُجَمِّعُوْنَ فَمَنْ اَرَادَ اَنْ يُّجَمِّعَ مَعَنَا فَلْيُجَمِّعْ وَمَنْ اَحَبَّ اَنْ يَّرْجِعَ اِلٰى اَهْلِهٖ فَلْيَرْجِعْ. (مجمع الزوائد ص ۱۹۵ ج ۲، مشکل الآثار للطحاوی ص ۵۶ ج ۲، سنن الکبری بیهقی ص ۳۱۸ ج ۲)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن عمر ﷺ فرمايي چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې يوه ورځ دوه اختره يوځاى شول «يعنى عيد الفطر او جمعه» نو رسول الله ﷺ اول خلقو ته د اختر مونځ ورکړو. او بيا د هغوى طرف ته متوجه شو او وې فرمائيل: بيشکه تلمو بهترى او اجر ومونډلو، «داختر مونځ کول مراد دى» او مونږ جمعه هم ادا کوونکى يو، پس که څوك د جمعې کولو اراده لرى. نو هغه دې مونږ سره جمعه وکړى او څوك چه «دلرې ځاى يا باندو او اطرافو نه راغلى وى او» خپل کور ته تلل خوښوى نو هغوئ دې واپس لاړ شى.

**۵** - حضرت ابى عبيد فرمايي چه ما په حضرت عمر ﷺ پسې د اختر مونځ اداء کړو هغوى اول مونځ ورکړو بيا يى خطبه وکړه او دا يى وفرمايل چه: دا دوه ورځې داسې دى چه په دې کښې رسول الله ﷺ د روژې نيولو نه منع فرمايلې ده، يوه د وړوکى اختر ورځ، او دويمه هغه ورځ په کومه کښې چه تاسو د څناورو د قربانۍ غوښه خورئ «د غټ اختر ورځ» بيا ما په حضرت عثمان ﷺ پسې د اختر مونځ ادا کړو حضرت عثمان ﷺ د مونځ نه پس خطبه ورکړه، او دا يى وفرمايل چه تاسو د پاره په نن ورځ کښې دوه اختره يو ځاى شول، يعنى نن اختر هم دې او جمعه هم. نو د عاليه خلق «د مدينې د اطرفو نه راغلى خلق» که غواړى نو جمعې ته دې انتظار وکړى او که څوك تلل غواړى نو هغه تللې شى. ما هغوى ته اجازت ورکړې دې.

امام محمد رحمه الله فرمايي: حضرت عثمان ﷺعاليه والا ته اجازت په دې وجه ورکړې وو چه عاليه والا دمدينې اوسيدونکى نه وو لهذا په هغوى د جمعې مونځ فرض نه وو، **(مؤطا امام محمد ص۱۲۹تا۱۳۰)**.

**د امام احمد استدلال**:- په کومو رواياتو کښې چه اجمالا دا ذکر راغلې دې چه رسول الله ﷺ فرمايلې دى: **(فَمَنْ شَآءَ اَجْزَاهُ مِنَ الْجُمُعَةِ)**، **(سنن الكبرى للبيهقى ص۳۱۸ ج۳)**

**ترجمه**: چه څوك غواړى نو د هغوى د پاره به د جمعې د طرف نه کفايت وشى.

**(فَمَنْ اَحَبَّ اَنْ يَّرْجِعَ اِلٰى اَهْلِهٖ فَلْيَرْجِعْ)**، **(مشكل الآثار ص۵٦ ج۲)**

**ترجمه**: اوڅوك چه خوښوى نو هغوئ دې خپل کور طرف ته واپس لاړ شى.

لدې الفاظونه امام احمد په دې پوهه شوې دې چه په دې کښې مطلق اوعام خلق مراد دى، حالانکه دا سې نه ده. بلکه ددينه مراد خاص خلق دى يعنى عوالى «د مدينې منورې له اطرافو» نه راغلى خلق. چه د شوق او محبت نه له رسول الله ﷺ سره د هغوى په اقتداء کښې د اختر مونځ کولو د پاره راغلې وو، اوکه نه نو هغوى باندې نه جمعه فرض وه او نه د اختر مونځ پرې واجب وو ځکه چه هغوى د ښار اوسيدونکى نه وو.

لکه چه علامه عينى ليکلې دى:

**وَقَالَ ابْنُ حَبِيْبٍ اَرْخَصَ ﷺ فِى التَّخَلُّفِ عَنْهَا لِمَنْ شَهِدَ الْفِطْرَ وَالْاَضْحٰى صَبِيْحَةَ ذٰلِكَ الْيَوْمِ مِنْ اَهْلِ الْقُرٰى**

اَلْخَارِجَةِ عَنِ الْمَدِيْنَةِ لِمَا فِيْ رُجُوْعِهِ مِنَ الْمَشَقَّةِ لِمَا اَصَابَهُمْ مِنْ شُغْلِ الْعِيْدِ وَفَعَلَهُ عُثْمَانُ ﷺ لِاَهْلِ الْعَوَالِيْ. (عمدة القاري ص۱۹۶ ج۶)

**ترجمه** : ابن حبیب رحمہ اللہ فرمایي چه رسول الله ﷺ هغه خلقو ته د جمعې رخصت ورکړې وو کوم چه د وړوکی اختر یا د غټ اختر کښې د مدینې نه د بهر کلو څخه راغلی وو، په دې وجه چه د هغوی د جمعې د پاره دوباره واپس راتلل د مشقت باعث وو. ځکه چه د اختر په وجه هم هغوی مشغول کیدل او حضرت عثمان ﷺ هم د جمعې رخصت اهل عوالی ته ورکړې وو.

امام طحاوی لیکی :-

اَنَّ الْمُرَادَ بِالرُّخْصَةِ فِيْ تَرْكِ الْجُمُعَةِ فِيْ هٰذَيْنِ الْحَدِيْثَيْنِ هُمْ اَهْلُ الْعَوَالِي الَّذِيْنَ مَنَازِلُهُمْ خَارِجَةٌ عَنِ الْمَدِيْنَةِ مِمَّنْ لَيْسَتِ الْجُمُعَةِ عَلَيْهِمْ وَاجِبَةٌ لِاَنَّهُمْ فِيْ غَيْرِ الْاَمْصَارِ دُوْنَ مَا سِوٰى ذٰلِكَ. (مشكل الاثار ص۵۳ ج۲)

**ترجمه** : د جمعې د پرېښودلو له رخصت نه مراد په دې دواړو حدیثونو کښې هغه خلق دی کوم چه اهل عوالی یعنی د اطرافو د مدینې نه به راتلل، او د چا کورونه چه د مدینې نه بهر وو، او په چا باندې چه جمعه واجب نوه ځکه چه هغه د ښار اوسیدونکی نه وو چه په هغوی باندې دجمعې مونځ فرض شوې وای

اَنَّهُ (عثمان) خَطَبَ يَوْمَ عِيْدٍ فَقَالَ يَاَيُّهَا النَّاسُ اَنَّ هٰذَا يَوْمٌ قَدِ اجْتَمَعَ لَكُمْ فِيْهِ عِيْدَانِ فَمَنْ اَحَبَّ اَنْ يَنْتَظِرَ الْجُمُعَةَ مِنْ اَهْلِ الْعَوَالِيْ فَلْيَنْتَظِرْ وَمَنْ اَحَبَّ اَنْ يَرْجِعَ فَقَدْ اَذِنْتُ لَهُ. (موطا امام مالك ص۲۱۲ ج۱، مشكل الاثار ص۱۶۵ كتاب الام ص۲۱۲ ج۱، سنن الكبرى ص۳۱۸ ج۳، بسند صحيح كنز العمال ص۳۳۹ ج۸)

**ترجمه** : حضرت عثمان ﷺ خطبه ورکړه او دا یې وفرمایل : اې خلقو ! بیشکه نن ورځ داسې ده چه په دې کښې ستاسو د پاره دوه اخترونه یوځای شول. پس څوک چه خوښوی اهل عوالی (د مدینې د اطراف خلق) چه دجمعې د مونځ انتظار وکړی نو هغوی له پکار دی چه انتظار وکړی او څوک چه واپس تلل غواړی نو لاړ دې شی ما هغوی ته اجازت ورکړې دې.

## حضرت امام شافعی لیکلې دی :-

عَنْ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيْزِ قَالَ اِجْتَمَعَ عِيْدَانِ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَقَالَ مَنْ اَحَبَّ اَنْ يَجْلِسَ مِنْ اَهْلِ الْعَالِيَةِ فَلْيَجْلِسْ فِيْ غَيْرِ حَرَجٍ. (كتاب الام ص۲۳۹ ج۱، سنن الكبرى للبيهقي ص۳۱۸ ج۳)

**ترجمه** : حضرت عمر بن عبد العزیز فرمایي چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې دوه اختره یوځای شول . نو هغوی وفرمایل چه عالیه (د اطرافو) خلقو کښې چه کوم خلق خوښوی نو هغه دې کینی. (او جمعه دې هم ادا کړی) او په هغوی باندې تنگی نشته ، یعنی که څوک تلل غواړی نو تلې شی.

لدې ټولو روایاتو نه ثابتیږی چه د جمعې د پرېښودلو کومو خلقو ته اجازت ورکول شوې وو

نو هغه اهل عوالی او د کلو خلق وو نه خو په خپله رسول الله ﷺ جمعه ترک کړې ده او نه یې د مدینې او د ښار اوسیدونکو ته اجازت ورکړې دې.

**مسئله**:- د اخترونو خطبه د مونځ نه پس آوریدل سنت دی.

**مسئله**:-د اخترونو په مونځ کښې رسول الله ﷺ قرائت په زوره تلاوت کړې دې.

**مسئله**:- د اخترونو د مونځ د پاره اذان او اقامت مسنون نه د ې.

**تکبیرات تشریق**:- د عرفې په سحر (له نهمې ذی الحجې) نه تر دیارلسم تاریخ د مازدیګر پورې فرض مونځ نه پس یو ځل تکبیر تشریق په زوره ویل واجب دې.

**مسئله**:- دامام صاحب په نزد باجماعته مونځ مسنونه طریقې باندې چه څوك مونځ کوی په شرط ددې چه مقیم وی، او ښارونو قصبو او غټو کلوکښې وی. د ښځو جماعت نه وی ځکه چه هغه مستحب نه دې بلکه غیر اولی دې، البته کومه ښځه چه د سړو سره مونځ په جمع ادا کوی نو هغوی دې په پټ آواز تکبیرات تشریق ووایی اوکه نه نو په ښځو باندې تلبیه او تکبیرات تشریق په زوره نشته، لکه څنګه چه اذان او اقامت هم د ښځو د پاره مکروه دې.

نو له داسې مستحب جماعت سره چه کوم خلق مونځ اداکوی په هغوی واجب دی چه یو ځل په اوچت آواز سره تکبیرات تشریق ووایی. البته د صاحبینو په نزد مسافر، مقیم، سړی، ښځه او منفرد ټولو باندې واجب دې.

عَنْ مُحَمَّدٍ قَالَ اَخْبَرَنَا اَبُوْحَنِیْفَةَ عَنْ حَمَّادٍ عَنْ اِبْرَاهِیْمَ عَنْ عَلِیٍّ اَنَّهٗ کَانَ یُکَبِّرُ مِنْ صَلٰوةِ الْعَصْرِ مِنْ اٰخِرِ اَیَّامِ التَّشْرِیْقِ. (کتاب الاثار مترجم ص۸۳)

**ترجمه**: حضرت امام محمد د خپل شیخ امام ابو حنیفه نه د مشائخو په واسطه د حضرت علی رضی الله عنه نه روایت بیان کړې دې چه حضرت علی رضی الله عنه د عرفې د سحر نه دایام تشریق دآخری ورځې تر د مازدیګر مونځ پورې او د مازدیګر مونځ کولو سره هم تکبیر تشریق لوستلو.

**تکبیر تشریق**:- تکبیر تشریق دادې: (اَللّٰهُ اَکْبَرُ اَللّٰهُ اَکْبَرُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَکْبَرُ اَللّٰهُ اَکْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ).

**مسئله**:- کچیرې امام تکبیرات ویل هیر کړی نو مقتدی دې وریاد کړی، حضرت امام ابو یوسف رحمه الله هیر کړی وو نو امام ابو حنیفه رحمه الله چه هغوی پسې مونځ کولو هغوی وریاد کړل.

# صلوة المسافر

## «د مسافر مونځ»

سفر د مسافت یوې حصې (ټکړې) ته ویلې کیږی، او په شریعت کښې د سفر په وجه مسافر د پاره په څه احکامو کښې تبدیلی او تغیر واقع کیږی.

د مونځ قصر د مسافر په حصه کښې لازمیږي او روژه ماتول ورته جائز کیږي، د جمعې فرضیت هم د هغه په حق کښې ساقطیږي که هم د اسې د جمعې او اخترونو مونځ وکړې شي نو بهتر دې او د هغه په ذمه نه واجبیږي لکه څنګه چه مقیم سړي باندې واجبیږي، همدغه رنګې د سفر په وجه په موزو باندې مسح تر درې ورځو پورې دده دپاره مباح کیږي.

عَنْ عَلِيٍّ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ يَأْمُرُنَا أَنْ نَمْسَحَ الْمُقِيمُ يَوْمًا وَّلَيْلَةً وَالْمُسَافِرُ ثَلَاثًا. (نسائی ص۳۲ ج۱)

**ترجمه**: حضرت علی ؓ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی مقیم سړې تر یوې ورځې او شپې پورې مسح کولې شی او مسافر سړې درې ورځو او شپو پورې.

**مسئله**:- مسافر سړې د ماسپښین، مازدیګر او د ماسخوتن دوه رکعته، او د ماښام او سحر او د وترو دې پوره مونځ ادا کړی. (هدایه ص۱۱۲ ج۱، شرح نقایه ص۱۱۹ ج۱ کبیری ص۵۳۶)

حضرت امام شافعی او بعضې نور ائمه کرام فرمایی چه د سفر په حالت کښې اګر چه قصر کول سنت او مباح دی لیکن اتمام یې زیات افضل دی.

ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه ؓ به هم په سفر کښې اتمام کولو، کله چه هغې نه پوښتنه وکړې شوه چه هغه د قصر په ځائ اتمام ولې کوی؟ نو هغوی وفرمایل چه زویه! ماته څه تکلیف نشته او راته نه مشقت پیښیږي، په دې وجه زه پوره مونځ کوم. دام المؤمنین ؓ د تاویل مقصد داؤو چه هغې اتمام جائز ګڼلو.

قَالَ عُمَرُ صَلٰوةُ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَانِ وَصَلٰوةُ الْفِطْرِ رَكْعَتَانِ وَصَلٰوةُ الْاَضْحٰى رَكْعَتَانِ وَصَلٰوةُ السَّفَرِ رَكْعَتَانِ تَمَامٌ غَيْرُ قَصْرٍ عَلٰى لِسَانِ مُحَمَّدٍ ﷺ. (نسائی ص۲۰۹ ج۱، ابن ماجه ص۷۳، طحاوی ص۲۴۵ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عمر ؓ فرمایی چه د جمعې مونځ دوه رکعته دې، او د عید الفطر مونځ دوه رکعته دې او د غټ اختر مونځ دوه رکعته دې او د سفر مونځ دوه رکعته دې دا پوره مونځ دې د کمی نه بغیر (یعنی په دې باندې د پوره مونځ اجر او ثواب ورکول کیږی) د حضرت محمد ﷺ له مبارکې ژبې نه دا خبره مبارکه ثابته ده.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ فَرَضَ اللهُ الصَّلٰوةَ عَلٰى لِسَانِ نَبِيِّكُمْ فِي الْحَضَرِ اَرْبَعًا وَفِي السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ وَفِي الْخَوْفِ رَكْعَةً اَيْ مَعَ كُلِّ طَائِفَةٍ (مسلم ۲۴۱ ج۱)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن عباس ؓ فرمایی چه الله ﷻ مونځ فرض کړې دې ستاسو د نبی ﷺ په مبارکه ژبه باندې، د اقامت په حالت کښې څلور رکعته او په سفر کښې دوه رکعته، او د ویرې په حالت کښې (چه کله په سفر کښې وی) یو رکعت (یعنی امام سره به د هرې هرې ډلې خلق یو یو رکعت کوی او دویم رکعت به هره یوه ډله ځان له کوی).

اِفْتَرَضَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ رَكْعَتَيْنِ فِي السَّفَرِ كَمَا افْتَرَضَ فِي الْحَضَرِ اَرْبَعًا. (شرح نقایه ص۱۱۹ ج۱، بحواله طبرانی
**ترجمه**: مقرر کړی دی رسول الله ﷺ په سفر کښې دوه رکعته لکه څنګه چه یې د اقامت په حالت کښې څلور رکعته مقرر کړی دی.
په مسلم شریف کښې د ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه نقل دی چه:
فُرِضَتِ الصَّلٰوةُ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ فِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ فَاُقِرَّتِ الصَّلٰوةُ فِي السَّفَرِ وَزِيْدَ فِي صَلٰوةِ الْحَضَرِ. (مسلم ص ۲۴۱ ج۱)
**ترجمه**: مونځ هم دوه دوه رکعته فرض کړې شوې دې په اقامت او سفر کښې، او بیا د سفر مونځ په خپل اصلي حالت پرېښودل شوې دې. او د اقامت په حالت کښې (دوه رکعته) زیات کړې شوې دې.
عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَتْ فَرَضَ اللهُ الصَّلٰوةَ حِيْنَ فَرَضَهَا رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ اَتَمَّهَا فِي الْحَضَرِ فَاُقِرَّتْ صَلٰوةُ السَّفَرِ عَلَى الْفَرِيْضَةِ الْاُوْلٰى. (مسلم ص۲۴۱ ج۱)
**ترجمه**: ام المؤمنین حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها نه روایت دې چه الله ﷻ چه کله مونځ فرض وګرځولو نو دوه رکعته یې مقرر کړو او بیا د اقامت په حالت کښې څلور رکعته یې پوره کړل، او د سفر په حالت کښې یې بیا رومبئ فریضه یعنې هماغه دوه رکعته برقرار وساتله.
حضرت عمر رضی الله عنه نه چه کله پوښتنه وکړې شوه چه د قرآن نه خو دا معلومیږي چه د ویرې په حالت کښې خو قصر کول پکار دی لکه څنګه چه لاندینې آیتونو نه ظاهریږي.
(لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَقْصُرُوْا مِنَ الصَّلٰوةِ اِنْ خِفْتُمْ اَنْ يَّفْتِنَكُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا). فَقَدْ اَمِنَ النَّاسُ فَقَالَ عَجِبْتُ مِمَّا عَجِبْتَ مِنْهُ فَسَاَلْتُ رَسُوْلَ اللهِ عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ صَدَقَةٌ تَصَدَّقَ اللهُ بِهَا عَلَيْكُمْ فَاقْبَلُوْا صَدَقَتَهُ. (مسلم ص۲۴۱ ج۱)
**ترجمه**: ((د الله ﷻ فرمان دې چه)) په تاسو باندې هیڅ ګناه نشته که تاسو په مونځ کښې قصر وکړئ که په تاسو باندې ویره وی چه کافران به تاسو په فتنه کښې واچوی)
خو اوس خلق د امن په حالت کښې دی بیا څنګه قصر کوی. حضرت عمر رضی الله عنه وفرمایل چه په کومه خبره تاسو ته تعجب شوې دې ماته هم په دغه خبره تعجب شوې وو، نو ما د رسول الله ﷺ نه پدې باره کښې پوښتنه وکړه نو هغوی ﷺ وفرمائیل: دا صدقه ده الله ﷻ تاسو باندې صدقه کړې ده لهذا تاسو دا صدقه قبول کړئ (یعنې الله ﷻ د سفر په حالت کښې دوه رکعته معاف کړی دی).
لدینه دا هم معلومیږی چه دا رخصت اسقاط دې الله ﷻ په څلور رکعتي مونځونو کښې په سفر کښې دوه رکعته بالکل ساقط کړی دی دا د روژې په شان محض سهولت او تخفیف ندې چه صرف

په دې حالت کښې ترې رخصت شی بلکه دا صدقه ده د الله ﷻ د طرفه معافی ده دا قبوله کړئ.
باقی په آیت کښې د ویرې قید اتفاقی دې اوکه نه نو رسول الله ﷺ دفتح مکه نه پس د امن په حالت کښې هم په سفر کښې دوه رکعته کړی دی د څه صحیح روایت نه دا ثابته نه ده چه رسول الله ﷺ د سفر په حالت کښې څلور رکعته کړی وی.

**د شرعی سفر مسافت**:- د سفر د مسافت په باره کښې د ائمه کرامو اختلاف دې، په صحیح احادیثو کښې درې ورځې او درې شپې مسافت خاص مؤثر ګرځولې شوې دې چه د هغې په وجه باندې احکام تبدیلیږی لکه څنګه چه رسول الله ﷺ فرمایلې دی: ښځه دې سفر نه کوی د درې ورځو په مسافت بغیر د محرم یا د خاوند نه. (بخاری ص۱۴۷ ج۱ مسلم ص۴۳۳ ج۱)
ددې مسافت په تعین کښې د ائمه کرامو مختلف اقوال دی: دا مسافت شپږ دیرش میله دې یا شپږ څلویښت میله یا اته څلویښت میله یا شپیته میله، د احنافو عالمان عام طور باندې اته څلویښت میلو باندې عمل کوی او دا شرعی سرفر ګرځولې شوې دې چه دې سره احکام بدلیږی.

**مسئله**:- د سفر د رخصت په سلسله کښې ګنهګار او فرمانبردار برابر دی په دې وجه چه په قرآن او سنت کښې مطلق مسافر د پاره د رخصت ذکر دې خواه که هغه ګنهګار وی یا فرمانبردار وی
(هدایه ص۱۱۴ ج۱ شرح نقایه ص۱۲۲ ج۱)
حضرت امام شافعی او د بعضې نورو ائمه کرامو دا مسئله چه په ګناه کښې د سفر رخصتی نه داصلیږی دا مرجوح معلومیږی ځکه عاصی هم مکلف دې هغه ته د رخصت حق ولې حاصل نه دې؟

**مسئله**:- د سفر په حالت کښې چه کوم مونځونه قضاء شوی وی هغه به د اقامت په حالت کښې دوه رکعته کوی. او د اقامت په حالت کښې چه کوم مونځونه فوت شوی وی که په سفر کښې قضاء یې قضاء راوړی نو هغه به څلور رکعته قضاء کوی. (هدایه ص۱۱۴ ج۱، شرح نقایه ص۱۲۲ ج۱)

**مسئله**: کوم سړی چه خپل اصلی وطن پریښودلې وی اوبل وطن یې خپل اصلی وطن جوړ کړې وی او هغه خپل اصلی وطن ته کله راشی نو هغه به مونځ قصر کوی.
لکه څنګه چه رسول الله ﷺ اومهاجرین صحابه کرامو به مکې ته تشریف راوړو نو د سفر مونځ به یې کولو.

عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي إِسْحٰقَ سَمِعْتُ أَنَسًا يَقُولُ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ ﷺ مِنَ الْمَدِينَةِ إِلَى مَكَّةَ فَكَانَ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ حَتّٰى رَجَعْنَا إِلَى الْمَدِينَةِ قُلْتُ أَقَمْتُمْ بِمَكَّةَ شَيْئًا قَالَ أَقَمْنَا بِهَا عَشْرًا. (بخاری ص۱۴۷ ج۱، مسلم ص۲۴۲ ج۱)

**ترجمه**: حضرت یحیی ابن ابی اسحاق رحمة الله علیه بیان کوی چه ما دحضرت انس رضی الله عنه نه واوریدل، هغوی فرمایل چه مونږ د نبی کریم ﷺ سره مدینې نه ووتلو او مکې طرف ته تللو، نورسو ل الله ﷺ

به دوه دوه رکعته مونځ کولو. د مدینې تر واپسئ پورې (ماسپښین. مازدیګر او د ماسخوتن په مونځونو کښې) یحیی فرمایی چه ما د حضرت انس ﷺ نه پوښتنه وکړو چه تاسو مکه کښې څه وخته پورې حصار شوی وئ، نو هغوی وفرمائیل چه مونږ لسو ورځو پورې حصار شوی وو.

**مسئله**:- د خپل ښار له حدودو (میونسپل کمیټی یا کارپوریشن په حدودو کښې) نه چه کله بهر شې نو بیا هغه قصر کولې شی. همدغه شان د سفر نه په واپس راتلو باندې حدود د ښار ته چه کله داخل شو نو هغه به مقیم شی. (هدایه صه ۱۱۳ ج ۱)

**مسئله**:- مسافر سړې کچیرې منفرد وی یا امام وی نو بیا دې هغه دوه رکعته وکړی زیات دې نه کوی، که هغه څلور رکعته وکړل او په دوو رکعتو یې قعده اوله وکړه نو مونځ به یې وشی خو داسې کول غلط دی. که قعده اولی یې ونکړه نو بیا د هغه فرض به باطل شی او دا به نفل شی. او هغه د پاره به فرض دوباره کول ضرور وی. (هدایه صه ۱۱۳ ج ۱، شرح نقایه صه ۱۲۱ ج ۱).

**مسئله**:- کچیرې مسافر سړې د مقیم امام په اقتداء کښې مونځ کوی نو هغه به څلور رکعته کوی. ځکه چه پدې حالت کښې دې د امام تابع دې. (هدایه صه ۱۱۳ ج ۱، شرح نقایه صه ۱۲۱ ج ۱ کبیری صه ۵۴۲)

لیکن که د امام د اقتداء نه پس د هغه په مونځ کښې فساد راشی نو بیا به هغه دوه رکعته کوی ځکه چه هغه تبعیت (تابع کیدل) پاتې نه شو او دې په خپل حال مسافر دې.

**مسئله**:- که مسافر سړې مقیمینو حضراتو ته مونځ ورکوی نو هغه دې دوو رکعتو باندې سلام وګرځوی او هغه د پاره مستحب دی چه هغه خلقو ته ووایی چه خپل مونځونه پوره کړئ ځکه چه مونږ مسافر یو. (هدایه صه ۱۱۳ ج ۱، شرح نقایه صه ۱۲۱ ج ۱)

رسول الله ﷺ مکې والوته مونځ ورکړو اوداسې یې فرمایلې چه: (ابوداؤد صه ۱۷۳ ج ۱ مسند احمد صه ۴۳۰ ج ۴، وصه ۴۳۱، طحاوی صه ۲۲۲ ج ۱، بیهقی صه ۱۵۷ ج ۳)

**مسئله**:- مسافر چه کله خپل وطن ته راشی نو هغه مقیم شی، د څه نیت وغیره ضرورت نشته (هدایه صه ۱۱۴ ج ۱).

**مسئله**:- که مسافر یو ښار ته تلې وی او دا اراده لری چه سبا یا بله ورځ به ددې ځائ نه ځم نو هغه سړې مسافر دې او قصر به کوی اګرکه په هغې کښې ډیر وخت تیر شی لکه چه د صحابه کرامونه دا سې نقل دی (سنن الکبری صه ۱۵۲ ج ۳ عن ابن عمر ﷺ وغیرهما).

**مسئله**:- حضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه نقل دی چه آذربیجان کښې همدغه شان ترشپږو میاشتو پورې پاتې شو. او قصر به یې کولو. (عبدالرزاق صه ۵۳۳ ج ۲).

**مسئله**:- که د مسلمانانو لښکر دار حرب (چرته چه په شعائر اسلام باندې پابندی وی او احکام

دکفر غالب وی، داخل شو . او هلته د اقامت نیت وکړی نو هغه به درست نه وی بلکه هلته به هم قصر کوی . (هدایه ص۱۱۳ ج۱، شرح نقایه ص۱۲۰ ج۱)

د اکثر ائمه کرامو حضرت امام ابو حنیفه امام مالك امام احمد همدا فتوی ده .

**مسئله** :- که مسافر په یو کلی کښې یا په یو ښار کښې د پنځلسو ورځو پورې د حصاریدلو نیت کوی نو بیا به هغه مقیم شی. (هدایه ص۱۱۳ ج۱ شرح نقایه ص۱۲۰ ج۱ کبیری ص۵۴۴)

عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ إِذَا كُنْتَ مُسَافِرًا فَوَطَّنْتَ نَفْسَكَ عَلَى إِقَامَةِ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا فَأَتِمِّ الصَّلٰوةَ وَإِنْ كَانَتْ لَا تَدْرِيْ فَاقْصِرْ . (كتاب الحجه ص۱۷۰ ج۱، كتاب الاثار مترجم ص۷۶، ترمذی ص۱۰۳، مصنف ابن ابی شیبه ص۴۵۵ ج۲)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمر : . فرمایی چه کله تاسو په سفر کښې یاستئ او په خپل زړه کښې پخه اراده وکړئ چه پنځلس ورځې یا لدینه زیات په یو ځائ اقامت کول پکار دی نو بیا پوره مونځ وکړئ کچیرې تاسو ته معلومه نه وی چه څومره وخته پورې حصاریدل دی نو بیا قصر کوئ.

**مسئله** :- که یو سړې سخرګنئ کره لاړ شی نو هغه به هلته مقیم ګڼلې شی نو ځکه هغه له پوره مونځ کول پکار دی

حضرت عثمان غنی ﷺ به په دې وجه مکه کښې مقیمانه مونځ کولو لکه څنګه چه په حدیث شریف کښې راغلی دی :

اَنَّ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ صَلّٰى بِمِنٰى اَرْبَعَ رَكْعَاتٍ فَاَنْكَرَهُ النَّاسُ عَلَيْهِ فَقَالَ يٰاَيُّهَا النَّاسُ اِنِّيْ تَاَهَّلْتُ بِمَكَّةَ مُنْذُ قَدِمْتُ وَاِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ مَنْ تَاَهَّلَ بِبَلَدٍ فَلْيُصَلِّ صَلٰوةَ الْمُقِيْمِ . (مسند احمد ص۶۲ ج۱)

**ترجمه** : حضرت عثمان ﷺ په منی کښې څلور رکعته مونځ وکړو نو خلقو اعتراض وکړو ،حضرت عثمان ﷺ وفرمایل : اې خلقو! ما په مکه مکرمه کښې نکاح کړې ده کله نه چه زه راغلې یم او ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی هغوی به فرمایل : کوم سړې چه په کوم ښار کښې نکاح وکړی نو هغه ته د مقیم سړی مونځ کول پکار دی .

**مسئله** :- ښځه یا غلام او خادم په سفر کښې د خاوند او آقا اومالك تابع وی د مالك یا د خاوند چه څه نیت وی د هغې په مطابق به عمل کوی که د خاوند نیت د اقامت وی نو ښځه به هم مقیمه وی . (شرح نقایه ص۱۲۱ ج۱ کبیری ص۵۴۱).

**د سفر په حالت کښې د سنتونو او نوافلو حکم** :- په سنتو کښې خو قصر نه کیږی ځکه چه قصر د فرضو د لوازمو نه دې، الله ﷻ دآسانئ او تخفیف د پاره مقرر فرمایلې ده .

مصفی شرح مؤطا فارسی د شاه ولی الله او فتاوی عالمګیری کښې یی دا مسئله لیکلې ده چه کچیرې سفر جاری وی نو سنت وغیره پریږدئ او کچیرې وخت وی او سفر جاری نه وی نو افضل

داده چه سنت وکړئ کچیرې وې نه کړی نو څه مضائقه نشته.
البته رسول الله ﷺ نه دا ثابته ده چه رسول الله ﷺ د سحر سنت په سفر کښې هم نه دی پریښودلی په سفر او حضر کښې به هغوی ﷺ دا اداء کول .(مصفی ص۱۳۶)

# صلوۃ الخوف

**((د ویرې په وخت مونځ))**

صلوۃ خوف د سفر او حضر په دواړو حالتونو کښې کیږی، عام طور باندې د دښمن د خطرې په وخت دا صورت پیښیږی لکه څنګه چه د رسول الله ﷺ په زمانه مبارکه کښې متعدد ځله د ښمن سره د مقابلې په وخت رسول الله ﷺ صحابه کراموته صلوۃ خوف کړې دې.
او که د دښمن نه علاوه د څه درنده ځناور یا اژدها یا سیلاب وغیره ویره وی نو په داسې حالت کښې هم صلوۃ خوف ادا کیدلې شی.
د صلوۃ خوف مسئله هغه وخت پیدا کیږی کله چه ټول جماعت (فوج وغیره) یو امام پسې مونځ کول غواړی . درسول الله ﷺ په زمانه مبارکه کښې چه به کوم خلق په سفر یا جهاد کښې شریک وو د هر یو مسلمان به همدغه تمنا وه چه د رسول الله ﷺ سره دې مونځ اداء کړی.
په وروسته وقتونو کښې هم که څوك داسې امام بزرګ یا نیك صالح عالم وی او ټول فوج په هغه پسې د مونځ کولو خواهش لری نو صلوۃ خوف کیدلې شی.
او که داسې صورت نه وی نو د فوج ځان ځان له ډلې جوړولو سره هر یو ګروه ته دې ځان ځان له امام مونځ ورکړی نو د صلوۃ خوف ضرورت به نه پیښیږی ، یو ګروه دې مونځ ادا کړی او بله حصه دې د دښمن مخ نیوې وکړی او همداسې په نمبر نمبر موځ کولې شی.
**د صلوۃ خوف مختلف صورتونه** :- د صلوۃ خوف متعدد صورتونه دی په کوم صورت کښې چه هم مونځ وکړې شی نو درست دې، لکه چه صحیح احادیثو کښې ددې ټولو صورتونو ذکر دې.
صلوۃ خوف کښې چونکه د مونځ په حالت کښې غیر معمولی نقل اوحرکت وی او دا روا دې ځکه چه دا معتدل حالت نه وی بلکه غیر معمولی حالت وی ، د ضرورت په طور باندې دا شریعت برداشت کړی دی، او ددې اجازت یې ورکړې دې ، که د سفر حالت وی نو امام دې د هرې یوې ډلې سره یو یو رکعت ادا کړی. د امام به دوه رکعته شی او د مقتدیانو به یو یو رکعت د جماعت سره شی. دویم رکعت به حسب دستور ځان ځان له وکړی، اوسلام به وګرځوی.
که د اقامت حالت وی نو هرې یوې ډلې سره به امام دوه دوه رکعته وکړی. او باقی دوه رکعتونه به هغه ځان له ځان له وکړی، سلام کله د امام سره وګرځی او کله ځان له.

حضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه روایت دي چه رسول الله ﷺ صلوة خوف داسې طریقې سره ادا کړو چه یوې یو ډلې ته یې یو رکعت وکړو ،او دویمه ډله د دښمن مقابلې ته ولاړه وه ، بیا دا رومبۍ ډله د دښمن مخې ته ورغله او هغه بله ډله راغله او د رسول الله ﷺ سره شریك شول، رسول الله ﷺ هغوی ته یو رکعت وکړو، رسول الله ﷺ سلام وګرځولو، او هغه دویمې ډلې خپل دویم رکعت پوره کړو. (مسلم ص۲۷۸ ج۱).

حضرت جابر ﷺ نه روایت دی چه د قبیله جهینه د کافرو سره جهاد وو، مونږ د رسول الله ﷺ سره په جنګ کښې شریك وو ،کله چه مونږ د ماسپښین مونځ وکړو، نو مشرکانو خپل مینځ کښې مشوره وکړه، چه که مونږ په مسلمانانو باندې په یوځائ حمله وکړو نو ښځه به وی بیا مشرکانو وویل چه : (ستاتیهم صلوة هی احب الیهم من الاولاد) یعنی د هغوی داسې مونځ راروان دې (د مازدیګر مونځ راروان دې) چه د دغه مسلمانانو په نزد د خپل اولاد نه زیات هغوئ ته غوره دې ، د دغه مونځ په وخت په یو دم حملې کولو سره د هغوی ختمول پکار دی ، چه کله د مونځ وخت راغې نو رسول الله ﷺ زمونږ دوه صفونه جوړ کړل. او مشرکان د قبلې په طرف وو، بیا رسول الله ﷺ مونځ ورکړو ،او حضور ﷺ سره دې دواړو ډلو رکوع وکړه ، لیکن حضور ﷺ سره سجده رومبی صف والا وکړه. او وروستنی صف والا ولاړ پاتې شول او چه کله رومبی صف والا سجده وکړه او ودریدل نو وروستونی صف والا خپله سجده ځان له وکړه، بیا رومبی صف والا د وروستنی صف والا په ځائ راغلل بیا رسول الله ﷺ رکوع وکړه، او چه کله یې سجده وکړه نو رومبی صف والا سجده وکړه وروستنی صف والا ولاړ پاتې شول، بیا چه کله دویم صف والا هم سجده وکړه نو ټول کیناستل او حضور ﷺ د ټولو سره سلام وګرځولو. (مسلم ص۲۷۹ ج۱)

فقهاء کرام فرمایی چه کله د ویرې حالت وی نو امام دې د خلقو دوه ډلې جوړې کړی . یوه د دښمن مخامخ او دویمه ډله دې امام پسې وی ، امام به هغه ډلې ته کچیرې د اقامت حالت وی نو دوه رکعته او که چیرې سفر وی نو یو رکعت دې وکړی ، چه کله یو رکعت کښې دوه سجدې ادا شی نو دا ډله دې د دښمن مقابلې ته لاړه شی، او دویمه ډله دې راشی امام دې هغوی ته یو رکعت ورکړی . امام به په تشهد په ناسته سلام وګرځوی. او دویمه ګروه په یو رکعت د قراءة سره ادا کړی . (ځکه چه دا ډله مسبوقه ده) او د تشهد نه پس به دا سلام وګرځوی .(هدایه ص۱۲۲ ج۱،شرح نقایه ص۱۲۲ ج۱.)

د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ په روایت کښې چه په ابوداؤد ص ۱۷۷ ج۱ کښې دې ددینه هم دا طریقه مستفاد کیږی، کومه چه احنافو اختیار کړې ده .

**د ویرې په حالت کښې د ماښام مونځ** :- د ماښام په مونځ کښې به امام رومبئ ډلې ته دوه رکعته ورکوی او دویې ډلې ته یو رکعت۔ (هدایه صـ۱۲۲ ج۱شرح نقایه صـ۱۳۲ ج۱)

**مسئله** :- د جنگ په عین حالت کښې دې مونځ نه کوی، بلکه مؤخر دې کړی ۔ او که وخت خارج شی نو قضاء دې وکړی ۔ (هدایه صـ۱۳۲ ج۱، شرح نقایه صـ۱۳۳ ج۱)۔

لکه څنګه چه رسول الله ﷺ په غزوه دخندق کښې کړې وو، کله چه هغوی د څلورو مونځونو نه مشغول کړې شوی وو نو وروستو یې قضاء کړی وو، بعضې فرمایی چه دغزوه احزاب په وخت صلوة الخوف مشروع شوې نه وو، د هغې نه پس مشروع شوې دې۔

**مسئله** :- که د ویرې حالت زیات سخت وی ، نو بیا په سورلئ باندې سپاره په ولاړه ولاړه دې مونځ وکړی ،که رکوع او سجده نه شی کولې نو په اشارې سره دې وکړی، او دقبلې په طرف مخ کول هم ضروری ندی کوم خوا چه مخ وی هماغه خوا دې وکړی (هدایه ص۱۲۲ ج۱شرح نقایه صـ۱۳۳ ج۱)۔

**مسئله** :- دحضرت امام ابو حنیفه په نزد په پښو په روانه روانه مونځ کول جائزنه دی ، د (فرجالا اورکبانا) مطلب د هغوی په نزد دا دې چه په پښو په ولاړه سره په یو مقام کښی مونځ کول دی، (شرح نقایه صـ۱۳۳ ج۱)۔

حضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه نقل دی چه :

فَإِذَا كَانَ خَوْفٌ أَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ فَصَلِّ رَاكِبًا أَوْ قَائِمًا تُوْمِئُ إِيْمَاءً (مسلم ص۲۷۸ ج۱)

**ترجمه** : که ویره دهغې نه هم زیاته وی نو بیا یی په سپرلئ باندې هم وکړه یا په ولاړه په اشارې سره یی وکړه۔

# صلوة الطالب والمطلوب

که یو مسلمان د دښمن په طلب کښې په عجلت او تیزئ سره روان وی او همدغه شان که یو مسلمان مطلوب وی او هغه په تیزئ سره تښتی او دښمن د هغه په تعقب او تالاش کښې وی .نو هغه د پاره د مونځ څه حکم دې ؟

دمحدثینو او فقهاء کرامو په نزد په دې مسئله کښې تفصیل دې اکثر دا ویل کیږی چه مطلوب که چیرې په سپرلئ سپور وی نو هغه په روانه کښې په اشارې سره مونځ کولې شی او کچیرې طالب وی نو هغه به د سپرلئ نه کوز شی او په زمکه به مونځ وکړی، په سپرلئ تللو سره به د هغه مونځ درست نه وی، البته امام شافعی فرمایی،که ویره ډیره سخته وی او هغه ته دا خیال وی چه هغه به د خپلو ملګرونه پاتې اویا بې درکه شی او یا به څه سخته حادثه رامخې ته شی، نو پداسې

وخت کښې طالب د پاره هم جائز دی چه هغه په سپرلئ مونځ وکړي.
د احناف کرامو مسلك هم صاحب د بدائع لیکلې دې چه که: مطلوب په سپرلئ باندې په سپور حالت کښې وی نو مونځ جائز دې، ځکه چه تلل په دې صورت کښې حقیقتاً د سورلئ فعل دې. او دده طرف ته معنوی طور باندې منسوب کیږي، او د عذر په حالت کښې دا معاف دی. بر خلاف ددې چه که پیاده ځی یا په اوبو باندې لامبو وهي. نو دا بیا حقیقتاً دده فعل دې، نو په دې صورت کښې مونځ جائز نه دې.او که سپور طالب وی نو دې به صرف د سپرلئ په حالت کښې مونځ کوی. ځکه چه د ویرې تصور دده په حق کښې نشته، ده دپاره ممکنه ده چه دې کوز شی او مونځ وکړي.
علامه عینی لیکلی دی:
وَمَذَاهِبُ الْفُقَهَاءِ فِي هٰذَا الْبَابِ فَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ إِذَا كَانَ الرَّجُلُ مَطْلُوبًا فَلَا بَأْسَ بِصَلَاتِهِ سَائِرًا وَإِنْ كَانَ طَالِبًا فَلَا وَقَالَ مَالِكٌ وَجَمَاعَةٌ مِنْ أَصْحَابِهِ هُمَا سَوَاءٌ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يُصَلِّي عَلَى دَابَّتِهِ وَقَالَ الْأَوْزَاعِيُّ وَالشَّافِعِيُّ فِي آخَرِيْنَ كَقَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وَهُوَ قَوْلُ عَطَاءٍ وَالْحَسَنِ وَالثَّوْرِيِّ وَأَحْمَدَ وَأَبِي ثَوْرٍ (عمدة القاری ص۲۶۳ ج۶)
**ترجمه**: او د فقهاء کرامو مذهبونه په دې باب کښې (یعنی صلوة الطالب والمطلوب) کښې داسې دی: د حضرت امام ابو حنیفه په نزد که څوك مطلوب وی نو د دپاره څه حرج نشته. چه دې په خپله سپرلئ په روانه روانه مونځ اداء کړی. او که طالب وی، نو ده دپاره داسې کول روا نه دی، امام مالك او د هغه د اصحابو د یوجماعت په نزد طالب او مطلوب دواړه په دې سلسله کښې برابر دی. هر یو په خپله سپرلئ په روانه روانه مونځ کولې شی. حضرت امام اوزاعی. او امام شافعی او نور حضرات داسې وایی لکه څنګه چه امام ابو حنیفه فرمایی او دا قول د حضرت عطاء. حسن بصری، سفیان ثوری. امام احمد، او د ابو ثور دې او د امام شافعی بل قول هم منقول دې. چه که طالب ته د مطلوب د لاس نه دوتلو خطره وه، نو هغه هم په اشاره مونځ کولې شی، اوکه نه نو بیا یی په اشارې سره نشی کولې.
کتاب الام کښې د امام شافعی قول داسې راغلی دې
وَإِنْ كَانَ الْمُسْلِمُوْنَ هُمُ الطَّالِبِيْنَ لَمْ يَكُنْ لَهُمْ أَنْ يُصَلُّوا رُكْبَانًا وَلَا مُشَاةً يُوْمُوْنَ إِيْمَاءً. (کتاب الام ص۲۲۶ ج۱)
**ترجمه**: که مسلمان طالب وی (یعنی د دښمن په تلاش کښې وی)، نو هغه دپاره دا جائز نه دی چه هغه په سپرلئ باندې یا پیاده په روانه په اشارې سره مونځ وکړي.

# صلوة المريض

## «د بیمار مونځ»

که بیمار سړې د قیام کولو نه عاجز وی یعنی په ولاړه مونځ نه شی کولې نوهغه له په ناسته مونځ کول پکار دې. رکوع او سجده کول پکار ورته پکاردی. (هدایه ص۱۰۸ ج۱،شرح نقایه ص۱۱۷ ج۱، کبیری ص۲۶۱)

رسول الله ﷺ حضرت عمران بن حصین ؓ ته داسې فرمایلې وو :

صَلِّ قَائِمًا فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ فَقَاعِدًا فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ فَعَلَى الْجَنْبِ تُومِئُ إِيمَاءً. (بخاری ص۱۵۰، ج۱، ترمذی ص۸۰، ابوداود ص۱۳۷ ج۱)

**ترجمه**: په ولاړه مونځ کوه که په ولاړه یې نه شې کولې نو په ناسته یې کوه او که په ناسته کولو نه هم عاجز یې نو بیا په اړخ باندې ملاستې سره په اشاره یې کوه (یعنی هر انسان د خپل طاقت مطابق مکلف دې)

**مسئله**:- که د رکوع او سجدې کولو هم طاقت نه وی ، نو بیا په اشارې سره مونځ کوه! د رکوع په نسبت د سجدې په اشاره کښې ښه ټیټیږه ! لیکن څه څیز تندی ته کیږدې او په هغې سجده کوې نو دا صحیح ندی. (هدایه ص۱۰۸ ج۱،شرح نقایه ص۱۱۷ ج۱، کبیری ص۲۶۲)

د رسول الله ﷺ فرمان دې

إِنْ قَدَرْتَ أَنْ تَسْجُدَ عَلَى الْأَرْضِ فَاسْجُدْ وَإِلَّا فَأَوْمِ إِيمَاءً وَاجْعَلِ السُّجُودَ أَخْفَضَ مِنَ الرُّكُوعِ.

**ترجمه**: که ستا طاقت وی چه ته په زمکه سجده وکړې نو ستا دپاره په زمکه سجده کول پکاردی .او که ددې طاقت دې نه وی نو بیا په اشاره سره سجده کوه او سجده د رکوع نه زیاته ټیټه کوه.

عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ إِذَا كَانَ الْمَرِيضُ لَا يَسْتَطِيعُ رُكُوعًا وَلَا سُجُودًا أَوْمَأَ بِرَأْسِهِ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ وَهُوَ يُكَبِّرُ.

(مصنف عبدالرزاق ص۴۷۷ ج۲)

**ترجمه**: حضرت ابن عمر ؓ فرمایې چه کله مریض د رکوع او سجدې کولو طاقت نه لرې نو د سر په اشارې سره دې رکوع او سجده وکړی.او تکبیر دې هم ووایی

**مسئله**:- که داسې کمزوری وی چه په ناسته هم نه شې کولې نو بیا په شا باندې (ستونې ستغ) سمله او په ملاسته یې وکړه او پښې د قبلې طرف ته کړه. نو داسې هم جائز دی او رکوع او سجده په اشارې سره وکړه.(هدایه ص۱۰۹ ج۱، کبیری ص۲۶۲)

اَنَّ ابْنَ عُمَرَ قَالَ يُصَلِّي الْمَرِيْضُ مُسْتَلْقِيًا عَلَى قَفَاهُ تَلِيْ قَدَمَاهُ الْقِبْلَةَ. (مصنف عبدالرزاق ص۴۷۲ ج۲، دار قطني ص۴۳ ج۲)

**ترجمه** حضرت ابن عمر ﷛ فرمايي چه مريض به په ستونې ستغ څملی او مونځ به کوی ، او پښې به قبلې ته کړی.

**مسئله** :- که اړخ باندې څملې او مخ قبلې ته وګرځوې نو هم جائز دی. (شرح نقایه ص۱۱۷ ج۱)

**مسئله** :- که چیرې بیمار سره دویم سړې نه وی او په خپله هغه د کعبې طرف ته مخ کولې هم نه شی، نو چه کوم اړخ ته د مریض مخ وی هغه اړخ ته هغه مونځ کولې شی.

**مسئله** :- که چیرې په سر باندې د اشارې کولو طاقت یی هم نه وی نو په داسې حالت کښې به له هغه نه مونځ مؤخر کیږی، سترګې، زړه او د خیال اشاره به معتبره نه وی داسې حالت نه دې مونځ مؤخر کړی کچیرې تندرست شی نو قضاء دې وکړی . اوکه نه نو د مرګ د واقع کیدو په صورت کښې الله ﷻ غفور الرحیم دې. (هدایه ص۱۰۹ ج۱ شرح نقایه ص۱۱۸ ج۱ کبیری ص۲۶۳)

**مسئله** :- کچیرې یو سړې په قیام باندې قادر وی لیکن رکوع او سجدې باندې قادر نه وی نو په هغه باندې به قیام لازم نه وی بلکه هغه دې په ناستې سره په اشاره باندې مونځ وکړی (هدایه ص۱۰۹ ج۱ کبیری ص۲۶۶)

**مسئله** :- کچیرې تندرست سړې په ولاړه باندې مونځ کوی په هغه باندې بیماری حمله وکړی او هغه په اودې دو باندې قادر نه وی نو هغه دې باقی مانده مونځ په ناسته د رکوع او سجدو سره یا اشارې سره پوره وکړی او که چرې په دې باندې هم قادر نه وی نو بیا دې په ملاسته وکړی .(هدایه ص۱۰۹ ج۱ شرح نقایه ص۱۱۸ ج۱ کبیری ص۲۶۹)

**مسئله** :- کوم سړې چه د بیماریٔ په وجه په ناسته د رکوع او سجدو سره مونځ کوی کچیرې په دې قوت کښې دې تندرست شی نو باقی مانده مونځ دې په ولاړدینی مونځ باندې بناء کړی. او په ولاړه دې اداء کړی. (هدایه ص۱۰۰ ج۱ شرح نقایه ص۱۱۸ ج۱ کبیری ص۲۶۹)

**مسئله** :- کوم سړې چه په ولاړه نفل مونځ کوی او په مینځ کښې ستړې شی نو په همسا سره یا په دیوال باندې په تکیه لګولو سره مونځ کولې شی. یا دې کینی او مونځ دې پوره کړی دا د هغه په حق کښې عذر دې.

**مسئله** :- او که بغیر د عذر نه کینی نو دا به مکروهه وی. هدایه ص۱۰۹ ج۱ کبیری ص۲۷۱)

**مسئله** :- په کشتۍ کښې سپور سړی د پاره بغیر دعذرنه په ناسته مونځ کول د حضرت امام ابو حنیفه په نزد جائز دی اګر چه افضل په ولاړه سره مونځ کول دی، او صاحبین فرمایی چه بغیر د

عذر نه جائز نه دی. (هدایه ص۱۱۰ ج۱ شرح نقایه ص۱۱۸ ج۱)

**مسئله:-** که چیرې په ریل ګاډی کښې هم په ولاړه مونځ نه شی کولې نو په ناسته دې وکړی، بعضې علماء کرام په دواړو صورتونو کښې اجازت ورکوی.

**مسئله:-** که یو سړې بې هوشه شو پنځو مونځونو پورې یا د هغې نه څه کم وخته پورې نو دا مونځونه به د هوش راتلو نه پس قضاء کوی. که د پنځو نه زیات وی نو د هغه په ذمه به قضاء نه وی ځکه چه پدې کښې حرج دې. (هدایه ص۱۱۰ ج۱ شرح نقایه ص۱۱۸ ج۱ کبیری ص۲۶۳)

# صلوة الجنازه

## «د جنازې مونځ»

(جَنازه) په زور سره مړی ته وایی او (جِنازه) په زور سره کټ ته وایی چه مړې په کښې وړلې شی، او نعش هم دې ته وایی.

کوم سړې چه قریب الموت وی نو سنت خبره داده چه د هغه مخ د قبلې په طرف وګرځولې شی. لکه څنګه چه حضرت ابو قتاده ﷺ بیان کوی چه رسول الله ﷺ کله هجرت وکړو اومدینې منورې ته یی تشریف راوړو نو هغوی ﷺ د خپل یو صحابی (حضرت براء بن معرور ﷺ) په هکله پوښتنه وکړه، نو خلقو ورته وویل چه هغه وفات شوې دې او هغه د دوو خبرو وصیت کړې وو. یوه دا چه د هغه دریمه حصه مال په خیرات کښې ورکړې شی، او دویم دا وصیت یی کړې وو چه د مرګ په وخت زما مخ د قبلې په طرف وګرځوئ، نو رسول الله ﷺ وفرمایل چه هغه فطرت بیا موندلې دې یعنی همدا د سنت طریقه. (شرح نقایه ص۱۳۱ ج۱، مستدرک حاکم ص۳۵۳ ج۱)

ښی طرف ته مخ ګرځول پکار دی او بعضې فقهاء کرام فرمایی چه سر پورته کولو سره مخ په قبله بالکل نیغ کیدل پکار دی ځکه چه پدې طریقې سره روح وتل زیات آسان وی.

او په دې حالت کښې ده ته د کلمه شهادت تلقین کول پکار دی (هدایه ص۱۲۳ ج۱ شرح نقایه ص۱۳۱ ج۱، کبیری ص۵۷۶)

د رسول الله ﷺ فرمان دې چه: (لقنوا موتاکم لا اله الا الله). (مسلم ص۳۰۰ ج۱، ترمذی ص۱۶۰، ابوداؤد ص۸۸ ج۲)

ترجمه: خپلو مړو ته د (لا اله الا الله) تلقین وکړئ (یعنی دا کلمه ورته وریاده کړئ).

د تلقین مطلب دادې چه دده په وړاندې په څه اندازه اوچت آواز سره دا کلمه دوه یا درې ځله ووایئ د دې په خاطر چه دده توجه ددې طرف ته را وګرځی او دې یی په خپله ژبه ووایی ځکه چه د رسول الله ﷺ ارشاد دې چه: (مَن کَانَ آخِرُ کَلَامِهِ لَآاِلٰهَ اِلَّا اللهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ)

**ترجمه**: د چا آخري خبره چه «لااله الاالله» شوه هغه به جنت ته داخل شي. **(ابوداؤد ص۸۸ ج۲، ترمذي ص۱۶۱، مستدرك حاكم ص۳۵۱ ج۱)**.

د تلقين معنى دا نه ده چه هغه سړي ته حكم وكړي چه دا كلمه وه وايي ځكه چه دغه وخت په ده باندې سختي وي دده د حال سره دا خبره مناسبه نه ده.

كله چه دده روح قبض كړې شي نو په يوه ټوټه وغيره سره دې دده زنه (ژامه) وتړلې شي، او سترګې دې ورته بندې كړې شي، كله چه روح پورته ځي نو نظر هغې پس لګيدلې وي.

رسول الله ﷺ فرمايي: د خپلو مړو سترګې بندې كړئ او هغه وخت ښې دعا ګانې كوئ، ځكه چه فرښتې آمين وايي. **(مسلم ص۳۰۱ ج۱، ابن ماجه ص۱۰۵، مستدرك حاكم ص۳۵۲ ج۱)**

او دده اندامونه (لاسونه او پښې) دې نيغ كړې شي.

**مړي ته د غسل وركولو مسنونه طريقه**:- د غسل وركولو نه وړاندې دې د كفن او د قبر انتظام وكړې شي، او كله چه مړې لمبوې نو هغه په تخته واچوه. او د جامو لرې كولو سره سره پرې ځه كپړه د نوم نه تر زنګنونو پورې په اندازه وغوړوه، چه د غه اندازه بدن يې پټ وي. د لمبولو په وخت مړي ته اول استنجاء وكړه.

ليكن دده د ورنونو او د استنجاء د ځاې سره خپل لاس مه لګوه، اونظر ورته هم مه كوه بلكه خپل لاس په ځه ټوټه كښې تاو كړه او چه كومه ټوټه د نوم نه لاندې تر زنګنونو پورې پرته ده. د هغې لاندې خپل لاس سره صفايي وكړه، بيا ورته اودس وكړه. ليكن نه ورته خوله كښې اوبه واچوې او نه په پوزه كښې. نه ورته د ورغوي پورې لاسونه ووينځې. بلكه اول ورته مخ ووينځه. بيا لاسونه تر څنګلو پورې، بيا د سرمسح. بيا دواړه پښې. اوكه درې ځله مالوچ لوند كړې او په غاښونو او اُورو يې ورته ووهې. او په پوزه كښې يې ورته ووهې نو هم جائز دي. او كه مړې د جنابت په حالت كښې يا دحيض او نفاس په حالت كښې مړ وي. نو بيا يې پدې طريقې سره خولې او پوزې ته اوبه رسول ضروري دي، او خوله او پوزه كښې ورته مالوچ كيږده، چه د اودس وركولو يا لمبولو په وخت اوبه ورننشي، كله چه اودس وشو. نو سر په ګل خيرو سره يا په بل څيز سره صفا كړه. لكه: صابو ن وغيره مړلو سره، د صفا كولو نه وروسته مړې په چپ طرف كړه. او د بيرې په پانو سره پخې شوې نيم ګرمه اوبو باندې يې درې ځله د سر نه تر پښو پورې ولمبوه تردې چه اوبه هغه بل طرف ته ورسيږي، بيا يې په ښي اړخ واچوه. او همدغه رنګې د سر نه تر پښو پورې پرې درې ځله دومره اوبه واچوه چه هغه بل اړخ ته ورسيږي. ددينه پس د مړي په ګيډه په قراره قراره لاس ووهه. كه څه ګندګي راووتله نو هغه وه مينځه. او په اودس او غسل كښې ددې په وتلو سره څه نقصان نه راځي. اوس يې دوباره مه لمبوه، ددينه پس يې په چپ اړخ واچوه، او د

کافورو اوبه پرې د سرنه تر پښو پورې درې ځله واچوه. بیا یې ټول بدن په څه کپړه وغیره سره وچ کړه، او کفن ورته د سنت طریقې مطابق ورکړه.

**مسئله** :- که د بیرې د پانو سره پخې شوې اوبه نه وی نو ساده اوبه کافی دی. لدې سره دې درې ځله پدغه طریقه ولمبولې شی. که یو ځل ټول بدن وه مینځې نو هم فرض ادا کیږی.

**مسئله** :- او په سر کښې ورته ږمنځ مه وهه، او مه ورته نوکونه پرې کوه او مه د څه ځائ ویښته.

**مسئله** :- که کوم سړې مړ شو او په سړیو کښې څوك لمبولو والا نه وو نو د خپلې بی بی نه علاوه بلې ښځه د پاره دده لمبول جائز نه دی اگر چه محرم (مور، خور، لور.) وی که بی بی یې هم نه وی نو هغه ته دې تیمم ورکړې شی.

که د چا خاوند مړ شی نو د هغه د ښځې د پاره د هغه لمبول او کفن کول درست دی. او که د چا ښځه مړه شی نو خاوند لره د هغې په بدن پورې لاس لگول هم درست نه دی، البته کتل ورته درست دی. او د جامې د پاسه لاس لگول ورته هم درست دی.

**مسئله** :- بهتره داده چه د چا رشته د مړی سره زیاته نزدې وی هغه دې ولمبوی. او که هغه یې نشی لمبولې نو څوك دیندار دې ولمبوی.

**مسئله** :- که څوك په دریاب کښې ډوب شو او مړ شو. نو دې چه څه وخت را وه ویستلې شی نو ده ته غسل ورکول ضروری دی په اوبو کښې ډوبیدل د ده دپاره کافی نه دی.

د مړی د غسل پورته ذکر شوې مسئلې د «بهشتی زیورص ۴۰، ۴۱. هدایه ۱۲۳ ج۱. شرح نقایه ص ۱۳۱ تا ۱۳۲ ج۱. کبیری ص ۵۷۶ تا ۵۸۰» نه اخستلې شوې دی.

**مسئله** :- که څوك د عادل حاکم خلاف بغاوت کولو سره مړ کړې شی. یا په غلا کښې مړ کړې شی نو داسې سړی ته به غسل ورکولې شی او د جنازې مونځ به پرې نه شی کولې.

بعضې فقهاء دا فرمایی چه نه به ده ته غسل ورکولې شی، او نه به پرې جنازه کولې شی. لکه څنگه چه حضرت علی ﷺ د نهروان د خوارجو سره کړی وو. کله چه خلقو پوښتنه وکړه چه جناب! آیا دا خلق کافر دی نو وې فرمایل نه! زمونږ ورونه دی لیکن دوی سرکشی کړې ده.

لیکن دوی سره دا معامله باید هغه وخت وشی کله چه دا خلق د بغاوت په دوران او د غلا په دوران کښې ووژلې شی. که حاکم دوی گرفتار کړی او بیا دوی مړه کړی نو بیا به دوی ته غسل هم ورکولې شی او د جنازې مونځ به پرې هم کولې شی. (شرح نقایه ص ۱۳۳ ج۱)

**مسئله** :- خودکشی کونکی ته به غسل هم ورکولې شی او جنازه به پرې هم کولې شی. البته حاکم یا خطیب یا کوم بل لوې سړې به پرې جنازه نه کوی. بلکه یو عادی سړې او عام مسلمان به یې د جنازې مونځ ورکړی.

**مسئله** :- څوك چه رجم کړې شی هغه ته به هم غسل ورکولې شی. او جنازه به پرې هم کولې شی

لکه څنګه چه حضرت ماعز ﷺ رجم کړې شوې وو، نو خلقو رسول الله ﷺ نه پوښتنه وکړه چه ده سره باید څنګه سلوك وکړې شي؟ هغوی ﷺ وفرمایل : هغه څه وکړئ کوم چه تاسو له نورو مړو سره کوئ، یعنې غسل ،کفن خوشبو، مونځ وغیره ټول یې پوره کړئ (مصنف ابن ابی شیبه ص۲۵۴ ج۳)

**مسئله** :- مړی ته د غسل ورکولو نه پس د هغه په ګیره او سر دې خوشبو ولګولې شي او د سجدو په ځایونو دې ورته کافور ولګولې شي. (هدایه ص۱۲۴ ج۱، شرح نقایه ص۱۳۲ ج۱، کبیری ص۵۷۹)

**د کفن مسائل** :- د مړی د غسل نه پس دې مسنون جامو کښې کفن کړې شي.

د سړی د پاره د مسنون کفن درې جامې دی . ازار ، قمیص او غټ څادر (لفافه) او د ښځو د پاره مسنون کفن کښې دې د دوو جامو اضافه وکړې شي. یو سربند (لوپټه) او دویم سینه بند . (هدایه ص۱۲۴ ج۱، شرح نقایه ص۱۳۲،۱۳۳ ج۱، کبیری ص۵۸۰)

**مسئله** :- مړې که صرف دوه جامو یعنې ازار او لفافه کښې کفن کړې شي نو جائز دی. او دا کفن دکفایت دې همدارنګه د ښځې کفن د کفایت درې جامې دی . یو ازار . دویم څادر، دریم لوپټه .(هدایه ص۱۲۴ ج۱،شرح نقایه ص۱۳۳)

**مسئله** :- سړی ته بغیر د مجبورئ نه د دوو جامو نه کم او ښځې ته د درې جامو نه کم کفن ورکول مکروه دی. البته د مجبورئ په وجه داسې کول جائز دی. (هدایه ص۲۱۳ ج۱،درمختار ص۱۲۱ ج۱)

**د کفن کولو طریقه** :- د سړی د کفن کولو طریقه داده چه :

اول به لفافه وغوړولې شي. بیا د هغې د پاسه ازار. بیا قمیص . نو اول به ورته قمیص واچولې شي. بیا ازار . او د ټولو د پاسه لفافه .

او د ښځې د کفن کولو طریقه داده چه

اول څادر وغوړوه ، بیا ازار د هغې د پاسه قمیص ، بیا مړې په دې واچوه . اول ورته قمیص واچوه. بیا د هغې د سر ویښته دوه حصې کړه او د قمیص د پاسه یې په سینه واچوه. یوه حصه ښی طرف ته اویوه حصه چپ طرف ته بیا لوپټه (سربند) په سر او ویښتو واچوه . او هغه مه تړه، او راغونډوه یې هم مه. بیا ازار راغونډ کړه . اول چپ طرف راغونډ کړه، بیا پرې ښې طرف راواړوه، د هغې نه پس سینه بند وتړه بیا څادر راغونډ کړه اول چپ طرف ته بیا ښی طرف ته. (بهشتی زیور)

**مسئله** :- که په لاره کښې د کفن د خلاصیدلو خطره وی نو په پټو ،سر او ملا کښې یې وتړه او په قبر کښې کینبودلو سره یې بیا خلاص کړه . (هدایه ص۱۲۴ ج۱شرح نقایه ص۱۳۳ ج۱)

**مسئله** :-ازار د سر نه واخله تر پښو پورې کیدل پکار دی، او څادر (لفافه) به ددینه یو لاس لوېه وی، او قمیص د مرئ نه واخله تر پښو پورې وی لیکن پدې کښې غاړه وی او لستوڼي نه وی، او

د ښځې د پاره لدې نه علاوه سربند (لوپټه) درې لاسه اوږده وی او سینه بند د سینو نه واخله تر ورنونو پورې پلن او دومره اوږد وی چه د بدن نه راتاو شی. (بهشتی زیور)
بیا به مړې په کټ باندې واچوې او جنازې د پاره به یې حاضر کړې.

**د جنازې کټ ته اوږه ورکول او د جنازې نه وروسته تلل** :- مستحب دادی چه د جنازې د کټ څلور واړه طرفونه داسې اوچت کړی چه د مړی دکټ رومبۍ ښۍ پښه ده دجنازې د پورته کوونکی په ښۍ اوږه باندې وی او لس قدمه لاړ شی اوبیا د کټ وروستۍ پښه په چپه اوږه باندې واخلی او لس قدمه لاړ شی اوبیا دجنازې رومبۍ چپه پښه په خپله چپه اوږه باندې واخلی او لس قدمه لاړشی اوبیا دهغې وروستۍ پښه په خپله چپه اوږه باندې واخلی او لس قدمه لاړشی. (شرح نقایه ص۱۲۷ ج۱ کبیری ۵۹۲، در مختار ص۱۲۳ ج۱)

قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ مَنِ اتَّبَعَ جَنَازَةً فَلْيَحْمِلْ بِجَوَانِبِ السَّرِيْرِ كُلِّهَا فَإِنَّهُ مِنَ السُّنَّةِ ثُمَّ إِنْ شَاءَ فَلْيَتَطَوَّعْ وَإِنْ شَاءَ فَلْيَدَعْ. (ابن ماجه ص۱۰۶)

**ترجمه** : حضرت عبد الله بن مسعود ؓ فرمايي چه کله په تاسو کښې څوك د جنازې سره ځی نو هغه ته د څلور واړو پښو نیول پکار دی د هغې نه پس دې په خپلې مرضۍ جنازه پورته کړی یا دې پریږدی.

**مسئله** :- صحیح خبره داده چه د جنازې نه وړاندې تلل هم جائز دی. ښی او چپ طرف ته هم او وروستو هم. البته د امام ابو حنیفه. او د امام اوزاعی مسلك دادې چه وروستو تلل زیات افضل دی. حضرت امام سفیان ثوری فرمايي چه دواړه خبرې برابرې دی. او امام مالك، امام شافعی، او امام احمد فرمايي چه وړاندې تلل زیات افضل دی (شرح نقایه ص۱۲۶ ج۱).

**مسئله** :- په جنازه کښې سرعت (جلتی) افضل دې (هدایه ص۱۲۶ ج۱، شرح نقایه ص۱۲۷ ج۱، کبیری ص۵۹۲)

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ أَسْرِعُوْا بِالْجَنَازَةِ فَإِنْ تَكُ صَالِحَةً فَخَيْرٌ تُقَدِّمُوْنَهَا وَإِنْ تَكُ سِوٰى ذٰلِكَ فَشَرٌّ تَضَعُوْنَهُ عَنْ رِقَابِكُمْ. (بخاری ص۱۷۶ ج۱، مسلم ص۳۰۶ ج۱، موطا امام مالك ص۲۲۴)

**ترجمه** : حضرت ابو هریره ؓ نه روایت دې چه د رسول الله ﷺ ارشاد دې: جنازه په تیزۍ سره وړئ (خو په ښه طریقه، په ډیرو خوزولو سره وړل نه دی پکار) که هغه نیك وی نو تاسو هغه بهترۍ طرف ته وړئ او که هغه بد وی نو تاسو په تیزۍ سره شر د خپلو اوږو نه وغورزوئ.

**مسئله** :- د جنازې سره دتللو په وخت په اوچت آواز سره ذکر کول بدعت او مکروه دی.

(السیر الکبیر مع شرح ۸۹ ج۱، شرح نقایه ص۱۳۸ ج۱، در مختار ص۱۲۴ ج۱، الجوهر النیرة، فتح القدیر ص۳۶۹ ج۱،

**فتاوی شامي ص۶۵۸ ج۱، مطبوعه کوئټه. فتاوی عالمګيري مترجم اردو ۲۵۷ ج۱، تفسير ابن کثير ۲۱۹ ج۲).**

**په جومات کښې د جنازې د مونځ ادا کولو حکم** :- د امام شافعي مسلك دا دې چه په جومات کښې د جنازې مونځ کول بغير د کراهيت نه جائز دې، د هغوی استدلال ددې حديث نه دې چه د حضرت سعد بن ابی وقاص ﷺ جنازه په جومات کښې وکړې شوه، او همدارنګې رسول الله ﷺ د بيضاء د دوارو زامنو حضرت سهيل ﷺ او د هغه د ورور جنازه په جومات کښې کړې وه، لدينه علاوه د شيخينو د جنازې مونځ هم په جومات کښې شوې وو.

ليکن حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله او امام مالك رحمه الله فرمايي چه د جنازې مونځ په جومات کښې نه دی کول پکار ، د رسول الله ﷺ په زمانه مبارکه کښې عام طور باندې په جومات کښې د جنازې مونځ نه ادا کيدلو.

د دې د پاره د جومات نه بهر ځائ مقرر وو، په هغې کښې به اداء کيدله.

له همدې کبله متبادره دا ده چه حضرت سهيل ﷺ او د هغوی ورور يا د حضرت سعد ﷺ او د شيخينو جنازه په جومات کښې د څه عذر له کبله وه. مثلاً باران وغيره يا څه بله وجه وه مثلاً د هغوی دفن هم هلته وو.

په اصل کښې په دې مسئله کښې ډير تفصيل دې، مثلاً په جومات کښې د جنازې مونځ فقهاء کرام په هغه صورت کښې مکروهه ګڼي کله چه مړې د جومات دننه پروت وی، او د جومات د ملوث کيدلو انديښنه وی. ليکن که مړې د جومات نه بهر وی نو بيا دا اختلاف ډير سپك دې.

بعضې فرمايي چه مکروه تنزيهی دې يا غير اولی دې، له دې کبله چه رسول الله ﷺ اکثر مونځ د جنازې له مسجد نه بهر کولو. لهذا افضل دادی چه د جومات نه بهر وشی. ليکن که مړې د جومات نه بهر وی او امام هم بهر وی او يو صف هم بهر وی باقي خلق په جومات کښې وی نو بيا هيڅ وجه نشته چه په دې صورت کښې دې د جنازې مونځ مکروه شی. کومو فقهاء کرامو چه د جنازې د مونځ په کراهيت باندې دادليل پيش کړې دې چه جومات صرف د فرض مونځ ادا کولو دپاره دې، نو دا دليل کمزورې دې ځکه چه په جومات کښې نوافل دعا او مختلف قسم طاعات، د دين تعليم . دقرآن اوسنت درس،وعظ . قضاء (فيصلې) وغيره ټول روا دی . نو جنازه به ولې روا نه وی.

**مسئله** :- کچيرې د جومات د تاسيس اوبنياد په وخت کښې داسې قسم نيت وکړې شی او د جومات د محراب نه بهر ځائ جوړ کړې شی چه په دې مقام کښې جنازه وغيره به کيښودلې شی او ادا کولې به شی.نو بيا د مسئلې نوعيت نور هم زيات د دې تقاضاء کوی ، چه خلاف اولی خبره هم نه دده. البته په دې کښې هيڅ شك نشته کچيرې څه عذر هم نه وی او د جومات نه بهر ځائ هم وی

نو بیا افضل هم دا خبره ده چه جنازه هم هلته وشي. بعضي فقهاء په جومات کښې په هر صورت کښې د جنازې مونځ مکروه ګڼلې دې دا درسته نه ده بلکه دا یو قسم ته تشدد او تعمق دې چه هغه د شریعت د مزاج نه منافي دې.

کوم حدیث چه پدې باره کښې پیش کیږی، چه څوک په جومات کښې د جنازې مونځ کوی دهغه مونځ نه کیږی یا ورته ثواب نه ورکول کیږی، نو دغه روایت ته محقق ابن همام او نورو حضراتو هم ضعیف ګرځولې دې، لدینه استدلال درست نه دې لکه چه ملا علی قاری په نقایه کښې ددې په شرح کښې لیکلی دی چه که مړې د جومات نه بهر کیښودلې شی اوامام هم د جومات نه بهر ودریږی اود هغه سره یو صف هم د جومات نه بهر وی، نو په دې کښې د مشائخو اختلاف دې:

بعې وایی مکروهه نه دې ځکه چه په دې کښې د جومات د تلویث خطره نشته، او بعضې فرمایی بیا هم مکروه دې ځکه چه جومات د فرائضو د ادا کولو د پاره جوړ کړې شوې دې د فرضو نه علاوه نورې څه خبرې د عذر په حالت کښې اداء کیدې شی اوبغیر له عذر نه صحیح ندی لیکن ړومبئ وجه (د عدم کراهیت) زیاته اولی ده ځکه چه په جومات کښې نوافل او نور قسمونه طاعات او د دعواتو اصناف مکروهه نه دی.

مسجد حرام ددې حکم نه مستثنی دې ځکه چه هغه د فرضو، جمعې، اخترونو، صلوة کسوف خسوف او صلوة جنازه. استسقاء ټولو د پاره دې، او دا خبره ددې د عظمت په وجه ده ځکه چه هغه قبله ده او مورد د انوارو او تجلیاتو دې هلته چه کوم مقبولیت دې هغه په نورو مقاماتو کښې نشته. (شرح نقایه ص۱۳۷ ج۱).

**د جنازې د مونځ د امامت حقدار څوک دې؟** :- احق بالامامت د ټولو نه وړاندې خلیفه، سلطان او مسلمان اعلی حاکم دې. (هدایه ص۱۲۵ ج۱، شرح نقایه ص۱۳۶ ج۱، کبیری ص۵۸۳)

حضرت حسین ؓ سعید بن العاص ؓ لره جنازې کولو دپاره وړاندې کړې وو کله چه د حضرت حسن ؓ وفات شوې وو ځکه چه حضرت سعید ؓ په هغه وخت د مدینې والی وو. (شرح نقایه ص ۱۳۶ ج۱، کبیری ص۵۸۳).

**مسئله** :- د سلطان نه پس د ښار قاضی زیات حقدار دې ځکه چه د هغه ولایت عامه وی، بیا د محلې د جومات امام زیات حقدار دې ځکه چه په ژوند کښې په هغه پسې مونځ کوی

لدینه پس د ولی نمبر دې چه مړی ته نزدې وی. زوې. پلار، حقیقی ورور، بیا علاتی ورور وغیره. (هدایه ص۱۲۵ ج۱، شرح نقایه ص۱۳۶ ج۱، کبیری ص۵۸۳)

**مسئله** :- که ولی د جنازې مونځ کړې وو نو بیا نورو ته اختیار نشته چه دوباره یې وکړی او که

ولې نه وي کړې نو هغه دوباره هم کولې شي.

**د جنازې د مونځ د اداء کولو طريقه**:- د جنازې مونځ په هر يو مسلمان سړي، ښځې، ماشوم باندې کول فرض کفايه ده(شرح نقايه صـ۱۳۴ ج۱، کبيري ۵۸۳)

او ددې طريقه دا ده چه:

ددې څلور تکبيرونه وي رومبې تکبير تحريمې نه پس ثناء او تحميد ، اودويم تکبير نه پس درود شريف، اودريم تکبير نه پس دعاء ده او څلورم تکبير نه پس سلام دې.

امام محمد په کتاب الاثار کښې د حضرت ابراهيم نخعي قول نقل کړې دې چه په رومبي تکبير باندې د الله ﷻ ثناء ده ، اودويم تکبير نه پس په حضور ﷺ درود اودريم تکبير ويلو باندې د مړي د پاره دعا ، او څلورم تکبير باندې سلام دې (کتاب الاثار مترجم اردو صـ۹۲)

عَنِ الشَّعْبِيِّ قَالَ اَلتَّكْبِيْرَةُ الْاُوْلٰى عَلَى الْمَيِّتِ ثَنَاءٌ عَلَى اللّٰهِ وَالثَّانِيَةُ صَلَاةٌ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ وَالثَّالِثَةُ دُعَاءٌ لِلْمَيِّتِ وَالرَّابِعَةُ تَسْلِيْمٌ. (مصنف عبد الرزاق ص۴۹۱ ج۳، مصنف ابن ابي شيبه ص۲۹۵ ج۳)

**ترجمه**: د حضرت امام شعبي رحمه الله قول دې چه د اول تکبير نه پس د الله ﷻ ثناء ده او ددويم تکبير نه پس په رسول الله ﷺ درود شريف ليږل دي او دريم تکبير نه پس مړي د پاره دعا ده او څلورم تکبير نه پس سلام دې.

**د جنازې تکبيرونه**:- په جنازه کښې څلور تکبيرونه دي،(هدايه صـ۱۲۵ ج۱، شرح نقايه صـ۱۳۴ ج۱، کبيري صـ۵۸۵)

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او د حضرت ابراهيم نخعي نه نقل دي چه د صحابه کرامو رضي الله عنهم د اکثريت خلقو د جنازې په څلورو تکبيراتو باندې اتفاق دې (مصنف ابن ابي شيبه صـ۳۰۱ ج۳)

حضرت عمر رضي الله عنه حضرت علي رضي الله عنه عبدالله بن مسعود رضي الله عنه براء بن عازب رضي الله عنه ابو هريره رضي الله عنه عبدالله بن عباس رضي الله عنه زيد بن ثابت رضي الله عنه نه منقول دي چه هغوی به هم جنازه کښې څلور تکبيرونه ويل.(مصنف ابن ابي شيبه صـ۳۰۰ تا ۳۰۲ ج۳).

امام ترمذي ليکلي دي:-

وَالْعَمَلُ عَلٰى هٰذَا عِنْدَ اَكْثَرِ اَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ ﷺ وَغَيْرِهِمْ يَرَوْنَ التَّكْبِيْرَ عَلَى الْجَنَازَةِ اَرْبَعَ تَكْبِيْرَاتٍ وَهُوَ قَوْلُ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ وَمَالِكِ بْنِ اَنَسٍ وَابْنِ الْمُبَارَكِ وَالشَّافِعِيِّ وَاَحْمَدَ وَاِسْحٰقَ. (ترمذي ص۱۲۶)

**ترجمه**: او په دې باندې د اکثر اهل علمو عمل دې د حضور ﷺ د صحابه کرامو رضي الله عنهم او د هغوی نه علاوه د نورو حضراتو (تابعينو وغيره رحمهم الله) چه په جنازه کښې څلور تکبيرونه دي او همدا قول دې

د حضرت امام سفیان ثوری رحمه الله او امام مالك رحمه الله او د عبدالله بن مبارك رحمه الله، اود امام شافعي رحمه الله اود امام شافعي رحمه الله اود حضرت اسحاق رحمه الله)
د تکبیراتو په څلورو کیدلوکښې دا خبره ده چه د رسول الله ﷺ نه د څلورو نه زیات (د څلورو نه تراتو پورې) د تکبیراتو هم ثبوت موندل. یا خو د خاصو حضراتو د خصوصیت په وجه داسې شوی وو او یا په دې وجه چه تر دغه وقته پورې تشریع (څه خاص قانون) نه وو. لیکن کومه جنازه چه هغوی ﷺ په خپل ژوند کښې آخری اداء کړې وه نو په هغې کښې یې څلور تکبیرونه ویلې وو.

**د جنازې په تکبیرونو کښې لاسونه پورته کول**:- لاسونه به صرف په ړومبی تکبیر کښې پورته کوی او نورو تکبیرونوکښې به یې نه پورته کوی. **(شرح نقایه صه ۱۳۵ ج ۱ کبیری صه ۵۸۸ فتاوی قاضیخان صه ۹۳ ج ۱)** لکه څنګه چه امام ابوحنیفه، سفیان ثوری او امام مالك فرمایی او د بعضو په نزد بانې هر تکبیر سره رفع الیدین دې لکه څنګه چه امام احمد رحمه الله او امام شافعي رحمه الله فرمایی، احناف د لاندینی روایاتو نه استدلال کوی.

**عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَبَّرَ عَلٰى جَنَازَةٍ فَرَفَعَ يَدَيْهِ فِیْ اَوَّلِ تَكْبِيْرَةٍ ثُمَّ وَضَعَ الْيُمْنٰى عَلَى الْيُسْرٰى،**
**(ترمذی ص ۱۴۳، دار قطنی ص ۷۵ ج ۲، بیهقی ص ۳۸ ج ۴)**

**ترجمه**: حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به کله د جنازې مونځ کولو نو ړومبی تکبیر سره به یې لاسونه پورته کول او بیا به یې ښې لاس په چپ لاس کیښودلو.

**عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ عَلَى الْجَنَازَةِ فِیْ اَوَّلِ تَكْبِيْرَةٍ ثُمَّ لَا يَعُوْدُ. (دار قطنی صه ۷۵ ج ۲)**

**ترجمه**: حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ به د جنازې په وخت ړومبی تکبیر سره لاسونه پورته کول او بیا به یې دوباره لاسونه نه پورته کول.

علامه ابن حزم لیکلې دی:-

**وَلَا تُرْفَعُ الْيَدَانِ فِی الصَّلٰوةِ عَلَى الْجَنَازَةِ اِلَّا فِیْ اَوَّلِ تَكْبِيْرَةٍ فَقَطْ لِاَنَّهٗ لَمْ يَاْتِ بِرَفْعِ الْاَيْدِیْ فِيْمَا عَدَا نَصٌّ وَرُوِیَ مِثْلُ قَوْلِنَا هٰذَا عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ وَابْنِ عَبَّاسٍ وَهُوَ قَوْلُ اَبِیْ حَنِيْفَةَ وَسُفْيَانَ. (محلی ص ۱۸۱ ج ۳۰)**

**ترجمه**: لاسونه پورته کول نه دی پکار د جنازې په مونځ کښې بغیر د ړومبی تکبیر نه، ځکه چه ړومبی تکبیر نه علاوه د لاسونو پورته کولو دپاره څه نص (صریح حدیث) نشته. او همدغه شان عبدالله بن مسعود رضی الله عنه او عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه نقول دی او همدغه مسلك د امام ابو حنیفه رحمه الله او د امام سفیان ثوری رحمه الله دې.

امام ابراهیم نخعی رحمه الله او حسن بن عبیدالله نه نقل دی چه هغوی به هم صرف په ړومبی تکبیر کښې لاسونه پورته کول **(مصنف ابن ابی شیبه صه ۲۹۶ ج ۳ و صه ۲۹۷)**

**مسئله** :- ړومبی تکبیر سره دې دا ثناء ووایی :

سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالٰى جَدُّكَ وَجَلَّ ثَنَاءُكَ وَلَا اِلٰهَ غَيْرُكَ. (کبیری ص ۲۹۵)

**ترجمه** : یا الله! ستا ذات پاك دې اومونږ ستا تعریف کوو، ستا نوم لوئ برکت والا دې او ستا ثناء او صفت ډیر لوئ دې، او له تا نه سیوا بل معبود نشته.

د دویم تکبیر نه پس دې د مونځ والا درود شریف ووایی، د دریم تکبیر نه پس دې د لاندینیو دعاګانو نه یوه دعا ووایی، یا دې دیوې نه زیاته ووایی

**د جنازې دعاګانې** :- رسول الله ﷺ نه مختلفې دعاګانې نقل شوی دی.

حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه نقل دی چه رسول الله ﷺ به د جنازې په مونځ کښې دا دعا ویله :

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا وَمَيِّتِنَا وَشَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا وَصَغِيْرِنَا وَكَبِيْرِنَا وَذَكَرِنَا وَاُنْثَانَا اَللّٰهُمَّ مَنْ اَحْيَيْتَهُ مِنَّا فَاَحْيِهِ عَلَى الْاِسْلَامِ وَمَنْ تَوَفَّيْتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ عَلَى الْاِيْمَانِ،

**ترجمه** : یا الله! زمونږ ژوندی او مړی او حاضر او غائب او زمونږ واړه او لویان او زمونږ ښځې او سړی ټول وبښه! یا الله ته چه زمونږ نه څوك ژوندي کوې نوهغه په اسلام باندې قائم وساته او څوك چه له مونږ نه وفات کوې نو هغه له ایمان سره وفات کړه!

او دا الفاظ په ابو داؤد او ابن ماجه کښې زائد دی: اَللّٰهُمَّ لَا تَحْرِمْنَا اَجْرَهُ وَلَا تُضِلَّنَا بَعْدَهُ.

**ترجمه** : یا الله! مونږ د ده له اجر څخه مه محرومو! او له هغه څخه وروسته مونږ مه ګمراه کوه!

(اَللّٰهُمَّ عَفْوَكَ اَللّٰهُمَّ عَفْوَكَ)، [1]

**ترجمه** : یا الله مونږ له تا نه معافی غواړو، یا الله مونږ له تا نه معافی غواړو.

(ترمذی ص ۱۲۲، ابوداود ص ۱۰۱ ج ۲، نسائی ص ۲۸۱ ج ۱، ابن ماجه ص ۱۰۸ مجمع الزوائد ص ۳۳ ج ۳، بحواله طبرانی کبیر واوسط واسناده حسن)

د حضرت عوف بن مالك نه چه کوم روایت نقل دې په هغې کښې د رسول الله ﷺ نه دا الفاظ نقل شوی دی: اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلَهُ وَارْحَمْهُ وَعَافِهِ وَعْفُ عَنْهُ وَاَكْرِمْ نُزُلَهُ وَوَسِّعْ مَدْخَلَهُ وَاغْسِلْهُ بِالْمَاءِ وَالثَّلْجِ وَالْبَرَدِ وَنَقِّهِ مِنَ الْخَطَايَا كَمَا نَقَّيْتَ الثَّوْبَ الْاَبْيَضَ مِنَ الدَّنَسِ وَاَبْدِلْهُ دَارًا خَيْرًا مِنْ دَارِهِ اَهْلًا خيرا مِنْ اَهْلِهِ وَزَوْجًا خَيْرًا مِنْ زَوْجِهِ وَاَدْخِلْهُ الْجَنَّةَ وَاَعِذْهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَمِنْ عَذَابِ النَّارِ. (مسلم ص ۳۱۱ ج ۱، نسائی ص ۲۸۱ ج ۱، ابن ماجه ص ۱۰۸)

**ترجمه** : یا الله! ته دغه (مړې) وبښه او په هغه رحم وکړه! اوهغه ته عفوه وکړه او اودهغه له ګناهونو تیر شه او هغه په عزت سره میلمه جوړکړه. اودهغه ځای فراخه کړه اوهغه په اوبو.

---

۱ - او دا آخری جمله علامه هیثمی د طبرانی په حواله له (فَتَوَفَّهُ عَلَى الْاِيْمَانِ) نه وروسته زائده نقل کړیده. (سواتی)

واوره او یخو اوبو باندې پاك کړه له ګناهونو نه لکه څنګه چه ته سپینه جامه له ګندګۍ نه صفا کوې . او هغه ته له دې کور نه ((د دنیا له کورنه)) ښه کور ورکړه . او له دې اهل نه ورته ښه اهل ورکړه او له دې ښځې څخه ورته ښه ښځه ورکړه اوهغه جنت ته داخل کړه اوهغه د قبر له عذاب څخه وساته . اوهغه د دوزخ له عذاب څخه وساته .

یا دا دعاء:

اَللّٰهُمَّ عَبْدُكَ وَابْنُ عَبْدِكَ وَابْنُ اَمَتِكَ يَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ وَحْدَكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ يَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُكَ وَرَسُوْلُكَ اَصْبَحَ فَقِيْرًا اِلٰى رَحْمَتِكَ وَاَصْبَحْتَ غَنِيًّا عَنْ عَذَابِهٖ تَخَلّٰى مِنَ الدُّنْيَا وَاَهْلِهَا اِنْ كَانَ زَاكِيًا فَزَكِّهٖ وَاِنْ كَانَ مُخْطِئًا فَاغْفِرْ لَهٗ اَللّٰهُمَّ لَا تَحْرِمْنَا اَجْرَهٗ وَلَا تُضِلَّنَا بَعْدَهٗ. (مستدرك حاكم ص ۳۵۹ ج ۱)

**ترجمه** یا الله دا ستا بنده دې ستا د بنده او ستا د مینځې زوئ دې . دا ګواهي ورکوي چه ته عبادت لائق نشته بغیر له تا نه ، ته واحد اولاشریك ذات یې، او ګواهي ورکوي چه محمد صلی الله علیه وسلم ستا بنده او ستا رسول دې ، دغه بنده اوس ستا د رحمت محتاج دې او ته هغه ته له عذاب ورکولو څخه بې پروا یې . هغه له دنیا او د دنیا له خلکو نه ځان ته شوې دې ، که هغه له ګناهونو څخه پاك وي نو هغه نور هم پاك کړه اوکه هغه ګنهګار وي نو هغه ته بښنه وکړه. یا الله مونږ دهغه له اجر څخه مه محروم کوه او له هغه نه وروسته مونږ مه ګمراه کوه .

یا دا دعاء:

اَللّٰهُمَّ اَنْتَ رَبُّهَا وَاَنْتَ خَلَقْتَهَا وَاَنْتَ هَدَيْتَهَا لِلْاِسْلَامِ وَاَنْتَ قَبَضْتَ رُوْحَهَا وَاَنْتَ اَعْلَمُ بِسِرِّهَا وَعَلَانِيَتِهَا جِئْنَا شُفَعَاءَ فَاغْفِرْ لَهَا. (ابوداود ص ۱۰۰ ج ۲)

**ترجمه**: یا الله ! ته د دغه مړي رب اوپالونکې یې . اوتا هغه پیدا کړې دې او تا هغه ته د اسلام په طرف هدایت کړې دې اوتا دهغه روح قبض کړې دې اوته دهغه پټ اوښکاره ښه پیژنې . مونږ دهغه دسفارش لپاره حاضر شوي یو . یا الله ته هغه وبښه !

حضرت ابو هریره ﷛ نه پوښتنه وکړې شو چه تاسو د جنازې مونځ څنګه کوئ؟ نو هغوي ﷛ وفرمایل چه زه رومبې تکبیر ووایم . بیا دالله ﷻ حمد اوثناء وکړم بیا په رسول الله ﷺ باندې درود ووایم . او بیا دا دعا کوم: اَللّٰهُمَّ عَبْدُكَ وَابْنُ عَبْدِكَ ابْنُ اُمَتِكَ كَانَ يَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ وَاَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُكَ وَرَسُوْلُكَ وَاَنْتَ اَعْلَمُ بِهٖ اَللّٰهُمَّ اِنْ كَانَ مُحْسِنًا فَزِدْ فِيْ اِحْسَانِهٖ وَاِنْ كَانَ مُسِيْئًا فَتَجَاوَزْ عَنْهُ سَيِّئَاتِهٖ اَللّٰهُمَّ لَا تَحْرِمْنَا اَجْرَهٗ وَلَا تَفْتِنَّا بَعْدَهٗ. (موطا امام مالك ص ۲۰۹ . مصنف عبدالرزاق ص ۴۸۸ ج ۳ . مجمع الزوائد ص ۳۳ ج ۳ بحواله ابویعلی وقال رجاله رجال الصحیح.)

**ترجمه**: یا الله دا ستا بنده دې ستا د بنده او ستا د مینځې زوئ دې ، دا ګواهي ورکوي چه د

عبادت لائق نشته بغیر له تا نه . ته واحد اولاشریك ذات يې. او ګواهي ورکوی چه محمد (صلی الله علیه وسلم) ستا بنده او ستا رسول دې اوته په هغه نبه پوهيږې . يا الله ته هغه شه پيژني ، که هغه نيکی کوونکې وی نو دهغه نيکي نوره هم زياته کړې اوکه هغه ګنهګار وی نو دهغه له ګناهونو نه تير شه ؛ يا الله مونږ دهغه له اجر څخه مه محرومو او له هغه څخه وروسته مونږ په فتنه کښې مه اچوه .

**د نابالغه ماشوم او د ليونی دپاره دعا** :- که مړې نابالغه ماشوم يا ليونې سړې وی نو هغه د پاره دا دعا وواييئ **اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا سَلَفًا وَّفَرَطًا وَّاَجْرًا وَّذُخْرًا وَّاجْعَلْهُ لَنَا شَافِعًا وَّمُشَفَّعًا.** (بخاری ص ۱۷۸ ج ۱، تعليقا عن الحسن، مصنف عبدالرزاق ص ۵۲۹ ج ۳، عن الحسن، کبیری ص ۵۸۵)

**ترجمه** : اې الله ﷻ دا ماشوم زمونږ د پاره وړاندې تلونکې او زمونږ د پاره پيش کونکې جوړ کړه، او اجر او ذخيره د آخرت يې جوړ کړه . او دې زمونږ د پاره سفارش کولو والا جوړ کړه او داسې يې جوړ کړه چه دده سفارش مقبول وی (يعنی مقبول سفارشی يې جوړ کړه).

**دنابالغه نجلۍ لپاره دعا** :- که مړې نابالغه ماشومه وی نو دا دعا وواييئ . **اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهَا لَنَا سَلَفًا وَّفَرَطًا وَّاَجْرًا وَّذُخْرًا وَّاجْعَلْهَا لَنَا شَافِعَةً وَّمُشَفَّعَةً.**

**ترجمه** : يا الله ! ! ماشومه زمونږ په وړاندې زمونږ لپاره واسطه جوړه کړه اوهغه زمونږ دپاره اجر اودآخرت ذخيره وګرځوه ! اوهغه زمونږ دپاره دشفاعت وسيله وګرځوه اوهغه داسې سفارشی جوړه کړه چه دهغې سفارش مقبول وی .

**مسئله** :- فقهاء کرام فرمايی چه د جنازې د مونځ د پاره څه خاص دعا مقرره نه ده چه صرف هماغه دعا رسول الله ﷺ ويلې وی . بلکه مختلفو وختونو کښې مختلفې دعاګانې د رسول الله ﷺ نه ثابتې دی . صحابه کرامو ؓ هم کومه خاصه دعا باندې التزام نه دې کړ ې. په دې ماثوره دعا ګانو کښې چه کومه دعا هم ولولی . نو سنت به ادا شی .

**د جنازې په مونځ کښې قراءت** :- د جنازې په مونځ کښې که سورة فاتحه په طور د قراءة لولی، نو ګنهګار به وی ځکه چه د قرآن ويل دجنازې په مونځ کښې غير مشروع دی . البته که د ثناء په مقام باندې يې په طور د ثناء او تحميد ولولی نو څه مضائقه نشته . (قاضی خان ص ۹۲ ج ۱، درمختار ص ۱۲۲ ج ۱).

حضرت عبدالله بن عمر ؓ حضرت ابراهيم نخعی محمد ابن سيرين .ابوالعاليه فضاله بن عبيده، ابو برده، عطاء . طاؤس، ميمون، بکر بن عبدالله رحمهم الله نه نقل دی چه هغوی به په جنازه کښې قرائت نه کولو . يا به يې منع کوله . (مصنف عبدالرزاق ص ۴۹۱، مصنف ابن ابی شیبه ص ۲۹۸،۲۹۹ ج ۳)

حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ نه نقل دی چه:

اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ لَمْ يُوَقِّتْ فِيْهَا قَوْلًا وَلَا قِرَاءَةً. (مغنی ابن قدامه ص ۴۸۵ ج ۲، شرح نقایه ص ۱۳۳ ج ۱)

**ترجمه**: بیشکه رسول الله ﷺ د جنازې په مونځ کښې څه خاص دعا او قرائت ندې مقرر کړې.

اَنَّ عَبْدَاللهِ بْنِ عُمَرَ كَانَ لَا يَقْرَأُ فِي الصَّلٰوةِ عَلَى الْجَنَازَةِ. (موطا امام مالك ص ۲۱۰)

**ترجمه**: بیشکه حضرت عبدالله بن عمر ﷛ د جنازې په مونځ کښې قرائت نه وو ادا کړې.

له کوم صحیح روایت نه ثابت نه دی چه رسول الله ﷺ دې د کوم جنازې په مونځ کښې سورة فاتحه لوستلې وی.

د حضرت ابن عباس ﷛ په روایت کښې راځی چه ما د جنازې په مونځ کښې سورة فاتحه ځکه ولوستله چه تاسو پوهه شئ چه دا هم سنت دی.

ددې متعلق دا عرض دې چه حضرت عمر ﷛، عبدالله بن عمر ﷛، حضرت علی ﷛ حضرت ابوهریره ﷛ په جنازه کښې د قراءة د قرآن نه انکار کولو او تابعینو کښې حضرت عطاء ﷫، طاؤس ﷫، سعید بن المسیب ﷫، ابن سیرین ﷫، سعید بن جبیر ﷫، شعبی ﷫، مجاهد ﷫. او د هغوی نه علاوه حماد ﷫، امام سفیان ﷫ هم انکار کولو.

د حضرت عبدالله بن عباس ﷛ د قول توجیه دا ده چه هغوی به سورة فاتحه صرف د ثناء په طور لوستله. او په دې کښې څه حرج نشته. د احنافو عالمان هم په دې عمل کوی. قاضی ثناء الله پانی پتی ﷫ په خپل وصیت کښې هم دا لیکلی دی، او فتاوی عالمګیری کښې دی چه

وَلَوْ قَرَأَ الْفَاتِحَةَ بِنِيَّةِ الدُّعَا فَلَا بَأْسَ. (عالمګیری ص ۱۶۴ ج ۱، فتاوی قاضیخان ص ۱۳ ج ۱، در مختار ص ۱۲۲ ج ۱)

**ترجمه**: او که سورة فاتحه د دعا په نیت باندې ووایی نو هیڅ حرج نشته.

**مسئله**: امام که د مړی د سر برابر ودریږی، یا د سینې برابر. او د ښځې (مرده) د ګیډې یا د وسط یا د سینې برابر ودریږی نو دا ټول روا دی. البته احناف د سړی او ښځې دواړو د سینې برابر ودریدل بهتر ګڼی ځکه چه محل د ایمان زړه دې چه هغه په سینه کښې دې.

او د ابوغالب ﷫ په روایت کښې دی چه ما په حضرت انس ﷛ پسې مونځ د جنازې وکړو،

(فَقَامَ حِيَالَ صَدْرِهِ). (شرح نقایه ص ۱۳۵ ج ۱). یعنی هغه د مړی د سینې برابر ودریدلو.

حقیقت دادې چه د سر، سینې او د وسط برابر ودریدل هر قسمه جائز دی، د فقهاء کرامو او محدثین کرامو اختلاف په اصل کښې د افضلیت په باره کښې دې چه زیاته افضله او اولی کومه خبره ده.

د ښځې د وسط یا د سینې برابر ودریدلو والا خبره د احنافو په نزد په تستر محموله ده. رسول الله ﷺ به د دې وجې نه د سینې یا د وسط برابر ودریدلو چه د ښځې په بدن باندې د خلقو نظرونه

ونه لګي. ځکه چه په هغه وقت کښې به د کټ وغیره بندو بست نه وو.

**مسئله**:- که څو جنازې یو ځائ وی نو په یو ځائ کول هم جائز دی، اګر چه افضله خبره داده چه جدا جدا وکړې شي، لیکن که مجبوری وی نو په یو ځائ هم کیدلې شی، ددې صورت دادې چه که جنازې مختلفې وی نو د امام په وړاندې به اول د سړی جنازه وی، بیا ددینه پس د ماشوم، بیا د ښځې. (شرح نقایه ص۱۳۵ ج۱، کبیری ص۶۰۶، در مختار ص۱۲۲ ج۱)

لکه څنګه چه حضرت علی رضی الله عنه نه نقل دی. (مصنف ابن ابی شیبه ص۳۱۵ ج۳)

**مسئله**:- که د مړی ټول بدن موجود نه وی نو که د هغه څه اندام وی سره د سر نه. یا اکثر حصه موجوده وی اګر که هغه بغیر د سر نه وی، نو په هغې به مونځ درست وی. او که د سر نه بغیر څه اندام وی نو په هغې به د جنازې مونځ درست نه وي. (شامی ص۵۲۴ ج۱)

**مسئله**:- په چا چه جنازه نه وی شوې ددینه بغیر د غسل یا د تیمم نه پس دفن شوې وی، نو د هغه په قبر د جنازې مونځ کیدلې شی تر څو چه غالب ګمان دا وی چه دده بدن به پرسیدلې او رژیدلې نه وی.

**مسئله**:- په سپرلئ سپور لره د جنازې مونځ کول جائز نه دی، او همدا رنګې که جنازه خلقو په لاسونو پورته کړې نیولې وی نو بیا هم د جنازې مونځ درست نه دې. (فتاوی سراجیه برحاشیه قاضیخان ص۱۲۳ ج۱)

**د دفن مسائل**:- د جنازې د مونځ نه پس به مړې دفن کړې شی.

**مسئله**:- قبر ښې طریقې سره فراخه او د نیم قد پورې ژورول افضل دی.

عَنْ هِشَامِ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَحْفِرُوْا وَاَوْسِعُوْا وَاَحْسِنُوْا (ابن ماجه ص۱۱۲)

**ترجمه**: قبر ښې کنئ، وسیع او فراخه، او ښۀ یې جوړوئ.

**مسئله**:- د قبر دپاره شق، یا لحد جوړول دواړه طریقې درستې دی، البته چیرته چه زمکه سخته وی او بغلی قبر جوړیدلې شی نو لحد زیات بهتر دې (هدایه ص۱۶۷ ج۱، شرح نقایه ص۱۳۸ ج۱، کبیری ص۵۹۵)

- د رسول الله ﷺ قبر مبارک داسې (لحد والا) جوړ کړې شوې وو. (شرح نقایه ص۱۳۸ ج۱).

**مسئله**:- مړې قبر ته د پښو د طرف نه یا د سر د طرف نه داخلول دواړه جائز دی البته د قبلې د طرف نه قبر ته داخلول زیات افضل دی. (شرح نقایه ص۱۳۹ ج۱).

**مسئله**:- مړې قبر ته ښکته کونکې به دا وایي چه: (بِسْمِ اللهِ وَبِاللهِ وَعَلٰى مِلَّةِ رَسُوْلِ اللهِ) یا (وَعَلٰى سُنَّةِ رَسُوْلِ اللهِ). (ترمذی ص۱۷۰، مستدرک حاکم ص۳۶۶ ج۱) ابن ماجه ص۱۱۱ ابوداود ص۱۰۲ ج۱)

**مسئله** :- مړی مخ به په قبر کښې د قبلې طرف ته کړې شي. (هدایه ص۱۲۷ ج۱، شرح نقایه ص۱۳۹ ج۱، کبیری ص۵۹۶)

**مسئله** :- په قبر کښې به د کفن اړخونه اوغوټې پرانیستلې شي. (هدایه ص۱۲۷ ج۱، شرح نقایه ص۱۳۹ ج۱، کبیری ص۵۹۷)

**مسئله** :- په قبر به کچه (خامې) خښتې، یا تبۍ، او ګیاه وغیره به پرې کیښودلې شي. یا لرګې یا کانې . لیکن پخه خښته کیښودل مکروه دي . (هدایه ص۱۲۷ ج۱، شرح نقایه ص۱۳۹ ج۱، کبیری ص۵۹۸)

**مسئله** :- د سړي په قبر به د دفن کولو په وخت کپړه نه شي نیولې ، البته د ښځې په قبر باندې داسې کول پکار دي . (هدایه ص۱۲۷ ج۱شرح نقایه ص۱۳۹ ج۱).

اَنَّ عَلِیًّا مَرَّ بِقَوْمٍ قَدْ دَفَنُوْا مَیِّتًا وَبَسَطُوْا عَلٰی قَبْرِهِ الثَّوْبَ فَجَذَبَهُ وَقَالَ اِنَّمَا یُصْنَعُ هٰذَا بِالنِّسَاءِ. (شرح نقایه ص۱۳۹ ج۱)

**ترجمه** : حضرت علی رضی الله عنه په څه خلقو باندې تیر شو چه مړې یې قبر ته ښکته کولو ، او څادر یې پرې د پاسه نیولې وو ، حضرت علی رضی الله عنه ترې څادر شاته وغورزولو ، او وې فرمایل دا طریقه صرف د ښځو سره کیږي .

**مسئله** :- قبر بالکل د زمکې سره برابرول هم جائز دي او چوکور جوړول هم جائزدي البته چه د اوښ د قُب په شان وی نو دا زیات افضل دي. (شرح نقایه ص۱۳۹ ج۱).

لکه څنګه چه صحابه کرامو رضی الله عنهم د رسول الله ﷺ قبر مبارک جوړ کړې وو (مصنف ابن ابی شیبه ص۳۳۴ ج۳)

**مسئله** :- مړې به په قبر کښې د کیښودلو نه پس نه شي را ویستلې. مګر دا چه زمکه مغصوبه وی . یا د زمکې والا د دفن کولو اجازت نه وی کړې، یا څه قیمتی څیز د مړی سره دفن شوې وی ، نو بیا د هغه ویستل درست دی . (شرح نقایه ص۱۳۹، ۱۴۰ ج۱، در مختار ص۱۲۶ ج۱، کبیری ص۶۰۷)

**مسئله** :- مړې د دفن کولو نه وړاندې بل ځائ ته وړل اودفن کول جائز دي . لیکن اولی دادی چه کوم ځائې فوت شي هم هلته به قبرستان کښې دفن کولې شي.

**مسئله** :- دوه یا د دوو نه زیات مړی په یو قبر کښې د ضرورت په وخت دفن کولې شي. (شرح نقایه ص۱۴۰ ج۱)

**مسئله** :- که ضرورت وی نو مړې په تابو ت کښې کیښودلې او دفن کولې شي. (کبیری ص۵۹۸)

**مسئله** :- دریاب یا بحر کښې مړې که وچې ته راوړل مشکل وی نو د غسل او کفن نه وروستو

به څه درونډ څيز ورسره وتړي او درياب کښې به يې وغورزوي . (شرح نقايه ص ۱۳۰ ج ۱).

**مسئله** :- قبرستان کښې دعا کول مسنون دي.

رسول الله ﷺ به جنة البقيع ته لاړو. او دا دعا به يې کوله. اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ دَارَ قَوْمٍ مُؤْمِنِيْنَ وَاِنَّا اِنْ شَاءَ اللهُ بِكُمْ لَلَاحِقُوْنَ اَسْاَلُ اللهَ لِيْ وَلَكُمُ الْعَافِيَةَ. (مسلم ص ۱۲۶ ج ۱)

**ترجمه** : په تاسو دې سلام وي اې د مؤمنانو د کورونو اوسيدونکو ! اومونږ به هم ان شاء الله له تاسو سره يوځاى کيږو . له الله پاك نه ستاسو دپاره او دځان لپاره دعاء غواړم.

او په بل روايت کښې دي چه :

جَاءَ الْبَقِيْعَ فَقَامَ فَاَطَالَ الْقِيَامَ ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ انْحَرَفَ.(مسلم ص ۳۱۳ ج ۱)

**ترجمه** : رسول الله ﷺ جنت البقيع ته تشريف يوړو، او ډيره وخته پورې ولاړ وو بيا يې درې ځله لاسونه پورته کړل او دعا يې وکړه .

**مسئله** :- په قبر کيناستل ، څملاستل ، پايمال کول مکروه دي او بول او ګندګي پرې غورزول ډير سخت مکروه دي . (کبيري ص ۶۰۷،۶۰۸).

**مسئله** :- په مړي باندې په لاس سره خاوره اچول پکار دي بيا که ضرورت وي نو څه بيلچه وغيره هم استعمالولې شي .

**مسئله** :- قبر پوخ جوړول يا په دې باندې عمارت ،ګنبد وغيره جوړول ناجائز دي. (کبيري ص ۵۹۹)

عَنْ جَابِرٍ نَهٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَنْ يُّجَصَّصَ الْقَبْرُ وَاَنْ يُّقْعَدَ عَلَيْهِ وَاَنْ يُّبْنٰى عَلَيْهِ. (مسلم ص ۳۱۲ ج ۱)

**ترجمه** : حضرت جابر ﷺ فرمايي چه رسول الله ﷺ منع فرمايلې ده له دې نه چه قبر پوخ جوړشي او په قبر باندې د ناستې نه يې هم منع فرمايلې ده، او لدينه يې هم منع فرمايلې ده چه په قبر باندې عمارت جوړ شي .

**مسئله** :- د مصيبت په وخت تردرې ورځو پورې کاروبار بندول (معطل کول) درست دي .

**مسئله** :- د مړي کوروالا ته ، د اقاربو ، رشته دارو، يا د ګاونډيانو د طرف نه يوه ورځ او شپه د طعام بندوبست کول مستحب دي . (شرح نقايه ص ۱۳۰ ج ۱).

اِصْنَعُوْا لِاٰلِ جَعْفَرَ طَعَامًا فَقَدْ جَاءَهُمْ مَا يَشْغَلُهُمْ.(مستدرك حاكم ص ۳۷۲ ج ۱، ترمذى ص ۱۲۳)

**ترجمه** : رسول الله ﷺ وفرمايل : د جعفر ﷺ د کور والا د پاره طعام تيار کړئ ځکه چه هغوى ته داسې څيز رسيدلې دې چه هغوى يې لدينه مشغول کړي دي .

**مسئله** :- ليکن دا خوراك پخول د څه خاص رشته دار سره خاص نه دي. لکه چه بعضې علاقو او قومونو کښې داسې رواج دې چه د مړي صرف فلانې رشته دار به پخلې کوي، اګرکه هغه قرض

وکړي، او نه پخوونکې بد ګڼلي شي، او لدينه علاوه پر تکلف خوراك نه پخونکي باندې ملامتي هم ويلې شي. دا د ګناه خبره ده . بلکه که دمړي څه خاص رشته دار يا ګاونډي هم د خپل طاقت مطابق اهتمام وکړي نو مستحب دي.

**د جنازې د مونځ نه وروسته دعا** :- په جنازه کښې د سلام ګرځولو نه پس متصل په اجتماعي شکل کښې د دعاء ثبوت نشته بلکه بعضې فقهاؤ دې ته بدعت او مکروه ويلي دي.

البته سنت طريقه دا ده چه د دفن کولو نه پس په قبر باندې دعاء وشي.

ملا علي قاري حنفي په مرقات کښې ليکلي دي چه:

وَلَا يَدْعُوْا لِلْمَيِّتِ بَعْدَ صَلٰوةِ الْجَنَازَةِ لِاَنَّهُ يُشْبِهُ الزِّيَادَةَ فِي صَلَاةِ الْجَنَازَةِ. (مرقاة شرح مشكوة ص۶۳ ج۴)

**ترجمه**: او د مړي د پاره به د جنازې دمونځ نه پس دعا نه کوي ځکه چه دا د جنازې په مونځ کښې د زيادت مشابه ده . (او له رسول الله ﷺ او صحابه کرامو ؓ نه ثابته نه ده)

فتاوی سراجيه کښې دي چه:

اِذَا فَرَغَ مِنَ الصَّلٰوةِ لَا يَقُوْمُ بِالدُّعَاءِ. (فتاوی سراجيه برحاشيه قاضيخان ص۱۳۵ ج۱)

**ترجمه** کله چه د جنازې نه فارغ شي نو د دعا دپاره به نه ودريږي

**د حضرت مجدد الف ثاني رحمه الله د جنازې نه پس دعا و نه غوښتلې شوه** :- دحضرت شيخ احمد سرهندي مجدد الف ثاني رحمه الله دجنازې د مونځ نه پس دعاء ونه غوښتلې شوه. لکه چه صاحب د زبدة المقامات ليکلي دي چه:

حضرت مخدوم زاده بزرگ خواجه محمد سعيد دامت برکاتهم (فرزند ارجمند حضرت مجددالف ثاني وجانشين ايشان) امامت نماز جنازه پير و پدر بزرگوار خود نمودند . وبعد از نماز براى دعاء توقف نفرمودند که مقتضى سنت چنين نيست ، ودر کتب فقه معتبره مرقوم است که بعد ازنماز جنازه ايستاده کردن ، مکروه است هرچند که عمل بعضى اامان درين ايام چنين است.

(زبدة المقامات ص ۲۹۴ مطبوعه لکهنؤ)

**ترجمه** : خواجه محمد سعيد **دامت برکاته** (د حضرت مجدد الف ثاني رحمه الله فرزند ارجمند او د هغوی جانشين) دخپل پير اومرشد او والد ګرامي حضرت مولانا شيخ احمد سرهندي مجدد الف ثاني د جنازې د مونځ امامت وکړو. او د مونځ نه پس يې د دعا د پاره توقف ونه کړو (يعني جنازه يې د دعاء دپاره حصاره نکړه بلکه فوراً يې اوچته کړه) ځکه چه د سنت مقتضى داسې نه ده. (چه د جنازې د مونځ نه پس دې د دعا دپاره خلق حصار شي) او د فقهې په معتبرو کتابونو کښې يې

لیکلی دی چه د جنازې دمونځ نه پس دارنګه د دعا د پاره ودریدل مکروه دی. اګر چه بعض امامان حضرات په دې دور کښې داسې کوی. لیکن ددوی عمل د سنت مطابق نه دې بلکه مکروه دې.

**د جنازې غائبانه مونځ** - غائب باندې د جنازې مونځ د امام شافعی او امام احمد په نزد جائز دې . او د امام ابوحنیفه او امام مالك په نزد په غائب باندې جنازه نشته

نجاشی باندې د رسول الله ﷺ د جنازې دمونځ کولو په هکله حقه خبره داده چه

۱ - دا د رسول الله ﷺ په خصوصیاتو کښې دا خل دی

۲ - یا په نجاشی باندې جنازه دې دپاره اوشوه چه دهغه په وطن کښې عیسائیان وو. نو له دې کبله پرې رسول الله ﷺ د جنازې مونځ وکړو

۴ - یا له دې وجې نه چه ددوی نعش د څه نه څه وجې نه حاضر وو یا میت د هغوی ﷺ په وړاندې حاضر کړې شو. هغوی ﷺ دا لیدلو. ګویا د صحابه کرامو ﷺ په نظر نه راتللو. یاد هغوی ﷺ د وړاندینه پردې ختمې کړې شوې. هغوی ﷺ ته وښودلې شو

۵ - ابن کثیر لیکلی دی چه

وَقَالَ بَعْضُ الْعُلَمَاءِ إِنَّمَا صَلَّى عَلَيْهِ لِأَنَّهُ يَكْتُمُ إِيْمَانَهُ مِنْ قَوْمِهِ فَلَمْ يَكُنْ عِنْدَهُ يَوْمَ مَاتَ مَنْ يُصَلِّيْ عَلَيْهِ فَلِهٰذَا صَلَّى عَلَيْهِ. قَالُوْا فَالْغَائِبُ إِنْ كَانَ قَدْ صُلِّيَ عَلَيْهِ بِبَلْدَةٍ لَا تُشْرَعُ الصَّلٰوةُ عَلَيْهِ بِبَلْدَةٍ أُخْرٰى وَلِهٰذَا لَمْ يُصَلِّ (النبي ﷺ) فِيْ غَيْرِ الْمَدِيْنَةِ لَا أَهْلُ مَكَّةَ وَلَا غَيْرُهُمْ وَهٰكَذَا أَبُوْبَكْرٍ وَعُمَرُ وَعُثْمَانُ وَغَيْرُهُمْ مِنَ الصَّحَابَةِ لَمْ يُنْقَلْ أَنَّهُ صَلّٰى عَلٰى أَحَدٍ مِنْهُمْ فِيْ غَيْرِ الْبَلْدَةِ الَّتِيْ صَلّٰى عَلَيْهِ فِيْهَا فَاللّٰهُ أَعْلَمُ. (البدایه والنهایه ص۸، ج۳).

**ترجمه** بعضې علماء دا فرمایی چه نجاشی باندې رسول الله ﷺ جنازه لدې کبله وکړه چه هغوی خپل ملك حبشه کښې خپل ایمان د قوم نه پټ ساتلې وو او په کومه ورځ چه هغه وفات شو، په دغه ورځ د هغه سره داسې څوك سړې نه وو چه جنازه یې پرې کړې وای. نو له دې کبله رسول الله ﷺ د هغوی جنازه وکړه (همدغه رنګې که په چا جنازه ونه کړې شی نو بیا غائبانه په هغه باندې مونځ کول درست دی) علماء فرمایی چه غائب باندې که جنازه دده په ښار کښې وکړې شی، نو بیا په بل ښار کښې په ده باندې جنازه مشروع نه وی. له دې کبله رسول الله ﷺ دمدینې نه علاوه په چ باندې (غائبانه) جنازه کړې نه ده. نه په اهل مکه باندې او نه په نورو باندې. او همدغه رنګې حضرت ابو بکر صدیق ﷺ ، حضرت عمر ﷺ ، حضرت عثمان ﷺ ، وغیرهم ﷺ صحابه کرامو هم په چا باندې غائبانه د جنازې مونځ نه دې کړې . او د هغوی نه دا نقل نه دی چه د هغوی نه چا دهغه ښار نه علاوه چه په هغې کښې په مړی جنازه شوې وی او په چا باندې جنازه وکړی

لدینه علاوه د حضرت معاویه مزنی ﷺ په باره کښې چه نقل دی چه رسول الله ﷺ په هغوی باندې غائبانه د جنازې مونځ کړې وو

عَنْ اَبِي اُمَامَةَ الْبَاهِلِيِّ ﷺ قَالَ اَتَى رَسُوْلَ اللهِ ﷺ جِبْرَائِيْلُ ﷺ وَهُوَ بِتَبُوْكَ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ اَشْهِدْ جَنَازَةَ مُعَاوِيَةَ الْمَزَنِيِّ قَالَ فَخَرَجَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَنَزَلَ جِبْرَائِيْلُ ﷺ فِي سَبْعِيْنَ اَلْفًا مِّنَ الْمَلٰئِكَةِ فَوَضَعَ جَنَاحَهُ الْاَيْمَنَ عَلَى رُؤُوْسِ الْجِبَالِ فَتَوَاضَعَتْ وَوَضَعَ جَنَاحَهُ الْاَيْسَرَ عَلَى الْاَرْضِيْنَ فَتَوَاضَعَتْ حَتّٰى نَظَرَ مَكَّةَ وَالْمَدِيْنَةَ فَصَلّٰى اِلَيْهِ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَجِبْرَائِيْلُ وَالْمَلٰئِكَةُ عَلَيْهِمُ السلام فَلَمَّا فَرَغَ قَالَ يَا جِبْرَائِيْلُ بِمَ بَلَغَ مُعَاوِيَةُ هٰذِهِ الْمَنْزِلَةَ، قَالَ بِقِرَاءَتِهِ قُلْ هُوَ اللهُ اَحَدٌ قَائِمًا وَقَاعِدًا وَرَاكِبًا وَمَاشِيًا. (عمل اليوم والليلة لابن سني ص ۶،۷۵)

**ترجمه** : حضرت ابو امامه باهلی نه روایت دي چه رسول الله ﷺ ته حضرت جبریل ﷺ راغې، هغه وخت هغوی د تبوك په مقام کښې وو، جبریل ﷺ وفرمایل : اې محمد ! تاسوحاضر شئ د معاویه مزنی ﷺ په جنازه کښې، رسول الله ﷺ پهجنازه کښې د شرکت دپاره تشریف یوړو، او جبریل ﷺ د اویازره (۷۰۰۰۰) فرشتو سره راکوز شو، حضرت جبریل ﷺ خپل ښې وزر په غرونو کینبودلو نو هغه هم ښکته شول، او چپ وزر يې په زمکه کینبودلو نو هغه هم ښکته شوه (تول هموار میدان شو) تردې چه مکه مکرمه اومدینه منوره په نظر راغلل، نو رسول الله ﷺ په هغوی د جنازې مونځ وکړو، او جبیریل ﷺ او فرشتو هم جنازه وکړه، کله چه رسول الله ﷺ فارغ شو ، نو هغوی وفرمایل اې جبریل ! د څه وجې نه معاویه ﷺ دومره مرتبې ته ورسیدلو، جبریل ﷺ وفرمایل : ځکه چه دوی به (قل هوالله احد) په ولاړه ، ناسته ، پیاده ، په سپرلئ، یعنی په هر حال کښې دا سورة مبارك ویلو، نو له همدې کبله الله ﷻ دوی ته دامرتبه ورکړه.

ددې روایت په باره کښې محدثین کرام فرمایي چه دا ضعیف دې . حافظ ابن کثیر په البدایه والنهایه کښې لیکلي دی چه منکر روایت دې ، لهذا لدینه استدلال درست نه دې، که دا په څه درجه د استدلال قابل هم وګنلې شی. نو په دې کښې بله خبره داده، چه دا جنازه په غائب نه وه، بلکه د زمکې پردې ختمې شوې او وړاندې کړې شو.

اودغه خبره د نجاشی په جنازه کښې هم وه ، لکه چه محدثین کرام دا هم فرمایي چه نجاشی او معاویه مزنی ﷺ باندې درسول الله ﷺ د جنازې مونځ کول د رسول الله ﷺ د خصوصیاتو څخه وو، ځکه چه دا دواړه د هغوی ﷺ په وړاندې حاضر کړې شوی وو، او هغوی ددې دواړو معائنه کړې وه، نو په دې صورت کښې د وروستو مقتدیانو حالت داسې شو لکه کوم مړی لره چه د مقتدیانو نه علاوه امام وینی او دا څیز داسې دې چه اقتداء پرې صحیح کیږی.

امام ابن عبدالبر رحمه الله هم په کتاب التمهید کښې لیکلې دی چه :

اکثر اهل علم دا درسول الله ﷺ سره مخصوص ګنی د نجاشی نعش هغوئ ﷺ ته حاضر کړې شوې ؤو ، هغوی ﷺ د هغې مشاهده کړې وه، او د هغه د جنازې مونځ یې وکړو یا د هغوی جنازه رسول

الله ﷺ ته داسې راپورته کړې شوه لکه څنګه چه الله ﷻ بیت المقدس هغوی ﷺ ته ښکاره کړې ؤو په کوم وخت کښې چه قریشو له هغوی ﷺ نه پوښتنه کړې وه. همدغه رنګه ابن عبدالبر دحضرت عمران بن حصین ﷺ روایت نقل کړې دې چه رسول الله ﷺ وفرمایل: ستاسو ورور نجاشی وفات شوې دې، په هغه د جنازې مونځ وکړئ. رسول الله ﷺ ودریدلو او مونږ هم وروستو ودریدلو. صفونه مو جوړ کړل. هغوی ﷺ څلور تکبیرونه وکړل. او مونږ هم دا ګمان کولو چه جنازه د هغوی ﷺ په وړاندې ده.

که په غائب باندې دجنازې مونځ جائز وای نو رسول الله ﷺ به ضرور په خپلو هغه صحابه کرامو ﷺ باندې جنازه کوله. کوم چه د مدینې منورې نه بهر وفات شوی وو، او مسلمانانو به هم شرقاً غرباً په خلفاء راشدینو باندې د جنازې مونځ کړې وو، حال داچه له چانه هم دا نقل نه دی.

**(فتح الملهم ص۲۹۶ ج۲)**.

علامه شوکانی ؒ فرمایي چه:

له عذرونو نه د هغه محدثینو او فقهاؤ قول هم دې چه دده (نجاشی) جنازه په رسول الله ﷺ باندې منکشف کړې شوه، تردې چه هغوی ﷺ دې ولیدلو. نو دده حکم د هغه سړی شو چه هغه د امام په وړاندې حاضر کړې شی، چه امام هغه لره وینی لیکن مقتدی یې نه وینی. په داسې صورت کښې د جنازې مونځ کول بلا خلاف جائز دی.

په دې سلسله کښې یی استدلال د واحدی له خبرې نه کړې دې چه هغه بغیر د سند نه هغه د عبدالله بن عباس ﷺ په حوالې سره نقل کړې ده چه

د رسول الله ﷺ په وړاندې د نجاشی نعش ظاهر کړې شو. هغه هغوی ﷺ ولیدلو او د جنازې مونځ یې پرې وکړو. او ابن حبان چه کوم حدیث دحضرت عمران بن حصین ﷺ نه نقل کړې دې چه صحابه کرام ودریدل. او رسول الله ﷺ پسې یی صفونه جوړ کړل او صحابه کرامو دا خیال کولو چه جنازه د رسول الله ﷺ په وړاندې ده.

او ابو عوانه هم د ابان وغیره عن یحیی په طریقې سره چه کوم روایت بیان کړې دې چه مونږ جنازه په رسول الله ﷺ پسې وکړه او مونږ خیال کولو چه جنازه زمونږ په وړاندې ده.

او له عذروتو نه دا هم دې چه دا جنازه د نجاشی سره مخصوص وه. نو له دې کبله دا خبره نه ثابتیږی چه رسول الله ﷺ په چا غائب مړی باندې بغیر د نجاشی نه د جنازې مونځ کړې وی. **(نیل الاوطار ص۵۴ ج۴)**.

# الشهيد والصلوة عليه

## «شهيد او په هغه باندې د جنازې مونځ»

حضرت امام اعظم ابو حنيفه رحمه الله فرمايي چه شهيد هغه مسلمان دې چه مکلف او طاهر وی او د هغه په باره کښې دا معلومه وی چه هغه ظلماً قتل کړې شوې دې اود هغه په مقتول کيدلو باندې مال او ديت هم نه واجبيږی، او هغه د زخمی کيدلو نه پس څه د دنياوی ژوند فائده هم نه وی حاصله کړې، مثلاً خوراک ،څښکاک . دوای . آرام وغيره، (هدايه ص۱۲۷ ج۱،شرح نقايه ص۱۳۰ ج۱، کبيری ص۵۹۹). که د جنابت په حالت کښې شهادت واقع شوې وی نو بيا به غسل ورکول ضروری وی (هدايه ص۱۲۸ ج۱،شرح نقايه ص۱۳۰ ج۱، کبيری ص۶۰۰)

ځکه چه حضرت حنظله بن ابی عامر رضی الله عنه د جنابت په حالت کښې شهيد کړې شوې وو نو رسول الله ﷺ فرمايلی وو چه ستاسو ورور ته فرشتې غسل ورکوی . (مستدرك حاكم ص۲۰۴ ج۳)

فقهاء کرام فرمايي چه د فرشتو غسل ورکول زمونږ د پاره تعليم دې چه مونږ هم داسې شهيدانو ته غسل ورکړو .

**د شهيد د نوم وجه** «**وجه تسميه**» :- شهيد ته شهيد ځکه وايی چه هغه ژوندې وی لکه څنګه چه د الله ﷻ فرمان دې :

(وَلَا تَقُولُوا لِمَن يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتٌ بَلْ أَحْيَاءٌ وَلَٰكِن لَّا تَشْعُرُونَ) . (البقرة آيت ۱۵۴)

**ترجمه** : اوتاسو هغه خلقو ته مړه مه وايئ چه د الله ﷻ په لار کښې وژلې شوی دی، بلکه هغه ژوندی دی . ليکن تاسو ته د هغوی د ژوند شعور نشته .

داسې شهيدانو ته خاص قسم ژوند په عالم برزخ کښې او پخ قبر کښې حاصل وی،او له همدې کبله ده ته **شهيد** وايی چه فرشتې ددوی د پاره د جنت شهادت ورکوی، يا دې دپاره چه کله ددوی روحونه د بدن نه جدا شی، نودوی د هغه څيزونومشاهده کوی چه الله ﷻ ددوی دپاره تيار کړې دی يا له دې کبله چه فرشتې د دوی په حق کښې د دوزخ نه امان او د ښې خاتمې شهادت ورکوی .

يا له دې کبله چه د مرګ په وخت هغوی ته صرف د رحمت فرشتې حاضريږی، يا له دې کبله چه دا خلق به د نبيانو عليهم السلام په تبليغ باندې ګواهی ورکوی .

**د شهيد کفن او غسل** :- د شهيد د بدن نه به زياتی جامه، لکه واسکټ ،خولۍ . زغره، اسلحه ، موزې، وه ويستل شی او باقی دده د بدن والا جامې، قميص . پرتوګ يا لنګ، به دده په بدن باندې پريښودلې شی او له همدې سره به دفن کړې شی. ده ته به غسل هم نه شی ورکولې .

بلکه له خپلو وینو سره به دې دفن کولې شي. (هدایه ص۱۲۸ ج۱، شرح نقایه ص۱۳۱ ج۱، کبیری ص۲۰۱)

**د شهید مختلف قسمونه او د هغوی احکام** :- فقهاء کرام او محدثین عظام فرمایي چه شهید په درې قسمه دې :

۱ - هغه وژلې شوې چه د کافرانو سره په جنګ کښې د څه سبب له کبله وژلې شوې وی، نو دې شهید ته به په آخرت کښې کامل ثواب ورکول کیږی او دنیاوی احکامو کښې به هم ده ته غسل نه شي ورکولې او د بعضو په نزد جنازه به هم پرې نه شي کولې.

۲ - هغه شهید چه د شهیدانو په شان اجر خو به ورته ورکول کیږی لیکن د دنیا په احکامو کښې هغه د شهید په شان نه دې، په دې زمره کښې ډیر خلق داخلیږی.

لکه چه په یو حدیث کښې راځی چه رسول الله ﷺ فرمایي :

وَمَا تَعُدُّوْنَ الشَّهَادَةَ ؛ قَالُوْا : اَلْقَتْلُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَلشُّهَدَاءُ سَبْعَةٌ سِوَى الْقَتْلِ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ اَلْمَطْعُوْنُ شَهِيْدٌ وَالْغَرِقُ شَهِيْدٌ وَصَاحِبُ ذَاتِ الْجَنْبِ شَهِيْدٌ وَالْمَبْطُوْنُ شَهِيْدٌ وَالَّذِيْ يَمُوْتُ تَحْتَ الْهَدَمِ شَهِيْدٌ وَالْمَرْاَةُ تَمُوْتُ بِجُمْعٍ شَهِيْدٌ. (موطا امام مالک ص۲۱۶)

**ترجمه** : تاسو شهادت څه لره شمارئ «یعنی تاسې چا ته شهید وایئ» خلقو عرض وکړو چه مونږ د الله ﷻ په لاره کښې قتل کړې شوی ته شهید وایو، هغوی ﷺ وفرمایل : بلکه شهیدان د قتل فی سبیل الله نه سیوا په اوه قسمه دی : په طاعون چه مړ شی هغه شهید دې، په اوبو کښې چه ډوب شی هغه شهید دې، د سینې د درد (برینس) او هیضه یا د بدهضمئ په بیماری یا د اسهال نه مړ شی هغه شهید دې، په اور کښې چه وسوزی هغه شهید دې، او د دیوال وغیره د لاندې چه ګیر شی او مړشی هغه شهید دې، او ښځه چه د ماشوم په پیدائش کښې مړه شی هغه هم شهیده ده.

همدغه رنګې یو حدیث کښې داسې راځی : (اَلطَّاعُوْنُ شَهَادَةٌ لِكُلِّ مُسْلِمٍ) . (مسلم ۱۴۳ ج۲).

ترجمه : رسول الله ﷺ فرمایي چه طاعون کښې مړ کیدل د هر مسلمان د پاره شهادت دې

حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایي :

مَا تَعُدُّوْنَ الشَّهِيْدَ فِيْكُمْ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ مَنْ قُتِلَ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ فَهُوَ شَهِيْدٌ قَالَ اِنَّ شُهَدَاءَ اُمَّتِيْ اِذًا لَقَلِيْلٌ قَالُوْا فَمَنْ هُمْ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ مَنْ قُتِلَ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ فَهُوَ شَهِيْدٌ وَمَنْ مَاتَ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ فَهُوَ شَهِيْدٌ وَمَنْ مَاتَ فِي الطَّاعُوْنِ فَهُوَ الشَّهِيْدُ وَمَنْ مَاتَ فِي الْبَطْنِ فَهُوَ شَهِيْدٌ وَالْغَرِيْقُ شَهِيْدٌ. (مسلم ص۱۴۲ ج۲).

**ترجمه** : تاسو په خپل مینځ کښې شهید څوک شمار کوئ «یعنی چا ته شهید شوایئ؟» خلقو عرض وکړو چه یا رسول الله ! څوک چه د الله ﷻ په لاره کښې مړ شی هغه مونږ شهید ګڼو، نو هغوی ﷺ وفرمایل : بیا خو به زما د امت شهیدان ډیر کم وی ، خلقو عرض وکړو چه یا رسول الله !

بیانو شهیدان کوم خلق دی؟ نو هغوی ﷺ وفرمایل : څوك چه د الله ﷻ په لاره کښې قتل کړې شو هغه شهید دې ، څوك چه د الله ﷻ په لاره کښې په خپل مرګ مړ شو هغه شهید دې ، او طاعون کښې ، او د ګیډې په بیمارئ کښې چه څوك مړ شو هغه شهید دې. او په اوبو کښې چه څوك ډوب شو هغه هم شهید دې .

**مَنْ قُتِلَ دُوْنَ مَالِهٖ فَهُوَ شَهِيْدٌ وَمَنْ قُتِلَ دُوْنَ دَمِهٖ فَهُوَ شَهِيْدٌ وَمَنْ قُتِلَ دُوْنَ دِيْنِهٖ فَهُوَ شَهِيْدٌ وَمَنْ قُتِلَ دُوْنَ اَهْلِهٖ فَهُوَ شَهِيْدٌ (ترمذی ص۲۲۳)**

**ترجمه** : څوك چه د خپل مال په حفاظت کښې مړ شو هغه شهید دې ، او څوك چه د خپل ځان او د وینې په حفاظت کښې مړ شو هغه شهید دې ، څوك چه د خپل دین په حفاظت کښې مړ شو هغه شهید دې ، څوك چه د خپل اهل یا د عزت په حفاظت کښې مړ شو هغه هم شهید دې .

نورو آثارو نه دا هم معلومیږی چه لدینه علاوه نور قسمونه د شهیدانو هم شته چه هغوی ته د شهادت درجه ورکول کیږی د دین حاصلوونکې طالب العلم، قیدخانه کښې مظلوم سړې. او چا لره چه درنده ګانو مات کړې وی. مار لړم یا موذی ښاور چه هغه لره وچیچی. یا مسافر د سفر په حالت کښې مړ شی. د سل «ټی بی» مریض او د نمونیا مریض که مړ شی. دا ټول شهیدان دی ، اوددې دویم قسم لاندې شامل دی. داسې شهیدانوته به غسل هم ورکولې شی او جنازه به پرې هم کولې شی

دا سې شهیدانو ته به صرف په آخرت کښې د شهیدانو په شان ثواب ورکول کیږی اګر چه دا ضروری نه ده چه دوی دې په ثواب کښې د شهداء فی سبیل الله سره برابر شی لیکن فی الجمله دوی به د شهیدانو په زمر کښې شمار کولې شی .

۳ - دریم قسم شهید هغه دې چه هغه مال غنیمت کښې خیانت کړې وی ، او داسې سړې د کفارو سره په جنګ کښې مړ شی، دده حکم به په دنیا کښې د شهیدانو په شان و ی، لیکن ده ته به غسل نه شی ورکولې ( او د بعضو په نزد به پرې جنازه هم نه شی کولې) لیکن په آخرت کښې به ده ته د شهداء فی سبیل الله په اندازه کامل ثواب نه ورکول کیږی . **(فتح الملهم ص۲۸۳ ج۱)**

**د شهید د جنازې مونځ** :- شهید باندې د جنازې کولو په باره کښې د فقهاؤ اختلاف دې ، حضرت امام شافعی او حضرت امام مالك فرمایی چه د جنازې مونځ به پرې هم نه شی کولې، او حضرت امام ابو حنیفه او نور فقهاء فرمایی چه په دوی به د جنازې مونځ کیږی . **(هدایه ص۱۲۷ ج۱، شرح نقایه ص۱۳۱ ج۱)**

په دې سلسله کښې په روایاتو کښې اختلاف دې لیکن له صحیح روایاتو نه د رسول الله ﷺ په

وَلَا ذِكْرُ غَيْرِكَ وَاَنْ تَحْفَظَنِيْ وَتَرْحَمَنِيْ يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ. (کشف الرحمان ص۲۰۰)

**ترجمه**: یا الله! ته لرې کوونکې یې هر تکلیف لره او قبلوونکې یې د هرې دعاء او اې د هر مات شیز جوړوونکیه! او اې د هر مشکل آسانه کوونکیه او اې د هر بې وسه اوغریب ملګریه او اې الفت کوونکیه له هر تنها سره، نشته لائق د عبادت بغیر له تا نه بل څوك، وګرځوه ما لره فراخی او له تنګی نه د وتلو لاره اوخپل محبت زما په زړه کښې واچوه تر دې پورې چه زما بغیر له تا نه بل فکر او ذکر نوی او څما حفاظت وکړه او په ما رحم وکړه او ته تر ټولو لوئ رحم کوونکې یې.

## د فضل او د رحمت غوښتلو دپاره دعا:-

اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْئَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ وَرَحْمَتِكَ فَاِنَّهَا بِيَدِكَ لَا يَمْلِكُهُمَا اَحَدٌ غَيْرُكَ.

**ترجمه**: اې الله ﷻ مونږ ستانه ستا فضل اورحمت غواړو، دا دواړه ستا په لاس کښې دی ستا نه بغیر هیڅوك ددې مالك نشته. (حاشیه نسائی ص۳۲ بحواله دار قطنی فی العلل)

## په فطرت باندې د خاتمې دعا:

له حضرت براء ابن عازب ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی کله چه تاسو بسترې ته د خوب د پاره لاړ شئ نو اول اودس کوئ بیا په ښی اړخ باندې څملي او دا دعا ووایئ:

اَللّٰهُمَّ اَسْلَمْتُ وَجْهِيْ اِلَيْكَ وَفَوَّضْتُ اَمْرِيْ اِلَيْكَ وَاَلْجَأْتُ ظَهْرِيْ اِلَيْكَ رَغْبَةً وَرَهْبَةً اِلَيْكَ لَا مَلْجَأَ وَلَا مَنْجٰى مِنْكَ اِلَّا اِلَيْكَ اَللّٰهُمَّ اٰمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِيْ اَنْزَلْتَ وَنَبِيِّكَ الَّذِيْ اَرْسَلْتَ. (بخاری ص۹۳۲، ج۲)

**ترجمه**: یا الله ما خپل ځان ستا تابع کړو اوما خپله هره معامله تا ته وسپارله اوما خپله ملا ستا امید ته تکیه کړه. ستا طرف ته شوق اورغبت لرم او له تا څخه ویریږم، له تا نه سیوا د پناه ځای نشته او دخلاصیدلو بل ځای نشته بغیر له تا نه، یا الله زه ستا په دې کتاب (قرآن) باندې ایمان راوړم چه تا هغه نازل کړې دې اوزه ستا په هغه نبی باندې ایمان راوړم چه تا هغه رالیږلې دې.

## د بد فالۍ نه د بچ کیدو د پاره:

اَللّٰهُمَّ لَا خَيْرَ اِلَّا خَيْرُكَ وَلَا طَيْرَ اِلَّا طَيْرُكَ وَلَا اِلٰهَ غَيْرُكَ.

**ترجمه**: اې الله ﷻ! خیر نشته مګر ستا ورکړې شوې خیر، او څه نیك فال نشته مګر هغه چه ستا ورکړې شوې وی، اوستا نه بغیر هیڅوك معبود نشته. (تفسیر ابن کثیر ص۲۹۵ ج۲، بحواله مسند احمد ص۲۲۰ ج۲)

## د آسمانی برق (بریښنا) د آواز آوریدلو په وخت دعا:

اَللّٰهُمَّ لَا تَقْتُلْنَا بِغَضَبِكَ وَلَا تُهْلِكْنَا بِعَذَابِكَ وَعَافِنَا قَبْلَ ذٰلِكَ. سُبْحَانَ مَنْ يُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهٖ وَالْمَلٰٓئِكَةُ مِنْ

بِعُقُوبَتِهِ. (ابن کثیر ص۵۰۰ ج۲، ترمذی ص۳۹۸ ادب المفرد للبخاری ص۱۰۵، عمل الیوم ولیلة ص۱۲۱)

**ترجمه**: اې الله ﷻ مونږ په خپل غضب سره مه قتل کوه او مونږ په خپل عذاب سره مه هلاکوه او لدینه وړاندې مونږ ته عافیت راکړه. پاك دې هغه ذات چه رعد «دتندرآواز» د هغه په حمد سره تسبیح کوی او فرښتې هم د هغه له ویرې نه تسبیح کوی.

## د امام مالک تکیه کلام او د بد نظر او د سترګو د زخم نه د بچ کیدلو دعا:

مَا شَاءَ اللّٰهُ لَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ. (زرقانی شرح موطا امام مالك ص۲، ج۱، عمل الیوم والیله ص۱۲۱)

**ترجمه**: «هغه کیږی» څه چه الله ﷻ وغواړی، نشته دې طاقت مګر په توفیق د الله ﷻ.

## د مجلس نه د پاڅیدلو په وخت دعا :-

سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ اَسْتَغْفِرُكَ وَاَتُوْبُ اِلَيْكَ. (ابوداود ص۳۱۱، ج۲، ابن کثیر ص۲۴۶ ج۴)

**ترجمه**: پاك دې ستا ذات اې الله ﷻ مونږ ستا تعریف کوو، ستا نه علاوه هیڅوك معبود نشته او زه ستا نه بخشش غواړم، او تاته توبه وباسم.

**د خوب نه د پاڅیدلو په وخت دعا**: دا دعا به دشپې ووایی او ویده به شې او که په خپله بستره هم مړ شوې نو د شهادت مرګ به ومومې!

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ رَدَّ اِلَيَّ نَفْسِيْ بَعْدَ مَوْتِهَا وَلَمْ يُمِتْهَا فِيْ مَنَامِهَا اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ يُمْسِكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ اَنْ تَزُوْلَا وَلَئِنْ زَالَتَا اِنْ اَمْسَكَهُمَا مِنْ اَحَدٍ مِّنْ بَعْدِهٖ اِنَّهٗ كَانَ حَلِيْمًا غَفُوْرًا وَيُمْسِكُ السَّمَاءَ اَنْ تَقَعَ عَلَى الْاَرْضِ اِلَّا بِاِذْنِهٖ اِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوْفٌ الرَّحِيْمِ. (کشف الرحمان ص۶۰۱، در منثور ص۲۵۵ ج۵ ابن سنی ص۱۵)

**ترجمه**: ټول تعریفونه هغه الله لره دی چه هغه ما ته زمان نفس وروسته له مرګ «خوب» نه راواپس کړو، اودخوب په حالت کښې یې مړ نکړو. ټول تعریفونه هغه الله لره دی چه آسمانونه او ځمکې یې نیولی دی له زائل کیدلو نه اوکه هغه زائله شی «یعنی له خپل مقام نه پریوځی اوتباه شی» نوڅوك دې چه هغه را حصار کړی اوبچ یې کړی «هغه آسمان حصاروی په ځمکه باندې له راغورځیدلو نه - ترڅو چه دهغه حکم نوی شوې» بیشکه الله پاك په خلقو باندې ډیر شفقت کوونکې اومهربان دې.

## په خوراک کښې د برکت دعا:

دحضرت ابو طلحه رضی الله عنه په کور کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د خوراك د برکت د پاره دا دعا فرمایلې وه: (بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُمَّ اَعْظِمْ فِيْهِ الْبَرَكَةَ). (مسند احمد، نسائی، بخاری بین السطور ص۹۵۱ ج۲)

**ترجمه**: د الله ﷻ په نوم، اې الله! په دې کښې ډیر لوئ برکت کیږدې.

**د سفر نه د واپسئ دعا :**

رسول الله ﷺ د سفر نه د واپس کيدلو په موقع دا دعا فرمايلې وه :

**آيِبُوْنَ تَائِبُوْنَ عَابِدُوْنَ لِرَبِّنَا حَامِدُوْنَ. (بخاری ج:۲،ص:۹۱۳).**

**ترجمه** : اې الله ﷻ ! مونږ د سفر نه واپس کيدلو والا يو او په خپلو ګناهونو توبه کونکی يو. او د خپل رب عبادت کونکې يو، او د هغه تعريفونه کونکې يو.

**درد دپاره دعا :**

**أَعُوْذُ بِعِزَّةِ اللهِ وَقُدْرَتِهِ وَسُلْطَانِهِ مِنْ شَرِّ مَا أَجِدُ (ترمذی ص۲۰۳ ج۳)**

**ترجمه** : زه د الله ﷻ په عزت ، قدرت او غلبې سره پناه غواړم د هغه څيز د شر نه کوم چه ماته رارسيږی.

**د ښې خاتمې دپاره دعا :**

**اَللّٰهُمَّ أَحْيِنَا مُسْلِمِيْنَ وَأَمِتْنَا مُسْلِمِيْنَ وَأَلْحِقْنَا بِالصَّالِحِيْنَ غَيْرَ خَزَايَا وَلَا مُبَدِّلِيْنَ. (تفسير ابن کثير ص۳۳۹ ج۲)**

**ترجمه** : اې الله مونږ د فرمانبردارئ په حالت کښې ژوندی وساتې ، او د فرمانبردارئ په حالت کښې مرګ راکړې او مونږ نيکانو خلقو سره يوځائ کړې، په داسې حال کښې چه مونږ نه رسوا يو او نه خپلو عقيدو لره بدلونکې يو.

**تنزل نه د بچ کيدو دپاره :**

**اِبْنِ اَبِي مُلَيْكَةَ يَقُوْلُ : اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَعُوْذُبِكَ اَنْ نَرْجِعَ عَلٰى اَعْقَابِنَا اَوْ اَنْ نُّفْتَنَ عَنْ دِيْنِنَا. (بخاری ص۹۷۵، ج۲، مسلم ص۲۴۹، ج۲)**

**ترجمه** : اې الله ﷻ مونږ ستا په ذات سره پناه غواړو، ددې خبرې نه چه مونږ په پوندو واپس شو (ګمراه شو) او ددې خبرې نه چه مونږ د خپل دين نه په فتنو کښې واچولې شو.

**نبی کريم ﷺ به چه کله د مريض پوښتنې ته لاړو :**

**لَا بَأْسَ طَهُوْرٌ اِنْ شَاءَ اللهُ . (بخاری ص۸۴۳ ج۲)**

**ترجمه** : څه پروا نشته انشاء الله دا تکليف ګناهونو لره پاکونکې دې.

**د چا د مرګ په وخت دعا :**

**اِنَّ لِلّٰهِ مَا اَخَذَ وَمَا اَعْطٰى وَكُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهُ بِاَجَلٍ مُّسَمًّى. (بخاری ص۸۴۲ ج۲).**

**ترجمه** : بيشکه د الله ﷻ د پاره دی څه چه هغه راکړل او څه چه هغه واخيستل او هرڅيز د هغه په نزد تر يو خاص مقرر وخته پورې وی.

**د عارف او یوه انسان دعا مختصره وی**: حاجی امداد الله مهاجر مکی فرمایی:

اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْئَلُكَ رِضَاكَ وَالْجَنَّةَ وَأَعُوْذُبِكَ مِنْ سَخَطِكَ وَالنَّارِ. (شمائل امدادیه ص۴۰)

**ترجمه**: اې الله ﷻ زه ستانه ستا د رضا او د جنت طلب کوم او ستا په ذات سره ستا د ناراضتیا او دوزخ نه پناه غوارم.

**حضور ﷺ ابوبکرصدیق رضی الله عنه ته دا دعا ښودلې وه**:

(قُلْ) اَللّٰهُمَّ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ وَمَلِيْكَهُ أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ أَعُوْذُبِكَ مِنْ شَرِّ نَفْسِيْ وَمِنْ شَرِّ الشَّيْطٰنِ وَشِرْكِهِ وَأَنْ أَقْتَرِفَ عَلٰى نَفْسِيْ سُوْءًا أَوْ أَجُرَّهُ إِلٰى مُسْلِمٍ. (ابوداود ص۳۳۷ ج ۲، نسائی، مسند احمد ص۹ ج۱، تفسیر ابن کثیر ص۲۹۵ ج۲)

**ترجمه**: ((ووایه!)) یا الله! ته د زمکې او آسمانونو پیداکوونکې یې اوپوهیږې په غیب اوښکاره څیزونو باندې، ته د هر شی پالونکې اودهغې بادشاه یې، زه ګواهی ورکوم چه له تا نه بغیر بل معبود نشته، اوزه پناه غوارم ستا په ذات دخپل نفس له شر نه او دشیطان له شر نه اودهغه له شرك نه او لدې خبرې نه چه زه په خپل نفس شر وکړم اویا هغه شر کوم مسلمان ته ورسوم.

**حضور ﷺ ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته دا دعا هم ښودلې وه**: په ورځ کښې یې درې ځل وایه!

اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوْذُبِكَ مِنْ أَنْ أُشْرِكَ بِكَ وَأَنَا أَعْلَمُ وَأَسْتَغْفِرُكَ لِمَا لَا أَعْلَمُ. (حاشیه مظهری ص۲۲۹ ج۵)

**ترجمه**: یا الله! زه ستا په ذات پناه غوارم له دې نه چه زه له تاسره شریك جوړ کړم په داسې حال کښې چه زه پوهیږم او زه له تا نه معافی غوارم دهغه څه (غلطیانونه) چه زه پرې نه پوهیږم.

**که ته یو مصیبت والا ووینې نو دا دعا وکړه نو عافیت به درکړې شی**:

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ عَافَانِيْ مِمَّا ابْتَلَاكَ بِهٖ وَفَضَّلَنِيْ عَلٰى كَثِيْرٍ مِّمَّنْ خَلَقَ تَفْضِيْلًا. (ترمذی ص۴۹۵)

**ترجمه**: ټول تعریفونه هغه الله لره دی چه ما ته یی صحت اوعافیت راکړې دې له هغه څه نه چه ته یې په هغې مبتلا کړې یې، او ما لره یی په ډیرو خلقو باندې فضیلت راکړې دې.

**د اشراق د مانځه په وخت کښې دعا**: دا دعاء له حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه نه نقل شوې ده:

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ أَقَالَنَا يَوْمَنَا هٰذَا وَلَمْ يُهْلِكْنَا بِذُنُوْبِنَا. (مسلم ص۲۷۳ ج۱)

**ترجمه**: ټول تعریفونه هغه ذات لره دی چه نن ورځ یی مونږ ته معافی وکړه اومونږ یی د خپلو ګناهونو په وجه هلاك نکړو.

**د مریضانو د شفاء دپاره**: - حضرت عبدالله رضی الله عنه خپلې بی بی ته وویل: ستا د پاره کافی دو چه

تا هغه خبره کړې وي کومه چه رسول الله ﷺ فرمایلې وه . «د مریض د شفاء دپاره»

اَذْهِبِ الْبَاْسَ رَبَّ النَّاسِ وَاشْفِ اَنْتَ الشَّافِيْ لَا شِفَاءَ اِلَّا شِفَاءُكَ شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا. (بخاری ص۸۴۷ ج۲، مسند احمد، ابن کثیر ص۴۹۳ ج۲)

**ترجمه** : تکلیف لرې کړه ! اې دخلقو پروردګاره ! اوشفاء راکړه ! ته شفاء ورکوونکې يې له تا نه سیوا بل څوك شفاء نشي ورکولې، داسې شفاء راکړه چه څوك يې بنده نشي کړې.

د ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها په روایت کښې راغلې دی چه رسول الله ﷺ به کله یو مریض ته ورغې یا به ورته مریض راوستې شو نو هغوی ﷺ به همدا دعا کوله.

## له حوادثو نه د بچ کیدلو دپاره :

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِكَ مِنَ الْهَرَمِ وَاَعُوْذُبِكَ مِنَ الْهَدَمِ وَمِنَ الْغَرَقِ وَاَعُوْذُبِكَ مِنْ اَنْ يَّتَخَبَّطَنِيَ الشَّيْطٰنُ عِنْدَ الْمَوْتِ. (ابوداود ص۲۱۶ ج۱، ابن کثیر ص۲۵۳ ج۳)

**ترجمه** : اې الله ﷻ زه ستا په ذات سره پناه غواړم، د ډیر زوړوالی نه او زه ستا په ذات سره پناه غواړم د څه څیز د لاندې کیدلو او مړه کیدلو نه او په اوبو کښې د ډوبیدلو نه او زه ستا په ذات سره پناه غواړم چه شیطان تیرباسي «دهوکه مې کړي» د مرګ په وخت.

## د مار اولړم او نورو حشراتو د شر نه د بچ کیدلو دپاره دعا :-

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِكَ مِنْ شَرِّ مَنْ يَّمْشِيْ عَلٰى بَطْنِهٖ وَمِنْ شَرِّ مَنْ يَّمْشِيْ عَلٰى رِجْلَيْنِ وَمِنْ شَرِّ مَنْ يَّمْشِيْ عَلٰى اَرْبَعٍ.

**ترجمه** : اې الله ﷻ ! زه ستا په ذات سره پناه غواړم د هغه څیز د شر نه چه په سینه تلل کوی او د هغې دشر نه چه په خلورو پښو تلل کوی. (جمع الوسائل ص۱۳۸ ج۱، بحواله طبرانی فی الاوسط بیهقی فی الدعوات باسناد صحیح عن ابن عباس عن النبی ﷺ)

**د عقبی خزانه** : حضرت شداد بن اوس رضی الله عنه فرمایی چه ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل چه هغوی به فرمایل : کله چه خلق د سرو او سپینو خزانه جمع کړی نو تاسو دا کلمات د خپل آخرت خزانه جوړه کړئ «کلمات دا دی» :

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ الثَّبَاتَ فِي الْاَمْرِ وَالْعَزِيْمَةَ عَلَى الرُّشْدِ وَاَسْئَلُكَ شُكْرَ نِعْمَتِكَ وَاَسْئَلُكَ حُسْنَ عِبَادَتِكَ وَاَسْئَلُكَ قَلْبًا سَلِيْمًا، وَاَسْئَلُكَ لِسَانًا صَادِقًا وَاَسْئَلُكَ مِنْ خَيْرِ مَا تَعْلَمُ وَاَعُوْذُبِكَ مِنْ شَرِّ مَا تَعْلَمُ وَاَسْتَغْفِرُكَ لِمَا تَعْلَمُ اِنَّكَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ. (مسند احمد ص۱۲۳ ج۴، ترمذی ص۴۹۰، ابن کثیر ص۳۵۱ ج۲)

**ترجمه** : یا الله ! زه له تا نه سوال کوم «د دین په معامله کښې» د ثابت اوسیدلو او په پوهی باندې د عزیمت او ستا د نعمت د شکر د اداء کولو ، اوزه له تا نه سوال کوم ستا د ښه عبادت «د

توفیق، اوزه له تا نه سوال کوم د روغ او سلیم زړه او زه له تا نه سوال کوم د ریشتنې ژبې اوزه له تا نه سوال کوم دهغې بهترۍ چه ته یې پیژنې اوزه ستا په ذات باندې پناه غواړم له هغې بدۍ نه چه ته هغه پیژنې او زه بښنه غواړم دهغه خبرونه چه ته هغه پیژنې بیشکه ته په ټولو غیبو پوهیږې.

**د غم او بې قرارۍ په وخت کښې دعا:**

اَللّٰهُ اَللّٰهُ رَبِّيْ لَا اُشْرِكُ بِهٖ شَيْئًا. (ابوداود ص۲۱۳ ج۱)

**ترجمه:** الله زما رب دې زه هغه سره څوك هم شریك نه جوړوم.

**دنکاح کوونکی دپاره دعا:**

بَارَكَ اللهُ لَكَ وَبَارَكَ اللهُ عَلَيْكَ وَجَمَعَ بَيْنَكُمَا فِيْ خَيْرٍ. (ابوداود ص۲۹۰ ج۱)

**ترجمه:** الله ﷻ دې ستا دپاره او په تاباندې برکت نازل کړی او ستاسو دواړه (ښځه او خاوند) دې دنیکۍ په مینځ کښې یوځائ کړی

**دحضرت ابوبکر صدیق دعا:**

اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ خَيْرَ عُمُرِيْ اٰخِرَهٗ وَخَيْرَ عَمَلِيْ خَوَاتِمَهٗ وَخَيْرَ اَيَّامِيْ يَوْمَ لِقَائِكَ. (تاریخ الخلفاء للسیوطی ص۱۰۲)

**ترجمه:** اې الله ﷻ زما دعمر بهتره حصه آخری عمر جوړ کړه او زما دعمل بهتره حصه د خاتمې عمل جوړ کړه او دا چه زما په ورځو کښې بهتره ورځ ستا دملاقات وی.

**یوسړی ته حضور ﷺ دا دعا ښودلې وه:** یو اعرابی (کوچی) عرض وکړو چه یا رسول الله ما ته دعاء وښایه نو حضورﷺ وفرمایل: دا وایه:

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ اَللّٰهُ اَكْبَرُ كَبِيْرًا وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ كَثِيْرًا وَسُبْحَانَ اللهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ. وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ.

**ترجمه:** له الله پاك نه سیوا بل معبود نشته هغه یو دې او شریك نلری ، الله تعالی ډیر لوئ دې اوټول تعریفونه هغه لره دی اوپاك دې الله چه د ټول عالم پالونکې دې. او له بدو نه د لرې کیدلو او د نیکی کولو توفیق نه ورکوی مگر هغه الله یی ورکوی په خپل مدد سره چه هغه غالب او حکمت والا دې.

هغه اعرابی عرض وکړو چه یا رسول الله! دا خو زما د رب شوه ، زما لپاره څه دی؟ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چه داسې وایه:

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ وَارْحَمْنِيْ وَارْزُقْنِيْ وَاهْدِنِيْ وَعَافِنِيْ. (مسند احمد ص۱۸ ج۱)

**ترجمه:** یا الله! ماته بښنه وکړې او په ما رحم وکړې ، ما ته روزی راکړه او ما ته هدایت وکړه او ماته صحت اوعافیت راکړه.

**د کفایت دعاء :**

حَسْبِيَ اللّٰهُ لِدِيْنِيْ حَسْبِيَ اللّٰهُ لِمَا أَهَمَّنِيْ حَسْبِيَ اللّٰهُ لِمَنْ بَغٰى عَلَيَّ حَسْبِيَ اللّٰهُ لِمَنْ حَسَدَنِيْ حَسْبِيَ اللّٰهُ لِمَنْ كَادَنِيْ بِسُوْءٍ حَسْبِيَ اللّٰهُ عِنْدَ الْمُسَاءَلَةِ فِي الْقَبْرِ حَسْبِيَ اللّٰهُ عِنْدَ الْمِيْزَانِ، حَسْبِيَ اللّٰهُ عِنْدَ الْحَوْضِ حَسْبِيَ اللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ. (کشف الرحمن ص ۴۳۸)

**ترجمه** : ما لره کافي دې الله تعالی زما د دین لپاره ، کافي دې ما لره الله تعالی له هغه څيز نه چه هغه ما غمجن کوی ، کافی دې الله تعالی ما لره دهغه چا نه چه هغه په ما بغاوت کوی، کافی دې الله تعالی ما لره دهغه چا نه چه له ما سره حسد کوی ، کافی دې الله تعالی ما لره دهغه چا نه چه هغه زما خلاف د بدی تدبیر جوړوی ، کافی دې الله تعالی ما لره په قبر کښې د سوال اوجواب کولو په وقت کښې ، کافی دې الله تعالی ما لره د میزان په وقت کښې، کافی دې الله تعالی ما لره د حوض په وقت کښې، کافی دې الله تعالی ما لره ، نشته معبود بغیر له هغه نه بل څوك . زه توکل کوم په الله باندې اوهغه د لوئ عرش رب دې .

**دغازی دعا** :- رسول الله ﷺ غازی ته دا دعا وښودله :

اَللّٰهُمَّ أَنْتَ عَضُدِيْ وَنَصِيْرِيْ بِكَ أَحُوْلُ وَبِكَ أَصُوْلُ وَبِكَ أُقَاتِلُ. (ابوداود ص ۳۵۳ ج ۱، کتاب الجهاد)

**ترجمه** : اې الله ﷻ ته زما مټ (قوت) يې او ته زما مددګار يې او ستا په توفيق زه د بدئ نه راګرځم (محفوظ کيږم) او ستا په مدد سره زه حمله کوم، او ستا په مدد سره زه جنګيږم .

اَللّٰهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتٰبِ مُجْرِيَ السَّحَابِ هَازِمَ الْأَحْزَابِ اهْزِمْهُمْ وَانْصُرْنَا عَلَيْهِمْ. (ابوداود ص ۳۵۳ ج ۱)

**ترجمه** : اې الله ﷻ ! کتاب نازلونکيه ! او وريځې روانوونکيه ! او لښکرو ته شکست ورکونکيه ! هغوی (دښمن) ته شکست ورکړه، او په هغوی (دښمن) باندې مونږ غالب کړه.

**باقيات صالحات** : حضرت سعد بن عباده ﷛ فرمايی چه ماته رسول الله ﷺ دا کلمات وښودل او وې فرمايل چه دا باقيات صالحات دی :

سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ . (تفسير ابن کثير ص ۸۰ ج ۳، بحواله طبرانی)

**ترجمه** : پاك دې د الله ﷻ ذات او ټول تعريفونه د الله ﷻ دپاره دی او د الله ﷻ نه بغير هيڅوك معبود نشته، او الله ﷻ د ټولو نه لوئ دې

**دقيامت د ويرې متعلق** :- د قيامت د ويرې متعلق مسلمانانو عرض وکړو، رسول الله ﷺ وفرمايل داسې وايئ :

حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ تَوَكَّلْنَا عَلَى اللّٰهِ (يا) عَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلْنَا. (ترمذی ص ۴۶۷)

**ترجمه** : کافی دې الله ﷻ زمونږ د پاره او هغه ډير بهتر کارساز دې ، او الله ﷻ باندې زمونږ

توکل دي .

**جامعه دعا** :- رسول الله ﷺ وفرمایل : آیا تاسو ته داسې دعا و نه ښایم چه د ټولو دعا ګانو نه جامعه وي :

اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْئَلُكَ مِنْ خَيْرِ مَا سَئَلَكَ مِنْهُ نَبِيُّكَ مُحَمَّدٌ ﷺ وَنَعُوْذُبِكَ مِنْ شَرِّ مَا اسْتَعَاذَ مِنْهُ نَبِيُّكَ مُحَمَّدٌ ﷺ وَاَنْتَ الْمُسْتَعَانُ وَعَلَيْكَ الْبَلٰغُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ. (ترمذی ص ۵۰۷)

**ترجمه** : اې الله ! مونږ له تا نه سوال کوو دهغې بهتری چه دکومې سوال له تا نه ستا نبی کړې وو او یا الله مونږ ستا په ذات باندې پناه غواړو له هغه شر نه چه له کوم نه ستا نبی پناه غوښتلې وه او له تانه مدد غوښتل کیږي او ته کفایت کوونکې اوله بدی نه د بچ کیدلو او د نیکی طاقت نشته مګر د الله پاك په مدد سره .

**د حضرت ابراهیم ابن ادهم دعا** :

فَقَالَ لَنَا اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ اَدْهَمَ وَمَا عَلٰى اَحَدِكُمْ اِذَا اَصْبَحَ وَاِذَا اَمْسٰى اَنْ يَّقُوْلَ،

**ترجمه** : پس مونږ ته حضرت ابراهیم ابن ادهم وفرمایل : په تاسو کښې په چا باندې څه حرج اوتکلیف دې چه هغه سحر او ماښام دا ووایی :

اَللّٰهُمَّ احْرُسْنَا بِعَيْنِكَ الَّتِيْ لَا تَنَامُ وَاحْفَظْنَا بِرُكْنِكَ الَّذِيْ لَا يُرَامُ، وَارْحَمْنَا بِقُدْرَتِكَ عَلَيْنَا وَلَا نَهْلِكْ وَاَنْتَ الرَّجَاءُ. (حلیة الاولیاء ص ۳ ج ۸)

**ترجمه** : یا الله ! زمونږ حفاظت وکړه ستا په هغه سترګو چه هغه نه ویدې کیږي اوزمونږ حفاظت وکړه په خپلې هغه مضبوطې پناه سره چه نه سترې کیږي او په مونږ رحم وکړه په خپل هغه قدرت سره چه ته په مونږ قادر یې ، اومونږ تر هغې نه هلاکیږو ترڅوچه ته زمونږ اُمید یې .

**دعاء ماثوره د حفاظت دپاره** :

يَا حَيُّ يَا قَيُّوْمُ يَا بَدِيْعَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْاِكْرَامِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ بِرَحْمَتِكَ نَسْتَغِيْثُ، اَصْلِحْ لَنَا شَاْنَنَا كُلَّهٗ وَلَا تَكِلْنَا اِلٰى اَنْفُسِنَا طَرْفَةَ عَيْنٍ، وَلَا اِلٰى اَحَدٍ مِّنْ خَلْقِكَ. (تفسیر ابن کثیر ص ۲۸۲ ج ۲)

**ترجمه** : اې هغه ذاته ! چه همیشه ژوندې اوقائم یې ! او د آسمانونو او زمکې پیدا کوونکیه ! او د لویی اوعزت خاونده، له تا پرته بل معبود نشته ، ستا په رحمت سره مونږ مدد غواړو . زمونږ ټول حالت درست او صحیح کړه اومونږ د سترګو د رپیدلو په اندازه هم خپلونفسونو ته مه حواله کوه او مه مونږ خپل مخلوق ته حواله کوه .

يَا حَيُّ يَا قَيُّوْمُ بِرَحْمَتِكَ اَسْتَغِيْثُ اَصْلِحْ شَاْنِيْ كُلَّهٗ وَلَا تَكِلْنِيْ اِلٰى نَفْسِيْ طَرْفَةَ عَيْنٍ. (حصن حصین مترجم ص ۱۱۳)

**ترجمه** : اې هغه ذاته ! چه همیشه ژوندې او قائم یې ! زه ستا د رحمت په وجه تاته فریاد کوم چه زما ټول حالات صحیح او درست کړه او ما یوه لحظه هم زما نفس ته مه حواله کوه.

اَللّٰهُمَّ رَحْمَتَكَ اَرْجُوْا فَلَا تَكِلْنِيْ اِلٰى طَرْفَةِ عَيْنٍ وَاَصْلِحْ لِيْ شَاْنِيْ كُلَّهٗ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ. (تفسیر قرطبی ص۲۲۳ ج۱۳، بحواله ابوداود طیالسی)

**ترجمه** : یا الله ! زه ستا د رحمت اُمید لرم نو ما یوه لحظه هم نفس ته مه حواله کوه او زما ټول حالات صحیح او درست کړه ، ستا نه سیوا بل معبود نشته .

**دوه زره نیکۍ** :- حضرت جابر ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائی څوك چه دا دعا ووائی:

(مَنْ قَالَ) لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ اَحَدًا صَمَدًا لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُوْلَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ

**ترجمه** : له الله نه سیوا بل معبود نشته ، هغه یوازې دې او شریك نلری ، یو دې او بې نیازه دې نه له هغه نه څوك پیدا دې او نه هغه له چا پیدا دې او نه هغه لره هیڅوك سیال او مثل شته .

كُتِبَ لَهٗ اَلْفَيْ حَسَنَةٍ (مَنْ زَادَ زَادَهُ اللّٰهُ) (حلیة الاولیاء ص۱۵۷ ج۳)

**ترجمه** : نو هغه ته به دوه زره نیکۍ ورکړل شی او څوك چه زیات وائی الله ﷻ به زیات ورکړی.

**د حوادثو او د شیطان نه د بچ کیدو دپاره** :

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِكَ مِنَ الْغَرَقِ وَالْحَرَقِ وَاَعُوْذُبِكَ مِنْ اَنْ يَّتَخَبَّطَنِيَ الشَّيْطٰنُ عِنْدَ الْمَوْتِ. (کتاب الاستعاذة لابن قدامة ص۱۴۰ ونسائی ص۳۲۱ ج۲، ابن ماجه).

**ترجمه** : اې الله ﷻ زه ستا په ذات سره پناه غواړم په اوبو کښې د ډوبیدلو نه او په اور کښې د سوزیدلو نه او ستا په ذات سره پناه غواړم ددینه چه شیطان ما نه د مرګ په وخت خبطی جوړ کړی.

**دعاء الکرب (د مصیبت په وخت دعا)** :

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ الْعَظِيْمُ الْحَلِيْمُ. لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ. لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَرَبُّ الْاَرْضِ وَرَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيْمِ. (بخاری ص۹۳۹ ج۲، مسلم ص۳۵۱ ج۲)

**ترجمه** : له الله پاك نه سیوا بل معبود نشته چه هغه لوئ او بردبار دې ، له الله نه سیوا بل معبود نشته چه د لوئ عرش مالك دې ، له الله نه سیوا بل معبود نشته چه د آسمانونو او زمکې او لوئ عرش مالك دې .

**داسم اعظم دعاء** :

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ بِاَنِّيْ اَشْهَدُ اَنَّكَ اَنْتَ اللّٰهُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ الْاَحَدُ الصَّمَدُ الَّذِيْ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُوْلَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا

أَحَدٌ. (روح المعانی ص۱۹۳ ج۱۵)

**ترجمه**: یا الله! زه له تا نه سوال کوم (چه زما دا ګواهي ولیکه) زه ګواهي ورکوم چه صرف ته الله یې، له تا نه سیوا بل معبود نشته، ته یواځې او بې نیازه یې، ته هغه ذات یې چه نه ترې څوك پیدا دی او نه له چا پیدا دې او هغه لره سیال شته

اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْاَحَدُ الصَّمَدُ الَّذِیْ لَمْ یَلِدْ وَلَمْ یُوْلَدْ وَلَمْ یَکُنْ لَّهٗ کُفُوًا اَحَدٌ. (ابوداود ص۲۰۹ ج۱، ترمذی ص ۵۰۱، ابن ماجه ص ۲۷۳، مستدرك حاکم ص ۵۰۳ ج۱، ابن حبان من حدیث بریدة. قَالَ الْحَافِظُ هُوَ اَرْجَحُ مِنْ حَیْثُ السَّنَدِ مِنْ جَمِیْعِ مَا وَرَدَ فِیْ ذٰلِكَ تحفة الاحوذی ص ۲۵۳ ج۴)

**ترجمه**: له الله تعالی نه سیوال بل معبود نشته، هغه یو دې، بې نیازه دې، چه نه ترې څوك پیدا دی او نه له چا نه پیدا دې او نه هغه لره څوك سیال او مثل شته.

اَللّٰهُمَّ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ الْحَنَّانُ الْمَنَّانُ بَدِیْعُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ذَا الْجَلَالِ وَالْاِکْرَامِ. (ترمذی ص ۵۱۰، عن انس)

**ترجمه**: یا الله! له تا نه سیوال بل معبود نشته، ته شفقت کوونکې او احسان کوونکې یې، او ته د آسمانونو او زمکې پیدا کوونکې یې، او دلویی او عزت مالکه!

## هره ورځ درې خله دا کلمات وایه:

یَا حَیُّ یَا قَیُّوْمُ یَا ذَا الْجَلَالِ وَالْاِکْرَامِ یَا اَللّٰهُ یَا رَحْمٰنُ یَا اِلٰهَنَا وَاِلٰهَ کُلِّ شَیْءٍ اِلٰهًا وَّاحِدًا لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ. (مسائل رازی ص۲۵۸)

**ترجمه**: اې همشیه ژوندیه او قائم ذاته! اې د لویی او عزت خاونده، یا الله، یا رحمن، اې زمونږ معبوده او دهرشی معبوده، ته یو معبود یې، له تا نه سیوا بل معبود نشته.

**د عفت او هدایت دعاء**: حضرت عبدالله ﷺ نه مرفوعاً روایت دې چه:

اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُكَ الْهُدٰی وَالتُّقٰی وَالْعَفَافَ وَالْغِنٰی. (ترمذی ص ۵۰۲، حسن صحیح)

**ترجمه**: اې الله ﷻ! زه ستا نه د هدایت، تقوی، پاك دامنئ او د غناء سوال کوم.

## د ګناه نه د بچ کیدلو دپاره:

اَللّٰهُمَّ اِنَّكَ تَحُوْلُ بَیْنَ الْمَرْءِ وَقَلْبِهٖ فَحُلْ بَیْنِیْ وَبَیْنَ الْخَطَایَا فَلَآ اَعْمَلُ بِشَیْءٍ مِّنْهَا. (تفسیر مظهری ص۶۰ ج۴)

**ترجمه**: اې الله ﷻ! ته د سړی او د هغه د زړه په مابین کښې حائل کیږې، پس زما او د ګناهونو په مینځ کښې حائل شه، چه بیا زه ددینه وروسته د هیڅ ګناه ارتکاب نه کوم.

## په حق او په باطل کښې د امتیاز دپاره دعاء ماثوره:

اَللّٰهُمَّ اَرِنَا الْحَقَّ حَقًّا وَّارْزُقْنَا اتِّبَاعَهٗ وَاَرِنَا الْبَاطِلَ بَاطِلًا وَّارْزُقْنَا اجْتِنَابَهٗ وَلَا تَجْعَلْهُ مُلْتَبِسًا عَلَیْنَا فَنَضِلَّ

وَّاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِيْنَ اِمَامًا. (تفسیر ابن کثیر ص۲۵۱، ج۱)

**ترجمه**: اې الله ﷻ مونږ ته حق بالکل واضح طریقې سره وښایه او د هغې اتباع رانصیب کړه، او مونږ ته باطل په واضح طور سره وښایه او د هغې نه د بچ کیدو توفیق راکړه او باطل په مونږ متلبس (ګډوډ) جوړ نه کړې، بیا به مونږ ګمراه شو، او مونږ د متقیانو مشران جوړ کړې.

## د خوف او د خطرې په وخت :-

عَنْ اَبِیْ سَعِیْدِنِ الْخُدْرِیِّ قَالَ قُلْنَا یَوْمَ الْخَنْدَقِ یَارَسُوْلَ اللهِ هَلْ مِنْ شَیْءٍ نَقُوْلُ فَقَدْ بَلَغَتِ الْقُلُوْبُ الْحَنَاجِرَ قَالَ صلی الله علیه وسلم نَعَمْ تَقُوْلُوْا. اَللّٰهُمَّ اسْتُرْ عَوْرَاتِنَا وَاٰمِنْ رَوْعَاتِنَا. (مسند احمد ص۳ ج۳، ابن کثیر ص۴۷۲ ج ۳، بحواله مسند احمد ابی ابن حاتم)

**ترجمه**: حضرت ابو سعیدؓ خدری ؓ نه روایت دې چه مونږ د خندق په ورځ عرض وکړو چه یا رسول الله! آیا داسې دعاء شته چه مونږ یې ووایو ځکه چه د ویرې نه مو زړونه مرئی ته رارسیدلی دی، هغوی ﷺ وفرمایل داسې وایئ: (اَللّٰهُمَّ اسْتُرْ عَوْرَاتِنَا وَاٰمِنْ رَوْعَاتِنَا).

**ترجمه**: اې الله ﷻ زمونږ په عیبونو پرده واچوه او زمونږ ویره په امن بدله کړه.

## رضا باالقضاء :

حضرت ابو امامه ؓ فرمایي چه رسول الله ﷺ یو سړی ته وفرمایل: داسې وایه:

اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُكَ نَفْسًا بِكَ مُطْمَئِنَّةً تُؤْمِنُ بِلِقَائِكَ وَتَرْضٰی بِقَضَائِكَ وَتَقْنَعُ بِعَطَائِكَ. (تفسیر ابن کثیر ص۱۱۸ ج۴ بحواله ابن عساکر)

**ترجمه**: اې الله ﷻ زه ستا نه سوال کوم ماته داسې نفس راکړه چه ستا د ذات سره اطمینان لرونکې وی او ستا ملاقات باندې ایمان لرونکې وی او ستا فیصلې باندې راضی وی او ستا ورکړې شوې څیزونو باندې (قانع) صبر کونکې وی.

## د مانځه د شروع کولو په وخت کښې (دعا) :

اَللّٰهُمَّ رَبَّ جِبْرَئِیْلَ وَمِیْکَائِیْلَ وَاِسْرَافِیْلَ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ عَالِمَ الْغَیْبِ وَالشَّهَادَةِ اَنْتَ تَحْکُمُ بَیْنَ عِبَادِكَ فِیْمَا کَانُوْا فِیْهِ یَخْتَلِفُوْنَ اِهْدِنِیْ لِمَا اخْتُلِفَ فِیْهِ مِنَ الْحَقِّ بِاِذْنِكَ اِنَّكَ تَهْدِیْ مَنْ تَشَاءُ اِلٰی صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ. (بخاری، مسلم ص۲۶۳، تفسیر ابن کثیر ص۲۵۱ ج۱)

**ترجمه**: یا الله! چه د جبرئیل، میکائیل، اسرافیل علیهم السلام پالونکې یې! او د آسمانونو او زمکې پیداکوونکې یې، او په غیب او ښکاره څیزونکو باندې پوهه یې، ته فیصله کوې ړخپلو بندګانو په مینځ کښې په هغه خبرو کښې چه هغوئ اختلاف پکښې کوی، یا الله! ماته دحق

هدایت وکړې په خپل حکم سره په هغه څيزنو کښې چه په هغې کښې اختلاف کیږی ، بیشکه ته هدایت کوې هغه چا ته یی وغواړې دنیغې لاړې په طرف .

اَعُوْذُ بِاللّٰهِ السَّمِيْعِ الْعَلِيْمِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ مِنْ هَمْزِهٖ وَنَفْخِهٖ وَنَفْثِهٖ.(تفسیر ابن کثیر ص۳۵۲ ج۲)

**ترجمه** : زه پناه غواړم په الله ﷻ سره د شیطان مردود نه د هغه د لغزشونو نه اودهغه د تکبر او وسوس اچولونه .

## د هدایت اومضبوطوالی دپاره :

اَللّٰهُمَّ اهْدِنِيْ وَسَدِّدْنِيْ . (مسلم ص۳۵۰ ج۲)

**ترجمه** : اې الله ﷻ ماته هدایت وکړې او ماته درمضبوطوالې نصیب کړې (په حق باندې)

## په خوب کښې د ویریدلو په وخت :

بِاسْمِ اللّٰهِ اَعُوْذُ بِكَلِمَاتِ اللّٰهِ التَّامَّةِ مِنْ غَضَبِهٖ وَعِقَابِهٖ وَمِنْ شَرِّ عِبَادِهٖ وَمِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِيْنِ وَاَنْ يَّحْضُرُوْنَ

(مسند احمد ص۵۷ ج۳، حصن حصین ۱۵۱، ترمذی ص۵۰۷ ج ابوداود، ابن کثیر ص۲۵۵ ج۳).

**ترجمه** : د الله ﷻ په نوم سره زه پناه غواړم، د الله ﷻ په پوره کلماتو سره، د هغه د غضب او د هغه د عذاب نه او د هغه د بندګانو د شر نه او د شیطانانو د چیږلو نه اوددینه پناه غواړم چه هغه شیطانان زما سره وی .

## د زړه د ثبات لپاره :

رسول الله ﷺ به اکثر دا دعا کوله :

يَا مُقَلِّبَ الْقُلُوْبِ ثَبِّتْ قَلْبِيْ عَلٰى دِيْنِكَ . (ترمذی ۵۰۷)

**ترجمه** : اې الله ﷻ ! د زړونو اړوونکیه ! زما زړه خپل دین باندې ثابت قدم وساته .

## د شپې د خوب نه د بیداریدلو په وخت (دعا) :

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ . اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ، سُبْحَانَ اللّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ ، وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ ، (ثم قال) اللهم اغفرلی، اَوْ دَعَا اُسْتُجِيْبَ لَهٗ . (ترمذی ص: ۲۱۹، بخاری ص: ابوداؤد ص، امالی الاخبار ج۲، ص ۳۴، ابن کثیر ج۳، ص ۲۲۵، ابن ماجه ص ۲۷۶، حصن حصین ص ۱۵۳).

**ترجمه** : له الله تعالی نه سیوال بل معبود نشته ، هغه یواځې دې اوشریك نلری ، هغه لره بادشاهی ده . اوهغه لره تعریف دې ، اوهغه په هر څیز قادر دې . ټول تعریفونه الله تعالی لره دی اودالله تعالی ذات پاك دې . او له الله تعالی نه سیوا بل معبود نشته اوالله تعالی له هرڅه نه لوئ دې . اوله بدی نه دبچ کیدلو اود نیکی کولو طاقت نشته مګر د الله تعالی په توفیق سره .

بیا دې ووایي : یا الله ! ما وبښه ! یا کومه بله دعا ووایي نو قبلیږي .

**د خلیل الله ﷺ دعا** : حضرت ابراهیم خلیل الله چه کله اورته وغورزولې شو، حضرت ابن عباس ﷺ فرمایي چه هغوی دا دعا کړې وه .

**حَسْبِيَ اللهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ . (بخاری، ابن کثیر ۱۸۴ ج ۳)**

**ترجمه** : کافي دې ماله الله ﷻ او هغه بهتر کارساز دې .

کله چه ابراهیم ﷺ اورته دغورزولو د پاره تیار کړې شو نو د هغه دا دعا وه :

**لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ سُبْحَانَكَ لَكَ الْحَمْدُ وَلَكَ الْمُلْكُ لَا شَرِيكَ لَكَ. (ابن کثیر ص ۱۸۴، ج ۳)**

**ترجمه** : یا الله ! له تا نه سیوا بل معبود نشته، ستا ذات پاك دې ، تا لره ټول تعریفونه دی او تا لره بادشاهی ده اوستا هیڅ شریك نشته .

**دعلم نافع دپاره دعا** :

د علم نافع دپاره به رسول الله ﷺ دا دعا کوله :

**اَللّٰهُمَّ انْفَعْنِي بِمَا عَلَّمْتَنِي وَعَلِّمْنِي بِمَا يَنْفَعُنِي وَزِدْنِي عِلْمًا وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰى كُلِّ حَالٍ. (ترمذی ص ۵۱۷، ابن ماجه ص ۲۷۲ وفی روایة اخری) (ابن کثیر ص ۱۶۸ ج ۳)**

**ترجمه** : اې الله ﷻ ! فائده راکړې په هغه علم سره چه تا ماته ښودلې دې اوماته وښایې هغه علم چه ماته فائده راکوې، او زما په علم کښې اضافه وکړه، او د الله ﷻ د پاره تعریف دې، په هر حال کښې .

او په یو روایت کښې دی چه : **(أَعُوذُ بِاللهِ مِنْ حَالِ أَهْلِ النَّارِ)**

**ترجمه** : او په الله ﷻ سره پناه غواړم د حال د دوزخیانو نه .

**د شیطانانو نه د حفاظت دپاره او د ډیر لوئ اجر موندلو دپاره** :

**لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ. (ترمذی ص ۵۱۱)**

**ترجمه** : له الله تعالی نه سیوا بل معبود نشته ، هغه یواځې دې اوشریك نلری ، هغه لره بادشاهی ده اوهغه لره ټول تعریفونه دی اوهغه په هرڅیز باندې قادر دې .

د صحیح بخاری او صحیح مسلم په روایت کښې دی چه کوم سړې دا کلمات اویا ځله (۷۰) ووایي نو ده ته به د لس غلامانو د آزادولو په اندازه ثواب ورکړل شی، سل نیکئ به حاصلې کړی، سل بدئ به ترې ختمې شی او ټوله ورځ او شپه به دې د شیطان نه محفوظ وی. (بخاری، مسلم ص ۳۴۲ ج ۲).

**د مریض د دم دپاره** :

حضرت عبدالله بن عباس ﷺ نه مرفوعاً روایت دې چه کوم مریض مرګ ته نزدې وی ، نو اوه

ځله پرې دا کلمات ووايه او دم يې کړه، شفاء به ورته حاصله شي (ان شاء الله تعالى).

اَسْأَلُ اللهَ الْعَظِيْمَ رَبَّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ اَنْ يَّشْفِيَكَ. (ابوداود ص۸۶ ج۲)

**ترجمه**: زه سوال کوم د الله ﷻ نه چه لوئ ذات دې او د عرش عظيم مالك دې چه هغه تاته شفاء درکړي.

## توکل او توحيد:

تَوَكَّلْتُ عَلَى الْحَيِّ الَّذِيْ لَا يَمُوْتُ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَّلَمْ يَكُنْ لَّهٗ شَرِيْكٌ فِي الْمُلْكِ وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ وَلِيٌّ مِّنَ الذُّلِّ وَكَبِّرْهُ تَكْبِيْرًا. (ابن کثير ص۷۰ ج۳ بحواله ابويعلى عن ابي هريرة مرفوعا بسند ضعيف)

**ترجمه**: ما توکل وکړو په داسې ذات باندې چه هغه ژوندې دې او کله هم په هغه باندې مرګ نه راځي، ټول تعريفونه هغه الله تعالى لره دي چه هيڅ اولاد نه دې نيولې او نه دهغه څوك شريك شته په بادشاهي کښې، او نه هغه ته کمزوري پيښيږي چه هغه لره دې معاون وي او دهغه لويي بيان کړه.

## خاص دعا:

وَقَالَ يَا مُحَمَّدُ اِذَا صَلَّيْتَ فَقُلْ،

**ترجمه**: الله ﷻ وفرمايل: اې محمد (ﷺ)! کله چه ته مونځ وکړې نو دا دعا کوه:

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ فِعْلَ الْخَيْرَاتِ وَتَرْكَ الْمُنْكَرَاتِ وَحُبَّ الْمَسَاكِيْنِ وَاِذَا اَرَدْتَّ بِعِبَادِكَ فِتْنَةً فَاقْبِضْنِيْ اِلَيْكَ غَيْرَ مَفْتُوْنٍ. (ترمذي ص۴۶۶)

**ترجمه**: اې الله ﷻ زه ستانه سوال کوم چه د نيکئ د کولو توفيق راکړې اود بدئ د پريښودو، او د مسکينانو سره د محبت کولو توفيق راکړې، او کله چه ته د خپلو بندګانو سره د آزمائش اراده وکړې نو ما په داسې حال کښې خپل طرف ته اوچت کړه چه زه په فتنه کښې مبتلاء نه يم

## د فتح مکې په کال حضور ﷺ دا دعا غوښتلې وه:

اَللّٰهُمَّ لَا تُخْزِنِيْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ (مسند احمد، تفسير ابن کثير ص۳۹۲ ج۴)

**ترجمه**: اې الله ﷻ! ما د قيامت په ورځ مه رسوا کوه.

## د حضرت حسن بصري رحمة الله عليه دعا:

اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنَا مِنْ اَصْحَابِ الْيَمِيْنِ، (تفسير ابن کثير ص۲۸۴ ج۴)

**ترجمه**: اې الله ﷻ! مونږ د اصحاب يمين (ښى اړخو) نه جوړ کړه.

## دحضرت امام احمد رحمة الله عليه دعا:

اَللّٰهُمَّ كَمَا صُنْتَ وَجْهِيْ عَنْ سُجُوْدِ غَيْرِكَ فَصُنْ وَجْهِيْ عَنْ مَسْئَلَةِ غَيْرِكَ. (فتح الملهم ص۳۰۶۳)

**ترجمه**: یا الله لکه څنګه دې چه زما مخ دغیر له سجدې نه وساتلو همدارنګه زما مخ دغیر له سوال نه محفوظ وساته.

**د ویرې په وخت کښې دعا**:

أَعُوْذُ بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّةِ مِنْ غَضَبِهِ وَعِقَابِهِ وَشَرِّ عِبَادِهِ وَمِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِيْنِ وَأَنْ يَّحْضُرُوْنَ. (حصن حصین مترجم ص۱۵۱).

**ترجمه**: زه د الله ﷻ په کلمات تامه سره پناه غواړم د الله ﷻ د غضب او د هغه د سزا نه، او د هغه د بندګانو د شر نه، او د شیطان د چیړلو نه او ددینه چه شیطانان زما سره وی

**رسول الله ﷺ حضرت ابو بکر صدیق ؓ ته دا دعا وښودله**: چه هره ورځ درې ځله داسې وایه:

اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُبِكَ مِنْ أَنْ أُشْرِكَ بِكَ وَأَنَا أَعْلَمُ وَأَسْتَغْفِرُكَ لِمَا لَا أَعْلَمُ.

**ترجمه**: یا الله زه ستا په ذات پناه غواړم لدې نه چه زه له تاسره شریك جوړ کړم په داسې حال کښې چه زه پرې پوهیږم او زه له تا نه ښښنه غواړم ه هغه څه نه چه نه پرې پوهیږم.

**ځوک چه نکاح وکړی او یا غلام یا اوښ واخلې نو دا دعا به وایی**:

اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْئَلُكَ خَيْرَهَا وَخَيْرَ مَا جَبَلْتَهَا عَلَيْهِ وَأَعُوْذُبِكَ مِنْ شَرِّهَا وَشَرِّ مَا جَبَلْتَهَا عَلَيْهِ. (ابوداود ص۲۹۳ ج۱)

**ترجمه**: یا الله ﷻ زه ستانه ددې (اوښ، ښځې یا ددې غلام) د خیر سوال کوم او دهغې دخصلت د بهترئ سوال کوم، په کوم چه تا دې پیدا کړې دې، او زه ستا په ذات سره پناه غواړم، دده د شرنه او د هغه خصلت د شر نه په کوم چه تا دې پیدا کړې دې.

**چا ته د رخصت ورکولو په وقت کښې دعا**: کله چه څوك رخصتوې نو دا دعا وکړه:

أَسْتَوْدِعُ اللهَ دِيْنَكَ وَأَمَانَتَكَ وَخَوَاتِيْمَ عَمَلِكَ. (للواحد). (ابوداود ص۳۵۰ ج۱، کتاب الجهاد)

**ترجمه**: زه په الله ﷻ سپارم ستا دین او امانت او ستا آخری عمل.

او که یو لښکر یا جماعت رخصتوې نو په هغه وخت کښې به داسې وایې:-

أَسْتَوْدِعُ اللهَ دِيْنَكُمْ وَأَمَانَتَكُمْ وَخَوَاتِيْمَ عَمَلِكُمْ. (ابوداود ص۳۵۰ ج۱)

**ترجمه** زه په الله ﷻ سپارم ستاسو دین او ستاسو امانت. او ستاسو آخری عمل.

**د امام ګازرونی رحمة الله علیه دعا**:

اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ هٰذِهِ الْبُقْعَةَ عَامِرَةً بِذِكْرِكَ وَأَوْلِيَائِكَ وَأَصْفِيَائِكَ إِلَى الْأَبَدِ وَاجْعَلْ قُوْتَنَا وَقُوْتَهُمْ يَوْمًا بِيَوْمٍ مِنَ الْحَلَالِ مِنْ حَيْثُ لَا يُحْتَسَبُ. اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنَا مِنَ الْمُتَحَابِّيْنَ فِيْكَ وَمِنَ الْمُتَبَاذِلِيْنَ فِيْكَ وَمِنَ الْمُتَزَاوِرِيْنَ فِيْكَ بِحُرْمَةِ نَبِيِّكَ مُحَمَّدِنِ الْمُصْطَفٰى صَلَوَاتُ اللهِ وَسَلَامُهُ عَلَيْهِ، وَانْظُرْ إِلٰى حَوَائِجِنَا كَمَا يَنْظُرُ الْأَرْبَابُ فِيْ حَوَائِجِ الْعَبِيْدِ

وَاِلٰى مَا يَعْمَلُهُ الذُّنُوْبِ. اَللّٰهُمَّ اغْنِنَا بِحَلَالِكَ عَنْ حَرَامِكَ وَبِفَضْلِكَ عَمَّنْ سِوَاكَ وَبِطَاعَتِكَ عَنْ مَعْصِيَتِكَ يَامَنْ اِذَا دُعِيَ اَجَابَ وَاِذَا سُئِلَ اَعْطٰى وَهَبْ لَنَا مِنْ لَّدُنْكَ رَحْمَةً وَّهَيِّئْ لَنَا مِنْ اَمْرِنَا رَشَدًا،

اَللّٰهُمَّ اغْنِنَا عَنْ بَابِ الْاَطِبَّاءِ وَعَنْ بَابِ الْاُمَرَاءِ وَعَنْ بَابِ الْاَغْنِيَاءِ اَللّٰهُمَّ لَا تَجْعَلْنَا بِثَنَاءِ النَّاسِ مَغْرُوْرِيْنَ وَلَا عَنْ خِدْمَتِكَ مَهْجُوْرِيْنَ وَلَا عَنْ بَابِكَ مَطْرُوْدِيْنَ وَلَا بِنِعْمَتِكَ مُسْتَدْرِجِيْنَ وَلَا مِنَ الَّذِيْنَ يَاْكُلُوْنَ الدُّنْيَا بِالدِّيْنِ وَارْحَمْنَا يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ وَصَلَّى اللّٰهُ عَلٰى خَيْرِ خَلْقِهٖ مُحَمَّدٍ وَّاٰلِهٖ اَجْمَعِيْنَ الطَّيِّبِيْنَ الطَّاهِرِيْنَ وَسَلَّمَ تَسْلِيْمًا دَائِمًا اَبَدًا كَثِيْرًا بِرَحْمَتِكَ يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ. (ابو اسحق ابراهیم بن شهریار کازرونی تذکرة الاولیاء للشیخ عطار ص ۴۴۵)

**ترجمه**: یا الله ! دغه علاقه په خپل ذکر او خپلو دوستانو اوغوره کړې شوو په واسطه آباده کړه ترهمیشه پورې یې آباده کړه او مونږ اودهغوئ ته هره ورځ له حلالو نه روزی راکړه او له داسې ځای نه یې راکړه چه د چا په خیال او وهم کښې هم نه راځي، یا الله ! یا الله مونږ داسې جوړ کړه چه ستا د رضا لپاره له یو بل سره محبت کوونکی جوړ شو او ستا د رضا لپاره خرچ کوونکی جوړشو او ستا درضا لپاره له یوبل سره ملاقات کوونکی جوړ شو ، ستا د محترم پیغمبر حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم په حرمت سره ، او زمونږ دحاجتونو طرفته داسې نظر وکړه لکه څنګه چه آقا دخپلو غلامانو اونوکرانو دحاجتونوطرفته نظر کوی اودهغوئ هغه ګناهونه چه کړی یې وی هغه معاف کوی، یا الله د خپلو حلالو په واسطه مونږ له حرامو څخه بې پروا کړه او په خپل فضل سره مونږ له نورو نه بې پروا کړه او د خپل اطاعت په واسطه مونږ له معصیت نه بې پروا کړه . اې هغه ذاته چه څوك هغه ته آواز وکړی هغه یې قبلوی اوچه کله څوك ترې څه وغواړی نو هغه یې ورکوی . مونږ ته له خپل طرف نه رحمت رانصیب کړه او زمونږ په معامله کښې مونږ ته هدایت وکړه، یا الله ! مونږ د طبیبانو او ډاکټرانو دروازو ته او او دحاکمانو او امیرانو دروازو ته او د مالدارانو دروازو ته له ورتللونه بې پروا کړه ، یا الله ! دخلکو دتعریف په وجه مونږ مه مغرور کوه او مه مونږ له خپل خدمت نه محروم او مردود کوه ، او مونږ له خپلې دروازې نه مه شړه اومونږ په خپل نعمت سره په امتحان کښې مه اچوه ، اومونږ له هغه خلقو نه مه ګرځوه چه د دین په ذریعه دنیا خوری او په مونږ رحم وکړه او ترټولو لوئ رحم کوونکیه ! او د الله تعالی کامل رحمت دې نازل وی دهغه په مخلوق کښې له ټولو نه په بهتر شخص باندې چه هغه حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم دې اودهغه په ټول اهل باندې چه پاك دی ، او سلامتی دې وی په هغوئ باندې همیشه ستا د رحمت په واسطې سره اې لوئ رحم کوونکیه !.

**په آئینه کښې د کتلو دعا** :

اَللّٰهُمَّ اَحْسَنْتَ خَلْقِيْ فَاَحْسِنْ خُلُقِيْ. (حصن حصين ص ۳۳۶ ج جامع صغير مع شرح فيض القدير ص ۱۲۰ ج ۲)

**ترجمه** : اې الله زما شکل او صورت دې چه څنګه ښايسته پيدا کړې دې نو زما اخلاق هم دغه شان ښايسته جوړ کړې.

**د خطاګانو کفاره** :

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ جِدِّيْ وَهَزْلِيْ وَخَطَئِيْ وَكُلُّ ذٰلِكَ عِنْدِيْ. (مسلم ص۳۴۹ ج۲، حصن حصين ص۲۴۳)

**دنفس د شر نه د پناه دپاره دعا** :

اَللّٰهُمَّ اَلْهِمْنِيْ رُشْدِيْ وَاَعِذْنِيْ مِنْ شَرِّ نَفْسِيْ. (ترمذی ص۵۰۲)

**ترجمه**: اې الله ! ته زما په زړه کښې د نيکۍ او هدايت خبره واچوې او ما د نفس د شر نه بچ کړې

**د زړه د ثابتيدلو دپاره دعا** :

اَللّٰهُمَّ مُصَرِّفَ الْقُلُوْبِ صَرِّفْ قُلُوْبَنَا عَلٰى طَاعَتِكَ. (حصن حصين ص۲۴۳)

**ترجمه** : اې الله ﷻ ! اې د زړونو اړونکيه ذاته ! ته زمونږ زړه خپل اطاعت طرف ته واړوې.

**قبرستان ته د تللو په وخت دعا** :

اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ دَارَ قَوْمٍ مُؤْمِنِيْنَ وَاِنَّا اِنْ شَاءَ اللّٰهُ بِكُمْ لَاحِقُوْنَ.. (مسلم ۱۲۶ ج۱)

**ترجمه** : سلام دې وی په تاسو باندې اې د مؤمنانو د کور اوسيدونکو اومونږ هم ان شاء الله تعالى له تاسو سره يوځای کيدونکی يو .

**د ناخوښه خبرې اوريدو په وخت** : که ناخوښه خبره اوکار ووينې نو دا دعا وايه :

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰى كُلِّ حَالٍ وَاَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ حَالِ اَهْلِ النَّارِ. (تفسير ابن کثير ص۱۶۸ ج۳)

**ترجمه** : په هر حال کښې ټول تعريفونه د الله ﷻ دپاره دی او زه په الله ﷻ پناه غواړم د دوزخيانو د حال نه.

**د قرض د اداء کولو دپاره** :

اَللّٰهُمَّ اكْفِنِيْ بِحَلَالِكَ عَنْ حَرَامِكَ وَاَغْنِنِيْ بِفَضْلِكَ عَمَّنْ سِوَاكَ.. (ترمذی ص۵۱۲)

**ترجمه** : اې الله ﷻ ته زما کفايت وفرمايه په خپل حلال سره د حرام نه او له خپل فضل نه ما غنی جوړ کړه د هغه چانه چه ستا نه سيوا دی.

**که څوک درسره احسان وکړی** : جَزَاكَ اللّٰهُ خَيْرًا. (حصن حصين ۳۵۲)

**ترجمه** : الله ﷻ دې تاته ښه بدله درکړی.

**د قرض په ادا کولو باندې** : اَوْفَيْتَنِيْ اَوْفَى اللّٰهُ بِكَ. (حصن حصين ص۳۵۴)

**ترجمه** : تا زما قرض اداء کړو ، الله تعالى دې تاته پوره بدله درکړی .

**چه مسلمان په خندا ووینی نو دا دعا به وایی** : أَضْحَكَ اللهُ سِنَّكَ. (ابوداود ص۳۵۳ ج۲)

**ترجمه** : الله ﷻ د ې تا همیشه وخندوی او الله ﷻ دې همیشه خوشحاله ساته.

**د سپوږمۍ د لیدلو په وخت کښې** :

اَللّٰهُمَّ اَهِلَّهُ عَلَيْنَا بِالْيُمْنِ وَالْاِيْمَانِ وَالسَّلَامَةِ وَالْاِسْلَامِ رَبِّيْ وَرَبُّكَ اللهُ. (ترمذی ص۴۹۸)

**ترجمه** : اې الله ﷻ دا سپوږمۍ په مونږ د برکت، ایمان او سلامتیا والا جوړه کړه، (اې سپوږمۍ) زما او ستا رب الله ﷻ دې.

**د باران وریدلو په وخت** :

اَللّٰهُمَّ صَيِّبًا نَافِعًا. (بخاری ص۱۴۰ ج۱)

**ترجمه** : اې الله ﷻ چه ښه وریدونکې او فائده مند وی.

**په یو کار کښې د مغلوب کیدلو وخت دعا** : (حَسْبِيَ اللهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلِ).

**ترجمه** : کافی د ې مالره الله ﷻ او هغه بهتر کار ساز دې (حصن حصین ص۳۲۵)

**د ظالم حکمران وغیره نه د ویرې په وخت** :

رَضِيْتُ بِاللهِ رَبًّا وَ بِالْاِسْلَامِ دِيْنًا وَبِمُحَمَّدٍ نَبِيًّا وَ بِالْقُرْاٰنِ حَكَمًا وَاِمَامًا. (حصن حصین ۳۲۳)

**ترجمه** : زه الله ﷻ لره رب، اسلام لره دین ، محمدﷺ لره نبی ، او قرآن لره امام او پیشوا منلو باندې راضی یم.

**د شر نه د بچ کیدو دپاره دعا** : (درې خله ویل پکار دی)

يَا حَيُّ يَا قَيُّوْمُ بِرَحْمَتِكَ اَسْتَغِيْثُ. (حصن حصین ص۳۱۸)

**ترجمه** : اې همیشه ژوندیه او اې قیوم ذاته ! زه ستا په رحمت سره تا ته فریاد کوم.

**داندیښنې له ویرې (دا دعا ویل)**

اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَجْعَلُكَ فِيْ نُحُوْرِهِمْ وَنَعُوْذُبِكَ مِنْ شُرُوْرِهِمْ. (ابوداود ص۲۱۵ ج۱)

**ترجمه** : اې الله ﷻ مونږ ستا ذات ددوی په مقابله کښې سپر (ډال) جوړوو او ددوی د شر نه په تا سره پناه غواړو.

**د زم زم د څښلو په وخت** :

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ عِلْمًا نَافِعًا وَرِزْقًا وَاسِعًا وَشِفَاءً مِنْ كُلِّ دَاءٍ. مستدرک حاکم ص۴۷۳ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابن عباس ﷺ به دا ویل : یا الله ، زه له تا نه دنافع علم او فراخ رزق او د هر درد نه د شفاء سوال کوم.

**په یوځای کښې د قیام کولو په وخت:**

اَعُوْذُ بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ. (مسلم ص۳۴۸ ج۲)

**ترجمه:** زه د الله تعالی په پوره اوکاملو کلمو سره پناه غواړم دهغه څه له شر نه چه هغه پیدا کړی دی

**د مباشرت په وخت دعا:**

بِسْمِ اللهِ اَللّٰهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطٰنَ وَجَنِّبِ الشَّيْطٰنَ مَا رَزَقْتَنَا. (بخاری ص۷۷۶ ج۲ مسلم ص۴۶۳ ج۱)

**ترجمه:** د الله ﷻ په نوم سره اې الله ﷻ! مونږ د شیطان نه محفوظ وساته او هغه څه چه ته یې مونږ ته عطا کوې هغه هم د شیطان نه لرې وساته.

**د فراغت نه بعد:**

اَللّٰهُمَّ لَا تَجْعَلْ لِلشَّيْطٰنِ فِي مَا رَزَقْتَنِيْ نَصِيْبًا. (حصن حصین ص۲۷۲)

**ترجمه:** اې الله ﷻ ته چه مونږ ته څه راکوې په هغې کښې د شیطان حصه مه جوړوه.

**د نوې لباس اغوستونکی دلیدلو په وخت دا دعا وایه:**

تُبْلِيْ وَيُخْلِفُ اللهُ تَعَالٰى. (ابوداود ص۲۰۲ ج۲)

**ترجمه:** ته یې واغونده او زړه یې کړه او الله ﷻ دې تا ته نورې درکړی.

**د لباس اغوستلو په وخت دعا:**

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ كَسَانِيْ مَا اُوَارِيْ بِهٖ عَوْرَتِيْ وَاَتَجَمَّلُ بِهٖ فِيْ حَيَاتِيْ. (ترمذی ص۵۱۲)

**ترجمه:** ټول تعریفونه هغه الله ﷻ دپاره دی، چا چه ماته راواغوستلې هغه چه په هغې زه خپله پرده پوشی کوم او خپل ژوند کښې پرې زینت حاصلوم.

**د خوراک نه وروسته:**

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَطْعَمَنَا وَسَقَانَا وَجَعَلَنَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ.

**ترجمه:** ټول تعریفونه هغه الله ﷻ د پاره دی چا چه په مونږ خوړل اوڅښل وکړل، او مونږ یې مسلمانان وګرځولو. (ترمذی ص۱۹۹)

**د (افطار) روژه ماتې په وخت:**

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ لَكَ صُمْتُ وَعَلٰى رِزْقِكَ اَفْطَرْتُ. (ابوداود ص۳۲۲ ج۱)

**ترجمه:** اې الله ﷻ ما ستا دپاره روژه نیولې ده او ستا په راکړې شوې رزق مې افطار وکړو.

ذَهَبَ الظَّمَأُ وَابْتَلَّتِ الْعُرُوْقُ وَثَبَتَ الْاَجْرُ اِنْ شَاءَ اللهُ. (ابوداود ص ۳۲۱)

**ترجمه**: تنده لاړه ، رګونه لامده شول او اجر ثابت شو انشاءالله.

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ بِرَحْمَتِكَ الَّتِيْ وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ اَنْ تَغْفِرَلِيْ ذُنُوْبِيْ. (مستدرك حاكم ص ۴۲۲ ج ۱، ابن سنی ص ۱۸۰)

**ترجمه**: اې الله ﷻ زه ستا نه ستا د رحمت په واسطې سره سوال کوم،هغه رحمت چه د هر څه نه فراخه دې چه ته زما بښنه وکړې،

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِكَ مِنَ الْكُفْرِ وَالْفَقْرِ وَعَذَابِ الْقَبْرِ. (نسائی ص ۳۱۳)

**ترجمه**: اې الله ﷻ زه ستا نه ستا په ذات سره پناه غواړم د کفر ، فقر او د قبر له عذاب نه.

اَللّٰهُمَّ اَعِنِّيْ عَلٰى ذِكْرِكَ وَشُكْرِكَ وَحُسْنِ عِبَادَتِكَ. (ابوداود ص ۲۱۳ ج ۱)

**ترجمه**: اې الله ﷻ زما مدد وکړه په خپل ذکر ، شکر، او په خپل عبادت کولو باندې.

**چه کله ماشوم خبرې کول شروع کړی نو دا ورته وښایئ**:-

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ. (عمل الیوم والیله لابن سنی ص ۱۶۰)

**ترجمه**: نشته دې لائق د عبادت بغیر د الله ﷻ نه بل څوک.

**د حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ دعا**:

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ نَعِيْمًا لَا يَبِيْدُ وَقُرَّةَ عَيْنٍ لَا تَنْفَدُ وَمُرَافَقَةَ النَّبِيِّ ﷺ فِيْ اَعْلَى الْجَنَّةِ جَنَّةِ الْخُلْدِ (مسند احمد ص ۳۸۶ ج ۱)

**ترجمه**: اې الله ﷻ زه ستانه سوال کوم د داسې نعمت چه نه هلاکیږی، او د داسې سترګو یخوالې ، چه نه ختمیږی نه او د رسول الله ﷺ د ملګرتیا د جنت په اعلی درجه کښې.

**د کافر دپاره دعا**:

حضور ﷺ اوبه طلب کړې نو یو یهودی پرې اوبه وڅښلې نو نغوی ورته دا دعا وکړه:

جَمَّلَكَ اللهُ. (عمل الیوم ولیله لابن سنی ص ۱۱۶)

**ترجمه**: الله ﷻ دې تا ښائسته شکل والا جوړ کړی، (تر مرګه پورې د هغه ویښته سپین نه شو)

**د غسل دپاره له جامو ویستلو نه وړاندې دعا**:

بِسْمِ اللهِ الَّذِيْ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ. (عمل الیوم ولیله لابن سنی ص ۱۱۰)

**ترجمه**: د الله ﷻ په نوم سره، چه د هغه نه بغیر بل څوک معبود نشته

**په مال او اولاد کښې د برکت دپاره**: (هره ورځ درې خله ووایه،

اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدِنِ النَّبِيِّ الْاُمِّيِّ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ وَاَزْوَاجِهٖ اُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ،

**ترجمه**: یا الله! کامل رحمت نازل کړه زمونږ په آقا حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې چه هغه اُمي پیغمبر دې اودهغوئ په آل اودهغه په اصحابو اودهغوئ په پاکو بیبیانو چه د مؤمنانو مورګانې دی.

دا هم هره ورځ درې ځله وایه:

اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ عَبْدِكَ وَرَسُوْلِكَ وَعَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُسْلِمَاتِ.

**ترجمه**: یا الله! کامل رحمت نازل کړه په خپل پیغمبر محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم باندې او په ټولو مؤمنانو سړیو او ټولو مؤمنانو ښځو باندې اوپه ټولو تابعدارو سړیو او په ټولو تابعدارو ښځو باندې.

**چه په څه باندې ډیر اجر ملاویږی (هغه کلمات دادی):**

سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ عَدَدَ خَلْقِهٖ وَزِنَةَ عَرْشِهٖ وَمِدَادَ كَلِمَاتِهٖ وَرِضَاءَ نَفْسِهٖ. (مسلم ص ۳۵۰ ج ۱)

**ترجمه**: پاك دې الله تعالی! اومونږ دهغه تعریف کوو دهغه دمخلوق دشمیر په اندازه اودهغه د عرش د وزن برابر اودهغه د کلماتو د سیاهی په مقدار اودهغه د رضا برابر.

**حضرت حسن بصری به دا درود شریف لوستلو:**

اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ وَاَزْوَاجِهٖ وَذُرِّيَّاتِهٖ وَاَهْلِ بَيْتِهٖ وَاَصْهَارِهٖ وَاَنْصَارِهٖ وَاَشْيَاعِهٖ وَمُحِبِّيْهِ وَاُمَّتِهٖ وَعَلَيْنَا مَعَهُمْ اَجْمَعِيْنَ يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ. (شفاء لقاضی عیاض ص ۵۰)

**ترجمه**: یا الله کامل رحمت نازل کړه په حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې اوهغه په آل او اصحابو اودهغوئ په بیبیانو اودهغوئ په اولاد اودهغوئ په اهل بیت باندې اودهغوئ په سخرګنې اوانصارو باندې اودهغوئ د ډلې په خلقو، یعنی دهغوئ په تابعدارانو اومحبت کوونکو اودهغوئ په امت باندې اوپه مونږ باندې هم له هغوئ سره یوځای او تر ټولو لوئ رحم کوونکیه!

**حضرت شیخ عبد القدوس ګنګوهی به دا درود لوستلو:**

اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِ سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ بِعَدَدِ كُلِّ ذَرَّةٍ اَلْفَ مَرَّةٍ. (تذکرۃ الرشید ص ۲۸ ج ۲)

**ترجمه**: یا الله! کامل رحمت نازل کړه په حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې اودهغوئ په آل باندې د هرې ذرې د عدد مطابق زر ۱۰۰۰ مرتبې.

**د مرګ د سختې نه د بچ کیدلو دپاره:**

اَللّٰهُمَّ اَعِنِّيْ عَلٰى سَكَرَاتِ الْمَوْتِ وَغَمَرَاتِ الْمَوْتِ. (شمائل مع ترمذی ص ۵۹۹)

**ترجمه**: اې الله ﷻ په ما باندې د مرګ سختئ آسانې کړې.

اَللّٰهُمَّ لَقِّنِيْ حُجَّةَ الْاِيْمَانِ عِنْدَ الْمَمَاتِ. (حصن حصين ۴۹۶)

**ترجمه**: اې الله ﷻ ماته د ایمان دلیل وښایه په دنیا کښې د مرګ په وخت.

**د سنت د اتباع دپاره:-**

اَللّٰهُمَّ ارْزُقْنِيْ اِتِّبَاعَ سَيِّدِنَا وَمَوْلَانَا مُحَمَّدٍ رَّسُوْلِ اللهِ ظَاهِرًا وَّبَاطِنًا قَوْلًا وَفِعْلًا عِبَادَةً وَّعَادَةً.

**ترجمه**: اې الله ﷻ ماته زما د آقا حضرت محمد ﷺ اتباع په ظاهر او باطن کښې، په فعل او قول اوعبادت او عادت کښې نصیب کړې.

**د غم نه د بچ کیدو دپاره (هره ورځ درې ځله وایه)**:

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحُزْنِ وَاَعُوْذُبِكَ مِنَ الْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَاَعُوْذُبِكَ مِنَ الْجُبْنِ وَالْبُخْلِ وَاَعُوْذُبِكَ مِنْ غَلَبَةِ الدَّيْنِ وَقَهْرِ الرِّجَالِ. (ترمذی ص ۵۰۲)

**ترجمه**: اې الله ﷻ زه ستا په ذات سره پناه غواړم د اندې ښنې او د غم نه، او زه ستا په ذات سره پناه غواړم د عاجزئ او سستیا نه، اوزه ستا په ذات سره پناه غواړم د بزدلئ او بخل نه، او زه ستا په ذات سره پناه غواړم د قرض د غلبې نه، او د سړو د قهر نه.

**د دنیا د تسلط نه د بچ کیدلو دپاره دعا**:

اَللّٰهُمَّ لَا تَجْعَلْ مُصِيْبَتَنَا فِيْ دِيْنِنَا وَلَا تَجْعَلِ الدُّنْيَا اَكْبَرَ هَمِّنَا وَلَا مَبْلَغَ عِلْمِنَا وَلَا غَايَةَ رَغْبَتِنَا وَلَا تُسَلِّطْ عَلَيْنَا مَنْ لَّا يَرْحَمُنَا. (ترمذی ص ۵۰۲)

**ترجمه**: اې الله ﷻ زمونږ مصیبت زمونږ په دین کښې مه جوړوه، او صرف دنیا زمونږ لوئ مقصود او (دنیا) زمونږ د علم آخری رسیدل، او زمونږ د رغبت انتهاء مه جوړوه، اومونږ باندې داسې څوک مه مسلط کوه چه په مونږ رحم نه کوی.

**د الله د ویرې حاصلولو دپاره**:

اَللّٰهُمَّ ارْزُقْنِيْ عَيْنَيْنِ هَطَّالَتَيْنِ تَسْقِيَانِ الْقَلْبَ بِذُرُوْفِ الدَّمْعِ مِنْ خَشْيَتِكَ قَبْلَ اَنْ تَكُوْنَ الدُّمُوْعُ دَمًا وَّالْاَضْرَاسُ جَمْرًا. (جامع الصغیر مع شرح فیض القدیر ص ۱۳۳ ج ۲)

**ترجمه**: اې الله! ماته داسې سترګې راکړه چه هغه ستا د ویرې نه ژړیږی. او بهیدونکو اوښکو سره زما زړه سیراب کړه ددینه وړاندې چه اوښکې وینه جوړه شی او غاښونه د اور سکروټې (جوړ شی).

**د تقوی د حاصلولو دپاره (روزانه یو ځل)**:

اَللّٰهُمَّ اٰتِ نَفْسِيْ تَقْوٰهَا وَزَكِّهَا اَنْتَ خَيْرُ مَنْ زَكّٰهَا اَنْتَ وَلِيُّهَا وَمَوْلَاهَا. (حصن حصين ۴۶۴)

ترجمه: اې الله ﷻ! ماته زما دنفس پرهیزګاری راکړه او پاك یی کړه، ته بهتر پاکونکې یې او ته ددې نفس آقا او مولی یې.

**د ایمانی محبت د حاصلیدلو دپاره:**

**اَللّٰهُمَّ حَبِّبْ اِلَیْنَا الْاِیْمَانَ وَزَیِّنْهُ فِیْ قُلُوْبِنَا وَ کَرِّهْ اِلَیْنَا الْکُفْرَ وَالْفُسُوْقَ وَالْعِصْیَانَ وَاجْعَلْنَا مِنَ الرَّاشِدِیْنَ.**

**(حصن حصین ص۳۱۰)**

**ترجمه**: اې الله ﷻ! ماته زما ایمان راخوښ کړه او دا زمونږ په زړونو کښې ښائسته کړه. او کفر، فسق، او نافرمانی زمونږ په زړونو کښې ناخوښه کړه او مونږ هدایت کوونکی جوړ کړه

# مختصر قرآنی اوراد

سورة فاتحه، آیة الکرسی، د بقرې آخری آیتونه، د سورة آل عمران آخری رکوع له **(ان فی خلق السموت)** نه تر **(انك لا تخلف المیعاد)** پورې، د سورة مؤمنون آخری رکوع، **(افحسبتم انما خلقنکم عبثا)** نه تر آخره پورې، **(حم، تنزیل الکتب من الله العزیز العلیم، غافر الذنب وقابل التوب)**. درې آیتونه، د سورة حشر آخری آیتونه.

سورة زلزال، سورة التکاثر، سورة الکافرون، سورة الاخلاص، معوذتین **(قل اعوذ برب الفلق)** او **(قل اعوذ برب الناس)**.

سحر او ماښام دوه وخته، او که دوه وخته ممکن نه وی نو یو ځل ددې ضروری ویل پکار دی او که ددې سره روزانه د سحر په وخت سورة «یٰسٓ» او د ماښام نه پس سورة «السجده» او د ماسخوتن نه پس «سورة الملك» او د جمعې په شپه سورة «دخان» او د جمعې په ورځ سورة «کهف» یا د دې اول لس آیتونه، او آخری لس آیتونه، او د خیر او برکت د حصول د پاره سورة مزمل هم که ولوستلې شی نو ډیره بهتره به وی.

که الله ﷻ چا ته توفیق ورکړو چه هغه د قرآن کریم د تلاوت او د مسنونه اذکارو سره سره د الحزب الاعظم د ملا علی قاری رحمه الله او مناجات مقبول د مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله او دلائل الخیرات د حضرت شیخ محمد بن سلیمان جزولی رحمه الله او حزب البحر د مولانا ابو الحسن شاذلی او حصن حصین د حضرت جزری ولولی.

که ددینه یو منزل هم وایی نو داتول مقبولې او متبرك دعاګانې دی، **انشاءالله** ډیر فیض به ورته حاصل شی، اسلاف کرام په دې باندې عمل کونکی پاتې شوې دی، لیکن دا خبره یاد ساته چه

ددې دعاګانو نه څه دعا د غلط او ناجائزه مقصد د پاره ويل د الله ﷻ د غضب او د ناراضتيا موجب جوړيدلې شي. دټولو جائزو مقصدونو د پاره يې ويل پکار دی ، او خاص طور باندې د الله ﷻ په نزديکت نظر کول پکار دی. مقصد همدا کيدل پکار دی چه الله ﷻ په څه طريقې سره زمونږ نه رضا شي.

## د چشتيه د مشائخ کرامو معمولات

(۱) اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى سَيِّدِنَا وَمَوْلَانَا مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَبَارِكْ وَسَلِّمْ كَمَا تُحِبُّ وَتَرْضٰى عَدَدَ مَا تُحِبُّ وَتَرْضٰى. (درې خله)

(۲) اَسْتَغْفِرُ اللهَ الَّذِىْ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَىُّ الْقَيُّوْمُ وَاَتُوْبُ اِلَيْهِ. (درې خله)

(۳) اَسْتَغْفِرُ اللهَ رَبِّىْ مِنْ كُلِّ ذَنْبٍ وَّاَتُوْبُ اِلَيْهِ. [1] (درې خله)

سُبْحَانَ اللهِ (سل خله) سحر او ماښام.

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ. ..........................

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ. ..........................

اَللهُ اَكْبَرُ ..........................

اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى ـ الخ ..........................

اَسْتَغْفِرُ اللهَ الَّذِىْ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَىُّ الْقَيُّوْمُ وَاَتُوْبُ اِلَيْهِ. ..........................

## عمومي اوراد

لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ سُبْحَانَكَ اِنِّىْ كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ (سل خله يا خومره چه درته آسانه وی)

اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدِ النَّبِىِّ الْاُمِّىِّ وَاٰلِهٖ ..........................

يَا عَزِيْزُ، يَا مُغْنِىْ ..........................

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ ..........................

اَلْحَىُّ الْقَيُّوْمُ ..........................

---

[1] - هٰذِهِ التَّسْبِيْحَاتُ السِّتَّةُ الَّتِىْ لَقَّنَنِىْ شَيْخِىْ وَمُرْشِدِىْ شَيْخُ الْاِسْلَامِ مَوْلَانَا السَّيِّدُ حُسَيْنُ اَحْمَدُ الْمَدَنِىْ رَحِمَهُ اللهُ عِنْدَ اَخْذِ الْبَيْعَةِ وَاَيْضًا لَقَّنِىْ ((يَاسَ انفاس)) وَاَيْضًا اَجَازَنِىْ بِقِرَاءَةِ ((حصن حصين)) وَ((دَلَائِلُ الْخَيْرَاتِ)) فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ عَلٰى ذٰلِكَ (سواتى)

اَلرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ..............................

اَلْحَنَّانُ الْمَنَّانُ ..............................

يَاذَاالْجَلَالِ وَالْاِكْرَامِ ..............................

لَاحَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللهِ ..............................

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِلَّذِيْنَ ظَلَمْتُهُمْ وَاَسَاْتُهُمْ ..............................

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِاُمَّةِ مُحَمَّدٍ ﷺ ..............................

اَللّٰهُمَّ ارْحَمْ اُمَّةَ مُحَمَّدٍ ﷺ ..............................

اَللّٰهُمَّ اهْدِ اُمَّةَ مُحَمَّدٍ ﷺ ..............................

اَللّٰهُمَّ اَصْلِحْ اُمَّةَ مُحَمَّدٍ ﷺ ..............................

اَللّٰهُمَّ تَجَاوَزْ عَنْ اُمَّةِ مُحَمَّدٍ ﷺ ..............................

اَللّٰهُمَّ اجْمَعْ اُمَّةَ مُحَمَّدٍ ﷺ ..............................

لَمَّا دُخِلَ عَلٰى عُثْمَانَ جَعَلَ يَقُوْلُ: (تفسیر ابن کثیر، (ص۵۳۷ ج۱)

اَللّٰهُمَّ فَرِّجْ عَنْ اُمَّةِ مُحَمَّدٍ ﷺ (سل ځله)

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَنَا وَلِوَالِدِيْنَا وَلِاَسَاتِذَتِنَا وَلِمَشَائِخِنَا ................

اَللهُ الصَّمَدُ ................

حَسْبِيَ اللهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ ................

حَسْبُنَا اللهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ ................

سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهٖ سُبْحَانَ اللهِ الْعَظِيْمِ ................

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ................

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِيْ وَتُبْ عَلَيَّ اِنَّكَ اَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ................

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِيْ وَتُبْ عَلَيَّ اِنَّكَ اَنْتَ التَّوَّابُ الْغَفُوْرُ ................

اَللهُ اَللهُ رَبِّيْ لَا اُشْرِكُ بِهٖ اَحَدًا ................

اَللهُ اَللهُ رَبِّيْ لَا اُشْرِكُ بِهٖ شَيْئًا ................

مَاشَاءَاللّٰهُ لَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ ................

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ الْمُبِيْنُ ................

عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ (مرفوعا) مَنْ قَالَ فِيْ يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ الْمُبِيْنُ كَانَ لَهٗ اَنِيْسًا فِيْ وَحْشَةِ الْقَبْرِ وَاسْتَجْلَبَ الْغِنٰى وَاسْتَقْرَعَ بَابَ الْجَنَّةِ (حلية الاولياء ص۲۸۰، ج۸)

سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ «سل خله وینایی ضرور ده، نور چه څومره زیات کیدې شی ودې وایی»

**د حضرت معروف کرخی رحمة الله علیه دعا** : حضرت معروف کرخی رحمة الله علیه فرمایی چه کوم سړې دا دعا په ورځ کښې لس ځله وایی هغه به په ابدالو کښې ولیکلې شی :

اَللّٰهُمَّ اَصْلِحْ اُمَّةَ مُحَمَّدٍ ﷺ اَللّٰهُمَّ فَرِّجْ عَنْ اُمَّةِ مُحَمَّدٍ اَللّٰهُمَّ ارْحَمْ اُمَّةَ مُحَمَّدٍ ﷺ (حلية الاولياء ص۳۶۶ ج۸)

**ترجمه** : یا الله! دحضرت محمد صلی الله علیه وسلم د اُمت حالات صحیح اودرست کړه! یا الله! د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم له اُمت نه تنګی لرې کړه ، یا الله! دحضرت محمد صلی الله علیه وسلم په اُمت باندې رحم وکړه .

**د ښی لا س په ګوتو په ورځ کښې یو ځل** «داکلمات وایه» :

سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ.

**ترجمه** : پاك دې الله ، ټول تعریفونه الله تعالی لره دی اوله هغه نه سیوا بل معبود نشته او الله لوئ دې اوله بدی نه د بچ کولو او دنیکی طاقت نه حاصلیږی مګر د الله په مدد اوتوفیق سره .

**د چپ لا س په ګوتو په ورځ کښې یو ځل** «دا کلمات وایه» :

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ وَارْحَمْنِيْ وَارْزُقْنِيْ وَاهْدِنِيْ وَعَافِنِيْ وَاجْبُرْنِيْ وَارْفَعْنِيْ ، (ابوداود ص۱۲۳ ج۱، ترمذی ص۶۸، ابن ماجه ص۶۴)

**ترجمه** : یا الله! ما ته ښښنه وکړه ، په ما رحم وکړه ، ما ته روزی، هدایت اوعافیت راکړه، او زما دشکستګی عوض راکړه اوما اوچت کړه .

**د عجز د ښکاره کولو دپاره** : «هره ورځ یو ځل وایه» :

اَللّٰهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا اَعْطَيْتَ وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ . (مسلم، ج۱، ص ۲۱۸).

**ترجمه** : اې الله جل جلاله ته چه څاته ورکړه کوې هغه څوك بندولې نه شی او ته چه له چا نه څه بند کړې هغه ته څوك څه ورکړه نه شی کولې، او بخت والا یا کوشش والا ته د هغه بخت اوکوشش ستا په وړاندې فائده نه شی ورکولې

**د شرک نه د براءت دپاره :**

اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَعُوْذُبِكَ مِنْ اَنْ اُشْرِكَ بِكَ شَیْئًا وَّاَنَا اَعْلَمُ وَاسْتَغْفِرُكَ لِمَا لَا اَعْلَمُ وَتَبَرَّاْتُ مِنَ الْكُفْرِ وَالشِّرْكِ وَالنِّفَاقِ وَالرِّيَاءِ وَالْكِذْبِ وَالْخِيَانَةِ وَالنَّمِیْمَةِ وَالْفَوَاحِشِ وَالْمَعَاصِیْ كُلِّهَا وَاَسْلَمْتُ وَاٰمَنْتُ وَاَقُوْلُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ .

**ترجمه** : يا الله ! زه ستا په ذات باندې پناه غواړم له دې نه چه زه له تا سره شريك ونيسم په داسې حال کښې چه زه پوهيږم، اوزه معافي غواړم له هغه څه نه چه زه پرې نه پوهيږم، زه بيزار يم له کفر، شرك، نفاق او دروغو ، خيانت ، شيطانت، بهتان او ټولو بې حيايي اوګناهونو نه ، او زه اسلام راوړم او ايمان راوړم اوزه وايم چه الله تعالى نه سيوا بل څوك د عبادت لائق نشته، او حضرت محمد صلی الله عليه وسلم دالله تعالى رسول دې .

**په وعده باندې د استقامت دپاره :**

اَللّٰهُمَّ اَنْتَ رَبِّیْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ خَلَقْتَنِیْ وَاَنَا عَبْدُكَ وَاَنَا عَلٰی عَهْدِكَ وَوَعْدِكَ مَا اسْتَطَعْتُ اَعُوْذُبِكَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ اَبُوْءُ لَكَ بِنِعْمَتِكَ عَلَیَّ اَبُوْءُ بِذَنْبِیْ فَاغْفِرْلِیْ فَاِنَّهٗ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اَنْتَ. (حصن حصین ص ۳۲۱)

**ترجمه** : يا الله ! ته زما رب يې ، له تا نه سيوا بل معبود نشته اوزه ستا بنده يم او ستا په عهد او وعده باندې قائم ولاړ يم، ترڅو چه زما په وس او طاقت وی، زه ستا په ذات باندې پناه غواړم دهغه څيز له بدی نه چه ما کړی دی ، زه ستا په هغه نعمت اقرار کوم چه په ما دې کړې دې او زه اقرار کوم په خپلې ګناه باندې، نو ما وبښه ! بيشکه ته د ګناهونو ښښونکې يې .

**عهد نامه :**

اَللّٰهُمَّ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ اِنِّیْ اَعْهَدُ اِلَيْكَ فِیْ هٰذِهِ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا بِاَنِّیْ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ وَحْدَكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ وَاَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُكَ وَرَسُوْلُكَ وَاِنَّكَ اِنْ تَكِلْنِیْ اِلٰی نَفْسِیْ تُقَرِّبْنِیْ مِنَ الشَّرِّ وَتُبَاعِدْنِیْ مِنَ الْخَيْرِ وَاِنِّیْ لَا اَثِقُ اِلَّا بِرَحْمَتِكَ فَاجْعَلْ لِّیْ عِنْدَكَ عَهْدًا تُوَفِّيْنِيْهِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ (تفسیر ابن کثیر ص ۱۳۸، ج ۳)

**ترجمه** : يا الله ! چه ته د آسمانونو اوزمکې پيداکوونکې يې او په پټو او ښکاره خبرو باندې عالم يې ، زه تا ته وعده درکوم د دې دنيا په ژوند کښې چه زه ګواهی درکوم د دې خبرې چه ستا نه سيوا بل معبود نشته ، تو يو يې او شريك نلرې . او زه ګواهی درکوم چه حضرت محمد صلی الله عليه وسلم ستا بنده او رسول دې ، که ته ما زما نفس ته حواله کړې نو ما به شر ته نزدې کړې او له خير نه به مې لرې کړې او زه بغير ستا له رحمت نه په بل څه اعتماد نه کوم ، نو زما لپاره له خان

سره یوه داسې وعده مقرره کړه چه د قیامت په ورځ له ما سره وفا پرې وکړې .بیشکه ته د خپلې وعدې نه خلاف نه کوې .

## د الله د محبت حاصلولو دپاره خصوصي دعا :

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ فِعْلَ الْخَيْرَاتِ وَتَرْكَ الْمُنْكَرَاتِ وَحُبَّ الْمَسَاكِيْنِ وَاِنْ تَغْفِرَلِيْ وَتَرْحَمَنِيْ وَاِذَا اَرَدْتَ بِقَوْمٍ فِتْنَةً فَتَوَفَّنِيْ اِلَيْكَ غَيْرَ مَفْتُوْنٍ اَللّٰهُمَّ ارْزُقْنِيْ حُبَّكَ وَحُبَّ مَنْ يُّحِبُّكَ وَحُبَّ عَمَلٍ يُّقَرِّبُنِيْ اِلٰى حُبِّكَ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ حُبَّكَ اَحَبَّ اِلَيَّ مِنْ نَّفْسِيْ وَاَهْلِيْ وَمِنَ الْمَاءِ الْبَارِدْ. (حصن حصین ص۲۷۰، حاشیه ترمذی ص۳۶۶)

**ترجمه** : یا الله ! زه له تا نه سوال کوم چه ما ته دنیکی کولو توفیق راکړه او له بدو څخه د منع کیدلو او له مسکینانو سره د محبت کولو توفیق راکړه . او دا چه ما ته بښنه وکړه او په ما رحم وکړه او کله چه ته یو قوم لره د فتنې اراده وکړې نو ما خپل طرفته وبله په داسې حال کښې چه زه په فتنه کښې مبتلا نه یم، یا الله ! ما ته خپل محبت نصیب کړه اودهغه چا محبت را ته نصیب کړه چه له تا سره محبت کوی او د داسې عمل محبت را ته نصیب کړه چه ما ستا محبت ته نزدې کوی ، یا الله ! خپل محبت ما ته زما له نفس او اهل اویخو اوبو څخه هم زیات محبوب کړه .

## د استسقاء دپاره :

اَللّٰهُمَّ اسْقِنَا اَللّٰهُمَّ اَغِثْنَا. (بخاری ص۱۳۷، ج۱، مسلم ص۱۹۳، ج۱)

**ترجمه** : یا الله ! مونږ په اوبو باندې سیراب اوماړه کړه ، یا الله په مونږ باران وکړه .

## د مصیبت په وخت او د قرآن د شروع په وخت کښې :

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ عَبْدُكَ وَابْنُ عَبْدِكَ وَابْنُ اَمَتِكَ نَاصِيَتِيْ بِيَدِكَ مَاضٍ فِيَّ حُكْمُكَ عَدْلٌ فِيَّ قَضَاءُكَ اَسْئَلُكَ بِكُلِّ اِسْمٍ هُوَلَكَ سَمَّيْتَ بِهٖ نَفْسَكَ اَوْ اَنْزَلْتَهٗ فِيْ كِتَابِكَ اَوْ عَلَّمْتَهٗ اَحَدًا مِّنْ خَلْقِكَ اَوِاسْتَأْثَرْتَ بِهٖ فِيْ عِلْمِ الْغَيْبِ عِنْدَكَ اَنْ تَجْعَلَ الْقُرْاٰنَ الْعَظِيْمَ رَبِيْعَ قَلْبِيْ وَنُوْرَ بَصَرِيْ وَجِلَاءَ حُزْنِيْ وَذِهَابَ هَمِّيْ (اِلَّا اَذْهَبَ اللهُ هَمَّهٗ وَاَبْدَلَ مَكَانَ حُزْنِهٖ فَرَحًا). (حصن حصین ص۳۱۹)

**ترجمه** : یا الله ! زه ستا بنده یم اوستا د بنده او ستا د وینځې زوئ یم. زما تندې (ناصیه) ستا په قدرت کښې ده . ستا حکم زما په حق کښې نافذ دې اوستا فیصله زما په باره کښې نافذه ده او ستا فیصله زما په باره کښې د انصاف ده. زه له تا نه سوال کوم چه ستا دهر هغه پاک نوم په واسطه چه په هغې سره تا خپل ذات نومولې ((مسمی کړې)) دې اویا دې هغه په خپل کوم کتاب کښې نازل کړې دې اویا دې هغه په خپل مخلوق کښې چا ته ښودلې دې او یا دې هغه له ځان سره په علم غیب کښې محفوظ ساتلې دې ، دهغې په واسطه زه له تا نه سوال کوم چه قرآن کریم زما د زړه پسرلې

«ښانسټ» او زما د سترګو نور اوزما د غمونو اوټولو اندیښنو لرې کوونکې وګرځوې .

**د قرآن پاک دختم په وخت :**

اَللّٰهُمَّ اٰنِسْ وَحْشَتِيْ فِيْ قَبْرِيْ اَللّٰهُمَّ ارْحَمْنِيْ بِالْقُرْاٰنِ الْعَظِيْمِ وَاجْعَلْهُ لِيْ اِمَامًا وَّنُوْرًا وَّهُدًى وَّرَحْمَةً. اَللّٰهُمَّ ذَكِّرْنِيْ مِنْهُ مَا نَسِيْتُ وَعَلِّمْنِيْ مِنْهُ مَا جَهِلْتُ وَارْزُقْنِيْ تِلَاوَتَهٗ اٰنَاءَ الَّيْلِ وَاٰنَاءَ النَّهَارِ وَاجْعَلْهُ لِيْ حُجَّةً يَّارَبَّ الْعَالَمِيْنَ.

(الحزب اعظم ص۱۰۸)

**ترجمه** : یا الله زما په قبر کښې زما ویره په اُنس او آرام بدله کړه . یا الله په ما باندې رحم وکړه د قرآن کریم په برکت سره . اوهغه زما دپاره پیشوا . نور . هدایت اورحمت جوړ کړه . یا الله ! رایاد کړه ما ته هغه څه چه ما له دې قرآن نه هیر کړی دی او وښایه ما ته «د دې قرآن» هغه څه چه زه په هغې نه پوهیږم . اوسحر او بیګا ما ته د قرآن پاك د تلاوت توفیق راکړه او هغه زما دپاره حجت او دلیل جوړ کړه یا د ټول عالم پالونکیه !

**د دفن کولو په وخت :**

بِسْمِ اللهِ وَعَلٰى مِلَّةِ (سُنَّةِ) رَسُوْلِ اللهِ. (ترمذی ص۱۷۰،ابوداود ص۱۰۲،ابن ماجه ص۱۱۱)

**ترجمه** : د الله تعالی په نوم او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په سنت او یا دهغوئ په ملت باندې «دغه مړې په قبر کښې سپارم» .

**د اور لګیدلو په وخت** : اَللّٰهُ اَكْبَرُ. اَللّٰهُ اَكْبَرُ. اَللّٰهُ اَكْبَرُ. «بار بار به دا وایی» .

**په سپرلئ باندې د سوریدلو په وخت :**

بِسْمِ اللهِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ سُبْحٰنَ الَّذِيْ سَخَّرَ لَنَا هٰذَا وَمَا كُنَّا لَهٗ مُقْرِنِيْنَ. وَاِنَّا اِلٰى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُوْنَ. (ابوداود ص۳۵۰ ج۱، ترمذی ص۱۹۷،مسند احمد ص۹۷۸)

**ترجمه** : د الله تعالی په نوم سوریږم ، ټول تعریفونه هغه الله تعالی لره دی چه ما لره یې دغه سورلئ تابع اوفرمانبرداره کړه اومونږ دهغې د قابو کولو طاقت نه درلودلو . بیشکه مونږ خامخا د خپل رب طرفته ورتلونکی یو .

**په کشتئ کښې د سوریدلو په وخت :**

بِسْمِ اللهِ مَجْرِيْهَا وَمُرْسٰهَا اِنَّ رَبِّيْ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ. وَمَا قَدَرُوا اللهَ حَقَّ قَدْرِهٖ وَالْاَرْضُ جَمِيْعًا قَبْضَتُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَالسَّمٰوٰتُ مَطْوِيّٰتٌ بِيَمِيْنِهٖ سُبْحٰنَهٗ وَتَعَالٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ. (تفسیر ابن کثیر ص۴۳۶ ج۲)

**ترجمه** : د الله تعالی د پاك نوم په برکت سره دا چلیږی او ودریږی بیشکه زما پروردګار ډیر بښونکې او ډیر مهربان دې، او دې خلقو د الله تعالی قدر ونه کړو څنګه چه دهغه قدر کول حق وو

اوتوله زمکه به د قیامت په ورځ دهغه په قبضه کښې وی اوټول آسمانونه به دهغه په ښی لاس کښې را غونډ شوی وی ، دهغه ذات له هغه څیز څخه پاك دي چه خلق یی له هغه سره شریکوی

**مسجد ته د داخلیدلو په وخت** : دروډ شریف به ووایه او بیا دا دعا ووایه:

اَللّٰهُمَّ افْتَحْ لِيْ اَبْوَابَ رَحْمَتِكَ. (مسلم ص۲۴۸،ج۱،ابوداود ص۶۷،ج۱)

**ترجمه** : یا الله ! د خپل رحمت دروازې ما ته خلاصې کړه !

یا دا دعا ووایه : (اَللّٰهُمَّ اَجِرْنِيْ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ). (مستدرك حاكم ص۲۰۷،ج۱) وقال الحاكم والذهبی علی شرطهما)

**ترجمه** : یا الله ! ما ته له شیطان رټلی شوی نه پناه راکړه !

**د مسجد نه د وتلو په وخت دعا** : اول درود شریف ووایه او بیا به دا دعا ووایه:

اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَسْئَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ. (مسلم ص۲۴۸،ج۱،ابوداود ص۶۷،ج۱)

**ترجمه** : یا الله ! زه له تا نه ستا د فضل سوال کوم.

یا دا دعا ووایه : (اَللّٰهُمَّ اَجِرْنِيْ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ). (مواردالظمان ص۱۰۱)

**ترجمه** : یا الله ! ما ته له شیطان رټلی شوی نه پناه راکړه !

**دليلة القدر په ليدلو سره** :

اَللّٰهُمَّ اِنَّكَ عَفُوٌّ تُحِبُّ الْعَفْوَ فَاعْفُ عَنِّيْ. (مستدرك حاكم ص۵۳۰،ج۱)

**ترجمه** : یا الله ! ته ډیر عفوه کوونکي یې او معاف کول خوښوې ، ما هم معاف کړه !

## درود شریف

۱ - اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ. اَللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ. (بخاری ص۴۷۶،ج۱، مسلم ص۱۷۵،ج۱)

**ترجمه** یا الله خپل رحمت نازل کړه په محمد صلی الله علیه وسلم باندې اودهغوئ په آل باندې لکه څنګه چه تا رحمت نازل کړې وو په حضرت ابراهیم (علیه السلام) باندې اودهغه په آل باندې، بیشکه ته ستایلې شوې او لوئ ذات یې ، یا الله برکت نازل کړه په حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې اودهغه په آل باندې لکه څنګه چه تا برکت نازل کړې وو په حضرت ابراهیم (علیه السلام) باندې اودهغه په آل باندې بیشکه ته ستایلې شوې اولوئ ذات یې.

۲ - اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى رُوْحِ سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ فِي الْأَرْوَاحِ وَعَلٰى جَسَدِهٖ فِي الْأَجْسَادِ وَعَلٰى قَبْرِهٖ فِي الْقُبُوْرِ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَسَلِّمْ. (جلب القلوب ۲۶۹)

**ترجمه** : یا الله ! کامل رحمت نازل کړه زمونږ د سردار حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په پاک روح باندې په روحونو کښې اودهغه په مبارك جسم باندې په جسمونو کښې اودهغه مبارك په قبر باندې په قبرونو کښې اودهغه په آل او اصحاب باندې.

۳ - اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدِ ࢽالنَّبِيِّ الْأُمِّيِّ وَأَزْوَاجِهٖ وَذُرِّيَّتِهٖ وَأَهْلِ بَيْتِهٖ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اٰلِ إِبْرَاهِيْمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ. (حصن حصین ص ۲۱۷)

**ترجمه** : یا الله ! په حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې خپل کامل رحمت نازل کړه چه اُمّی نبی دې اودهغه په پاکو بیبیانو باندې چه د مؤمنانو مورګانې دی اودهغه په اولاد باندې اودهغه په اهل بیت باندې لکه څنګه چه تا رحمت نازل کړې وو په ابراهیم علیه السلام باندې ، بیشکه ته ستایلې شوې او لوئ ذات یې.

۴ - اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ كُلَّمَا ذَكَرَهُ الذَّاكِرُوْنَ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ كُلَّمَا غَفَلَ عَنْ ذِكْرِهِ الْغٰفِلُوْنَ

**ترجمه** : یا الله ! خپل کامل رحمت نازل کړه زمونږ په سردار حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې کله هم چه ذکر کوونکی دهغه ذکر کوی ، او یا الله ! خپل کامل رحمت نازل کړه زمونږ په سردار حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې چه کله هم غفلت کوونکی دهغه له ذکر نه غافل کیږی.

۵ - اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ صَلٰوةً تُنَجِّيْنَا بِهَا مِنْ جَمِيْعِ الْأَهْوَالِ وَالْاٰفَاتِ وَتَقْضِيْ لَنَا بِهَا جَمِيْعَ الْحَاجَاتِ وَتُطَهِّرُنَا بِهَا مِنْ جَمِيْعِ السَّيِّئَاتِ وَتَرْفَعُنَا بِهَا أَعْلَى الدَّرَجٰتِ وَتُبَلِّغُنَا بِهَا أَقْصَى الْغَايَاتِ مِنْ جَمِيْعِ الْخَيْرَاتِ فِي الْحَيٰوةِ وَبَعْدَ الْمَمَاتِ.

**ترجمه** : یا الله ! خپل کامل رحمت نازل کړه زمونږ په سردار حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې ، داسې رحمت چه مونږ له ټولو خطرونو اوآفتونو څخه وساتی اودهغې په برکت سره زمونږ ټول حاجتونه پوره کړې اودهغه په برکت سره مونږ له ټولو ګناهونو نه پاك کړې اودهغې په برکت سره مونږ اوچتو درجو ته ورسوې اودهغې په برکت سره مونږ د ټولو نیکیانو انتهاء ته ورسوې ، هم په ژوند کښې او هم له مرګ نه وروسته.

۶ - اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدِ ࢽالنَّبِيِّ الْأُمِّيِّ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَبَارِكْ وَسَلِّمْ.. (الدار الثمین ص ۳۶)

**ترجمه** : یا الله ! خپل کامل رحمت اوسلامتی اوبرکتونه نازل کړه په حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې چه اُمّی پیغمبر دې اودهغه په آل او اصحابو باندې.

۷ - اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ مُنْشِئِ الْخَلْقِ مِنْ عَدَمٍ ثُمَّ الصَّلٰوةُ عَلَى الْمُخْتَارِ فِي الْقِدَمِ مَوْلَايَ صَلِّ وَسَلِّمْ دَائِمًا اَبَدًا عَلٰى حَبِيْبِكَ خَيْرِ الْخَلْقِ كُلِّهِمِ. (قصیده برده)

**ترجمه**: ټول تعریفونه هغه الله لره دي چه مخلوق لره له نیستی (عدم) څخه پیدا کونکې دې، بیا دې کامل رحمت وی په هغه هستی باندې چه له پخوا زمانې څخه غوره کړې شوې دې، اې زما مولا! خپل کامل رحمت او سلامتیا نازله کړه د تل لپاره په خپل هغه پاك محبوب باندې چه له ټول مخلوق څخه غوره دې

۸ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ صَلَوَاتِكَ وَبَرَكَاتِكَ عَلٰى مُحَمَّدِنِ النَّبِيِّ وَاَزْوَاجِهٖ اُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ وَذُرِّيَّتِهٖ وَاَهْلِ بَيْتِهٖ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ. (جلاء الافهام لابن قیم، ص ۱۲)

**ترجمه**: یا الله! خپل ټول لوئ، لوئ رحمتونه نازل کړه په حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې چه نبی دې اودهغه په ټولو بیبیانو باندې چه دمؤمنانو مورگانې دی اودهغوئ په اولاد باندې اودهغوئ په اهل بیت باندې لکه څنگه چه تا رحمت نازل کړې دې په حضرت ابراهیم علیه السلام باندې. بیشکه ته ستایلې شوې او لوئ ذات يې

(۹) حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ او حضرت زید بن وهب رحمه الله فرمایي چه د جمعې په ورځ یو زر (۱۰۰۰) خله دا درود شریف لولئ: (اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدِنِ النَّبِيِّ الْاُمِّيِّ).

**ترجمه**: یا الله خپل کامل رحمت نازل کړه په حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې چه اُمی پیغمبر دې

**د نبی کریم ﷺ د زیارت لپاره درود شریف**: شیخ عبد الحق محدث دهلوی رحمه الله لیکلی دی چه کوم سړې د جمعې په شپه دوه رکعته نفل وکړی او په هر رکعت کښې د سورة فاتحې نه وروسته «قل هو الله احد» سورة پنځه ویشت خله ووایی او د سلام نه وروسته یوزر (۱۰۰۰) خله دا درود شریف ووایی (صَلَّى اللّٰهُ عَلَى النَّبِيِّ الْاُمِّيِّ).

**ترجمه**: اې الله ﷻ رحمت نازل کړه په نبی امی ﷺ باندې

نوهغه ته به په خوب کښې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم زیارت نصیب شی (جذب القلوب، ص ۲۶۱).

**جامع درود شریف**: (هره ورځ یو خل)

اَللّٰهُمَّ صَلِّ وَسَلِّمْ عَلٰى جَمِيْعِ الْاَنْبِيَاءِ وَالْمُرْسَلِيْنَ وَعَلَى الْمَلٰئِكَةِ الْمُقَرَّبِيْنَ وَعَلٰى صَالِحِ الْجِنِّ وَالْمُؤْمِنِيْنَ وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ.

**ترجمه**: یا الله! په ټولو انبیاؤ، رسولانو، مقربینو ملائکو، په نیکانو پیریانو، مؤمنانو او په خپلو نیکو بندگانو خپل کامل رحمت او سلامتیا نازله کړه.

**د جمعې په ورځ د درود شریف فضیلت** : حضرت ابراهیم ابن ادهم په خپل سند سره د حضرت علی ﷺ نه مرفوعاً نقل کړې دې چه رسول الله ﷺ فرمایی :

مَنْ صَلّٰى يَوْمَ الْجُمُعَةِ مِائَةَ مَرَّةٍ جَاءَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَمَعَهُ نُوْرٌ لَوْ قُسِّمَ ذٰلِكَ النُّوْرُ بَيْنَ الْخَلْقِ كُلِّهِمْ لَوَسِعَهُمْ.

**ترجمه** کوم سړې چه د جمعې په ورځ سل خله درود شریف ووایی، هغه به د قیامت په ورځ راشی او د هغه سره به داسې نور وی که هغه نور په ټول مخلوق باندې تقسیم کړې شی نو د ټولو د پاره به کفایت وکړی

وَاٰخِرُ دَعْوَانَا اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ. وَصَلَّى اللّٰهُ تَعَالٰى عَلٰى خَيْرِ خَلْقِهٖ مُحَمَّدٍ وَّاٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَاَزْوَاجِهٖ اُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ وَاَتْبَاعِهٖ اِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ.

**تم الکتاب بفضله تعالی ،**

**اللهم جعله خالصا لوجهک الکریم ،**

**احقر عبدالحمید «سواتی»**

**خادم مدرسة نصرة العلوم وجامع مسجد نور نزد گهنټه گهر شهر گوجروانواله**

**رجب ، سنه ۱۴۰۶ هـ**

# ضمیمه

**«له ۵۰۷ صفحې نه وړاندې»**

**مسئله** - په مونځ کښې څوک په خپل لاس سره مدد حاصلولې شی «یعنی کله چه ضرورت راشی» لکه چه امام بخاری رحمه الله په ترجمة الباب کښې نقل کړی دی چه حضرت عبدالله بن عباس رض وفرمایل چه سړې خپل لاس سره مدد حاصلولې شی په خپل بدن کښې چه څنګه وغواړی. «په دې شرط چه هغه معامله د مونځ سره تعلق لری»

امام بخاری فرمایی چه ابو اسحاق خپله ټوپۍ پورته کړه او په سر یې کېښودله او لدینه علاوه امام بخاری فرمایی چه حضرت امیرالمؤمنین علی رض خپل ښې لاس په مونځ کښې د خپل چپ لاس په مړوند کېښودلو هغه به یې نه پورته کولو مګر دا چه چیرته په بدن کښې خارښ وو اویا به جامې درست کول ضرور وو. نو هغه به یې پورته کولو.

حافظ ابن حجر په فتح الباری شرح دبخاری کښې لیکلی دی چه حضرت علی رض به کله د مونځ د پاره ودریدلو نو تکبیر ویلو سره به یې خپل ښې لاس د چپ لاس په مړوند کېښودلو او برابر همدغه شان به یې قائم ساتلو، تردې چه د مونځ نه به فارغ شو. مګر دا چه که چرې په بدن کښې به یې خارښ وو او یا به یې جامې برابرولې. نو هغه به یې پورته کول (حاشیه بخاری مع بخاری ص۱۵۹ ج۱)

امام بخاري رحمه الله په دې باندې د حضرت عباس رضی الله عنه هغه روايت نقل کړې دې چه رسول الله ﷺ کله زه د شپې په وخت په هغوی پسې چپ طرف ته ولاړ وم نو هغوی خپل ښی لاس سره زه د غوږ نه ونيولم او خپل ښی طرف ته يې ودرولم.

# د مسبوق او د لاحق بعضې مسائل

مسبوق هغه سړی ته وايي چه هغه ته د مونځ څه حصه يا اکثر حصه د امام سره نه وی نصيب شوې د مسبوق دا حکم دې چه د هغه نه د امام سره څومره حصه د مونځ پاتې شوې وی هغه به د امام د سلام ګرځولو نه وروسته پوره کوی، دې به بالکل د منفرد (ځان له مونځ کونکی) په حکم کښې وی لکه څنګه چه منفرد سړې مونځ کولو کښې ثناء، تعوذ، تسميه، او قرائت کوی، همدغه شان دې به هم باقی مانده مونځ کښې همداسې کوی.

لاحق هغه وی چه امام سره په ابتداء کښې شريك وی ليکن د څه عذر له کبله يا بغير د عذر نه له امام سره د اقتداء کولو نه پس د هغه بعضې رکعتونه يا ټول رکعتونه پاتې شی، مثلاً د غفلت له کبله يا د ګڼې له کبله يا د بې اودسۍ راتلو له کبله يا بغير د څه عذر نه مثلاً خپل امام نه وړاندې رکوع يا سجده يې وکړه او دغه شان هغه رکعت پاتې شو يا مقيم سړې چه مسافر امام پسې مونځ کوی، يا صلوة خوف کښې ړومبې يو رکعت يا دوه رکعته د امام سره کوی دا به لاحق وی.

دده حکم د مقتدی حکم دې، دې به باقی مانده مونځ کښې قرائت نه کوی، نه به سجده سهوه کوی، (کچيرې څه ترې هير شواو سجده سهوه پرې واجب شوه) او نه به د هغه فرض د اقامت په نيت سره بدل شی، داسې سړې د مسبوق برعکس وړاندې به هغه حصه قضا کوی چه امام سره د کولو نه پاتې شوې ده، او کچيرې جماعت تراوسه باقی وی نو دې به د امام سره شريکيږی.

لاحق نه چه کوم رکعتونه پاتې شوې وی په هغې کښې به هغه مقتدی ګڼلې شی، او امام سره څنګه چه مقتدی قراءة نه کوی همداسې به لاحق هم قراءة نه کو ی بلکه سکوت به اختيار کړی او خاموش به ودريږی، که دده نه سهوه وشی نو د سجده سهوه کولو ضرورت نشته.

**مسئله**:- مسبوق نه چه کوم رکعتونه پاتې شوې دی هغه به داسې ادا کوی: ړومبی به قراءة والا رکعت کوی او بيا هغه رکعت چه قراءة نه بغير وی او په قعده کښې به د هغه رکعتونو مطابق کيناستل وی چه د امام سره يې کړی وی مثلاً د ماسپښين درې رکعته کيدلونه پس هغه امام سره شريك شو، هغه ته هم يو رکعت د امام سره حاصل شو، نو دې به په دويم رکعت کښې سورة فاتحه او دهغې سره دويم سورة يوځای کړی او بيا به په قعده کښې کيني، او بيا بل رکعت کښې هم سورة فاتحه او يوسورة يوځای کړی او قعده به نه کوی ځکه چه دا دريم رکعت جوړيږی او څلورم رکعت کښې به د سورة فاتحه نه پس سورة يوځای کړی اوقعده کښې ناستې سره به دا آخری قعده وی

**مسئله** :- کچیرې یو سړې مسبوق هم وی او لاحق هم،نو ددې د ادا کولو طریقه داده : مثلاً د مازدیګر د یورکعت کیدونه پس هغه په جماعت کښې شریك شو ، او د شریکیدو نه پس بې اودسه شو ، او هغه اودس وکړو ، او په دې کښې څه حصه د مونځ تیره شوه یا ټول مونځ ختم شو ، نو ده ته به پدې ترتیب باندې مونځ اداکول پکار وی چه : ړومبې هغه رکعتونه وکړی چه دده په مونځ کښې د شریکیدلو نه پس پاتې شوې دی ، هغه به دې د مقتدی په شان ادا کوی ، یعنی قراءة به نه کوی ، او دې کښې به ړومبی رکعت کښې قعده کوی ، ځکه چه دا دامام د حساب سره دویم رکعت جوړیږی ، او بیا به بل رکعت کښې قعده نه کوی ، چه دا د امام د حساب سره دریم رکعت جوړیږی ، بیا به دریم رکعت وکړی او قعده به وکړی ، چه دا د امام په لحاظ سره څلورم رکعت دې . او دې کښې به ده دپاره قراءة کول هم ضرور وی ځکه چه پدې کښې دې مسبوق دې دا رکعت شوې وو ، کله چه دې د امام سره شریك شوې وو او مسبوق د منفرد حکم لری .

**مسئله** :- صلوة خوف کښې ړومبۍ ډله د لاحق حکم لری ، چه خپل باقی مانده یو یا دوه رکعته به بغیر د قراءة نه ادا کوی ، او صلوة خوف کښې دویمه ډله د مسبوق حکم لری چه خپل باقی مانده مونځ به د منفرد په شان کوی ، همدغه شان چه مقیم سړې په مسافر امام پسې مونځ کوی د هغه مسافر امام دمونځ ختمیدلو نه پس به هغه لاحق وی د مسبوق او لاحق مسائل له لاندینی احادیثو او آثار نه اخیستلې شوی دی :

اَبُوْهُرَیْرَةَ (مرفوعا) لِّمَا اَدْرَکْتُمْ فَصَلُّوْا وَمَا فَاتَکُمْ فَاَتِمُّوْا (وفی روایة) صَلِّ مَا اَدْرَکْتَ وَاقْضِ مَا سَبَقَكَ ،

(مسلم ص۲۲۰ ج۱)

**ترجمه** : حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمایی چه د جماعت په شرکت کښې تیزی مه کوئ څومره حصه چه د امام سره را لاندې کړئ هغه وکړئ اوچه کوم تاسو نه فوت شی هغه وروستو پوره کړئ . (په دویم روایت کښې دی چه) مونځ وکړئ څومره حصه چه د امام سره لاندې کړئ او چه څه حصه تاسو نه پاتې شی هغه قضاء وکړئ .

عَنْ مَعَاذٍ قَالَ کَانَ النَّاسُ عَلٰی عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ اِذَا سُبِقَ الرَّجُلُ بِبَعْضِ صَلَاتِهٖ سَاَلَهُمْ فَاَوْمَؤُا اِلَيْهِ بِالَّذِیْ سُبِقَ بِهٖ مِنَ الصَّلٰوةِ فَیَبْدَأُ فَیَقْضِیْ مَا سَبَقَ ثُمَّ یَدْخُلُ مَعَ الْقَوْمِ فِیْ صَلٰوتِهٖ فَجَاءَ مَعَاذُ بْنُ جَبَلٍ وَالْقَوْمُ قُعُوْدٌ فِیْ صَلَاتِهِمْ فَقَعَدَ فَلَمَّا فَرَغَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فَقَامَ فَقَضٰی مَا کَانَ سُبِقَ بِهٖ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِصْنَعُوْا کَمَا صَنَعَ مَعَاذٌ .

(مسند احمد ص۲۲۳ ج۵)

**ترجمه** : حضرت معاذ ﷺ نه روایت دې چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې به چه کله له یو سړی نه په مونځ کښې څه حصه د هغه په جماعت کښې د شریکیدلو نه وړاندې وشوه نو هغه به خلقو نه

پوښتنه کوله او خلقو به هغه طرف ته اشاره کوله . هغه ته به یې ښودله چه دومره حصه وړاندې شوې ده. بیا هغه سړې چه څومره حصه به ترې وړاندې شوې وه رومبې به یې هغه وکړه، او بیا به خلقو سره په مونځ کښې شریك شو. یو ځل حضرت معاذ بن جبل ﷺ راغې او خلق په مونځ کښې ناست وو. نو هغه هم د هغوی سره کیناستلو کله چه رسول اللهﷺ د مونځ نه فارغ شو نوحضرت معاذ ﷺ ودریدلو او چه کومه حصه ترې پاتې شوې وه هغه یې پوره کړه. رسول الله ﷺ وفرمایل تاسو هم داسې کوئ لکه څنګه چه معاذ ﷺ وکړل

**اَخْبَرَنَا اَبُوْحَنِيْفَةَ عَنْ حَمَّادٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ اَنَّ مَسْرُوْقًا وَجُنْدُبًا دَخَلَا فِيْ صَلٰوةِ الْاِمَامِ فِي الْمَغْرِبِ فَاَدْرَكَا مَعَهُ رَكْعَةً وَسَبَقَهُمَا بِرَكْعَتَيْنِ فَصَلِّيَا مَعَهُ رَكْعَةً ثُمَّ قَامَا يَقْضِيَانِ فَاَمَّا مَسْرُوْقٌ فَجَلَسَ فِي الرَّكْعَةِ الْاُوْلَى الَّتِيْ قَضٰى وَاَمَّا جُنْدُبٌ فَقَامَ فِي الْاُوْلٰى وَجَلَسَ فِي الثَّالِثَةِ فَلَمَّا انْصَرَفَا اَقْبَلَ كُلُّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا عَلٰى صَاحِبِهٖ ثُمَّ اَنَّهُمَا تَسَاوَقَا اِلٰى عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ فَقَصَّا عَلَيْهِ الْقِصَّةَ فَقَالَ كِلَا كُمَا قَدْ اَحْسَنَ، وَاَنْ اُصَلِّيَ كَمَا صَلَّى الْمَسْرُوْقُ اَحَبُّ اِلَيَّ. (اَخْرَجَهُ الْاِمَامُ مُحَمَّدٌ فِي الْاٰثَارِ وَقَالَ بِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ نَاْخُذُ نَجْلِسُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ اللَّتَيْنِ فَاتَتَاهُ وَهُوَ قَوْلُ اَبِيْ حَنِيْفَةَ (رجاله كلهم ثقات وسنده متصل)**

**ترجمه** امام محمد رحمه الله په کتاب الاثار کښې د امام ابوحنیفه او حماد په واسطې سره د حضرت ابراهیم نخعي نه روایت نقل کړې دې چه یو ځل حضرت مسروق او جندب امام سره د ماښام په مونځ کښې شریك شول، په داسې حال کښې چه امام دوه رکعته کړې وو. هغوی ته صرف یو رکعت د امام سره حاصل شو . بیا دا دواړه د امام د فارغیدلو نه پس باقي مانده دوه رکعته کولو د پاره ودریدل . مسروق خو یو رکعت کولو سره قعده وکړه . او جندب رومبی رکعت کولو نه پس ودریدلو اودویم رکعت کولو سره یې بیا قعده وکړه بیا چه کله دواړه د مونځ نه فارغ شول نو یو بل ته متوجه شول او د یو بل کار ته یې غلط ویل شروع کړل، بیا دواړو د حضرت ابن مسعود ﷺ په خدمت کښې په حاضریدلو سره اتفاق وکړو ، او خپله ټوله واقعه یې دهغوی په وړاندې بیان کړه. نو عبدالله بن مسعود ﷺ وفرمایل تاسو دواړو صحیح وکړل او زه خو داسې مونځ زیات خوښوم لکه څنګه چه مسروق وکړو. دا اثر امام محمد په کتاب الاثار کښې نقل کړې دې او په خپله امام محمد فرمایي چه مونږ د ابن مسعود ﷺ په قول باندې عمل کوو چه کوم دوه رکعته د هغه نه پاتې شوې وو په هغه دواړو کښې به قعده کوی او دا د امام ابو حنیفه قول دې (ددې اثر رجال ټول ثقات دی او سند هم متصل دې)

د احنافو مسلك دا دې چه مسبوق کوم رکعت د امام د سلام نه پس کوی هغه د قراءة په اعتبار سره اول دی یعنی حکما د هغه د مونځ رومبئ حصه ده اګر چه حسا هغه آخر دې اود تشهد په

اعتبار دا آخر دې او امام سره چه کوم رکعتونه ده موندلی دی هغه د تشهد په اعتبار اول دی. او د قراءة په اعتبار آخر دی.

د عبدالله بن مسعود ﷜ اثر کوم چه مجمع الزوائد والا په حواله د طبرانی نقل کړې دې

**اَلَّذِیْ تَفُوْتُهٗ بَعْضُ الصَّلٰوةِ مَعَ الْاِمَامِ قَالَ یَجْعَلُ مَا یُدْرِكُ مَعَ الْاِمَامِ اٰخِرَ صَلٰوتِهٖ.**

**ترجمه**: هغه سړې چا نه چه د مونځ بعضې حصه پاتې شوې ده نو حضرت عبدالله بن مسعود ﷜ فرمایی کومه حصه چه هغه د امام سره موندلې ده هغه دې دخپل مونځ آخری حصه وګنی

اود عبدالله بن عمر ﷜ اثر کوم چه الجواهرالنقی کښې دابن ابی شیبه په حواله نقل کړې شوې دې چه **(اَنَّهٗ کَانَ یَجْعَلُ مَا اَدْرَكَ مَعَ الْاِمَامِ اٰخِرَ صَلٰوتِهٖ). (اعلاء السنن ص۲۸۶ تا ۲۸۲، ج۴)**

**ترجمه** حضرت عبدالله بن عمر ﷜ هم چه کومه حصه د مونځ د امام سره موندله هغه به یی د مونځ آخری حصه ګڼله **(والله اعلم بالصواب)**

سخرګنئ کښې د اقامت په مسئله باندې بعضې حضراتو دا اشکال پیش کړې دې چه فتاوی دارالعلوم کښې د وطن اصلی دا معنی لیکی چه وطن قرار وی یعنی هلته اوسیدل مقصود وی پس وطن تاهل یعنی تزوج وطن اصلی هغه وخت کیدلې شی چه هلته اوسیدل مقصود وی نو هغه ښځه هلته اوسیږی، داسې نه کچیرې کوم ځائ کښې نکاح وکړی او نکاح کولو سره ښځه راولی نو بیا به هم هغه ځائ د نکاح وطن شی. حاصل دادې چه چیرته د هغه ښځه اوسیږی. او هغه ته هلته اوسیدل مقصود وی نو هغه وطن اصلی دې او که دوه ښځې په دوو ښارونو کښې اوسیږی. نو دواړه وطن اصلی دی

**لَوْ کَانَ لَهٗ اَهْلَانِ فِیْ بَلْدَتَیْنِ فَاَیَّتُهُمَا دَخَلَ صَارَ مُقِیْمًا**

**ترجمه**: که څوك دوه مختلفو ښارونو کښې دوه ښځې لری نو هغه چه ددینه کوم ښار ته داخل شو نو مقیم به وی

ددې عبارت نه معلومیږی چه د ښځې هلته کیدل او اوسیدل معتبر دی. محض نکاح کول او راوستل دا سبب د وطن د جوړیدو نه دی. **(والله اعلم انتهی عزیز الفتاوی ص۲۶ ج۱)**

لدینه علاوه د کبیری او فتح القدیر ص۴۰۲ د مصری له عبارت نه معلومیږیچه

**وطن اصلی وهو مولد الانسان او موضع تاهل به ومن قصده التعیش به لاالارتحال (انتهی)**

بعضې فقهاؤ دې اړخ لره اختیار کړې دې لکه د مولانا مفتی عزیزالرحمن په فتاوی کښې چه لیکلی دی. لیکن دا اړخ مرجوح دې. راجح خبره هغه ده کومه چه احقر لیکلې ده. د حضرت عثمان ﷜ روایت کښې هم مطلق تاهل علت دې. او صاحب د فتح القدیر یا کبیری والا چه کوم

عبارت نقل کړې دې د هغې محمل دا هم کېدې شي.

**فالاصل** (وطن اصلی) **(هو مولد الانسان)**، هغه د انسان دپیدایش ځای دې **(وموضع تاهل به)**، او کوم ځای کښې چه انسان نکاح وکړي، **(ومن قصده التعیش به)** او هغه ځای چیرته چه انسان د اوسیدو قصد کړې دې.

دا درې واړه ځان له ځان له جملې دی او هره یوه د اتمام علت دې.

ددې حضراتو وړاندې شوې عبارت چیرته چه کبیری والا لیکلی دی دهغې نه ځلور کرښې وروسته دا هم لیکلې شوی دی.

**لو تزوج المسافر ببلد ولم ینو الاقامة به فقیل لا یصیر مقیما وهو الاوجه لما مر من حدیث عثمان.** (کبیری ص۵۴۴، مصری)

**ترجمه**: او که مسافر چیرته ښار کښې نکاح وکړي او هلته د اقامت اراده ونه کړي. (نو دې کښې د فقهاء کرامو اختلاف دې) ځینو ویلي دی چه هغه سړې مقیم نشی کیدلې، او ځینو ویلی دی چه هغه مقیم کیدلې شي، او دا خبره زیاته بهتره او راجحه ده لکه چه د عثمان ﷺ په حدیث کښې بیان شوی دی.

همدغه شان قاضی خان والا هم مطلق تاهل علت ګرځولې دې.

**الکوفي اذا نوى الاقامة بمكة ومنى خمسة عشر يوما لم يكن مقيما وان تاهل بهما كان كل واحد من الموضعين وطنا اصليا له.** (قاضی خان ص۸۱، ج۱)

**ترجمه**: د کوفې یو اوسیدونکې چه کله مکه مکرمه اومنی کښې د پنځلس ورځو د حصاریدلو نیت وکړي نو هغه مقیم نه جوړیږي او که پدې ځایونو کښې نکاح وکړي نو ددې دواړو نه هر یو مقام به دده د پاره وطن اصلی وي.

نو د حضرت عثمان ﷺ په اتمام باندې چه کله اعتراض شوې وو نو صاحب د فتح الملهم حضرت شیخ عثمانی ﷫ دهغې په توجیه کښې داسې لیکلې دی:

**ثم كان ذلك (ای الاتمام) بعد مضي الصدر من خلافته لانه تاهل بمكة على ما رواه احمد انه صلى بمنى اربع ركعات فانكر الناس عليه فقال يا ايها الناس اني تاهلت بمكة منذ قدمت واني سمعت رسول الله يقول من تاهل في بلد فليصل صلوة المقيم. قال الحافظ هذا حديث لا يصح لانه منقطع وفي رواته من لا يحتج به.**

**قال ابن القيم وقد اعله البيهقي بانقطاعه وتضعيفه عكرمة بن ابراهيم. قال ابو البركات بن تيمية ويمكن المطالبة بسبب الضعف فان البخاري ذكره في تاريخه ولم يطعن فيه وعادته ذكر الجرح والمجروحين وقد**

أَحْمَدُ وَابْنُ عَبَّاسٍ قَبْلَهُ أَنَّ الْمُسَافِرَ إِذَا تَزَوَّجَ لَزِمَتْهُ الْإِتْمَامُ وَهٰذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمَالِكٍ وَأَصْحَابِهِمَا وَهٰذَا أَحْسَنُ مَا اعْتُذِرَ بِهِ عَنْ عُثْمَانَ. (فتح الملهم ص۲۳۶، ج۲)

**ترجمه**: بیا د حضرت عثمان ﷺ پوره څلور رکعته کول د هغوی د خلافت د شروع له دور نه پس وشول ځکه چه هغوی په مکه کښې نکاح کړې وه . لکه ځنګه چه امام احمد (په مسند کښې) نقل کړی دی چه حضرت عثمان ﷺ په منی کښې چه کله څلور رکعته کول شروع کړل، نو خلقو دا خبره نا آشنا وګڼله، نو حضرت عثمان ﷺ وفرمایل : اې خلقو! کله چه زه مکې ته راغلې يم، په دې وخت کښې ما دلته نکاح کړې ده ، او ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلی دی، هغوی ﷺ فرمایل : کوم سړې چه په يو ښار کښې نکاح وکړی نو هغه ته هلته د مقیم سړی په شان مونځ کول پکار دی.

په دې روايت باندې په بحث کولو سره حافظ ابن حجر فرمايي چه دا حديث د صحت درجې ته نه رسيږی ځکه چه دا منقطع دې، (يو راوی په مينځ کښې پاتې دې) او ددې حديث په بيان کولو کښې يو راوی داسې هم دې . چه د هغه د روايت نه استدلال نه شی کيدلې، (يعنی ضعيف دې).

حافظ ابن قيم رحمه الله فرمايي چه امام بيهقی دا حديث يو خو د منقطع کيدلو له کبله او بل ددې راوی د عکرمه بن ابراهيم د تضعيف کيدلو له کبله معلول ګرځولې دې ، ليکن ابو البرکات ابن تيميه (چه د امام ابن تيميه جدامجد دې) ويلی دی چه ممکنه ده چه ددې حديث د ضعف د سبب مطالبه وکړې شی او وويلې شی چه دا حديث ولې ضعيف ګرځولې شوې دې ځکه چه امام بخاری په خپل تاريخ کښې ددې راوی ذکر کړې دې او په ده يې څه جرح نه ده کړې ، حالانکه د امام بخاری عادت دې چه هغه د جرح او مجروحينو تذکره ضرور کوی ، او حضرت امام احمد او حضرت عبدالله بن عباس ﷺ هم صراحت سره بيان کړې دې چه مسافر سړې کله په يو ځائ کښې نکاح وکړی نو په هغه لازم دی چه هغه هلته مونځ پوره کړی ، او دا قول د امام ابوحنيفه ، امام مالك ، او د هغوی د اصحابو دې ، او دا د ټولو نه بهتره توجيح او عذر دې چه د حضرت عثمان ﷺ د طرف نه پيش کړې شوې دې.

صاحب د اعلاء السنن د حضرت عثمان ﷺ د روايت بيانولو نه پس دا هم بيان کړی دی چه : داحديث ابويعلی هم روايت کړې دې ، او الفاظ يې دادی :

إِذَا تَأَهَّلَ الْمُسَافِرُ فِي بَلَدٍ فَهُوَ مِنْ أَهْلِهَا يُصَلِّيْ صَلٰوةَ الْمُقِيْمِ أَرْبَعًا.

**ترجمه** : کله چه څوك مسافر په يو ښار کښې نکاح وکړی نو هغه به د هغه ښار د اهل نه شمار کيږی او هغه به د مقيم په شان څلور رکعته مونځ کو ی.

صاحب د اعلاء السنن حضرت مولانا ظفر احمد عثمانی د حافظ ابن قيم د ذکر شوی عبارت د نقل کولو نه پس ليکی : د ابن قيم ددې کلام نه ددې حديث تحسين کول مراد دی چه ددې د راوی

امام بخاري ګویا توثیق کړې دې ځکه چه هغوی په دې جرح نه ده کړې، طعن نه کول هم د هغوی توثیق ده. اوس به ددې حدیث باره کښې څه مجمله جرح معتبره نه وی . البته که جرح مفسره وی نو هغه قابل قبول کیدلې شی، لیکن داسې مفسره جرح موجوده نه ده او بیا حضرت ابن عباس ﷺ او اما م احمد او امام ابو حنیفه او امام مالك په دې عمل کړې دې ، او د یو مجتهد د یو حدیث نه اجتهاد کول. دا ددې حدیث تصحیح ده، پس دا حدیث د حسن په درجه کښې دې. او بالخصوص کله چه حافظ ضیاء مقدسی په خپل کتاب مختار کښې په مسنده طریقه باندې راویستلې دې، دا خبره حافظ ابن قیم په خپل کتاب تعجیل المنفعة کښې بیان کړې ده

صاحب د اعلاء السنن په حاشیه کښې ویلی دی

او د امام بیهقی دې حدیث ته منقطع ویل دا غالباً د عبدالرحمن بن ابی ذباب او د حضرت عثمان ﷺ په مینځ کښې دی . لیکن کله چه د عبدالرحمن زوئ عبدالله د دریمې طبقې راوی دې او د حضرت ابو هریره ﷺ نه روایت کوی لکه چه تهذیب ص ۲۹۴ ج۵ کښې ذکر دی نو په دې کښې هیڅ بُعد نشته چه ده «عَن اَبِیهِ عَن عُثمَانَ» روایت کړې وی. او د جمهورو په نزد معاصر که په «عن» سره روایت بیان کړی نو هغه په لقاء باندې حمل کوی . او که انقطاع هم تسلیم شی، نو بیا هم قرون ثلاثه کښې انقطاع مضره نه ده لکه څنګه چه ارسال مضر دې

د امام بخاري عادت سکوت او عدم جرح مشهوره بین المحدثین ده،

لکه چه د امام ابوداؤد سکوت هم د دې روایت دقابل احتجاج کیدلو علامه ده . لهذا په څه شان سره هم دا حدیث دحسن درجې نه کم ندې، په داسې حال کښې چه مجتهدین کرامو په دې عمل هم کړې د ې

د فقهاء کرامو دا بیان چه که څوك مسافر په کوم ځائ کښې د پنځلس ورځو د اقامت نیت وکړی نو هغه به مقیم شی. او که لدینه د کمې مودې نیت وکړی نومقیم به نه وی لدینه مراد د وطن نه علاوه په کوم بل مقام کښې اقامت دې ، ځکه چه کله څوك خپل وطن ته داخل شی نو هغه ته د اقامت دنیت کول ضروری نه وی ، محض وطن ته داخلیدلو سره بغیر د نیت نه هغه مقیم کیږی لیکن د تاهل اختیارولو په صورت کښې د مسند احمد دا حدیث او د ابو یعلی د روایت مطابق به د تاهل مقام ملحق بالوطن شی، اوس به دده حکم د مقیم په شان وی والله اعلم بالصواب

**تمت بالخیر**

**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وعلی آله واصحابه وسلم اجمعین برحمتك یا ارحم الراحمین**

# د عنواناتو فهرست

**تم فهر الكتاب بعون الملک الوهاب**

**وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد وعل آله واصحابه وسلم اجمعين برحمتک يا ارحم الراحمين**

تاسې کولی لاندې کتابونه د ورکړ شوي لينکونو څخه ښکته ( ډاونلوډ ) کړی

| د ښکته کولو ترونې | کتابونو نوملړ | شمیره |
|---|---|---|
| https://bawar.net/download/index/1170 | غير مقلدينو اعتراضونه د هغوي جوابونه د احنافو دلايلو سره | 1 |
| https://bawar.net/download/index/1371 | مد لل لمونځ ( مولانا فيض احمد ملتانی) | 2 |
| https://bawar.net/download/index/1567 | دخالد بن وليد رضي الله عنه جهادي کارنامې | 3 |
| https://bawar.net/download/index/1592 | نبوي او سپيڅلي ويناوي | 4 |
| https://bawar.net/download/index/1652 | احقاق الحق څلور ټوک | 5 |
| https://bawar.net/download/index/1677 | زبدة التحقيق في الجهاد وتقليد | 6 |
| https://bawar.net/download/index/1685 | داسلام ستر اتل امام اعظم ابوحنيفه (رح) | 7 |
| https://bawar.net/download/index/1847 | تفسير معارف القران لس ټوکه | 8 |
| https://bawar.net/download/index/1587 | لس مشهوري ناروغۍ | 9 |
| https://bawar.net/download/index/1904 | د افغانستان تاريخ له راشده خلافته تر اسلامي امارته | 10 |
| https://bawar.net/download/index/1916 | د مذهب په جامه کې د استعمار مزدوران | 11 |
| https://bawar.net/download/index/1922 | علم النحو پښتو | 12 |
| https://bawar.net/download/index/1978 | دغير مقلدينو دامام بخاري سره اختلاف | 13 |
| https://bawar.net/download/index/1979 | داسلامي معلوماتو ذخيره پښتو | 14 |
| https://bawar.net/download/index/1980 | دامام اعظم ابوحنيفه رحمة الله عليه حيرت انګيز واقعات | 15 |
| https://bawar.net/download/index/2025 | صفوة التفاسير پښتو | 16 |
| https://bawar.net/download/index/2034 | احسن التعبير في المسئلة الجبر وتقدير | 17 |
| https://bawar.net/download/index/2035 | د همجنس بازي بربادی او دهغه علاج | 18 |
| https://bawar.net/download/index/2036 | تحقيقات حماسي | 19 |
| https://bawar.net/download/index/2037 | جوامع الکلم څلويښت احاديث مفتي محمد شفيع | 20 |
| https://bawar.net/download/index/2066 | المهند المفند عقايد اهل سنت والجماعت علماء ديوبند | 21 |
| https://bawar.net/download/index/2067 | انسان او شيطان(ناول) | 22 |
| https://bawar.net/download/index/2068 | اتلس ناولي قاتلين جنايي (ناول ) | 23 |
| https://bawar.net/download/index/2073 | تشريحات نابغه | 24 |
| https://bawar.net/download/index/2077 | جنتي ښځه | 25 |
| https://bawar.net/download/index/2078 | د جنت اغزنه لار | 26 |
| https://bawar.net/download/index/2084 | دپيغمبر لمونځ احنافو ته ډالۍ | 27 |
| https://bawar.net/download/index/2085 | تجليات فرديه پښتو | 28 |
| https://bawar.net/download/index/2086 | بدرالفتو | 29 |
| https://bawar.net/download/index/2087 | دقرباني مسايل احکام ، فضايل،او مسائل مدلل | 30 |
| https://bawar.net/download/index/2088 | دګونټنامو ماتې زولنې | 31 |
| https://bawar.net/download/index/2089 | فن الخطابه (دوينا فن) | 32 |
| https://bawar.net/download/index/2090 | نشر الطيب في ذکر النبي الحبيب | 33 |
| https://bawar.net/download/index/2091 | اصول حديث (شهيد شيخ الاسلام مولانا غلام حضرت الحنفی ) | 34 |
| https://bawar.net/download/index/2092 | تنبه الغافلين پښتو | 35 |
| https://bawar.net/download/index/2093 | وا مدني ياره نعتيه غورچان | 36 |
| https://bawar.net/download/index/2095 | تفسير ايوبي حنفي | 37 |
| https://bawar.net/download/index/2096 | په يو کليمې سره د طلاقو واقع کيدل | 38 |
| https://bawar.net/download/index/2097 | ارشاد الطالبين دزادالطالبين شرح پښتو | 39 |
| https://bawar.net/download/index/2101 | البصاير پښتو | 40 |
| https://bawar.net/download/index/2103 | ۳۰۰ ذهني پوښتنې او ځوابونه | 41 |
| https://bawar.net/download/index/2104 | جامع الوظايف | 42 |
| https://bawar.net/download/index/2106 | داحنافو دلايل | 43 |
| https://bawar.net/download/index/2107 | د کليساه د پردو ترشاه پټ لاسونه | 44 |
| https://bawar.net/download/index/2108 | د دعوت فنون | 45 |
| https://bawar.net/download/index/2117 | د واده لومړۍ لس شپې | 46 |
| https://bawar.net/download/index/2118 | زادة الطالبين پښتو ترجمه | 47 |
| https://bawar.net/download/index/2119 | اصول التکفير | 48 |
| https://bawar.net/download/index/2120 | د ماشومانو ښکلا | 49 |
| https://bawar.net/download/index/2122 | د مبايل فون شرعي احکام | 50 |
| https://bawar.net/download/index/2128 | د انجمن تقريرونه | 51 |
| https://bawar.net/download/index/2137 | دحضرت عبد الله ابن عباس رض سل قيصې | 52 |
| https://bawar.net/download/index/2138 | فايق التقارير | 53 |
| https://bawar.net/download/index/2139 | دخاوند حقوق | 54 |
| https://bawar.net/download/index/2141 | قراني علاج | 55 |

که د کوم کتاب په ډاونلوډ کولو کې ستونزه لرې مهرباني وکړي زمونږ سره آړیکه ټینګه کړی.

https://www.facebook.com/Ezatullah.sultanzai
WhatsApp: 0093706912702
https://T.me/Ezatullah_sultanzai

